# الدر المنضود

## فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات**:- حضرت مولانا محمد عاقل صیب
صدرمدرّس مظاهرالعلوم سهارنپور(هند)

**مترجمين**:
[ رفقاء ] دار التصنيف والتحقيق

**زير نگرانی**
**مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس**

| |
|---|
| **پښتو................................نهم جلد** |

**خصوصيات**

① دكتاب په اول كښې د اصول حديث مفيده مقدمه.
② د بذل المجهود شرح أبي داود عربي، شرحې خلاصه اونجوړ
③ د متن ټولو احاديث ته اعراب وركول
④ د هر كتاب په اول كښې هغې سره متعلقه ضروری مباحث.
⑤ د هر حديث تخريج د مصدر، كتاب او رقم په حوالې سره.
⑥ د مشكلو لغاتو حل.
⑦ په فقهی مباحثو كښې د مذاهبو بيان.
⑧ دفريق مخالف دلائل
⑨ د فريق مخالف ددلائلو ښخه جوابونه.
⑩ د مذهب حنفی دلائل او وجوه ترجيح.

**خورونکی**
**فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور**

د کتاب نوم: الدرالمنضود فی حل سنن ابی داؤد

مؤلف: حضرت مولانا محمّد عاقل صاحب دامت برکاتہم

زیرنګراني:- مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس

خورونکی : فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور

د ملاویدو پتې

- مکتبه فخر الدین رازی هرات [نمائنده فیصل کتبخانه درهرات]
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موئے مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقویٰ کتب خانه جلال آباد
- نعمت کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- حقانیه کتب خانه ګردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- ګودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

خپرونکي

فیصل کتب خانه

مدینه ټاور محله جنګی پیښور قصه خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست أبواب ومضامين

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

بسم الله الرحمن الرحيم

# بَابُ دِيَةِ الْجَنِينِ

## باب د حمل د ماشوم د ديت بيان

[٤٥٦٨]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ نَضْلَةَ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ: "أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا تَحْتَ رَجُلٍ مِنْ هُذَيْلٍ فَضَرَبَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى بِعَمُودٍ فَقَتَلَتْهَا وَجَنِينَهَا، فَاخْتَصَمُوا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ أَحَدُ الرَّجُلَيْنِ: كَيْفَ نَدِي مَنْ لَا صَاحَ وَلَا أَكَلَ وَلَا شَرِبَ وَلَا اسْتَهَلَّ؟ فَقَالَ: أَسَجْعٌ كَسَجْعِ الْأَعْرَابِ، فَقَضَى فِيهِ بِغُرَّةٍ وَجَعَلَهُ عَلَى عَاقِلَةِ الْمَرْأَةِ".

دشعبه نه روايت دي فرمائی چه په هذيل قبيله کښې ديوسړي دوه ښځې وي يوي ښځې بله په لرګي اووهله اووددې ښځې په خيټه کښې بچې وو اوهغه مړ شو دواړه ښځوخپله مقدمه نبی عليه السلام ته پيش کړه، په دوی کښې يوي عرض اوکړو چه مونږ په څه طريقې سره ددې ديت اداکړو کوم چه نه ژړلي دي اونه ئې څه خوړلي دي اونه ئې څه څکلي دي اونه ئې چغه وهلې ده اوددې قبيلې خلقو دا عبارت په قافيه دارو الفاظو بيان کړو نبی عليه السلام اوفرمائيل ايا تاسو د باندچيانوپه شان د قافيه بندئ نه کار اخلئ؟ اوبيا نبی عليه السلام دقاتلې ښځې په وارثانو باندې يوه غره (يعنی غلام ياوينځه دبچي په ديت کښې ورکول مقرر کړل.

### شرح الحديث:

**قوله:** ﴿ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا تَحْتَ رَجُلٍ.....فَقَالَ «أَسَجْعٌ كَسَجْعِ الْأَعْرَابِ». وَقَضَى فِيهِ بِغُرَّةٍ وَجَعَلَهُ عَلَى عَاقِلَةِ الْمَرْأَةِ ﴾ سيدنا مغيره بن شعبه رضي الله عنه فرمائي چه دوه زنانه د يو هذلي سړي د لاندې يعنی د هغوی په نکاح کښې وې په هغوی کښې يوې بله په لرګی اوهله او هغه ئې مړه کړه، د دواړو زنانو اولياء د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې خپلې مقدمې سره حاضر شو، په دواړو کښې د يوې ولی اووې يعنی د قاتلې ولی چه مونږ ديت څنګه ادا کړو د هغه ماشوم چه پيدا کيدو سره ئې نه چغه وهلې ده او نه ئې څه خوړلې څکلې دی، په دې روايت کښې يو لفظ نشته کوم چه په بل لفظ کښې شته ﴿ ومثل ذلک يطل ﴾ دا درې واړه جملې هغه مسجع طريقې سره اووې په وقف سره، چه په هغې باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه څه د

[1]: صحيح مسلم/القسامة ١ (١٦٨٢)، سنن الترمذي/الديات ١٥ (١٤١١)، سنن النسائي/القسامة ٣٣ (٤٨٢٥)، سنن ابن ماجه/الديات ٧ (٢٦٣٣)، (تحفة الأشراف: ١١٥١٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الديات ٢٥ (٦٩٠٥-٦٩٠٨)، الاعتصام ١٣ (٧٣١٧)، مسند احمد (٤/٢٢٤، ٢٤٥، ٢٤٦، ٢٤٩)، سنن الدارمي/الديات ٢٠ (٢٤٢٥) (صحيح)

باندچیانو په شان سندري وائي. او رسول اللهﷺ د هغه د دې جملو هيڅ اثر وانخستلو او په دې کښې د يو غره رسول اللهﷺ فيصله اوفرمائيله او د جنايت کونکې زنانه عاقله ئې ذمه دار کړل، په دې روايت کښې کافي اختصار اوشو د دې واقعې سره متعلق څو اجزاء په دې کښې پاتې شو کوم چه د دې نه روستو راتلونکې روايت کښې ذکر شوي دی، اول خو په دې روايت کښې د جنين بالکل ذکر نشته، د دې زنانو نومونه کومې چه خپل مينځ کښې بنې وې (۲) د يوې نوم مليکه وو او د بلې ام غطيف، دا دواړه د قبيله هذيل نه وې.

او وړاندې د دې جنين په باره کښې دا هم دی ﴿ فاسقطت غلاما وقد نبت شعره ميتا ﴾ چه کوم ماشوم ساقط شوې وو هغه دغه وخت کښې مړ وو او د هغه ويښته راختلي وو.

د باب په دې اول حديث کښې د دې مقتولې زنانه يعنی د ام الجنين د ديت ذکر نشته، په روستو روايت کښې ذکر دې، ﴿ فجعل النبیﷺ دية المقتولة علی عاقلة القاتلة ﴾ چه د مړې شوې زنانه ديت رسول اللهﷺ د قاعدې مطابق د قاتلې په عاقله باندې کيخودلو، او په دې روايت کښې د غرة تفسير هم ذکر نه دې، په روستو روايت کښې دی ﴿ قضی فيها بغرة عبد او امة ﴾ او په دې روايت کښې دا هم دی ﴿ ضربت احداهما الاخری بعمود ﴾ او د دې نه پس په يو روايت کښې دی ﴿ بمسطح ﴾ او بيا وړاندې مصنفرحمه الله د نضر بن شميل نه نقل کړی دی د نضر بن شميل نه نقل کړی دی ﴿ المسطح وهو الصويج ﴾، صوبج هغه څيز دې چه په هغې ډوډئ جوړولې شی چه هغې ته په اردو کښې بيلن وائی، او د ابوعبيد نه د مسطح تفسير ﴿عود من اعواد الخباء ﴾ نقل دې يعنی د خيمې لرګې.

## د جنين د ديت مصداق :

د دې حديث نه معلومه شوه چه رسول اللهﷺ د جنين ديت غرة يعنی غلام يا وينځه مقرر کړې ده، غلام يا وينځه څه معياري څيز نه دې فقهاء کرامو د دې مصداق نصف عشر الدية مقرر کړې دې يعنی د سړی د کامل ديت شلمه حصه، او که د زنانه ديت ته اوکتلې شی نو دهغې لسمه حصه به وی، ځکه چه د زنانه ديت د سړی نه نيم وی، لهذا د سړی د ديت شلمه حصه او د زنانه د ديت لسمه حصه دواړه برابر دی، په جنين کښې مذکر او مونث دواړه برابر دی د هغې هيڅ فرق نشته، په دې مسئله کښې کافي تفصيل دې کوم چه په هدايه وغيره کښې ذکر دې مثلا که يو ماشوم د مور د خيټې نه مړ راوتلې دې نو بيا خو ديت دا دې کوم چه ذکر شو او که ژوندې پيدا کيدو سره بيا مړ شو نو په دې کښې به کامل ديت واجب وی، هم دغه شان د ام الجنين د مره کيدو او نه مړ کيدو تفصيلات دی، په هدايه کښې دې اوکتلې شی.

---

(۲) يعنی د باب د دې اول روايت د وجې نه چه د هغې راوی مغيره بن شعبهرضي الله عنه دې، او وړاندې د څو رواياتو نه پس د جابر بن عبداللهرضي الله عنهما په روايت کښې دا راځی چه ﴿ ان امراتين من هذيل قتلت احداهما الاخري ولكل واحدة منها زوج وولد ﴾ د دې روايت تقاضه دا ده چه هغوی دواړه د يو سړی په نکاح کښې نه وې بلکه د بيلو بيلو خاوندانو په نکاح کښې وې، فيمكن تعدد الواقعة والله تعالي اعلم ولم يتعرض له صاحب البذل ولا صاحب العون فليفتش)

[۴۵۶۹]( ) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، وَزَادَ: فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَةَ الْمَقْتُولَةِ عَلَى عَصَبَةِ الْقَاتِلَةِ، وَغُرَّةً لِمَا فِي بَطْنِهَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ الْحَكَمُ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ.

منصور په خپل سند سره تیر شوي روایت په شان روایت بیان کړي مګردا اضافه ئې کړې ده چه نبي علیه السلام دمقتولې دیت په عصبه وارثانودقاتي باندې لازم کړواو یوه وینځه ورکول په بدل دهغه ماشوم کښې کوم چه دمقتولې په خیټه کښې وو.امام ابوداؤد وائی چه همدارنګې دا روایت حکم د مجاهد نه اوهغه دمغیره نه بیان کړې دې.

[۴۵۷۰]( ) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَهَارُونُ بْنُ عَبَّادٍ الْأَزْدِيُّ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ: "أَنَّ عُمَرَ اسْتَشَارَ النَّاسَ فِي إِمْلَاصِ الْمَرْأَةِ، فَقَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ: شَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِيهَا بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ، فَقَالَ: ائْتِنِي بِمَنْ يَشْهَدُ مَعَكَ، فَأَتَاهُ بِمُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ، زَادَ هَارُونُ: فَشَهِدَ لَهُ يَعْنِي ضَرْبَ الرَّجُلِ بَطْنَ امْرَأَتِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: بَلَغَنِي عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ، إِنَّمَا سُمِّيَ إِمْلَاصًا لِأَنَّ الْمَرْأَةَ تُزْلِقُهُ قَبْلَ وَقْتِ الْوِلَادَةِ، وَكَذَلِكَ كُلُّ مَا زَلَقَ مِنَ الْيَدِ وَغَيْرِهِ فَقَدْ مَلِصَ.

دمسور بن مخرمه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه عمرفاروق رضی الله عنه داسقاط په باره کښې دخلقونه مشوره اخستله شعبه رضی الله عنه اووئیل چه زه موجود وم چه نبي علیه السلام دیوه غلام یاوینځې دورکولوحکم کړې دې عمرفاروق اه اوفرمائیل ته دځان سره یو بل کس راوله چه ستاپه خبره باندې ګواهی وکړي نوهغه محمد بن مسلمه نه راوستو اوګواهي ئې ورکړه چه یوسړې دخپلې ښځې خیټه په سوک وهلي وه په کوم باندې چه دهغې ماشوم ضایع شوې وو.

**قوله:** ﴿ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ عُمَرَ اسْتَشَارَ النَّاسَ فِي إِمْلَاصِ الْمَرْأَةِ فَقَالَ الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ شَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَضَى فِيهَا بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ ﴾

عمر رضی الله عنه ته د جنین په باره کښې د دې ذکر شوی حدیث علم چه په هغې کښې د جنین حکم ذکر شوې دې نه وو په دې وجه هغوی خلقو سره دې باره کښې مشوره اوفرمائیله په دې باندې مغیره بن شعبه رضی الله عنه اوفرمائیل چه زما په موجودګئ کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم د غرة یعنی عبد یا امة فیصله فرمائیلې وه.سیدنا عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه که تاسره په دې کښې څوک ګواه وی نو هغه راوله.هغوی محمد بن مسلمه پیش کړو ﴿ یعنی ضَرْبَ الرَّجُلُ بَطْنَ امْرَأَتِهِ ﴾ دا د یو راوی د طرف نه د املاص تفسیر دې یعنی د یو سړی د خپلې ښځې په خیټه باندې ګزار کول (چه په هغې سره ماشوم بهر راشي) په دې تفسیر باندې په بذل کښې دا اشکال لیکلې دې چه دا صحیح نه دې ځکه چه که مقصود په دې سره حکم شرعی لره بیانول وو نو بیا خو په دې وجه صحیح نه دې چه د خاوند د خپلې ښځې په خیټه کښې وهلو سره که اسقاط جنین اوشی نو هغې سره په خاوند باندې هیڅ نه واجب کیږی، او که په دې سره مقصود لغوی معنی بیانول وی نو بیا په دې کښې د زوج د وهلو څه قید دې.اهـ

[۳]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۱۰) (صحيح)

[۴]: صحيح مسلم/ القسامة ۲ (۱۶۸۹)، سنن ابن ماجه/ الديات ۱۱ (۲۶۴۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۳۳، ۱۱۵۲۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۲۵۳) (صحيح)

قلت اللهم الا ان يقال ان الحصر غير مقصود بل هو تمثيل اى مثلا.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ بَلَغَنِي عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ إِنَّمَا سُمِّيَ إِمْلاصًا لأَنَّ الْمَرْأَةَ تَزْلِقُهُ قَبْلَ وَقْتِ الْوِلاَدَةِ ﴾

په پورته روايت کښې د املاص المراة ذکر راغلې وو چه په د هغې نه مراد اسقاط وو د دې په باره کښې مصنف د مشهور امام لغت ابوعبيد قاسم بن سلام قول نقل کوی چه صرف دا نه چه اسقاط جنين ته املاص په دې وجه وايې چه چونکه هغه زنانه په دې کښې ماشوم لره د وخت نه مخکښې راوخوئيوی.

[۴۵۷۱](٥) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ عُمَرَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَحَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ عُمَرَ، قَالَ.

مغيره رضي الله عنه د عمر رضي الله عنه نه همداسې روايت بيان کړې دې، امام ابوداؤدفرمائی همدارنګې حمادبن زيدهم دحماد بن مسلمه نه اوهغه دهشام بن عروه نه اوهغه دخپل پلارنه نقل کړې دې چه عمر رضي الله عنه اوفرمائيل. امام ابوداؤدفرمائی چه ماته دابوعبيد نه رارسيدلي دي چه املاص ته املاص ځکه وائی چه املاص دازلاق په معنی باندې دي يعنی دکوم څيز داخلولو اوګوياکښې ښځه هم داماشوم د پيدائش په وخت کښې ونخلوي اوکوم شي چه دلاس وغيره په ذريعه ونخلولي شي نوهغه ته هم ملص وئيلی شي.

[۴۵۷۲](٦) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْعُودٍ الْمِصِّيصِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، أَنَّهُ سَمِعَ طَاوُسًا، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عُمَرَ: "أَنَّهُ سَأَلَ عَنْ قَضِيَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَلِكَ، فَقَامَ إِلَيْهِ حَمَلُ بْنُ مَالِكِ بْنِ النَّابِغَةِ، فَقَالَ: كُنْتُ بَيْنَ امْرَأَتَيْنِ فَضَرَبَتْ إِحْدَاهُمَا الأُخْرَى بِمِسْطَحٍ فَقَتَلَتْهَا وَجَنِينَهَا، فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنِينِهَا بِغُرَّةٍ وَأَنْ تُقْتَلَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ: الْمِسْطَحُ هُوَ الصَّوْبَجُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ أَبُو عُبَيْدٍ: الْمِسْطَحُ عُودٌ مِنْ أَعْوَادِ الْخِبَاءِ.

دطاوس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه ابن عباس ودعمر رضي الله عنه نه داسقاط حمل ددیت متعلق دنبی عليه السلام دفيصلې پوختنه وکړله چه څنګه فيصله ئې کړې وو؟نو په دې وخت کښې حمل بن مالک بن نابغه رضي الله عنه پاځيدو اوعرض ئې وکړوچه زه ددوه ښځوپه مينځ کښې موجود وم نوپېدوی دواړوکښې يوې بلې لره په لرګي ووهله اومړه ئې کړه اودهغې په خيټه کښې چه ماشوم ووهغه ئې هم مړ کړونودماشوم ددیت متعلق نبی عليه السلام ديوې وينځې يا غلام دورکولوحکم وکړو اودقاتې دقتل کولوحکم ئې وکړو، امام ابوداؤد فرمائی چه نضربن شميل وئيلی دی چه داد ډوډۍ پخولو والا لرګي وو.

[۴۵۷۳](٧) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ طَاوُسٍ، قَالَ: قَامَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، لَمْ يَذْكُرْ وَأَنْ تُقْتَلَ، زَادَ: بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ، قَالَ: فَقَالَ عُمَرُ: اللَّهُ أَكْبَرُ لَوْ لَمْ أَسْمَعْ بِهَذَا لَقَضَيْنَا بِغَيْرِ هَذَا.

٥): صحيح البخاري/ الديات ٢٥ (٦٩٠٧)، (تحفة الأشراف: ١١٥١١) (صحيح)

٦): سنن النسائي/القسامة ٣٣ (٤٧٢٠)، سنن ابن ماجه/الديات ١١ (٢٦٤١)، (تحفة الأشراف: ٣٤٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٦٤، ٤/٧٩)، سنن الدارمي/الديات ٢١ (٢٤٢٧) (صحيح)

٧): تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٤٤٤) (ضعيف الإسناد)

دطاوس نه روایت دي فرمائي چه عمر رضي الله عنه پاځیدو او په منبرباندې ئې خطبه ورکوله اوباقي حدیث ئې دتیر شوي حدیث په شان بیان کړو اودقاتلي دقتل کولوذکرئې پکښې ونکړو اودا اضافه ئې پکښې وکړه چه وینځه یاغلام به په دیت کښې ورکوي،راوی وائی چه عمر رضي الله عنه اوفرمائیل الله اکبرکه چرې دا حدیث مې نه وي اوریدلي نوددې فیصلي نه به مې علاوه فیصله کړي وه.

**قوله:**﴿قَالَ فَقَالَ عُمَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ لَوْ لَمْ أَسْمَعْ بِهٰذَا لَقَضَيْنَا بِغَيْرِ هٰذَا ﴾ سیدنا عمر رضي الله عنه دالله تعالی شکریه ادا کوی چه ډیر ښه اوشو چه ما په دې مسئله کښې مشوره کړې وه که مشوره مې نه وه کړې نوما به ددې خلاف فیصله کړې وه،معلومه نه ده چه څۀ فیصله به ئې فرمائیله، هسې فقهاء کرام دا لیکی چه په جنین کښې د دیت واجب کیدل دا د قیاس خلاف دی، د قیاس تقاضا خو دا ده چه هیڅ هم واجب کیدل نه دی پکار ځکه چه د دې جنین په خیټه کښې ژوندی کیدل یقیني خبره نه ده، کیدې شي چه هغه د مخکښې نه مړ وی.

[٤٥٧٤](٨) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ التَّمَّارُ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ طَلْحَةَ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي قِصَّةِ حَمَلِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: فَأَسْقَطَتْ غُلَامًا قَدْ نَبَتَ شَعْرُهُ مَيِّتًا وَمَاتَتِ الْمَرْأَةُ فَقَضَى عَلَى الْعَاقِلَةِ الدِّيَةَ، فَقَالَ عَمُّهَا: إِنَّهَا قَدْ أَسْقَطَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ غُلَامًا قَدْ نَبَتَ شَعْرُهُ، فَقَالَ أَبُو الْقَاتِلَةِ: إِنَّهُ كَاذِبٌ إِنَّهُ وَاللّٰهِ مَا اسْتَهَلَّ وَلَا شَرِبَ وَلَا أَكَلَ فَمِثْلُهُ يُطَلُّ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَسَجْعَ الْجَاهِلِيَّةِ وَكَهَانَتَهَا! أَدِّ فِي الصَّبِيِّ غُرَّةً، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: كَانَ اسْمُ إِحْدَاهُمَا مُلَيْكَةَ وَالْأُخْرَى أُمَّ غُطَيْفٍ.

سماک دابن عباس مه نه دحمل بن مالک دواقعې په سلسله کښې منقول دي فرمائي چه دیوي زنانه دخیټې نه ماشوم وغورځیدو او ویښته ئې راټوکیدلي وو،لیکن ماشوم مړ پیداشو او بیا ورپسې ښځه هم مړه شوه نونبی علیه السلام دقاتلي دخاندان دطرف نه دیت اداکړو ددې تره عرض اوکړواي دالله رسوله ددې ښځې دخیټې نه داسې بچې غورځیدلی دې چه په سرئې ویښته راغلي وو دقتل کونکي ښځې پلار اووئیل دې دروغژن دې په الله مې دې قسم وي هغه چغه هم ونکړه اونه ئې خوراک اوکړو اونه څکل اوکړل دداسې قسم ماشوم قتل ضایع دې نبی علیه السلام چه دا واوریدل نوونې فرمائیل تاسو دجاهلیت دوخت دخلقو په شان عبارت وایئ لکه څنګه چه به دعربو کاهنانو وئیل تاسو به دیوماشوم په عوض کښې یوه غره (وینځه یاغلام) ادا کوئ،ابن عباس اوفرمائیل په دغه دوه جځو کښې دیوي نوم ملیکه وو اودبلي نوم ام غطیف وو.

[٤٥٧٥](٩) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا مُجَالِدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا الشَّعْبِيُّ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ: "أَنَّ امْرَأَتَيْنِ مِنْ هُذَيْلٍ قَتَلَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا زَوْجٌ وَوَلَدٌ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَةَ الْمَقْتُولَةِ عَلَى عَاقِلَةِ الْقَاتِلَةِ وَبَرَّأَ زَوْجَهَا وَوَلَدَهَا، قَالَ: فَقَالَ: عَاقِلَةُ الْمَقْتُولَةِ مِيرَاثُهَا لَنَا، قَالَ: فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا، مِيرَاثُهَا لِزَوْجِهَا وَوَلَدِهَا".

دجابربن عبد الله رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائي چه دهذیل قبیلې په دوه ښځو کښې یوې ښځې بله

---

(٨): انظر حديث رقم: ٤٥٦٨، (تحفة الأشراف: ٣٤٤٤) (ضعيف)

(٩): سنن ابن ماجه/الديات ٢٥ (٢٦٤٨)، (تحفة الأشراف: ٢٣٤٧) (صحيح)

مره کړه اودا دواړه ښځې واده شوې وې اوېويو بچې يې هم وو نو نبي ﷺ دقتل شوې ښځې دیت دقاتلي په وارثانو باندې مقرر کړو اوددې ښځې دخاوند اودماشومانونه به څه تاوان وانه خستوه راوی وائی دمړې شوې ښځې وارثانو اووئيل ددې ميراث به زمونږ وي، راوی وائی چه نبی ﷺ اوفرمائيل نه، ددې ميراث به ددې خاوند اوددې ماشومان اخلي.

[٤٥٧٦](١٠) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "اقْتَتَلَتِ امْرَأَتَانِ مِنْ هُذَيْلٍ فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى بِحَجَرٍ فَقَتَلَتْهَا، فَاخْتَصَمُوا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِيَةَ جَنِينِهَا غُرَّةَ عَبْدٍ أَوْ وَلِيدَةٍ، وَقَضَى بِدِيَةِ الْمَرْأَةِ عَلَى عَاقِلَتِهَا وَوَرَّثَهَا وَلَدَهَا وَمَنْ مَعَهُمْ، فَقَالَ حَمَلُ بْنُ مَالِكِ بْنِ النَّابِغَةِ الْهُذَلِيُّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ أَغْرَمُ دِيَةَ مَنْ لَا شَرِبَ وَلَا أَكَلَ لَا نَطَقَ وَلَا اسْتَهَلَّ فَمِثْلُ ذَلِكَ يُطَلُّ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا هَذَا مِنْ إِخْوَانِ الْكُهَّانِ مِنْ أَجْلِ سَجْعِهِ الَّذِي سَجَعَ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دقبيله بنی هذيل دوه ښځو خپل مينځ کښې جنګ اوکړوبوې ښځې بله په کاڼه اوويشتله او قتل ئې کړه بيا داجګړه نبی ﷺ ته پيش کړې شوه نبی ﷺ اوفرمائيل ددې ماشوم ديت بوغلام يا يوه وينځه ده اونبی ﷺ دښځې ديت دقاتلي په خاندان باندې مقرر کړواوددې ضامن اوګرځوک چه ددې سره رو هغه ئې ددې دپاره وارثان وګرځول، نوحمل بن مالک بن نابغه عرض اوکړواې دالله رسوله زه په څه وجه باندې ددې ماشوم تاوان ورکرم کوم چه نه خوراک کړې دې اونه څښاک نه ئې اواز کړې وو اونه ئې چنه وهلې وو داسې قتل خوباطل وي نبی ﷺ اوفرمائيل دا سړې خودکاهنانو ورور ښکاري ځکه چه ده قافيه دار عبارت اووئيل (يعنی خود ساخته او تکلفی لهجه باندې خبرې کوي).

[٤٥٧٧](١١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ: ثُمَّ إِنَّ الْمَرْأَةَ الَّتِي قَضَى عَلَيْهَا بِالْغُرَّةِ تُوُفِّيَتْ، فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنَّ مِيرَاثَهَا لِبَنِيهَا وَأَنَّ الْعَقْلَ عَلَى عَصَبَتِهَا.

د ابوهريره رضی الله عنه نه ددې واقعې په باره کښې مروي دې فرمائی چه يقيناهغه ښځه په کوې باندې چه نبی ﷺ دغره (غلام يا وينځه) حکم کړې وو هغه مړه شوه بيانبی ﷺ حکم وکړو چه ددې ښځې وراثت به ددې دځامنوي اوددی ديت ددې دعصباتو په ذمه باندې دې.

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ قَالَ ثُمَّ إِنَّ الْمَرْأَةَ الَّتِي قَضَى عَلَيْهَا بِالْغُرَّةِ تُوُفِّيَتْ فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِأَنَّ مِيرَاثَهَا لِبَنِيهَا وَأَنَّ الْعَقْلَ عَلَى عَصَبَتِهَا﴾

[١٠]: صحيح البخاري/الطب ٤٦ (٥٧٥٨)، الفرائض ١١ (٥٧٥٩)، الديات ٢٥ (٦٩٠٩)، ٢٦ (٦٩١٠)، صحيح مسلم/القسامة ١١(١٦٨١)، سنن النسائي/القسامة ٣٣ (٤٨٢٢)، (تحفة الأشراف: ١٣٣٢٠، ١٥٣٠٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الديات ١٥ (١٤١٠)، سنن ابن ماجه/الديات ١١ (٢٦٣٩)، موطا امام مالك/العقول ٧ (٥)، مسند احمد (٢/٢٣٦، ٢٧٤، ٤٣٨، ٤٩٨، ٥٣٥، ٥٣٩)، دي/الديات ٢١ (٢٤٢٧) (صحيح)

[١١]: صحيح البخاري/الفرائض (٦٧٤٠)، الديات ٢٥ (٦٩٠٩)، صحيح مسلم/الحدود ١١ (١٦٨١)، سنن الترمذي/الديات ١٥ (١٤١٠)، الفرائض ١٩ (٢١١١)، سنن النسائي/القسامة ٣٣ (٤٨٢١)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٢٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/العقول ٧(٥) (صحيح)

## د حديث شرح او په هغې باندې اشكال :

يعنى د كومې زنانه خلاف چه رسول اللهﷺ د ديت فيصله فرمائيلې وه يعنى جانيه، قتل كونكې چه كله د هغې وفات اوشو نو رسول اللهﷺ فيصله اوفرمائيله چه د هغې ميراث د هغې د خامنو دپاره دې (د هغې وارثان به هم دوى وى) او دا چه ديت به د هغه زنانه په عصبه باندې واجب وى. يعنى څنګه چه قاعده او ضابطه ده د ديت چه هغه په عصبة القاتل باندې واجب كيږى، د دې حديث د ظاهر الفاظو نه هم دا معلوميږى چه وفات د هغه زنانه اوشو د كومې خلاف چه د ديت فيصله كړې شوې وه، چه د هغې خلاف دا فيصله كړې شوې وه هغه دغه زنانه ده كومه چه قاتله ده خو دا خبره خلاف ظاهر معلوميږى، ظاهره خو دا ده چه كومه زنانه مضروبة وه چه په كومې ضرب واقع شوې وو او د كومې د ماشوم چه اسقاط شوې وو د هغې وفات كيدل پكار دى د دې نه علاوه دا روايت د هغه رواياتو هم خلاف دې چه د هغې نه معلوميږى چه وفات كيدونكې زنانه هغه مضروبة وه د كومې په حق كښې چه د ديت فيصله كړې شوې وه، علامه طيبى د دې توجيه داسې كړې ده چه دالتى قضى عليها نه دې قضى لها مراد كړې شى يعنى على دې د لام په معنى باندې واخستلې شى، په دې صورت كښې به د دې مصداق د قاتلې په ځائې مقتوله شى د چا د بچى چه اسقاط شوې وو، خو په دې صورت كښې وړاندې تلو سره ﴿بان ميراثها لبنيها﴾ دا دواړه ضميرونه خو به هم دې مقتولې ته راجع وى او ﴿على عصبتها﴾ دا ضمير به د قاتلې طرف ته راجع منلې شى، ګويا په دې توجيه سره اصل اشكال خوختم شو خوتشتت د ضمائرو به لازميږى، هكذا فى حاشية الترمذى عن اللمعات.

### ملحوظه :

په ترمذى كښې دا روايت هم په دې الفاظو يعنى په كوم چه اشكال واقع كيږى د كتاب الفرائض باب ما جاء ان الميراث للورثة والعقل على العصبة كښې ذكر شوې دې، او ابواب الديات كوم چه اصل محل دې هلته په ترمذى كښې دا روايت نه دې ذكر شوې، په هغې كښې خو روايت هم دغه شان دې څنګه چه كيدل پكار دى، دا خو د شارحينو رائې وه خو زمونږ د حضرت ګنګوهى په تقرير كښې كوم چه حضرت سهارنپورى په بذل كښې نقل فرمائيلې دې چه د شارحينو خو په دې روايت كښې اشكال دې چه د قاتلې مرګ خلاف ظاهر دې د مقتولې د مرګ ذكر كيدل پكار دى، حضرت فرمائى چه د اشكال هيڅ خبره نشته والامر سهل ....د حضرت د توجيه حاصل دا دې چه دا د قاتلې د مرګ ذكر دې او مضمون د دې حديث دا دې چه كله تيره شوې واقعه پيښه شوه يعنى د جنين او ام الجنين دواړو وفات اوشو او په هغې كښې د قاتلې خلاف دا فيصله اوشوه چه د مقتولې ديت به عصبة القاتله وركوى نو د هغې نه څه موده پس د قاتلې هم وفات اوشو نو اوس مسئله مخې ته راغله د دې مړې شوې قاتلې د ميراث، اوس ظاهره ده چه د هغې مستحق د هغې خپل وارثان وو او هغوى ته ملاويدل پكار وو خو په دې موقع باندې د دې مړې كيدونكې عاقله دا اووې چه هر كله مونږ د دې طرف نه ديت ادا كړې وو نو د دې ميراث هم مونږ ته

ملاويدل پکار دی، خو د هغوی خبره چونکه د ديت او د ميراث د قاعدې خلاف وه په دې وجه رسول الله ﷺ د هغوی خبره رد فرمائيلو سره هغوی د دې مرې کيدونکې د ميراث فيصله د هغې د وارثانو دپاره او د ديت فيصله د هغوی په عاقله باندې برقرار اوساتله. فلله در الشيخ نور الله مرقده، حضرت ته په احاديث مشکله کښې د توجيه او تطبيق ډيره ملکه حاصله وه هغوی به د روايت تغليظ او د رواة تخطئه زر نه فرمائيله، په دې اشکال او جواب باندې کلام په نصب الرايه کښې علامه زيلعي هم کړې دې كما في هامش البذل.

[٤٥٧٨](٣) حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ صُهَيْبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ: "أَنَّ امْرَأَةً خَذَفَتِ امْرَأَةً فَأَسْقَطَتْ، فَرُفِعَ ذَلِكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَعَلَ فِي وَلَدِهَا خَمْسَ مِائَةِ شَاةٍ وَنَهَى يَوْمَئِذٍ عَنِ الْخَذْفِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: كَذَا الْحَدِيثُ خَمْسَ مِائَةِ شَاةٍ وَالصَّوَابُ مِائَةُ شَاةٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَكَذَا قَالَ عَبَّاسٌ، وَهُوَ وَهْمٌ.

عبدالله بن بريده دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه يوې ښځې بله ښځه په کانړې اوويشتله ددې حمل ساقط شو بيا دا مقدمه په دربار نبوي کښې پيش شوه نبی عليه السلام ددې ښځې دبچي په عوض کښې دی ته دپنځه سوه چيلو ورکولو حکم وکړو اوداننده دپاره ئې خلق په کانړو باندې دويشتلو نه منع کړل، امام ابوداؤد فرمائی همدارنګې يو روايت دپنځه سوه چيلو بل هم شته ليکن حق دادې چه سل چيلې وي.ابوداؤد وائی سيدنا عباس هم دغسې فرمائيلې دی حالانکه دا وهم دې.

په دې روايت کښې د غره مصداق يعنی د دية الجنين مقدار پنځه سوه چيلئ ګرځولی شوی دی حالانکه مخکښې تيرشو چه د غره نه مراد د عشرالدية نصف دې، يعنی د ديت شلمه حصه، اوس که هغه چيلئ دی نو سل به وی ځکه چه د ديت ټولې چيلئ دوه زره دی اود دوه زرو شلمه حصه سل دی، اوکه دراهم مراد واخستلې شی نوهغه لس زره دی اود لس زره درهمو شلمه حصه پنځه سوه دی، لهذا دلته په روايت کښې صحيح لفظ يا خو ،،مائة شاة،، دې کما قال المصنف يا خمس مئة درهم، كما في البذل.

[٤٥٧٩](٣) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنْ مُحَمَّدٍ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ أَوْ فَرَسٍ أَوْ بَغْلٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَخَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، لَمْ يَذْكُرَا أَوْ فَرَسٍ أَوْ بَغْلٍ.

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه فيصله کړې وه نبی عليه السلام دهغه ماشوم په باره کښې چه په خيټه کښې هلاک شي چه په ديت کښې به يې يو غلام باېوه وينځه يايو اس يا يوقچر ورکولې شی.

**تشريح:** په دې روايت کښې د فرس او بغل اضافه ده په کوم چه مصنف رحمه الله وراندې کلام فرمائيلې دې، امام خطابی رحمه الله فرمائی چه دا د عيسى بن يونس وهم دې او بيهقی فرمائی:

[12]): سنن النسائي/القسامة ٣٣ (٤٨١٧)، (تحفة الأشراف: ٢٠٠٦) (ضعيف) وضاحت : الحكم علي حديث النسائي: "صحيح الإسناد" (٤٨١٧)

[13]): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٤٥٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٠٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٨/٢، ٤٩٨) (شاذ)

ذكر البغل والفرس فيه غير محفوظ (بذل)

[٤٥٨٠](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ الْعَوَقِيُّ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، وَجَابِرٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، قَالَ: "الْغُرَّةُ خَمْسُ مِائَةِ دِرْهَمٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ رَبِيعَةُ: الْغُرَّةُ خَمْسُونَ دِينَارًا.

دشعبی رحمه الله نه روايت دې فرمائی چه غره پنځه سوه درهمونه وئيلې شي امام ابوداؤد وائی ربيعه وئيلی دی چه غره پنځوس ديناره وي.

## بَابٌ فِي دِيَةِ الْمُكَاتَبِ

### باب د مکاتب د ديت بيان

[٤٥٨١](٥) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ هِشَامٍ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَعْلَى بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ الصَّوَّافُ، جَمِيعًا عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دِيَةِ الْمُكَاتَبِ يُقْتَلُ يُودَى مَا أَدَّى مِنْ مُكَاتَبَتِهِ دِيَةَ الْحُرِّ وَمَا بَقِيَ دِيَةَ الْمَمْلُوكِ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام دمکاتب د ديت په باره کښې دقتل کولو فيصله کړې وه او په بدل کتابت کښې چه ده څومره حصه ورکړې ده ددومره حصې ديت به دازاد کس د ديت په شان ورکوي اوباقی ديت به دغلام د ديت په شان ورکوي.

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَضَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي دِيَةِ الْمُكَاتَبِ يُقْتَلُ يُودَى مَا أَدَّى مِنْ مُكَاتَبَتِهِ دِيَةَ الْحُرِّ وَمَا بَقِيَ دِيَةَ الْمَمْلُوكِ ﴾ يُودَى صيغه د مضارع مجهول ده، د ودی يدی دية نه، لکه وعد يعد عدة.

### د حديث شرح او په هغې تفصيلی کلام:

يعنی مکاتب که قتل کړې شی (نو اوس د هغه ديت به څه وی د هغې په باره کښې وړاندې دا دی) چه څومره بدل د کتاب هغه ادا کړی دې مثلا نيم نو نيم ديت به د حر واجب وی او نيم ديت د عبد، نو ګوئيا په نصف مکاتب کښې به د حر معامله کولې شی ځکه چه نصف بدل کتابت ئې ادا کړې دې او نصف کښې به ورسره د غلام معامله کولې شی ځکه چه نصف بدل کتابت لا باقی دې، لهذا په ذکر شوی مثال کښې به د هغه ديت پنځه اويا اوښان وی ځکه چه د غلام ديت د حر نيم وی د دې روايت تقاضا هم دا ده خو دا په ائمه اربعه کښې د چا مذهب هم نه دې هغوی خو دا فرمائی: المکاتب عبد ما بقی عليه درهم ...چه تر څو پورې مکاتب پوره بدل کتابت نه وی ادا کړې تر هغې پورې هغه غلام وی ځکه چه حريت او رقيت متجزی نه دې، خو د ابراهيم نخعی په دې حديث باندې عمل دې لکه چه په حاشيه د

---

[١٤]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٤٠٣) (ضعيف الإسناد)

[١٥]: سنن النسائي/القسامة ٣٢ (٤٨١٢، ٤٨١٣)، (تحفة الأشراف: ٦٢٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٢٢، ٢٢٦، ٢٦٠، ٢٩٢، ٣٦٣) (صحيح)

کوکب کښې د ملا علی قاری نه نقل کړې دی، هم دغه شان د دې نه پس چه کوم حدیث راروان دې : ﴿ إِذَا أَصَابَ الْمُكَاتَبُ حَدًّا أَوْ وَرِثَ مِيرَاثًا يَرِثُ عَلَى قَدْرِ مَا عَتَقَ مِنْهُ ﴾ په دې حدیث کښې د شرط طرف ته دوه مسئلې ذکر شوې دی یوه د حد او دویمه د میراث خو د جزاء په طرف کښې صرف د یوې مسئلې جواب ذکر دې یعنی د میراث د مسئلې، او د مسئله اولی جزاء مقدر ده یعنی اذا اصاب المکاتب حد حد الحر بقدر ما ادی وحد العبد بقدر ما بقی، د مسئله اولی تشریح دا ده : یو مکاتب چا چه نصف بدل ادا کړې وو او نیم ئې باقی وو، هغه چرته د یو موجب حد امر ارتکاب اوکړو مثلا زنا ئې اوکړه نو په هغه باندې به نصف حد جاری کولې شی او نصف حد د غلام یعنی پنځه اویا کوړې به ورته ورکولې شی، او د مسئله ثانیه صورت به دا وی چه یو مکاتب دې چه د هغه صرف یو رور دې پس د دې مکاتب د پلار انتقال اوشو نو که دې مکاتب هیڅ هم بدل کتاب ادا نه کړو نو په دې صورت کښې به صرف د هغه رور وارث وی او که پوره بدل کتابت ئې ادا کړو نو دواړه رونړه به برابر وارثان وی، او که دې مکاتب صرف نصف بدل کتابت ادا کړې وو نو د حدیث الباب په رنړا کښې به په ځائې دنصف میراث د نصف النصف مستحق وی،

حضرت په الکوکب الدری ۲۳۹/۱ کښې د دې حدیث هم داسې شرح کړې ده، او د دې نه پس ئې لیکلی دی چه ائمه اربعه او جمهور فقهاء دا فرمائی : المکاتب عبد ما بقی علیه درهم، وکان فیه الاختلاف فی السلف، بسطه فی التعلیق الممجد عن البنایة اهـ دا حدیث په سنن ترمذی کښې فی غیر محله دې یعنی په کتاب البیوع ۲۳۹/۱ کښې باب ما جاء فی المکاتب اذا کان عنده ما یودی، او په دې کښې دا روایت داسې دې : ﴿ إذا أصاب المكاتب حدا أو ميراثا ورث بحساب ما عتق منه وقال النبي صلى الله عليه و سلم يؤدي المكاتب بحصة ما أدى دية حر وما بقي دية عبد قال وفي الباب عن أم سلمة، حديث ابن عباس حديث حسن ﴾ او بیا د دې نه پس په دې کښې د راویانو اختلاف ذکر کړې دې چه د هغې حاصل دا دې چه بعضو دا روایت کړو د عکرمة عن ابن عباس مرفوعا او بعضو عکرمه عن علی قوله (یعنی موقوفا علیه) والعمل على هذا الحديث عند بعض أهل العلم من أصحاب النبي صلى الله عليه و سلم وغيرهم وقال أكثر أهل العلم من أصحاب النبي صلى الله عليه و سلم وغيرهم المكاتب عبد ما بقي عليه درهم وقول سفيان الثوري و الشافعي و أحمد و إسحق.

## د حديث الباب توجيه بلسان المحدث الكنكوهي :

ځان پوهه کړه چه ټول شراح قاطبة د دې حدیث په باره کښې هم دا خبره لیکی چه د جمهور علماء کرامو په دې باندې عمل نشته او حضرت ګنګوهی رحمه الله د دې حدیث یو توجیه فرمائیلې ده او په هغه صورت کښې دا حدیث د جمهور خلاف نه پاتې کیږی، حضرت د دې اول حدیث توجیه دا فرمائیلې ده چه په ما ادی من کتابته کښې ما موصوله نه ده بمعنی مقدار، بلکه دا ما په معنی د مادام یا ما مصدریه ده او د مصدر کیدو په صورت کښې به مونږ دا ظرف اومنو کقولهم اتیک خفوق النجم (ای وقت خفوقه) والمعنی یودی المکاتب حین

ادى بدل كتابته دية حر، وحين بقي عليه يودى دية العبد، حضرت چه دا فرمائيلي دى چه په دې کښې دې ما مصدريه اومنلې شی او ظرف دې اوګرزولې شی دا خبره بالکل صحيح ده ځکه چه په شرح جامی بحث فعل کښې يو ځائې کښې ليکلې شوې دی : وتقدير الزمان قبل المصادر كثير، لهذا اوس د دې حديث ترجمه دا شوه چه مكاتب ته به د مقتول ديت ورکولې شی په وخت د هغه د بدل کتابت ادا کولو د حر والا ديت او په وخت د باقی پاتې کيدو د بدل کتاب د مملوک والا ديت، او هم دا د جمهورو مسلک دې، سبحان الله، لله در الشيخ النگنگوهي والحديث اخرجه النسائی مسندا ومرسلا، قاله المنذری.

[٤٥٨٢](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "إِذَا أَصَابَ الْمُكَاتَبُ حَدًّا أَوْ وَرِثَ مِيرَاثًا يَرِثُ عَلَى قَدْرِ مَا عَتَقَ مِنْهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ وُهَيْبٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَرْسَلَهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، وَإِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَجَعَلَهُ إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ قَوْلَ عِكْرِمَةَ.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيل دي کله چه په يو مکاتب باندې ديت لازم شي اويا په ميراث کښې څه شي ويسي نودومره ميراث ورلی شي څومره چه دده نه آزاد شوې دې، امام ابوداؤد فرمائی دا روايت رهيب دايوب نه هغه دعکرمه نه هغه دعلی که نه اوهغه دنبی عليه السلام نه، او مرسل بيان کړې دې دې لره حماد بن زيد اواسماعيل دايوب نه اوهغه دعکرمه نه هغه دنبی عليه السلام نه، اودا روايت اسماعيل بن عليه دعکرمه قول ګرځولې دې.

قوله: ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رَوَاهُ وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَأَرْسَلَهُ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ وَإِسْمَاعِيلُ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَجَعَلَهُ إِسْمَاعِيلُ ابْنُ عُلَيَّةَ قَوْلَ عِكْرِمَةَ ﴾

مصنف رحمه الله د دې حديث په سند کښې د راويانو اختلاف او اضطراب بيانوی چه د هغې حاصل دا دې چه په دې کښې يو اختلاف خو دا دې چه دا حديث مسند دې يا مرسل؟ حماد بن زيد خو دې ته مرسل وئيلې دې او وهيب مسند، دويم اختلاف دا چه دا حديث د مسانيد ابن عباس نه دې يا د مسانيد علی رضی الله عنهما نه، حماد بن مسلمه خو دا د مسند ابن عباس رضی الله عنهما نه منلې دې او وهيب د مسند علی نه، او اسماعيل بن عليه دا د عکرمه قول منلې دې، د دې اختلاف رواة ذکر پورته د ترمذی کښې هم راغلې دې، خو مصنف رحمه الله دا اختلاف په تفصيل سره بيان کړې دې، او ګويا د جمهور د طرف نه د دې حديث يو جواب خو دا کيدې شی چه دا حديث مضطرب دې.

(٢): سنن الترمذي/البيوع ٣٥(١٢٥٩)، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥٩٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٩/١) (صحيح)

# بَابٌ فِي دِيَةِ الذِّمِّيِّ
## باب د ذمی د دیت بیان

[۴۵۸۳](۱۷) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "دِيَةُ الْمُعَاهِدِ نِصْفُ دِيَةِ الْحُرِّ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ اللَّيْثِيُّ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ مِثْلَهُ.

عمرو بن شعیب دخپل پلار اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دمعاهد دیت دازاد اوداصیل ددیت دنیم برابر وي، امام ابوداؤد فرمائی دا روایت اسامه بن زید اللیثي اوعبدالرحمن بن حارث دعمرو بن شعیب نه دتیر روایت په شان بیان کړې دې.

**مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة مع الدلیل :**

د دې باب حواله ددې نه مخکښې مونږ سره تیره شوې ده، د باب فی الدیة کم هی، په شروع کښې چه د هغې الفاظ دا دی : ﴿ ودیة اهل الکتاب یومئذ النصف من دیة المسلمین الحدیث ﴾ د ذمی په دیت کښې اختلاف دې د امام مالک او امام احمد په نزد د هغه دیت نصف دیة المسلم او د امام شافعی په نزد د ثلث دیة المسلم برابر دې.او د احنافو په نزد د ذمی دیت د دیت د مسلمان برابر دې، خو د امام احمد رحمه الله په نزد دا هغه وخت دې چه کله قتل خطاء وی او که د دې ذمی قتل قتل عمد دې یعنی یو مسلمان هغه عمدا قتل کړې دې نو قصاص خو البتة نشته دې د هغوی په نزد خو دا به دیة المضاعف وی یعنی پوره دولس زره درهمه، کذا قال الخطابی، او د احنافو د مسلک په باره کښې امام خطابی رحمه الله فرمائی : وقال أبو حنيفة وأصحابه وسفيان الثوري ديته دية المسلم ؛ وهو قول الشعبي والنخعي ومجاهد،وروي ذلك عن عمر وابن مسعود رضي الله عنهما قلت والدلیل للحنفیة ما قال فی الهدایة : ولنا قوله علیه الصلاة والسلام دية كل ذي عهد في عهده ألف دينار، وقال الزیلعی اخرجه ابوداؤد فی المراسیل عن سعید بن المسیب قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم دیة کل ذی عهد فی عهده الف دینار انتهی، واخرج الترمذی بسنده عن ابن عباس رضی الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم ودی العامریین بدیة المسلمین، وکان لهما عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم الی آخر ما فی البذل ...دا روایت د ترمذی امام ترمذی په یو مستقل باب کښې بغیر د ترجمې نه ذکر کړې دې، او د کومو عامریین د دیت چه په دې کښې ذکر دې دې باره کښې په تحفة الاحوذی کښې لیکلې دی چه دې دواړو اشخاصو لره عمرو بن امیه الضمری قتل کړې وو هغوی دهغه ذمی کیدل معلوم نه وو ، او رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته هم هغه دیت ورکړو کوم چه د مسلمانانو وی، او بله دا چه د ظاهر د قرآن نه هم د احنافو تائید کیږی، ﴿ قال تعالی وان کان من قوم بینکم وبینهم میثاق فدیة مسلمة الی اهله ﴾ په دې آیت کریمه کښې د ذمی دپاره مطلق دیت فرمائیلې شوې دې او دیت مطلقه ظاهر دې چه هغه هم هغه دې کوم چه دیت د مسلم دې. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۱۷]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۸۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الديات ۱۷ (۱۴۱۳)، سنن النسائي/القسامة ۳۱ (۴۸۱۰)، سنن ابن ماجه/الديات ۱۳ (۲۶۴۴)، مسند احمد (۲/۱۸۳، ۲۱۷، ۲۲۴) (حسن)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُقَاتِلُ الرَّجُلَ فَيَدْفَعُهُ عَنْ نَفْسِهِ

### باب: ځوک چه د بل کس سره جنګ کوی او د خپل ځان نه دفاع کوی دهغه بیان

[٤٥٨٤]([١٨]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "قَاتَلَ أَجِيرٌ لِي رَجُلًا فَعَضَّ يَدَهُ فَانْتَزَعَهَا فَنَدَرَتْ ثَنِيَّتُهُ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَهْدَرَهَا، وَقَالَ: أَتُرِيدُ أَنْ يَضَعَ يَدَهُ فِي فِيكَ تَقْضَمُهَا كَالْفَحْلِ؟ قَالَ: وَأَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَهْدَرَهَا، وَقَالَ: بَعِدَتْ سِنُّهُ".

صفوان بن يعلى دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه زمایومزدور دچاسره جنګ وکړو اودهغه په لاس ئي چک ولګولو نوهغه ورنه خپل لاس راښکلونودده مخامخ غاښ وختونونبی علیه السلام ته ورغي اوبيان ئي ورته وکړو نبی علیه السلام دده دعوي باطله وګرځوله او ورته ئي اوونيل آيا ته غواړي چه دي خپل لاس ستاپه خوله کښي درکړي اوته ئي داوښ په شان اوچوبي، راوی وائي: ماته ابن مليکه دخپل نيکه نه بيان کړيدي چه ابوبکره هم دغاښ ديث نه وو ورکړې او وئيلي ئې وو چه الله دي وکړي چه دده غاښ اوځي.

### مضمون الحديث :

يعلی بن اميه فرمائی چه زما د يو اجير يعنی خادم جهګړه اوشوه د يو سړی سره نو زما اجير د هغه ګوته په غاښونو کښې ګيره کړه دې سړی خپله ګوته په زور راښکله، د اجير مخامخ يو غاښ مات شو (په کوم ئې چه ګوته ګيره کړې وه) هغه اجير د رسول الله ﷺ خدمت ته لاړو يعنی د ضمان او د قصاص د مطالبې دپاره خو رسول الله ﷺ د هغه په غاښ باندې هيڅ هم واجب او نه فرمائيل او دې اجير ته ئې اوفرمائيل چه آيا ته غواړې چه هغه خپله ګوته ستا په خوله کښې ورکړې وی او په هغې چکونه لګوې د اوښ په شان، يعنی څنګه چه څناور ګيا ميده کوی، او د دې نه روستو روايت کښې دا زيادت دې چه که ته غواړې نو د دې قصاص داسې کيدې شی چه خپله ګوته د هغه په خوله کښې کيده او هغه ته د چيچلو موقع ورکړه او بيا ته خپله ګوته هم دغه شان راکاږه (چه د هغه غاښ هم هغه شان مات شی) په دې اوريدلو باندې مزدور خاموش شو يعنی داسې کولو دپاره هغه تيار نه شو او د هغه ټوله غصه ختم شوه، ځکه چه دا ظاهره ده چه دا څه ضروری خو نه ده چه د هغه د ګوتې په راښکلو سره دې د هغه غاښ مات شی او د ګوتې زخمی کيدل هم يقينې دی.

دا چه د عض يد واقعه په دې روايت کښې ذکرده په دې کښې روايات حديثيه مختلف دی د عاض او د معضوض د تعين په اعتبار سره، د مسلم د يو روايت نه معلوميږی چه دا واقعه ديعلی د اجير سره نه ده پيښه شوې بلکه خپله د يعلی سره پيښه شوې ده، د اختلاف روايات تفصيل په بذل کښې ذکر دې په دې کښې د امام نووی رحمه الله نه دا هم نقل دی، يحتمل انهما قضيتان جرتا ليعلى واجيره فى وقت او وقتين اهـ.

[١٨]: صحيح البخاري/جزاء الصيد ١٩ (١٨٤٧)، الإجارة ٥ (٢٢٦٥)، الجهاد ١٢٠ (٢٩٧٣)، المغازي ٧٨ (٤٤١٧)، الديات ١٨ (٦٨٩٣)، صحيح مسلم/الحدود ٤ (١٦٧٣)، سنن النسائي/القسامة ١٥ (٤٧٧٤، ٤٧٧٥، ٤٧٧٦)، سنن ابن ماجه/الديات ٢٠ (٢٦٥٦)، (تحفة الأشراف: ١١٨٣٧، ٦٦٢٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٢/٤، ٢٢٣، ٢٢٤) (صحيح)

**په مسئلة الباب کښې مسلک جمهور:**

د دې حديث نه معلومه شوه چه په داسې واقعه کښې ضمان او قصاص نشته ځکه چه دلته مقصود مدافعت عن نفسه دې نه اضرار الغير، په حاشيه د بذل کښې دی: وبذلک قالت ثلاثة وقال مالک فيه الدية كذا في المغني ۱۰/۳۵۳، وفصل فيه الدردير ۴/۳۵۶ بانه اراد قطع اسنانه ففيه الدية، وان اراد تخليص يده فلا اه صحيح بخاری ۱۰۱۸ په روايت کښې د عاض يا د معضوض هيڅ تعين نشته د هغې الفاظ دا دی: ﴿عن عمران بن حصين رضي الله عنه ان رجلا عض يد رجل فنزع يده من فيه فوقعت ثنيتاه الخ﴾ او په بل روايت کښې دی ﴿خَرَجْتُ فِي غَزْوَةٍ فَعَضَّ رَجُلٌ فَانْتَزَعَ ثَنِيَّتَهُ فَأَبْطَلَهَا النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم﴾ والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، وليس فيه قضية ابی بكر رضی الله تعالى عنه، قاله المنذری.

[۴۵۸۵](۳) حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، وَعَبْدُ الْمَلِكِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ بِهَذَا، زَادَ: ثُمَّ قَالَ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَاضِّ: إِنْ شِئْتَ أَنْ تُمَكِّنَهُ مِنْ يَدِكَ فَيَعَضَّهَا ثُمَّ تَنْزِعُهَا مِنْ فِيهِ وَأَبْطَلَ دِيَةَ أَسْنَانِهِ.

صفوان بن يعلی دخپل پلار نه دتيرشري روايت په شان روايت کوی مګر ددې اضافي سره فرمائي چه: بيانبی ﷺ چک لګونکي ته اووئيل که ستاخوښه وي نوداکيدی شي چه ته هم دده په خوله کښې خپل لاس ورکړې اوهغه به وربانديې چک ولګوي بيانه خپل لاس راکاږه، اونبی ﷺ دهغه دپاره دغاښونو ددیت ورکولو حکم ونکړو.

## بَاب فِيمَنْ تَطَبَّبَ وَلَا يُعْلَمُ مِنْهُ طِبٌّ فَأَعْنَتَ

**باب: څوک چه ډاکټر نه وی او چاته په علاج سره نقصان اورسوی دهغه بيان**

[۴۵۸۶](۴) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ الْأَنْطَاكِيُّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، أَنَّ الْوَلِيدَ بْنَ مُسْلِمٍ أَخْبَرَهُمْ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ تَطَبَّبَ وَلَا يُعْلَمُ مِنْهُ طِبٌّ فَهُوَ ضَامِنٌ"، قَالَ نَصْرٌ: قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا لَمْ يَرْوِهِ إِلَّا الْوَلِيدُ، لَا نَدْرِي هُوَ صَحِيحٌ أَمْ لَا؟

عمرو بن شعيب دخپل پلار اوهغه دده دنيکه نه روايت کوی چه نبی ﷺ فرمائيلی دی چاچه دطب پيشه اختيارکړه اودې طبيب نه وي نودنقصان په صورت کښې به دې ذمه وار وي، نصروئيلي دي ماته ابن جريج هم داحديث بيان کړې وو، امام ابوداؤد وائی دا روايت دوليد نه علاوه بل چاندې بيان کړې او مونږ نه پوهيږو چه دا صحيح دې اوکه نه دې.

﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « مَنْ تَطَبَّبَ وَلاَ يُعْلَمُ مِنْهُ طِبٌّ فَهُوَ ضَامِنٌ »﴾

يعنی کوم سړې چه د چا علاج کوی او په حقيقت کښې هغه طبيب نه وی (نو که د داسې

[19]: تفرد به أبو داود، انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۱۱۸۴۶) (صحيح الإسناد)

[20]: سنن النسائي/القسامة ۳۴ (۴۸۳۴)، سنن ابن ماجه/الطب ۱۶ (۳۴۶۶)، (تحفة الأشراف: ۸۷۴۶) (حسن)

انسان نه چاته ضرر اورسي) نو طبيب به ضامن وي، اودهغي نه روستو روايت کښې دی.

[٤٥٨٧](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، حَدَّثَنِي بَعْضُ الْوَفْدِ الَّذِينَ قَدِمُوا عَلَى أَبِي، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا طَبِيبٍ تَطَبَّبَ عَلَى قَوْمٍ لَا يُعْرَفُ لَهُ تَطَبُّبٌ قَبْلَ ذَلِكَ فَأَعْنَتَ فَهُوَ ضَامِنٌ"، قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ: أَمَا إِنَّهُ لَيْسَ بِالنَّعْتِ، إِنَّمَا هُوَ قَطْعُ الْعُرُوقِ وَالْبَطُّ وَالْكَيُّ.

د عمربن عبدالعزيزنه روايت دي فرمائي چه زما والد ته يووفد راغلي ووهغوی ووئيل چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي: هريوکس چه دځان نه چاته طبيب جوړ کړي اوطب دده پيشه نه وي (مستندنه وي) اوبياده دعلاج په ذريعه چاته نقصان ورسيږی نوهم دې ذمه واردې عمربن عبدالعزيزوئيلي دی چه داحکم صرف دطبابت متعلق نه دې بلکه که چرې په ښکرلګولوکښې که چرې څوک دچاړګ پريکړي ياني په بده طريقه زخمي کړي نوهغه هم ذمه واردې.

## شرح الحديث:

د عمر بن عبدالعزيز ځوی چه د هغه نوم عبدالعزيز دې هغوی وائی چه ماته بيان کړو بعض هغه ميلمنو کوم چه زما پلار ته راغلی وو هغوی دا حديث بيان کړو چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل د دې مضمون هم هغه دې کوم چه پورته تير شو، د هغې نه روستو دی ﴿قَالَ عَبْدُ الْعَزِيزِ أَمَا إِنَّهُ لَيْسَ بِالنَّعْتِ إِنَّمَا هُوَ قَطْعُ الْعُرُوقِ وَالْبَطُّ وَالْكَيُّ﴾ عبدالعزيز دا وائی چه په دې حديث کښې چه د کوم علاج ذکر دې، د هغې نه مراد صرف دوائی تجويز کول نه دی، که زبانی ئې وئيلي وی يا ئې ليکلو سره ورکړې وی چه فلانئ دوائی واخله او اوئې خوره، بلکه دلته مقصود عملا چه کوم علاج معالجه کولې شی د هغې حکم بيانول دی مثلا څوک علاجا د چا د رګ خوله پرانيزی لکه چه په فصد کښې وی، يا د بدن په يو حصه کښې سورې اوکړی يا علاج بالکئ اوکړی، په اوسپنې وغيره ګرمولو سره داغ ورکول.

### په مسئلة الباب کښې د فقهاء کرامو رائې:

د حديث نه معلومه شوه چه کوم سړې د طب د فن نه نۀ وی خبر او بيا علاج کوی نو په داسې صورت کښې که د هغه په علاج باندې څوک هلاک شی نو هغه به ضامن وی خو قصاص په هغې کښې نشته ځکه چه هغه طبيب په دې خپل عمل کښې منفرد نه دې بلکه د مريض اجازت په دې کښې شامل دې، د هغه په طلب باندې هغه علاج کړې دې، کذا فی البذل عن الخطابی، په حاشيه د بذل کښې دی د ابن قدامة ۱۲۰/۷ نه نقل کولو سره چه حجام (ښکر لګونکې) او ختان (سنت کونکې ماشوم لره) او د هغې نه علاوه په نورو علاج کونکو باندې ضمان نشته په دوه شرطونو سره يو دا چه هغه په خپل فن کښې مهارت لری او دويم دا چه د هغه په لاسونو باندې څه جنايت نه وی شوې، يعنی د حد نه تجاوز او څه فحش غلطی ئې نه وی کړې، او دې دوه شرطونو سره ضمان نشته ګڼې شته، وهذا مذهب الشافعي واصحاب الرائي ولا نعلم فيه خلافا، د دې مسئلې مثال دمفتی په غلطه فتوی باندې

---

(٣١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٣١) (حسن)

دعمل کولود وجې نه د يو څيز هلاکيدل دی، دا مسئله په "درمنضود" کښې په ابواب التيمم، باب فی المجروح يتيمم کښې تيره شوې ده، فارجع اليه لو شئت.

الحديث اخرجه النسائی مسندا ومنقطعا، واخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابُ الْقِصَاصِ مِنَ السِّنِّ

### باب د غاښ د قصاص بيان

[٤٥٩٥] (٣٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ أُخْتُ أَنَسِ بْنِ النَّضْرِ ثَنِيَّةَ امْرَأَةٍ، فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَضَى بِكِتَابِ اللَّهِ الْقِصَاصَ، فَقَالَ أَنَسُ بْنُ النَّضْرِ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا الْيَوْمَ، قَالَ: يَا أَنَسُ كِتَابُ اللَّهِ الْقِصَاصُ، فَرَضُوا بِأَرْشٍ أَخَذُوهُ، فَعَجِبَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لَأَبَرَّهُ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ، قِيلَ لَهُ: كَيْفَ يُقْتَصُّ مِنَ السِّنِّ؟ قَالَ: تُبْرَدُ.

دانس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دانس بن نضر خور ربيع ديوې ښځې غاښ مات کړو ددې وارثان نبی عليه السلام ته راغلل نبی عليه السلام دالله دکتاب په شان د قصاص حکم اوکړو انس بن نضر اووئيل په هغه ذات مې دې قسم وي چاچه ته دحق ښکاره کولو دپاره پيغمبر راليږلې يې ددې ښځې غاښ به نن نه ماتيږي نبی عليه السلام اوفرمائيل اې انس دالله په کتاب کښې د قصاص حکم دې بياچه د کومې ښځې غاښ مات شوې وو دهغې وارثان ديت اخستلوته تيارشول نونبی عليه السلام تعجب اوکړو اووئې فرمائيل دالله بعضې بندګان داسې هم شته که چرې هغوی په الله باندې دتوکل په ذريعه په څه خبره باندې قسم وکړي نوالله تعالى دهغوی قسم رښتيا کوي، ابوداؤد فرمائی داحمد بن حنبل نه مې آوريدلی دی کله چه هغه ته اووئيلې شول چه دغاښ قصاص به څنګه اخستلی شي نوهغه اووئيل: په رنبی باندې دې اوسولولې شي.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ أُخْتُ أَنَسِ بْنِ النَّضْرِ ثَنِيَّةَ امْرَأَةٍ فَأَتَوُا النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَضَى بِكِتَابِ اللَّهِ الْقِصَاصَ الخ ﴾

د دې حديث حواله د دې نه مخکښې په باب ولی العمد ياخذ الدية کښې تيره شوې ده، مضمون حديث دا دې: سيدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه دانس بن النضر خور ربيع د يوې ښځې مخامخ غاښونه مات کړل، دا انس بن النضر تره دې د انس بن مالک رضی الله عنه ځکه چه د انس رضی الله عنه نسب دا دې انس بن مالک بن النضر، لهذا ربيع کومه چه دانس بن النضر خور ده د انس رضی الله عنه ترور شوه، خو بهرحال د کومې زنانه غاښ چه هغې مات کړې وو د هغې اولياء د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې راغلل نو رسول الله صلی الله عليه وسلم د کتاب الله موافق د قصاص فيصله اوفرمائيله يعنی ﴿ السن بالسن ﴾، مطلب دا شو چه د ربيع به هم غاښ ماتولې شی، په دې باندې د ربيع رور انس بن النضر اووې قسم په هغه ذات چا چه تاسو برحق نبی مبعوث کړی يې زما د خور غاښ به نن نه ماتيږي. مطلب دا وو چه انشاء الله هغې ته به حاجت نه راځی،

(٣٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٧٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلح ٨ (٢٧٠٣)، تفسير سورة البقرة ٢٣ (٤٤٩٩)، المائدة ٦ (٤٦١١)، الديات ١٩ (٦٨٩٤)، صحيح مسلم/القسامة ٥ (١٦٧٥)، سنن النسائي/القسامة ١٢ (٤٧٥٩)، سنن ابن ماجه/الديات ١٦ (٢٦٤٩)، مسند احمد (١٢٨/٣، ١٦٧، ٢٨٤) (صحيح)

رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې انس د قران فيصله خو قصاص ده (۲۳) هغوی په دې باندې خاموش شو خو بيا په آخر کښې د هغه زنانه اولياء په ارش اخستلو باندې راضي شو، ګويا قصاص ئې معاف کړو او کومه خبره چه انس بن النضر رضي الله عنه اعتمادا على الله تعالى کړې وه هغه الله پاک پوره کړه، راوی وائي چه رسول الله ﷺ په تعجب کښې شو (ځکه چه په شروع کښې د هغه زنانه اولياء په قصاص باندې ډير مصر وو) او وې فرمائيل ﴿إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللَّهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللَّهِ لَأَبَرَّهُ﴾ چه واقعي د الله پاک بعض بندګان داسې وی چه که هغوی په الله پاک باندې قسم اوخوری نو الله پاک هغوی په قسم کښې نه حانث کوی بلکه نيکان ئې پريږدی. او د دې حديث مثال د سعد بن عباده کلام ﴿قال سعد بلى والذى اكرمك بالحق﴾ د دې نه مخکښې په باب فيمن وجد مع اهله رجلا يقتله کښې تير شوې دې.

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ سَمِعْتُ أَحْمَدَ بْنَ حَنْبَلٍ قِيلَ لَهُ كَيْفَ يُقْتَصُّ مِنَ السِّنِّ قَالَ تُبْرَدُ﴾

مصنف رحمه الله فرمائي چه ما د خپل أستاد محترم امام احمد بن حنبل رحمه الله نه اوريدلې دی چه کله د هغوی نه تپوس اوکړې شو چه د قصاص من السن صورت څه دې؟ نو هغوی اوفرمائيل چه هغه دې په مبرد يعنی سوان (ريتی) سره راښکلې شی، او سوان سره د راښکلو طريقه به هغه وخت اختيارولې شی چه کله جنايت ماتول د غاښ وی يعنی يو سړې د بل د غاښونو څه حصه ماته کړی نو اوس په دې کښې د قصاص صورت دا دې چه د سوان په ذريعه د هغه هم دومره غاښ مات کړې شی، خو که غاښ ئې ويستلې شوې وی يعنی پوره غاښ ئې تړې نه ويستلې وی نو بيا به هلته د دې ضرورت نه وی كما هو الظاهر ...كذا فى البذل عما نقله مولانا محمد يحيى من تقرير شيخه رحمة الله عليهما.

والحديث اخرجه البخاري والنسائي وابن ماجه.

## بَابٌ فِي الدَّابَّةِ تَنْفَحُ بِرِجْلِهَا

### باب د څا څاروي چه څوک په لته اووهی نو د څاروی مالک د علاج ذمه وار نه دې

[۴۵۹۲](۲۴) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الرِّجْلُ جُبَارٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: الدَّابَّةُ تَضْرِبُ بِرِجْلِهَا وَهُوَ رَاكِبٌ.

د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه رسول کريم ﷺ فرمائيلی دی دڅاروي خپه ايښودل جبار، دې يعنی عبس ده، (دڅاروي دخپې ايښودلو يادلتې وهلو په وجه باندې په مالک ديت نه لازميږي).

۲۳) ځان پوهه کړه چه د ضمان في السن په مسئله کښې فقهاء کرامو د صغير او کبير فرق کړې دې هغه دا چه د ماشوم غاښ که دوباره راوخيژی لکه چه ښکاره ده دوباره راوتل د يو کال نه پس نو هلته به ارش نه واجب کيږی په خلاف د کبير چه په هغې کښې اول خو تاجيل سنه او عدم تاجيل کښې اختلاف دې بله دا چه که روستو راوتلې دې نو هغه وخت به د امام صاحب په نزد ضمان ساقط او د صاحبين په نزد به ارش واجب وی شامي ۲۷۵/۵)

۲۴): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۲۰) (ضعيف)

قوله: ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « الرِّجْلُ جُبَارٌ » ﴾

آو د دې نه روستو حديث د دې نه زيات مفصل دې چه په هغې كښې دى ﴿الْعَجْمَاءُ جَرْحُهَا جُبَارٌ وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَالْبِئْرُ جُبَارٌ وَفِى الرِّكَازِ الْخُمُسُ ﴾ (۲۵)

د اول حديث او د دويم حديث جزء اول دا دواړه هم معنى دى د دواړو تعلق د ځاروو د نقصان رسؤلو سره دې يعنى چه د چا ځاروې چا ته لته وركړى يا د چا ځاروې كوم چه پرانستلې ګرځي هغه د چا د پټى نقصان اوكړى مثلا دهغې باره كښې نبى كريم ﷺ فرمائى چه ددې جنايت هيڅ ضمان نشته ځكه چه دا د ځناور دطرفه دې او دا غيرمكلف دې دهغې په باره كښې مصنف رحمه الله دلته دا فرمائى: ﴿ العجماء المنفلتة التى لا يكون معها احد، وتكون بالنهار ﴾ په دې مسئله باندې كلام مونږ سره په كتاب الاجارة كښې بالكل اخره كښې په باب المواشى تفسد زرع قوم .... كښې تير شوې دى، فلا حاجة الى الاعادة د دې نه روستو په حديث كښې دى ﴿ الْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَالْبِئْرُ جُبَارٌ ﴾ د دې مطلب هم ښكاره دې چه كه يو سړې د يو مزدرو نه په كان كښې كار اخلى د هغې د كنستلو وغيره او په هغې كښې دننه كار كولو والا او يا بل څوك ورغورځيدلو يا ګيريدو سره مړ شى نو داهم هدر دې ، او دې نه روستو په حديث كښې ﴿ وفى الركاز الخمس ﴾ په دې مسئله باندې د مصنف مستقل ترجمه باب ما جاء فى الركاز وما فيه د احياء الموات نه پس د كتاب الجنائز نه مخكښې تير شوې دى، او بله دا چه مخكښې هم باب اقطاع الارضين كښې دمعادن قبيله والا حديث شرح كښې په تفصيل سره تير شوې دې.

[۴۵۹۳](۲۶) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، سَمِعَا أَبَا هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْعَجْمَاءُ جُرْحُهَا جُبَارٌ، وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ، وَالْبِئْرُ جُبَارٌ، وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْعَجْمَاءُ الْمُنْفَلِتَةُ الَّتِي لَا يَكُونُ مَعَهَا أَحَدٌ، وَتَكُونُ بِالنَّهَارِ لَا تَكُونُ بِاللَّيْلِ.

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول كريمه فرمائيلى دى كه چرې دچا ځاروې څوک زخمي كړي نوددې تاوان باطل دې اوكان اوكرهې هم باطل دې اوپه ركاز كښې پنځمه حصه اداكول ضرورى دى، امام ابوداؤدفرمائى ددې نه هغه ځاروې مراد دې كوم چه آزاد پريښودې شوې وي يعنى تړلى نه وي اوددې سره دده دپاره دنګهباني كولو دپاره څوک نه وي او وخت هم دورځي وي اوشپه نه وي الحديث الاول اخرجه النسائى، والثانى اخرجه البخارى ومسلم والترمذى والنسائى وابن ماجه، قاله المنذرى.

(۲۵) په حاشيه د بذل كښې دى چه د شامى په حاشيه كښې ليكلې شوې دى چه امام ابويوسف رحمه الله په كتاب الخراج كښې دا ليكلې دى: حدثني عبدالله بن سعيد بن ابي سعيد المقبري عن جده قال كان اهل الجاهلية اذا عطب الرجل في القليب جعلوا القليب عقله، واذا قتلته دابة جعلوها عقله واذا قتله معدن جعلوه عقله، فسئل رسول الله ﷺ فقال العجماء جبار الحديث، يعني د جاهليت په زمانه كښې دا دستور وو چه كه يو سړې به يو كوهى كښې پريوتلو سره هلاک شو نو هم هغه كوهې به د هغه ديت كولې شو او هم دغه شان كه ځاروى به قتل كړو نو هم هغه دابة به د هغه ديت وو او هم دغه شان به معدن د هغه ديت وو، د رسول الله ﷺ نه چه كله د دې په باره كښې تپوس اوكړې شو نو هغوى دا حديث ارشاد اوفرمائيلو)

(۲۶): انظر حديث رقم: (۳۰۸۵)، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۲۸، ۱۵۱۴۷) (صحيح)

# بَابٌ فِي النَّارِ تَعَدَّى

**باب: چه اور د بل چا کور ته اورسی دهغې بیان**

[٤٥٩٤] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. ح وحَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ التِّنِّيسِيُّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ الصَّنْعَانِيُّ، كِلَاهُمَا عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "النَّارُ جُبَارٌ".

دابوهریره ﷺ نه روایت دی فرمائی چه رسول کریم فرمائیلی دی اورباطل دی.(یعنی چه څوک اوربلوي اوهوائي دچا کورته یوسي اویائي دچاسامان ته یوسي اوهغه اوسوزوي نو بلونکي دتاوان ذمه وارندې.

یعنی چه کوم اور متعدی شی او خور شی، دا لفظ په اصل کښې ﴿ تتعدى ﴾ وو احدى التائين حذف کولې شی د اختصار دپاره.

قوله: ﴿ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « النَّارُ جُبَارٌ » ﴾

همام بن منبه ﷫ د ابوهریره ﷜ شاګرد دې د هغوی نه په کثرت سره روایتونه کوی، او د هغوی یو صحیفه هم ده هم په دې نوم سره یعنی صحیفه همام بن منبه چه د هغې تعارف مونږ سره په کتاب الخراج باب فی ایقاف ارض السواد کښې تیر شوې دې.

د دې حدیث ترجمه خو هم دا ده چه اور معاف دې خو مطلب څه دې د دې؟ چه څوک د چا په کور کښې اور اولګوی دا خو نه شی معاف کیدلې، په دې وجه د ډیرو محدثینو رائې خو په دې کښې دا ده چه په دې کښې د یو راوی نه غلطي شوې دې او صحیح ﴿ البئر جبار ﴾ دې کوم چه مشهور حدیث دې، خو که حدیث صحیح اومنلې شی نو د دې توجیه او صحیح مطلب به دا وی چه یو سړې په خپله زمکه کښې مثلا پټی کښې په یو ښکاره ځائې باندې د خپل ضرورت دپاره اور بل کړی یا بغیر د ضرورت نه، او بیا هوا شروع شی چه د هغې په وجه د هغې شعلې اوچتیدلو سره د بل د مال نقصان اوکړی نو د هغې په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه د دې نقصان هغه اور بلونکې ذمه دار نه دې، خو په دې کښې دا شرط دې چه د دې اور بلونکی د طرف نه تعدی او بې احتیاطی او نه مونډلې شی، هغه دا چه هغه په داسې وخت کښې دا کار کړې وی چه کله هوا ساکن وی، د اور د خوریدو څه خطره نه وی، او که تعدی اومونډلې شی نو بیا به ضمان وی. کذافی البذل،

والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

# بَابٌ فِي جِنَايَةِ الْعَبْدِ يَكُونُ لِلْفُقَرَاءِ

**باب: د یو فقیر ماشوم د بل ماشوم جنایت اوکړی نو ددې حکم**

[٤٥٩٠] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ: "أَنَّ غُلَامًا لِأُنَاسٍ فُقَرَاءَ قَطَعَ أُذُنَ غُلَامٍ لِأُنَاسٍ أَغْنِيَاءَ، فَأَتَى أَهْلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: يَا

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٧٩٦، ١٤٦٩٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الديات ٢٧ (٢٦٧٦) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/القسامة ١٥، ١٦ (٤٧٥٥)، سنن الدارمي/الديات ٣ (٢٣٩٩)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٦٣) (صحيح)

رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا أُنَاسٌ فُقَرَاءُ، فَلَمْ يَجْعَلْ عَلَيْهِ شَيْئًا".

دعمران بن حصینه نه روایت دې فرمائي چه په فقیرانو کښې دچاېچې دیومالدار کس دبچي غوږ پریکړو اوددې غریب کس ټول خپلوان دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضر شول او عرض ئې وکړو چه اې دالله رسوله مونږ خو نیستمن اوفقیران یو نبی ﷺ چه دا واوریدل نر په دوی باندې ئې هیڅ جرمانه مقرر نکړه.

**قوله:** ﴿ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ غُلاَمًا لأُنَاسٍ فُقَرَاءَ قَطَعَ أُذُنَ غُلاَمٍ لأُنَاسٍ أَغْنِيَاءَ فَأَتَى أَهْلُهُ النَّبِيَّ – صلى الله عليه وسلم– فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا نَاسٌ فُقَرَاءُ. فَلَمْ يَجْعَلْ عَلَيْهِ شَيْئًا ﴾

### د مسئلۃ مترجم بها او حدیث هر دوارو تشریح:

په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر شوې ده هغه خو دا ده چه که د چا غلام په چا باندې جنایت اوکړی چه د هغې په وجه باندې ضمان واجب کیږی خو د دې غلام مولی نادار او فقیر دې نو په دې صورت کښې به څه وی؟ د دې جواب خو دا دې چه د عبد د جنایت په صورت کښې د هغه د مولی د غنی یا فقیر کیدو سره هیڅ فرق نه راځی هغه که هرڅه وی، ځکه چه د جنایت عبد ضمان په رقبة العبد او د هغه په ذات باندې وی، غلام به خرڅولې شی او بیا به د هغه د قیمت په ذریعه ضمان ادا کولې شی. خو په حدیث کښې چه کومه مسئله ذکر ده هغه دا ده چه یو غلام یعنی نابالغ حر چه د هغه د کور خلق فقیران یا نادار وو، هغه د یو داسې هلک [1] غوږ پرې کړو کوم چه د مالدارو نه وو نو د هغه غلام جانی د کور خلق د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلل او عرض ئې اوکړو یا رسول الله ﷺ مونږ غریبانان یو، مطلب دا چه د ضمان د ادا کولو استطاعت نه لرو نو رسول الله ﷺ په هغوی باندې هیڅ قسم ضمان واجب نه کړو، د امام خطابی رحمه الله رائې هم دا ده هغوی فرمائی: لو كان عبداً لم يكن لاعتذار أهله بالفقر معنى لأن العاقلة لا تحمل عبداً كما لا تحمل عمداً ولا اعترافاً وذلك في قول أكثر أهل العلم فأما الغلام المملوك إذا جنى على عبد أو حرٍّ فجنايته في رقبته في قول عامة الفقهاء واختلفوا في كيفية أخذ أرش الجناية من رقبته الخ ﴾ او هم دا رائې په دې کښې په بذل المجهود کښې د حضرت گنگوهی د تقریر نه نقل کړې ده او بیا حضرت دا معنی لیکلو سره په مصنف رحمه الله باندې اشکال کړې دې ځکه چه مصنف رحمه الله په دې باندې د عبد ترجمه قائم کړې ده، حضرت فرمائی چه مصنف که غلام کوم چه په حدیث کښې دې دعبد په معنی اخستلې دې پس ښکاره ده چه دا صحیح نه ده او که داسې نه وی بلکه غلام ئې په نابالغ حر باندې محمول کړې وی او بیا ئې عبد په نابالغ حر باندې قیاس کولو سره د هغه حکم په دې کښې جاری کړې وی په دې لحاظ سره چه دواړه یعنی عبد او نابالغ حر دا دواړه محجور عن التصرفات وی نو دا قیاس هم صحیح نه دې ځکه چه عبد بهر حال مکلف دې او غلام حر د نابالغ کیدو د وجې نه غیر مکلف دې فلا يصح قياسه عليه اهـ .او حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې په دې حدیث سره اشاره اوکړه یو اختلافی مسئلې طرف ته هغه دا

[1] د دې نه مراد هم نابالغ حر دې.

چه جناية جرح (جناية فيما دون النفس) کښې که جارح او مجروح دواړه عبيد وی نو په هغې کښې قصاص شته يا نه؟ مسئله اختلافی ده، حضرت شيخ فرمائی چه ابن رشد په دې کښې دعلماء کرامو درې اقوال ليکلې دی يو دا چه د هغوی ترمينځه قصاص مطلقا شته فی النفس وفيما دون النفس دواړه، وهو قول الشافعي ومالک، قول ثانی داچه په دې کښې مطلقا قصاص نشته وانهم کالبهائم وهو قول الحسن وابن شبرمة وجماعة، دريم قول دا چه دعبيد ترمينځه قصاص فی النفس خوشته خو قصاص فيما دون النفس نشته، وبه قال ابوحنيفة والثوری او بيا د احنافو په دليل کښې هغوی هم دادعمران بن حصين رضی الله عنه حديث ذکر کړې دې خو هغوی چه کوم حديث نقل کړې دې په لفظ د غلام سره نه بلکه په لفظ د عبد سره دې، د دې مطلب دا شو چه د غلام نه مراد په دې حديث کښې عبد دې، او نه صرف دا بلکه دا هم چه دا حديث د احنافو دليل دې د سقوط قصاص بين العبيد فی الجروح په مسئله کښې، او د دې رائې تائيد چه په حديث کښې د غلام نه مراد مملوک دې د امام د نسائی طرز نه هم کيږی ځکه چه هغوی په حديث باندې ترجمه قائم کړې ده، ﴿ سقوط القود بين المماليک فيما دون النفس ﴾ خو اوس به په دې باندې دا اشکال وه چه دا مسئله بين العبدين پيښه شوې وی نو په دې صورت کښې خو صحيح ده چه قصاص نشته د احنافو په نزد خو ارش به واجب وی او د دې تعلق د غلام د ذات سره دې نه د مولی سره نو بيا رسول الله ﷺ د ارش فيصله ولې او نه فرمائيله؟ يا خو دې د دې توجيه داسې اوکړې شی چه مراد دا دې چه فی الفور ئې په هغه باندې هيڅ هم واجب نه کړل، مطلقا د ضمان نفی مراد نه ده، او يا دې دا په خصوصيت باندې محمول کړې شی، واقعة حال لا عموم لها، يا دې بيا د دې نسخ تسليم کړې شی، ذکر مثله فی حاشية النسائی وهذا بتوفيق الله تعالى غاية تنقيح فی هذا المقام فلله الحمد. والحديث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## بَابٌ فِيمَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيًّا بَيْنَ قَوْمٍ

### باب: څوک چه په تياره او ګڼره کښې قتل کړې شی

[٤٥٩١](١) قَالَ أَبُو دَاوُد: حُدِّثْتُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَتَلَ فِي عِمِّيًّا أَوْ رِمِّيًّا يَكُونُ بَيْنَهُمْ بِحَجَرٍ أَوْ بِسَوْطٍ فَعَقْلُهُ عَقْلُ خَطَإٍ، وَمَنْ قَتَلَ عَمْدًا فَقَوَدُ يَدَيْهِ فَمَنْ حَالَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلې دې: څوک چه په تياره ياګڼره کښې قتل کړې شي يادکانړوپه ويشتلوکښې يادرې په وهلو کوې چه دنورو خلقويه مينځ کښې وې اوڅوک پکښې مړ کړې شي نوددې مقتول ديت به دقتل خطاء ديت وې او څوک چه په قصد سره قتل کړې شونوداقتل قصاص موجب دې او څوک چه دقاتل اودمقتول په مينځ کښې ننوځې دقاتل دبچ کولو دپاره نويده باندې دالله تعالى اودفرښتو

(١): انظر حديث رقم: (٤٥٣٩)، (تحفة الأشراف: ١٨٨٢٨، ٥٧٣٩) (صحيح)

اودتما موخلقو دطرف نه لعنت دي.

**قوله:** ﴿ حُدِّثْتُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ سُلَيْمَانَ ........مَنْ قُتِلَ فِي عِمِّيَّاء أَوْ رِمِّيَّاء ﴾

دا حديث د دې نه مخکښې په باب فی عفو النساء عن الدم کښې تير شوې دې، هلته د مصنف رحمه الله استاد په دې کښې محمد بن ابی غالب وو او باقی سند هم هغه دې کوم چه دلته ذکر شوې دې، او دلته مصنف رحمه الله په ځائې د استاد د نوم ذکر کولو (حدثت) په صيغه د مجهول سره اووې پس کيدې شی چه دلته د حدثت فاعل هم هغه وی، او دا هم ممکنه ده چه بل څوک وی. فالله تعالیٰ اعلم.

(آخر کتاب الديات)

.............................................................

# كِتَابُ السُّنَّةِ

## باب: د سنت متعلق بيان

او په بعض نسخو کښې د دې باب نه مخکښې دا عبارت دې ﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾ اول کتاب السنة او زمونږ په نسخه کښې اګر چه لفظ کتاب نشته خو د بنده په ذهن کښې د مخکښې نه هم دا دی چه باب شرح السنة مستقل کتاب دې صرف يو باب نه دې او د دې لاندې چه مصنف رحمه الله کوم احاديث راوړی دی هغه ګويا د دې کتاب اساس اوبنياد دې او د دې نه پس چه څومره ابواب راځی تر د کتاب الادب پورې هغه ټول د دې شرح السنة د لاندې دی.[1]

### بيان غرض المصنف من هذا الباب ای الکتاب:

تر اوسه پورې مصنف رحمه الله سيل کولو په اصل موضوع د کتاب کښې يعنی احاديث احکام او ابواب فقيهيه کښې، او اوس د دې ځائې نه مصنف رحمه الله دويم قسم مضامين بيانوی، يعنی د خالص احکام فرعيه بيان خو ختم شو اوس بعض څيزونه د عقائدو او ايمانياتو او د آدابو د قبيل نه بيانوی، پس د سنت او بدعت فرق، د سنت ترغيب او د بدعت نه ترهيب او دغه شان مسئله د تقدير او هم دغه شان صفات د باری تعالی او بيا په کتاب الادب باندې کتاب ختموی، شرح السنة يعنی د سنت بيان، سنت دلته د فرض او مستحب مقابل نه دې بلکه د بدعت په مقابله کښې دې، ګويا د اهل سنت والجماعت د عقائدو اثبات او د فرق باطله ترديد بيانول غواړی، د صفات باری تعالی مسئله مصنف رحمه الله چيړلې ده په قدريه او معتزله وغيره باندې د رد کولو دپاره، او هم دغه شان ئې مناقب صحابه رضی الله عنهم بيان کړی دی په روافض او خوارجو باندې د رد کولو دپاره، او مسئله د زيادت ايمان او نقص ايمان هم د پاره د رد په مرجئه باندې.

[1] د شرح السنة په نوم باندې په فقه الحديث کښې د علامه بغوی شافعی رحمه الله مشهور تصنيف هم شته د مشکوة اصل يعنی د المصابيح مولف هم دا علامه بغوی دې.

# بَابُ شَرْحِ السُّنَّةِ

## بابـ د سنت د تشريح بيان

**د مشروعات اقسام خمسه :**

د سنيت په باره کښې علامه شامي رحمه الله (ص ۷۰ ج ۱) کښې فرمائي چه : پس څان پوهول پکار دي چه د مشروعات څلور قسمونه دي: فرض، واجب، سنت، نفل او دليل د حصر د هغې دا دې چه د کوم څيز کول اولي دی د هغې د ترک نه، د دې دوه صورتونه دی دا چه يا به د هغې ترک ممنوع وی يا غير ممنوع که اول صورت وی نو بيا د هغې دوه قسمونه دی يا به د هغې ثبوت په دليل قطعي سره وی يا په دليل ظني سره اول صورت ته به فرض وئيلې شی او دويم صورت ته به واجب، او د غير ممنوع الترک کيدو په صورت کښې دوه قسمونه دی يا خو به هغه کار داسې وی چه رسول الله ﷺ يا خلفاء راشدين به د هغوی نه پس په هغې باندې مواظبت فرمائيلې وی يا نه، د مواظبت په صورت کښې به ورته سنت وائی او بغير د هغې نه به ورته مندوب او نفل، او بيا فرمائي چه د سنت دوه قسمونه دی يو سنن الهدی او بل سنن الزوائد ، اول لکه د جماعت مونځ او آذان او اقامت، د دې ترک مکروه او سبب د بدئ دې ثاني يعنی سنن الزوائد د دې مثال د رسول الله ﷺ سيرت په لباس کښې په قيام قعود وغيره کښ، او د نفل او مندوب حکم دا دې : يثاب فاعله ولا يسئ تارکه يعنی که او ئې کړی نو ثواب دې او که پرې ئې ږدی نو په هغې کښې هيڅ بدی نشته، د سنت تعريف په "درمنضود" کښې په مقدمة العلم کښې تير شوې دې،او د الدرر المنضود په کتاب الصلوة، ابواب الجماعة کښې د سنت د دوه قسمونو سنن الهدی او سنن الزوايد ذکر شوی دې، د سنت مقابل بدعت دې.

**تعريف البدعة :**

او د بدعت تعريف علامه شامي دا ليکلې دې : مَا أُحْدِثَ عَلَى خِلَافِ الْحَقِّ الْمُتَلَقَّى عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِلْمٍ أَوْ عَمَلٍ أَوْ حَالٍ بِنَوْعِ شُبْهَةٍ وَاسْتِحْسَانٍ،وَجُعِلَ دَيْنًا قَوِيمًا وَصِرَاطًا مُسْتَقِيمًا ...... يعنی بدعت هغه څيز دې کوم چه ايجاد کړې شی د هغه حق خبرې خلاف کومه چه د رسول الله ﷺ نه ثابت وی که هغه علم وی يا عمل وی يا بل څه حال، د څه دليل په وجه نه بلکه د شبهې په وجه او هغې ته دين او صراط مستقيم اوئيلې شی. د دې نه معلومه شوه چه کوم څيز بدعت وی هغه په دليل نه بلکه په شبهة الدليل باندې بناء وی، او دا هم نه چه په عناد او مکابره باندې بناء وی، څکه چه کوم امر دمبتدع په عناد بناء وی هغه کفر هم کيدې شی لکه د ضروريات دين انکار (من الشامی) په فتاوی رحيميه ۱۰/۳۳۷ کښې ئې د بدعت تعريف د ډيرو مستند کتابونو نه نقل کړې دې هغه دې اوکتلې شی، او هم په هغې کښې ئې د تفسير عثمانی نه نقل کړی دی چه بدعت وائی د يو داسې کار کولو ته چه د هغې اصل په کتاب او سنت او قرون مشهود لها بالخير کښې نه وو او هغه د دين او ثواب کار ګنړلو سره اوکړې شی، او په فتح الباری کښې په يو ځائې کښې داسې دی چه بدعت په

لغت کښې هغه څيز ته وائی کوم چه بغير د يو مثال سابق او نمونې نه ايجاد کړې شوې وی، او په شريعت کښې د بدعت اطلاق د سنت په مقابله کښې وی لهذا هغه به مذموم وی، او په مجمع البحار ۱۲۰/۱ کښې دی: سيدنا عمر رضي الله عنه د قيام رمضان يعنی تراويح په باره کښې فرمائيلې وو : نعمت البدعة هغوی ليکی چه د بدعت دوه قسمونه دی.يو بدعت هدی او بل بدعت ضلالت .....بدعت هدی هغه کار دې چه د هغې طرف ته شارع عليه السلام دعوت او ترغيب ورکړې وی او هغه د هغې د عموم د لاندې راشی، لهذا هغه بدعت مذموم نه شی کيدې، ځکه چه په داسې بدعت باندې د اجر وعده ده، ﴿ من سن سنة حسنة الحديث ﴾ او بدعت سيئه هغه دې کوم چه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د امر خلاف وی، او د سيد شريف جرجانی صاحب په رساله تعريف الاشياء کښې دی ﴿ البدعة هلی الفعلة المخالفة للسنة سميت بدعة لان قائلها ابتدعها من غير مثال ﴾ يعنی بدعت هغه فعل دې کوم چه د سنت خلاف وی، او بدعت ته بدعت په دې وجه وائی چه هغه د هغې قائل د خپل طرف نه ايجاد کړې دې بغير د دې نه چه په شريعت کښې د هغې مثال وی.اهـ اشاره ده دې خبرې ته چه په اصطلاحی معنی کښې لغوی معنی ملحوظ ده، او شيخ عبد الحق محدث دهلوی په مقدمه د مشکوة کښې ليکلې دی ﴿ واما البدعة فالمراد به اعتقاد امر محدث علی خلاف ما عرف فی الدين وما جاء عن رسول الله صلی الله عليه وسلم واصحابه بنوع شبهة وتاويل لا بطريق جحود وانکار فان ذلک کفر.اهـ ﴾

**د بدعت اقسام خمسه :**

او علامه شامی رحمه الله (ص ۷۷ ج ۱) کښې د بدعت پنځه قسمونه ليکلې دی، اول حرام (لکه هغه بدعات کوم چه فرق باطله خوارج او روافض وغيره اختيار کړې دی) دويم واجبه لکه د فرق باطله دپاره دلائل قائمول او د نحو او صرف زده کول چه په هغې سره قرآن او حديث په فهم کښې راشی، او مندوبه لکه مدارس قائمول او رباطين جوړول او هر هغه نيک کار کوم چه په صدر اول کښې نه وو، او مکروهه لکه مساجد ډير زيات ډولی کول، او بدعت مباحه لکه ښه ښه او خوندور د خوراک څکاک څيزونه او ډولی جامې اغوستل اهـ يعنی د دې څيزونو اهتمام کول ګڼې نفس ثبوت خو د دې څيزونو د حديث شريف نه هم شته يعنی کله کله رسول الله صلی الله عليه وسلم ډير غوره جامه هم اغوستلې ده.

[۴۵۹۶](1) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "افْتَرَقَتِ الْيَهُودُ عَلَى إِحْدَى أَوْ ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً، وَتَفَرَّقَتِ النَّصَارَى عَلَى إِحْدَى أَوْ ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً، وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي عَلَى ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ فِرْقَةً".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې،چې رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل "چې يهوديان په يو اويا يا په دوه اويا فرقو کښې تقسيم شو او عيسايان هم په يو اويا يا په دوه اويا فرقو کښې تقسيم شو او زما امت به په درې اويا فرقو کښې تقسيميږی۔

دا حديث د ابوهريره رضي الله عنه دې، او د دې نه پس هم دا حديث د معاويه رضي الله عنه په روايت باندې

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۲۳)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الإيمان ۱۸ (۲۶۴۰)، سنن ابن ماجه/الفتن ۱۷ (۳۹۹۱)، مسند احمد (۳۳۲/۲) (حسن صحيح)

راځي په هغې کښې بغير د شک نه ﴿ ثنتين وسبعين ﴾ دي او د حديث په آخر کښې دا زيادت دي ﴿ ثِنْتَانِ وَسَبْعُونَ فِي النَّارِ وَوَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ وَهِيَ الْجَمَاعَةُ ﴾ او دا حديث په مشکوٰة کښې په حواله د ترمذی د عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنهما نه داسې روايت دي ﴿ليأتين على أمتي كما أتى على بني إسرائيل حذو النعل بالنعل حتى إن كان منهم من أتى أمه علانية لكان في أمتي من يصنع او د دې په آخره کښې دی : إلا ملة واحدة قالوا ومن هي يا رسول الله قال ما أنا عليه وأصحابي ﴾ د دې نه معلومه شوه چه د ابوداؤد په روايت کښې د لفظ جماعت نه مراد دصحابه کرامو رضی الله عنهم جماعت دې.او په ظاهر کښې داهل السنة والجماعت لقب هم ددې نه اخستلې شوې دې ما انا عليه واصحابی، او د باب په حديث ثانی کښې دا زيادت هم دې ﴿ وَإِنَّهُ سَيَخْرُجُ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ تَجَارَى بِهِمْ تِلْكَ الْأَهْوَاءُ كَمَا يَتَجَارَى الْكَلْبُ لِصَاحِبِهِ لَا يَبْقَى مِنْهُ عِرْقٌ وَلَا مَفْصِلٌ إِلَّا دَخَلَهُ ﴾

## شرح الحديث :

اوس د حديث ترجمه او شرح مونږ د مظاهر حق نه ليکو : رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زما په امت به يو زمانه راشی، لکه چه په بنی اسرائيلو باندې يو زمانه راغلې وه، په برابر والی کښې هغوی سره په شان د يو کيړئ د بلې کيړئ سره، تر دې چه که د هغوی نه يو کس خپلې مور ته د بدفعلئ دپاره راغلې وو نو زما د امت نه به هم دغه شان يو تن وی او يقينا بنی اسرائيلو اختلاف اوکړو دوه اويا ډلو کيدو سره او اختلاف به اوکړی زما اومت تر درې اويا ډلو پورې، ټول به هغوی کښې جهنم ته داخليږی سوا د يوې ډلې نه، صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ هغه ډله به کومه وی؟ وې فرمائيل چه په څه باندې زه يم او زما صحابه کرام،دا ترمذی روايت کړې دې او د احمد او ابوداؤد په روايت کښې دی د معاويه رضی الله عنه نه چه دوه اويا ډلې په دوزخ کښې او يوه ډله په جنت کښې، او هغه ډله ده جماعت او يقينا زما په امت کښې به ډير قومونه راوځی، چه په هغوی کښې به خواهشات خوارۀ شی، يعنی بدعات په عقائدو او اعمالو کښې، لکه چه خوارۀ شی د سپی د چيچلو زهر په هغه چيچلی شوی کښې چه نه بچ کيږی د هغې نه د هغه يو رګ او نه يو جوړ مګر داخليږی هغې ته.

**فائده** : برابر کيدل په شان د کيړئ د بلې کيړئ سره، يعنی څنګه چه کيړئ بلې کيړئ سره برابر وی، هم دغه شان به د دې امت خلق هم برابر شی، هم دغه شان به د دې امت خلق برابر شی د بنی اسرائيلو سره، او مراد د مور نه د پلار ښځه ده، يعنی ميرنئ مور سره، د سکه سره دچا مور دا حرکت نه کيږی چه مانع طبعی او مانع شرعی دواړه جمع دی، او مراد د امتی نه اهل قبله دی يعنی کوم چه مسلمانان شميرلې شی، پس په دې صورت کښې به معنی د ﴿ کلهم فی النار ﴾ دا وی چه په سبب د ګناه او بداعتقاد به دوزخ ته داخليږی، بيا د چا عقيده چه حد د کفر ته نه وی رسيدلې هغه به د الله پاک په رحمت سره راوځی او د جماعت نه مراد اهل علم او اهل فقه دی، او جماعت دې ته ځکه اوئيلې شو چه راجمع دی په حق باندې.

## د درې اویا فرقو مصداق :

او د درې اویا فرقو تفریق داسې دې چه لوئې لوئې فرقې د اهل اسلام اته دی، ۱: معتزله، ۲: شیعه، ۳: خوارج، ۴: مرجئه، ۵: نجاریه، ۶: جبریه، ۷: مشبهه، ۸: ناجیه، بیا د معتزله شل فرقې دی او د شیعه ګانو دویشت فرقې دی او د خوارجو شل او د مرجئه پنځه او د نجاریه درې او د جبریه او مشبهه یو یو فرقه ده ډیرې نه، او فرقه ناجیه اهل سنت والجماعت ده، دا ټولې درې اویا شوې.

اوس د هغوی عقائد اوریدل پکار دی، معتزله وائی چه بندګان خپل عملونه خپله پیدا کوی او د الله پاک د لیدلو نه (اخرت کښې) انکار کوی، او په الله پاک باندې د ثواب او عذاب د وجوب قائل دی، او مرجئه وائی چه ګناه د ایمان سره هیڅ ضرر نه ورکوی لکه څنګه چه د کفر سره طاعت هیڅ فائده نه ورکوی، او نجاریه د صفاتو نفی کوی او کلام الهی حادث ګڼړی، او جبریه وائی چه بنده په خپلو افعالو کښې د هیڅ اختیار نه لری، او مشبه خالق یعنی الله پاک لره د مخلوق سره مشابه کوی او د جسمیت او حلول قائل دی، د باقی فرقو عقائد مشهور دی په دې وجه ئې بیان نه کړل.

وړاندې لیکی : اوس په حدیث کښې د هغوی مشابهت د سپی د چیچلې شوو سره په دې وجه ورکړې شو چه لکه څنګه د سپی په چیچلی شوی باندې د هغه چیچلو زهر غالب وی او د اوبو نه تختی او ترې مړ شی هم دغه شان په دروغژنو مذهبونو والا باندې هم خواهش نفسانی غالب وی او د علم حق نه تیخته کولو سره د ګمراهئ په څنګل کښې هغوی هلاکیږی عیاذا بالله منه،په مظاهر حق کښې دلته یو اشکال او د هغې مفصل جواب لیکلې شوې دې اشکال دا دې هغوی لیکی : خو دلته عوامو ته یو اشکال راځی چه مثلاً یو سړې جاهل مسلمان شو او هغه روافض او اهل السنت والجماعت اوليدل چه دواړه خپل ځان په حق ګڼړی او سند راوړی د کتاب او سنت نه، اوس دا غریب ډیر حیران دې چه حقیقت د یو په دواړو کښې څنګه معلوم کړی، د دې نه پس په هغې کښې د دې جواب ذکر دې مونږ ئې د اوږد والی د ویرې نه نهٔ لیکو هلته دې اوکتلې شی. (مظاهر حق ۱/۸۷)

په بذل المجهود کښې د تفریق امتی تفسیر په امت اجابت سره کړې شوې دې (څنګه چه په مظاهر حق کښې دی) او بیا وړاندې په دې کښې لیکلې شوی دی چه د دې تفرق نه مراد هغه مذموم تفرق دې کوم چه په اصول دین کښې واقع وی، او کوم اختلاف د فروعو چه په دین کښې وی هغه مذموم نه دې، بلکه د الله پاک رحمت دې، تاسو ګورئ چه په فروغ دین کښې اختلاف کونکی چه کوم جماعتونه دی هغه ټول په اصول دین کښې متفق دی او په هغوی کښې بعض د بعضو تضلیل نه کوی، او کوم جماعتونه چه په اصول دین کښې مفترق دی هغوی بعض د بعضو تکفیر او تضلیل کوی او بیا د دې نه روستو په بذل کښې په عدد مذکوره فی الحدیث باندې کلام دې یعنی درې اویا او دا چه دا د تحدید دپاره دې یا د تکثیر دپاره فارجع الیه لوشئت.

په دې حدیث کښې دا دی ﴿ كما يتجارى الكلب ﴾ کَلَب په فتحې د کاف او لام په

سره لیوني سپي کوم ته چه کَلِب وائی په فتح د کاب او کسرې د لام سره د دې د چیچلو په وجه باندې چه په انسان کښې کوم مرض او بیماری پیدا کیږی هغې ته کلب وائی، هغه د انسان په رګ او ریشه کښې خوریږی او د ډیرې مودې نه پس ښکاره کیږی او د هغه سړی د هلاکت ذریعه وی هم دغه شان د بدعاتو زهر په انسان کښې داسې پیوست شی چه د هغه دین تباه او برباد کړی. د بدعت نه علاوه چه کوم نور ګناهونه دی هغې لره سره د ارتکاب معصیت ګنړی ځکه چه کله خو د توبې توفیق ملاویدې شی، او صاحب بدعت چونکه بدعت لره دین ګنړلو سره اختیاروی په دې وجه عام طور نه هغه ته د توبې توفیق کیږی او نه ورته ضرورت ګنړی، هغه چه په فتن کښې حدیث تیر شوې دې، ﴿ انما اخاف علی امتی الائمة المضلین ﴾ د دې نه هم دا مبتدعین مراد دی او د هغوی مشران.

**سوال او جواب :**

په دې حدیث کښې د امتی نه مراد د اکثرو علماء کرامو په نزد امت اجابت دې یعنی اهل قبلة، خو په دې حدیث کښې په هغه ټولو فرقو باندې د ﴿ فی النار ﴾ حکم لګولې شوې دې سوا د یوې ډلې نه، دلته یو سوال واردیږی چه د فی النار نه مراد څه دی، که خلود فی النار وی نو دا خلاف اجماع ده ځکه چه هغه نورې ډلې هم اسلامی ډلې دی او مسلمانان دی، او که مراد نفس دخول وی نو دا د ټولو په حق کښې مشترک دې، په اهل سنت کښې هم دا قسم خلق موجود دی؟ جواب دا دې چه مراد خو ترې نه نفس دخول فی النار دې خو د دخول نه مراد هغه دخول دې کوم چه د اختلاف عقائد د وجې نه وی او د کوم جماعت واحده په باره کښې چه رسول اللهﷺ فرمائی چه ﴿ فی الجنة ﴾ د هغې مطلب دا دې چه هغوی به د اختلاف عقائد د وجې نه جهنم ته نه ځی اګر چه د نورو معاصی د وجې نه هغوی جهنم ته لاړ شی، او یا دې دا اوئیلې شی چه د دوه اویا ډلو په باره کښې چه دا فرمائیلې شوې دی چه ﴿فی النار ﴾ د دې نه مراد اوږده زمانه ده، او د کومې فرقې په باره کښې چه وئیلې شوې دی، ﴿ فی الجنة ﴾ د دې نه مراد عدم طول مکث فی النار دې چه هغوی به زیات په جهنم کښې نه اوسیږی، وعبر عنهم بکونهم فی الجنة ترغیبا فی تصحیح العقائد، الی اخر ما ذکر العلامة السندی فی هامش ابن ماجه ۴۸۰/۲ او د مظاهر حق نه دا تیر شوی دی چه په دې دوه اویا ډلو کښې چه د هغې عقیده حد د کفر ته نه وی رسیدلې هغه به په اخر کښې د جهنم نه نجات بیا مومی.

والحدیث اخرجه الترمذی وابن ماجه، وحدیث ابن ماجه مختصر، وقال الترمذی حسن صحیح، قاله المنذری.

[۴۵۹۷]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْمُغِيرَةِ، حَدَّثَنَا صَفْوَانُ. ح وحَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، قَالَ: حَدَّثَنِي صَفْوَانُ نَحْوَهُ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَزْهَرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْحَرَازِيُّ، عَنْ أَبِي عَامِرٍ الْهَوْزَنِيِّ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِي سُفْيَانَ، أَنَّهُ قَامَ فِينَا، فَقَالَ: أَلَا إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ فِينَا، فَقَالَ: "أَلَا

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۲/۴)، سنن الدارمي /السير ۷۵ (۲۵۶۰) (حسن)

إِنَّ مَنْ قَبْلَكُمْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ افْتَرَقُوا عَلَى ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ مِلَّةً، وَإِنَّ هَذِهِ الْمِلَّةَ سَتَفْتَرِقُ عَلَى ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ: ثِنْتَانِ وَسَبْعُونَ فِي النَّارِ، وَوَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ وَهِيَ الْجَمَاعَةُ، زَادَ ابْنُ يَحْيَى، وَعَمْرٌو فِي حَدِيثَيْهِمَا: وَإِنَّهُ سَيَخْرُجُ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ تَجَارَى بِهِمْ تِلْكَ الْأَهْوَاءُ كَمَا يَتَجَارَى الْكَلْبُ لِصَاحِبِهِ، وَقَالَ عَمْرٌو: الْكَلْبُ بِصَاحِبِهِ لَا يَبْقَى مِنْهُ عِرْقٌ وَلَا مَفْصِلٌ إِلَّا دَخَلَهُ".

د ابو عامرهوزني بیان دي چې حضرت معاویه بن ابو سفیان رضي الله عنه زمونږ نه د خطبې د پاره اودریدو او وې وئیل: خبردار! تحقیق رسول الله ﷺ زمونږ نه اودریدلو او وې فرمائیل: خبردار! تاسو نه وړاندې اهل کتاب دوه اویا (۷۲) فرقو کښې تقسیم وو او دغه ملت به په درې اویا فرقو کښې تقسیمیږي- دوه اویا به اور ته درومي او یوه فرقه به جنت ته ځي او هم دغه به "الجماعه" وي- " ابن یحیی او عمرو په خپلو روایتونو کښې مزید وئیلي دي: "بې شکه زما د امت نه به څه قومونه راوځي په هغوی کښې به دغه اهواء (من پسند نظریات او اعمال په دین کښې داخلول) به داسې عام شي څنګه چه د لیونتوب بیماری په بیمار کښې ډیره زر خوره شي"- عمرو اووئیل: "د لیونتوب بیمارۍ کښې د بدن کوم ځائ، کوم جوړ، کوم رګ داسې باقي نه پاتیږي چې ددغه بیمارۍ اثر پکښې نه وي-

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْجِدَالِ، وَاتِّبَاعِ مُتَشَابِهِ الْقُرْآنِ

### باب ۲: په خپلو کښې جګړې کول یا د قرآن کریم د متشابهاتو پسې پریوتل منع دي

[۴۵۹۸] (١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ التُّسْتَرِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "قَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذِهِ الْآيَةَ: هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ إِلَى أُولُو الْأَلْبَابِ سورة آل عمران آية ٧، قَالَتْ: فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَإِذَا رَأَيْتُمُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ فَأُولَئِكَ الَّذِينَ سَمَّى اللَّهُ فَاحْذَرُوهُمْ".

د ام المؤمنین سیده عائشه رضي الله عنها بیان دي چې رسول الله ﷺ دغه ایت کریمه تلاوت اوفرمائیلو: هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ ... تا ... أُولُو الْأَلْبَابِ- "(الله) هغه ذات دي کوم چې په تاسو باندې کتاب نازل کړو، په کوم کښې چې بعضې آیاتونه محکم (واضح) دي کوم چې ددې کتاب اصل بنیاد دي او بعضې په کښې آیاتونه متشابهات (غیرواضح) دي، نو چې د چا په زړونو کښې کوږ والي دي هغوی په هم ددغو آیاتونو پسې پریوتي وي کوم چې متشابه (غیر واضح) دي، دهغوی مقصد محض د فتنې او د تاویل تلاش وي، حالانکه د الله تعالیٰ نه علاوه هیڅوک ددې په تاویل نه پوهیږي- او کوم خلق چې د پوخ علم خاوندان وي هغوی وائي چې زمونږ په دغو (متشابهاتو) باندې ایمان دي، دا ټول زمونږ د رب د طرف نه دي او نصیحت هم دهغه خلقو په زړونو اثر کوي کوم چې د عقل واله دي-" حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوي، چې بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل "کله چې تاسو داسې خلق اووینئ چې متشابه آیتونو پسې پریوتې وي نو دغه هم هغه خلق دي د کومو په

[1]: صحيح البخاري/تفسير آل عمران ١ (٤٥٤٧)، صحيح مسلم/العلم ١ (٢٦٦٥)، سنن الترمذي/تفسير آل عمران ٤ (٢٩٩٣)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٦٠)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المقدمة ٧ (٤٧)، مسند احمد (٤٨/٦)، سنن الدارمي/المقدمة ١٩ (١٤٧) (صحيح)

باب کښې چې الله تعالیٰ فرمائیلی دی (فاحذروهم)"چې ددوی نه اویریږئ او د دوی نه ځانونه بچ کړئ.

﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ قَرَأَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- هَذِهِ الآيَةَ (هُوَ الَّذِى أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُحْكَمَاتٌ) إِلَى (أُولُو الأَلْبَابِ) قَالَتْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « فَإِذَا رَأَيْتُمُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ فَأُولَئِكَ الَّذِينَ سَمَّى اللَّهُ فَاحْذَرُوهُمْ »﴾

سیده عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ دا آیت کریمه تلاوت اوفرمائیلو کوم چه پورته ذکر دې، چه د هغې باقی حصه دا ده : ﴿ هُنَّ أُمُّ الْكِتَابِ وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلَّا اللَّهُ وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ رَبِّنَا وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ﴾

## شرح الحديث :

هغه فرمائی چه دا آیت کریمه رسول الله ﷺ تلاوت فرمائیلو سره داسې اوفرمائیل چه کله تاسو داسې خلق اوینئ کوم چه د قرآن کریم د متشابهات اتباع کوی یعنی په هغې پسې کیږی، د هغې معنی او تفسیر لټوی نو پوهه شئ چه هم دا هغه خلق دی د کومو نه چه الله پاک تعبیر فرمائیلې دې په بد او قبیح لقب سره یعنی دا چه هغوی اصحاب زیغ دی او د هغوی په زړونو کښې کوږوالې دې پس تاسو د هغوی نه بچ شئ او احتیاط کوئ، یعنی هغوی ته د تلو راتلو او تعلقات ساتلو نه.

ځان پوهه کړه چه په دې کښې اختلاف دې چه علماء راسخین ته د متشابهاتو علم شته او که نه؟ په نور الانوار کښې لیکلي دی چه د احنافو رائې دا ده چه د الله پاک نه سوا چاته هم د دې علم نشته، د دې معانی انکشاف به د قیامت د قیام نه پس وی او د امام شافعی او د اکثرو معتزل رائې هغوی دا لیکلې ده چه علماء راسخین هم د دې د تاویل نه خبر دی، او منشاء د اختلاف ئې دا لیکلې ده چه په دې آیت کریمه کښې په ﴿ الا الله ﴾ باندې وقف دې یا د دې نه پس ﴿ والراسخون فی العلم ﴾ باندې، زمونږ په نزد په ﴿ الا الله ﴾ باندې وقف واجب دې، او د دې نه پس ﴿ والراسخون فی العلم ﴾ دا جمله مستانفه ده، پس مطلب دا شو چه د زائغینو حصه اتباع المتشابهات ده او د راسخینو حصه تسلیم او انقیاد ده او د دویمې ډلې په نزد په آیت کښې وقف په ﴿ الا الله ﴾ باندې نه دې بلکه په ﴿والراسخون فی العلم ﴾ باندې دې، د دې نه پس هغوی فرمائی : خو دا نزاع لفظی ده ځکه چه کوم خلق د دې خبرې قائل دی چه راسخینو ته د دې د تاویل علم دې د هغوی د تاویل نه مراد تاویل ظنی دې، کوم حضرات چه د علم نفی کوی د هغوی مراد د تاویل نه تاویل مجزوم به او یقینی دې.د نور الانوار صفحه ۹۳ د متن عبارت چه د هغې شرح دا لیکلې شوې ده دا دې :

واما المتشابه فهو اسم لما انقطع رجاء معرفة المراد منه، وحكمه اعتقاد الحقية قبل الاصابة، كالمقطعات فى اوائل السور مثل الم و حم اهـ .او د هغې په حاشیه کښې د مقطعات په باره کښې دا لیکلې دی چه په دې کښې دوه قوله دی چه د بعض په نزد د متشابهاتو د قبیلې نه دې او بعضو د دې نه انکار کړې دې او وئیلې ئې دی چه دا د متشابهاتو د قبیلې نه نهٔ دې،

بل هی من جنس التکلم بالرمز فیعلم تاویله، کما قیل ان الالف رمز الی انا، واللام رمز الی الله، والمیم رمز الی اعلم، فمعنی "الم" اناالله اعلم وکما قیل ان حم رمز الی الرحمن اه، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی قاله المنذری.

## باب مُجَانَبَةِ أَهْلِ الأَهْوَاءِ وَبُغْضِهِمْ

**باب... د اهل بدعت نه ځان لرې ساتل او د هغوی نه په زړه کښې د بغض ساتلو بيان**

الاهواء جمع ده د هوی په معنی د خواهش نفس او دلته مراد د دې نه بده عقيده او بدعت دې.

[٤٥٩٩]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَفْضَلُ الْأَعْمَالِ الْحُبُّ فِي اللَّهِ وَالْبُغْضُ فِي اللَّهِ".

د حضرت ابو ذر رضی الله عنه بيان دې، رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "په اعمالو کښې افضل عمل د الله تعالیٰ د پاره محبت کول او هم دهغه د پاره بغض ساتل دی."

﴿عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أَفْضَلُ الأَعْمَالِ الْحُبُّ فِى اللَّهِ وَالْبُغْضُ فِى اللَّهِ »﴾

يعنی د الله پاک د پاره محبت کول او هم دهغه د پاره بغض کول دا افضل ترين عمل دې. اوس چه هر کله د افضليت بنياد په دې باندې دې چه هغه دواړه د الله پاک د پاره وی نو محبت به د الله پاک د پاره وی نو هغه به د هم هغه خلقو سره وی کوم چه د هغه مطيع او فرمانبردار دی، هم دغه شان چه کله بغض صرف د الله پاک د پاره وی نو هغه به هم د هغه خلقو سره وی کوم چه د الله پاک باغيان او نافرمان دی، ځکه چه دا خو ظاهره ده چه د الله پاک د يو محبوب بنده سره بغض ساتل هغه د الله پاک د پاره نه شی کيدې، علی هذا القياس، د الله پاک د نافرمان بنده سره چه کوم محبت وی هغه د الله پاک د پاره نه شی کيدې، بنده په يو کتاب کښې ليدلې وو [٢] چه سيدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته يو سړی اووې ﴿ انا احبک فی الله ﴾ چه زما تا سره د الله پاک د پاره مينه ده نو هغوی ورته اوفرمائيل: ﴿ انا ابغضک فی الله ﴾ او زما تا سره د الله پاک د پاره بغض دې. هغه اووې دا ځنگه؟ نو هغوی اوفرمائيل: ﴿ لانک تلحن فی الاذان ﴾ ځکه چه ته اذان غلط ورکوې د هغې حروف صحيح نه ادا کوې. الله اکبر! څه به وی اجر د دې اخلاص او للهيت؛ هم دا اخلاص د صحابه کرامو رضی الله عنهم هغه کارنامه ده چه د هغې په وجه باندې هغوی په ټولو باندې مخکښې شو.

او دا هم پيژندل پکار دی چه حب او بغض دواړه اعمال قلب دی د دواړو تعلق د قلب سره دې، او په اعمال قلب کښې چه کوم اخلاص کيدې شی هغه په اعمال جوارح کښې نه شی کيدې. د دې حديث د ترجمة الباب سره مطابقت هم ښکاره دې، ځکه چه اهل اهواء د الله پاک په نزد د بغض مستحق دی.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٠٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٦٧٥) (ضعيف)

[2] چه روستو اوکتلې شو نو دا روايت په مجمع الزوائد ٣/٢ کښې په حواله د معجم کبير للطبرانی ٣٠٥٩ ملاؤ شو.

[۴۶۰۰](١) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ ، "أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَكَانَ قَائِدَ كَعْبٍ مِنْ بَنِيهِ حِينَ عَمِيَ، قَالَ: سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ، وَذَكَرَ ابْنُ السَّرْحِ قِصَّةَ تَخَلُّفِهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، قَالَ: وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمِينَ عَنْ كَلَامِنَا أَيُّهَا الثَّلَاثَةُ، حَتَّى إِذَا طَالَ عَلَيَّ تَسَوَّرْتُ جِدَارَ حَائِطِ أَبِي قَتَادَةَ وَهُوَ ابْنُ عَمِّي فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَوَاللَّهِ مَا رَدَّ عَلَيَّ السَّلَامَ، ثُمَّ سَاقَ خَبَرَ تَنْزِيلِ تَوْبَتِهِ".

حضرت عبدالله د خپل پلار حضرت کعب بن مالک د نابینا کیدو نه پس د هغوی قائد جوړ شو - هغه بیان کوی چې ما د خپل پلار حضرت کعب بن مالک نه واوریدل...او ابن سرح د هغوی په غزوه تبوک کښې د نبی کریم ﷺ نه د وروستو پاتې کیدو واقعه بیان کړه... وې وئیل چې رسول الله ﷺ مسلمانانو لره زمونږ د دریو واړو سره د خبرو اترو نه منع اوفرمائیل- حتیٰ چې کله دغه صورتحال په ماباندې ډیر طویل او ګران شونو زۀ د ابو قتاده د باغ په دیوال اوچت شوم او د هغه سره مې خبرې اوکړې، هغه زما د تره ځوئ وو، ما سلام اوکړو نو په الله مې دې قسم وی چې هغه زما د سلام جواب رانه کړلو- بیا (ابن سرح) د هغوی د توبې د نازلیدو خبر راوړلو-

قوله: قَالَ: سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ، وَذَكَرَ ابْنُ السَّرْحِ قِصَّةَ تَخَلُّفِهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ، قَالَ: وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمِينَ عَنْ كَلَامِنَا أَيُّهَا الثَّلَاثَةُ، ...الخ،،

دمشهور صحابی کعب بن مالک ځوئې عبدالله بن کعب چه د هغه په باره کښې راوی وائی چه دې د کعب په ځامنو کښې چه کله هغه نابینا شوې وو، قائد وو یعنی هغوی سره اوسیدلو او د هغوی لاس ئې نیولې وو او روان وو، په مینځ کښې دا جمله معترضه ده، بهر حال هغه عبدالله وائی چه ماته زما پلار سیدنا کعب په غزوه تبوک کښې د خپل تخلف قصه واوروله چه د هغې یو جزء دا دې چه رسول الله ﷺ مونږ دریٍ کسانو سره یعنی مرارة بن الربیع، کعب بن مالک او هلال بن امیه سره د کلام کولو نه منع فرمائیلې وه.هغوی فرمائی چه کله په ما باندې د ترک کلام سلسله اوږده شوه نو یو ځل زه د خپل ترۀ ځوی ابوقتاده په کور باندې اوختلم او هغوی ته مې سلام اوکړو قسم په الله هغه د سلام جواب رانکړو، مصنف د دې واقعې صرف یو ټکړه ذکر کړې ده،د ترجمة الباب د مناسبت د وجې نه یعنی د اهل اهواء سره ترک سلام و کلام، خو دا ښکاره ده خو دا ظاهره ده چه په دې صحابی باندې بلکه په یو صحابی باندې هم د اهل اهواء لقب صادق نه راځی، اوس یا خو دې دا توجیه اوکړې شی چه اثبات د ترجمې په طریقه د اولویت دې چه کله د یو صاحب لغزش د صحابی سره ترک سلام وکلام کیدې شی نو د اهل اهواء (مبتدعین) کوم چه فاسقان فاجران دی هغوی سره په طریقه اولی کیدې شی هم دې توجیه طرف ته اشاره ده په بذل کښې چه د دې صحابی د معصیت تعلق د عمل سره وو او د اهل اهواء د خطاء تعلق د عقائدو سره وی کوم چه د معصیت فی الفعل نه زیات سخت دې او یا داسې اوایه چه دا صحابی خو یقینا د اهل اهواء نه نۀ دې خو دا چه کومه کوتاهی او لغزش هغه وخت سره د هغوی نه صادر شوې

١: انظر حديث رقم: (٢٢٠٢)، (تحفة الأشراف: ١١١٣١) (صحيح)

دي هغه په هواء نفس باندي بناء وو دا د كعب بن مالك رضي الله عنه قصه د بخاري په كتاب المغازي باب غزوة تبوك نه پس په يو مستقل باب كښي په پوره تفصيل سره په څو صفحاتو باندي ذكر ده، او هم دغه شان په مسلم كښي په كتاب التوبة كښي باب حديث توبة كعب بن مالك وصاحبيه .... والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي مطولا ومختصرا، قاله المنذري.

## بَاب تَرْكِ السَّلَامِ عَلَى أَهْلِ الْأَهْوَاءِ

### باب ٣- د بدعاتيانو سره د سلام پريښودلو بيان

[٤٦٠١]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَطَاءٌ الْخُرَاسَانِيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، قَالَ: "قَدِمْتُ عَلَى أَهْلِي وَقَدْ تَشَقَّقَتْ يَدَايَ فَخَلَّقُونِي بِزَعْفَرَانٍ، فَغَدَوْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ، وَقَالَ: اذْهَبْ فَاغْسِلْ هَذَا عَنْكَ".

حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه بيان فرمائي چي زۀ خپل كور ته اورسيدم- او حالت مي دا وو چي زما لاسونه اوچودل- نو هغوى (كوروالٰه) ماته (زما په لاسونو) باندي زعفران اولګول- سحر زۀ د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښي حاضر شوم او ما سلام عرض كړو نو هغوى صلى الله عليه وسلم ماله جواب رانه كړواو وي فرمائيل "لاړ شه لاسونه اووينځه".

داحديث په كتاب الترجل كښي تيرشوي دي، دا ترجمة الباب د تخصيص بعد التعميم د قبيلي نه دي اول باب مطلقا په مجانبت كښي وو يعني ترك تعلق، او ترك سلام د هغي يو فرد دي.

[٤٦٠٢]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ سُمَيَّةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا "أَنَّهُ اعْتَلَّ بَعِيرٌ لِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ وَعِنْدَ زَيْنَبَ فَضْلُ ظَهْرٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِزَيْنَبَ: أَعْطِيهَا بَعِيرًا، فَقَالَتْ: أَنَا أُعْطِي تِلْكَ الْيَهُودِيَّةَ، فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَهَجَرَهَا ذَا الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمَ وَبَعْضَ صَفَرٍ".

د ام المؤمنين حضرت سيده عائشه رضي الله عنها دغه بيان دي چي دام المؤمنين صفيه بن حيى رضي الله عنها اوښ بيمار شولو او د ام المؤمنين حضرت زينب رضي الله عنها سره يوه زياته سورلي موجود وه رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت زينب رضي الله عنها ته اوفرمائيل "چي اوښ هغي له وركړه" نو هغوى اووئيل "چي زۀ دي يهودنړي له ولي اوښ وركړم؟ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم غصه شو او د ذوالحجه، محرم او د صفر تر څو ورځو پوري ئي هغي سره خبري اتري اونۀ كړي-

سيده عائشه صديقه رضي الله عنها د خپل سفر حج قصه نقل كوي چه په لاره كښي د سيده صفيه رضي الله عنها اوښ بيمار شو او سيده زينب رضي الله عنها سره يوه سورلۍ د ضرورت نه زياتي وه، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغې ته اوفرمائيل دا صفيه رضي الله عنها ته وركړه، نو هغي اووې ﴿أَنَا أُعْطِي تِلْكَ الْيَهُودِيَّةَ﴾ چه آيا زه خپله سورلۍ دې يهوديه ته وركړم (سيده صفيه رضي الله عنها د هارون عليه السلام په اولاد كښي وه) نو د دې په دې خبره باندي رسول الله صلى الله عليه وسلم غصه (ناراض) شو او تر د دوه نيمو مياشتو پوري ئي د هغې سره خبرې اونكړې، ذى الحجة، محرم او بعض حصه د صفر.

[1]: انظر حديث رقم: (٤١٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٧٢) (حسن)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٤٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/١٣٢، ٢٦١، ٣٣٨) (ضعيف)

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ الْجِدَالِ فِي الْقُرْآنِ

**باب: د قرآن په باره کښې د جګړې کولو ممانعت**

[۴۶۰۳]( ) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمِرَاءُ فِي الْقُرْآنِ كُفْرٌ".

**ترجمه**: د حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان دې چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل "په قرآن پاک جګړا کول کفر دې."

**شرح الحديث**:

د مراء معنی د شک هم راځي او د جنګ او جدال هم، که دلته اول معنی مراد وی نو بيا خو د هغه کفر کيدل ښکاره دی او که د مراء نه مراد نورې معنی يعنی جدال مراد دې نو بيا په دې کښې دوه احتماله دی يا د دې نه مراد د هغې تاويل او تفسير کښې جهګړه کول دی او يا په الفاظو او قراءات کښې په تاويل او معنی کښې اختلاف خو هم هغه دې کوم چه د اهل سنت او نورو فرقو ترمينځه دې لکه قدريه جبريه وغيره، او په قراءت کښې اختلاف مشهوردې د صحابه کرامو رضي الله عنهم ترمينځه هم شوې دې لکه عمر او عکيم بن هشام بن حکيم ترمينځه مشهوردې، په دې دواړو صورتونوکښې د کفر نه مراد به افضاء الى الکفر وی چه دا اختلاف مفضی الى الکفر کيدې شی خو دې جدال لره اختلاف فی الاحکام باندې محمول کول صحيح نه دی ځکه چه اختلاف فی الفروع خو د صحابه کرامو او علماء امت نه ثابت دې او په حديث کښې دې ته رحمت وئيلې شوې دې.

## بَابٌ فِي لُزُومِ السُّنَّةِ

**باب:۵- د سنت اتباع ضروری ده**

[۴۶۰۴]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرِو بْنُ كَثِيرِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ حَرِيزِ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَوْفٍ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "أَلَا إِنِّي أُوتِيتُ الْكِتَابَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ، أَلَا يُوشِكُ رَجُلٌ شَبْعَانُ عَلَى أَرِيكَتِهِ، يَقُولُ: عَلَيْكُمْ بِهَذَا الْقُرْآنِ فَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَلَالٍ فَأَحِلُّوهُ وَمَا وَجَدْتُمْ فِيهِ مِنْ حَرَامٍ فَحَرِّمُوهُ، أَلَا لَا يَحِلُّ لَكُمْ لَحْمُ الْحِمَارِ الْأَهْلِيِّ وَلَا كُلُّ ذِي نَابٍ مِنَ السَّبُعِ وَلَا لُقَطَةُ مُعَاهِدٍ، إِلَّا أَنْ يَسْتَغْنِيَ عَنْهَا صَاحِبُهَا، وَمَنْ نَزَلَ بِقَوْمٍ فَعَلَيْهِمْ أَنْ يَقْرُوهُ فَإِنْ لَمْ يَقْرُوهُ فَلَهُ أَنْ يُعْقِبَهُمْ بِمِثْلِ قِرَاهُ".

د حضرت مقدام بن معدی کرب رضي الله عنه نه روايت دې، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: "خبردار! ماله د قرآن پاک سره داسې يو بل څيز هم راکړې شوې دې - عنقريب به داسې وی چې يو موړ(آسوده حال) سړې به په خپل تحت يا په ديوان باندې کينی او وائی به چې هم دغه قرآن اختيار کړئ، کوم چې په دې کښې حلال دی هغه حلال اوګنړئ او کوم چې په دې کښې حرام دی هغه حرام اوګنړئ- خبردار! ستاسو د پاره د پالتو خر، د نيش داره ځناور او د کوم ذمی

---

[۱]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۱۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۲۴/۲، ۵۰۳) (حسن صحيح)

[۲]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۷۰)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/العلم ۱۰ (۲۶۶۴)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۲ (۱۲)، مسند احمد (۱۳۰/۴) (صحيح)

(کافر) پروت مال اوچتول حلال نه دي، مګر داچه دهغي مالک د هغي نه بي پرواه وي - او خوک چي د کوم قوم خواه له لاړ شي نو په هغوی باندي واجب دي چي د هغه میلمستیا دي اوکړي، که هغوی د هغه میلمستیا اونه کړي نو هغه ته دغه حق حاصل دي چي د خپلي میلمستیا مثل دي د هغوی نه په طاقت سره حاصل کړي.

قوله: قَالَ: "أَلَا إِنِّي أُوتِيتُ الْكِتَابَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ"[1]

یعنی په حدیث باندي عمل کول واجب او لازم دي. په حدیث الباب کښي دي چه رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه ځنګه ماته قرآن کریم راکړي شوي دي هم دغه شان د هغي مثل هم راکړي شوي دي چه د هغي نه مراد حدیث دي قرآن کریم وحی ظاهر او وحی متلو او حدیث وحی باطن او وحی غیر متلو په واجب العمل کیدو کښي دواړه برابر دي (وما ینطق عن الهوی ان هو الا وحی یوحی) وړاندي رسول الله ﷺ په طور د پیش ګویئ فرمائي چه نزدي ده چه یو سړي به پیدا شي چه په مړه ځیټه به په خپل پالنګ باندي ناست وي او دا به وائي چه صرف قرآن کریم لازم اونیسئ صرف هم د هغي حلال حلال ګڼرئ او حرام حرام. د دي نه پس رسول الله ﷺ په ﴿الا یحل﴾ سره د تمثیل په طور اوفرمائیل: چه حرمت د هغه څیزونو په قرآن کریم کښي ذکر نه دي بلکه د هغي حرمت ما بیان کړي دي. لکه خر (کورني) په خلاف د خمار وحشي (زیبرا) چه هغه حلال دي ﴿رجل شبعان﴾ یعنی آرام خوښونکي فارغ البال متکبرانه هیئت کښي په خپل تخت باندي به ناست وي او د حدیث انکار به کوي، په مشکوة شریف کښي د دي مضمون ډیر روایات مختصر او مفصل په باب الاعتصام بالکتاب والسنة کښي ذکر دي، او په "درمنضود" کښي په کتاب الخراج کښي په باب تعشیر اهل الذمه کښي تیر شوي دي، قاله المنذری واخرجه الترمذی وابن ماجه، (عون)

[٤٦١١] ([2]) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ أَبَا إِدْرِيسَ الْخَوْلَانِيَّ عَائِذَ اللَّهِ أَخْبَرَهُ، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ عُمَيْرَةَ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَخْبَرَهُ، قَالَ: "كَانَ لَا يَجْلِسُ مَجْلِسًا لِلذِّكْرِ حِينَ يَجْلِسُ، إِلَّا قَالَ: اللَّهُ حَكَمٌ قِسْطٌ هَلَكَ الْمُرْتَابُونَ، فَقَالَ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ يَوْمًا إِنَّ مِنْ وَرَائِكُمْ فِتَنًا يَكْثُرُ فِيهَا الْمَالُ وَيُفْتَحُ فِيهَا الْقُرْآنُ حَتَّى يَأْخُذَهُ الْمُؤْمِنُ وَالْمُنَافِقُ وَالرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ وَالصَّغِيرُ وَالْكَبِيرُ وَالْعَبْدُ وَالْحُرُّ، فَيُوشِكُ قَائِلٌ أَنْ يَقُولَ: مَا لِلنَّاسِ لَا يَتَّبِعُونِي وَقَدْ قَرَأْتُ الْقُرْآنَ مَا هُمْ بِمُتَّبِعِيَّ حَتَّى أَبْتَدِعَ لَهُمْ غَيْرَهُ، فَإِيَّاكُمْ وَمَا ابْتُدِعَ فَإِنَّ مَا ابْتُدِعَ ضَلَالَةٌ، وَأُحَذِّرُكُمْ زَيْغَةَ الْحَكِيمِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ يَقُولُ كَلِمَةَ الضَّلَالَةِ عَلَى لِسَانِ الْحَكِيمِ، وَقَدْ يَقُولُ الْمُنَافِقُ كَلِمَةَ الْحَقِّ، قَالَ: قُلْتُ لِمُعَاذٍ: مَا يُدْرِينِي رَحِمَكَ اللَّهُ؟ أَنَّ الْحَكِيمَ قَدْ يَقُولُ كَلِمَةَ الضَّلَالَةِ وَأَنَّ الْمُنَافِقَ قَدْ يَقُولُ كَلِمَةَ الْحَقِّ، قَالَ: بَلَى اجْتَنِبْ مِنْ كَلَامِ الْحَكِيمِ الْمُشْتَهِرَاتِ الَّتِي يُقَالُ لَهَا مَا هَذِهِ، وَلَا يُثْنِيَنَّكَ ذَلِكَ عَنْهُ فَإِنَّهُ لَعَلَّهُ أَنْ يُرَاجِعَ، وَتَلَقَّ الْحَقَّ إِذَا سَمِعْتَهُ فَإِنَّ عَلَى الْحَقِّ نُورًا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَعْمَرٌ: عَنِ الزُّهْرِيِّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: وَلَا يُنْئِيَنَّكَ ذَلِكَ عَنْهُ مَكَانَ يُثْنِيَنَّكَ، وَقَالَ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ: عَنِ الزُّهْرِيِّ فِي هَذَا: الْمُشَبِّهَاتِ مَكَانَ الْمُشْتَهِرَاتِ، وَقَالَ: لَا يُثْنِيَنَّكَ، كَمَا قَالَ عُقَيْلٌ، وَقَالَ ابْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: بَلَى مَا

[1] والمثلية اما في وجوب العمل او القدر والكمية، ففي رواية الا واني والله قد امرت ووعظت ونهيت عن اشياء انها بمثل القرآن او اكثر الحديث ١٢)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٦٩) (صحيح الإسناد)

تَشَابَهَ عَلَيْكَ مِنْ قَوْلِ الْحَكِيمِ حَتَّى تَقُولَ مَا أَرَادَ بِهَذِهِ الْكَلِمَةِ.

يزيد بن عميره د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه د ملګرو نه وو. هغوی اووئيل چې حضرت معاذ رضی الله عنه به چې کله هم د ذکر د پاره په مجلس کښې کيناستو نو د هغوی د ژبې نه به دغه الفاظ راختل : چې الله تعالیٰ ښه عادله او فيصله کوؤنکې دې، د شک کولو واله هلاک شو. حضرت معاذ رضی الله عنه يوه ورځ اووې : د ستاسو نه پس به ډيرې فتنې وی. مال به ډير زيات شی او قرآن پاک به کولاؤ (عام شی) شی حتیٰ چې مومن، منافق، سړی، ښځې، وړوکی، لوئ، غلام او آزاد ټول به دغه حاصل کړی او داسې به کيږی چې وئيونکې به وائی : په خلقو باندې څه اوشول زما په خبره باندې عمل نۀ کوی، حالانکه ما قرآن پاک اولوستلو؟ (هغه به وائی) دغه خلق به تر هغې زما پيروی نه کوی حتیٰ چې زۀ د دوی دپاره ددې نه علاوه څه نوې احتراع اوکړم. خوتاسو خپل ځانونه ددغې بدعت نه بچ اوساتئ، ددې بدعت، ضلالت او ګمراهی به وی. او زۀ تاسو د دانا سړی د ډغرې نه هم يرومه. شيطان کله کله د دانا سړی د خلې نه هم د ګمراهئ څه کلمه راوباسی او کله کله منافق هم د حق خبره اوکړی. (يزيد وائی) ما حضرت معاذ رضی الله عنه ته اووې : الله تعالیٰ دې په تا باندې رحم اوکړی ما ته به څنګه معلوميږی چې دانا سړی د ګمراهئ کلمه اووئيله او منافق د حق خبره اوکړله؟ وې وئيل چې او. دَ دانا (هوښيار) دداسې خبرو نه ځان بچ کول کومې چې مشهورې شی، د کومو په باب کښې چې وئيلې کيږی چې دا څه دی؟ خو دا خبره ستا د هغه نه دَ رځ د اړولو سبب چې اونه ګرځی، داسې هم کيدې شی چې هغه ددې سره رجوع اوکړی، او حق چې د چا نه هم اورئ قبلوئ ئې، بغير د څه شک نه حق پر نوره وی." امام ابو داؤد رحمه الله فرمائی چې معمر د زهری په واسطه په دغه روايت کښې د (يثنينک) په ځائ باندې (ولا ينثينک ذلک عنه) "دغه خبره تا ددې نه بې رُخ جوړ نه کړی." الفاظ روايت کړې دی. صالح بن کيسان د زهری نه روايت کوی دَ (مشتهرات) په ځائ ئې د (المتنبهات) لفظ روايت کړو او هم دغه رنګ ئې (لا يثنينک) لفظ روايت کړو څنګه چې عقيل روايت کړې دې. ابن اسحاق د زهری نه روايت کوی : او، دَ دانا چې کومه خبره ستا د پاره د شبهې باعث وی حتیٰ چې ته وئيل غواړې معلومه نۀ ده هغه د دې کلمې نه څه مراد اخستې دې؟

**قوله:**﴿أَنَّ يَزِيدَ بْنَ عُمَيْرَةَ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَخْبَرَهُ قَالَ كَانَ لاَ يَجْلِسُ مَجْلِسًا لِلذِّكْرِ حِينَ يَجْلِسُ إِلاَّ قَالَ اللَّهُ حَكَمٌ قِسْطٌ هَلَكَ الْمُرْتَابُونَ ﴾

## د سيدنا معاذ بن جبل رضی الله عنه د نصائحو تشريح :

يزيد بن عميره رحمه الله کوم چه د معاذ رضی الله عنه په شاګردانو کښې دې هغه فرمائی چه زمونږ استاد او مربی معاذ بن جبل رضی الله عنه چه به کله هم د وعظ او نصيحت مجلس قائمولو نو دا خبره به ئې د تصحيح عقائد دپاره ضرور فرمائيله چه صرف الله پاک حاکم دې او د حاکم کيدو سره سره عادل دې او د چا چه په دې کښې شک وی هغه به هلاک او برباد شی، هم دغه يزيد بن عميره فرمائی چه يوه ورځ معاذ رضی الله عنه په خپل مجلس کښې دا خبرې اوفرمائيلې کومې چه وړاندې راروانې دی چه په تاسو پسې راتلونکو ورځو کښې به فتنې اوچتيږی چه په هغې

کېږي به د مال او دولت ډېر زيات کثرت او فراخي وی او په هغه زمانه کښې به قرآن کريم مفتوح وی، يعنی د هغې د لوستلو سلسله به ښه عام وی، ترديې چه مومن منافق، سړي او ښځه، ماشومان او بوډاګان او غلام او آزاد ټول به ئې زده کوی (نو په زده کونکو کښې به بعض جاهل او ګمراهان داسې هم وی کوم چه به د قوم مشران جوړيدل غواړی) نو دا قسم خلق به وائی چه په عوامو باندې څه چل اوشو چه زما اتباع نه کوی حال دا چه زه د قرآن کريم قاری یم بیا به هغه په خپل زړه کښې سوچ اوکړی ﴿ما هم بمتبعي حتى ابتدع لهم غيره﴾ چه دا خلق زما اتباع کونکی نه دی يعنی په قران کريم کښ، ځکه چه قرآن کريم باندې خو دا خلق ښه پوهیږی او لوستلې ئې دي، ترڅو چه ما د دوی دپاره څه نوې څیز نه وی ایجاد کړې ځکه چه د نوی څیز طرف ته خلق میلان کوی، يعنی هغه به په خپل زړه کښې دا سوچ کوی چه د قران په پوهه کښې خو زه او دوی برابر یو په دې کښې خو د مساوات درجه شوه، او هغه ته مطلوب ده خپله سرداری لهذا چه زه څۀ نوې لاره راوباسم او هغه خلق خپل تابع او په ځان د مئين کولو دپاره چه سرداری راته حاصل شی، نو هغوی د دې خپلې نظريه د لاندې د خپل دکان د چلولو دپاره څۀ بدعت او نوې طريقه ايجاد کوی، د دې په باره کښې سیدنا معاذ رضی اللہ عنہ فرمائی ﴿فَإِيَّاكُمْ وَمَا ابْتُدِعَ فَإِنَّ مَا ابْتُدِعَ ضَلَالَةٌ﴾ چه زه تاسو د هغه سرې د بدعت نه ویروم، يعنی د هغه تابع نه شئ ځکه چه کوم بدعت هغه راوباسی هغه به سراسر بدعت او ګمراهی وی. ﴿وَأُحَذِّرُكُمْ زَيْغَةَ الْحَكِيمِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ يَقُولُ كَلِمَةَ الضَّلَالَةِ عَلَى لِسَانِ الْحَكِيمِ وَقَدْ يَقُولُ الْمُنَافِقُ كَلِمَةَ الْحَقِّ﴾ فرمائی چه زه تاسو د عالم د خطاء نه ویروم ځکه شيطان کله کله د ګمراهۍ کلمه او خپله خبره د حکيم د ژبې نه راوباسی، او د هغې بالمقابل کله منافق په خپله ژبه باندې کلمة الحق وائی، ﴿قَالَ قُلْتُ لِمُعَاذٍ مَا يُدْرِينِي رَحِمَكَ اللَّهُ أَنَّ الْحَكِيمَ قَدْ يَقُولُ كَلِمَةَ الضَّلَالَةِ وَأَنَّ الْمُنَافِقَ قَدْ يَقُولُ كَلِمَةَ الْحَقِّ﴾ په دې باندې شاګرد د معاذ رضی اللہ عنہ نه تپوس اوکړو چه تاسو چه اوس دا کومه کلمه ارشاد فرمائيلې ده چه عالم هم کله کله د ګمراهۍ خبره کوی او منافق کله کله د حق وائی نو مونږ به دا څنګه پيژنو، يعنی دا چه دا دې عالم د ګمراهۍ خبره ده او د منافق دا خبره حق ده نو په دې باندې هغوی اوفرمائيل: ﴿قَالَ بَلَى اجْتَنِبْ مِنْ كَلَامِ الْحَكِيمِ الْمُشْتَهِرَاتِ الَّتِي يُقَالُ لَهَا مَا هَذِهِ﴾ [1] نو هغوی اوفرمائيل او ستا تپوس صحيح دې زه درته د هغې علامت وايم چه د عالم کومه خبره د ګمراهۍ ده هغه دا چه که د هغه عالم د ژبې نه داسې خبره اوځی کومه چه د خلقو ترمينځه مشهوره شی او خلق دا خبره اوکړی چه روره دا څه خبره اوکړه دې عالم؟ په خلقو کښې دې باره کښې شهرت او خبرې شروع شو، د دې مثال زه دا ورکوم په سبق کښې چه لکه څه ورځې مخکښې دلته د حکومت د طرف نه په نسبندۍ باندې زور ورکړې شو کوم چه شرعا ناجائز دې د علماء کرامو ترمينځه هم دا مسئله اوچته شوه بعض د هغې منکر او خلاف وو خو د بعض علماء حقه په کلام کښې لږ راغلو په دې باره کښې کافی شور هغه وخت په

---

[1] وړاندې راځی چه بعض راویانو دا المشتبهات لوستلې دې يعنی مخدوش او مشتبه خبرې)

اوریدلو کښې راغلو چه فلانی علامه داسې اوئیل، وړاندې فرمائی: ﴿ وَلاَ يُنْبِئَنَّكَ ذٰلِكَ عَنْهُ ﴾ او یو راوی اووې ﴿ ولا ینثینک ﴾ اول د ثنی یثنی ثنیا نه دې چه د هغې معنی مائل کول او اړول دی او دویم باب د افعال نه انباء ینبئ انباء یعنی د لرې کولو نه دې چه د هغې مجرد په قرآن کریم کښې دې ﴿ ونا بجانبه ﴾ هغوی فرمائی چه که د یو عالم دین او عالم برحق نه څه خطاء اوشی او څۀ خبره د هغه د ژبې نه اوځی نو په دې لغزش کښې خو دې د هغه اتباع اونکړې شی خو بالکلیه دې د هغه نه اغراض هم اونکړې شی او مخ دې ترې نه نۀ اړوی، یعنی په نورو امور حقه کښې دې د هغه خبره اومنلې شی ﴿ فَإِنَّهُ لَعَلَّهُ أَنْ يُرَاجِعَ ﴾ ځکه چه کیدې شی یا امید دې چه هغه عالم د خپل لغزش نه رجوع اوکړی ﴿ وَتَلَقَّ الْحَقَّ إِذَا سَمِعْتَهُ فَإِنَّ عَلَى الْحَقِّ نُورًا ﴾ دا د هغې جواب دې چه د منافق کلمه حق به مونږ څنګه پیژنو، د جواب حاصل دا دې چه کومه خبره حق وی په هغې کښې نورانیت وی چه د هغې پته پخپله لګی غالبا حضرت شیخ په خپل تصنیف الاعتدال فی مراتب الرجال ......کښې هم د سیدنا معاذ رضي الله عنه د دې تقریر بعض جملې نقل فرمائیلې دی.

[٤٦١٢](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: كَتَبَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ يَسْأَلُهُ عَنِ الْقَدَرِ. ح وحَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمُؤَذِّنُ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَسَدُ بْنُ مُوسَى، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ دُلَيْلٍ، قَالَ: سَمِعْتُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيَّ يُحَدِّثُنَا، عَنِ النَّضْرِ. ح وحَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ قَبِيصَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ، عَنْ أَبِي الصَّلْتِ، وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِ ابْنِ كَثِيرٍ وَمَعْنَاهُمْ، قَالَ: كَتَبَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ يَسْأَلُهُ عَنِ الْقَدَرِ، فَكَتَبَ: "أَمَّا بَعْدُ أُوصِيكَ بِتَقْوَى اللَّهِ وَالِاقْتِصَادِ فِي أَمْرِهِ وَاتِّبَاعِ سُنَّةِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَتَرْكِ مَا أَحْدَثَ الْمُحْدِثُونَ بَعْدَ مَا جَرَتْ بِهِ سُنَّتُهُ وَكُفُوا مُؤْنَتَهُ، فَعَلَيْكَ بِلُزُومِ السُّنَّةِ فَإِنَّهَا لَكَ بِإِذْنِ اللَّهِ عِصْمَةٌ، ثُمَّ اعْلَمْ أَنَّهُ لَمْ يَبْتَدِعِ النَّاسُ بِدْعَةً إِلَّا قَدْ مَضَى قَبْلَهَا مَا هُوَ دَلِيلٌ عَلَيْهَا أَوْ عِبْرَةٌ فِيهَا، فَإِنَّ السُّنَّةَ إِنَّمَا سَنَّهَا مَنْ قَدْ عَلِمَ مَا فِي خِلَافِهَا، وَلَمْ يَقُلِ ابْنُ كَثِيرٍ: مَنْ قَدْ عَلِمَ مِنَ الْخَطَإِ وَالزَّلَلِ وَالْحُمْقِ وَالتَّعَمُّقِ فَارْضَ لِنَفْسِكَ مَا رَضِيَ بِهِ الْقَوْمُ لِأَنْفُسِهِمْ، فَإِنَّهُمْ عَلَى عِلْمٍ وَقَفُوا وَبِبَصَرٍ نَافِذٍ كَفُّوا وَهُمْ عَلَى كَشْفِ الْأُمُورِ كَانُوا أَقْوَى وَبِفَضْلِ مَا كَانُوا فِيهِ أَوْلَى، فَإِنْ كَانَ الْهُدَى مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ لَقَدْ سَبَقْتُمُوهُمْ إِلَيْهِ وَلَئِنْ قُلْتُمْ إِنَّمَا حَدَثَ بَعْدَهُمْ مَا أَحْدَثَهُ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَ غَيْرَ سَبِيلِهِمْ، وَرَغِبَ بِنَفْسِهِ عَنْهُمْ فَإِنَّهُمْ هُمُ السَّابِقُونَ فَقَدْ تَكَلَّمُوا فِيهِ بِمَا يَكْفِي وَوَصَفُوا مِنْهُ مَا يَشْفِي، فَمَا دُونَهُمْ مِنْ مَقْصَرٍ وَمَا فَوْقَهُمْ مِنْ مَحْسَرٍ وَقَدْ قَصَّرَ قَوْمٌ دُونَهُمْ فَجَفَوْا، وَطَمَحَ عَنْهُمْ أَقْوَامٌ فَغَلَوْا وَإِنَّهُمْ بَيْنَ ذَلِكَ لَعَلَى هُدًى مُسْتَقِيمٍ، كَتَبْتَ تَسْأَلُ عَنِ الْإِقْرَارِ بِالْقَدَرِ فَعَلَى الْخَبِيرِ بِإِذْنِ اللَّهِ، وَقَعْتَ مَا أَعْلَمُ مَا أَحْدَثَ النَّاسُ مِنْ مُحْدَثَةٍ وَلَا ابْتَدَعُوا مِنْ بِدْعَةٍ هِيَ أَبْيَنُ أَثَرًا وَلَا أَثْبَتُ أَمْرًا مِنَ الْإِقْرَارِ بِالْقَدَرِ، لَقَدْ كَانَ ذَكَرَهُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ الْجُهَلَاءُ يَتَكَلَّمُونَ بِهِ فِي كَلَامِهِمْ وَفِي شِعْرِهِمْ يُعَزُّونَ بِهِ أَنْفُسَهُمْ عَلَى مَا فَاتَهُمْ ثُمَّ لَمْ يَزِدْهُ الْإِسْلَامُ بَعْدُ إِلَّا شِدَّةً، وَلَقَدْ ذَكَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَيْرِ حَدِيثٍ وَلَا حَدِيثَيْنِ، وَقَدْ سَمِعَهُ مِنْهُ الْمُسْلِمُونَ، فَتَكَلَّمُوا بِهِ فِي حَيَاتِهِ وَبَعْدَ وَفَاتِهِ يَقِينًا وَتَسْلِيمًا لِرَبِّهِمْ وَتَضْعِيفًا لِأَنْفُسِهِمْ أَنْ يَكُونَ شَيْءٌ لَمْ يُحِطْ بِهِ عِلْمُهُ وَلَمْ يُحْصِهِ كِتَابُهُ وَلَمْ يَمْضِ فِيهِ قَدَرُهُ، وَإِنَّهُ مَعَ ذَلِكَ لَفِي مُحْكَمِ كِتَابِهِ مِنْهُ اقْتَبَسُوهُ وَمِنْهُ تَعَلَّمُوهُ، وَلَئِنْ قُلْتُمْ لِمَ أَنْزَلَ اللَّهُ آيَةَ كَذَا؟ لِمَ قَالَ كَذَا؟ لَقَدْ قَرَءُوا مِنْهُ مَا قَرَأْتُمْ وَعَلِمُوا مِنْ تَأْوِيلِهِ مَا جَهِلْتُمْ، وَقَالُوا بَعْدَ ذَلِكَ كُلِّهِ بِكِتَابٍ وَقَدَرٍ وَكُتِبَتِ الشَّقَاوَةُ وَمَا يُقْدَرْ يَكُنْ وَمَا شَاءَ اللَّهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ يَكُنْ، وَلَا نَمْلِكُ لِأَنْفُسِنَا ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ثُمَّ رَغِبُوا بَعْدَ ذَلِكَ وَرَهِبُوا".

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩١٤٥) (صحيح)

ابو رجاء د ابو صلت نه روايت کړې دې چې يو سړي حضرت عمر بن عبدالعزيز ته خط اوليکلو- په کوم کښې چې هغه د خپل د تقدير د مسئلې تپوس اوکړو،نو هغوی ورته په جواب کښې اوليکل، د حمد او صلواه نه پس،زۀ تا تۀ وصيت کومه چې د الله تعالیٰ تقویٰ اختيار کړه او د الله په امر کښې د اعتدال نه کار واخله - د الله تعالیٰ د نبي ﷺ د سنتو اتباع اوکړه او د بدعتيانو د بدعاتو نه لرې اوسه بالخصوص چې کله په امر دين کښې د هغوی ﷺ سنت جاري شول او په هغې کښې د خلقو ضرورتونه پوره شول،سنت لازمي اونيسه يقيناً هم دغه شي باذن الله ستا د پاره د گمراهۍ نه د بچ کيدلو سبب به وي - ياد اوساته! خلقو چې څه رنگ بدعات راوخکلي دی،د دوی نه مخکښې هغه رهنمائي راغلې ده کومه چې د دی بدعاتو خلاف دليل دې - يا په دې کښې څه نه څه عبرت دې - بغير د څه شک نه سنت هغه مقدس ذات عطا فرمائيلي دي چې چاته علم وو چې ددې په مخالفت کښې څه . . .راوی محمد بن کثير د (من قد علم) الفاظ نه دی روايت کړی- خطا ،تيندک وهل او حماقت او (د هلاکت)خوړل دی لهٰذا خپل ځان په هغه څيز باندې راضي او مطمئن ساته په کوم باندې چې قوم (صحابه) راضي وو ، بې شکه هغه خلق د علم نه خبردار وو - (د کومو خبرو نه چې هغوی منع کړې شوی وو) د لرې کتلو په وجه ئې منع کړې وو او د هغه حقائقو په آگاهۍ باندې (د کوم نه چې ته بزعم خويش آگاه شوې ئې) هغه خلق ډير قادر وو او د خپل فضائل په وجه ددې زيات حقدار وو - که چرې حق او هدايت هم دغه وی کوم چې ته گنړې نو تا گويا د هغوی نه سبقت يوړلو - که چرې تۀ اووائې چې دغه امور د هغو(صحابه) نه پس نوی ايجاد شوی دی نو ددې ايجاد کوونکی د هغو (صحابه) په لاره نه دی- بلکې د هغوی اعراض کوونکی دی - بغير د څه شک و شبهې نه هم هغه صحابه (په حق او نيکۍ کښې) سبقت اوړلو واله دی - هغوی چې په هغه امورو کښې کومه خبره کړې ده هم هغه کافي ده- کومه چې ئې بيان کړې ده هم په هغې کښې شفا ده - ددې دپاره د هغوی نه په کم تره باندې اودريدل کوتاهي (تفريط) ده او دهغوی تجاوز کول توضيع کول (زياتي يا ستوماني) (افراط) دي- (د هغوی د طرز عمل نه کمې کول جائز دی نه د هغې نه زياتي کول جائز دی)چا چې کمې اوکړو نو هغوی ظلم اوکړو هغوی غلو اوکړه - او هغه (صحابه) د هغوی بين بين (په اصل) هدايت او صحيح لاره باندې وو-تا د تقدير د اقرار متعلق ليکلې دی او تپوس دې کړې دې نو د الله په فضل سره تا د يو صاحب علم نه تپوس کړې دې - زۀ نۀ پوهيږم چې خلقو څومره هم نوی خبری جوړی کړې دی او څومره هم بدعات ئې راپيدا کړې دی په هغې کښې د تقدير د مسئلې لويه بله کومه مسئله واضح او د دلائلو په رو سره قوي وی،ددې ذکر خوپه ډير زيات زوړ وخت کښې د جاهليت په ورځو کښې هم کيدلو ، کوم څيز چې به دوی نۀ شو حاصلولې،د تقدير ذکر به ئې اوکړلو او تسلی به ئې پرې باندې اوکړله - بيا اسلام ددوی نه پس د تقدير عقيده نوره هم واضحه او مستحکمه کړه - رسول الله ﷺ په يو دوؤ کښې نه بل کښې په لاتعداده احاديثو کښې ددې ذکر کړې دې - مسلمانانو د هغوی نه واوريدل او د هغوی په ژوند کښې او د هغوی نه پس ئې هم په دغه باب کښې گفتگو اوکړه په کوم کښې چې د الله رب العزت په وړاندې ئې تسليم او رضا او د خپلې عاجزی اعتراف

ئي اوکړو چې هیڅ څه شي داسې نه دي په کوم باندې چې د الله تعالیٰ علم محیط نه وي ،یا د تقدیر په کتاب کښې ددې شمیر نه وي یا په دې کښې د هغې په تقدیر باندې نۀ وي جاري شوې - ورسره دغه خبره هم د هغه په محکم کتاب (قرآن حکیم) کښې هم ده - صحابه کرامو دغه مسئله هم ددې نه اخذ کړې وه او د هم دلته نه هغوی خبرداره شوی وو- که چرې تا اووې چې الله تعالیٰ فلانکې آیت ولې نازل کړې وو او دغه رنګ ئي ولې وئیلې وو؟ نو (لږسوچ اوکړه چې)هغوی (یعنی صحابه) هم دغه آیات لوستلې وو کوم چې تا لوستلی دي- البته هغه ددې تفسیر او تاویل بیا موندو د کوم نه چې ته جاهل پاتې شولې - ددې نه پس د هغوی قول دادې چې دا ټول د الله د طرفنه لیکل شوې دي او د دې تقدیر نه شقاوت او بدبختي هم لیکل شوې ده - کوم چې مقدر دي،هغه اوشي- الله تعالیٰ چې څه هم غواړي هغه کیږي او څه چې نه غواړي نو هغه نۀ کیږي - مونږ د خپل نفع نقصان مالکان نۀ یو- بیا (هم په دغه اصل باندې) هغوی د الله تعالیٰ طرفته راغب وو او د هم هغه نه یریدل-

**قوله:**﴿ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ عَنْ أَبِي الصَّلْتِ قَالَ كَتَبَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ يَسْأَلُهُ ﴾

## د عمر بن العزیز د یو کران او دقیق خط تشریح :

دا مصنفرحمه الله د عمر بن عبدالعزیز یو مکتوب ګرامی نقل کړې دې کوم چه عقیده تقدیر سره متعلق دې، د هغوی په زمانه کښې به د فرقه قدریه زور وو چا چه به د قدریه انکار کولو نو ګویا د هغه وخت د فضاء او ماحول د وجې نه هغوی د یو سړی په جواب کښې خپل دا خط اولیکلو : ﴿ أَمَّا بَعْدُ أُوصِيكَ بِتَقْوَى اللَّهِ وَالاِقْتِصَادِ فِي أَمْرِهِ وَاتِّبَاعِ سُنَّةِ نَبِيِّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَتَرْكِ مَا أَحْدَثَ الْمُحْدِثُونَ بَعْدَ مَا جَرَتْ بِهِ سُنَّتُهُ وَكُفُوا مُؤْنَتَهُ ﴾ پس د حمد و صلوۃ نه زه تاته وصیت کوم د تقوی د اختیارولو او د الله پاک په اوامرو کښې د اعتدال او د میانه روئ او د رسول اللهﷺ د سنت د اتباع، او مبتدعینو چه کوم بدعات جاري کړی دي د هغې د ترک کولو (دا بدعات هغه خلقو کله جاري کړل) پس د هغې نه چه د رسول اللهﷺ سنت جاري شوې دې او د الله پاک د طرف نه خلق د دې احداث فی الدین د مشقت کفایت کړې شوې دې، یعنی د رسول اللهﷺ د سنتو د مخامخ راتلو نه پس کوم چه په هر لائن او شعبه کښې موندلې شي، د دې احداث بدعات د مشقت برداشت کولو څه ضرورت باقي پاتې شو، چه کله د سنیت یو صفا او واضحه طریقه مخې ته راغله.په دې احداث سره زیاته اشاره د تقدیر انکار ته ده کومه چه یو لویه فتنه ده هم د دې فتنې د ختمولو فکر هغوی سره وو لکه چه د دې خط نه معلومیږي ﴿ فَعَلَيْكَ بِلُزُومِ السُّنَّةِ فَإِنَّهَا لَكَ بِإِذْنِ اللَّهِ عِصْمَةٌ ﴾ یعنی. هرکله چه دا خبره ده کومه چه مونږ پورته لیکلې ده نو تاله پکار دي چه د سنت طریقه اختیار کړې، یعنی د تقدیر وغیره په باره کښې چه څه د احادیثو نه ثابت دي، ځکه چه دا سنت اختیار کول به ستا دپاره د الله پاک په اذن د عصمت او سلامتئ ذریعه وي ﴿ ثُمَّ اعْلَمْ أَنَّهُ لَمْ يَبْتَدِعِ النَّاسُ بِدْعَةً إِلاَّ قَدْ مَضَى قَبْلَهَا مَا هُوَ دَلِيلٌ عَلَيْهَا أَوْ عِبْرَةٌ فِيهَا ﴾ فرمائی : ځان پوهه کړه چه دا ګمراهان خلق د خپل طرف نه چه کوم بدعت راوباسي د هغه بدعت دا حال دې چه د هغه بدعت خلاف یعنی دهغې په بطلان باندې په تیره زمانه کښې د دې نه مخکښې د

رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ﷺ په زمانه کښې دليل قائم شوې دې ﴿او عبرة فيها﴾ د دې مطلب خو دا دې چه په زمانه ما مضى کښې په بطلان بدعات باندې عبرت موندلې شي يا مطلب دا دې چه خپله په بدعاتو کښې عبرت موندلې شي د دې خبرې چه د هغې نه اجتناب اوکړې شي ﴿فَإِنَّ السُّنَّةَ إِنَّمَا سَنَّهَا مَنْ قَدْ عَلِمَ مَا فِي خِلَافِهَا مِنَ الْخَطَإِ وَالزَّلَلِ وَالْحُمْقِ وَالتَّعَمُّقِ﴾ ځکه چه سنت جارې کونکې داسې عظيم او باخبر سړې دې چه پوهيږې چه په دې خلاف سنت طريقه کښې څه خطاء او لغزش دې او څه کم عقلتوب او خراب خوئې دې د دې سړې نه مراد د رسول الله ﷺ ذات گرامى دې، د سنت خلاف طريقو کښې چه کومې خرابيانې وې هغه رسول الله ﷺ ته ښه معلومې وې. ﴿فَارْضَ لِنَفْسِكَ مَا رَضِيَ بِهِ الْقَوْمُ لأَنْفُسِهِمْ﴾ د خپل ځان دپاره ته هم هغه څيز غوره کړه کوم چه سلف صالحين د خپل ځان دپاره خوښ کړو يعنى هم هغه اقرار بالقدر، قضا او قدر تسليمول او حق گڼړل ﴿فَإِنَّهُمْ عَلَى عِلْمٍ وَقَفُوا وَبِبَصَرٍ نَافِذٍ كَفُّوا﴾ ځکه چه هغه سلف صالحين د علوم نه واقف وو ځکه چه هغوى د مشکاة النبوة نه علم حاصل کړې وو او هغه حضراتو په خپل بَصيرت کامله سره د هغه څيز نه منع کړې ده، يعنى د قدريه د عقيدې نه، ﴿وَلَهُمْ عَلَى كَشْفِ الأُمُورِ كَانُوا أَقْوَى﴾ دا"لهم" ضمير مجرور نه دې بلکه لام مفتوح دې دپاره د تاکيد، يعنى بيشکه دا حضرات سلف صالحين د امور دين په تحقيق او تشريح کښې ډير مضبوط وو. ﴿وَبِفَضْلٍ مَا كَانُوا فِيهِ أَوْلَى﴾ او دې حضراتو چه کوم علوم او بصيرت په خپل ځان کښې درلودل د هغې په وجه باندې واقعى د هغې د کشف او تحقيق زيات اهل وو ﴿فَإِنْ كَانَ الْهُدَى مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ لَقَدْ سَبَقْتُمُوهُمْ إِلَيْهِ﴾ فرمائى چه که د هدايت خبره هغه وى په کومه باندې چه ته ئې يعنى په ځائې د اثبات تقدير انکار تقدير کول نو د دې مطلب به دا وى چه دې باره کښې ته د سلف صالحين نه (په علم) کښې مخکښې شوې او گويا هغوى ستا نه روستو پاتې شو، حاشا وکلا روستو خلق د مخکښې نه چرته مخکښې کيدې شى ﴿والسابقون السابقون اولئک المقربون﴾

﴿وَلَئِنْ قُلْتُمْ إِنَّمَا حَدَثَ بَعْدَهُمْ مَا أَحْدَثَهُ إِلاَّ مَنِ اتَّبَعَ غَيْرَ سَبِيلِهِمْ وَرَغِبَ بِنَفْسِهِ عَنْهُمْ﴾ ددې حاصل دا دې چه که يو سړې د دې مبتدعين د طرف نه دا عذر پيش کړى چه هغوى کوم بدعت جارى کړې دې هغه ئې د دې وجې نه کړې دې چه د هغوى لاره جدا ده د سلف صالحين والا لاره نه ده نو د دې مهمل اعتذار [1] ورانده جواب ورکوى ﴿فَإِنَّهُمْ هُمُ السَّابِقُونَ فَقَدْ تَكَلَّمُوا فِيهِ بِمَا يَكْفِي وَوَصَفُوا مِنْهُ مَا يَشْفِي﴾ يعنى لاره بدلول صحيح چرته دى ځکه چه د خير طرف ته مخکښې کيدونکى خو هم دغه حضرات دى يعنى سلف صالحين، پس ښکاره ده چه هم د هغوى لاره به برابر وى د روستو خلقو لاره څنگه برابر کيدې شى، دا اعتذار د هم دې قسم وو ﴿لكم دينكم ولى دين﴾ ورانده فرمائى چه دې سلف صالحين په

[1] ) زمونږ يو خپلوان دې او گاونډى هم دې مونږ سره مينه هم ساتى، تعليم د هغوى د سکول دې او د انگريزۍ د کور ماحول او لباس په ميز کرسۍ وغيره باندې خوراک کول وغيره، يو ځل ما د هغوى په دې څيزونو باندې اعتراض اوکړو چه مونږ خو دا څيزونه نه خوښوو، هغه اووې چه واقعى ستاسو دې دا څيزونه ناخوښه وى، خو زمونږ لاڅن جدا دې)

مسئله د تقدير كښې دومره څه وئيلې دي او بيان كړې دي چه كافي او شافي دي ﴿ فَمَا دُونَهُمْ مِنْ مَقْصَرٍ وَمَا فَوْقَهُمْ مِنْ مَحْسَرٍ ﴾ يعنى د تقدير په باره كښې چه څومره وضاحت سلف صالحين كړې دې اوس د هغې نه نۀ خو د روستو كيدو ګنجائش شته او نه د هغې نه د مخكښې كيدو، يعنى د تقدير مسئله ډيره نازكه ده سلف صالحين چه د دې په باره كښې څومره بحث او تمحيص كړې دې نه د هغې نه روستو كيدل پكار دى نه مخكښې كيدل پكار دى، يعنى د تقدير په مسئله كښې كه نور بحث اوكړې شى نو په هغې كښې د ګمراه كيدو ويره ده، د مقصر او محسر دواړو په باره كښې ليكلې دى چه يا خو مصدر ميمى دې يا ظرف مكان، د مقصر معنى د منع كولو ځائې او د حسر معنى كشف، نو د محسر معنى د كشف ده يا د كشف ځائې ﴿ وَقَدْ قَصَّرَ قَوْمٌ دُونَهُمْ فَجَفَوْا وَطَمَحَ عَنْهُمْ أَقْوَامٌ فَغَلَوْا ﴾ يعنى بعض چه په كوم حد باندې تلو سره سلف صالحين اودريدلې وو هغوى خپل ځان د هغې نه ولې منع نه كړو او تقصير ئې اوكړو نو هغوى په خپل ځائې باندې قائم پاتې نه شو يعنى لاندې اوغورځيدل، او بعض خلق د سلف صالحين د حد نه وړاندې لاړل نو هغوى د حد نه تير شو، يعنى په كشف كښ، په اول جمله كښې د تفريط ذكر دې، په دويمه جمله كښې د افراط ذكر دې ﴿ وَإِنَّهُمْ بَيْنَ ذَلِكَ لَعَلَى هُدًى مُسْتَقِيمٍ ﴾ او بيشكه دا حضرات سلف صالحين د دې افراط او تفريط ترمينځه په صراط مستقيم باندې وو ﴿ كَتَبْتَ تَسْأَلُ عَنِ الإِقْرَارِ بِالْقَدَرِ ﴾ تا د مسئله تقدير په باره كښې تپوس اوكړو چه هغه يو واقعى څيز دې يا نه؟ ﴿ فَعَلَى الْخَبِيرِ بِإِذْنِ اللَّهِ وَقَعْتَ ﴾ پس ته د الله پاک په ارادې سره باخبر سړى ته راغلې يعنى د يو خبر سړى نه تا تپوس اوكړو د چا نه چه كول پكار دى ﴿ مَا أَعْلَمُ مَا أَحْدَثَ النَّاسُ مِنْ مُحْدَثَةٍ وَلاَ ابْتَدَعُوا مِنْ بِدْعَةٍ هِيَ أَبْيَنُ أَثَرًا وَلاَ أَثْبَتُ أَمْرًا مِنَ الإِقْرَارِ بِالْقَدَرِ ﴾ زه نه پوهيږم چه كوم خلق دا نوې نوې خبرې كوى او بدعات ايجاد كوى هغه زيات ثابت او قوى دى د اقرار بالقدر نه، يعنى د اقرار بالقدر نه زيات يو څيز هم صحيح او ثابت نشته، په دې كلام كښې اقرار بالقدر هم په بدعاتو كښې شمار كړې شوې دې د نصب ادله په اعتبار سره، ځكه چه متكلمينو چه په دې باندې كوم دلائل قائم كړى دى هغه روستنى دى. (بذل) وړاندې د هم دې اقرار بالقدر ثبوت پيش كوى ﴿ لَقَدْ كَانَ ذَكَرَهُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ الْجُهَلاَءُ يَتَكَلَّمُونَ بِهِ فِي كَلاَمِهِمْ وَفِي شِعْرِهِمْ يُعَزُّونَ بِهِ أَنْفُسَهُمْ عَلَى مَا فَاتَهُمْ ﴾ يعنى د تقدير ذكر او د هغې ثبوت په زمانه د جاهليت كښې وو د هم هغه وخت نه راروان دې هغه خلقو به د دې ذكر كولو په خپل كلام منثور كښې هم او منظوم كښې هم او هم د دې تقدير په ذريعه ئې په خپل فوت شوى څيز باندې خپل تعزيت كولو او خپل ځان به ئې صبر وركولو، يعنى د يو څيز په فوت كيدو باندې به ئې خپل ځان نه دومره تسلى وركوله چه هم دغه شان به په تقدير كښې وه، ﴿ ثُمَّ لَمْ يَزِدْهُ الإِسْلاَمُ بَعْدُ إِلاَّ شِدَّةً ﴾ او بيا چه اسلام راغلو نو هغه دا مسئله د مخكښې نه هم زياته مضبوطه كړه. ﴿ وَلَقَدْ ذَكَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي غَيْرِ حَدِيثٍ وَلاَ حَدِيثَيْنِ ﴾ يعنى رسول الله ﷺ د تقدير ذكر صرف په يو دوه احاديثو كښ نه دې كړې بلكه په بې شميره احاديثو كښې ئې

هغه ذکر فرمائیلې دې ﴿ وَقَدْ سَمِعَهُ مِنْهُ الْمُسْلِمُونَ فَتَكَلَّمُوا بِهِ فِي حَيَاتِهِ وَبَعْدَ وَفَاتِهِ ﴾ او عام مسلمان هم رسول الله ﷺ نه د دې ذکر اوریدلو سره په خپلو کلامونو کښې هغه راوړلو د رسول الله ﷺ په حيات کښې هم او د هغوی د وفات نه پس هم، د دې نه پس په وړاندې جملو کښې د تقدير حقيقت طرف ته اشاره ده ﴿يَقِينًا وَتَسْلِيمًا لِرَبِّهِمْ وَتَضْعِيفًا لأَنْفُسِهِمْ أَنْ يَكُونَ شَيْءٌ لَمْ يُحِطْ بِهِ عِلْمُهُ وَلَمْ يُحْصِهِ كِتَابُهُ وَلَمْ يَمْضِ فِيهِ قَدَرُهُ ﴾ تقدير لره د الله پاک صفت په يقين سره تسليم کولو سره او د خپلې رائې تضعيف او ترديد کولو سره چه يو څيز داسې هم کيدې شي چه هغه دې د الله پاک د علمي احاطې نه بهر وی يا لوح محفوظ د هغې احصاء نه وی کړې او الله پاک د هغې په باره کښې څۀ فيصله نه وی کړې، ﴿ وَإِنَّهُ مَعَ ذَلِكَ لَفِي مُحْكَمِ كِتَابِهِ مِنْهُ اقْتَبَسُوهُ وَمِنْهُ تَعَلَّمُوهُ﴾ او يقينا دا تقدير د دې ټولو سره د الله پاک په کتاب عزيز کښې دې يعنی د شعراء جاهليت په کلامونو کښې او په احاديثو کښې د کيدو نه علاوه په قرآن کريم کښې هم د دې ذکر دې او هم د دې قرآن کريم نه دا علماء کرامو زده کړې او اخذ کړې دې. ﴿ وَلَئِنْ قُلْتُمْ لِمَ أَنْزَلَ اللَّهُ آيَةَ كَذَا وَلِمَ قَالَ كَذَا ﴾ اوس د دې ځائې نه د بعض منکرين تقدير د شکوک او شبهاتو ازاله کوی ځکه چه د بعض آيتونو د مضمون نه او بعض تعبيراتو نه وسوسه راځی او شبهه پيدا کيږی د نفی تقدير (خو د دې قسم آيتونه هغوی دلته په خپل کلام کښې ذکر نه کړل صرف د هغې جواب ئې ورکړو پس فرمائی) ﴿لَقَدْ قَرَءُوا مِنْهُ مَا قَرَأْتُمْ وَعَلِمُوا مِنْ تَأْوِيلِهِ مَا جَهِلْتُمْ وَقَالُوا بَعْدَ ذَلِكَ كُلِّهِ بِكِتَابٍ وَقَدَرٍ وَكُتِبَتِ الشَّقَاوَةُ وَمَا يُقْدَّرْ يَكُنْ وَمَا شَاءَ اللَّهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ يَكُنْ ﴾ چه کوم سلف صالحين هم دا آيتونه لوستلې وو او هغوی هم دا تفسير فهم کړې وو کوم چه تا فهم نه کړې شو، دا حضرات خو د دې آيتونو د لوستلو باوجود د قضاء او قدر قائل شوې وو، او د انسان شقاوت، يعنی او سعادت. دواړه مقرر شوی دی په تقدير کښې ليکلې شوې دی او کوم څيز چه د تقدير نه لاندې وی هغه ضرور کيږی، پس څه چه الله پاک اوغوښتل هم هغه اوشو او څه چه نه غواړی هغه نه کيږی، ګويا د ټول عالم وجود د تقدير مطابق دې مونږ خلق نه د خپل نقصان مالکان يو او نه د نفع، يعنی زمونږ نفع او نقصان زمونږ په اختيار کښې نه دې، ﴿ رَغِبُوا بَعْدَ ذَلِكَ وَرَهِبُوا ﴾ يعنی قائلين قدر د عقيده تقدير نه دا اثر نه دې اخستلې چه په تقدير باندې اعتماد کولو سره کينی، د خوف او رغبت نه لاس وينځی بلکه خائف هم اوسيږی د الله پاک د عذاب نه او راغب هم د هغه په ثواب کښ. فقط الحمد لله خط پوره شو سره د شرح

[٤٦١٣]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، قَالَ: حَدَّثَنَا سَعِيدٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو صَخْرٍ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: كَانَ لِابْنِ عُمَرَ صَدِيقٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ يُكَاتِبُهُ فَكَتَبَ إِلَيْهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ: إِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّكَ تَكَلَّمْتَ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقَدَرِ، فَإِيَّاكَ أَنْ تَكْتُبَ إِلَيَّ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي أَقْوَامٌ يُكَذِّبُونَ بِالْقَدَرِ".

[١]: تفرد بهذا المتن أبوداود، وقد أخرجه: سنن الترمذي/القدر ١٦ (٢١٥٢)، سنن ابن ماجه/الفتن ٢٩ (٤٠٦١)، بسياق نحوه ولفظه: "في هذه الأمة خسف ومسخ أو قذف في أهل القدر" (تحفة الأشراف: ٧٦٥١)، ومسند احمد (٢/١٠٨، ١٣٦) (حسن)

حضرت نافع بیان کوی چې په شام کښې د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما یو دوست وو، د چا چې به د هغه سره خط او کتاب کیدلو - حضرت عبد الله رضي الله عنه هغه ته اولیکل: ما ته دغه خبر را رسیدلې دې چې تا د تقدیر باره کښې څه خبرې کړې دی - (ته تقدیر نهٔ منې) ددې دپاره آئنده ماته خط مهٔ لیکه - بې شکه ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دی، هغوی به فرمائیل: "په تحقیق سره زما په امت کښې به داسې خلق پیدا کیږی کوم چې به تقدیر نهٔ منی- (عمل بهٔ پرې نهٔ کوی)

[٤٦١٤]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، قَالَ: "قُلْتُ لِلْحَسَنِ: يَا أَبَا سَعِيدٍ أَخْبِرْنِي عَنْ آدَمَ أَلِلسَّمَاءِ خُلِقَ أَمْ لِلْأَرْضِ؟ قَالَ: لَا بَلْ لِلْأَرْضِ، قُلْتُ: أَرَأَيْتَ لَوِ اعْتَصَمَ فَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الشَّجَرَةِ، قَالَ: لَمْ يَكُنْ لَهُ مِنْهُ بُدٌّ، قُلْتُ: أَخْبِرْنِي عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى: مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ ١٦٢ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ ١٦٣ سورة الصافات آية ١٦٢-١٦٣، قَالَ: إِنَّ الشَّيَاطِينَ لَا يَفْتِنُونَ بِضَلَالَتِهِمْ إِلَّا مَنْ أَوْجَبَ اللهُ عَلَيْهِ الْجَحِيمَ".

حضرت خالد الحذاء رحمه الله وائي چې ما حضرت حسن بصری رحمه الله ته اوویل: ابو سعید! ماته اووايه چې حضرت آدم علیه السلام د آسمان د پاره پیدا کړې شوې وو یا د زمکې دپاره؟ هغوی اوویل: د زمکې د پاره - ما اوویل: څه خیال دې دې که چرې هغه د گناه نه بچ شوې وو او د ونې نه ئې نهٔ خوړلې نو...؟ وې وئیل: دا د هغه د پاره ممکن هم نه وو (ولې چې هم دغه مقدر وو.) ما اوویل د الله تعالیٰ د دغه فرمان څه مفهوم دې: (کوم چې د جناتو او د شیاطین په حقله دې) (مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ، إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ)" تهٔ هیڅوک د الله د طرف نه نهٔ شی راړولې او نه شی دهوکه کولې، خو هم هغه کوم چې په جهنم کښې پریوتونکې وو -" وې وئیل چې شیاطین د خپلې گمراهئ سره صرف هم هغه گمراه کوی په کومو چې الله تعالیٰ په جهنم کښې پریوتل واجب کړې وی۔

**قوله:** ﴿ عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ لِابْنِ عُمَرَ صَدِيقٌ مِنْ أَهْلِ الشَّامِ يُكَاتِبُهُ فَكَتَبَ إِلَيْهِ .... رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « إِنَّهُ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي أَقْوَامٌ يُكَذِّبُونَ بِالْقَدَرِ » ﴾

نافع رحمه الله فرمائی چه د ابن عمر رضي الله عنهما یو دوست وو د اهل شام نه چا چه به هغوی سره خط وکتابت ساتلو یوه ورځ هغوی د هغه طرف ته دا اولیکل چه ماته دا خبره رارسیدلې ده چه ته د تقدیر په باره کښې داسې خبرې اترې کوې او شک او شبهه کوې، لهذا واوره چه بیا دپاره ماته د لیکلو نه پرهیز کوه، یعنی زه ستا نه ترک تعلق اختیاروم، ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې وو هغوی به فرمائیل چه زما په امت کښې به څه خلق داسې پیدا شی چه تقدیر به دروغژن گڼړی.

**قوله:** ﴿ عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ قَالَ قُلْتُ لِلْحَسَنِ يَا أَبَا سَعِيدٍ أَخْبِرْنِي عَنْ آدَمَ أَلِلسَّمَاءِ خُلِقَ أَمْ لِلأَرْضِ قَالَ لاَ بَلْ لِلأَرْضِ. قُلْتُ أَرَأَيْتَ لَوِ اعْتَصَمَ فَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الشَّجَرَةِ قَالَ لَمْ يَكُنْ لَهُ مِنْهُ بُدٌّ ﴾

### د حسن بصری رحمه الله نه مختلف سوالات او د هغې جوابات:

حسن بصری رحمه الله کوم چه د کبار تابعینو نه دې او د سلوک او تصوف لوئې امام او مرجع دې د هغوی په باره کښې بعض خلقو ته شک پیدا شوې وو چه دې چرته هغه قدری شوې خو نه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥١٧، ١٨٥١٨) (حسن الإسناد)

دي، ځکه چه ډير لوئي خطيب وو نو ممکنه ده چه د هغوی د ژبې نه په بعض خطباتو کښې بعض داسې الفاظ وتلې وی چه په هغې سره سامعينو ته دا شک پيدا شوې وی نو هم په دې بنياد بعض خلقو د دې معاملې د وضاحت غوښتلو دپاره د هغوی نه په مختلفو مجالسو کښې تپوسونه اوکړل چه د هغوی د جواب نه واضحه شی چه آيا واقعی هغوی د انکار تقدير طرف ته مائل دی، يا د خلقو دا خيال غلط دې پس په دې روايت کښې دی چه خالد حذاء د هغه نه يو ځل سوال اوکړو چه :

**رومبې سوال** : دا بيان کړئ د آدم عليه السلام په باره کښې چه الله پاک هغه په اسمان باندې د اوسولو دپاره پيدا کړې وو او که زمکه باندې د رااليږلو دپاره؟

**جواب** نو هغوی جواب ورکړو چه نه، د اسمان دپاره نه بلکه د زمکې دپاره يعنی د هغوی د اسمان نه په زمکه باندې راکوزيدل د مخکښې نه د الله پاک په علم کښې وو او هم په دې وجه داسې اوشو او هم دا تقدير دې بيا سائل سوال اوکړو چه دا بيان کړئ چه که هغوی د غنم اونه وې خوړلي نو څه به شوی وې؟ هغوی اوفرمائيل څنګه به ئې نه خوړله، دا خوړل د مخکښې نه مقرر وو.

**دويم سوال:**

د دې نه پس ئې ترې نه تپوس اوکړو ﴿ أَخْبِرْنِي عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى (مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ إِلاَّ مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ) سائل د دې آيت کريمه تفسير د هغوی نه اوتپوسلو، کوم چه داسې دې ﴿فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ ﴾ د دې ترجمه دا ده اې مشرکانو تاسو او ستاسو هغه ټول معبودان د چا چه تاسو عبادت کوئ چالره په ګمراهئ کښې نه شی اخته کولې مګر هم هغه لره کوم چه جهنم ته تلونکې دې، د دې آيت کريمه نه دا شبه کيدې شی چه دا مشرکين او د هغوی دا باطل معبودان بعضو لره ګمراه کولې شی هغه بعض کوم چه جهنم ته تلونکی دی،

**جواب** پس هغوی يعنی حسن بصری رحمه الله د دې خلقو مخکښې د دې آيت کريمه تفسير داسې بيان کړو کوم چه بالکل صفا دې چه د هغې نه روستو هيڅ شک او شبهه نه پيدا کيږی، هغوی اوفرمائيل د﴿ صال الجحيم ﴾ نه مراد يعنی جهنم ته د تلونکو نه مراد دا نه دې چه هغوی خپله جهنم ته تلل غواړی بلکه مراد دا دې چه د چا په باره کښې الله پاک جهنم ته تلل ليکلي دی.

[٤٦١٥](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، عَنِ الْحَسَنِ، فِي قَوْلِهِ تَعَالَى: "وَلِذَلِكَ خَلَقَهُمْ سورة هود آية ١١٩، قَالَ: خَلَقَ هَؤُلَاءِ لِهَذِهِ، وَهَؤُلَاءِ لِهَذِهِ".

د حضرت حسن بصری رحمه الله نه منقول دی چی هغوی د الله تعالیٰ دغه فرمان (ولذلک خلقهم) "الله تعالیٰ دوی هم ددې دپاره پيدا کړې دی (چی د حق سره اختلاف کوی)" په تفسير کښې ئې اوفرمائيل چی هغه خلق ئې ددې (جهنم) دپاره پيدا کړې دی او نور ئې ددې (جنت) دپاره.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥١٦) (صحيح الإسناد)

[٤٦١٦]() حَدَّثَنَا أَبُوكَامِلٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ الْحَذَّاءُ، قَالَ: "قُلْتُ لِلْحَسَنِ ﴿مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ ۝ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ﴾ سورة الصافات آية ١٦٢-١٦٣، قَالَ: إِلَّا مَنْ أَوْجَبَ اللَّهُ تَعَالَى عَلَيْهِ أَنَّهُ يَصْلَى الْجَحِيمَ".

خالد الخذاء وائی چی ما د حضرت حسن بصری رحمه الله نه د دغه ایت کریمه: (ما انتم علیه بفاتنین- الا من هو صال الجحیم) (تفسیر) په باب کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چی دا الله تعالیٰ هم ددې دپاره لازم کړې دې کوم چی په جهنم کښې د سوزیدلو واله دي۔ (دغه مذکوره بالا روایت د ۴۶۱۴ غوندې دې)

[٤٦١٧]() حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ بِشْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، قَالَ: أَخْبَرَنِي حُمَيْدٌ: كَانَ الْحَسَنُ، يَقُولُ: "لَأَنْ يُسْقَطَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ أَنْ يَقُولَ الْأَمْرُ بِيَدِي".

د حضرت حمید نه منقول دی چی حضرت حسن بصری رحمه الله به وئیل چی د اسمان نه په زمکه راپریوتل ما ته ددې نه ډیر خوښ دی چی زۀ داسې اووایم چی معامله زما په لاس کښې ده۔ (مقصد دادې چی د تقدیرنه انکار زۀ هرګز هرګز نه برداشت کوم)۔

**قوله:** ﴿ أَخْبَرَنِي حُمَيْدٌ قَالَ كَانَ الْحَسَنُ يَقُولُ لَأَنْ يُسْقَطَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ أَنْ يَقُولَ الْأَمْرُ بِيَدِه ﴾ چه په يو موقع باندې حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل (د داسې خلقو مخکښې چا چه به په هغوی باندې شک کولو د قدر) بیشکه دا خبره چه زه د آسمان نه په زمکه باندې راپریوځم دا زما زیاته خوښه ده ددې نه چه زه اوایم چه زما کار او زما انجام زما په لاس کښې دې، وړاندې هم د حمید روایت راروان دې.

[٤٦١٨]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، قَالَ: "قَدِمَ عَلَيْنَا الْحَسَنُ مَكَّةَ، فَكَلَّمَنِي فُقَهَاءُ أَهْلِ مَكَّةَ أَنْ أُكَلِّمَهُ فِي أَنْ يَجْلِسَ لَهُمْ يَوْمًا يَعِظُهُمْ فِيهِ، فَقَالَ: نَعَمْ، فَاجْتَمَعُوا فَخَطَبَهُمْ فَمَا رَأَيْتُ أَخْطَبَ مِنْهُ، فَقَالَ رَجُلٌ: يَا أَبَا سَعِيدٍ مَنْ خَلَقَ الشَّيْطَانَ؟ فَقَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللَّهِ! خَلَقَ اللَّهُ الشَّيْطَانَ وَخَلَقَ الْخَيْرَ وَخَلَقَ الشَّرَّ، قَالَ الرَّجُلُ: قَاتَلَهُمُ اللَّهُ كَيْفَ يَكْذِبُونَ عَلَى هَذَا الشَّيْخِ".

حضرت حمید بیان اوکړو چی حضرت حسن بصری رحمه الله مکې ته راغلو نو د هغه ځائ علماؤ او فقهاؤ ماته اووئیل چی زۀ هغوی ته دا اووایم چی هغه مونږ ته يوه ورځ وعظ واوروی۔ نو هغوی قبول کړل۔ ددې دپاره هغوی راجمع شول او حسن بصری رحمه الله درس ورکړو نو ما د هغوی نه لوئ کوم خطیب بیا نۀ موندو۔ يو سړی تپوس اوکړو: ابو سعید! شیطان چا پیدا کړې دې؟ هغه اووئیل سبحان الله! د الله تعالیٰ نه سیوا بل څوک خالق شته څه؟ هم الله تعالیٰ شیطان پیدا کړې دې - د خیر او د شر خالق هم هغه دې - نو هغه سړی اووې: الله تعالیٰ دې هغوی هلاک کړی (نامعلوم) په کومه وجه باندې هغه ددې شیخ په باب کښې دروغ وائی۔

**قوله:** ﴿ قال قَدِمَ عَلَيْنَا الْحَسَنُ مَكَّةَ فَكَلَّمَنِي فُقَهَاءُ أَهْلِ مَكَّةَ أَنْ أُكَلِّمَهُ فِي أَنْ يَجْلِسَ لَهُمْ يَوْمًا يَعِظُهُمْ فِيهِ. فَقَالَ نَعَمْ. فَاجْتَمَعُوا فَخَطَبَهُمْ فَمَا رَأَيْتُ أَخْطَبَ مِنْهُ الخ ﴾

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥١٨) (صحيح الإسناد)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥١٠) (صحيح الإسناد)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٠٩) (صحيح)

دریم سوال:

یعنی یو ځل حسن بصری رحمه الله مکې مکرمې ته تشریف راوړلو حمید وائی چه ماته د مکې علماء کرامو اووې چه زه حسن ته درخواست اوکړم دې باره کښې چه هغوی یوه ورځ د خپل وعظ مجلس قائم کړی هغوی وائی چه ما هغوی ته درخواست اوکړو او هغوی منظور کړو پس په مقرره وخت باندې خلق راجمع شو او هغوی خلقو ته خطاب اوکړو، حمید وائی چه ما د هغوی نه لوئې خطیب نه دې لیدلې، په مجلس وعظ کښې یو سړی د هغوی نه دا تپوس اوکړو چه اې ابوسعید! شیطان چا پیدا کړو، هغوی اوفرمائیل سبحان الله عجیبه خبره ده آیا د الله پاک نه سوا هم څوک خالق شته، د شیطان خالق هم الله پاک دې او د خیر او شر هم، د هغوی دا جواب اوریدلو سره سائل اووې الله دې هلاک کړی دا ناقدین څنګه تهمتونه ترې په دې بزرګ باندې.

معتزله او قدریه د دې خبرې قائل دې چه الله پاک خالق د شر نه دې.

[٤٦١٩](1) حَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ، عَنِ الْحَسَنِ، "كَذَلِكَ نَسْلُكُهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ سورة الحجر آية ١٢"، قَالَ: الشِّرْكُ".

حضرت حمید الطویل د حضرت حسن بصری رحمه الله نه روایت اوکړو چې هغوی ددغې ایت کریمه (کذلک نسلکه فی قلوب المجرمین) "هم دغه رنګ مونږ د مجرمانو په زړونو کښې واچوؤ." په تفسیر کښې اووئیل: ددې نه مراد "شرک" دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ عَنِ الْحَسَنِ (كَذَلِكَ نَسْلُكُهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ) قَالَ الشِّرْكُ ﴾

څلورم سوال:

یعنی د نسلکه د ضمیر مرجع هغوی شرک مقرر کړو او د آیت کریمه دا تفسیر چه الله تعالی فرمائی چه د کفارو په زړه کښې عقیده د شرک مونږ اچوو هغه کفار د کومو دپاره چه مجرم کیدل مقدر شوې دی، په تفسیر جلالین کښې دی: "كَذَلِكَ" أَيْ مِثْل إِدْخَالنَا التَّكْذِيب فِي قُلُوبِ الأولين نَسْلُكُهُ أي ندخل التَّكْذِيب فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ أي كُفَّار مَكَّة اهـ. عون،

[٤٦٢٠](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ رَجُلٍ قَدْ سَمَّاهُ غَيْرُ ابْنِ كَثِيرٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عُبَيْدٍ الصِّيدِ، عَنِ الْحَسَنِ، فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ "وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ سورة سبأ آية ٥٤"، قَالَ: بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْإِيمَانِ".

عبید الصید د حضرت حسن بصری رحمه الله نه روایت کوی چې هغوی ددغه ایت کریمه (وحیل بینهم و بین ما یشتهون) په تفسیر کښې اووئیل چې د هغوی او د هغوی د ایمان راوړلو په خواهش کښې به رکاوټ (مخ نیوی) پیدا کړې شی.

**قوله:** ﴿ عَنْ عُبَيْدٍ الصِّيدِ عَنِ الْحَسَنِ فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ (وَحِيلَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَشْتَهُونَ) قَالَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الإِيمَانِ ﴾

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥١١) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٢٤) (ضعيف الإسناد)

**سوال خامس** : کفار به د قیامتْ په ورځ باندې ایمان راوړل خوښوي حال دا چه هغه وخت د ایمان د راوړلو نه دې نو د هغې په باره کښې الله پاک په دې آیت کریمه کښې فرمائی چه کوم څیز به دا کفار په قیامت کښې اختیارول غواړی یعنی ایمان د هغوی او د دوی ترمینځه به حیلولت اوکړې شی یعنی په دنیا کښې خو مونږ واقع کړې دې، په آخرت کښې به هم هغوی د ایمان نه لرې اوساتلې شی، حسن رحمه الله د ﴿ ما یشتهون ﴾ تفسیر په خپلو صفا الفاظو کښې په ایمان سره اوکړو، یعنی د کفارو د ایمان نه مانع هم دا د الله پاک تقدیر وو.

[٤٦٢١](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمٌ، عَنِ ابْنِ عَوْنٍ، قَالَ: "كُنْتُ أَسِيرُ بِالشَّامِ فَنَادَانِي رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي، فَالْتَفَتُّ فَإِذَا رَجَاءُ بْنُ حَيْوَةَ، فَقَالَ: يَا أَبَا عَوْنٍ مَا هَذَا الَّذِي يَذْكُرُونَ، عَنِ الْحَسَنِ؟ قَالَ: قُلْتُ: إِنَّهُمْ يَكْذِبُونَ عَلَى الْحَسَنِ كَثِيرًا".

حضرت ابن عون وائی چې زۀ د شام په ملک کښې ؤم چې د شا نه چا ماته اواز اوکړو- زۀ متوجه شوم نو څه ګورم چې حضرت رجاء بن حیوه وو - هغوی اووئیل : ابو عون ! دا څه خبرې دی کوم چې خلق د حسن بصری په باب کښې کوی؟ ما اووې : دغه خلق په حسن بصری باندې ډیر دروغ تړی-

**قوله**:﴿ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ قَالَ كُنْتُ أَسِيرُ بِالشَّامِ فَنَادَانِي رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي فَالْتَفَتُّ فَإِذَا رَجَاءُ بْنُ حَيْوَةَ فَقَالَ يَا أَبَا عَوْنٍ مَا هَذَا الَّذِي يَذْكُرُونَ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ قُلْتُ إِنَّهُمْ يَكْذِبُونَ عَلَى الْحَسَنِ كَثِيرًا ﴾

یعنی رجاء بن حیوة د ابن عون نه تپوس اوکړو چه دا څه څیز دې کوم چه خلق د حسن بصری رحمه الله د طرف نه نقل کوی یعنی هم هغه انکار قدر خو هغوی جواب ورکړو چه خلق په هغوی باندې غلط الزام لګوی.

[٤٦٢٢](2) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، قَالَ: سَمِعْتُ أَيُّوبَ، يَقُولُ: "كَذَبَ عَلَى الْحَسَنِ ضَرْبَانِ مِنَ النَّاسِ: قَوْمٌ الْقَدَرُ رَأْيُهُمْ وَهُمْ يُرِيدُونَ أَنْ يُنَفِّقُوا بِذَلِكَ رَأْيَهُمْ، وَقَوْمٌ لَهُ فِي قُلُوبِهِمْ شَنَآنٌ وَبُغْضٌ، يَقُولُونَ: أَلَيْسَ مِنْ قَوْلِهِ كَذَا؟ أَلَيْسَ مِنْ قَوْلِهِ كَذَا؟".

ایوب بیان اوکړو چې په حسن بصری رحمه الله باندې دروغ تړلو واله دوه قسمه خلق دی هغه کوم چې د تقدیر نه منکر دی - د هغوی خواهش دې چې دغه رنګ به هغوی خپلو خبرو او رائې له شهرت ورکړی او عام به ئې کړی- او دویم هغه دی د کومو چې زړونو کښې بغض او عداوت دې - (او دغه رنګ خبرې کوی) آیا دا د هغه قول نۀ دې،آیا هغه دغه رنګې نۀ دی وئیلی؟ وغیره-

**قوله**:﴿ سَمِعْتُ أَيُّوبَ يَقُولُ كَذَبَ عَلَى الْحَسَنِ ضَرْبَانِ مِنَ النَّاسِ قَوْمٌ الْقَدَرُ رَأْيُهُمْ وَهُمْ يُرِيدُونَ أَنْ يُنَفِّقُوا بِذَلِكَ رَأْيَهُمْ وَقَوْمٌ لَهُ فِي قُلُوبِهِمْ شَنَآنٌ وَبُغْضٌ يَقُولُونَ أَلَيْسَ مِنْ قَوْلِهِ كَذَا أَلَيْسَ مِنْ قَوْلِهِ كَذَا ﴾

## د روایت تشریح :

ایوب سختیانی رحمه الله فرمائی چه حسن بصری رحمه الله طرف ته د غلط نسبتونه کونکی دوه قسمه سړی دی یو هغه قسم چه خپله د هغوی عقیده د انکار قدر ده، نو هغوی حسن بصری ته د

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٢٣، ١٨٦٣٩) (صحيح الإسناد)
(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٤٥٠) (صحيح)

خپلي عقيدې نسبت کولو سره خپلې رائې ته ترويج او تقويت ورکول غواړي چه ګورئ دومره لوئې امام هم دا خبره کوي او دويم قسم هغه دی د چا په زړونو کښې چه د هغوی سره بغض او دشمنی ده نو هغوی د حسن رحمه الله په تنقيص او ترديد کښې داسې کوی، او دهغوی بعض دا قسم جملو لره اوچتوی يعنی دکومو جملوچه تاويل کيدې شی خو هغه هغوی په ظاهر باندې محمول کوی د هغوی طرف ته هغه منسوب کوی چه ګورئ هغوی په فلانئ موقع باندې داسې اوئيل او په فلانئ موقع باندې ئې داسې اوئيل.

[٤٦٢٣](١) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، أَنَّ يَحْيَى بْنَ كَثِيرٍ الْعَنْبَرِيَّ حَدَّثَهُمْ، قَالَ: كَانَ قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ، يَقُولُ لَنَا: "يَا فِتْيَانُ لَا تُغْلَبُوا عَلَى الْحَسَنِ، فَإِنَّهُ كَانَ رَأْيُهُ السُّنَّةَ وَالصَّوَابَ".

حضرت قره بن خالد به مونږ ته وئيل اې ځوانانو! د حسن بصری په باب کښې مغلوبه نهٔ شئ بې شکه د هغوی رائې د سنت مطابق او د حق و صواب تابع ده.

**قوله:**﴿ كَانَ قُرَّةُ بْنُ خَالِدٍ يَقُولُ لَنَا يَا فِتْيَانُ لاَ تُغْلَبُوا عَلَى الْحَسَنِ فَإِنَّهُ كَانَ رَأْيُهُ السُّنَّةَ وَالصَّوَابَ ﴾

قرة بن خالد به مونږ ته وئيل: اې هلکانو! د حسن خلاف د خلقو په خبرو کښې مه راځئ ځکه چه د هغوی رائې د سنت موافق او صحيح وه.

[٤٦٢٤](٢) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، وَابْنُ بَشَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عَوْنٍ، قَالَ: "لَوْ عَلِمْنَا أَنَّ كَلِمَةَ الْحَسَنِ تَبْلُغُ مَا بَلَغَتْ، لَكَتَبْنَا بِرُجُوعِهِ كِتَابًا وَأَشْهَدْنَا عَلَيْهِ شُهُودًا، وَلَكِنَّا قُلْنَا: كَلِمَةٌ خَرَجَتْ لَا تُحْمَلُ".

ابن عون اووې: که چرې مونږ ته دغه علم وې چې د حسن بصری رحمه الله د خلې وئيلې شوی خبره به تر دومره حده پورې رسی ترکومه چې اورسيده نو مونږ به د هغه د رجوع متعلق يو کتاب ليکلې وو او په هغې باندې به مو ګواهيانی قائمې کړې وې. خو مونږ دغه ګنړل چې يوه خبره وه کومه چې اوشوه او بس اوشوه، مشهوره کيږی به نهٔ.

**قوله:**﴿ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ قَالَ لَوْ عَلِمْنَا أَنَّ كَلِمَةَ الْحَسَنِ تَبْلُغُ مَا بَلَغَتْ لَكَتَبْنَا بِرُجُوعِهِ كِتَابًا وَأَشْهَدْنَا عَلَيْهِ شُهُودًا وَلَكِنَّا قُلْنَا كَلِمَةٌ خَرَجَتْ لاَ تُحْمَلُ ﴾

هغه چه پورته مونږ ليکلی دی چه د حسن بصری رحمه الله نه په بعض تقريرونو کښې داسې الفاظ د خولې نه وتلې وو چه په هغې سره شبه پيدا کيدې شوه د تقدير خلاف هم د هغې ذکر په دې روايت کښې دې، ابن عون رحمه الله فرمائی چه که مونږ ته دې قسم جملو په باره کښې خبر وې چه خلق به دا د کوم ځائې نه کوم ځائې ته اورسوی او د څه به څه مطلب واخلی نو مونږ به د دې الفاظو په باره کښې د هغوی نه رجوع ليکلې وې چه زه دا خپل الفاظ واپس اخلم (کوم چه تاسو په غلط محمل باندې محمول کوئ) او د رجوع د ليکلو نه پس به مې په دې باندې ګواهان هم قائم کړې وو، خو داسې ځکه اونکړې شوه ه مونږ پوهيدو چه دا جمله په روانئ کښې د هغوی د خولې نه اوختله څوک به دا نقل کوی او مشتهر کوی به ئې.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٢٣٢) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٨٩٢٢) (صحيح مثله)

[٤٦٢٥]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، قَالَ: قَالَ لِي الْحَسَنُ "مَا أَنَا بِعَائِدٍ إِلَى شَيْءٍ مِنْهُ أَبَدًا".

ايوب وائي چي حضرت حسن بصري رحمه الله ماته اووئيل : زهٔ به ائنده داسي خبره نهٔ كووم. (په كومه كښي چي د تقدير دَ انكار شبه وي.)

**قوله:** ﴿ عَنْ أَيُّوبَ قَالَ قَالَ لِيَ الْحَسَنُ مَا أَنَا بِعَائِدٍ إِلَى شَيْءٍ مِنْهُ أَبَدًا ﴾

يعنى كله چه حسن رحمه الله ته معلومه شوه چه بعض خلق د هغوى دا قسم الفاظ خوروى نو هغوى به فرمائيل چه بيادپاره به زه داسي الفاظ هر گز نه استعمالوم.

[٤٦٢٦]() حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ بِشْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُثْمَانَ، عَنْ عُثْمَانَ الْبَتِّيِّ، قَالَ: "مَا فَسَّرَ الْحَسَنُ آيَةً قَطُّ إِلَّا عَنِ الْإِثْبَاتِ".

عثمان البتي بيان كوى چي حسن بصرى رحمه الله چي كله هم د قران كريم د كوم يو ايت تفسير كوؤ نو په هغي كښي ئي د تقدير اثبات او په دي به ئي د ايمان هم ذكر كوؤ.

**قوله:** ﴿ عَنْ عُثْمَانَ الْبَتِّيِّ قَالَ مَا فَسَّرَ الْحَسَنُ آيَةً قَطُّ إِلاَّ عَنِ الإِثْبَاتِ ﴾

يعنى حسن بصرى رحمه الله به هميشه د آيات قرانيه تفسير د اثبات تقدير د عقيدي لاندي كولو، په بذل كښي خو هم دغه شان دى يعنى اثبات ئي د باب افعال مصدر منلي دي، او د استاد محترم مولانا محمد اسعد الله صاحب رحمه الله رائي دا وه چه ظاهر دا ده چه دا لفظ په فتح سره دي ثبت په معنى د ثقه جمع، او د ثقه خلقو نه دي دلته هم هغه مراد كړي شي د چا عقيده چه بالقدر وى، دا لفظ په كتاب كښي دوه طريقو سره منقول دي زمونږ په نسخه كښي خو داسي دي ﴿ الا عن الاثبات ﴾ او د يوي نسخي حواله په حاشيه كښي موجود ده په هغي كښي دى ﴿ الا على الاثبات ﴾ ظاهره ده چه د على په صورت كښي دا لفظ اثبات بالكسر يعنى مصدر دي، حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښي ليكى هكذا شرح هذا الكلام الحافظ فى التهذيب ٢٧٠/٢ وهو اختار اللفظ عن حميد قرأت القران عن الحسن ففسره على الاثبات يعنى على اثبات القدر اهـ، خو د عن په صورت كښي هم هغه ظاهره ده كومه چه حضرت ناظم صاحب فرمائيلي ده.

[٤٦٠٥]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ يَأْتِيهِ الْأَمْرُ مِنْ أَمْرِي مِمَّا أَمَرْتُ بِهِ أَوْ نَهَيْتُ عَنْهُ، فَيَقُولُ: لَا نَدْرِي، مَا وَجَدْنَا فِي كِتَابِ اللَّهِ اتَّبَعْنَاهُ".

حضرت عبيد الله د خپل والد د حضرت ابو رافع رضي الله عنه نه روايت كوى، نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل "هرگز دي داسي نه وى چي زهٔ په تاسو داسي اوگورم چي څوک په خپل تخت يا په ديوان

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٠٢) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٥٢٥، ١٩٠٠٤) (صحيح)
(٣): سنن الترمذي/العلم ١٠ (٢٦٦١)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٢ (١٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٠١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨/٦) (صحيح)

باندې ناست وي او هغوی ته زما د احکامو نه څه حکم اورسي د کوم چې ما حکم ورکړې وي یا مې د هغې نه منع کړې وي نو هغوی اووئیل چې مونږ نه پوهیږو ، مونږ خو په کتاب الله کښې چې څه اوګورو نو هم په هغې به عمل کوؤ.

**قوله:** ﴿ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِى رَافِعٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « لاَ أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ مُتَّكِئًا عَلَى أَرِيكَتِهِ ﴾

دا حدیث په روایت د مقدام بن معدیکرب رضی الله عنه د باب په شروع کښې تیر شو.

[٤٦٠٦](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ الْمَخْرَمِيُّ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ فَهُوَ رَدٌّ"، قَالَ ابْنُ عِيسَى: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ صَنَعَ أَمْرًا عَلَى غَيْرِ أَمْرِنَا فَهُوَ رَدٌّ.

ام المؤمنین سیده عائشه صدیقه رضی الله عنها بیان کوی، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل "چا چې زمونږ په دغه معامله (دین) کښې کوم نوی څیز پیدا کړو کوم چې ددې نه نۀ وی نو هغه مردود او باطل دې."

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ أَحْدَثَ فِى أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ فِيهِ فَهُوَ رَدٌّ » او په بل روایت کښې دی مَنْ صَنَعَ أَمْرًا عَلَى غَيْرِ أَمْرِنَا فَهُوَ رَدٌّ ﴾

یعنی څوک چه په دین کښې نوې کار راوباسی چه د هغې اصل د مخکښې نه نشته هغه مردود دې، او د هغې نه روستو روایت کښې دی :

[٤٦٠٧](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا ثَوْرُ بْنُ يَزِيدَ، قَالَ: حَدَّثَنِي خَالِدُ بْنُ مَعْدَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرٍو السُّلَمِيُّ، وَحُجْرُ بْنُ حُجْرٍ، قَالَا: "أَتَيْنَا الْعِرْبَاضَ بْنَ سَارِيَةَ، وَهُوَ مِمَّنْ نَزَلَ فِيهِ: وَلا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ سورة التوبة آية ٩٢، فَسَلَّمْنَا، وَقُلْنَا: أَتَيْنَاكَ زَائِرِينَ وَعَائِدِينَ وَمُقْتَبِسِينَ، فَقَالَ الْعِرْبَاضُ "صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا فَوَعَظَنَا مَوْعِظَةً بَلِيغَةً ذَرَفَتْ مِنْهَا الْعُيُونُ وَوَجِلَتْ مِنْهَا الْقُلُوبُ، فَقَالَ قَائِلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَأَنَّ هَذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ، فَمَاذَا تَعْهَدُ إِلَيْنَا؟ فَقَالَ: أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، وَإِنْ عَبْدًا حَبَشِيًّا فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ بَعْدِي فَسَيَرَى اخْتِلَافًا كَثِيرًا، فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الْمَهْدِيِّينَ الرَّاشِدِينَ تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ، وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ".

د حضرت عبد الرحمن بن عمرو سلمی اود حجر بن حجر بیان دې چې مونږ حضرت عرباض بن ساریه رضی الله عنه په خدمت کښې حاضرشو د چا په باب کښې چې دغه آیت کریمه نازل شوې وو- (ولا علی الذین اذا ما اتوک...) په هغه خلقو باندې هیڅ ګناه نشته چې کله هغوی ستاسو خواه له راشی چې تاسو هغوی له سورلی ورکړئ، هغوی اووئیل چې زما

(١): صحیح البخاري/الصلح ٥ (٢٦٩٧)، صحیح مسلم/الأقضیة ٨ (١٧١٨)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٢ (١٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٤٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٧٣، ١٤٦، ١٨٠، ٢٤٠، ٢٥٦، ٢٧٠) (صحیح)

(٢): سنن الترمذي/العلم ١٦ (٢٦٧٦)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٦ (٤٣، ٤٤)، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٢٦)، سنن الدارمي/المقدمة ١٦ (٩٦) (صحیح)

سره هيڅ څه شي نشته،نو هغوی په هغه حال کښې واپس شول چې د هغوی سترګو په داسې غم سره اوښکې څڅولې چې هغوی ته هيڅ ميسر نه دی څه چې هغوی خرچ کړي۔"
مونږ هغوی ته سلام اوکړو او عرض مو اوکړو : مونږ ستاسو سره د ميلاؤيدو دپاره راغلي يو او دا چې ستاسو عيادت اوشی او څه علمي فائده مو هم حاصله شي، نو حضرت عرباض ﷺ بيان اوکړو چې رسول الله ﷺ مونږله يوه ورځ مونځ راکړو،بيا ئې زمونږ طرفته رامخ کړو او وعظ ئې اوفرمائيلو،ډير زيات بليغه او جامع وعظ،داسې چې زمونږ د سترګو نه اوښکې رواني شوې او زړونه مو اودرزيدل۔ يو وئيونکی اووئيل ! اې د الله رسوله! داخو ګويا الوداعي وعظ وو، نوآيا تاسو مونږ ته څه وصيت کوی؟ وې فرمائيل:
"زۀ تاسو ته وصيت کوم چې د الله تعالیٰ تقویٰ اختياره وئ او د خپلوحکامو احکام اورئ او منئ،خواه که څوک حبشي يا غلام ولې نه وي - بې شکه په تاسو کښې چې څوک زما نه پس ژوندې پاتې شو هغه به ډير اختلاف ويني، نو په دغه حالاتو کښې زما سنت او زما د خلفاؤ سنت خپلوئ،کوم چې اصحاب دَ رشد و هدايت دی،سنت ښه په مضبوطئ سره اونيسئ،نوی نوی بدعاتو او اختراعاتونه خپل ځانونه بچ کړئ،بغير د څه شک او شبهې نه هره نوی خبره بدعت دې او هر بدعت ګمراهي ده۔

**قوله:** ﴿ عَنِ الْعِرْبَاضُ بن سارية ﷺ.......... يَا رَسُولَ اللَّهِ كَأَنَّ هَذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ ([1]) فَمَاذَا تَعْهَدُ إِلَيْنَا فَقَالَ « أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ ............ وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلاَلَةٌ »﴾

## شرح الحديث :

سيدنا عرباض بن ساريه ﷺ فرمائي چه يوه ورځ رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ راکړو، د مانځه نه پس زمونږ طرف ته متوجه شو او داسې موثر وعظ ئې اوفرمائيلو چه په هغې سره د سترګو نه اوښکې رواني شوې او زړونه او رپيدل.يو صحابي د دې نه متاثر کيدو سره فدائي انداز کښې عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ! دا وعظ او بيان خو داسې دې لکه د رخصت کونکي چه څنګه بيان وي.تاسو زمونږ په کوم څيز باندې عهد اخستل غواړئ او خاص طور سره دهغې وصيت کول غواړئ په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل : زه تاسو ته د الله پاک نه د ويريدو وصيت کوم او بل د امير د خبرې اوريدلو او د منلو اګر چه هغه امير حبشي او تور غلام ولې نه وي.وړاندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم خلق په تاسو کښې زما نه روستو ژوندی پاتې شي نو هغوی به وړاندې تلو سره ډير اختلاف اويني (يعنې په دين کښ، لهذا د هغه اختلاف په وخت) تاسو زما (او زما) د خلفاء راشدينو سنت لازم اونيسئ، ښه په قوت سره ئې اونيسئ، او د خپلو غاښونو د لاندې ئې کړئ، دا کنايه ده په لزوم د سنت کښې د کوشش کولو نه، او ځان بچ کړئ د نوو خبرو نه ځکه چه هره نوې خبره بدعت دې او هر بدعت ګمراهي ده، د بدعت نه مراد بدعت سيئه دې، لکه چه مخکښې تير شوې دی چه د بدعت په لغت کښې دوه قسمونه دې سيئه او حسنه، او دلته د

[1] )يحتمل وجهين اما حقيقة لعلهم فهموا بالقرائن انها موعظة التودع او علي التشهيه اي كما يعظه احد عند الوداع كذا في الكوكب وهامشه (هامش بذل)

بدعت نه مراد سيئه دي کوم چه قبيح وي. والحديث اخرجه الترمذي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٦٠٨] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ عَتِيقٍ، عَنْ طَلْقِ بْنِ حَبِيبٍ، عَنِ الْأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَلَا هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُونَ، ثَلَاثَ مَرَّاتٍ".

د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ نه روايت دې، نبي ﷺ اوفرمائيل: خبردارا غلو (معمولي خبره زياته ول) کوونکي، او د حد نه تير شوي خلق هلاک شو -" هغوی دغه خبره درې ځلي اوفرمائيله.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « أَلاَ هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُونَ ». ثَلاَثَ مَرَّاتٍ ﴾

د متنطعين نه مراد متعمقين دي يعني کوم خلق چه په بحث مباحثه کښې غلو کوي او لا يعني فضول خبرو کښې ننوتونکي دي، يا په داسې ځيزونو کښې بحث کونکي دي چرته چه عقل نه رسيږي لکه مسئله د تقدير او صفاتو. رسول الله ﷺ فرمائي چه دې خلقو د خپل ځان سخت نقصان اوکړو، او دا خبره هغوی درې کرته اوفرمائيله.

والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذري.

# بَابُ مَنْ دَعَا إِلَى السُّنَّةِ

## باب ٦- د سنت (اتباع) طرف ته د دعوت ورکولو د اهميت بيان

د دې نه مخکښې باب باب لزوم السنة دې او دا دعوت الى السنة دې په دواړو کښې فرق ښکاره دې، د اول باب مضمون لازم دې او د دې متعدی.

[٤٦٠٩] (٢) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي الْعَلَاءُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَنْ دَعَا إِلَى هُدًى كَانَ لَهُ مِنَ الْأَجْرِ مِثْلُ أُجُورِ مَنْ تَبِعَهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْئًا، وَمَنْ دَعَا إِلَى ضَلَالَةٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ تَبِعَهُ لَا يَنْقُصُ ذَلِكَ مِنْ آثَامِهِمْ شَيْئًا".

د حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "کوم سړي چې د حق د لارې دعوت ورکوي هغه ته دومره ثواب ميلاويږي څومره چې ددې اتباع کولو واله ته ميلاويږي- په دغه اتباع کولو کښې به د هيڅا په ثواب کښې څه کمې نۀ وي- او چا چې دکومې ګمراهۍ دعوت ورکړو نو هغه ته به دومره قدرګناه ميلاويږي څومره چې دهغې پيروی کولو واله ته ميلاويږي په دغه وجه به دهغوی په ګناهونو کښې څه کمې نه راځي-"

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « مَنْ دَعَا إِلَى هُدًى كَانَ لَهُ مِنَ الأَجْرِ مِثْلُ أُجُورِ مَنْ تَبِعَهُ الخ ﴾

[1]: صحيح مسلم/العلم ٤ (٢٦٧٠)، (تحفة الأشراف: ٩٣١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٨٦) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/العلم ٦ (٢٦٧٤)، سنن الترمذي/العلم ١٥ (٢٦٧٤)، (تحفة الأشراف: ١٣٩٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٩٧)، سنن الدارمي/المقدمة ٤٤ (٥٣٠) (صحيح)

څوک چه خلقو ته د هدایت طرف ته دعوت ورکوی نو د هغه په دعوت چه څومره خلق د هغه اتباع کولو سره اعمال صالحه کوی د هغوی ټولو ثواب به دې داعی ته هم ملاویږی او د دې ثواب د ملاویدو د وجې نه به د هغوی په ثواب کښې هیڅ کمې نه راځی. او دویم جزء د دې حدیث د دې مقابل دې چه کوم سړې خلقو ته د ګمراهئ دعوت ورکوی نو څومره خلق چه د هغه د دعوت په اتباع کښې بد اعمال کوی نو د هغه ټولو ګناه به دې داعی ته هم ملاویږی او د اصل عمل کونکو په ګناه کښې به هم کمې نه راځی. په دې دویم جزء باندې دې دا شبه اونکړې شی چه دا د الله پاک د قول ﴿ ولا تزر وازرة وزر اخرى ﴾ خلاف دې ځکه چه په دې دواړو کښې هیڅ مخالفت نشته، ځکه چه دلته اصل ګناه کونکی د خپلو ګناهونو بوجه پخپله اوچتوی، او داعی چه کومه ګناه شوې ده هغه د هغه د سبب ضلالت د جوړیدو د وجې نه او سبب ضلالت کیدل خپله ګناه ده. (بذل) والحديث اخرجه مسلم والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

[٤٦١٠] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَعْظَمَ الْمُسْلِمِينَ فِي الْمُسْلِمِينَ جُرْمًا مَنْ سَأَلَ عَنْ أَمْرٍ لَمْ يُحَرَّمْ فَحُرِّمَ عَلَى النَّاسِ مِنْ أَجْلِ مَسْأَلَتِهِ".

حضرت عامر بن سعد د خپل والد (حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه) نه روایت کوی، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: "په مسلمانانو کښې د جرم په اعتبار سره د ټولو نه لوئ مجرم هغه مسلمان دې چا چې د کومې داسې خبرې باره کښې سوال اوکړو کوم چې مخکښې حرام نه وو، خو دده د سوال کولو په وجه باندې حرام کړې شو.

﴿عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ أَعْظَمَ الْمُسْلِمِينَ فِي الْمُسْلِمِينَ جُرْمًا مَنْ سَأَلَ عَنْ أَمْرٍ لَمْ يُحَرَّمْ فَحُرِّمَ ........مِنْ أَجْلِ مَسْأَلَتِهِ »﴾

د دې حدیث د مضمون تعلق د عهد نبوی سره دې کومه چه د نزول وحی او تحلیل او تحریم زمانه وه.

## الاصل فى الاشياء الاباحة:

او د دې حدیث نه دا هم معلومیږی چه اصل په اشیاء کښې اباحت دې تر څو چه دلیل د تحریم بیا نه موندلې شی. لهذا رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه که د یو سړی په فضول او بلا ضرورته سوال کولو باندې د یو څیز د تحریم حکم نازل شی نو هغه ډیر د لوئې جرم کار اوکړو چه د هغه د سوال د وجې نه خلق په تنګسیا کښې پریوتل او هغه د یو حلال څیز د حرامیدو ذریعه جوړه شوه څنګه چه نورو خلقو ته د فائدې او آسانئ رسولو ثواب عظیم ترین دې. هم دغه شان هغوی په تنګسیا کښې د اخته کولو ګناه به هم عظیمه وی، خیر الناس من ينفع الناس، والحديث اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری.

---

(١): صحيح البخاري/الاعتصام ٣ (٧٢٨٩)، صحيح مسلم/الفضائل ٣٧ (٢٣٥٨)، (تحفة الأشراف: ٣٨٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٦/١، ١٧٩) (صحيح)

# باب في التفضيل

## (په صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم کښي ) د تفضيل بيان

## غرض المصنف بالترجمة

په سنن ابوداؤد کښې د کتاب المناقب يا ابواب المناقب په عنوان سره هيڅ نشته اگر چه په دې کښې د مناقب صحابه څه اندازه روايات شته خو د مصنف رحمه الله غرض چونکه په هغې سره صرف منقبت بيانول نه دی په دې وجه دا عنوان هغوی اختيار نه کړو، ځکه چه د مصنف رحمه الله مقصود دې په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې ترتيب بيانول په اعتبار د فضيلت هم په دې وجه ئې دا عنوان قائم کړو يعنی التفضيل، ځکه چه په دې مسئله د تفضيل کښې د اهل سنت او مبتدعين اختلاف مشهور دې، د اهل سنت په نزد چه په دې کښې کوم ترتيب دې مصنف رحمه الله هغې لره ثابتول غواړي پس په بذل المجهود کښې دی : باب فی التفضيل ...ای طريقة السلف فی التفضيل بين اصحابه ﷺ وقد خالف فيه اهل البدع السلف، من ههنا شرع المصنف رحمه الله الرد علی طوائف المبتدعين من الروافض اهـ

[٤٦٢٧](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كُنَّا نَقُولُ فِي زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا نَعْدِلُ بِأَبِي بَكْرٍ أَحَدًا ثُمَّ عُمَرَ، ثُمَّ عُثْمَانَ، ثُمَّ نَتْرُكُ أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نُفَاضِلُ بَيْنَهُمْ".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چې د نبی کريم ﷺ په زمانه کښې به مونږ د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه برابر هيڅوک نه ګڼړل- بياد هغوی نه پس حضرت عمر رضی الله عنه او د هغوی نه پس حضرت عثمان رضی الله عنه (درجه به موګڼړله) بياد نبی ﷺ په اصحابو کښې به مونږ څه قسمه تفضيل نه ګڼړلو بلکې ټول به مو مساوی (برابر) ګڼړل

**قوله:** ﴿ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نَقُولُ فِي زَمَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- لاَ نَعْدِلُ بِأَبِي بَكْرٍ أَحَدًا ثُمَّ عُمَرَ ثُمَّ عُثْمَانَ ﴾

سيدنا ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه مونږ به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې او د هغوی په ژوند کښې خپل مينځ کښې داسې وئيل (او هم دا عقيده به لرله) چه په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د ابوبکرصديق رضی الله عنه برابر هيڅوک نه شی کيدې او بيا به مو په دويمه درجه کښې عمر رضی الله عنه ساتلو او په دريمه درجه کښې به مو عثمان رضی الله عنه، بيا به مو باقی صحابه کرام رضی الله عنهم په خپل حال باندې پريخودل او د هغوی ترمينځه به مو د مرتبې په لحاظ سره هيڅ ترتيب نه قائمولو، يعنی په تعيين سره، اگر چه په دې خو پوهيدو چه د بعض په بعضو باندې فضيلت دې کوم چه بديهی امر دې، د اهل سنت په نزد په شيخين کښې خو هم دا ترتيب دې کوم چه په دې حديث کښې ذکر دې او د دې نه پس په ختنين کښې هم د جمهورو په نزد هم دا ترتيب دې چه د سيدنا علی رضی الله عنه مرتبه د سيدنا عثمان رضی الله عنه نه پس ده، هسې په دې کښې د بعض علماء کرامو اختلاف دې کوم چه مونږ د الفيض السمائی په مقدمه کښې ذکر کړې دې. فارجع اليه لوشئت.

(1): صحيح البخاري/فضائل الصحابة ٤ (٣٦٥٥)، ٧ (٣٦٩٨)، (تحفة الأشراف: ٨٠٢٨) (صحيح)

## د مسلسلات نومی کتاب تعارف :

موجوده چه په مسلسلات نوم سره کوم کتاب مشهور دې د شاه ولی الله رحمه الله هغه د درې رسالو مجموعه ده، الفضل المبین فی المسلسل من حدیث النبی الامین، په دې کښې حضرت شاه ولی الله صاحب خپل یا دخپل پلار بعضې منامات (خوبونه) او مکاشفات ذکر کړی دی او دریمه حصه د هغې چه په هغې کښې هغه احادیث نادره دی کوم چه شاه صاحب ته د خپلو بعض استاذانو نه رارسیدلې دی چه د هغې نوم هغوی النوادر من احادیث سید الاوائل والاواخر ږدلې دې.

## د شاه صاحب یو مکاشفه :

دا پوره خبره خو ضمنا راغله لیکل دا وو چه د دې کتاب چه کومه د مینځ حصه ده الدر الثمین په هغې کښې شاه صاحب رحمه الله خپله یو مکاشفه لیکلې ده چه ما د رسول الله ﷺ نه روحانی طور په سیدنا علی رضی الله عنه باندې د تفضیل شیخین راز معلوم کړو، حال دا چه علی رضی الله عنه په ډیرو اوصافو کښې د شیخین نه فائق دې.د دې روحانی سوال نه پس چه د شاه صاحب په قلب باندې د رسول الله ﷺ د طرف نه کوم فیضان اوشو د هغې ذکر ئې فرمائیلې دې چه د هغې خلاصه مونږ دا فهم کړه چه د رسول الله ﷺ دوه رخه دی ظاهر او باطن، شیخین رضی الله عنهما خو د هغوی د ظاهر رخ دپاره په منزله د جوارح (لاس او خپو) دی او وجه باطن چه د هغې تعلق د مراتب فنا او بقا سره دې په هغې کښې علی رضی الله عنه د هغوی ښې لاس دې.خو د رسول الله ﷺ علوم کوم چه مروی دی د هغې منبع وجه ظاهر ده اهـ او ظاهر د شریعت بنیاد هم په هغه علومو باندې دې، پس هم په دې وجه د شیخین مرتبه د علی رضی الله عنه نه زیاته ده. والحدیث اخرجه البخاری والترمذی، قاله المنذری.

[٤٦٢٨](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: قَالَ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ: إِنَّ ابْنَ عُمَرَ، قَالَ: "كُنَّا نَقُولُ وَرَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم حي أَفْضَلُ أُمَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَهُ أَبُو بَكْرٍ، ثُمَّ عُمَرُ، ثُمَّ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَجْمَعِينَ".

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چې مونږ به وئیل کله چې د رسول الله ﷺ حیات وو، د نبی ﷺ په امت کښې د ټولو نه زیات افضل ابوبکر دې،بیا عمر او بیا عثمان- الله تعالیٰ دې دَدوی ټولو نه راضی شی.

[٤٦٢٩](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا جَامِعُ بْنُ أَبِي رَاشِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو يَعْلَى، عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، قَالَ: "قُلْتُ لِأَبِي أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: أَبُو بَكْرٍ، قَالَ: قُلْتُ: ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ: ثُمَّ عُمَرُ، قَالَ: ثُمَّ خَشِيتُ أَنْ أَقُولَ: ثُمَّ مَنْ؟ فَيَقُولَ: عُثْمَانُ، فَقُلْتُ: ثُمَّ أَنْتَ يَا أَبَةِ، قَالَ: مَا أَنَا إِلَّا رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ".

(دحضرت علی رضی الله عنه فرزند ارجمند) حضرت محمد بن خنفیه نه مروی دی وائی چې ما د خپل

---

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٠١٦) (صحيح)

٢): صحيح البخاري/فضائل الصحابة ٥ (٣٦٧١)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٦٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المقدمة ١١ (١٠٦) (صحيح)

والد نه تپوس اوکړو چې د رسول الله ﷺ نه پس د ټولو نه افضل څوک دې؟ هغوی اووې: حضرت ابوبکر رضي الله عنه ما اووې: بیا څوک؟ وې وئیل چې حضرت عمر رضي الله عنه - بیا ماته اندیښنه اوشوه که چرې ما ترینه تپوس اوکړو چې د هغوی نه پس څوک دې نو هغوی اووائی چې حضرت عثمان رضي الله عنه - نو ما ترینه د ځانه تپوس اوکړو چې بیا خو به تاسو یئ، بابا جان! هغوی اووې: زهٔ خو په مسلمانانو کښې یو عام سړې یم.

**قوله:**﴿عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ قُلْتُ لأَبِي أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ أَبُو بَكْرٍ الخ﴾

د علی رضي الله عنه ځوئې محمد بن الحنفية فرمائی چه ما یوه ورځ د خپل پلار نه تپوس اوکړو چه د رسول الله ﷺ نه پس په باقی خلقو کښې افضل څوک دې، هغوی اوفرمائیل ابوبکر، ما ترې نه تپوس اوکړو بیا څوک؟ هغوی اوفرمائیل د هغوی نه پس د عمر رضي الله عنه درجه ده، هغوی فرمائی چه د دې نه پس ما د خپل سوال رخ بدلولو سره چه چرته دا او نه وائی چه د هغوی نه پس عثمان رضي الله عنه دې په دې وجه ما داسې سوال اوکړو چه بیا د عمر رضي الله عنه نه پس خو هم تاسو یئ نو هغوی جواب ورکړو ﴿مَا أَنَا إِلاَّ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ زما درجه به د هغوی نه پس څنګه شی، زه خو د عام مسلمانانو نه یم.

[٤٦٣٠](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِينٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي الْفِرْيَابِيَّ، قَالَ: سَمِعْتُ سُفْيَانَ، يَقُولُ: "مَنْ زَعَمَ أَنَّ عَلِيًّا عليه السلام كَانَ أَحَقَّ بِالْوِلَايَةِ مِنْهُمَا فَقَدْ خَطَّأَ أَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، وَالْمُهَاجِرِينَ، وَالْأَنْصَارَ، وَمَا أُرَاهُ يَرْتَفِعُ لَهُ مَعَ هَذَا عَمَلٌ إِلَى السَّمَاءِ".

حضرت سفیان ثوری رحمه الله به وئیل: د کوم سړی چې دغه ګمان وی چې حضرت علی رضي الله عنه د حضرت ابوبکر او د حضرت عمر رضی الله تعالی عنهما په نسبت د خلافت زیات حق دار وو نو هغه حضرت ابوبکر، حضرت عمر، مهاجرین او انصار رضي الله عنهم په غلطئ باندې اوګڼړل- او زهٔ نه پوهیږم چې ددغې عقیدې په موجودګئ کښې به ددې څه عمل د آسمان د طرف نهٔ راخی.

**قوله:**﴿ سَمِعْتُ سُفْيَانَ يَقُولُ مَنْ زَعَمَ أَنَّ عَلِيًّا رضى الله عنه كَانَ أَحَقَّ بِالْوِلَايَةِ مِنْهُمَا فَقَدْ خَطَّأَ أَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ وَالْمُهَاجِرِينَ وَالأَنْصَارَ وَمَا أُرَاهُ يَرْتَفِعُ لَهُ مَعَ هَذَا عَمَلٌ إِلَى السَّمَاءِ ﴾

سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه کوم سړې دا عقیده لری چه علی رضي الله عنه د خلافت زیات مستحق وو د شیخین نه نو هغه د شیخین او د ټولو مهاجرین او انصار تخطئه اوکړه، او زه دا خیال نه کوم چه د هغه به یو عمل هم اسمان ته اوخیژی د دې عقیدې سره، ځکه چه دا سړې مبتدع دې، د هغه عقیده د سلف دعقیدې خلاف ده.

[٤٦٣١](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ، حَدَّثَنَا عَبَّادٌ السَّمَّاكُ، قَالَ: سَمِعْتُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيَّ، يَقُولُ: "الْخُلَفَاءُ خَمْسَةٌ: أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ، وَعَلِيٌّ، وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ".

حضرت سفیان ثوری رحمه الله به فرمائیل خلفاء پنځه دی - یعنی ابوبکر، عمر، عثمان، علی اوعمر بن العزیز رضي الله عنهم.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٧٦٦) (صحيح الإسناد)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٧٦٧) (ضعيف الإسناد)

**قوله:** ﴿ سَمِعْتُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيَّ يَقُولُ الْخُلَفَاءُ خَمْسَةٌ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ وَعَلِيٌّ وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ رضی الله عنهم ﴾

سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه خلفاء پنځه دی یعنی د چا خلافت چه علی منهاج النبوة او خلافت راشده دې هغه پنځه دی خلفاء اربعه او پنځم عمر بن عبدالعزیز کوم چه په عمر ثانی سره معروف دې، او د اول صدئ مجدد دی.

## بَابٌ فِي الْخُلَفَاءِ

### باب د خلفاء (راشدینو) بیان

یعنی د خلفاء راشدین د مناقبو په بیان کښې او د هغوی نه علاوه هم د بعض خلفاء بنوامیه ذکر لکه حجاج، یعنی د هغه د سیرت سیئه او کردار په بیان کښې.

د احادیث الباب نه هم د خلفاء راشدین ترمینځه ترتیب معلومیږی او هغه هم هغه ترتیب دې کوم چه د دې حضراتو په خلافت کښې بیا موندلې شو لکه چه د اهل سنت والجماعت مسلک دې، لهذا په روافضو باندې به رد اوشی.

[٤٦٣٢] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ: مُحَمَّدٌ كَتَبْتُهُ مِنْ كِتَابِهِ، قَالَ: أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ: أَنَّ رَجُلًا أَتَى إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِنِّي أَرَى اللَّيْلَةَ ظُلَّةً يَنْطِفُ مِنْهَا السَّمْنُ وَالْعَسَلُ، فَأَرَى النَّاسَ يَتَكَفَّفُونَ بِأَيْدِيهِمْ، فَالْمُسْتَكْثِرُ وَالْمُسْتَقِلُّ، وَأَرَى سَبَبًا وَاصِلًا مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ، فَأَرَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَخَذْتَ بِهِ فَعَلَوْتَ بِهِ، ثُمَّ أَخَذَ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَعَلَا بِهِ، ثُمَّ أَخَذَ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَعَلَا بِهِ، ثُمَّ أَخَذَ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَانْقَطَعَ ثُمَّ وُصِلَ فَعَلَا بِهِ، قَالَ أَبُو بَكْرٍ: بِأَبِي وَأُمِّي لَتَدَعَنِّي فَلَأَعْبُرَنَّهَا، فَقَالَ: اعْبُرْهَا، قَالَ: أَمَّا الظُّلَّةُ: فَظُلَّةُ الْإِسْلَامِ، وَأَمَّا مَا يَنْطِفُ مِنَ السَّمْنِ وَالْعَسَلِ: فَهُوَ الْقُرْآنُ لِينُهُ وَحَلَاوَتُهُ، وَأَمَّا الْمُسْتَكْثِرُ وَالْمُسْتَقِلُّ: فَهُوَ الْمُسْتَكْثِرُ مِنَ الْقُرْآنِ وَالْمُسْتَقِلُّ مِنْهُ، وَأَمَّا السَّبَبُ الْوَاصِلُ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ: فَهُوَ الْحَقُّ الَّذِي أَنْتَ عَلَيْهِ تَأْخُذُ بِهِ فَيُعْلِيكَ اللَّهُ، ثُمَّ يَأْخُذُ بِهِ رَجُلٌ فَيَعْلُو بِهِ، ثُمَّ يَأْخُذُ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَيَعْلُو بِهِ، ثُمَّ يَأْخُذُ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَيَنْقَطِعُ ثُمَّ يُوصَلُ لَهُ فَيَعْلُو بِهِ، أَيْ رَسُولَ اللَّهِ لَتُحَدِّثَنِّي أَصَبْتُ أَمْ أَخْطَأْتُ؟ فَقَالَ: أَصَبْتَ بَعْضًا وَأَخْطَأْتَ بَعْضًا، فَقَالَ: أَقْسَمْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَتُحَدِّثَنِّي مَا الَّذِي أَخْطَأْتُ؟ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُقْسِمْ".

حضرت ابن عباس رضی الله عنه بیان کوی چی حضرت ابوهریره رضی الله عنه به وئیل چی یو سړی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راغلو اووې وئیل : ما نن شپه خوب لیدې وو چی د یوې وریځې نه غوړی او شهد راڅاڅی ماخلق اولیدل چی هغوی خپل لاسونه خواره کړی وو نو څه خلقو د هغې نه ډیر زیات زیات واخستل او څه خلقو ترینه کم واخستل. او ما یو پړې (رسئ) اولیدو کوم چی د آسمان نه تر زمکې پورې رازوړند دې، اې د الله رسوله صلی الله علیه وسلم! تاسو مې اولیدئ چی تاسو هغه نیولې دې او بره اوختئ - بیایو بل سړی هغه اونیوؤ او هغه هم بره اوختو- بیا یو بل سړی اونیوو هغه هم اوختو - بیا یو بل سړی اونیوو نو هغه پړې اوشلیدو - بیا جوړ کړې شو نو هغه بره اوختو - پس حضرت ابوبکر رضی الله عنه اووې ! زما موراو پلار په تاسو قربان! ماله اجازت راکړئ چی زه ددې تعبیر عرض کړم - هغوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: "ددې

١): انظر حدیث رقم: (٣٢٦٨)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٧٥) (صحیح)

تعبیر بیان کړه''نو هغوی اووې : هغه وریځه د اسلام سورې دې او د هغې راڅڅیدو واله غوړي او شهد، د قرآن پاک ملائمت او شرینی ده - د زیات او د کم اخستلو واله خو هم هغه دی کوم چې د قرآن پاک نه خپله حصه زیاته یا کمه اخلی- او د آسمان رازوړند شوې هغه پړې هم هغه حق دې په کوم باندې چې تاسو ﷺ یئ - تاسوهغه نیولې دې نو الله تعالیٰ به تاسو بلند اوفرمائی - بیا د تاسو نه پس به بل سړې هغه نیسی او ددې په ذریعه به بره اوخیژی - ددې نه پس به بل سړې نیسی هغه به هم اوخیژی - بیا دریم سړې به ئې نیسی نو هغه به اوشلیږی، بیا به د هغه په خاطر سره هغه دوباره جوړ کړې شی نو بیا به هغه اوخیژی - اې د الله رسوله ﷺ ماته ضروراوفرمایئ چې ما ټیک اووې یا غلط؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل : چې تاسو څه درست اووې او په څه کښې مو غلطی اوکړه - '' اې د الله رسوله ﷺ! چې زهٔ تاسو له قسم درکوم چې ما تهٔ ضرور اووائیئ چې ما څه غلطی اوکړه : هغوی ﷺ اوفرمائیل :''چې قسم مهٔ راکوه -''

**قوله:**﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ أَبُو هُرَيْرَةَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَجُلاً أَتَى إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ إِنِّى أَرَى اللَّيْلَةَ ظُلَّةً يَنْطِفُ مِنْهَا السَّمْنُ وَالْعَسَلُ فَأَرَى النَّاسَ يَتَكَفَّفُونَ بِأَيْدِيهِمْ فَالْمُسْتَكْثِرُ وَالْمُسْتَقِلُّ الخ ﴾

## شرح الحديث بالبسط :

د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چه ابوهریره رضي الله عنه به دا واقعه بیانوله چه یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو او راتلو سره هغه دا خواب بیان کړو چه نن شپه ما اولیدل چه په اسمان باندې د وریځ یو ټکړه ده چه د هغې نه شهد او غوړي راڅاڅي او خلق په زمکه باندې ولاړ د هغې نه په خپلو لاسونو کښې اخلی څوک کم او څوک زیات (د خوب یو جزء خو دا شو وړاندې د دویم جزء بیان دې) او زهٔ ګورم چه یو رسئ ده چه د آسمان نه د زمکې طرف ته راغلې ده، پس ما تاسو اولیدئ یا رسول الله ﷺ چه تاسو دا رسئ اونیوله او د هغې په نیولو سره پورته لاړئ بیا ستاسو نه پس یو بل سړی هم هغه رسئ اونیوله او هغه هم د هغې په نیولو سره پورته لاړو، بیا یو بل سړی اونیوله هغه هم د دې په ذریعه اوختلو، بیا یو دریم سړی هغه رسئ اونیوله خو هغه رسئ اوشلیده خو بیا روغه شوه پس هغه هم د هغې په ذریعه اوختلو، کومه رسئ چه د رسول الله ﷺ په لاس کښې وه د هغې مصداق خو د هغوی نبوت دې، او کومه رسئ چه د نورو حضراتو په لاس کښې وه دهغې مصداق خلافت نبوت دې، د هغوی نه پس چه کوم دویم سړې راغلو هغه صدیق اکبر رضي الله عنه دې او خپل مدت خلافت پوره کولو سره ئې الله پاک سره ملاقات اوکړو، علی هذا القیاس کوم صاحب چه د هغوی نه پس تشریف راوړلو یعنی عمر رضي الله عنه، او بیا چه د هغوی نه روستو راغلو د هغوی نه مراد عثمان غنی رضي الله عنه دې خو د هغوی رسئ اوشلیده او بیا په روایت کښې دا دی چه هغه بیا روغه شوه یعنی د خلافت تسلسل قائم وو چه هغه خلافت د هغوی نه ما بعد طرف ته منتقل شو. او د دې تسلسل په تمامیت سره هغه دریم صاحب هم پورته لاړو، خوب پوره شو، ﴿ قَالَ أَبُو بَكْرٍ بِأَبِى وَأُمِّى لَتَدَعَنِّى فَلأَعْبُرَنَّهَا .فَقَالَ « اعْبُرْهَا » ﴾ یعنی د خوب د

اوریدو نه پس مخکښې د دې نه چه رسول الله ﷺ ئې تعبیر بیان کړي په حاضرین مجلس کښې صدیق اکبر رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ زما مور پلار دې په تاسو قربان وی تاسو ما پریږدئ یعنی ماته دې باره کښې د پیش قدمۍ اجازت راکړئ چه زه د دې خوب تعبیر بیان کړم حضرت صدیق اکبر د خوب په تعبیر کښې رغبت او شوق ښکاره کولو سره د رسول الله ﷺ نه اجازت ولې اوغوښتلو، ممکنه ده چه د هغه منشاء به دا وه چه دا خوب د رسول الله ﷺ په حق کښې زیرې دې چه تاسو په منصب نبوت باندې فائز کیدو سره درجې د کمال ته اورسیدې او دا څیز خپله خو د رسول الله ﷺ په حق کښې د فخر سبب دې خو د هغوی امت هم کوم چه په هغوی باندې ځان قربانوی چه په هغوی کښې د ټولو نه مخکښې صدیق اکبر رضی الله عنه دې د هغوی دپاره هم دا د فخر سبب دې هم په دې وجه د منقبت د بیان په طور صدیق اکبر رضی الله عنه په دې کښې حصه اخستل اوغوښتل، او په دې حیثیت سره هم چه رسول الله ﷺ به د خپل ځان دپاره فخر نه خوښولو، یو سړې هغوی ته اووې یا خیر البریة ! نو هغوی اوفرمائیل ذاک ابراهیم، او اګر چه د بیان واقع په طور خپل اوصاف کوم چه د فخر سبب کیدې شی هغه رسول الله ﷺ د خپل امت مخکښې بیان کړل د اظهار حقیقت دپاره خو ورسره د فخر نفی هم کوی لکه ﴿ بیدی لواء الحمد یوم القیامة ولا فخر وانا سید ولد ادم ولا فخر ونحو ذلک من الاوصاف ﴾ ﴿ قَالَ أَمَّا الظُّلَّةُ فَظُلَّةُ الإِسْلاَمِ وَأَمَّا مَا يَنْطِفُ مِنَ السَّمْنِ وَالْعَسَلِ فَهُوَ الْقُرْآنُ لِينُهُ وَحَلاَوَتُهُ ﴾ صدیق اکبر رضی الله عنه د خوب دا تعبیر اوفرمائیلو چه د وریځې مصداق خو اسلام دې او د هغې نه چه کوم شهد او غوړی راڅاسی د هغې مصداق قرآن کریم دې. د قرآن کریم طراوت او حلاوت، ممکنه ده چه په دې وصفونو کښې یو د یو تعلق د قرآن کریم د مضمون او معانی سره دې، او د دویم تعلق د هغې د کمال بلاغت او حسن تعبیر سره دې، هغه چه هر څه وی خو صدیق اکبر رضی الله عنه د سمن او د عسل د دواړو مصداق په قرآن کریم کښې منحصر کړو. ﴿ وَأَمَّا الْمُسْتَكْثِرُ وَالْمُسْتَقِلُّ ﴾ د دې په باره کښې هغوی اوفرائیل چه دا دواړه کسان هم هغه دی کوم چه د قران کریم نه فائده اوچتونکی دی یو زیات او بل کم، او وړاندې ئې اوفرمائیل ﴿ وَأَمَّا السَّبَبُ الْوَاصِلُ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الأَرْضِ ﴾ نه مراد هغه حق او نبوت دې په کوم باندې چه تاسو قائم یئ تاسو دا په مضبوطیا سره نیولې دې چه د هغې په وجه باندې به الله پاک تاسو ته فوقیت او اوچتوالې درکوی، بیا به دې کار لره ستاسو نه پس یعنی خلافت نبوت لره یو سړې اوچتوی او د هغې په وجه باندې به هغه فوقیت حاصلوی د هغه نه پس به دویم سړې راځی کوم چه به دا کار سنبهالوی او د هغې په وجه باندې به فوقیت حاصلوی، بیا به یو دریم سړې راشی دا کار به سنبهالوی بیا به په دې سړی راتلو باندې د دې سلسلې رسۍ ماته شی،[1] بیا به هغه اوتړلې شی، بیا به هغه هم اوخیژی، د

[1] رسول الله ﷺ او حضرت شیخین خو ګویا د خپل ځان نه روستو د خلاقت مسئله اشارة یا صراحة مقرر کړې وه او د عثمان رضی الله عنه د طرف نه د استخلاف په باره کښې څه هدایت نه وو تردې چه د هغوی د شهادت واقعه پیښه شوه او بیا په دې باندې هم څو ورځې تیریدو نه پس د خلیفه تعین اوشو په دې وجه په دې خوب کښې د دغه کیفیت نه په انقطاع سره تعبیر اوکړې شو او د دې نه پس....... له

دې تعبير عرض كولو نه پس صديق اكبر ﷜ عرض اوكړو: ﴿ أَيْ رَسُولَ اللهِ لَتُحَدِّثَنِّي أَصَبْتُ أَمْ أَخْطَأْتُ ﴾ چه يا رسول الله ﷺ تاسو ماته دا بيان كړئ چه ما صحيح اووې او كه غلط؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څۀ دې صحيح اووې او څه دې غلط، هغوى عرض اوكړو چه زه تاسو ته قسم دركولو سره عرض كوم يا رسول الله ﷺ چه تاسو ماته ضرور بيان كړئ چه څه خطاء مې اوكړه، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ﴿ أَصَبْتَ بَعْضًا وَأَخْطَأْتَ بَعْضًا ﴾ چه قسم ولې خورئ، يعنى زه درته وايم نه.

د دې خطاء په تعيين كښې كوم چه رسول الله ﷺ ښكاره نه كړه ظاهر ، د شراح حديث رائې مختلف دى يو قول دا دې چه د خطاء نه مراد د رسول الله ﷺ په موجودګئ كښې په تعبير كښې پيش قدمى كول او د هغې اجازت اخستل او بعضو اووې چه د تعبير په بعض اجزاء كښې خطاء مراد ده، اوس دا چه هغه خطاء څه ده په دې كښې بعض وائى چه هغوى د سمن او عسل دواړو تعبير په قرآن كريم سره وركړو د يو تعبير په قرآن سره او د بل په حديث سره وركول پكار دى، او حضرت په الكوكب الدرى ۴۷/۲ كښې په تعيين د خطاء كښې دا اقوال غلط ګرزولى دى او خپله رائې ئې دا ليكلې ده چه د خوب يو حصه كومه چه تعبير او تشريح ته محتاج ده او په خپل ظاهر باندې نه ده، صديق اكبر ﷜ ته د هغې تشريح كول پكار وو هغه هغوى هم داسې پريخودله چه د هغې نه معلوميږى چه هغې لره هغوى په خپل ظاهر باندې محمول كړو يعنى د خوب يوجزء داوو ﴿ ثُمَّ أَخَذَ بِهِ رَجُلٌ آخَرُ فَانْقَطَعَ ثُمَّ وُصِلَ فَعَلاَ بِهِ ﴾ د دې د ظاهر نه خو دا معلوميږى چه په كوم سړى باندې رسئ ماته شى هم د هغه دپاره به دا دوباره ترلې شى حال دا چه داسې نه ده په حقيقت كښې يعنى مقطوع له موصول له نه دې بلكه د هغه نائب او خليفه دې يعنى كوم چه به د هغه نه روستو راځى او په خوب كښې دواړو ته د يو تعبير حيثيت څكه وركړې شو چه د نائب فعل ګويا د اصل فعل دې، او صديق اكبر ﷜ د دې وضاحت اونكړو بلكه د خوب دا جزء ئې په ظاهر باندې محمول كړو اهـ د حضرت په نزد د خطاء مصداق دا دې، هم د دې قسم خبره د امام ابن القيم ﷫ د كلام نه هم مستفاد كيږى. والله تعالى اعلم... په حاشيه د كوكب كښې هم په تعين د خطاء كښې ډير كلام دې ګويا د شراح د اقوالو تلخيص دې فارجع اليه لوشئت. دا حديث مختصرا په كتاب الايمان والنذور كښې په باب القسم ﴿ هل يكون يمينا ﴾ كښې تير شوې دې او هلته دې باره كښې يو اختلافى مسئله هم تيره شوې ده چه په لفظ قسم سره د قسم منعقد كيږى يا نه؟

[۴۶۳۳] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَأَبَى أَنْ يُخْبِرَهُ.

حضرت ابن عباس ﷜ نبى كريم ﷺ نه دغه مذكوره قصه بيان كړه - وې وئيل چې تاسو ﷺ د غلطئ د وضاحت نه انكار اوفرمائيلو-

۶...... چه كله د خليفه تعين اوشو نو د دې انقطاع تسلسل نه پس دهغې وصل اوشو هم دا فرق په دې خوب كښې ظاهر كړې شوې دې)

(۱): انظر حديث رقم: (۳۲۶۹)، (تحفة الأشراف: ۵۸۳۸) (ضعيف الإسناد)

[٤٦٣٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا الْأَشْعَثُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ: "مَنْ رَأَى مِنْكُمْ رُؤْيَا، فَقَالَ رَجُلٌ: أَنَا رَأَيْتُ كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ فَوُزِنْتَ أَنْتَ وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحْتَ أَنْتَ بِأَبِي بَكْرٍ، وَوُزِنَ عُمَرُ، وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحَ أَبُو بَكْرٍ، وَوُزِنَ عُمَرُ، وَعُثْمَانُ فَرَجَحَ عُمَرُ، ثُمَّ رُفِعَ الْمِيزَانُ، فَرَأَيْنَا الْكَرَاهِيَةَ فِي وَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

حضرت ابوبکره رضی الله عنه روایت کوی چې نبی ﷺ یو ورځ تپوس اوفرمائیلو: په تاسو کښې چا خوب لیدلې دې؟ " یو سړی اووې: ما- ما اولیدل چې ګویا د آسمان نه یوه تله (میزان) رازوړنده ده نو د ستاسو ﷺ او د حضرت ابوبکر رضی الله عنه وزن اوکړې شو نو تاسو ﷺ د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه په وزن کښې درانه شوئ- او د حضرت عمر رضی الله عنه او د حضرت عثمان رضی الله عنه وزن اوکړې شونو حضرت عمر رضی الله عنه په وزن کښې درون شوبیا هغه تله اوچته کړې شوه - نو (په دغه خبره باندې)مونږ د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې د نا پسندیدګۍ آثار اولیدل-

**قوله:**( عَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ « مَنْ رَأَى مِنْكُمْ رُؤْيَا ».فَقَالَ رَجُلٌ أَنَا رَأَيْتُ كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ فَوُزِنْتَ أَنْتَ وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحْتَ أَنْتَ بِأَبِي بَكْرٍ وَوُزِنَ عُمَرُ وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحَ أَبُو بَكْرٍ وَوُزِنَ عُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَحَ عُمَرُ ثُمَّ رُفِعَ الْمِيزَانُ فَرَأَيْنَا الْكَرَاهِيَةَ فِي وَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم)

## شرح الحديث:

یعنی یوه ورځ رسول الله ﷺ د حاضرینِ مجلس نه تپوس اوکړو چه آیا په تاسو کښې چا نن شپه خوب لیدلې دې؟ نو یو صحابی عرض اوکړو چه ما لیدلې دې نن شپه چه یو تله ده چه د آسمان نه راکوزه شوه چه په هغې کښې تاسو او ابوبکرصدیق رضی الله عنه اوتللې شوئ نو تاسو درانهٔ شوئ، د دې نه پس ابوبکر او عمر رضی الله عنهما اوتللې شو، نو ابوبکر رضی الله عنه دروند شو، بیا عمر او عثمان او تللې شو په دې کښې عمر رضی الله عنه دروند شو، خوب لیدونکې وائی چه بیاهغه تله پورته لاړه، صحابه کرام رضی الله عنهم فرمائی چه د دې خوب د اوریدلو نه پس مونږ د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې د خفګان اثر اولیدو.

په ظاهر کښې د دې وجې نه لکه چه د بعض شارحینو د کلام نه معلومیږی چه موازنه د څیزونو د اشیاء متقاربه ترمینځه وی یعنی چرته چه د دوه څیزونو ترمینځه معمولی شان کمې یا زیادت وی په وزن کښ، او د کومو دوه څیزونو ترمینځه چه فرق بین او ښکاره وی، د هغې موازنه څوک کوی، هلته خو خپله په نظر راځی چه کوم زیات دې او کوم کم، نو ګویا په رفع د میزان سره اشاره اوشوه د بون بعید (ډیر مسافت اوفرق) طرف ته یعنی د عثمان او علی رضی الله عنهما ترمینځه به فرق زیات وی هم په دې وجه تول اونکړې شو، نو هم په دې باندې رسول الله ﷺ خفه شو، خو حضرت ګنګوهی دا توجیه نه ده غوره کړې په الکوکب الدری دویم جلد کښې په دې وجه باندې چه د ابوبکر او عمر رضی الله عنهما په مینځ کښې هم بون بعید وو.حضرت فرمائی چه زما په نزد ظاهره دا ده چه د رسول الله ﷺ غم د رفع میزان

---

[1]: سنن الترمذي/الرؤيا ١٠ (٢٢٨٧)، (تحفة الأشراف: ١١٦٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤/٥، ٥٠) (صحيح)

او ترک موازنه د عثمان او علي رضي الله عنهما ترمينځه د دې وجه نه نۀ دي بلکه د دې پوره خوب اوريدلو سره د رسول الله ﷺ ذهن په دې امت کښې د راتلونکي زوال او فتن او مصائبو ته منتقل کيدو سره اوشو، د دې نه پس چه کوم روايت راروان دې په هغې کښې دا زيادت دې ﴿فقال خِلَافَةُ نُبُوَّةٍ ثُمَّ يُؤْتِي اللَّهُ الْمُلْكَ مَنْ يَشَاءُ﴾ يعنی زما نه پس به په شروع کښې خو خلافت د علي رضي الله عنه على منهاج النبوة وي او د دې نه پس به بيا بادشاهت راشي د چا په لاس کښې چه راتلل مقدر دي.

دلته دا شبه پيدا کيږي چه چونکه په دې حديث کښې چه کوم خوب ذکر دې په هغې کښې د خلافت عثمان رضي الله عنه پورې ذکر دې وړاندې نشته چه دهغې نه دا شبه پيدا کيږي چه د علي رضي الله عنه د زمانې نه به په ځائې د خلافت ملک او بادشاهت شروع شي. حال دا چه د اهل سنت په دې باندې اتفاق دې چه په خلافت على منهاج النبوة کښې سيدنا علي رضي الله عنه هم داخل دې د دې جواب حضرت په بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقرير نه دا نقل کړې دې چه دلته لفظ ثم د تراخي او فصل بالمهملة دپاره دې يعنی د دې نه پس به وړاندې تلو سره بادشاهت شروع شي، د عثمان رضي الله عنه نه پس متصلاً مراد نه دې بلکه دعثمان رضي الله عنه نه پس د علي رضي الله عنه خلافت او د هغوی نه پس د حسن بن علي رضي الله عنهما خلافت هم داسې دې د هغې نه پس ملک او بادشاهت دې. والحديث اخرجه الترمذي، قاله المنذري.

[٤٦٣٥] [1] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ: أَيُّكُمْ رَأَى رُؤْيَا؟، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ وَلَمْ يَذْكُرِ الْكَرَاهِيَةَ، قَالَ: فَاسْتَاءَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي فَسَاءَهُ ذَلِكَ، فَقَالَ: خِلَافَةُ نُبُوَّةٍ ثُمَّ يُؤْتِي اللَّهُ الْمُلْكَ مَنْ يَشَاءُ.

حضرت عبد الرحمن د خپل والد ابوبکره رضي الله عنه نه روايت کوی چې نبی ﷺ يوه ورځ تپوس اوفرمائيلو: "په تاسو کښې چا خوب ليدلې دې؟" نو د مذکوره بالا روايت هم معنی بيان اوشولو- خو په دغه روايت کښې د "کراهيه" ذکر نشته- بلکې (فاستاء لها رسول الله ﷺ) يعنی هغوی ﷺ ته دغه کيفيت ډير خوبن شو- بيا ئې اوفرمائيل: "دا د نبوت خلافت دې- بيا ددې نه پس الله تعالىٰ چاته غواړی خپل ملک به ورته عنايت اوفرمائي-

[٤٦٣٦] [2] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ، عَنِ الزُّبَيْدِيِّ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أُرِيَ اللَّيْلَةَ رَجُلٌ صَالِحٌ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ نِيطَ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَنِيطَ عُمَرُ بِأَبِي بَكْرٍ، وَنِيطَ عُثْمَانُ بِعُمَرَ، قَالَ جَابِرٌ: فَلَمَّا قُمْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْنَا: أَمَّا الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَمَّا تَنَوُّطُ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ فَهُمْ وُلَاةُ هَذَا الْأَمْرِ الَّذِي بَعَثَ اللَّهُ بِهِ نَبِيَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ يُونُسُ، وَشُعَيْبٌ، لَمْ يَذْكُرَا عَمْرَو بْنَ أَبَانَ.

حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه به بيان فرمائيلو چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "نن شپه يو نيک بنده ته خوب اوښودل شو چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره معلق کړې

[1]: تفرد به أبو داود، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٦٨٧) (صحيح)
[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٥٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٥٥) (ضعيف)

شو او حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت ابو بکر رضی الله عنه سره معلق کړې شو او حضرت عثمان رضی الله عنه د حضرت عمر رضی الله عنه سره معلق کړې شو.'' حضرت جابر رضی الله عنه اووې: بیا چې کله مونږ د رسول الله ﷺ د خوا نه پاسیدو نو مونږ اووې: ''صالح سړې'' خو هغه پخپله رسول الله ﷺ دې او د هغوی د یو بل سره معلق کیدل چې هم دغه خلق ددې امر ذمه وار دی د کومو سره چې الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ مبعوث اوفرمائیلو. امام ابو داود رحمه الله فرمائی چې دغه روایت یونس او شعیب روایت کړې دې. خو دوی دواړو په سند کښې د عمرو (بن ابان) ذکر نه دې کړې.

**قوله:** ﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ ........أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « أُرِىَ اللَّيْلَةَ رَجُلٌ صَالِحٌ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ نِيطَ بِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَنِيطَ عُمَرُ بِأَبِى بَكْرٍ وَنِيطَ عُثْمَانُ بِعُمَرَ ».قَالَ جَابِرٌ فَلَمَّا قُمْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قُلْنَا الخ﴾

جابر رضی الله عنه فرمائی (چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل) نن شپه یو صالح انسان ته په خوب کښې اوښودلې شو چه ابوبکرصدیق رضی الله عنه اینختلې دې په رسول الله ﷺ پورې او عمر په ابوبکر پورې او عثمان په عمر پورې رضی الله عنهم. جابر رضی الله عنه فرمائی چه کله مونږ د هغوی د مجلس نه بهر راغلو نو خپل مینځ کښې مو اووې یعنی د دې خوب په تعبیر کښې چه د رجل صالح نه مراد خو خپله رسول الله ﷺ دې او دا د بعضو د بعضو پورې اینختل نو د دې مطلب دا دې چه په کوم دین باندې رسول الله ﷺ رالیږلې شوې دې نو دا حضرات کوم چه په خوب کښې ذکر شوې دی هم دوی به د دې دین په ترتیب سره ذمه دار وی، د رسول الله ﷺ نه پس ابوبکر او د هغوی نه پس عمر او د هغوی نه پس عثمان رضی الله عنهم.

[٤٦٣٧](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَ: حَدَّثَنِي عَفَّانُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ: أَنَّ رَجُلًا، قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي رَأَيْتُ كَأَنَّ دَلْوًا دُلِّيَ مِنَ السَّمَاءِ، فَجَاءَ أَبُو بَكْرٍ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا فَشَرِبَ شُرْبًا ضَعِيفًا، ثُمَّ جَاءَ عُمَرُ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا فَشَرِبَ حَتَّى تَضَلَّعَ، ثُمَّ جَاءَ عُثْمَانُ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا فَشَرِبَ حَتَّى تَضَلَّعَ، ثُمَّ جَاءَ عَلِيٌّ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا فَانْتَشَطَتْ وَانْتَضَحَ عَلَيْهِ مِنْهَا شَيْءٌ".

د حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه نه مروې دی چې یو سړی اووې: اې د الله رسوله ﷺ! ما لیدلې دی چې ځنګه یو ډول (ډولچه) د آسمان نه رازوړند شوې ده، نو حضرت ابوبکر رضی الله عنه راغلې دې او دا ئې د دواړو طرف د اړخونو نه اونیوو او د هغې نه ئې اوبه اوڅښلې، خو د کمزورئ سره. بیا حضرت عمر رضی الله عنه راغلو نو هغه د دواړو اړخو نه اونیو او اوبه ئې اوڅښلې او ښه ډیری په مړه خیټه ئې اوڅښلې. بیا حضرت عثمان رضی الله عنه راغلو او هغوی د دواړو طرف نه اونیواو اوبه ئې ښه په مړه خیټه اوڅښلې. بیا حضرت علی رضی الله عنه راغلو، هغوی د دواړو اړخو نه اونیوو نو هغه اوخوزیدو او د هغې نه څه اوبه په هغوی باندې راپریوتې.

**قوله:** ﴿عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ أَنَّ رَجُلاً قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّى رَأَيْتُ كَأَنَّ دَلْوًا دُلِّىَ مِنَ السَّمَاءِ فَجَاءَ أَبُو بَكْرٍ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا فَشَرِبَ شُرْبًا ضَعِيفًا ثُمَّ جَاءَ عُمَرُ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا فَشَرِبَ حَتَّى تَضَلَّعَ ثُمَّ جَاءَ عُثْمَانُ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا فَشَرِبَ حَتَّى تَضَلَّعَ ثُمَّ جَاءَ عَلِىٌّ فَأَخَذَ بِعَرَاقِيهَا ........مِنْهَا شَىْءٌ﴾

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٦٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١/٥) (ضعيف)

## شرح الحديث بالبسط :

د سمره بن جندب نه روايت دي چه يو سړي د رسول اللهﷺ په خدمت کښې راغلو او راتلو سره ئې خپل خوب بيان کړو چه ما په خوب کښې اوليدل چه يو بوقه د اسمان د طرف نه زمکې طرف ته رازورنده ده لږ ساعت پس صديق اکبرؓ راغلو هغوى د دې بوقې دواړه طرفونه اونيول او د هغې نه ئې اوبه اوڅکلې، بيا عمر فاروقؓ تشريف راوړلو او هغوى هم د دې حلقې په نيولو سره د هغې نه اوبه اوڅکلې او څکلې يئ تر دې چه ښه خړوب شو، بيا عثمانؓ راغلو هغوى دا هم دغه شان نيولو سره اوچته کړه او ښه موړ شو بيا علىؓ تشريف راوړلو هغوى هم دغه شان اونيوله او څکل ئې شروع کړل نو د دې بورقې اوبه راوسسيدې او په هغوى باندې هم څه اوبه راتوې شوې.

د دې خوب په باره کښې په کتب حديث کښې الفاظ مختلف دى، د بخارى په يو روايت کښې دى : ﴿أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ،رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا،قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم : بَيْنَمَا أَنَا عَلَى بِئْرٍ أَنْزِعُ مِنْهَا جَاءَنِي أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَأَخَذَ أَبُو بَكْرٍ الدَّلْوَ فَنَزَعَ ذَنُوبًا،أَوْ ذَنُوبَيْنِ وَفِي نَزْعِهِ ضَعْفٌ وَاللَّهُ يَغْفِرُ لَهُ ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ مِنْ يَدِ أَبِي بَكْرٍ فَاسْتَحَالَتْ فِي يَدِهِ غَرْبًا فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا مِنَ النَّاسِ يَفْرِي فَرِيَّهُ فَنَزَعَ حَتَّى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ﴾ حافظؒ فرمائى :وفي حديث أبي هريرة في الباب الذي يليه رأيتني على قليب وعليها دلو فنزعت منها ما شاء الله ....دې نه پس حافظ د ابوداؤد دا حديث کوم چه د سمره بن جندبؓ نه روايت دې هغه ذکر کړې دې : أَنَّ رَجُلاً قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي رَأَيْتُ كَأَنَّ دَلْوًا دُلِّيَ مِنَ السَّمَاءِ.....په دې دواړو احاديثو کښې فرق ښکاره دې د ابن عمرؓ د حديث نه خو معلوميږى چه خوب ليدونکې خپله رسول اللهﷺ ته خپل خوب بيان کړو، قال ابن العربي حديث سمرة يعارض حديث بن عمر وهما خبران قلت (الحافظ)الثاني هو المعتمد فحديث ابن عمر مصرح بأن النبي صلى الله عليه و سلم هو الرائي وحديث سمرة فيه أن رجلا أخبر النبي صلى الله عليه و سلم أنه رأى ومن المغايرة بينهما أيضا أن في حديث ابن عمر نزع الماء من البئر وحديث سمرة فيه نزول الماء من السماء فهما قصتان تشد إحداهما الأخرى وكأن قصة حديث سمرة سابقة فنزل الماء من السماء وهي خزانته فأسكن في الأرض كما يقتضيه حديث سمرة ثم أخرج منها بالدلو كما دل عليه حديث ابن عمر وفي حديث سمرة إشارة إلى نزول النصر من السماء على الخلفاء وفي حديث ابن عمر إشارة إلى استيلائهم على كنوز الأرض بأيديهم وكلاهما ظاهر من الفتوح التي فتحوها ....الى آخر ما ذكر ([1]) او د ترمذى د روايت الفاظ بل شان دى : عن عبد الله بن عمر عن رؤيا النبي صلى الله عليه و سلم و أبي بكر و عمر : قال رأيت الناس اجتمعوا فنزع أبو بكر ذنوبا أو ذنبين فيه ضعف والله يغفر له ...الحديث. د

[1]) وهو هذا: وفي حديث سمرة زيادة إشارة إلى ما وقع لعلي من الفتن والاختلاف عليه فان الناس أجمعوا على خلافته ثم لم يلبث أهل الجمل أن خرجوا عليه وامتنع معاوية في أهل الشام ثم حاربه بصفين ثم غلب بعد قليل على مصر وخرجت الحرورية على علي فلم يحصل له في أيام خلافته راحة فضرب المنام المذكور مثلا لأحوالهم رضوان الله عليهم أجمعين (فتح الباري ۴۲۹/۱۲)

حافظ رائي دا ده چه دا د خوب دواړه قصې بيلې بيلې دی په يو کښې خوب ليدونکی خپله رسول اللهﷺ دې او په دويمه قصه کښې خوب ليدونکې بل څوک صحابیؓ دې او د خوبونو د مضمون مناسب ترتيب دا معلوميږی چه اولنې خوب ليدلې دې يو صحابی چه په هغې کښې دا دی چه د اسمان نه د اوبو بوقه راکوزه شوه او روستو قصه پيښه شوه خپله د رسول اللهﷺ د خوب د ليدلو چه په هغې کښې دی چه رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه ما اوليدو خپل ځان چه زه د کوهی نه د بوقې په ذريعه اوبه راوباسم ځکه چه د اوبو اصل مخزن اسمان دې بيا د هغه ځائې نه زمکې ته راورسيدلې بيا زمکې ته د رارسيدلو نه پس د کوهی نه، هغه په بوقې سره راويسلې شوې لکه چه په حديث د ابن عمرؓ کښې خپله د رسول اللهﷺ د خوب په باره کښې دی او بيا د هغې نه روستو په رواياتو کښې چه په هغې کښې د صديق اکبرؓ نه د اوبو د ويستلو ابتداء ذکر ده په هغې کښې اختصار دې، د اوبو رابښکلو ابتداء خپله رسول اللهﷺ اوکړه او د هغوی نه پس بيا صديق اکبرؓ راغلو او هغوی راويستل شروع کړل، بهر حال د خوب مضمون دا دې چه رسول اللهﷺ د کوهی نه د بوقې په ذريعه اوبه راويستلې نو صديق اکبرؓ د رسول اللهﷺ د لاس مبارک نه بوقه اخستلو سره خپله اوبه راويستل شروع کړل.(پس د بخاری په يو روايت کښې دی فاخذ ابوبکر مني الدلو ليريحني (فتح ۱۲/۳۳۰) او هغوی صرف يو يا دوه بوقې اوبه راويستلې، چه د هغه په رابښکلو کښې کمزوری وه، د دې نه پس د بخاری او ترمذی په روايت کښې دی په بخاری کښې ﴿ فغفر الله له ﴾ او د ترمذی په لفظ کښې دی ﴿ والله يغفر له ﴾ او د هغوی نه پس عمرؓ راغلو هغوی ښه ځان مور کړو او په يو روايت کښې دی ﴿ فاستحالت في يده الغربا ﴾ چه د هغوی په لاس کښې راتلو سره هغه بوقه لويه شوه پس ما نه دې ليدلې يو مضبوط سړې او پهلوان چه محنت او کار کوی د هغوی په شان، يعنی عمرفاروقؓ د يو زبردست پهلوان په شان د دې کوهی نه اوبه راويستلې، د بخاری په يو روايت کښې د دې نه پس دی ﴿ حتی ضرب الناس بعطن ﴾ تردې چه خلقو يعنی د اوښانو والو هلته يعنی دې کوهی ته نزدې د کوم نه چه اوبه راويستلې شوې د اوښانو د تړلوځائې جوړ کړو(ځکه چه اوښانو والا اوښانولره د اوبوچيښې ته نزدې ورولی)

حافظ فرمائی چه په قوت او ضعف سره د اوبو رابښکلو نه مراد لکه چه د حضرات شيخين په باره کښې دی فتوح او غنائم دی چه هغه د صديق اکبرؓ په زمانه کښې ډير کم شوې دی د هغوی د خلافت د مودې د مختصر کيدو د وجې نه او د فاروق اعظمؓ په زمانه کښې د دې فتوحاتو ډير کثرت اوشو د هغوی د خلافت د مودې د اوږدوالی نه چه تقريبا لس يا لس نيم کاله وه په خلاف د صديق اکبرؓ چه د هغوی د خلافت موده ټوله دوه کاله يا څه دپاسه دوه کاله وه، او هم دغه شان په دې خوب کښې د عثمانؓ په باره کښې دی چه هغوی هم ښه په کثرت سره اوبه راويستلې د هغوی د خلافت موده خو د عمرؓ د خلافت نه هم زياته وه تقريبا دولس کاله، د هغې نه پس د علیؓ د اوبو راويستلو ذکر دې او د هغوی په راويستلو کښې د اوبو د غورځيدو ذکر دې چه په هغې

کښې اشاره ده هغه انتشار او اختلاف طرف ته کوم چه هغوی سره د هغوی د خلافت په زمانه کښې راپیښ شوې وو جنګ جمل او صفین وغیره، او پورته د حافظ په کلام کښې هم تیر شوې دی چه په دې خوب کښې اشاره ده په خلفاء راشدین باندې د اسمان نه د نصرت د نزول، او اشاره ده د دې صحابه کرامو رضی الله عنهم د زمکې په خزانو باندې د غالب راتلو طرف ته هم لکه چه رسول الله ﷺ په یو بل حدیث کښې اوفرمائیل. ﴿ ستفتح علیکم کنوز کسری وقیصر ﴾

د صدیق اکبر رضی الله عنه په باره کښې چه دا راغلی دی چه ﴿ والله یغفر له ﴾ امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې کښې اشاره د هغوی څه ګناه یا تقصیر طرف ته نه ده او نه د هغوی په باره کښې څه نقص دې، انما هی کلمة کان المسلمون یزینون بها کلامهم، وقد جاء فی صحیح مسلم انها کلمة کان المسلمون یقولونها افعل کذا والله یغفر لک .....چه دا کلمه بعض وخت د تزیین کلام دپاره راوړلې شی او بعض وخت د یو کار د ترغیب په وخت چه دا کار په محنت سره کوه انشاء الله ستا د مغفرت ذریعه به وی اهـ کلام النووی هـامش کوکب.

دا د خوب والا حدیث په صحیحین کښې هم شته په نورو طرقو سره او هم دغه شان په ترمذی کښې هم، لکه چه د پورته مضمون نه معلومه شوه.

[٤٦٣٨](1) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ مَكْحُولٍ، قَالَ: "لَتَمْخُرَنَّ الرُّومُ الشَّامَ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا، لَا يَمْتَنِعُ مِنْهَا إِلَّا دِمَشْقُ، وَعَمَّانُ".

د حضرت مکحول رحمه الله نه روایت دې، هغوی اووې : ضرور به داسې کیږی چې رومی خلق به تر څلویښتو ورځو پورې د شامیانو کورونو کښې ورننوتی وی ددغې (فتنې) نه به سیوا د دمشق او د عمان نه بغیر بل ښار نه بچ کیږی.

**قوله:** ﴿ عَنْ مَكْحُولٍ قَالَ لَتَمْخُرَنَّ الرُّومُ الشَّامَ أَرْبَعِينَ صَبَاحًا لاَ يَمْتَنِعُ مِنْهَا إِلاَّ دِمَشْقُ وَعَمَّانُ ﴾

المخر الشق د باب فتح او نصر نه وئیلې شی مخرت السفینة چه کله هغه اوبو لره شلولو سره ځی مکحول شامی رحمه الله فرمائی چه اهل روم به شام لره به شلولو سره ګرځی تر څلویښتو ورځو پورې. بچ به نه شی یعنی محفوظ به نه ری د شام په علاقو کښې یو مقام سوا د دمشق او عمان نه، یعنی په هغه جنګ کښې چه کوم به د رومیانو د طرف نه وی د شامیانو سره په بلاد شام کښې هیڅ مقام سوا د دمشق او عمان نه، یعنی په دې جنګ کښې چه کوم به د رومیانو د طرف نه وی د شامیانو سره په بلاد شام کښې صرف دا دوه ځایونه به ترې نه محفوظ پاتې شی، په بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه نقل کړې دی چه په دې حدیث کښې چه د کوم جنګ او فتنې ذکر دې او هم دغه شان د دې نه روستو حدیث کښې مونږ ته نه ده معلومه چه د هغې تاریخ وقوع څه دې او دا کله شوې دې یا به کیږی. (والله تعالی اعلم)

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٤٦٤) (صحيح الإسناد)

[٤٦٣٩](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عَامِرٍ الْمُرِّيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الْأَعْيَسِ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ سَلْمَانَ، يَقُولُ: "سَيَأْتِي مَلِكٌ مِنْ مُلُوكِ الْعَجَمِ يَظْهَرُ عَلَى الْمَدَائِنِ كُلِّهَا إِلَّا دِمَشْقَ".

حضرت ابو اعیس عبد الرحمن بن سلمان رحمه الله به بیان فرمائیلو چی یو عجمی بادشاه به په ټولو ښارونو باندې غالب شی او صرف دمشق به محفوظ پاتې کیږی۔

**قوله:** ﴿أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الأَعْيَسِ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ سَلْمَانَ يَقُولُ سَيَأْتِى مَلِكٌ مِنْ مُلُوكِ الْعَجَمِ يَظْهَرُ عَلَى الْمَدَائِنِ كُلِّهَا إِلاَّ دِمَشْقَ﴾

یعنی په عجمی بادشاهانو کښې به یو بادشاه راوځی کوم چه به په ټولو ښهرونو باندې غالب شی سوا د دمشق نه د هغه په باره کښې پورته د حضرت ګنګوهی د تقریر نه څه ذکر اوشو او حضرت په بذل کښې د دې په باره کښې لیکلې دی : ولعله اشارة الى ما وقع من تیمور على بلاد الاسلام اهـ دا اشاره ده هغه واقعې طرف ته چه کله تیمور لنګ په بلاد شام باندې په اتمه صدئ کښې حمله شروع کړې وه او د دمشق ئې هم محاصره کړې وه.

﴿عَنْ مَكْحُولٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَوْضِعُ فُسْطَاطِ الْمُسْلِمِينَ فِى الْمَلاَحِمِ أَرْضٌ يُقَالُ لَهَا الْغُوطَةُ »﴾

رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د مسلمانانو خیمه او د پناه ځائې به د جنګونو په زمانه کښې هغه زمکه وی چه د هغې نوم غوطه دې، کومه چه د دمشق یو ډیره زرخیزه علاقه ده، دا حدیث په کتاب الملاحم کښې تیر شوې دې، باب فی المعقل من الملاحم کښې .د دې په باره کښې هلته په بذل کښې تیر شوې دی : والغوطة کلها اشجار وانهار متصلة وهی بالاجماع انزه بلاد الله واحسنها منظرا، او دلته په بذل کښې دا هم دی چه د زمکې مشهور او لوئې باغونه او زرخیزې (ښنې) علاقې څلور دی چه په هغې کښې یو غوطه هم ده، او باقی درې صغد، الابلة او شعب بوان دې غوطه د دې ټولو نه اعلی ده، په بذل کښې لیکلې دی چه کیدې شی د غوطه د پناه ځائې کیدل کوم چه په دې حدیث کښې ذکر دی هغه د مهدی رضی الله عنه په زمانه کښې وی، د مسلمانانو او د هغوی د لښکرو د پړاؤ ځائې وی.

د دې روایاتو په باره کښې کوم چه دلته مصنف رحمه الله ذکر کړې دی علامه سندی په فتح الودود کښې لیکلی دی چه د مصنف رحمه الله دې روایاتو لره دلته راوړل یعنی د خلفاء راشدینو د ذکر کولو نه پس په دې کښې اشاره ده دې طرف ته چه د فتن ظهور به د خلفاء راشدین د زمانې نه پس وی.

[٤٦٤٠](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا بُرْدٌ أَبُو الْعَلَاءِ، عَنْ مَكْحُولٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "مَوْضِعُ فُسْطَاطِ الْمُسْلِمِينَ فِي الْمَلَاحِمِ: أَرْضٌ يُقَالُ لَهَا الْغُوطَةُ".

دحضرت مکحول رحمه الله نه روایت دې چی رسول الله ﷺ اوفرمائیل : "د جنګونو او د فتنوپه ورځو کښې به مسلمانان په یو ځائ کښې خیمه زن وی کوم ته چی به غوطه وئیل کیږی۔

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٩٦٢) (صحيح الإسناد)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٤٥٩) (صحيح)

[۴۶۴۱] (¹) حَدَّثَنَا أَبُو ظَفَرٍ عَبْدُ السَّلَامِ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، عَنْ عَوْفٍ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ يَخْطُبُ، وَهُوَ يَقُولُ: "إِنَّ مَثَلَ عُثْمَانَ عِنْدَ اللَّهِ كَمَثَلِ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ، ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ يَقْرَؤُهَا وَيُفَسِّرُهَا: إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا سورة آل عمران آية ۵۵، يُشِيرُ إِلَيْنَا بِيَدِهِ وَإِلَى أَهْلِ الشَّامِ".

عوف (بن جمیله اعرابی) بیان اوکړو، هغوی اووې: ما د حجاج (بن یوسف) نه په خطبه ورکولو کښې اوریدلې وو، هغه وئیل چې د حضرت عثمان رضی الله عنه مثال د الله تعالی په نزد د عیسی ابن مریم علیهما السلام په رنګ دې - بیا ئې دغه آیت اولوستو: (إِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيسٰى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَ رَافِعُكَ وَ مُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا) "کله چې الله تعالی اوفرمائیل: اې عیسی! زه تا (ددې جهان نه پورا پورا) اچتولو واله یم او خپل ځان طرفته رابللو واله یم او ددې کافرانو د صحبت نه تا پاکولو واله یم -" هغه به دغه آیت لوستلو او د دې په شرح کولو به ئې زمونږ طرفته او د اهل شام طرفته اشاره کوله.

﴿ عَنْ عَوْفٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ يَخْطُبُ وَهُوَ يَقُولُ إِنَّ مَثَلَ عُثْمَانَ عِنْدَ اللَّهِ كَمَثَلِ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ يَقْرَؤُهَا وَيُفَسِّرُهَا (إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا) يُشِيرُ إِلَيْنَا بِيَدِهِ وَإِلَى أَهْلِ الشَّامِ ﴾

دلته (په باب فی الخلفاء کښې) مصنف رحمه الله څو روایات (²) د حجاج بن یوسف د سیرت سیئه او د هغه د جبر او تشدد سره متعلق ذکر کړې دی لکه چه په شروع کښې مونږ لیکلې وو چه مصنف رحمه الله دلته د خلفاء راشدین نه علاوه د نورو بعض خلفاء او امراء د ظلم حال هم ذکر کړې دې د تقابل په طور باندې، دا حجاج بن یوسف کوم چه د عثمان رضی الله عنه په حمایت کونکو او د علی رضی الله عنه په مخالفینو کښې دې، سیدنا عثمان رضی الله عنه خلیفه ثالث کوم چه په بنو امیه کښې دې او خلیفه رابع سیدنا علی رضی الله عنه په بنو هاشم کښې دې او د بنو هاشم او د بنو امیه تقابل معروف دې په دې وجه دا حجاج د عثمان غنی رضی الله عنه فوقیت او شرف په علی رضی الله عنه باندې ډیر په نامناسب انداز کښې بیانوی.

**اقتباس اول:**

او وائی چه د عثمان رضی الله عنه مثال د الله پاک په نزد یعني د علی رضی الله عنه په مقابله کښې داسې دې لکه د عیسی علیه السلام مثال د یهودو په مقابله کښې، کوم آیت کریمه چه هغه تلاوت کړو په دې آیت کریمه کښې الله پاک د عیسی علیه السلام په باره کښې فرمائی چه زه به تاته د دې کفار یهود نه خلاصې درکړم او تا به خپل طرف ته اوچت کړم او د دې ګنده ناپاکو یهودو نه تاته پاکی درکونکې یم نو دې آیت کریمه لره حجاج تلاوت کولو په خپل تقریر کښې او د دې په تفسیر کښې ئې ﴿ رافعک الی ﴾ سره اشاره اهل شام طرف ته کوله یعنی د بنو امیه طرف ته او په ﴿ من الذین کفروا ﴾ سره ئې اشاره کوله اهل عراق طرف ته یعنی علی او اصحاب علی رضی الله عنهم والعیاذ بالله منه، ګویا دا ئې وئیل غوښتل چه څنګه الله پاک عیسی علیه السلام ته عزت او

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۱۸۳) (ضعیف) (عوف بن ابي جمیلة اعرابي او حجاج په منځ انقطاع ده)

(²) بلکه داوئیل پکار دی چه د حجاج مختلف تقاریر او د خطباتو څو اقتباسات ذکر کړی دی چه د هغه د افکار او نظریاتو اندازه اوشی.

فوقیت عطاء اوفرمائیلو د هغوی په اسمان ته اوچتولو سره په یهودو بې بهبود باندې.هم دغه شان الله پاک فوقیت عطاء اوفرمائیلو عثمان او عثمانیین ته په خلافت ورکولو سره په علي او اصحاب علي رضي الله عنه باندې، دغه شان چه د هغوی نه ئې خلافت واخستلو او د بنو امیه طرف ته ئې منتقل اوفرمائیلو.﴿ یشیر الینا ﴾ چه د هغې قائل عوف بن ابی جمیله دې دې عراقی او بصری دې هم په دې وجه وائی ﴿الینا ﴾ یعنی.الی اهل العراق او د علي رضي الله عنه دار السلطنت په عراق کښې وو، لکه چه د معاویه بن ابی سفیان رضي الله عنهما دار السلطنت په ملک شام کښې وو، هم په دې وجه هغه د اهل عراق او اهل شام تقابل بیان کړو.

[٤٦٤٢]() حَدَّثَنَا إِسْحَاق بْنُ إِسْمَاعِيل الطَّالَقَانِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ.ح وحَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْمُغِيرَةِ، عَنِ الرَّبِيعِ بْنِ خَالِدٍ الضَّبِّيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ يَخْطُبُ، فَقَالَ فِي خُطْبَتِهِ: "رَسُولُ أَحَدِكُمْ فِي حَاجَتِهِ أَكْرَمُ عَلَيْهِ أَمْ خَلِيفَتُهُ فِي أَهْلِهِ؟ فَقُلْتُ فِي نَفْسِي لِلَّهِ: عَلَيَّ أَلَا أُصَلِّيَ خَلْفَكَ صَلَاةً أَبَدًا، وَإِنْ وَجَدْتُ قَوْمًا يُجَاهِدُونَكَ لَأُجَاهِدَنَّكَ مَعَهُمْ، زَادَ إِسْحَاق فِي حَدِيثِهِ: قَالَ: فَقَاتَلَ فِي الْجَمَاجِمِ حَتَّى قُتِلَ".

ربیع بن خالد ضبی بیان کوی چې ما دحجاج (بن یوسف) نه په خطبه ورکولو کښې واوریدل، هغه په خپله خطبه کښې اوویې: په موښ کښې دچا قاصد کوم چې د هغه په کار کښې مشغول وی، هغه ددهٔ دپاره زیات محترم وی یا د هغه نائب کوم چې د هغه په اهل کښې ناست وی؟ پس ما په خپل زړه کښې اوویې: په ما دې د الله تعالی نذر وی اوس به زهٔ ستا پسې مونځ نه کوم، او که چرې ما ته څه کسان میلاؤ شی کوم چې ستا خلاف جهاد کوی نو زهٔ به د هغوی سره یوځائ شم او ضرور به ستا خلاف جهاد کوؤم- اسحاق په خپل روایت کښې مزید اوویې: ددې دپاره هغه (ربیع بن خالد د حجاج مخالفینو سره) په قتال کښې حصه واخسته حتی چې قتل شو-

## اقتباس ثانی:

**قوله:**﴿ سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ يَخْطُبُ فَقَالَ فِي خُطْبَتِهِ رَسُولُ أَحَدِكُمْ فِي حَاجَتِهِ أَكْرَمُ عَلَيْهِ أَمْ خَلِيفَتُهُ فِي أَهْلِهِ ﴾ ربیع بن خالد وائی چه ما د حجاج نه په دې خطبه کښې واوریدل، د سوال په طور ئې خطاب کولو چه اې خلقو اوایئ! په تاسو کښې دیو کس یو قاصد چه د خپل څه کار دپاره ئې بهر اولیږی هغه به زیات معزز او مکرم وی د هغه سړی په نزد یا هغه سړې کوم چه هغه د خپل کور د خلقو د ساتنې دپاره هغوی ته پریږدی، د دې جواب ښکاره دې چه کوم سړې په خپل کور باندې پریږدی هغه به د هغه په نزد زیات معتمد او مکرم وی د هغه په مقابله کښې کوم چه د یو کار دپاره بهر اولیږی دا اشاره د عثمان او علي رضي الله عنهما طرف ته ده، عثمان غنی رضي الله عنه لره رسول الله ﷺ د بدر غزا ته د تلو په وخت په خپل کور باندې پریخودلې وو د رقیه رضي الله عنها د خیال ساتلو دپاره، او د هغې په مقابله کښې ئې علي رضي الله عنه په نهمه هجرئ کښې د صدیق اکبر رضي الله عنه سره مکې مکرمې ته لیږلې وو د بعض مخصوص اعلاناتو کولو دپاره، لهذا عثمان غنی رضي الله عنه ډیر اشرف شو د علي رضي الله عنه نه ... ددې جواب داسې کولې شی چه د رسول الله ﷺ نه د دې دواړو سره معامله برعکس هم ثابته ده، پس په یو موقع باندې هغوی

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٦٣٢) (صحيح الإسناد)

علی ﷺ په خپل کور باندې پرېخودلې وو یعنی غزوه تبوک ته د تللو په وخت او فرمائیلې ئې وو ﴿ انت منی بمنزلة هارون من موسی ﴾ او عثمان ﷺ ئې یو ځل مکې مکرمې ته د قاصد په طور لیږلې وو یعنی د عمرة الحدیبیه په موقع باندې، لهذا د هغه دا استدلال قابل التفات نه دې، اګر چه عثمان ﷺ د اهل سنت په نزد د فضیلت په اعتبار سره په ترتیب کښې د علی ﷺ نه مخکښې دې خو د حجاج مقصود خو صرف دا نه دې بلکه تنقیص علی ﷺ مقصود دې، وړاندې په روایت کښې دی، ﴿ فَقُلْتُ فِي نَفْسِي لِلَّهِ عَلَيَّ أَنْ لاَ أُصَلِّيَ خَلْفَكَ صَلاَةً أَبَدًا وَإِنْ وَجَدْتُ قَوْمًا يُجَاهِدُونَكَ لأُجَاهِدَنَّكَ مَعَهُمْ ﴾ ربیع بن خالد څوک چه د حجاج دا خطبه نقل کوی فرمائی چه د دې خطبې د اورېدلو په وخت ما په زړه کښې سوچ کولو چه زه د الله پاک سره په دې خبره معاهده کوم چه په تاپسې به کله هم مونځ اونکړم، او که ما خلق اولیدل چه تاسره ئې جهاد کولو نو هغوی سره به شامل شم او تاسره به جهاد اوکړم، ﴿ قَالَ فَقَاتَلَ فِي الْجَمَاجِمِ حَتَّى قُتِلَ ﴾ د ربیع بن خالد شاګرد د ربیع په باره کښې فرمائی چه دې یعنی ربیع بن خالد د جماجم په جنګ کښې شریک شو او هلته قتل کړې شو، د جنګ جماجم ذکر د دې نه مخکښې هم په کتاب الجهاد باب فی التفریق بین السبی کښې راغلې دې.

[٤٦٤٣][1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلاَءِ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ، عَنْ عَاصِمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ، يَقُولُ: "اتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ لَيْسَ فِيهَا مَثْنَوِيَّةٌ، وَاسْمَعُوا وَأَطِيعُوا لَيْسَ فِيهَا مَثْنَوِيَّةٌ لأَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ عَبْدِ الْمَلِكِ، وَاللَّهِ لَوْ أَمَرْتُ النَّاسَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنْ بَابٍ مِنْ أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ فَخَرَجُوا مِنْ بَابٍ آخَرَ لَحَلَّتْ لِي دِمَاؤُهُمْ وَأَمْوَالُهُمْ، وَاللَّهِ لَوْ أَخَذْتُ رَبِيعَةَ بِمُضَرَ لَكَانَ ذَلِكَ لِي مِنَ اللَّهِ حَلاَلاً، وَيَا عَذِيرِي مِنْ عَبْدِ هُذَيْلٍ يَزْعُمُ أَنَّ قِرَاءَتَهُ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَاللَّهِ مَا هِيَ إِلاَّ رَجَزٌ مِنْ رَجَزِ الأَعْرَابِ مَا أَنْزَلَهَا اللَّهُ عَلَى نَبِيِّهِ عليه السلام، وَعَذِيرِي مِنْ هَذِهِ الْحَمْرَاءِ يَزْعُمُ أَحَدُهُمْ أَنَّهُ يَرْمِي بِالْحَجَرِ، فَيَقُولُ إِلَى أَنْ يَقَعَ الْحَجَرُ: قَدْ حَدَثَ أَمْرٌ، فَوَاللَّهِ لأَدَعَنَّهُمْ كَالأَمْسِ الدَّابِرِ"، قَالَ: فَذَكَرْتُهُ لِلأَعْمَشِ، فَقَالَ: أَنَا وَاللَّهِ سَمِعْتُهُ مِنْهُ.

د عاصم نه مروی دی چې ما د حجاج نه واورېدل، هغه د منبر دپاسه وئیل: د الله تقوی اختیار کړئ ترکومې چې مو همت وی، په دې کښې هیڅ استثناء نشته. د امیر المومنین عبدالملک (بن مروان) خبره واورئ او اطاعت ئې اوکړئ، په دې کښې هیڅ استثناء نشته - په الله قسم! که چرې زه خلقو ته حکم ورکړم چې د مسجد (جماعت) په فلانکئ دروازه باندې باهر لاړشئ او هغوی دبلې کومې دروازې نه بهر اوځی نو ما دپاره به د هغوی وینه او مال حلال وی په الله قسم! که چرې زهٔ د مضر په بدل په قبیله ربیعه باندې قبضه اوکړم نو دا ما د پاره د الله د طرفنه حلال دی- او څوک دې کوم چې ما د هذیل د غلام (اشاره ده حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ) د طرف نه معذوره اوګڼړی، د هغه خیال دې چې د هغه قرأت د الله د طرفنه دې - په الله قسم ! دا (د هغه قرأت) خو د بدویانو رجز (واړه واړه شعرونه) په رنګ دې - الله تعالیٰ دا په خپل نبی ﷺ باندې نهٔ دې نازل کړې - او څوک دې کوم چې ما ددې عجمیانو نه معذور اوګڼړی، په دوی کښې څوک کانړی اولی (د فتنې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٨٥١) (صحيح)

خبرې کوی) بیا وائی اوګورئ چی دا تر کومې پورې ځی- په الله قسم! زهٔ به دوی لره سبا د ماضی په رنګ کړم (نیست او نابود به ئې کړم) راوی اووې چی ما دغه واقعه اعمش ته بیان کړه نو هغه اووې: زما هم په الله قسم دې! چه دا ما هم ددهٔ نه اوریدلې دی-

**قوله:** ﴿عَنْ عَاصِمٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ اتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ لَيْسَ فِيهَا مَثْنَوِيَّةٌ وَاسْمَعُوا وَأَطِيعُوا لَيْسَ فِيهَا مَثْنَوِيَّةٌ لأَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ عَبْدِ الْمَلِكِ وَاللَّهِ لَوْ أَمَرْتُ النَّاسَ أَنْ يَخْرُجُوا مِنْ بَابٍ مِنْ أَبْوَابِ الْمَسْجِدِ فَخَرَجُوا مِنْ بَابٍ آخَرَ لَحَلَّتْ لِي دِمَاؤُهُمْ وَأَمْوَالُهُمْ وَاللَّهِ لَوْ أَخَذْتُ رَبِيعَةَ بِمُضَرَ لَكَانَ ذَلِكَ لِي مِنَ اللَّهِ حَلاَلٌ﴾

## اقتباس ثالث:

د حجاج دا تقریر د هغه وخت دې چه کله هغه د عبدالملک بن مروان د طرف نه د هغه په خلافت کښې د عراق والی وو د اول جملې مطلب خو دا دې چه هر سړې په دې مامور دې چه هغه د الله پاک نه اویریږی، تقوی اختیار کړی چه په هغې کښې د چا استثناء هم نشته، دا خبره خو واقعی صحیح ده، د د ېنه پس هغه په خپل تقریر کښې د هغه وخت د خلیفه عبدالملک د اطاعت قانونی طور ذکر کوی چه د هغه سمع او اطاعت په هر سړی باندې واجب دې بغیر د چا د استثناء نه، او صرف هم دا نه چه د هغه اطاعت صرف په جائز امورو کښې واجب دې بلکه په هر کار کښې، پس هغه وړاندې وائی چه که زه خلقو ته حکم اوکړم د دې خبرې (د امیر المومنین د طرف نه) چه هغوی دې د جمات صرف د فلانئ دروازې نه اوځی او بیا هغوی د هغې خلاف په بلې دروازه باندې اوځی (نو د هغوی په دې حکم عدولی یا مخالفت امر په وجه به) زما دپاره د هغوی وینه او مال حلال شی، وړاندې نوره ترقی کولو سره وائی چه والله که زه د قبیله مضر په جنایت کښې هغوی ته د سزا ورکولو په ځائې ربیعه راونیسم کومه چه دویمه قبیله ده نو دا خبره به زما دپاره د الله پاک د طرف نه حلال وی، حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه دا د حجاج کفریه اقوال دی ځکه چه تحلیل حرام او تحریم حلال پکښې صریح دې، او په دې کښې د احکام شرع انکار دې، حال دا چه د امراء او سلاطین اطاعت صرف په موافق شرع امور کښې واجب دې نه مطلقاً.

**قوله:** ﴿وَيَا عَذِيرِي مِنْ عَبْدِ هُذَيْلٍ يَزْعُمُ أَنَّ قِرَاءَتَهُ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَاللَّهِ مَا هِيَ إِلاَّ رَجَزٌ مِنْ رَجَزِ الأَعْرَابِ مَا أَنْزَلَهَا اللَّهُ عَلَى نَبِيِّهِ عليه السلام﴾

## اقتباس رابع:

اوس دې وائی: اې څوک دې هغه سړې چه ماته معذور اوائی د عبد هذیل په باره کښې یعنی چه زه د هغوی تحقیر او تنقیص اوکړم، دا اشاره ده د جلیل القدر صحابی سیدنا عبدالله بن مسعود هذلی رضی الله عنه طرف ته د کوم نه چه هغه په طور د تحقیر او اهانت د قبیله هذیل د غلام نه تعبیر کړې دې او وړاندې د هغوی په یو خاص فعل باندې نکیر کوی او د هغوی په باره کښې فرمائی چه هغه عبد هذیل خپل مصحف والا قراءت لره د الله پاک د طرف نه ګڼړی حال دا چه قسم په الله هغه هیڅ هم نه دې سوا د سندرې ویونکو د یوې سندرې وئیلو نه، هغه منزل من الله بالکل نه دې.په بذل کښې لیکلې دی چه په دې باب سره

د هغه مقصود مصحف ابن مسعود رضی الله عنه نه خلقو لره نفرت ورکول دی.چه د هغې منشاء دا اوشوه چه هر کله عثمان غنی رضی الله عنه مختلفو مصاحفو لره راجمع کړل نو عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د خپل مصحف د ورکولو نه انکار اوکړو چه د هغې قصه د ترمذی شریف په روایت کښې ذکر ده د سورة توبه په تفسیر کښې اوږد روایت دې چه د هغې شروع داسې ده : ﴿عن انس ان حذيفة قدم على عثمان بن عفان وكان يغازي أهل الشام في فتح أرمينية وأذربيجان مع أهل العراق فرأى حذيفة اختلافهم في القرآن الحديث چه د هغې په آخر کښې دی :قال عبدالله بن مسعود رضی الله عنه يا أهل العراق اكتموا المصاحف التي عندكم وغلوها فإن الله يقول : { ومن يغلل يأت بما غل يوم القيامة }فاتقوا الله (كذا في المطبوعة) والصحيح فالقوا الله بالمصاحف الى اخره ...چونکه حجاج د سیدنا عثمان او د امویین په حمایت کونکو کښې وو په دې وجه په عبدالله بن مسعود رضی الله عنه باندې د خپلې غصې اظهار کوی او په داسې بده طریقه ئې کوی چه په هغې کښې ئې د خپل کفر هم پرواه اونکړه چه کومه خبره زه کوم دې وخت هغه کلمه کفریه ده.

**اقتباس خامس :**

وړاندې وائی ﴿ وَعَذِيرِي مِنْ هَذِهِ الْحَمْرَاءِ ﴾ یعنی یا عذیری ځکه چه دا عذیری په مخکښې عذیری باندې معطوف دې چه د هغې په شروع کښې یا حرف ندا ده ﴿ مِنْ هَذِهِ الْحَمْرَاءِ يَزْعُمُ أَحَدُهُمْ أَنَّهُ يَرْمِي بِالْحَجَرِ فَيَقُولُ إِلَى أَنْ يَقَعَ الْحَجَرُ قَدْ حَدَثَ أَمْرٌ ﴾

د ((حمراء))نه مراد عجم دی چه د هغوی نه په موالی سره تعبیر کولې شی لکه چه په وړاندې روایتونو کښې راځی یعنی الموالی دا لیکلې دی چه په هغه زمانه کښې چه په عراق وغیره کښې کوم زیات تر ترکیان، رومیان او فارسیان وو او هغوی په رنګ کښې سرۀ وو هم په دې وجه د هغوی نه په حمراء سره تعبیر اوکړې شو لکه چه عرب اسمر وی، حجاج وائی چه شته څوک چه ما معذور اوګنړی د دې حمراء په باره کښې یعنی که زه دوی قتل کړم یا ورته څه اوایم، وړاندې د دې غصې منشاء خپله ښکاره کوی : دا خلق ګمان کوی چه د عبدالملک په زمانه کښې به داسې فتنې راښکاره شی په دومره کثرت سره او زر زر چه که د یوځائې نه بل ځائې ته کانړې هم اویشتلې شی نود هغه کانړی د رسیدو نه مخکښې مخکښې به هلته څه نه څه فتنه موندلې شی، د کانړی د یو ځائې نه اوچتولو سره بل ځائې ته په ویشتلو کښې څو منټونه خرچ کیږی، نو په دې زمانه کښې به دومره زر زر فتنې موندلې شی، د عجمیانو دا خیال د حجاج په شان خلق چرته برداشت کولې شی، هم په دې وجه په هغوی باندې د غصې اظهار کوی او وائی ﴿ فَوَاللَّهِ لَأَدَعَنَّهُمْ كَالْأَمْسِ الدَّابِرِ ﴾ چه قسم په الله زه به دوی د تیرې شوې ورځې په شان ختم کړم ﴿ قَالَ فَذَكَرْتُهُ لِلْأَعْمَشِ فَقَالَ أَنَا وَاللَّهِ سَمِعْتُهُ مِنْهُ ﴾ عاصم کوم چه د دې حکایت راوی دې وائی چه ما د حجاج د دې خطبې ذکر امام اعمش رحمه الله ته اوکړو نو هغوی اوفرمائیل چه صحیح ده ما هم د هغه نه دا خبره اوریدلې ده، پس د دې نه روستو روایت د اعمش راځی.

..........

[٤٦٤٤]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ، يَقُولُ عَلَى الْمِنْبَرِ: "هَذِهِ الْحَمْرَاءُ هَبْرٌ هَبْرٌ، أَمَا وَاللَّهِ لَوْ قَدْ قَرَعْتُ عَصًا بِعَصًا لَأَذَرَنَّهُمْ كَالْأَمْسِ الذَّاهِبِ، يَعْنِي الْمَوَالِيَ".

ابن ادریس د اعمش نه روایت اوکړو ،وی وئیل چې ما د حجاج نه اوریدلي دی هغه په منبر باندې ولاړ وو او وئیل ئې: دغه عجمی د کوترا کولو لائق دی - په الله قسم ! که چرې ما همسا په همسا باندې اوهله نو دا خلق به د ماضی حصه شی (نیست او نابود به ئې کړم) د هغه اشاره غیر عرب خلقو طرف ته وه-

**قوله**: ﴿ عن الاعمش قَالَ سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ يَقُولُ عَلَى الْمِنْبَرِ هَذِهِ الْحَمْرَاءُ هَبْرٌ هَبْرٌ ﴾ د هبر معنی د قطع ده، وائی چه دا حمراء او عجمی د دې مستحق دی چه دوی یو یو قتل کړې شی، ﴿ وَاللَّهِ لَقَدْ قَرَعْتُ عَصًا بِعَصًا لأَذَرَنَّهُمْ كَالأَمْسِ الذَّاهِبِ ﴾ قسم په الله که زه په دوی باندې همسا استعمال کړم نو دوی به د تیرې شوې ورځ په شان پریږدم، یعنی ختم به ئې کړم ﴿ يَعْنِي الْمَوَالِي ﴾ دا تفسیر دې په ﴿ لا زرنهم ﴾ کښې د ضمیر منصوب، راوی وائی چه د حجاج مراد د ﴿ لا ذرنهم ﴾ نه هم دا موالي او ممالیک دی.

[٤٦٤٥]([2]) حَدَّثَنَا قَطَنُ بْنُ نُسَيْرٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ يَعْنِي ابْنَ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَعْمَشِ، قَالَ: جَمَّعْتُ مَعَ الْحَجَّاجِ فَخَطَبَ، فَذَكَرَ حَدِيثَ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَيَّاشٍ، قَالَ فِيهَا: "فَاسْمَعُوا وَأَطِيعُوا لِخَلِيفَةِ اللَّهِ، وَصَفِيِّهِ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ مَرْوَانَ"، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ: وَلَوْ أَخَذْتُ رَبِيعَةَ بِمُضَرَ، وَلَمْ يَذْكُرْ قِصَّةَ الْحَمْرَاءِ.

شریک د سلیمان اعمش نه روایت کوی،وائی چې ما د حجاج سره جمعه اوکړه نو هغه خطبه ورکړه...او ابوبکر بن عیاش والی (مذکوره بالا) حدیث (۴۶۴۳) بیان کړو - هغه اووې: چې د الله د خلیفه او د هغه دمنتخب شوی عبدالملک بن مروان خبره واورئ او د هغه اطاعت کوئ - او حدیث ئې بیان کړو - مزید ئې اووې: او که چرې زهٔ د مضر په بدل په ربیعه باندې گرفت (قبضه) واخلم ...او د عجمیانو ذکر ئې اونه کړو-

## بَابٌ فِي الْخُلَفَاءِ

[٤٦٣٤]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا الْأَشْعَثُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ: "مَنْ رَأَى مِنْكُمْ رُؤْيَا، فَقَالَ رَجُلٌ: أَنَا رَأَيْتُ كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ فَوُزِنْتَ أَنْتَ وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحْتَ أَنْتَ بِأَبِي بَكْرٍ، وَوُزِنَ عُمَرُ، وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحَ أَبُو بَكْرٍ، وَوُزِنَ عُمَرُ، وَعُثْمَانُ فَرَجَحَ عُمَرُ، ثُمَّ رُفِعَ الْمِيزَانُ، فَرَأَيْنَا الْكَرَاهِيَةَ فِي وَجْهِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

حضرت ابوبکره رضی الله عنه روایت کوی چې نبی ﷺ یو ورځ تپوس اوفرمائیلو: په تاسو کښې چا خوب لیدلې دې؟ '' یو سړی اووې: ما- ما اولیدل چې گویا د آسمان نه یوه تله (میزان) رازورنده ده نودستاسو ﷺ او د حضرت ابوبکر رضی الله عنه وزن اوکړې شو نو تاسو ﷺ د حضرت

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٧٨٤) (صحيح)
[2]): انظر رقم: (٤٦٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٨٥١) (صحيح إلي الحجاج)
[3]): سنن الترمذي/الرؤيا١٠ (٢٢٨٧)، (تحفة الأشراف: ١١٦٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٤، ٥٠) (صحيح)

ابوبکر رضی اللہ عنہ نه په وزن کښې درانه شوئ- او د حضرت عمر رضی اللہ عنہ او د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ وزن اوکړې شونو حضرت عمر رضی اللہ عنہ په وزن کښې درون شوبیا هغه تله اوچته کړې شوه - نو (په دغه خبره باندې)مونږ د رسول الله ﷺ په مخ مبارک باندې د نا پسندیدګئ آثار اولیدل۔

**قوله:﴿** عَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ « مَنْ رَأَى مِنْكُمْ رُؤْيَا »الخ **﴾** دا حدیث سره د متن او سند نه مکرر دې اوس نزدې تیر شوې دې هم په دې وجه په بعض نسخو کښې نشته.

[٤٦٤٦]() حَدَّثَنَا سَوَّارُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُمْهَانَ، عَنْ سَفِينَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خِلَافَةُ النُّبُوَّةِ ثَلَاثُونَ سَنَةً، ثُمَّ يُؤْتِي اللَّهُ الْمُلْكَ أَوْ مُلْكَهُ مَنْ يَشَاءُ"، قَالَ سَعِيدٌ: قَالَ لِي سَفِينَةُ: أَمْسِكْ عَلَيْكَ أَبَا بَكْرٍ سَنَتَيْنِ، وَعُمَرُ عَشْرًا، وَعُثْمَانُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ وَعَلِيٌّ كَذَا، قَالَ سَعِيدٌ: قُلْتُ لِسَفِينَةَ: إِنَّ هَؤُلَاءِ يَزْعُمُونَ أَنَّ عَلِيًّا عليه السلام لَمْ يَكُنْ بِخَلِيفَةٍ، قَالَ: كَذَبَتْ أَسْتَاهُ بَنِي الزَّرْقَاءِ، يَعْنِي بَنِي مَرْوَانَ.

(د رسول الله ﷺ غلام) حضرت سفینه رضی اللہ عنہ بیان اوکړو ،رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ''د نبوت خلافت به دیرش کاله پورې وی بیابه الله تعالیٰ خپل ملک چاته چه غواړی عنایت به ورته فرمائي۔ سعید بن جمهان اووې چې حضرت سفینه رضی اللہ عنہ ماته اووې : حساب اولګوه ،د حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ دوه کاله ،د حضرت عمر رضی اللہ عنہ لس کاله ،د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ دولس کاله او هم دغه رنګ د حضرت علي رضی اللہ عنہ - سعید وائی چې ما سفینه رضی اللہ عنہ ته اووې : دغه بنو مروان ګڼړی چې حضرت علی رضی اللہ عنہ خلیفه نه وو نو هغوی اووې: د بنی زرقا نه وروستو حصو دروغ اووې۔

**قوله:﴿** عَنْ سَفِينَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « خِلاَفَةُ النُّبُوَّةِ ثَلاَثُونَ سَنَةً ثُمَّ يُؤْتِى اللَّهُ الْمُلْكَ - مَنْ يَشَاءُ » الى اخر الحديث **﴾**

سفینه رضی اللہ عنہ کوم چه مشهور صحابی دې او د رسول الله ﷺ خادم دې د چه دهغه احوال په باب العتق علی شرط کښې تیر شوی دی.

د هغوی نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د نبوت په طریقه باندې او د هغوی د سیرت مطابق چه کوم خلافت وی هغه به دیرش کاله وی، بیا به د دې نه پس الله پاک چه چاته بادشاهت ورکوی هغه به بادشاهت کوی د دې نه په روستو روایت کښې دی :

﴿قَالَ سَعِيدٌ قَالَ لِى سَفِينَةُ أَمْسِكْ عَلَيْكَ أَبَا بَكْرٍ سَنَتَيْنِ وَعُمَرَ عَشْرًا وَعُثْمَانَ اثْنَتَىْ عَشْرَةَ وَعَلِىٌّ كَذَا ﴾

## د خلفاء راشدینو د خلافت موده :

په دې روایت کښې د هغه دیرشو کالو حساب ذکر دې چه په خلفاء اربعه باندې څنګه تقسیم شو ، هغه دا چه سعید وائی چه ماته سفینه اووې چه یاد کړه زه درته تفصیل وایم، او بیا ئې تفصیل بیان کړو ، د ابوبکر رضی اللہ عنہ د خلافت دوه کاله او د عمر رضی اللہ عنہ لس کاله او د عثمان رضی اللہ عنہ دولس کاله، دا ټول څلیرشت کلونه شو د دې نه پس د علی رضی اللہ عنہ ذکر دې خو د هغې سره ئې کلونه نه دی شمار کړې صرف کذا ئې اووې ګویا اشاره ده باقی کلونه ته کوم چه شپږ دی، د دې څه اندازه تفصیل حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې لیکلې دې د تاریخ

(): سنن الترمذي/الفتن ٤٨ (٢٢٢٦)، (تحفة الأشراف: ٤٤٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢١/٥) (حسن صحيح)

الخلفاء او تقریب نه نقل کولو سره، په هغې کښې لیکلې دی، د صدیق اکبر ؓ خلافت د رسول الله ﷺ د وفات نه پس د ربیع الاول ۱۱ هجری نه تر د وفات جمادی الاولی ۱۳ هجری پورې وو، کما فی التقریب او په تاریخ الخلفاء کښې په ځائې د جمادی الاولی جمادی الثانیه دې، د دې نه پس د عمر ؓ خلافت د صدیق اکبر ؓ د طرف نه الی آخر الوفاة والشهادة د ذی الحجة ۲۳ هجری پورې ټوله موده لس نیم کاله شوه، د دې نه پس خلافت او بیعت راورسیدو عثمان ؓ ته ترد وفات او شهادت ذی الحجة ۳۵ هجری پورې ټول دولس کاله، د دې نه پس بیعت اوکړې شو د علی ؓ په لاس باندې الی اخر الوفاة والشهادة رمضان ۴۰ هجری، د دې نه پس سیدنا حسن ؓ ته خلافت ملاؤ شو د خپل پلار د شهادت نه پس د اهل کوفه په بیعت سره، بیا د شپږو میاشتو نه پس د معاویه ؓ سره صلح اوشوه په ربیع الاول یا اخر یا جمادی الاولی ۴۱ هجری کښې د دې نه پس د حسن ؓ وفات او شهادت اوشو د زهر ورکولو د وجې نه په ۴۹ هجری کښې وقیل ۵۰ هجری بعدها کذا فی التقریب، ﴿قال سعید قلت لسفینة إِنَّ هَؤُلاَءِ يَزْعُمُونَ أَنَّ عَلِيًّا لَمْ يَكُنْ بِخَلِيفَةٍ.قَالَ كَذَبَتْ أَسْتَاهُ بَنِي الزَّرْقَاءِ يَعْنِي بَنِي مَرْوَانَ ﴾ سعید وائی چه ما سیدنا سفینه ؓ ته اووې چه دا خلق یعنی بنو مروان خو وائی چه سیدنا علی ؓ خلیفه نه وو، هغوی جواب ورکړو چه هغوی دروغ بکواس کوی، زرقاء یو زنانه وه چه د هغې د نسل نه بنو امیه وو، او لفظ استاه د است جمع ده چه د هغې اصل سته دې [1] د هغوی د دې دروغژن کلام نسبت ئې د هغوی د ژبې په ځائې د هغوی شرمګاه ته اوکړو، د تقبیح او تحقیر دپاره، یعنی دا خبره خبره نه ده کومه چه د ژبې نه راوځی بلکه بدبوداره هوا ده کومه چه د شرمګاه نه راوځی، د افواه نه ئې مجازا په استاه سره تعبیر کړې دې. والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[۴۶۴۷] ([2]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنِ الْعَوَّامِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُمْهَانَ، عَنْ سَفِينَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خِلَافَةُ النُّبُوَّةِ ثَلَاثُونَ سَنَةً، ثُمَّ يُؤْتِي اللَّهُ الْمُلْكَ مَنْ يَشَاءُ أَوْ مُلْكَهُ مَنْ يَشَاءُ". قَالَ سَعِيدٌ قَالَ لِي سَفِينَةُ: «أَمْسِكْ عَلَيْكَ أَبَا بَكْرٍ سَنَتَيْنِ، وَعُمَرُ عَشْرًا، وَعُثْمَانُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ، وَعَلِيٌّ كَذَا» قَالَ سَعِيدٌ، قُلْتُ: لِسَفِينَةَ إِنَّ هَؤُلَاءِ يَزْعُمُونَ أَنَّ عَلِيًّا عَلَيْهِ السَّلَامُ لَمْ يَكُنْ بِخَلِيفَةٍ قَالَ: «كَذَبَتْ أَسْتَاهُ بَنِي الزَّرْقَاءِ يَعْنِي بَنِي مَرْوَانَ»

حضرت سفینه ؓ بیان کوی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "د نبوت خلافت به دیرش کاله وی بیا به الله تعالیٰ خپل ملک چاته چه اوغواړی ورله به ئې ورکړی.

[۴۶۴۸] ([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، عَنِ ابْنِ إِدْرِيسَ، أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ ظَالِمٍ، وَسُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ ظَالِمٍ الْمَازِنِيِّ، قَالَ: ذَكَرَ سُفْيَانُ رَجُلًا فِيمَا

---

[1] د نواقض وضو په بابونو کښې د وکاء السه العینان،، الحدیث د لاندې د دې لفظ تحقیق تیر شوې دې

[2]: انظر ما قبله (تحفة الأشراف: ۴۴۸۰) (حسن صحیح)

[3]: سنن الترمذي/المناقب ۲۸ (۳۷۵۷)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۱۱ (۱۳۴)، (تحفة الأشراف: ۴۴۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۸۸، ۱۸۹) (صحیح)

بَيْنَهُ وَبَيْنَ عَبْدِ اللهِ بْنِ ظَالِمٍ الْمَازِنِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ، قَالَ: لَمَّا قَدِمَ فُلَانٌ الْكُوفَةَ أَقَامَ فُلَانٌ خَطِيبًا، فَأَخَذَ بِيَدِي سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ، فَقَالَ: أَلَا تَرَى إِلَى هَذَا الظَّالِمِ، فَأَشْهَدُ عَلَى التِّسْعَةِ إِنَّهُمْ فِي الْجَنَّةِ، وَلَوْ شَهِدْتُ عَلَى الْعَاشِرِ لَمْ إِيثَمْ، قَالَ ابْنُ إِدْرِيسَ: وَالْعَرَبُ تَقُولُ: آثَمُ، قُلْتُ: وَمَنِ التِّسْعَةُ؟ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى حِرَاءٍ: "اثْبُتْ حِرَاءُ إِنَّهُ لَيْسَ عَلَيْكَ إِلَّا نَبِيٌّ أَوْ صِدِّيقٌ أَوْ شَهِيدٌ"، قُلْتُ: وَمَنِ التِّسْعَةُ؟ قَالَ: رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ، وَعَلِيٌّ، وَطَلْحَةُ، وَالزُّبَيْرُ، وَسَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ، قُلْتُ: وَمَنِ الْعَاشِرُ؟ فَتَلَكَّأَ هُنَيَّةً، ثُمَّ قَالَ: أَنَا"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ الْأَشْجَعِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنِ ابْنِ حَيَّانَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ ظَالِمٍ، بِإِسْنَادِهِ نَحْوَهُ.

د حضرت عبد الله بن ظالم مازنی نه روایت دې، هغوی اووې چې ما د حضرت سعید بن زید بن عمرو بن نفیل رضي الله عنه نه اوریدلي دي، هغوی اووې چې کله فلانکي کوفې ته راغلو او هغه فلانکي خطبې ته اودرولو (عبدالله اووې) نو سعید بن زید رضي الله عنه زما په لاسو باندې زور اوکړو او وې وئیل: آیا ته دا ظالم (خطیب) نه ګوری (غالباً هغه خطیب د حضرت علي رضي الله عنه په باب کښې څه وئیل-) زۀ د نهو کسانو په باب کښې ګواهي ورکوم چې هغه جنتیان دي، که چرې د لسم په حقله هم اوویم نو ګناهګار به نشم...- ابن ادریس اووې: عرب خلق دَ (آثم) لفظ بولي (او حضرت سعید (لم أیثم) اوئیلو-)...عبدالله وائي، ما تپوس اوکړو: هغه نهه خلق څوک دي؟ هغوی اووې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چې هغوی په حراء باندې ولاړ وو: "اې حرا اودریږه ! په تا باندې سیوا دنبی نۀ یا د صدیق نه یا د شهید نه نور هیڅوک نشته-"ما اووې او هغه نهه څوک دي؟ وی وئیل :رسول الله ﷺ ،ابوبکر، عمر، عثمان، علي، طلحه، زبیر، سعد بن ابی وقاص (مالک) او عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنهم - ما تپوس اوکړو او لسم څوک دې؟ نو هغه د یوې لحظې د پاره خاموش شو او بیا ئې اووې: زۀ- امام ابو داود رحمه الله وائي چې دغه حدیث اشجعی د سفیان نه، هغوی د منصور نه، هغوی د هلال بن یساف نه، هغوی د ابن حیان نه، هغوی د عبد الله بن ظالم هم دهغه په سند سره د مذکوره بالا په رنګ روایت کړې دې-

**قوله:** ﴿ ابْنِ إِدْرِيسَ أَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ عَنْ هِلَالِ بْنِ يِسَافٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ ظَالِمٍ المازني وَسُفْيَانَ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ هِلَالِ بْنِ يِسَافٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ ظَالِمٍ الْمَازِنِيِّ الخ ﴾

### شرح السند :

په دې حدیث کښې د مصنف رحمه الله استاد محمد بن العلاء دې او محمد بن العلاء دا حدیث په دوه سندونو سره روایت کوی اول د ابن ادریس په سند سره تر د عبد الله بن ظالم پورې او دویم سند شروع کیږی د سفیان نه عبدالله بن ظالم پورې ﴿ قَالَ ذَكَرَ سُفْيَانُ رَجُلًا فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ عَبْدِ اللهِ بْنِ ظَالِمٍ الْمَازِنِيِّ ﴾ ([1]) دا جمله معترضه ده، محمد بن العلاء وائي چه زما دویم استاد سفیان د هلال بن یساف او عبدالله بن ظالم ترمینځهٔ یو واسطه ذکر کړې وه، د مصنف رحمه الله په روستو کلام سره د هغې واسطې تعین کیږی چه هغه ابن حیان دې تر دې ځائې پورې د سند تشریح اوشوه.

[1] (الظاهر ان الضمر الي محمد بن العلاء لكن في البذل ارجع الضمير الي ابن ادريس)

## شرح المتن :

**قوله:** ﴿ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ فُلاَنٌ الْكُوفَةَ أَقَامَ [1] فُلاَنٌ خَطِيبًا ......فَقَالَ أَلاَ تَرَى إِلَى هَذَا الظَّالِمِ فَأَشْهَدُ عَلَى التِّسْعَةِ إِنَّهُمْ فِي الْجَنَّةِ ﴾

عبدالله بن ظالم فرمائی چه کله فلانې سړې کوفې ته راغلو او د هغه په راتلو باندې فلانې سړې اودریدلو (دا دواړه یعنی عبدالله بن ظالم او سعید بن زید هم هلته موجود وو) نو عبدالله بن ظالم وائی چه سعید بن زید زما لاس اونیولو چه ته دې ظالم ته نه ګورې چه دې څۀ وائی : ﴿ أَلاَ تَرَى إِلَى هَذَا الظَّالِمِ ﴾ دا د سمعت مفعول دې کوم چه په شروع کښې راغلې دې او بیا سعید بن زید دا هم اوفرمائیل چه زه د نهو کسانو په باره کښې ګواهی ورکوم چه هغوی جنتیان دی او که زه د لسم په باره کښې هم ګواهی ورکړم نو زه به ګناهګار نه یم ما تپوس اوکړو چه هغه نهه کسان څوک دی نو هغوی اوفرمائیل چه یو ځل رسول الله ﷺ اوفرمائیل په داسې حال کښې چه هغوی په حراء غر باندې وو (او هغه د دې حضراتو د وجې نه په حرکت کښې راغلې وو) ساکن شه اې حراء حرکت مه کوه ځکه چه دې وخت کښې په تا باندې یو نبی دې او صدیق او شهید، دا خو په ظاهر کښې د شمیر په اعتبار سره تهول درې شو، نو په دې وجه عبدالله بن ظالم دوباره تپوس اوکړو چه د نهه کسانو تعین اوکړئ چه هغه نهه څوک دی کوم چه هغه وخت کښې په حراء غر باندې وو نو هغوی اووې چه هغه دا دی : ۱ : رسول الله ﷺ ۲ : ابوبکر ۳ : عمر ۴ : عثمان ۵ : علی ۶ : طلحه ۷ : زبیر ۸ : سعد بن ابی وقاص او ۹ : عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنهم ...(دا د نهو تعداد خو پوره شو او د لسم په باره کښې ئې دا وئیلې وو چه که زه د هغه هم تعین اوکړم نو هیڅ ګناه

---

[1] ) دلته دوه نسخې دی په یو نسخه کښې دی ﴿ فلانا ﴾ په اول صورت کښې به ﴿ اقام ﴾ په معنی د ﴿قام﴾ وی او په دویم صورت کښې به ﴿ اقام ﴾ متعدی وی، او په دې صورت کښې به ترجمه دا وی چه کله معاویه رضی الله عنه کوفې ته راغلو نو هغه یو سړې خطیب جوړولو سره اودرولو او د خطیب مصداق بهر حال په دواړو صورتونو کښې مغیره بن شعبه رضی الله عنه دې، او دا دواړه احتماله هم دغه شان حضرت په بذل کښې لیکلې دی خو په دې کښې روایات حدیثیه مختلف دې پس د سنن کبری للنسائي په یو روایت کښې دی ﴿ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ زَيْد قَالَ : لَمَّا قَدِمَ مُعَاوِيَةُ الْكُوفَةَ أَقَامَ مُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ خُطَبَاءَ يَتَنَاوَلُونَ عَلِيًّا فَأَخَذَ بِيَدِي سَعِيدُ بْنُ زَيْد فَقَالَ : أَلاَ تَرَي هَذَا الظَّالِمَ الَّذِي يَأْمُرُ بِلَعْنِ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ الخ ﴾ په دې صورت کښې د خطیب مصداق مغیره بن شعبه رضی الله عنه نه دی بلکه د هغوی قائم کړده نور خلق، لهذا د ابوداؤد د دې روایت مطلب هم دا کیدې شی چه کله معاویه کوفې ته تشریف راوړلو نو مغیره بن شعبه رضی الله عنه یو خطیب اودرولو د خطبې ورکولو دپاره او هم د دې معنی روایت په الضعفاء الکبیر للعقیلي کښې دی په دې دواړو روایتونو کښې معلومه شوه چه خطیب غیر د مغیره ته وو کوم چه مغیره اودرولې وو او د حدیث په یو بل کتاب مسند الشاشي کښې داسې دی : ﴿ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الأَخْنَسِ يَقُولُ : شَهِدْتُ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ يَخْطُبُ بِالْكُوفَةِ فَذَكَرَ عَلِيًّا فَنَالَ مِنْهُ فَقَالَ سَعِيدُ بن زيد: أَشْهَدُ الخ ﴾ په دې صورت کښې به خطیب خپله مغیره وی خو په دې روایت کښې کلام دې، امام نسائی رحمه الله فرمائی چه عبدالرحمن بن الاخنس لم یسمع سعید بن زید، او بعضو د هغوی په باره کښې لیکلې دی، ﴿ مجهول ﴾ او په تقریب کښې ئې لیکلې دی ﴿ مستور ﴾ د سنن کبری وغیره د روایت د وجې نه زما دا خیال دې چه دلته د سنن ابوداؤد په روایت کښې به هم د ﴿ اقام فلان خطیبا ﴾ په ځائې م خطباء هم وی چه مغیره بن شعبه څو خطیبان اودرول د خطاب دپاره او اقام په معنی د قام دا خلاف ظاهر دې خطیبا او خطبا په کتابت کښې یو شان دی. والله تعالي اعلم)

نشته، په دې وجه هغوی تپوس اوکړو چه هغه لسم څوک دې؟ نو په دې باندې په سوچ کښې پريوتلو او بيا ئې اووې چه هغه زه يم په دې روايت کښې راغلی وو : ﴿ وَلَوْ شَهِدْتُ عَلَى الْعَاشِرِ لَمْ إِيثَم قَالَ ابْنُ إِدْرِيسَ وَالْعَرَبُ تَقُولُ آثَمْ ﴾ يعنی اصل خو اثم دې په وزن د اعلم خو بعض وخت په اماله سره وئيلې شی يعنی ايثم.

## د عشره مبشره والا روايت :

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه په دې حديث کښې په عشره مبشره کښې ابوعبيد بن الجراح نه دې ذکر شوې په حاشيه د بذل کښې دی چه د عشره مبشره په احاديثو کښې هغه هم ذکر دې، خو په دې روايت کښې چه د لسو عدد کوم پوره شوې دې هغه د رسول اللهﷺ سره دې او کوم چه د عشره مبشره والا روايت دې د کوم طرف ته چه شيخ اشاره کړې ده په هغې کښې رسول اللهﷺ شامل نه دې په دې وجه هلته عاشر ابوعبيدهؓ دې، داسې معلوميږی چه په کومو احاديثو کښې د هغوی نه علاوه لس ذکر دی هغه د حراء واقعه نه ده پس د ترمذی په روايت کښې دی ﴿عن عبد الرحمن بن عوف قال : قال رسول الله صلى الله عليه و سلم أبو بكر في الجنة و عمر في الجنة و عثمان في الجنة و علي في الجنة و طلحة في الجنة و الزبير في الجنة و عبد الرحمن بن عوف في الجنة و سعد في الجنة و سعيد في الجنة و أبو عبيدة بن الجراح في الجنة ﴾ خو په دې کښې اشکال دا دې چه د سعيد بن زيد روايت په ترمذی کښې دواړه قسم شته دې يو د ابوداؤد په شان په کوم کښې چه په عشره مبشره کښې خپله رسول اللهﷺ هم شامل دې او ابوعبيده نه دې ذکر، او په يو روايت د سعيد بن زيد نه په ترمذی کښې هغه دې چه په هغې کښې د لس عدد بغير د رسول اللهﷺ نه پوره کيږی او په هغې کښې ابوعبيده بن الجراحؓ شمار کړې شوې دې.د سعيد بن زيد روايات مختلف دی په بعضو کښې د حراء ذکر شته لکه دلته د ابوداؤد په روايت کښې او هم دغه شان د ترمذی په يو روايت کښې کوم چه هم په دې طريق سره دې يعنی د عبدالله بن ظالم په واسطې سره، او په بعضو کښې د حراء ذکر نشته کوم چه د عبدالرحمن بن حميد عن ابيه په واسطه سره دې په هغې کښې د حراء ذکر نشته.او عاشر په دې کښې ابوعبيده دې په ځائې د رسول اللهﷺ هم په دې وجه امام ترمذیؒ هم د سعيد بن زيد د رواياتو د اختلاف طرف ته اشاره کړې ده : وقد روی من غير وجه عن سعيد بن زيد عن النبی صلى الله عليه وسلم، او په سنن کبری للنسائی کښې د سعيد بن زيد روايت داسې دې ﴿ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الأَخْنَسِ،عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ : اهْتَزَّ حِرَاءُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اثْبُتْ حِرَاءُ،فَلَيْسَ عَلَيْكَ إِلاَّ نَبِيٌّ،أَوْ صِدِّيقٌ،أَوْ شَهِيدٌ وَعَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،وَأَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ،وَعَلِيٌّ،وَطَلْحَةُ،وَالزُّبَيْرُ،وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ،وَسَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ وَأَنَا ﴾

اوس د حديث الباب په مطلب ځان پوهه کړئ چه په هغې کښې داسې دی ﴿ لَمَّا قَدِمَ فُلاَنٌ الْكُوفَةَ أَقَامَ فُلاَنٌ خَطِيبًا ﴾ د دې مخکښې فلانی نه مراد سيدنا معاويهؓ دې او د دويم نه مراد مغيره بن شعبهؓ، يعنی يو ځل سيدنا معاويهؓ کوفې ته تشريف راوړلو نو مغيره بن شعبهؓ کوم چه د هغوی د طرف نه د کوفې ګورنر وو هغه د هغوی په راتلو

باندې د خطيب په طور باندې اودريدل او خطبه ئې ورکړه چه په هغې کښې تعريض وو په علي ﷺ باندې او تفضيل دې د معاويه ﷺ په دې باندې سعيد بن زيد ته غصه ورغله لکه چه دلته په روايت کښې دی چه هغوی د عبدالله بن ظالم لاس اونيولو او د هغوی طرف ته متوجه کيدو سره ئې اوفرمائيل ﴿الا ترى الى هذا الظالم﴾ چه دا په علي ﷺ باندې تعريض کولې شی هغه پسې بدې ردې وئيلې کيږی حال دا چه علي ﷺ په هغه کسانو کښې دې د چا د جنتی کيدو چه رسول الله ﷺ شهادت ورکړې دې علامه سندی ﷺ په فتح الودود کښې ليکی چه امام ابوداؤد ﷺ ډير ښه کړې دی چه د مغيره او معاويه ﷺ د نومونو تصريح ئې نه ده کړې، کناية ئې بيان کړل، فی مثل هذا المحل لكونهما صاحبيين اه من البذل. د امام ابوداؤد ﷺ عادت شريفه دې چه په داسې موقعو باندې هغوی نوم نه اخلی د دې نه مخکښې هم په باب فی صفايا رسول الله ﷺ کښې د دې عادت ذکر او د دې مثالونه ذکر شوې دی.

[٤٦٤٩] (١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحُرِّ بْنِ الصَّيَّاحِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَخْنَسِ أَنَّهُ كَانَ فِي الْمَسْجِدِ، فَذَكَرَ رَجُلٌ عَلِيًّا عليه السلام، فَقَامَ سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ، فَقَالَ: أَشْهَدُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي سَمِعْتُهُ، وَهُوَ يَقُولُ: "عَشَرَةٌ فِي الْجَنَّةِ: النَّبِيُّ فِي الْجَنَّةِ، وَأَبُو بَكْرٍ فِي الْجَنَّةِ، وَعُمَرُ فِي الْجَنَّةِ، وَعُثْمَانُ فِي الْجَنَّةِ، وَعَلِيٌّ فِي الْجَنَّةِ، وَطَلْحَةُ فِي الْجَنَّةِ، وَالزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ فِي الْجَنَّةِ، وَسَعْدُ بْنُ مَالِكٍ فِي الْجَنَّةِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ فِي الْجَنَّةِ وَلَوْ شِئْتُ لَسَمَّيْتُ الْعَاشِرَ، قَالَ: فَقَالُوا: مَنْ هُوَ؟ فَسَكَتَ، قَالَ: فَقَالُوا: مَنْ هُوَ؟ فَقَالَ: هُوَ سَعِيدُ بْنُ زَيْدٍ".

د حضرت عبدالرحمن بن الاخنس نه روايت دې چی هغه په مسجد کښې ناست ووچی کله يو سړی د حضرت علی ﷺ ذکر اوکړو نو حضرت سعيد بن ﷺ اودريدو او وې وئيل: زۀ ګواهی ورکوم چی ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی وو، هغوی به فرمائيل: "لس اشخاص جنتيان دی - نبی ﷺ په جنت کښې دې، ابوبکر په جنت کښې دې، عمر په جنت کښې دې، عثمان په جنت کښې دې، علی په جنت کښې دې، طلحه په جنت کښې دې، زبيربن عوام په جنت کښې دې، سعد بن مالک په جنت کښې دې او عبد الرحمن بن عوف په جنت کښې دې -" که چرې زۀ اوغواړم نو د لسم نوم هم اخستې شم - خلقو تپوس اوکړو: هغه څوک دې؟ نو هغوی خاموش پاتې شو - خلقو تپوس اوکړو: هغه څوک دې نو هغوی اووې هغه سعيد بن زيد دې.

[٤٦٥٠] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْمُثَنَّى النَّخَعِيُّ، حَدَّثَنِي جَدِّي رِيَاحُ بْنُ الْحَارِثِ، قَالَ: كُنْتُ قَاعِدًا عِنْدَ فُلَانٍ فِي مَسْجِدِ الْكُوفَةِ وَعِنْدَهُ أَهْلُ الْكُوفَةِ، فَجَاءَ سَعِيدُ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ فَرَحَّبَ بِهِ وَحَيَّاهُ وَأَقْعَدَهُ عِنْدَ رِجْلِهِ عَلَى السَّرِيرِ، فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ يُقَالُ لَهُ قَيْسُ بْنُ عَلْقَمَةَ فَاسْتَقْبَلَهُ فَسَبَّ وَسَبَّ، فَقَالَ سَعِيدٌ: مَنْ يَسُبُّ هَذَا الرَّجُلُ؟ قَالَ: يَسُبُّ عَلِيًّا، قَالَ: أَلَا أَرَى أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَبُّونَ عِنْدَكَ ثُمَّ لَا تُنْكِرُ وَلَا تُغَيِّرُ، أَنَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ، وَإِنِّي لَغَنِيٌّ أَنْ أَقُولَ عَلَيْهِ مَا لَمْ يَقُلْ فَيَسْأَلُنِي عَنْهُ غَدًا إِذَا لَقِيتُهُ: أَبُو بَكْرٍ فِي الْجَنَّةِ، وَعُمَرُ فِي الْجَنَّةِ، وَسَاقَ مَعْنَاهُ، ثُمَّ قَالَ:

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٤٥٩) (صحيح)

(٢): سنن ابن ماجه/المقدمة ١١ (١٣٣)، (تحفة الأشراف: ٤٤٥٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٨٧) (صحيح)

لَمَشْهَدُ رَجُلٍ مِنْهُمْ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْبَرُّ فِيهِ وَجْهُهُ خَيْرٌ مِنْ عَمَلِ أَحَدِكُمْ عُمُرَهُ وَلَوْ عُمِّرَ عُمُرَ نُوحٍ.

درياح بن حارث بيان دي چې زهٔ د کوفې په مسجد کښې د فلانکي سره ناست ووم. (اشاره ده د حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه طرفته) او د هغه سره څه د کوفې خلق هم ناست وو. نو حضرت سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل رضي الله عنه تشريف راوړو - پس هغوی (مغيره) هغوی ته مرحبا او هرکلي اووې او بيا ئې هغوی د خپل کټ سر ته کينول. بيا د اهل کوفې نه يو سړې راغلود کوم نوم چې قيس بن علقمه وو. هغوی د هغه هم استقبال اوکړو بيا هغه بدګوئی اوکړه او بدګوئی ئې اوکړه - سعيد تپوس اوکړو چې دا چاته کنزل کوی؟ وې وئيل حضرت علی رضي الله عنه ته - نو سعيد اوويې : (تعجب دې) زه ګورم چې ستا په مخکښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم اصحابو ته بد رد وئيل کيږی او ته ئې چې څوک نه منع کوې او نهٔ ئې پوهه وی - ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي وو، هغوی فرمائيل ... او ماته هيڅ څه ضرورت نشته چې زهٔ په هغوی صلى الله عليه وسلم باندې داسې څه خبره اوتړمه چې هغوی نه وی کړې بيا که صبا ستا زما سره ملاقات اوشي او زما نه تپوس اوکړی..."ابوبکر په جنت کښې دې، عمر په جنت کښې دې، " او د مذکوره بالا حديث په رنګ ئې هم معنی روايت اوکړو. بيا ئې اووې په دوی کښې د کوم يو د رسول الله صلى الله عليه وسلم (په جهاد کښې) حاضرپاتې کيدل او د هغه مخ د دوړو سره پټيدل د ستا دَ ټولې زندګئ (ژوند) د اعمالو نه ډير بهتر دی خواه که تا تهٔ د حضرت نوح عليه السلام عمر ولې ميلاؤ نهٔ شي -

﴿كُنْتُ قَاعِدًا عِنْدَ فُلاَنٍ فِي مَسْجِدِ الْكُوفَةِ وَعِنْدَهُ أَهْلُ الْكُوفَةِ فَجَاءَ سَعِيدُ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ فَرَحَّبَ بِهِ وَحَيَّاهُ وَأَقْعَدَهُ عِنْدَ رِجْلِهِ عَلَى السَّرِيرِ فَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ يُقَالُ لَهُ قَيْسُ بْنُ عَلْقَمَةَ فَاسْتَقْبَلَهُ فَسَبَّ وَسَبَّ فَقَالَ سَعِيدٌ مَنْ يَسُبُّ هَذَا الرَّجُلُ قَالَ يَسُبُّ عَلِيًّا. قَالَ أَلاَ أَرَى أَصْحَابَ رَسُولِ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- يُسَبُّونَ عِنْدَكَ ثُمَّ لاَ تُنْكِرُ وَلاَ تُغَيِّرُ﴾

**مضمون الحديث :**

رياح بن الحارث وائی چه زه د کوفې په مسجد کښې د فلانی سړی يعنی مغيره بن شعبة رضي الله عنه سره ناست اوم هغه وخت هغوی سره نور هم بعض اهل کوفه ناست وو نو لږ ساعت پس سعيد بن زيد رضي الله عنه صحابي تشريف راوړلو مغيره بن شعبه رضي الله عنه د هغه په راتلو باندې مرحبا او حياک الله اووې او هغوی ئې په خپل تخت باندې د خپو طرف ته کينول هم په دې وخت کښې د اهل کوفه نه يو سړې چه د هغه نو قيس بن علقمه وو هغه راغلو او سيدنا مغيره رضي الله عنه ته متوجه شو، يا دا چه مغيره رضي الله عنه هغه ته متوجه شو، هغه بدې ردې وئيلې يعنی بغيرد نوم اخستلو نوپه دې باندې سيدنا سعيد رضي الله عنه تپوس اوکړودمغيره رضي الله عنه نه چه دې چاته دا بدې ردې وائی، نوهغه جواب ورکړو چه علی رضي الله عنه ته! په دې باندې سعيد رضي الله عنه اوفرمائيل چه عجيبه خبره ده چه صحابه کرامو رضي الله عنهم پسې ستاسو په مجلس کښې بدې ردې وئيلې کيږی او تاسوپه دې باندې هيڅ قسمه انکار نه کوئ حال دا چه هم دا علی رضي الله عنه د هغه خلقو نه دې چه د هغوی په باره کښې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دی چه دا ټول جنتيان دی ﴿ثُمَّ قَالَ لَمَشْهَدُ رَجُلٍ مِنْهُمْ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- يَغْبَرُّ فِيهِ وَجْهُهُ خَيْرٌ مِنْ عَمَلِ أَحَدِكُمْ

عُمْرَهُ وَلَوْ عُمِّرَ عُمْرَ نُوحٍ ﴾ بیا سعید بن زید اوفرمائیل چه په دې ذکر شوې صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې د یو کس د رسول الله ﷺ سره په یو غزوه کښې صرف یو ځل شریکیدل چه په هغې کښې د هغه مخ ګرد الود شوې وی هغه غوره دې ستاسو د ټول عمر د عمل نه اګر چه ته د نوح علیه السلام عمر ورکړې شی یعنی زر کاله.

د دې روایت نه معلومه شوه چه دا بدې ردې ویونکې قیس بن علقمه وو کیدې شی چه دې هم په هغه خطیبانو کښې وو چه د هغوی ذکر په پورته روایت کښې راغلې دې.

حدیث عبدالله بن ظالم اخرجه الترمذی والنسائی (فی الکبری) وابن ماجه، وقال الترمذی حسن صحیح، وقد اخرجه مسلم والترمذی والنسائی من حدیث سهیل بن ابی صالح عن ابیه عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه بنحوه وحدیث عبدالرحمن بن الاخنس اخرجه الترمذی والنسائی (فی الکبری) وحدیث ریاح بن الحارث اخرجه النسائی (فی الکبری) وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴٦۵۱](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ، "أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَعِدَ أُحُدًا فَتَبِعَهُ أَبُو بَكْرٍ، وَعُمَرُ، وَعُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ، فَضَرَبَهُ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِجْلِهِ، وَقَالَ: اثْبُتْ أُحُدُ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ".

حضرت انس بن مالک رضی الله عنه بیان اوکړو چې د الله نبی ﷺ د احد په غر باندې اوختو نو حضرت ابوبکر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهم هم ورپسې لاړل، پس غر حرکت اوکړو. نو نبی ﷺ په هغې باندې پښه اووهله او وې فرمائیل: "احد" اودریږه! (د تا د پاسه) یو نبی، یو صدیق او دوه شهیدان دی."

**قوله:**﴿عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- صَعِدَ أُحُدًا فَتَبِعَهُ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ فَضَرَبَهُ نَبِيُّ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِرِجْلِهِ وَقَالَ « اثْبُتْ أُحُدُ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ »﴾

مضمون د حدیث واضح دې او دا واقعه د مدینې طیبې د غر احد ده او د دې نه مخکښې چه د سعید بن زید رضی الله عنه چه کوم روایت راغلې دې هغه د واقعه حراء مکې مکرمې ده او هلته دا تیر شو چه هغه وخت په حراء باندې دا لس کسان موجود وو د چا نومونه چه هلته ذکر شوې دی لکه چه د سنن کبری په روایت کښې تیر شوې دی او د احد په واقعه کښې د رسول الله ﷺ سره په روایت کښې صرف د درې کسانو ذکر دې ابوبکر و عمر وعثمان رضی الله عنهم والحدیث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی، قاله المنذری.

[۴٦۵۳](²) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الرَّمْلِيُّ، أَنَّ اللَّيْثَ حَدَّثَهُمْ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا يَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ مِمَّنْ بَايَعَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ".

حضرت جابر رضی الله عنه بیان اوکړو چې بغیر د څه شک نه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "کومو چې د

---

¹): صحيح البخاري/المناقب ٥ (٣٦٧٥)، ٦ (٣٦٨٦)، ٧ (٣٦٩٧)، سنن الترمذي/المناقب ١٩ (٣٦٩٧)، (تحفة الأشراف: ١١٧٢) وقد أخرجه: مسند احمد (١١٢/٣) (صحيح)

²): سنن الترمذي/المناقب ٥٨ (٣٨٦٠)، (تحفة الأشراف: ٢٩١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٥٠/٣) (صحيح)

ونې لاندې بيعت اوکړو په هغوی کښې به هيڅوک په اور کښې نه داخليږي.

**قوله:**﴿عَنْ جَابِرٍ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ قَالَ « لاَ يَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ مِمَّنْ بَايَعَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ »﴾

يعنې کوم صحابه کرام ﷺ چه په بيعت الرضوان کښې شريک وو رسول الله ﷺ د هغوی په باره کښې زيرې ورکوی چه دا ټول جنتيان او غير معذب دی، دا بيعت د اونې لاندې شوې وو چه د هغې ذکر په قرآن کريم کښې هم راغلې دې ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾

والحديث اخرجه الترمذى والنسائى وقد اخرجه مسلم من حديث جابر بن عبدالله عن ام مبشر الخ قاله المنذرى.

[٤٦٥٤](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ.ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سِنَانٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ مُوسَى: فَلَعَلَّ اللَّهَ، وَقَالَ ابْنُ سِنَانٍ: "اطَّلَعَ اللَّهُ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ، فَقَالَ: اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ".

حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان کوی چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: شايد چې الله تعالى په اهل بدر باندې نظر فرمائيلې دې او وئيلې ئې دی چې تاسو څه عمل هم کوئ ما تاسو اوبخښلئ.

**قوله:**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم اطَّلَعَ اللَّهُ عَلَى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ﴾

دا حديث په كتاب الجهاد باب فى حكم الجاسوس اذا كان مسلما کښې تير شوې دې او د هغې شرح هم هلته تيره شوې ده فارجع اليه لو شئت.

[٤٦٥٥](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ ثَوْرٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، قَالَ: "خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ: فَأَتَاهُ يَعْنِي عُرْوَةَ بْنَ مَسْعُودٍ، فَجَعَلَ يُكَلِّمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُلَّمَا كَلَّمَهُ أَخَذَ بِلِحْيَتِهِ، وَالْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَائِمٌ عَلَى رَأْسِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهُ السَّيْفُ وَعَلَيْهِ الْمِغْفَرُ فَضَرَبَ يَدَهُ بِنَعْلِ السَّيْفِ، وَقَالَ: أَخِّرْ يَدَكَ عَنْ لِحْيَتِهِ، فَرَفَعَ عُرْوَةُ رَأْسَهُ، فَقَالَ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ".

د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه نه مروی دی چې نبی ﷺ د حديبيه په ورځو کښې روان شو...او حديث ئې بيان کړو ...وی وئيل چې ...بيا (د مشرکينو د طرف نه)عروه بن مسعود راغلو او د نبی ﷺ سره ئې خبرې شروع کړې او په دغه وخت کښې به هغه د هغوی ﷺ ږيرې مبارکې سره هم لاس لګولو. او حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه د نبی ﷺ په سر باندې ولاړ وو، د هغه په لاس کښې توره او په سرباندې ئې خود [د اوسپنې ټوپئ] وه. نو هغوی د

(1): تفرد به أبو داود انظر حديث رقم: ٢٦٥٠، (تحفة الأشراف: ١٢٨٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٩٥) (حسن صحيح)

(2): انظر حديث رقم: (٢٧٦٥)، (تحفة الأشراف: ١١٢٧٠) (صحيح)

توري د لاسکي سره دهغه لاس اوهلو او وی وئیل چې د نبي ﷺ د ګیرې مبارکې نه لاس لرې اوساته. عروه خپل سر پورته کړو او وې وئیل چې دا څوک دې؟ صحابو اووې: چې دا حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه دې.

**قوله:**﴿ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ.قَالَ فَأَتَاهُ - يَعْنِي عُرْوَةَ بْنَ مَسْعُودٍ - فَجَعَلَ يُكَلِّمُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَكُلَّمَا كَلَّمَهُ أَخَذَ بِلِحْيَتِهِ وَالْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَائِمٌ عَلَى رَأْسِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَمَعَهُ السَّيْفُ وَعَلَيْهِ الْمِغْفَرُ فَضَرَبَ يَدَهُ بِنَعْلِ السَّيْفِ وَقَالَ أَخِّرْ يَدَكَ عَنْ لِحْيَتِهِ الحديث﴾

دا حدیث د کتاب الجهاد په آخر کښې په باب فی صلح العدو کښې تیر شوې دې، او د دې شرح هم، په بذل کښې حضرت لیکلې دی چه مصنف رحمه الله د مغیره بن شعبه رضی الله عنه متعلق دا حدیث چه په هغې کښې د هغوی په رسول الله ﷺ باندې ځان قربانول او فداکاری ذکر ده د دې مناسبت دپاره راوړلې دې چه پورته په روایت کښې مضمون راغلې دې کوم چه د سب علي رضی الله عنه سره متعلق دې د هغې نه متاثر کیدو سره یو سړې د هغوی په باره کښې په بدګمانۍ کښې اخته نه شي چه د دې حضراتو دا کارنامې هغوی لره خپلې مخې ته کیخودل پکار دی، مونږ روستو خلقو ته په هغوی باندې د خولې پرانستلو حق نشته.

[٤٦٥٢](1) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُحَمَّدٍ الْمُحَارِبِيِّ، عَنْ عَبْدِ السَّلَامِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ الدَّالَانِيِّ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ مَوْلَى آلِ جَعْدَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَرَانِي بَابَ الْجَنَّةِ الَّذِي تَدْخُلُ مِنْهُ أُمَّتِي، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَدِدْتُ أَنِّي كُنْتُ مَعَكَ حَتَّى أَنْظُرَ إِلَيْهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا إِنَّكَ يَا أَبَا بَكْرٍ أَوَّلُ مَنْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه بیان اوکړو چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: زما خوا له جبریل علیه السلام راغلو، زما لاس ئې اونیو او ما ته ئې دجنت دروازه اوښودله په کومه چې به زما امت داخلیږي. " نو حضرت ابوبکر رضی الله عنه اووې: اې د الله رسوله! زه دغه خوښوم کاش (ارمان) کۀ زۀ هم ستا سره وې او ما هم دا لیدلې وې، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: اې ابوبکر! تۀ یقیناً زما د امت هغه کس ئې کوم چې به د ټولو نه مخکښې په جنت کښې داخلیږي.

**قوله:**﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَرَانِي بَابَ الْجَنَّةِ الَّذِي تَدْخُلُ مِنْهُ أُمَّتِي » الخ ﴾

سیدنا ابوهریره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ حدیث نقل فرمائی چه ماته جبرائیل علیه السلام راغلو او زما لاس نیولو سره ئې ماته د جنت هغه دروازه اوښودله چه په هغې به زما امت هغې ته داخلیږي (دا واقعه یا خو د معراج په شپه پیښه شوه یا په بل څه وخت کښې) په دې باندې صدیق اکبر رضی الله عنه عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ کاش چه دې وخت کښې زه هم تاسو سره اوم چه دا دروازه مې لیدلې وې نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه (ته به ئې ډیر زر وینې ځکه چه) ته زما په امت کښې جنت ته د ټولو نه مخکښې داخلیدونکې ئې.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٨٨٠) (ضعيف)

[۴۶۵۶]()حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ أَبُو عُمَرَ الضَّرِيرُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ إِيَاسٍ الْجُرَيْرِيَّ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ الْعُقَيْلِيِّ، عَنِ الْأَقْرَعِ مُؤَذِّنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ: "بَعَثَنِي عُمَرُ إِلَى الْأُسْقُفِ فَدَعَوْتُهُ، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ: وَهَلْ تَجِدُنِي فِي الْكِتَابِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: كَيْفَ تَجِدُنِي؟ قَالَ: أَجِدُكَ قَرْنًا فَرَفَعَ عَلَيْهِ الدِّرَّةَ، فَقَالَ: قَرْنٌ مَهْ؟ فَقَالَ: قَرْنٌ حَدِيدٌ أَمِينٌ شَدِيدٌ، قَالَ: كَيْفَ تَجِدُ الَّذِي يَجِيءُ مِنْ بَعْدِي؟ فَقَالَ: أَجِدُهُ خَلِيفَةً صَالِحًا غَيْرَ أَنَّهُ يُؤْثِرُ قَرَابَتَهُ، قَالَ عُمَرُ: يَرْحَمُ اللَّهُ عُثْمَانَ ثَلَاثًا، فَقَالَ: كَيْفَ تَجِدُ الَّذِي بَعْدَهُ؟ قَالَ: أَجِدُهُ صَدَأَ حَدِيدٍ، فَوَضَعَ عُمَرُ يَدَهُ عَلَى رَأْسِهِ، فَقَالَ: يَا دَفْرَاهُ يَا دَفْرَاهُ، فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ إِنَّهُ خَلِيفَةٌ صَالِحٌ، وَلَكِنَّهُ يُسْتَخْلَفُ حِينَ يُسْتَخْلَفُ وَالسَّيْفُ مَسْلُولٌ وَالدَّمُ مُهْرَاقٌ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الدَّفْرُ النَّتْنُ.

د سیدنا عمر بن خطاب رضی الله عنه مؤذن حضرت اقرع رحمه الله بیان اوکړو چې حضرت عمر رضی الله عنه زهٔ د عیسایانو مذهبی سردار له واستلوم. ما هغه راوبللو. حضرت عمر رضی الله عنه د هغه نه تپوس اوکړو: آیا تهٔ په خپل کتاب کښې زما ذکر وینې؟ وې وئیل او. تپوس ئې اوکړو :څنګه؟ وې وئیل: زهٔ ګورم چې تاسو یو قرن یئ. حضرت عمر رضی الله عنه خپله دره په هغه باندې بلنده کړه او تپوس ئې اوکړو: '' قرن'' نه څه مراد دې؟ وې وئیل: ډیره سخته فولادی قلعه، انتهائی امانتدار. حضرت عمر رضی الله عنه ترې تپوس اوکړو :کوم چې به زما نه پس راځی د هغه په باب کښې څه ګورې؟ وې وئیل : هغه به یو صالحه خلیفه وی، صرف به دومره وی چې هغه به خپل قربت واله ؤ ته ترجیح ورکوی. حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل: الله دې په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې رحم اوفرمائی، درې ځله ئې اووې. بیا ئې تپوس اوکړو : دهغې نه پس چې به څوک راځی د هغه په باب کښې څه ګورې؟ زهٔ هغه ګورم چې هغه به داوسپنې زنګ وی . نو حضرت عمر رضی الله عنه خپل لاس په خپل سر باندې کیښودو او وې وئیل اې بدبودار ! اې بدبودار ! (تهٔ لګیا ئې څه وائې؟) نو هغه اووې : اې امیرالمؤمنین ! دغه به صالحه خلیفه وی خوچې کله به ده ته منصب میلاویږی نو تورې به راوتې وی او وینې به بهیږی. امام ابو داود رحمه الله اووې چې د(الدفر) معنی ده ''بدبو''.

**قوله:﴿ عَنِ الْأَقْرَعِ مُؤَذِّنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ بَعَثَنِي عُمَرُ إِلَى الْأُسْقُفِ فَدَعَوْتُهُ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ وَهَلْ تَجِدُنِي فِي الْكِتَابِ قَالَ نَعَمْ.........وَلَكِنَّهُ يُسْتَخْلَفُ حِينَ يُسْتَخْلَفُ وَالسَّيْفُ مَسْلُولٌ وَالدَّمُ مُهْرَاقٌ.قَالَ أَبُو دَاوُدَ الدَّفْرُ النتن ﴾**

## مضمون الحدیث:

د سیدنا عمرفاروق رضی الله عنه موذن د چا نوم چه اقرع رحمه الله دې هغه وائی چه یو ځل زه عمر رضی الله عنه یو پادری (انصاری عالم چه دلته ترې نه مراد کعب احبار دې چه هغه هم د توراة عالم وو) ته اولیږلم. ما هغه راوغوښتلو او هغه راغلو. عمر رضی الله عنه د هغه نه تپوس اوکړو چه زما ذکر په تورات کښې شته؟ هغه جواب ورکړو او ستاسوذکر پکښې شته. هغوی ترې نه تپوس اوکړو نه ما په تورات کښې څنګه بیا مومې؟ هغه جواب ورکړو چه زه تاسو په هغې کښې دقلعه په شان بیا موم. سیدنا عمر رضی الله عنه د خوش طبعئ په طور په هغه باندې دره اوچته کړه او تپوس ئې ترې نه اوکړو د څه څیز قلعه؟ هغه اووې د اوسپنې جوړه شوې قلعه، او دا چه

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۴۰۸) (ضعيف الإسناد)

هغه به ډېر امانت دار او مضبوط وی، هغوی ترې نه بیا تپوس اوکړو چه کوم خلیفه به زما نه روستو راځی ته هغه څنګه بیا مومې هغه اووې زه هغه یو خلیفه بیا مومم خو یو خبره ده چه هغه به په خپل دور خلافت کښې خپلو رشته دارو ته ترجیح ورکړی، یعنی په مناصب او عهدو کښې، په دې باندې عمر رضی الله عنه اووې الله پاک دې په عثمان رضی الله عنه باندې رحم اوفرمائی د هغې نه پس هغوی دا سوال اوکړو چه د هغه نه پس چه څوک راځی هغه څنګه بیا مومې؟ وې فرمائیل د اوسپنې د زنګ په شان ئې بیامومم، په دې اوریدلو باندې عمر رضی الله عنه خپل لاس په سر باندې کیخودلو او وې فرمائیل : یا د فراه یا د فراه د د فر معنی لکه چه مصنف رحمه الله وړاندې فرمائی د بدبوئې ده ګویا عمر رضی الله عنه په دې باندې اظهار د کراهت اوفرمائیلو بیا دې اسقف نوره تشریح کولو سره اووې چه اې امیر المومنین هغه خو به پخپله خلیفه او صالح وی خو چه کوم وخت هغه خلیفه جوړ کړې شی هغه به دداسې فتنو زمانه وی چه تورې به راویستلې شوې وی او د خلقو وینې به تویولې شی،داسقف داخبره چه هغه خلیفه به په داسې وخت کښې جوړولې شی چه تورې به چلولې شی په داسې حال کښې چه تورې به چلولې شی او وینې به بهیولې شی، دا صحیح ده او هم دغه شان ده هم او دقتل عثمان رضی الله عنه طرف ته اشاره ده، دعبدالله بن سلام رضی الله عنه په باره کښې روایت مشهور دې چه په کوم وخت کښې عثمان غنی رضی الله عنه په خپل کور کښې محصور وو او هغه شرپسندو د هغوی د کور محاصره کړې وه نو عبدالله بن سلام رضی الله عنه هغه وخت عثمان رضی الله عنه ته د ملاقات دپاره تلی وو هغوی ترې تپوس اوکړو چه څه دپاره راغلې ئې نو هغوی اووې چه ستاسو د نصرت دپاره نو هغوی اوفرمائیل چه زما نصرت خوبه په کور کښې دننه نه کیږی،د کورنه بهر لاړشه او کومو خلقو چه په ما باندې حمله کړې ده د هغوی د لرې کولو کوشش اوکړه، پس عبدالله بن سلام رضی الله عنه بهر راغلو او دبهر راتلونه پس اول خوهغوی خپل تعارف اوفرمائیلو چه زه څوک یم او د هغوی په باره کښې چه کوم آیتونه په قرآن کریم کښې نازل شوې دې لکه ﴿ وشهد شاهد من بنی اسرائیل علی مثله ﴾ او هم دغه شان ﴿ قل کفی بالله شهیدا بینی وبینکم ومن عنده علم الکتب ﴾ چه په دې آیتونو کښې هم زما ذکر دې او دا آیت کریمه زما په باره کښې نازل شوې وو او بیا د هغې نه پس هغوی پوهول شروع کړل چه ګورئ لا تراوسه پوره خو د فتنو دروازې بند دی، په دې مدینة الرسول صلی الله علیه وسلم کښې ملائک ستاسو حفاظت کوی لهذا ددې سړی په باره کښې دالله پاک نه اویریږئ، د هغه قتل کول ګویا د محافظینو ملائکو د خپل ځان نه اوچتول دی او د الله پاک توره چه تراوسه پورې په تیکی کښې ده هغې لره د تیکی نه بهر راویستل دی، او کله چه هغه یو ځل د تیکی نه رابهر شی نو بیا به تر قیامته پورې چلیږی خو هغوی د عبدالله بن سلام رضی الله عنه د دې ټولو نصیحتونو او تقریر اوریدلو نه پس اووې : ﴿ اقتلوا الیهودی واقتلوا عثمان ﴾ دا روایت په ترمذی شریف کښې دوه درې ځایه دې دعبدالله بن سلام په مناقب کښې اودهغې نه علاوه هم یو ځائې دوه شته.

.........

# بَاب فِي فَضْلِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم

## بابـ ۹: د نبی ﷺ د اصحابو فضیلت

[۴۶۵۷](¹)حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، قَالَ: أَنْبَأَنَا ح حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَيْرُ أُمَّتِي الْقَرْنُ الَّذِينَ بُعِثْتُ فِيهِمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، وَاللَّهُ أَعْلَمُ أَذَكَرَ الثَّالِثَ أَمْ لَا، ثُمَّ يَظْهَرُ قَوْمٌ يَشْهَدُونَ وَلَا يُسْتَشْهَدُونَ، وَيَنْذِرُونَ وَلَا يُوفُونَ، وَيَخُونُونَ وَلَا يُؤْتَمَنُونَ، وَيَفْشُو فِيهِمُ السِّمَنُ".

حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه بیان کوی رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "زما د امت بهترینه زمانه هم دغه ده په کومه کښې چې زهٔ مبعوث کړې شوم، او بیا هغه کومه چې ددې سره متصله وی، او بیا هغه چې کومه د دې سره متصله وی... والله اعلم - هغوی ﷺ دا په دریم ځل باندې اوفرمائیل چې نهٔ... بیا بهٔ د دې نه پس داسې خلق راځی کوم چې به ګواهی ورکوی حالانکه د هغوی نه به ګواهی نهٔ وی غوښتل شوې، نذر به منی خو پوره کوی به ئې نهٔ - خیانتونه به کوی او په هغوی باندې به اعتماد نه کیږی او په هغوی کښې بهٔ غټ والی هم عام وی -

**قوله:** ﴿ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « خَيْرُ أُمَّتِي الْقَرْنُ الَّذِينَ بُعِثْتُ فِيهِمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ». وَاللَّهُ أَعْلَمُ أَذَكَرَ الثَّالِثَ أَمْ لاَ ﴾

امام بخاری او امام ترمذی وغیره مستقل کتاب المناقب قائمولو سره په هغې کښې دننه د ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم مناقب فردا فردا بیلو بیلو بابونو کښې بیان کړی دی، خو امام ابوداؤد رحمه الله داسې اونکړل بس د خلفاء راشدین ترمینځهٔ ئې ترتیب وار روایات بیان کړل کوم چه تیر شو یا به اوس مطلق د صحابه کرامو فضائل بیانوی، ځکه چه د هغوی مخې ته زیات تر په دې ابواب سره د فرقه باطله روافض وغیره تردید کول دی، دا روافض د اهل بیت نه علاوه صحابه چرته منی. د دې باب د حدیث مضمون دا دې کوم چه ډیر مشهور حدیث دې، چه په هغې کښې رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه زما د امت د ټولو نه افضل حصه هغه ده په کومو کښې چه زه رالیږلې شوې یم او کوم خلق چه زما په زمانه کښې موجود دی یعنی د رسول الله ﷺ صحابه رضی الله عنهم، او بیا چه به کوم خلق د هغوی نه پس متصلاً راځی یعنی تابعین، او بیا چه کوم خلق به د هغوی نه روستو راځی یعنی تبع تابعین، د قرن اطلاق د یوې زمانې په خلقو باندې کیږی کوم چه په یو خاص وصف کښې مشترک وی که هغه صنعت او حرفت وی یا بل څه فن، ففی القسطلانی ۸۰/۶ والقرن اهل زمان واحد متقارب اشترکوا فی امر من الامور المقصودة ويطلق على مدة من الزمان، واختلف فی تحديدها من عشرة اعوام الى مائة وعشرين والمراد بهم هنا الصحابة رضوان الله عليهم اجمعين اه وفی المجمع ۲۵۹/۴ والقرن اهل كل زمان وهو مقدار التوسط فی اعمار اهل كل زمان، وهو اربعون سنة او ثمانون او مائة او مطلق من الزمان.

---

¹): صحیح مسلم/فضائل الصحابة ۵۲ (۲۵۳۵)، سنن الترمذي/الفتن ۴۵ (۲۲۲۲)، الشهادات ۴، (۲۳۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۲۴)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الشهادات ۹ (۲۶۵۱)، فضائل الصحابة ۱ (۳۶۵۰)، الرقاق ۷ (۶۴۲۸)، الأيمان ۷ (۶۶۹۵)، سنن النسائي/الأيمان والنذور ۲۸ (۳۸۴۰)، مسند احمد (۴/۴۲۷، ۴۳۶، ۴۴۰) (صحیح)

**د قرون ثلاثه تحدید من حیث الزمان او په تحدید کښې اختلاف روایات :**

په دې حدیث کښې قرون ثلاثه ذکر دی، په بذل کښې د علامه سندی رحمه الله نه نقل کړی دی چه قرن اول یعنی د رسول الله ﷺ د زمانې ابتداء د هغوی د بعثت نه شوې ده او د وفات په اعتبار سره چه کوم د ټولو نه آخری صحابی رضی الله عنه دې هغه د دې انتهاء ده چه د هغې موده هغوی شپږ شلې کاله لیکلې ده او د قرن تابعین ابتداء هغوی لیکی تقریبا د (۱۰۰ هجری) نه تر (۱۷۰ هجری) پورې او بیا د دې نه پس د ۲۲۰ هجری پورې د اتباع التابعین قرن دې او بیا په دغه زمانه کښې لیکی چه بدعات ښه ښکاره شوې وو او اهل علم په مسئلهٔ د خلق قرآن په ازمیښت کښې اخته شو او په احوالو کښې تغیر پیدا کیدو لکه چه رسول الله ﷺ فرمائیلی وو ﴿ ثم یفشو الکذب ﴾ د دې حدیث په آخر کښې دی ﴿ والله اعلم اذکر الثالث ام لا ﴾ دا د عمران بن حصین رضی الله عنه حدیث په بخاری او مسلم دواړو کښې شته، په صحیح بخاری کښې داسې دی : ﴿ خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ قَالَ عِمْرَانُ فَلاَ أَدْرِي أَذَكَرَ بَعْدَ قَرْنِهِ قَرْنَيْنِ،أَوْ ثَلاَثًا ﴾ د عمران بن حصین رضی الله عنه په پورته ذکر شوې حدیث کښې د ابوداؤد او بخاری دواړو په روایت د رسول الله ﷺ د قرن نه پس دوه قرن مذکور دی (پس ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم دوه کرته دې) لهذا دا دوه خو متیقن دی یو د رسول الله ﷺ قرن او دوه د هغې نه پس د تابعین او تبع تابعین دا ټول درې شو، اوس د دې نه پس راوی وائی ﴿ فلا ادری اذکر الثالث ام لا ﴾ یعنی ﴿ ثم الذین یلونهم ﴾ دوه کرته فرمائیلو نه پس ئې په دریم ځل هم اوفرمائیل یا نه، په دې کښې د راوی شک دې، که دا هم اومنلې شی نو هغه به قرن رابع وی د مجموع په په اعتبار سره، د دې اختلاف اعتبار سره د دې حدیث تجزیه حافظ ابن القیم رحمه الله ډیره په ښه طریقه کړې ده، هغوی فرمائی چه دا حدیث د عمران بن حصین، عبدالله بن مسعود، ابوهریره، عائشه او نعمان بن بشیر رضی الله عنهم د دې پینځو صحابه کرامو نه مروی دې د دې نه پس فرمائی چه په دوی کښې د عمران بن حصین رضی الله عنه حدیث خو متفق علیه دې یعنی په بخاری او مسلم دواړو کښې دې او د دې په اکثرو روایاتو کښې د رسول الله ﷺ د قرن نه پس دوه قرن ذکر دی او د دې په بعض طرق کښ په صحیح کښ.([1]) ﴿ثم الذین یلونهم ﴾ درې کرته دې، په ظاهر کښې دا غیر محفوظ دې ځکه چه د عمران بن حصین رضی الله عنه نه سوال کړې شوې وو د دې په باره کښې نو هغوی جواب ورکړو چه زه نه شم وئیلې چه رسول الله ﷺ د خپل قرن نه پس دوه کرته فرمائیلې وو یا درې کرته، د دې نه پس د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حدیث په باره کښې فرمائی چه هغه هم په صحیحین کښې ذکر دې ولفظه : ﴿ خیر امتی القرن الذی یلوننی ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم ﴾ او په یو روایت

[1] په ظاهر کښې د هغوی مراد د صحیح نه صحیح مسلم دې چه د هغې په یو روایت کښې د عمران بن حصین رضی الله عنه په حدیث کښې ﴿ ثم الذین یلونهم ﴾ درې کرته دې خو د هغې نه پس بیا دا جمله هم ده ﴿قال عمران فلا ادري اقال رسول الله ﷺ بعد قرنه مرتین او ثلاثا ﴾ د دې جملې نه پس دا روایت واپس کیدو سره بیا هم هغه روایاتو ته راځی چه په هغې کښې صرف د دوه کرتو ذکر دې، لهذا زمونږ په خیال کښې د دې استدلال حاجت نه وو کوم چه هغوی اوکړو)

کښې د هغوی داسې دی ﴿ سئل النبی ﷺ ای الناس خیر قال قرنی ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم ﴾ هغوی فرمائی چه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په حدیث کښې د هغوی نه پس بغیر د اختلاف نه دوه قرن مذکور دی خو په صحیح مسلم کښې د ابوهریره رضی الله عنه د حدیث الفاظ دا دی: ﴿ خَيْرُ أُمَّتِي الْقَرْنُ الَّذِينَ بُعِثْتُ فِيهِمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ».وَاللَّهُ أَعْلَمُ أَذَكَرَ الثَّالِثَ أَمْ لاَ ﴾ هغه فرمائی په دې حدیث د ابوهریره رضی الله عنه کښې د حضور ﷺ د قرن نه پس صرف یو قرن مذکوردې اوپه دریم کښې راوِن شک ښکاره کړې دې خو نور حضرات عبدالله بن مسعود، عمران، عائشه رضی الله عنهم دا محفوظ ساتلې دې اوشک ئې نه دې کړې، یعنی دهغوی نه پس دغه قرن خو محفوظ او یقینی دې) ددې نه پس د حدیث عائشه رضی الله عنها الفاظ لیکلی دی د صحیح مسلم نه، أی الناس خیر قال القرن الذی انا فیه ثم الثانی ثم الثالث،، او د هغې نه پس ئې د نعمان بن بشیر رضی الله عنه حدیث د صحیح ابن حبان نه نقل کړو چه په هغې کښې ﴿ ثم الذین یلونهم ﴾ دوه کرته دې د دې نه پس فرمائی چه دا ټول احادیث د نبی کریم ﷺ د قرن نه پس په دوه قرن باندې متفق دی. الا حدیث ابی هریرة فانه شک فیه،، ددې نه پس فرمائی: وَأَمَّا ذِكْرُ الْقَرْنِ الرَّابِعِ فَلَمْ يُذْكَرْ إِلَّا فِي رِوَايَةٍ [1] فِي حَدِيثِ عِمْرَانَ , لَكِنْ فِي الصَّحِيحَيْنِ لَهُ شَاهِدٌ مِنْ حَدِيثِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ , قَالَ : " يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنْ النَّاسِ .فَيُقَالُ لَهُمْ : هَلْ فِيكُمْ مَنْ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَيَقُولُونَ : نَعَمْ , فَيُفْتَحُ لَهُمْ الخ ....دا حدیث په صحیح بخاری کښې په باب فی فضائل اصحاب النبی ﷺ کښې ذکر دې هغه مونږ اوکتلو، خو د بخاری د روایت نه دا استشهاد خو نه شی کیدې لکه چه ابن قیم رحمه الله فرمائی ځکه په هغې کښې هم د رسول الله ﷺ نه پس صرف د قرنین ثبوت دې د تیرو احادیثو په شان خو د صحیح مسلم په یو طریق کښې د رسول الله ﷺ نه پس د درې جماعتونو ذکر دې پس د هغې په اخر کښې دی، ﴿ ثُمَّ يَكُونُ الْبَعْثُ الرَّابِعُ .فَيُقَالُ : أُنْظُرُوا , هَلْ تَرَوْنَ فِيهِمْ أَحَدًا رَأَى مَنْ رَأَى أَحَدًا رَأَى أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَيُوجَدُ الرَّجُلُ فَيُفْتَحُ لَهُ ﴾ نو حافظ ابن القیم رحمه الله دا وئیل غواړی چه د دې حدیث نه په ځائې د قرون ثلاثه د قرون اربعه خیریت او برکت مستفاد کیږی لهذا په کوم حدیث کښې چه (وهو حدیث عمران بن حصین رضی الله عنه عند مسلم) کښې درسول الله ﷺ په ځائې د دواؤ درې قرن ذکر دی اګر چه هغه صرف د یو حدیث یو طریق دې خو د مسلم دا حدیث د هغه دپاره شاهد جوړیدو سره د هغې د تقویت ذریعه کیدې شی، او علامه عینی ۲۳۸/۱۳ په خیر القرون قرنی والا حدیث لره د صحیحین وغیره نه د ذکر کولو نه پس د قرن رابع په سلسله کښې لیکلې دی:

ووقع في حديث جعدة بن هبيرة ورواه ابن أبي شيبة والطبراني إثبات القرن الرابع ولفظه خير الناس قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم ثم الآخرون أردى ورجاله ثقات إلا أن جعدة بن هبيرة مختلف في صحبته ....دا د جعده بن هبیرة روایت د قرن رابع په ثبوت کښې حافظ

---

[1] په دې باندې اشکال مونږ په تیره حاشیه کښې ذکر کړې دې

رحمه الله ۱۰/۷ هم په حواله مذکوره سره نقل کړې دي، په ظاهره کښې د ابن القيم رحمه الله په علم کښې دا حديث نه وو د دې په ځائې ئې د بل حديث نه استشهاد کړې دې.
دلته اوس دوه خبرې نورې هم تشريح طلب دی،

**اول** : دا چه د قرون ثلاثه ابتداء او انتهاء او په دې کښې د علماء کرامو رائې، په دې کښې د جمهورو رائې خو په شروع کښې د علامه سندی د کلام نه ذکر شوه د دې نه علاوه د دې په باره کښې په حاشيه د بذل کښې دی. وجزم صاحب ازالة الخفاء ١٥٤/٤ و ٢٤٧ ان القرن الاول من الهجرة الى وفاته ﷺ والقرن الثانی من مفتح خلافة الصديق الى مقتل عمر، والثالث زمن خلافة عثمان، فكل قرن قريب من ثنتی عشرة سنته اهـ د قرن په تفسير کښې په شروح کښې کافی اختلاف او تفصيل ذکر کړې دې کوم چه امام نووی رحمه الله هم په شرح د مسلم کښې ليکلې دې او بيا ئې په آخر کښې د سنين په اعتبار سره د هغې په مقدار کښې اختلاف هم ليکلې دې هغوی فرمائی : وذكر الحربي الاختلاف في قدره بالسنين من عشر سنين إلى مائة وعشرين ثم قال وليس منه شئ واضح ورأى أن القرن كل أمة هلك فلم يبق منها أحد وقال الحسن وغيره القرن عشر سنين وقتادة سبعون والنخعي أربعون وزرارة بن أبي أوفى مائة وعشرون وعبدالملك بن عمير مائة وقال ابن الاعرابي هو الوقت هذا آخر نقل القاضي والصحيح أن قرنه صلى الله عليه و سلم الصحابة والثاني التابعون والثالث تابعوهم اهـ.

**دويم** : چه د کومو رواياتو نه د قرن رابع ثبوت کيږی د هغې مصداق څه دې؟ د دې په باره کښې په حاشيه د بذل کښې دی : ﴿ وجعل فی الاشاعة لاشراط الساعة القرن الرابع زما المهدی اهـ ﴾ چونکه هغوی قرن رابع ته د مهدی زمانه اووې کوم چه د قرون ثلاثه ماضيه نه منفصل او غير مسلسل ده په دې وجه هغوی فرمائی : وورد فی رواية ثلاثة تترى وواحد فرادى، فيكون قرنه الرابع المفرد الملحق بالثلاثة تترى، يعنی په دې قرون اربعه کښې د شروع درې قرون خو مسلسل او متواتر دی او قرن رابع منفرد، خو د جعده بن هبيره والا حديث او د مسلم والا حديث ﴿ فيغزوا فئام ﴾ والا روايت، د دې دواړو تقاضا ده چه قرون اربعه علی التوالی دی.

وړاندې په حديث کښې دی : ﴿ ثُمَّ يَظْهَرُ قَوْمٌ يَشْهَدُونَ وَلاَ يُسْتَشْهَدُونَ وَيَنْذِرُونَ وَلاَ يُوفُونَ وَيَخُونُونَ وَلاَ يُؤْتَمَنُونَ وَيَفْشُو فِيهِمُ السِّمَنُ ﴾

**شرح الحديث** :

يعنی د قرون ثلاثه نه پس به چه د هغوی په باره کښې پورته يو قول ذکر شو چه د هغوی انتهاء تقريبا تر ۲۲۰ هجری پورې ده داسې خلق پيدا شی چه د هغوی حال به دا وی چه پخپله به د خلقو په معاملاتو کښې گواهی ورکوی اگر چه د هغوی نه گواهی طلب نه کړې شی او منختې به کوی او هغه به نه پوره کوی او قسم قسم خيانتونه به کوی او د اعتماد قابل به نه وی او څرب والی به په هغوی کښې خور شی، د دې آخری جملې په تفسير کښې امام نووی رحمه الله درې اقوال ليکلې دی يو دا چه د دې نه مراد کثرت لحم دې چه په خلقو کښې به په کثرت سره موندلې شی يعنی جائز او ناجائز مال خوړلو سره به ئې بدنونه غټ

شي، او يو قول دا دي چه د دې نه مراد فخر او تکبر دي او د لوئي والى دعوې، زمونږ په عرف کښې د فخر او تکبر نه په غتيدو سره تعبير کولې شي او دريم قول دا چه د دې نه مراد د دنيا مال و متاع جمع کول دى د شهادت قبل استشهاد په دې حديث کښې مذمت کولې شى حال دا چه په يو بل حديث کښې ئې مدح هم راغلې ده د دې تعارض توجيه په ابواب الشهادات کښې تيره شوې ده.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي، وقد اخرجه البخاري ومسلم والنسائي من حديث زهدم بن مضرب عن عمران بن حصين رضي الله عنه، قاله المنذري.

## باب فِي النَّهْيِ عَنْ سَبِّ[1] أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم

### باب-۱۰- د رسول الله ﷺ اصحابو ته سب وشتم [کنځل] کول حرام دی

د کتاب الحدود په شروع کښې باب الحکم فيمن سب النبي ﷺ تير شوې دی.

[۴۶۵۸] ([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لاَ تَسُبُّوا أَصْحَابِي فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ أَنْفَقَ أَحَدُكُمْ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَلاَ نَصِيفَهُ".

حضرت ابو سعيد (خدری) رضي الله عنه بيان اوکړو، رسول الله ﷺ اوفرمائيل: زما په اصحابو باندې بدګوئی مه کوئ- قسم مې دې په هغه ذات وی چی د چا په لاس کښې زما روح دې! که چرې تاسو د احد دغر برابر سرهٔ هم خرچ کړئ نو هغه ددوی د يو مد يا د نيم مد هم نهٔ رسی - (حضرت ابو سعيد رضي الله عنه اووې: مونږ ته عطاردی حديث بيان کړو، هغه اووې: مونږ ته ابو معاويه بيان کړو او حديث ئې بيان کړو-)

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ تَسُبُّوا أَصْحَابِي فَوَالَّذِى

---

[1] ) د حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې دی: هل يكفر من سب الصحابة؟ مختلفا فيه جدا كما بسط في مكتوب عزيز الرحمن الگنگوهی الگجراتی في المكتوبات العلمية، ورجع ابن عابدين ۳۲۱/۳ عدم التكفير، ولابن عابدين فيه رسالة مستقلة في ذلك رسائله، د دی نه پس په حاشيه کښې دا دی چه آيا په مشاجرات صحابه کښې بحث کول او د هغې ذکر تذکره کول آيا دا هم په سب صحابه رضي الله عنهم کښې داخل دی؟ او بيا ئې د صحابه کرامو د مشاجراتو په باره کښې اوليکلی:

والجملة فيه كما بسط صاحب الاشاعة ۱۰۰ انهم مجتهدون في ذلك لكن عليا مصيب فله اجران وغيره مخطي، فله اجر، اما طلحة والزبير وعائشة فمجتهدون قطعا ولم يطعموا في الخلافة، واما معاويه فمع طمعه في الخلافة لا يذكر الا بخير لانه صحابي وصهر له ﷺ واخبره النبي ﷺ انه يتولي ودعا له اللهم اجعله هاديا مهديا، فلا حاجة الي الاعتذار عن الخوارج فانهم لعنهم النبي ﷺ اهـ وكذا قال الحافظ ۵۳/۱۳ انهم مجتهدون مخطئون ...وقال التفتازاني (في شرح العقائد) ما وقع بينهم من المحاربات لم يكن عن نزاع في الخلافة بل عن خطاء في الاجتهاد، وكذا في مكتوبات المجدد دفتر اول الجزء الرابع وبسط الكلام عليه في ذلك اهـ)

[2] ): صحيح البخاري/فضائل الصحابة ۵ (۳۶۷۳)، صحيح مسلم/فضائل الصحابة ۵۴ (۲۵۴۱)، سنن الترمذي/المناقب ۵۹ (۳۸۶۱)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۲۰ (۱۶۱)، (تحفة الأشراف: ۴۰۰۱، ۱۲۵۳۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱/۳، ۵۴، ۵۵، ۶۳) (صحيح)

نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ أَنْفَقَ أَحَدُكُمْ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَلاَ نَصِيفَهُ »
په دې حديث کښې خطاب روستو راتلونکو خلقو ته دې چه زما صحابه کرامو پسې بدې ردې مه وايئ په هغوی کښې عيبونه مه راوباسئ، او بيا رسول اللهﷺ قسم خوړلو سره فرمائي چه قسم په هغه ذات چه د چا په لاس کښې زما نفس دې که په تاسو يعنی غير صحابه کښې يو سړې د احد د غر برابر سرۀ زر د الله پاک په لار کښې خرچ کړی نو د صحابه کرامو رضي الله عنهم د مد په اندازه بلکه د نيم مد سرو زرو د خرچ برابر هم نه شي کيدې.

دا حديث په ترک سب صحابه باندې دال خو دې خو د دې سره د صحابه کرامو رضي الله عنهم انتهائی درجه فضيلت او شرف باندې هم دال دې، او په دې حديث کښې د يو مخصوص صحابی ذکر نشته بلکه دا د مطلق صحابی د مرتبې بيان دې، کوم کتابونه چه په احوال صحابه او معرفة صحابه باندې ليکلې شوې دی لکه الاصابة د حافظ ابن حجر، الاستيعاب د علامه ابن عبدالبر مالکی وغيره وغيره دې حضراتو د صحابه کرامو رضي الله عنهم په فضائلو کښې ډير احاديث د دې کتابونو په شروع کښې ذکر کړی دی نوع بنوع ، څوک چه کتل غواړی هلته دې اوګوری، دې حضراتو دا دوه احاديث هم ذکر کړی دی کوم چه دلته په اول باب کښې او په دې دويم باب کښې ذکر دی، حافظ په الاصابة کښې مستقل يو فصل د صحابی په تعريف کښ، او يو فصل د صحابی کيدو په علامت او شناخت کښې او يو فصل مستقل په عدالت د صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې منعقد کړې دې.د دې فصل ثالث په شروع کښې هغوی ليکی : اتفق اهل السنة على ان الجميع عدول، ولم يخالف فی ذلک الا شذوذ من المبتدعة وقد ذكر الخطيب فی الكفاية فصلا نفيسافی ذلک فقال : عدالة الصحابة ثابتة معلومة بتعديل الله تعالى لهم واخباره عن طهارتهم واختياره لهم، فمن ذلک قوله تعالى كنتم خير امة اخرجت للناس ...او بيا د دې نه پس هغوی ډير آيتونه او احاديث د دې سلسلې ذکر کړې دی، د دې نه پس بيا حافظ رحمه الله خپله د والاحاديث الواردة فی تفضيل الصحابة كثيرة د عنوان د لاندې ډير روايات ذکر کړی دی، د امام نووی رحمه الله په تقريب کښې دی الصحابة كلهم عدول من لا بس الفتن وغيرهم باجماع من يعتد به، يعنی صحابه کرام ټول په ټول عادلان دی د هغوی نه هم کوم چه په جنګونو کښې شريک شو او هغه هم کوم چه شريک نه شو، د هغه علماء کرامو په اجماع د چا قول چه په اجماع کښې معتبر دې، او علامه سيوطی رحمه الله د دې شرح په تدريب کښې دې باره کښې چه کوم نور اقوال دی هغه ئې هم ذکر کړې دی، خو د جمهورو قول هم هغه دې کوم چه په متن کښې امام نووی رحمه الله ذکر کړې دې، او په حاشيه د تدريب کښې د عدالت مفهوم او د هغې مصداق هم او په هغې کښې ئې د علماء کرامو رائې هم ليکلې ده زه په سبق کښې هميشه يو خبره کوم چه حضرات محدثين چه په فن د اسماء الرجال کښې کوم کتابونه ليکلې دی او د راويانو د احوالو تحقيق او لټون ئې چه کړې دې نو د کوم صاحب چه هم ترجمه او حالات ليکی که هغه هر څومره د اوچتې مرتبې والا صوفی او ولی کامل ولې نه وی د هغوی په ثقاهت او عدالت باندې ضرور رائې قائموی او د هغې ضرورت ګڼړی او په دې کښې د هغوی په نزد د چا استثناء هم نشته، خو د يو صحابی په

ترجمه کښې د هغه د عدالت نه بالکليه سکوت اختيار وی او د وهو ثقة ليکلو همت هم نه کوی والحديث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[٤٦٥٩] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ بْنُ قُدَامَةَ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ قَيْسٍ الْمَاصِرُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي قُرَّةَ، قَالَ: "كَانَ حُذَيْفَةُ بِالْمَدَائِنِ، فَكَانَ يَذْكُرُ أَشْيَاءَ قَالَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأُنَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فِي الْغَضَبِ، فَيَنْطَلِقُ نَاسٌ مِمَّنْ سَمِعَ ذَلِكَ مِنْ حُذَيْفَةَ، فَيَأْتُونَ سَلْمَانَ فَيَذْكُرُونَ لَهُ قَوْلَ حُذَيْفَةَ، فَيَقُولُ سَلْمَانُ: حُذَيْفَةُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُ، فَيَرْجِعُونَ إِلَى حُذَيْفَةَ، فَيَقُولُونَ لَهُ: قَدْ ذَكَرْنَا قَوْلَكَ لِسَلْمَانَ فَمَا صَدَّقَكَ وَلَا كَذَّبَكَ، فَأَتَى حُذَيْفَةُ سَلْمَانَ وَهُوَ فِي مَبْقَلَةٍ، فَقَالَ: يَا سَلْمَانُ مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تُصَدِّقَنِي بِمَا سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ سَلْمَانُ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْضَبُ، فَيَقُولُ فِي الْغَضَبِ لِنَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ، وَيَرْضَى فَيَقُولُ فِي الرِّضَا لِنَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ: أَمَا تَنْتَهِي حَتَّى تُورِثَ رِجَالًا حُبَّ رِجَالٍ، وَرِجَالًا بُغْضَ رِجَالٍ، وَحَتَّى تُوقِعَ اخْتِلَافًا وَفُرْقَةً، وَلَقَدْ عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ فَقَالَ: أَيُّمَا رَجُلٍ مِنْ أُمَّتِي سَبَبْتُهُ سَبَّةً أَوْ لَعَنْتُهُ لَعْنَةً فِي غَضَبِي، فَإِنَّمَا أَنَا مِنْ وَلَدِ آدَمَ أَغْضَبُ كَمَا يَغْضَبُونَ، وَإِنَّمَا بَعَثَنِي رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ، فَاجْعَلْهَا عَلَيْهِمْ صَلَاةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَاللَّهِ لَتَنْتَهِيَنَّ أَوْ لَأَكْتُبَنَّ إِلَى عُمَرَ".

عمرو بن ابو قره بيان اوکړو چې حضرت حذيفه رضی الله عنه په مدائن کښې وو او داسې خبرې به ئې بيانولې کومې چه به رسول الله ﷺ د بعضو اصحابو نه د ناراضګئ په حالت کښې بيانولې- ددې دپاره به چې کومو خلقو د حضرت حذيفه رضی الله عنه نه دغه خبرې اوريدلې هغوی به حضرت سلمان رضی الله عنه له راغلل او ورته به ئې اوکړلې - نو حضرت سليمان رضی الله عنه به وئيل: حضرت حذيفه رضی الله عنه چې څه وائی هم هغه ته به ددې زياته پته وی- خلق به حضرت حذيفه له راغلل او وئيل به ئې چې مونږ ستا خبره حضرت سلمان رضی الله عنه په مخکښې اوکړه نو هغوی نۀ ستاسو تصديق اوکړو او نۀ تکذيب- په دې باندې حضرت حذيفه رضی الله عنه د حضرت سلمان رضی الله عنه خواله راغلو هغوی په هغه وخت باندې د سبزئ په پټی کښې وو - هغوی اووې: سلمان! تاسو زما د هغو خبرو تصديق ولې نۀ کوئ کومې چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی دی؟حضرت سلمان رضی الله عنه اووې: رسول الله ﷺ به ناراضه هم شو او په دغه حالت کښې به ئې خپلو اصحابو ته څه هم وئيل او خوشحاله به هم شو او په هغه حالت کښې به خپلو اصحابو ته څه هم وئيل- نو آيا تۀ د خپل دغه انداز نه باز نۀ راځې - آيا تۀ د خلقو په زړونو کښې دڅه دپاره محبت پيدا کول غواړې اود څه دپاره بغض اچول غواړې؟ داسې خو به تۀ په دغو خلقو کښې اختلاف او افتراق پيدا کړې، حالانکه زۀ په ښه شان باندې پوهيږم چې رسول الله ﷺ يوه خطبه ورکړه او فرمائيلې ئې وو: "راې الله! په خپل امت کښې چې چاتۀ هم ما کله بد رد وئيلې وی يا د ناراضګئ په حالت کښې مې پرې لعنت غورځولې وی نو زۀ هم آدم زاد يم، څنګه چې هغوی غصه کيږی داسې زۀ هم غصه شوم او زۀ د جهان واله دپاره رحمت جوړ کړې شوې يم او بيا راستولې شوې يم (ياالله! زما دغه خبرې) ددوی دپاره د قيامت په ورځ باندې رحمت جوړ کړه - " (راې حذيفه!) په الله قسم! چې تۀ منع شه يا بۀ زۀ عمر ته اوليکم بيا څه خلقو هغوی ته سفارش اوکړو نو هغوی د خپل قسم کفاره ادا کړه او حضرت

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٥٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٧/٥، ٤٣٩) (صحيح)

عمر رضی الله عنه ته ئي اونه ليکل. او کفاره ئي هم د قسم د ماتولو نه مخکښي ورکړه. امام ابوداؤد رحمه الله اووې د قسم کفاره،دقسم د ماتولو نه مخکښي يا وروستو ادا کول ټول جائز دي.

**قوله:**﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي قُرَّةَ قَالَ كَانَ حُذَيْفَةُ بِالْمَدَائِنِ فَكَانَ يَذْكُرُ أَشْيَاءَ قَالَهَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لأُنَاسٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فِي الْغَضَبِ فَيَنْطَلِقُ نَاسٌ مِمَّنْ سَمِعَ ذَلِكَ مِنْ حُذَيْفَةَ فَيَأْتُونَ سَلْمَانَ فَيَذْكُرُونَ لَهُ قَوْلَ حُذَيْفَةَ فَيَقُولُ سَلْمَانُ حُذَيْفَةُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُ الخ ﴾

**مضمون الحديث**:

عمرو بن ابی قرة نقل کوی چه حذيفه بن اليمان رضی الله عنه مشهور صحابی په مدائن ښهر کښې اوسيدلو نو هغوی به د خلقو مخکښې داسې احاديث بيانول کوم چه رسول الله صلی الله عليه وسلم د خپلو بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم په باره کښې د غصې په حالت کښې فرمائيلي وو. نو بعض خلقو به چا چه به د هغوی نه دا قسم خبرې اوريدلې هغوی به د دې ذکر سلمان فارسی رضی الله عنه ته کولو نو سلمان رضی الله عنه به په دې اوريدلو باندې فرمائيل چه کومه خبره حذيفه رضی الله عنه نقل کوی په هغې هم هغه ښه پوهيږی (ګويا د خپل طرف نه به ئې د هغې تائيد او تصديق نه کولو) چه په هغې سره به خلقو کښې شک او شبهه پيدا کيدله. په دې وجه به هغوی لاړل او د هغې تذکره به ئې سيدنا حذيفه رضی الله عنه ته کوله چه مونږ چه ستاسو نه کومه فلانئ خبره واوريدله هغه چه کله مونږ سلمان رضی الله عنه ته اوکړه نو هغوی سکوت اوفرمائيلو نه ئې تصديق اوکړو او نه ئې تکذيب، په دې اوريدلو باندې حذيفه رضی الله عنه سلمان فارسی رضی الله عنه ته لاړو چه په خپل پټی کښې وو او تلو سره ئې هغوی ته اووې چه تاسو زما د بيان کړی حديث تصديق ولې نه کوئ کوم چه ما د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه اوريدلي وو. په دې باندې سيدنا سلمان رضی الله عنه اوفرمائيل چه رسول الله صلی الله عليه وسلم انسان وو کله کله به هغوی په غصه کښې هم راتلو او په غصه کښې به ئې يو سړی ته څه اوفرمائيل د هغه وخت مناسب. او رسول الله صلی الله عليه وسلم به د خلقو په بعض خبرو باندې خوشحاليدلو هم او هم د دې خوشحالئ په حالت کښې به ئې يو خبره ارشاد اوفرمائيله. يعنی د خلقو په خپلو معاملاتو کښې چه به رسول الله صلی الله عليه وسلم د موقع د مناسبت سره په خوشحالئ يا غصه کښې چه څه خبره فرمائيله نو د دې قسم خبرې د نقل کولو خو نه وی. لهذا ته داسې روايات د خلقو مخکښې مه بيانوه چه د هغې په اوريدلو باندې د خلقو زړونو کښې د بعضو محبت او د بعض بغض پيدا شی او خپل مينځ کښې ئې اختلافات پيدا شی [1] او تاته به معلومه هم وی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم په خپل ژوند مبارک کښې يو تقرير چه د خلقو مخکښې کړې وو ټولو ته ئې اورولو سره دا دعاء فرمائيلې وه چه اې الله ما په خپل امت کښې که په يو سړی باندې غصه کړې وی او هغه ته مې څه سخت الفاظ وئيلې وی يا مې د هغه په حق کښې بددعاء کړې وی د غصې په حالت کښې نو اې الله زه هم د اولاد ادم نه يم، څنګه چه نورو خلقو ته غصه راځی ماته هم راځی. او اې الله هر کله چه تا زه رحمة للعالمين راليږلې يم نو زما دا بددعاء د هغه خلقو په باره کښې نيکه دعا او رحمت

[1] قلت وعلي هذا القياس د بزرګانو ملفوظات او ارشادات چه په هغې کښې هم بعض داسې وی کوم چه هر ځائې کښې نه شی نقل کولې کما لا يخفي علي ذوي الحجرة ۱۲)

جوړه کړه د قیامت په ورځ، او بیا په آخر کښې سیدنا سلمان رضی الله عنه هغوی ته اوفرمائیل والله یا خو ته د دې خپل عادت نه منع شه ګینې ستا شکایت به عمر رضی الله عنه ته اولیکم

دمصنف رحمه الله ترجمه وه، النهي عن سب الصحابة ....چه صحابه کرام رضی الله عنهم پسې دې بدې ردې او نه وئیلې شي، د سلمان رضی الله عنه د حدیث نه معلومه شوه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یو صحابی رضی الله عنه ته د غصې په حالت کښې څۀ سخته خبره فرمائیلې وی نو هغې لره بغیر د ضرورت او مصلحت نه نۀ دی نقل کول پکار.

هذا الفصل الاخير قوله صلی الله علیه وسلم فايما مومن سببة قد اخرجه البخارى ومسلم في صحيحهما من حديث سعيد بن المسيب عن ابى هريرة رضی الله عنه قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي اسْتِخْلَافِ أَبِي بَكْرٍ رضی اللہ عنه

### باب ۱۱ - د سیدنا ابوبکر رضی الله عنه د خلافت بیان

[٤٦٦٠](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَمْعَةَ، قَالَ: "لَمَّا اسْتُعِزَّ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عِنْدَهُ فِي نَفَرٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، دَعَاهُ بِلَالٌ إِلَى الصَّلَاةِ، فَقَالَ: مُرُوا مَنْ يُصَلِّي لِلنَّاسِ، فَخَرَجَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ زَمْعَةَ فَإِذَا عُمَرُ فِي النَّاسِ وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ غَائِبًا، فَقُلْتُ: يَا عُمَرُ قُمْ فَصَلِّ بِالنَّاسِ فَتَقَدَّمَ فَكَبَّرَ، فَلَمَّا سَمِعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَوْتَهُ وَكَانَ عُمَرُ رَجُلًا مُجْهِرًا، قَالَ: فَأَيْنَ أَبُو بَكْرٍ؟ يَأْبَى اللَّهُ ذَلِكَ وَالْمُسْلِمُونَ يَأْبَى اللَّهُ ذَلِكَ وَالْمُسْلِمُونَ، فَبَعَثَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ فَجَاءَ بَعْدَ أَنْ صَلَّى عُمَرُ تِلْكَ الصَّلَاةَ، فَصَلَّى بِالنَّاسِ".

حضرت عبدالله بن زمعه رضی الله عنه بیان کوی چې کله د رسول الله صلی الله علیه وسلم تکلیف ډیر زیات شو او زۀ د مسلمانانو د یو جماعت سره د هغوی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر ووم چې حضرت بلال رضی الله عنه هغوی مانځه له راوبللـ هغوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ! چاته اووائې چې خلقو له مونځ ورکړی -" عبدالله بن زمعه اووې چې زۀ اووتم نوحضرت عمر رضی الله عنه موجود وو خو حضرت ابوبکر رضی الله عنه موجود نۀ وو- ما اووې! اې عمر! پاڅيږه خلقو له مونځ ورکړه - په دې هغوی راپاڅیدل او رامخکښې شو او تکبیرئ اووې -(دیخوا) چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی آواز واوریدو...او حضرت عمر رضی الله عنه بلند آوازه سړې وو...نووې فرمائیل :"ابوبکر چرته دې؟ "الله ددې نه انکار کوی او مسلمانان هم." الله ددې نه انکار کوی او مسلمانان هم -" پس هغوی صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر رضی الله عنه راوغوښتو نو هغوی راغلل او هغه وخت حضرت عمر رضی الله عنه خلقو له مونځ ورکړې وو ،بیا حضرت ابوبکر رضی الله عنه خلقو ته هم هغه مونځ ورکړو-

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ لَمَّا اسْتُعِزَّ بِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَنَا عِنْدَهُ فِي نَفَرٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ دَعَاهُ بِلَالٌ إِلَى الصَّلَاةِ فَقَالَ مُرُوا مَنْ يُصَلِّي لِلنَّاسِ......فَبَعَثَ إِلَى أَبِي بَكْرٍ فَجَاءَ بَعْدَ أَنْ صَلَّى عُمَرُ تِلْكَ الصَّلَاةَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ ﴾

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٢٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٢٢) (حسن صحيح)

**غرض المصنف بالترجمة :**

مونږ مخکښې ليکلي دی چه د مصنف رحمه الله غرض په دي ابوابو سره په کتاب شرح السنة کښې صرف مناقبو لره بيانول نه دی، بلکه په دي مسائلو کښې د اهل سنت والجماعت د رائې او د مسلک تائيد مقصود دې د دې سلسلې يو اهم کړئ د رسول الله ﷺ نه پس د صديق اکبر رضي الله عنه د خلافت مسئله ده چه د هغوی نه پس خليفه اول صديق اکبر رضي الله عنه دې، او بيا عمر رضي الله عنه چه د هغوی تعين خپله صديق اکبر رضي الله عنه کړې وو، په خلاف د روافض چه هغوی د خلافت سلسله د رسول الله ﷺ نه پس د هغوی په اهل بيت کښې مني، او خليفه اول علی حيدر رضي الله عنه لره تسليموی او هم په دې وجه وائی علی وصی رسول الله ﷺ، دا پورته ذکر کړې شوې غرض د مصنف رحمه الله دپاره د تبويب منشاء او باعث جوړ شو.

**مضمون حديث :**

عبدالله بن زمعه رضي الله عنه فرمائی چه کله د رسول الله ﷺ مرض سختی اختيار کړه هغه وخت د ځو کسانو سره زه هم هلته موجود اوم د عادت مطابق سيدنا بلال رضي الله عنه هغوی ته د مانځه خبر ورکړو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بل چا ته اوايئ چه هغه مونځ ورکړی، عبدالله بن زمعه فرمائی چه په دې اوريدلو باندې زه بهر راوتلم نو په خلقو کښې سيدنا عمر رضي الله عنه تشريف فرما وو، صديق اکبر رضي الله عنه هغه وخت هلته نه وو، ما عمر رضي الله عنه ته عرض اوکړو چه ځه هم تاسو مونځ راکړئ، هغوی مخکښې شو او تکبير ئې اوکړو، چه کله رسول الله ﷺ د هغوی اواز واوريدلو او عمر وو هم اوچت آواز والا، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ابوبکر چرته دې دا خبره به نه الله خوښه کړی او نه مسلمان يعنی د صديق اکبر رضي الله عنه نه علاوه د بل چا امامت، دا جمله رسول الله ﷺ دوه کرته اوفرمائيله، پس صديق اکبر رضي الله عنه پسې سړې اوليږلې شو او هغه راطلب کړې شو، لږ ساعت پس هغوی تشريف راوړلو په داسې حال کښې چه عمر رضي الله عنه مونځ ورکولو يا ئې ورکړې وو، دواړه احتمالات دی، پس هغوی راغلل او مونځ ئې پوره کړو، وهذا علی الاحتمال الاول، يا دا چه د هغې نه پس مونځونه صديق اکبر رضي الله عنه ورکړل، وهذا علی الاحتمال الثانی، والی الاحتمال الاول مال صاحب البذل، والی الثانی والد شيخنا مولانا محمد يحيی رحمه الله تعالی.

[٤٦٦١] ([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ يَعْقُوبَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ زَمْعَةَ أَخْبَرَهُ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: لَمَّا سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَوْتَ عُمَرَ، قَالَ ابْنُ زَمْعَةَ: "خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى أَطْلَعَ رَأْسَهُ مِنْ حُجْرَتِهِ، ثُمَّ قَالَ: لَا لَا لَا لِيُصَلِّ لِلنَّاسِ ابْنُ أَبِي قُحَافَةَ، يَقُولُ ذَلِكَ مُغْضَبًا".

حضرت عبدالله بن زمعه رضي الله عنه دغه خبر بيان کړو چې کله نبی ﷺ د حضرت عمر رضي الله عنه اواز واوريدو نو هغوی ﷺ تشريف راوړو، سر مبارک ئې د حجرې نه رابهر کړو او وې فرمائيل: ''نه نه نه ابن ابی قحافه (ابوبکر رضي الله عنه) دې خلقو له مونځ ورکړی -'' هغوی ﷺ دغه خبره د ناراضګۍ په کيفيت اوفرمائيله.

[1]: انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ٥٢٩٥) (صحيح)

# بَابُ مَا يَدُلُّ عَلَى تَرْكِ الْكَلَامِ فِي الْفِتْنَةِ

## باب ۱۲- د فتنوپه ورځو کښې دغه خبرې د بحث موضوع نۀ دی جوړول پکار

د دې باب دې مقام سره څه مناسبت دې زمونږ په فهم کښې دا راځی چه اوس کوم باب تیر شوې دې د استخلاف ابی بکر دا باب د هغې د وجې نه دې ځکه چه استخلاف مظنة د فتنې او اختلافاتو وی، فللّه در المصنف رحمه الله تعالی.

[٤٦٦٢](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي الْأَشْعَثُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ: "إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ، وَإِنِّي أَرْجُو أَنْ يُصْلِحَ اللَّهُ بِهِ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنْ أُمَّتِي، وَقَالَ فِي حَدِيثِ حَمَّادٍ: وَلَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُصْلِحَ بِهِ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَظِيمَتَيْنِ".

حضرت ابوبکره رضی الله عنه بیان کوی، رسول الله صلی الله علیه وسلم د سیدنا حسن بن علی رضی الله عنه متعلق اوفرمائیل: "زما دغه ځوئ سردار دې او ماته امید دې چې الله تعالیٰ به دده په ذریعه زما د امت په دوه ډلو کښې صلح راولی۔" د حماد د روایت دغه الفاظ دی: "او امید دې چې الله تعالیٰ به دده په ذریعه د مسلمانانو په دوؤ لویو ډلو کښې صلح راولی.

**قوله:** ﴿ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لِلْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ « إِنَّ ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ وَإِنِّي أَرْجُو أَنْ يُصْلِحَ اللَّهُ بِهِ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنْ أُمَّتِي »﴾

یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل نمسی حسن رضی الله عنه په باره کښې اوفرمائیل چه زما دا ځوئې متحمل مزاج دې او زه امید لرم چه الله پاک د دۀ په ذریعه د مسلمانانو د دوه لویو جماعتونو صلح کوی، په بذل کښې لیکلی دی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا پیش ګوئی پوره شوه پس هغوی د خپلې او د معاویه رضی الله عنه د دوه لویو جماعتونو د صلح ذریعه اوګرځیدل او خپل خلافت ئې په دې مصلحت پریخودلو، دا حدیث په مشکوة شریف کښې هم شته په روایت د بخاری چه په هغې کښې دی ﴿ عن ابی بکرة يَقُولُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَلَى الْمِنْبَرِ وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ إِلَى جَنْبِهِ وَهُوَ يُقْبِلُ عَلَى النَّاسِ مَرَّةً، وَعَلَيْهِ أُخْرَى وَيَقُولُ الخ ﴾ په مظاهر حق کښې دی، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به متوجه کیدو یو ځل خلقو ته او یو ځل حسن بن علی رضی الله عنه ته یعنی کله به ئې د خلقو طرف ته کتل د پاره د وعظ او نصیحت او کله د حسن رضی الله عنه طرف ته د شفقت او محبت د وجې نه او وئیل به ئې بیشکه زما دا ځوئې سردار دې.

**فائده:** سید هغه چه په فائق کیدو کښې وی او بعضو وئیلې دی چه سید هغه چه غالب نه راځی په هغه باندې غضب د هغه یعنی حلیم وی او د سید اطلاق په ډیرو معنو باندې راغلې دې د مربی او مالک او شریف او فاضل او کریم وحلیم او متحمل د قوم په ایذاء باندې او رئیس او مقدم، او سید هغه دې چه الله پاک صلح اوکړی په سبب د هغه د

(1): صحيح البخاري/الصلح ٩ (٢٧٠٤)، المناقب ٢٥ (٣٦٢٩)، فضائل الصحابة ٢٢ (٣٧٤٦)، الفتن ٢٠ (٧١٠٩)، سنن الترمذي/المناقب ٣١ (٣٧٧٣)، سنن النسائي/الجمعة ٢٧ (١٤١١)، (تحفة الأشراف: ١١٦٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٧، ٤٤، ٤٩، ٥١) (صحيح)

مسلمانانو د دوه لويو جماعتونو ترمينځه.

**فائده** : دا خبر ورکړو رسول الله ﷺ د مسلمانانو دوه ډلو ته د تقسيميدلو چه په هغې کښې به يوه ډله د حسن رضی الله عنه سره وی او يوه ډله د معاوي رضی الله عنه سره او امام حسن رضی الله عنه په هغه ورځ باندې د خلافت ډير لائق وو ځکه چه شپږ مياشتې باقی وې په ديرشو کالو کښې د کومو چه رسول الله ﷺ په خپل قول سره خبر ورکړې وو چه ﴿ الخلافة بعدی ثلاثون سنة ﴾ پس په امام حسن رضی الله عنه باندې خپل تقوی او شفقت باعث شو چه د خپل نيکه ﷺ د امت دپاره ئې ترک د ملک او ترک دنيا اوکړو او رغبت د ملک دهغې جهان ئې اوکړو ،او نه وو دا کار په سبب د قلت او ذلت ځکه چه بيعت اوکړو د هغوی سره څلويښتو زروکسانو په مرګ باندې او راغلی دی چه امام حسن رحمه الله اوفرمائيل چه والله زه نه غواړم چه يو قطره وينه د رسول الله ﷺ د امت زما په ذريعه باندې توئې کړې شی او دا کار د هغوی نه پس په خواهش پرستو باندې ډير ګران شو تر دې چه د هغوی حمايت باعث شو چه يو سړی هغوی ته د داخليدو په وخت اووې السلام عليک يا عار المومنين ! نو حسن رضی الله عنه په جواب کښې اووې ﴿ العار خير من النار ﴾ او په دې حديث کښې دليل دې چه دا دواړه ډلې په اسلام باندې وې سره د دې چه يو ډله مصيب وه او بل مخطئ او د اهل سنت والجماعت دپاره صلح د امام حسن رضی الله عنه دليل دې په معاويه رضی الله عنه باندې د امارت د حقيت او سلف صالحينو په فتنه کښې د کلام کولو نه ترک اختيار کړې دې يعنی په مشاجرات صحابه رضی الله عنهم کښې او وئيلې ئې دی چه الله پاک د دې وينو نه زمونږ لاسونه پاک اوساتل پس ولې مونږ په هغې باندې خپلې ژبې ناپاکې کړو ، او د امام حسن رضی الله عنه په شرف او فضل کښې دا خبره هم کافی ده چه رسول الله ﷺ هغوی ته سيد وئيلې دې، الی اخر ما ذکر تتمه مظاهرحق[۱۳۸].

والحديث اخرجه الترمذی من حديث الاشعث، واخرجه البخاری والنسائی من حديث ابی موسی اسرائيل بن موسی عن الحسن قاله المنذری.

[٤٦٦٣] ([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ، أَخْبَرَنَا هِشَامٌ، عَنْ مُحَمَّدٍ، قَالَ: قَالَ حُذَيْفَةُ "مَا أَحَدٌ مِنَ النَّاسِ تُدْرِكُهُ الْفِتْنَةُ، إِلَّا أَنَا أَخَافُهَا عَلَيْهِ إِلَّا مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: لَا تَضُرُّكَ الْفِتْنَةُ".

حضرت محمد بن سيرين رحمه الله روايت اوکړو چې حضرت حذيفه رضی الله عنه اووې چې په خلقوکښې څوک داسې نشته چې هغه ته فتنه ورپيښه وی (او هغه د هغې نه محفوظ وی) زماګمان دې چې هغه به په دې کښې مبتلا شی- سيوا د محمد بن مسلمه رضی الله عنه نه، ولې چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلی وو هغوی ﷺ (هغه ته) فرمائيل: " تا تهٔ به فتنه نقصان نه درکوی-"

**قوله:**﴿ عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ قَالَ حُذَيْفَةُ مَا أَحَدٌ مِنَ النَّاسِ تُدْرِكُهُ الْفِتْنَةُ إِلاَّ أَنَا أَخَافُهَا عَلَيْهِ إِلاَّ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « لاَ تَضُرُّكَ الْفِتْنَةُ » ﴾

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٣٨١) (صحيح)

د محمد بن سیرین رحمه الله نه روایت دې چه یو ځل حذیفه رضی الله عنه دا خبره اوفرمائیله چاته چه د فتنې روایات ښه یاد وو چه یو سړې هم داسې نشته چه د فتنې زمانه پرې راشی او ماته د هغه په باره کښې خطره نه وی د هغې فتنې نه د متاثر کیدو، سوا د محمد بن مسلمه رضی الله عنه نه، چه د هغه په باره کښې دا ویره بالکل نشته، ځکه چه د هغه په باره کښې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې وو چه (هغه ته ئې فرمائیلې وو) تا ته به فتنه هیڅ ضرر درنکړی.

دا محمد بن مسلمه رضی الله عنه هم هغه صحابی دې د چا ذکر چه د کعب بن الاشرف یهودی د قتل په قصه کښې تیر شوې دې، هم په دغه موقع باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغوی په باره کښې دا فرمائیلې وو، چونکه هغوی مسلمانان د کعب بن الاشرف د اذیتونو او فتنو نه، هغه لره قتل کولو سره بچ کړې وو نو د هغې په صله کښې هغوی ته دا اشاره ملاؤ شوې وه، خو د دې باوجود هغوی د فتنو نه د بچ کیدو ډیر کوشش کولو لکه چه په وړاندې روایت کښې راځی.

[٤٦٦٤] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ ضُبَيْعَةَ، قَالَ: "دَخَلْنَا عَلَى حُذَيْفَةَ، فَقَالَ: إِنِّي لَأَعْرِفُ رَجُلًا لَا تَضُرُّهُ الْفِتَنُ شَيْئًا، قَالَ: فَخَرَجْنَا فَإِذَا فُسْطَاطٌ مَضْرُوبٌ، فَدَخَلْنَا فَإِذَا فِيهِ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ فَسَأَلْنَاهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: مَا أُرِيدُ أَنْ يَشْتَمِلَ عَلَيَّ شَيْءٌ مِنْ أَمْصَارِكُمْ حَتَّى تَنْجَلِيَ عَمَّا انْجَلَتْ".

حضرت ثعلبه بن ضبیعه وائی چې مونږ د حضرت حذیفه رضی الله عنه خواه له لاړو نو هغوی اووې: یقیناً مونږ هغه سړې پیژنو کوم ته چې هیڅ قسمه فتنه نقصان نه شی رسولې - وې وئیل چې بیا مونږ د هغه د خواه نه لاړو نو مونږ ته یوه خیمه په نظر راغله، مونږ هغې ته لاړو نو ګورو چې په هغې کښې حضرت محمد بن مسلمه رضی الله عنه دې - مونږ د هغه نه د دغې تنهائی او د ګوشه ګیرئ متعلق تپوس اوکړو نو هغوی اووې: "زۀ نۀ غواړم چې د ستاسو د ښارونو کومه فتنه ما په خپل ګرفت کښې واخلی حتیٰ چې دغه صورتحال صفا شی (فتنې ختمې شی).

**قوله:** ﴿ عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ ضُبَيْعَةَ قَالَ دَخَلْنَا عَلَى حُذَيْفَةَ فَقَالَ إِنِّي لَأَعْرِفُ رَجُلاً لاَ تَضُرُّهُ الْفِتَنُ شَيْئًا الخ ﴾

ثعلبه بن ضبیعه فرمائی چه مونږ حذیفه رضی الله عنه ته لاړو نو هغوی هم هغه پورته خبره اوفرمائیله چه زه یو سړې پیژنم چه هغه ته فتنه هیڅ ضرر نه شی رسولې (په دې باندې به ثعلبه غالبا حذیفه رضی الله عنه ته درخواست کړې وی چه د داسې سړی زیارت په مونږ باندې هم اوکړئ پس هغوی وړاندې فرمائی چه) مونږ د هغه د کتلو دپاره اوتلو نو مونږ اوکتل چه یو خیمه قائم وه چه کله مونږ هغې ته داخل شو نو په هغې کښې محمد بن مسلمه رضی الله عنه موجود وو، مونږ د هغوی نه د دې یواځې کیدو وجه معلومه کړه (دغه وخت کښې به څه فتنه موجود وه) نو هغوی اوفرمائیل ترڅو چه دا فتنه نه وی زائل شوې زه نه غواړم چه زما وجود په دغه ښهرونو کښې وی.

په بذل کښې د هغوی مختصر شان حال لیکلې شوې دې چه په هغې کښې یو دا هم دې چه دوی په جنګ جمل او صفین کښې نه دی شریک شوی اول ئې په مدینه کښې قیام وو، بیا ئې د دې نه روستو په مقام ربذه کښې استوګنه اختیار کړه، د عثمان رضی الله عنه د قصې نه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٣٨١) (صحیح)

پس، وفات د هغوی په مدينې کښې شوې دې په صفر ٤٣ هجرى کښې.

[٤٦٦٥]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ ضُبَيْعَةَ بْنِ حُصَيْنٍ الثَّعْلَبِيِّ بِمَعْنَاهُ.

ابوبرده بيان اوکړو چې ضبيعه بن حصين ثعلبى دمذکوره بالاحديث هم معنى روايت اوکړو.

[٤٦٦٦]([2]) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْهُذَلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ، قَالَ: "قُلْتُ لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَخْبِرْنَا عَنْ مَسِيرِكَ هَذَا أَعَهْدٌ عَهِدَهُ إِلَيْكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْ رَأْيٌ رَأَيْتَهُ؟ فَقَالَ: مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَيْءٍ وَلَكِنَّهُ رَأْيٌ رَأَيْتُهُ".

حضرت قيس بن عباد وائى چې ما د حضرت على رضي الله عنه نه تپوس اوکړو: ستاسو د (حضرت معاويه رضي الله عنه په مقابله کښې) وتل د رسول الله ﷺ د فرمان په وجه دې يا ستاسو خپله ذاتي رائې، (؟) هغوی اووې ما ته رسول الله ﷺ هيڅ نه دی فرمائيلى، بلکې دا زما خپله ذاتي رائې ده.

**قوله:** ﴿ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ قُلْتُ لِعَلِيٍّ رضى الله عنه أَخْبِرْنَا عَنْ مَسِيرِكَ هَذَا أَعَهْدٌ عَهِدَهُ إِلَيْكَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَمْ رَأْيٌ رَأَيْتَهُ ﴾

قيس بن عباد د سيدنا على رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه دا چه د مدينې استوګنه ترک کولو سره تاسو عراق ته تشريف اوړئ دې باره کښې تاسو ته د رسول الله ﷺ څه هدايت يا وصيت وو ياپه خپله رائې باندې داسې کوئ؟ هغوی جواب ورکړو چه زه په خپله رائې باندې روان يم، په حاشيه د بذل کښې ليکلې دی چه دا روايت صاحب د کنز العمال ٨٣/٦ کښې د جنګ جمل دواقعې دلاندې ليکلې دې د دې سياق و سباق دې هلته اوکتلې شي.

[٤٦٦٧]([3]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ بْنُ الْفَضْلِ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَمْرُقُ مَارِقَةٌ عِنْدَ فُرْقَةٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَقْتُلُهَا أَوْلَى الطَّائِفَتَيْنِ بِالْحَقِّ".

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "په مسلمانانو کښې به د افتراق په وخت يو فتنه انګيز جماعت اووځى کوم چې به د مسلمانانو هغه ډله قتلوى کوم چې به حق ته زيات قريب وى."

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « تَمْرُقُ مَارِقَةٌ عِنْدَ فُرْقَةٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ يَقْتُلُهَا أَوْلَى الطَّائِفَتَيْنِ بِالْحَقِّ » ﴾

يعنى د مسلمانانو د يو افتراق او اختلاف په موقع باندې به يو جماعت جدا کيدو سره بيل شى او هغه وخت چه په فريقينو کښې کومه ډله زياته حق ته نزدې وى هم هغوى به دغه جماعت لره قتل کوى، د دې مصداق خوارج دی کوم چه د اصحاب على او اصحاب معاويه رضي الله عنهم د اختلاف په وخت باندې بيل شوې وو د على رضي الله عنه د جماعت نه، د قصه تحکيم

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٣٨١) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٢٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٢/١، ١٤٨) (صحيح الإسناد)

[3]: صحيح مسلم/الزكاة ٤٧ (١٠٦٤)، (تحفة الأشراف: ٤٤٣٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢/٣، ٩٧) (صحيح)

په وجه باندې، او علی ﷺ او د هغوی جماعت ورسره قتال کړې وو لهذا هم هغوی اقرب الی الحق شو.

## باب في التخيير بين الأنبياء عليهم الصلاة والسلام

### باب ۱۳- په انبیاؤ کرامو علیهم السلام کښې د فضیلت ورکولو مسئله

د اهل السنة والجماعة په مسلک کښې اعتدال دې، د افراط او تفریط نه محفوظ دې او په تخییر بن الانبیاء کښې چونکه د یو په حق کښې افراط او د بل په حق کښې د تفریط احتمال دې، هم په دې وجه د دې ممانعت په حدیث کښې راغلې دې لکه چه په حدیث الباب کښې دی، هم په دې مناسبت سره مصنف رحمه الله دا باب په ظاهر کښې دلته قائم کړې دې.

[٤٦٦٨](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا عَمْرٌو يَعْنِي ابْنَ يَحْيَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُخَيِّرُوا بَيْنَ الْأَنْبِيَاءِ".

د حضرت ابو سعید خدری ﷺ نه مروی دی رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "انبیاء علیهم السلام ته په یو بل باندې فضیلت او ترجیح مه ورکوئ."

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم « لاَ تُخَيِّرُوا بَيْنَ الأَنْبِيَاءِ » ﴾

چه د انبیاء ﷺ ترمینځه په یو بل باندې فضیلت مه بیانوئ. ځکه چه په دې کښې ډیر کرته شک پیدا کیږي په یو طرف کښې د سوء ادب او تنقیص. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم اتم منه، قاله المنذری.

[٤٦٧١](2) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَعَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ: وَالَّذِي اصْطَفَى مُوسَى، فَرَفَعَ الْمُسْلِمُ يَدَهُ فَلَطَمَ وَجْهَ الْيَهُودِيِّ، فَذَهَبَ الْيَهُودِيُّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُخَيِّرُونِي عَلَى مُوسَى، فَإِنَّ النَّاسَ يُصْعَقُونَ، فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ، فَإِذَا مُوسَى بَاطِشٌ فِي جَانِبِ الْعَرْشِ، فَلَا أَدْرِي أَكَانَ مِمَّنْ صَعِقَ فَأَفَاقَ قَبْلِي، أَوْ كَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنَى اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ ابْنِ يَحْيَى أَتَمُّ.

د حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چې یو یهودي اووې: قسم مې دې په هغه ذات وی چې چا موسیٰ علیه السلام منتخب کړلو، نو یو مسلمان خپل لاس اوچت کړو او یهودي ئې په مخ باندې اووهلو - هغه یهودي د نبي ﷺ خواله راغلو او هغوی ﷺ ته ئې اووې نو نبي ﷺ اوفرمائیل: "ماته په موسیٰ علیه السلام باندې فضیلت مه راکوئ. بغیر د څه شک نه (د قیامت په راتللو باندې) کله چې به خلق بې هوشه کړې شی نو هم زهٔ بهٔ یم کوم چې به ورومبی په هوش کښې راځم او ګورم به چې موسیٰ علیه السلام به د عرش پایه نیولې وی او ولاړ به وی - معلومه نه

(1): صحيح البخاري/الخصومات ٤ (٢٤١٢)، الأنبياء ٢٥ (٣٣٩٨)، الديات ٣٢ (٦٩١٧)، صحيح مسلم/الفضائل (٢٣٧٤)، (تحفة الأشراف: ٤٤٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣١، ٣٣، ٤٠) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/الخصومات ١ (٢٤١٢)، الأنبياء ٣٢ (٢٣٩٨)، التفسير ٤ (٤٦٣٨)، والرقاق ٤٣ (٦٥١٧)، التوحيد ٣١ (٧٤٧٢)، صحيح مسلم/الفضائل ٤٢ (٢٣٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٣٩٥٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/تفسير القرآن ٤٠ (٣٢٤٥)، مسند احمد (٢/٢٦٤) (صحيح)

ده چې هغوی به هوشه شوې وی او مانه به مخکښې په هوش کښې راغلې وی یاهغوی به په هغه کسانو کښې وی کوم چې به الله تعالیٰ د بې هوشئ نه مستثنیٰ ساتلې وی. اما ابو داود رحمه الله فرمائی چې د ابن یحییٰ روایت زیات کامل دې.

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُودِ ....... فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ تُخَيِّرُونِى عَلَى مُوسَى فَإِنَّ النَّاسَ يَصْعَقُونَ فَأَكُونُ أَوَّلَ..... مِمَّنِ اسْتَثْنَى اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ »﴾

سیدنا ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه په مدینه منوره کښې د یوې ورځې واقعه ده چه یو یهودی په یو خبره باندې اووې ﴿والذی اصطفی موسی﴾ قسم په هغه ذات چا چه موسی علیه السلام منتخب کړې دې او فوقیت ئې ورته ورکړې دې، یعنی مطلقا په ټولو جهان والو باندې، نو دا خبره یو مسلمان واوریدله هغه فورا دا یهودی په مخ باندې اوهلو چه ته زمونږ د نبی صلی الله علیه وسلم په موجودګئ کښې داسې خبره کوئ، هغه یهودی شکایت کولو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ماته فضیلت مه راکوئ په موسی علیه السلام باندې، ځکه چه د قیامت په ورځ چه کله د شپیلئ په وجه باندې ټول خلق بیهوشه شی نو د ټولو نه مخکښې به زه راپاسولې شم نو ناڅاپه به زه اوګورم چه موسی علیه السلام د عرش غاړه نیولې ده، اوس زه دا نه شم وئیلې چه هغوی د شپیلئ نه متاثره کیدو سره بیهوشه شوې وو او زما نه مخکښې په هوش کښې راغلو او یا که په هغه خلقو کښې به وی د چا چه الله پاک استثناء فرمائیلې ده او هغوی به په بیهوشئ کښې نه وی.دا آیت کریمه دې مضمون طرف ته اشاره کوی.﴿ونفخ في الصور فصعق من فی السموات ومن فی الارض الا من شاء الله﴾

**په حدیث د صعقه کښې د صعقه نه کومه صعقه مراد ده؟ :**

دا صعقه د کومې چه په دې حدیث کښې ذکر دې کومه صعقه او نفخه ده؟ د دې په باره کښې د حضرت ګنګوهی رائې دا ده چه دوه صعقې خو به د قیامت په ورځ وی په اول صعقې سره به ټول خلق فنا شی بلکه ټول ځیزونه د دې نه پس به دویمه صعقه وی په هغې سره به ټول خلق ژوندی شی او میدان حشر به قائم شی، بیا ددې نه پس چه به کله الله پاک دحساب کتاب دپاره تجلی اوفرمائی نوهغه وخت به ټول خلق بیهوشه شی ﴿الا من شاء الله﴾ دا استثناء هم د دې نفخه ثالثه په باره کښې ده، او دا نفخه به په دې وجه باندې وی چه خلق بیهوشه شی، او د الله پاک د تجلئ مشاهده اونکړې شی، ځکه چه په خلقو کښې به د دې تجلئ د مشاهده کولو تحمل او طاقت نه وی، د دې نه پس به یو څلورمه نفخه وی د تجلی کیدو نه پس چه په هغې سره به ټول خلق هوش کښې راشی. (کذا فی حاشیة اللامع ۴۷/۲عن الکوکب الدری) د نفخات تعداد او د هغې څه اندازه تشریح په الدرر المنضود جلد ثانی ابواب الجمعه کښې تیره شوې ده.

د دې حدیث په شرح کښې په بذل کښې لیکلې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم چه دا د موسی علیه السلام په باره کښې فرمائی دا فضیلت جزئی دې، او کلی فضیلت سیدنا رسول الله صلی الله علیه وسلم دپاره دې، او د حضرت ګنګوهی د تقریر نه په بذل کښې دا نقل کړې شوې دی چه چونکه د دې یهودی په کلام کښې چا چه ﴿والذی اصطفی موسی﴾ وئیلی وو د تاویل ګنجائش وو چه

هغه په فضل جزئی باندې محمول کړې شی نه په فضل کلی باندې، نو هم دې تاویل طرف ته اشاره کولو سره رسول الله ﷺ په خپل کلام کښې خبرداري اوفرمائیلو چه د عاقل د کلام تر څو چه ممکن وی تاویل کول پکار دی او زر جهګړه نه دی کول پکار. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[۴۶۷۳]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ أَبِي عَمَّارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ فَرُّوخَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ، وَأَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ، وَأَوَّلُ شَافِعٍ، وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې، چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "زه د ادم د اولاد سردار یم او وړومبې سړې به یم د کوم نه چې به زمکه شلیږی، زه به د ټولو نه مخکښې شفارس کومه او زما شفارس به د ټولو نه مخکښې قبلیږی۔"

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أَنَا سَيِّدُ وَلَدِ آدَمَ وَأَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الأَرْضُ وَأَوَّلُ شَافِعٍ وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ »﴾

مصنف رحمه الله دا حدیث د تخییر په باب کښې راوړلي دي د کوم نه چه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده غالبا په دې سره مصنف رحمه الله اشاره اوکړه دې ته چه د منع تعلق د امت سره دې چه د هغوی دپاره مناسب نه دی چه هغوی د انبیاء علیهم السلام ترمینځه د ځان نه فرق د مراتبو بیانوی ځکه چه په دې کښې د افراط او تفریط احتمال دې.په خلاف د رسول الله ﷺ چه د هغوی مقصود حقیقت لره بیانول دی کوم چه د هغوی فرض منصبی دې او په هغې کښې د غلطئ احتمال نشته، او چرته چه رسول الله ﷺ یو نبی ته په ظاهر کښې په خپل ځان باندې فوقیت ورکړې دې د هغې په باره کښې به یا خو دا وئیلې کیږی چه رسول الله ﷺ به تواضعا داسې کړې وی، یا ئې قبل العلم دا خبره فرمائیلې ده. یعنی ترڅو چه هغوی ته دا معلومه نه وه چه رسول الله ﷺ د ټولو نه افضل دې یا به فضیلت جزئی باندې محمول کولې شی، یا په بل څه مصلحت باندې لکه چه په وړاندې حدیث کښې راروان دی.

[۴۶۶۹]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ: إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى".

د سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې، نبی ﷺ اوفرمائیل: "کوم یو بنده ته لائق نه دی چې هغه داسې اووائی چې زۀ محمد (ﷺ) د حضرت یونس بن متی علیه السلام نه بهتر یم۔

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَا يَنْبَغِي لِعَبْدٍ أَنْ يَقُولَ إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى »﴾ د دې یو توجیه په بذل کښې دا لیکلې ده یعنی مطلق د نبوت د مرتبې په اعتبار سره، او په ظاهره په دې کښې تخصیص د سیدنا یونس علیه السلام ځکه دې چه چونکه د یونس علیه السلام واقعه په قرآن کریم کښې داسې ده: وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادَىٰ وَهُوَ مَكْظُومٌ

(۱): صحيح مسلم/الفضائل ٢ (٢٢٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٣٥٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٩٥، ٢٨١) (صحيح)
(۲): صحيح البخاري/الأنبياء ٢٤ (٣٣٩٥)، وتفسير القرآن ٤ (٤٦٣٠)، صحيح مسلم/الفضائل ٤٣ (٢٣٧٧)، (تحفة الأشراف: ٥٤٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٤٢، ٢٥٤، ٣٤٢، ٣٤٨) (صحيح)

..نو د رسول الله ﷺ ویره پیدا شوه چه هسې نه څوک د هغوی مرتبه کمه اوګنړی [۱] هم په دې وجه رسول الله ﷺ خاص د هغوی ذکر اوفرمائيلو ، او حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې ليکلي دی: وقال مولانا الرومی فی "فیه ما فیه" : بان لا تفضلونی بان معراجی الی السماء ومعراجه فی بطن الحوت الخ ومثنوی دفتر سوم واليه يشير كلام امام الحرمين كما فی حياة الحيوان ۲۳۳/۱ يعنی ماته په دې لحاظ سره فيضلت مه راکوئ په يونس بن متی علیه السلام باندې چه زما معراج د اسمان طرف ته شوې دې او د يونس علیه السلام د مهی په خیټه کښې. مقصود بهر حال د تفضيل نه منع کول دی منشاء که د هغې هر څه وی که دا وی او که هغه، او د هغې نه روستو د روايت الفاظ دا دی ﴿ مَا يَنْبَغِي لِنَبِيٍّ أَنْ يَقُولَ إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى ﴾ او يو مطلب د دې يعنی د ﴿ انی خير من يونس بن متی ﴾ د بعض استاذانو نه داسې اوريدلي دې چه د انی نه مراد متکلم دې يعنی يو سړی د خپل په باره کښې داسې اوائی چه زه د هغه نه افضل يم حدیث ابی هريرة رضی الله عنه اخرجه مسلم، وحدیث ابن عباس رضی الله عنه اخرجه البخاری ومسلم قاله المنذری.

[٤٦٧٠] [۲] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاق، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي حَكِيمٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَا يَنْبَغِي لِنَبِيٍّ أَنْ يَقُولَ: إِنِّي خَيْرٌ مِنْ يُونُسَ بْنِ مَتَّى".

د حضرت عبدالله بن جعفر رضی الله عنه نه راويت دې، رسول الله ﷺ به فرمائيل :''کوم نبی ته دغه لائق نهٔ دی چی داسې اووائی چی زهٔ د حضرت يونس بن متی علیه السلام نه بهتر يم۔''

[٤٦٧٢] [۳] حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ أَيُّوبَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ، يَذْكُرُ عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ"، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چې يو سړې د رسول الله ﷺ سره داسې مخاطب شو (يا خير البريه)''اې د مخلوق د ټولو نه افضل شخصيت !'' نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل :''دا حضرت ابراهيم علیه السلام وو۔''

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِرَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ عليه السلام » ﴾

د دې توجيه په بذل کښې دا ليکلي ده چه ابرهيم علیه السلام په خپله زمانه کښې خير البرية وو او هم دغه شان په روستو زمانه کښې هم د رسول الله ﷺ د زمانې استثناء کولو سره، او رسول الله ﷺ خير البرية دې مطلقا ، د فضل کلی په اعتبار سره.

**د انبياء اولو العزم مصداق :**

په حاشيه د بذل کښې د اولو العزم ترتيب د شرح اقناع نه نظما داسې نقل کړې دې!

[۱] لکه چه د دې زمانې تيس مار خان مودودی په هغوی باندې نقد کړې دی،

[۲]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٢٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٠٥/١) (صحيح لغيره)

[۳]: صحيح مسلم/الفضائل ٤١ (٢٣٦٩)، سنن الترمذي/تفسير البينة ٨٦ (٣٣٥٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٨/٣، ١٨٤) (صحيح)

محمد ابراهیم موسی کلیمه    فعیسی فنوح اولوالعزم فاعلم

قال وهم على هذا الترتیب یعنی د انبیاء الوالعزم ترتیب د مرتبې په لحاظ سره هم دغه شان دي، د ټولو نه اول سیدنا محمد ﷺ، د هغوی نه پس سیدنا ابراهیم بیا موسی بیا عیسی او بیا نوح ﷺ د اولوالعزم ذکر په قرآن کریم کښې راغلي دي په سورة احقاف کښې، ﴿ فاصبر کما صبر اولو العزم من الرسل ﴾ والحدیث مسلم والترمذی، قاله المنذری.

[٤٦٧٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، وَمَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ الشَّعِيرِيُّ الْمَعْنَى، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَدْرِي أَتُبَّعٌ لَعِينٌ هُوَ أَمْ لَا؟ وَمَا أَدْرِي أَعُزَيْرٌ نَبِيٌّ هُوَ أَمْ لَا؟".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دي رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "د(تبع) متعلق ماته نۀ دی معلوم چې هغه لعین وو یا نه وو- اود عزیر متعلق خبرنه لرم چې هغه نبی وو یا نه وو."

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَا أَدْرِى أَتُبَّعٌ لَعِينٌ هُوَ أَمْ لاَ وَمَا أَدْرِى أَعُزَيْرٌ نَبِىٌّ هُوَ أَمْ لاَ » ﴾ ([2])

تبع د یمن د بادشاه لقب وو لان اهل الدنیا یتبعونه فهو فی الجاهلیة بمنزلة الخلیفة فی الاسلام فعلی هذا تبع بمعنی المتبوع وقیل یسمی بذلک لانهم یتبعون ابائهم فی سیرتهم فهو بمعنی التابع کذا فی هامش البذل عن الاکلیل ۶/۷۶ او په حاشیه د بذل کښې دا هم دی چه د جلالین حاشیه معروف به "جمل" کښې د تبع احوال په تفصیل سره لیکلي دی او دا چه هغه په رسول الله ﷺ باندې د هغوی د راتلو نه زر کاله مخکښې ایمان راوړلي وو، او هم دا تبع الاکبر دي ابوکریب اسعد، وهو اول من کسا البیت، وهو ملک الیمن، الی آخر ما فیه ...او هم هغه په خپل یو سفر کښې په مدینه منوره (هغه وخت کښې یثرب) باندې تیریدلو سره چه کله هغه ته اوئیلې شو چه هم دا ځائې د به د نبی اخر الزمان ﷺ مهاجر وی، نو هغه یو کور جوړ کړو په دې نیت باندې چه رسول الله ﷺ پکښې قیام اوفرمائی، او هغه کور هم هغه وو په کوم کښې چه ابوایوب انصاری رضی الله عنه اوسیدلو او رسول الله ﷺ د هجرت په شروع کښې شپږ میاشتې په هغې کښې قیام فرمائیلې وو د تاریخ په کتابونو کښې هم داسې لیکلې دی.

په بذل کښې ددې حدیث په شرح کښې لیکلي دی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه زه نه پوهیږم چه تبع ملعون وو یا نه، یعنی غیرمسلم وو یا ئې اسلام قبول کړې وو، او دا د هغه وخت خبره ده چه کله هغوی ته وحی نه وه راغلې د هغه د اسلام په باره کښې، بیا رسول الله ﷺ ته خبر ورکړې شو د دې نه روستو چه هغه اسلام قبول کړې وو، پس په مسند احمد کښې په روایت د سهل بن سعد الساعدی رضی الله عنه د رسول الله ﷺ ارشاد نقل دې: ﴿ لا تسبوا تبعا فانه کان قد

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٠٣٣) (صحيح)

[2] قَالَ الْحَافِظ أَبُو الْفَضْل الْعِرَاقِيّ فِي (( أَمَالِيه )) فِي رِوَايَة الْحَاكِم فِي الْمُسْتَدْرَك بَدَله " وَمَا أَدْرِي ذَا الْقَرْنَيْنِ نَبِيًّا كَانَ أَمْ لَا " وَزَادَ فِيهِ " وَمَا أَدْرِي الْحُدُود كَفَّارَات لِأَهْلِهَا أَمْ لَا " وَرَوَيْنَاهُ بِتَمَامِهِ بِذِكْرِ تُبَّع وَعُزَيْر وَذِي الْقَرْنَيْنِ وَالْحُدُود فِي تَفْسِير ابْن مَرْدَوَيْهِ مِنْ رِوَايَة مُحَمَّد بْن أَبِي السَّرِيّ عَنْ عَبْد الرَّزَّاق قَالَ ثُمَّ أَعْلَمَ اللَّه نَبِيّه أَنَّ الْحُدُود كَفَّارَات وَأَنَّ تُبَّعًا أَسْلَمَ. كَذَا فِي مِرْقَاة الصُّعُود (عون) وفیه بعده زیادة علي ذلك فارجع الیه لوشئت.

اسلم ﴾ او وړاندې په حديث کښې دی: ما ته پته نشته چه عزير عليه السلام نبی وو یا که نه وو، او کيدې شی چه رسول الله ﷺ ته وئيلې شوې وو چه هغه نبی وو. (بذل)

[٤٦٧٥]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَنَّ أَبَا سَلَمَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ أَخْبَرَهُ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "أَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِابْنِ مَرْيَمَ، الْأَنْبِيَاءُ أَوْلَادُ عَلَّاتٍ، وَلَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ نَبِيٌّ".

حضرت ابو هريره بيان کوی چی رسول الله ﷺ نه مې واوريدل هغوی فرمائيل "زهٔ د ابن مريم عليهما السلام د ټولو نه نزدې يم او انبياء ګويا د يو پلار اولاد دی (د کومو چې مياندې بيلې بيلې وی) زما او د ابن مريم عليهما السلام په مينځ کښې بل نبی نشته-"

**قوله**: ﴿أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « أَنَا أَوْلَى النَّاسِ بِابْنِ مَرْيَمَ الأَنْبِيَاءُ أَوْلاَدُ عَلاَّتٍ وَلَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ نَبِيٌّ ﴾([2])

رسول الله ﷺ فرمائی چه زه په ټولو انبياء عليهم السلام کښې عيسی عليه السلام ته زيات نزدې يم، يعنی د زمانې په اعتبار سره پس د هغوی او د عيسی عليه السلام ترمينځه صرف د شپږو سوو کالو فاصله ده، پس د بخاری جلد اول په آخری روايت کښې دا دی: ﴿ عَنْ سَلْمَانَ قَالَ فَتْرَةٌ بَيْنَ عِيسَى وَمُحَمَّدٍ صلى الله عليه وسلم سِتُّمِئَةِ سَنَةٍ ﴾ او دا چه په قرآن کريم کښې دی ﴿ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيمَ لَلَّذِينَ اتَّبَعُوهُ وَهَذَا النَّبِيُّ ﴾ چه په هغې کښې دا فرمائيلې شوې دی د رسول الله ﷺ په باره کښې چه په خلقو کښې د ټولو نه زيات نزدې ابراهيم عليه السلام ته رسول الله ﷺ دې نو هغه د قرب شريعت په لحاظ سره چه شرع محمدی ﷺ شرع ابراهيمی عليه السلام ته زياته نزدې ده د نورو انبياء عليهم السلام په مقابله کښې. (بذل عن فتح الودود) وړاندې په حديث کښې دا دی چه ټول انبياء خپل مينځ کښې علاتی رونړه دی، يعنی په اصول دين او توحيد کښې متحد دی او په فروع دين کښې مختلف، اصول دين لره د پلار سره او احکام دين لره کوم چه مختلف دی د مور سره تشبيه ورکولو سره علاتی رونړه وئيلې شوې دی. (بذل) والحديث اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری.

[1]): صحيح مسلم/الفضائل ٤٠ (٢٣٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٣٢٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ٤٨ (٣٤٤٢)، مسند احمد (٢/٤٨٢، ٥٤١) (صحيح)

[2]) اشكل عليه بما ورد بينهما نبيان واجيب بانه ليس نبي مشهور كذا في الفتاوي الحديثية لابن حجر ٦٤ (هامش البذل) په هغې کښې داسې دی، حديث الباب لره اخستلو سره يو سړی تپوس اوکړو: نقل البيضاوي في تفسيره انه كان بينه وبين عيسي عليهما الصلوة والسلام نبيان فما الجمع بينهما؟ فاجاب بقوله خبر مسلم اصح من هذا القول فليقدم عليه وعلي التنزل فيجمع بحمل النفي فيه علي انه لم يكن بينهما نبي مشهور يعرفه كل احد او بيا وړاندې په هغې کښې دا دی: د سائل په سوال کښې چونکه حديث الباب د مسلم شريف طرف ته منسوب کړې شوې وو نو د هغې په باره کښې دا دی چه صرف د مسلم تخصيص نشته بلکه دا روايت خو په بخاری مسند احمد او ابوداؤد کښې هم شته)

# بَابٌ فِي رَدِّ الْإِرْجَاءِ

## بابه ۱٤- د مرجئه تردید

ارجاء هغه عقیده ده چه د هغې منونکو ته مرجئه وائی او هغه دا عقیده ده چه د ایمان کیدو سره هیڅ ګناه مضر نه ده، لهذا د نیکو اعمالو کولو هیڅ ضرورت نشته، د ارجاء لغوی معنی روستو کول او موخر کول دی، نو چونکه دا خلق اعمال شاته غورزوی هم په دې وجه د دې عقیدې نوم ارجاء دې او فرقې ته مرجئه وائی. دا عقیده د بې شمیره احادیث صحیحه او آیات صریحه خلاف ده، هم په دې وجه مصنف رحمه الله په دې باب کښې داسې احادیث راوړلې دی چه د هغې نه معلومیږی چه اعمال صالحه ته د ایمان په کمال کښې ډیر لوئې دخل دې بغیر د هغې نه ایمان ناقص دې تر دې چه په بعض آیتونو کښې په اعمالو باندې د ایمان اطلاق کړې شوې دې لکه ﴿ وما كان الله ليضيع ايمانكم ﴾ په دې ایت کریمه کښې په مانځه باندې د ایمان اطلاق شوې دې

[٤٦٧٦]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ، أَفْضَلُهَا قَوْلُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الْعَظْمِ عَنِ الطَّرِيقِ، وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الْإِيمَانِ".

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه بیان دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "د ایمان اویا او څه نور (څانګې) خاخونه دی. د ټولو نه افضل "لااله الا الله" وئیل دی او د ټولو نه لاندې دا چې په لاره کښې یو هډوکې پروت وی او هغه لرې کړې شي. او حیا هم د ایمان یوه څانګه ده.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « الإِيمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ أَفْضَلُهَا قَوْلُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الْعَظْمِ عَنِ الطَّرِيقِ وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الإِيمَانِ » ﴾

یعنی د ایمان د اویا نه زیاتې څانګې دی یعنی د هغې متعلقات او تقاضې، چه په هغې کښې د ټولو نه افضل ذکر ﴿ لا اله الا الله ﴾ دې، د قول لفظ ئې ځکه زیات کړو ځکه چه عقیده د لا اله الا الله خو عین ایمان دې او د هغې ذکر او تلفظ دا د اعمال ایمان نه دې، او ادنی شعبه د ایمان رسول الله ﷺ د لارې نه ضررى څیز لرې کول فرمائیلې ده، د دې نه معلومه شوه چه اعمال ایمان مختلفة المرتبة دی، او حیاء د هغې د اهمیت د وجې نه بیله شمار کړې شوه، ځکه چه هغه په ټولو نیکو اعمالو باندې تیاروونکې ده او د بدو نه منع کونکې ده، د حیاء دوه قسمونه دی طبعی او ایمانی، د ایمانی حیاء تعریف دا کړې شوې دې چه حیاء د هغه خصلت نوم دې کوم چه انسان لره د ارتکاب قبیح او د هر ذی حق د حق د تقصیر نه منع کړی، او لغة حیاء نوم دې د هغه شرمندګئ کومه چه انسان ته د عیب او عار د ویرې نه پیښیږی، هو فی اللغة تغیر وانكسار يعترى الانسان من خوف ما يعاب به وفى الشرع

[1] ): صحيح البخاري/الإيمان ٣ (٩)، صحيح مسلم/الإيمان ١٢ (٣٥)، سنن الترمذي/الإيمان ٦ (٢٦١٤)، سنن النسائي/الإيمان ١٦ (٥٠٠٧، ٥٠٠٨، ٥٠٠٩)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٥٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٨١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤١٤، ٤٤٢، ٤٤٥) (صحيح)

خلق يبعث على اجتناب القبيح ويمنع من التقصير فى حق ذى الحق (عون) د دې نه پس د وفد عبدالقيس والا حديث راروان دې په روايت د ابن عباس رضي الله عنهما مختصرا، دا حديث د دې نه په زيات تفصيل سره په كتاب الاشربة باب فى الادعية كښې تير شوې دې او د هغې شرح هم هم هلته، والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

[٤٦٧٧](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي أَبُو جَمْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: إِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا قَدِمُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَهُمْ بِالْإِيمَانِ بِاللَّهِ، قَالَ: "أَتَدْرُونَ مَا الْإِيمَانُ بِاللَّهِ؟ قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، وَإِقَامُ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ، وَصَوْمُ رَمَضَانَ، وَأَنْ تُعْطُوا الْخُمُسَ مِنَ الْمَغْنَمِ".

د ابو جمره نه روايت دې، هغوى اووئيل ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه واوريدل، هغوى اوفرمائيل: كله چې دعبد القيس وفد رسول الله صلى الله عليه وسلم خواه له راغلو نو حضور صلى الله عليه وسلم هغوى لره د ايمان په لاره د راوستلو حكم وركړو. هغوى صلى الله عليه وسلم د هغې وفد نه تپوس اوكړو "آيا تاسو پوهه يئ چې په الله باندې ايمان راوړل څه دى؟" "هغوى اووې: الله او د هغه رسول صلى الله عليه وسلم بهتر پوهيږي - هغوى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: صرف يو الله حقيقى معبود ګڼړل او محمد د الله د رسول كيدلو ګواهى وركول، مونځ قائمه ول، زكواه وركول. د رمضان روژى نيول او دا چې تاسو په مال غنيمت كښې پنځمه حصه ادا كوئ."

[٤٦٧٨](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلَاةِ".

د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: "د بنده او د كفر په مينځ كښې فرق مونځ پريښودل دى."

## شرح الحديث

قوله: ﴿عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم: بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلَاةِ﴾(٣)

د دې شرح په بذل كښې ليكلې ده: اى الموصل بين العبد وبين الكفر ترك الصلوة، يعنى د مونځ

---

(١): صحيح البخاري/الإيمان ٤٠ (٥٣)، العلم ٢٥ (٨٧)، المواقيت ٢ (٥٢٣)، الزكاة ١ (١٣٩٨)، فرض الخمس ٢ (٣٠٩٥)، المناقب ٥ (٣٥١٠)، المغازي ٦٩ (٤٣٦٨)، الأدب ٩٨ (٦١٧٦)، خبر الواحد ٥ (٧٢٦٦)، التوحيد ٥٦ (٧٥٥٦)، صحيح مسلم/الإيمان ٦ (١٧)، الأشربة ٦ (١٩٩٥)، سنن الترمذي/السير ٣٩ (١٥٩٩)، الإيمان ٥ (٢٦١١)، سنن النسائي/الإيمان ٢٥ (٥٠٣٦)، (تحفة الأشراف: ٦٥٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٢٨، ٢٧٤، ٢٩١، ٣٠٤، ٣٣٤، ٣٤٠، ٣٥٢، ٣٦١)، وقد مضى هذا الحديث برقم: (٣٦٩٢) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الإيمان ٩ (٢٦٢٠)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٧٧ (١٠٧٨)، مسند احمد (٣/٣٧٠، ٣٨٩)، (تحفة الأشراف: ٢٧٤٦)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الإيمان ٣٥ (٨٢) (صحيح)

(٣) په حاشيه د بذل كښې دى چه په حجة الله البالغة كښې ليكلى دى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم تارك صلاة ته د مشرك او تارك حج ته د يهودى سره تشبيه وركړې ده ځكه چه مشركان مونځ نه كوى او يهود حج نه كوى اهـ دا اشاره ده هغه حديث طرف ته كوم چه ترمذى روايت كړې دې چه كوم سړې سره د استطاعت نه حج نه كوى نو الله پاك پرواه نه كوى د هغه په باره كښې كه يهودى مرى او كه نصرانى مرى په دې حديث كښې تارك حج ته د يهودو او نصاراى سره تشبيه وركړې شوې ده او په حديث الباب كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم ترك صلاة ته شرك او كفر ونيلي دې، په دې وجه شاه صاحب دا ليكل كړى دى.

ترک کول انسان د کفر سره ملاوهي يعنى ورنزدې کوى يئ، بعض خلق د دې حديث ترجمه دا کوى چه د سړي او د کفر ترمينځه فرق ترک د مانځه دې، دا ترجمه صحيح نه ده، ځکه چه فرق کونکې څيز خو صلوة دې نه ترک صلوة بلکه دلته د بين متعلق وصل دې نه فرق.
د دې حديث نه اعمال صالحه خصوصا د مانځه تعلق د کمال ايمان سره ښکاره دې چه په ايمان کښې کمال په اعمال صالحه سره حاصليږى په بذل المجهود کښې ليکى چه ټول اهل سنت فقهاء محدثين او متکلمين په دې باندې اتفاق دې چه اعمال حقيقة په ايمان کښې داخل نه دى چه د هغې په ترک باندې انسان کافر شى بلکه په دې باندې اتفاق دې چه اعمال شرط دى د کمال ايمان دپاره، لهذا که يو سړې په اعمال مفروضه کښې يو عمل پريږدى بغير د انکار نه نو په دې سره به هغه نه کافر کيږى بلکه فاسق به وى اهـ
والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائي وابن ماجه، قاله المنذرى.

[٤٦٨٠]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لَمَّا تَوَجَّهَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْكَعْبَةِ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَكَيْفَ الَّذِينَ مَاتُوا وَهُمْ يُصَلُّونَ إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ؟ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ سورة البقرة آية ١٤٣".

د حضرت ابن عباس ﷺ نه مروى دى چې د (تحويل قبله په موقع باندې) کله چې نبى ﷺ کعبه الله طرفته رخ کړو نو صحابه ؤ اووې: اې د الله رسوله! د هغه خلقو به څه کيږى کوم چې د بيت المقدس طرفته به ئې مخ کولو او مونځونه به ئې کول، نو الله تعالىٰ دغه آيت نازل اوفرمائيلو. (وما كان الله ليضيع ايمانكم) "الله تعالىٰ داسې نۀ دې چې ستاسو ايمانونه ضائع کړى."

**قوله**: ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا تَوَجَّهَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِلَى الْكَعْبَةِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ فَكَيْفَ الَّذِينَ مَاتُوا وَهُمْ يُصَلُّونَ إِلَى بَيْتِ الْمَقْدِسِ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى (وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ)﴾
يعنى کله چه په مدينه طيبه کښې په رسول الله ﷺ باندې د تحويل قبله په باره کښې آيت نازل شو او د بيت المقدس په ځائې خانه کعبې ته د مونځ کولو حکم ورکړې شو نو په دې باندې بعض صحابه کرامو ﷺ د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه کومو خلقو د تحويل قبله نه مخکښې بيت المقدس ته مونځ کولو او د دنيا نه لاړل د هغوى د مونځونو به څه کيږى، د هغوى خو يو مونځ هم د کعبې طرف ته نه دې شوې او نه د کعبې قبله کيدل د هغوى په علم کښې راغله نو په دې باندې دا آيت کريمه نازل شو چه الله پاک به د هغوى ايمان يعنى مونځ لره نه ضائع کوى، د دې وجه ښکاره ده چه د دغه شان خلقو په حق کښې خو قبله بيت المقدس وه لهذا د هغوى مونځونو د قاعدې مطابق اوشو، بيا دې غير معتبر ولې وى.
د تحويل قبله حديث او د هغې متعلق مباحث په کتاب الصلاة کښې په ابواب الاذان کښې احليت الصلاة ثلاثة احوال الحديث د لاندې تير شوې دى. والحديث اخرجه الترمذى وقال حسن صحيح، قاله المنذرى.

(): سنن الترمذي/تفسير القرآن ٣ (٢٩٦٤)، (تحفة الأشراف: ٦١٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٩٥، ٣٠٤، ٣٤٧) (صحيح)

[٤٦٨١](١) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ شَابُورَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ الْحَارِثِ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ أَحَبَّ لِلَّهِ وَأَبْغَضَ لِلَّهِ وَأَعْطَى لِلَّهِ وَمَنَعَ لِلَّهِ، فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الْإِيمَانَ".

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "چا چې د الله په خاطر محبت اوکړو، د الله په خاطر ئې غصه اوکړه، د الله دپاره ئې ورکړه اوکړه، او د الله د رضا دپاره ئې ورکړه اونۀ کړه نو هغه ايمان کامل کړلو."

**قوله:**﴿عَنْ أَبِى أُمَامَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ قَالَ « مَنْ أَحَبَّ لِلَّهِ وَأَبْغَضَ لِلَّهِ وَأَعْطَى لِلَّهِ وَمَنَعَ لِلَّهِ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الإِيمَانَ »﴾

اول دوه عملونه د قلب دي او باقي دوه د اندامونو دي، يعنې د کوم سړي اعمال قلب او اعمال جوارح چه صرف د الله پاک دپاره وي نو د هغه ايمان به کامل وي.

[٤٦٧٩](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ بَكْرِ بْنِ مُضَرَ، عَنِ ابْنِ الْهَادِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ قَالَ: "مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَلَا دِينٍ أَغْلَبَ لِذِي لُبٍّ مِنْكُنَّ"، قَالَتْ: وَمَا نُقْصَانُ الْعَقْلِ وَالدِّينِ؟ قَالَ: "أَمَّا نُقْصَانُ الْعَقْلِ: فَشَهَادَةُ امْرَأَتَيْنِ شَهَادَةُ رَجُلٍ، وَأَمَّا نُقْصَانُ الدِّينِ: فَإِنَّ إِحْدَاكُنَّ تُفْطِرُ رَمَضَانَ وَتُقِيمُ أَيَّامًا لَا تُصَلِّي".

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه مروی دی چې رسول الله ﷺ (زنانو ته خطاب کولو) او وې فرمائيل: ما کوم ناقص عقل او ناقص د دين واله بيا نۀ موندل کوم چې د تاسو نه زيات عقل مند بنده لره بې عقله جوړولو واله وی." يوې زنانه اووې: په عقل او په دين کښې کمې او نقص څنګه دې؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل: د عقل کمې دا دې چې د دوؤ ښځو ګواهی د يو سړی برابر وی او په دين کښې کمې داسې دې چې بغير د څه شک نۀ زنانه په رمضان کښې روژې نيول پريږدی او څو څو ورځې مونځ نۀ کوی."

**قوله:**﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَلاَ دِينٍ أَغْلَبَ لِذِى لُبٍّ مِنْكُنَّ »﴾

د حديث مطلب دا دې کوم چه رسول الله ﷺ زنانو ته خطاب کولو سره فرمائی زنانه چه ناقصات العقل والدين وی خو د هغې باوجود څومره چه پوهه سړې په خپل قابو کښې کولې شی داسې ئې بل څوک نه شی کولې، په دې باندې يو زنانه تپوس اوکړو چه د زنانه ناقص العقل والدين کيدل څنګه دی نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چه د عقل د نقصان علامت خو ئې دا دې چه د دوه زنانو شهادت د يو سړی قائم مقام وی دا د هغې د معامله فهمۍ د ناقص کيدو د وجې نه ده، او د هغې د دين نقصان دا دې چه د رمضان په بعض حصه کښې هغه روژه نه نيسی او هر مياشت څو ورځې مونځ نه کوی.

د ترجمة الباب سره تعلق د حديث د جزء ثانی دې چه د هغې نه معلوميږی چه په

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٩٠٣) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الإيمان ٣٤ (٧٩)، سنن ابن ماجه/الفتن ١٩ (٤٠٠٣)، (تحفة الأشراف: ٧٢٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٦/٢) (صحيح)

اعمالو سره په ایمان کښې کمال او د هغې په ترک سره نقصان پیدا کیږي، اګر چه په زمانه د حیض کښې ترک صلوة و صوم ګناه نه ده خو په ثواب کښې خو کمې واقع کیږي اګر چه غیراختیاری دي (والحدیث اخرجه مسلم وابن ماجه، قاله المنذری)

## بَابُ الدَّلِيلِ عَلَى زِيَادَةِ الْإِيمَانِ وَنُقْصَانِهِ

### باب ۱۵- د ایمان د کمیدو یا د زیاتیدو دلائل

### د ایمان په حقیقت کښې د اهل سنت او فرق باطله اختلاف:

یعنی ایمان کمې او زیادت قبلوی یا نه؟ مصنف رحمه الله د کمی او زیادت د قبول کولو قائل دې او په دې باندې دلیل قائموی لکه چه په ترجمة الباب کښې تصریح ده او په احادیث الباب کښې د هغې ثبوت، او هم دا دعوی امام بخاری رحمه الله په کتاب الایمان کښې کړې ده او بیا ئې په ډیرو أبوابو او تراجم باندې دا ثابته کړې ده، پس هغوی فرمائی د کتاب الایمان په شروع کښې ﴿ وهو قول وفعل ويزيد وينقص ﴾ په ایمان کښې د کمی او زیادت مسئله مختلف فیه ده کومه چه متفرع ده په یو بله مسئله باندې هغه دا چه ایمان بسیط دې صرف د تصدیق قلب نوم دې یا مرکب دې د تصدیق او اعمال نه، که بسیط وی نو بیا خو ښکاره ده چه نقصان او زیادت به نه قبلوی، او که مرکب وی نو قابل د زیادت او نقصان به وی. معتزله او خوارج دا مرکب منی د تصدیق قلب او اعمال جوارح نه، او اعمال د هغوی په نزد حقیقة په ایمان کښې داخل دی، او ظاهره ده چه اعمال قابل د زیادت او نقصان دی هم په دې وجه د هغوی په نزد باندې ایمان هم قابل د زیادت او نقصان دې او د اهل سنت والجماعت په نزد د ایمان حقیقت تصدیق قلب دې، او په تصدیق کښې د قلت او زیادة احتمال نشته، پس د امام صاحب نه هم دا نقل کړې شوې دی لکه چه په شرح عقائد نسفی وغیره کښې کتابونو کښې دا مسئله مشهور ده.

### آیا د امام ابوحنیفه رحمه الله په دې مسئله کښې د جمهور فقهاء او محدثینو سره اختلاف دې؟

خو مشهوره دا ده لکه چه په حاشیه د بخاری کښې هم دا لیکلې دی چه جمهور فقهاء او محدثین او ائمه ثلاث د ایمان د زیادت او کمی قائل دی د هغوی په نزد دا قابل د زیادت او نقصان دې. خو زمونږ اکابر او مشائخ فرمائی لکه چه په لامع الدراری وغیره کښې حضرت شیخ فرمائی چه په دې مسئله کښې د اهل سنت والجماعت خپل مینځ کښې هیڅ اختلاف نشته، اصل تقابل د اهل سنت او د نورو فرقو اسلامیه معتزله او خوارجو وغیره دې خو دا هم صحیح ده چه جمهور محدثین د ایمان د زیادت او د نقصان اعلان کوی او ډیر په قوت سره د احادیثو نه دا ثابتوی او د دې په خلاف کښې د امام صاحب رحمه الله نه نقل دی: الایمان لا یزید ولا ینقص ...دا اختلاف څه بنیادی اختلاف نه دې اصل کښې دلته یو بله فرقه ده فرقه مرجئه چه هغه هم ایمان لره بسیط منی مګر داسې چه د ایمان د اعمالو سره هیڅ تعلق نشته، نه اعمال د هغوی په نزد د ایمان په حقیقت کښې داخل دی او نه د هغې تعلق د کمال ایمان سره دې او حال دا چه ټول اهل سنت والجماعت په دې باندې متفق دی چه د

ایمان کمال په اعمالو باندې موقوف دې، د امام صاحب چونکه ډیره واسطه راتله د خوارجو او معتزله سره چا چه به اعمال حقیقة په ایمان کښې داخل منل او په دې حیثیت سره هغوی د ایمان د زیادت او د نقصان قائل وو په دې وجه امام صاحب د هغوی په تردید کښې د دې تصریح اوفرمائیله چه ایمان زیادت او نقصان نه قبلوی او جمهور محدثین او فقهاء مخ وو د فرقه مرجئه سره چه د هغوی په نزد ایمان د کمی او زیادت خانه بالکل نه ده او د اعمالو د هغوی په نزد هیڅ حیثیت نشته نو د هغوی په تردید کښې دې حضراتو اوفرمائیل چه ایمان زیادت او نقصان قبلوی، یعنی د اعمالو په کولو او نه کولو سره هغې کښې نقصان او کمال پیدا کیږی نو د ماحول د دې اختلاف په وجه باندې د امام صاحب او د جمهور محدثینو ترمینځهٔ فرق په تعبیر کښې اومونډلې شو د مد مقابل د وجې نه، پس څنګه چه جمهور محدثین تارک اعمال ته کافر نه وائی هم دغه شان ئې ورته امام صاحب رحمه الله هم نه وائی، او څنګه چه تارک اعمال ته امام صاحب فاسق وائی هم دغه شان ئې ورته جمهور فقهاء او محدثین هم وائی، په خلاف د دې نورو فرقو چه په دوی کښې خوارج او معتزله خو تارک اعمال لره د حد ایمان نه خارج ګڼړی او مرجئه هغه ته فاسق هم نه وائی، پس اصل اختلاف د دې فرقو ترمینځهٔ شو نه دا چه د اهل سنت خپل مینځ کښې، کوم خلق چه په دې حقیقت باندې نه دی پوهه شوې، یا ئې په تجاهل عارفانه سره دا د امام صاحب په باره کښې اووې چه امام صاحب د فرقه مرجئه نه وو چه څنګه د مرجئه په نزد ایمان قابل زیادت او نقصان نه دې هم دغه شان د امام صاحب په نزد هم نه دې د دې الزامی جواب چا داسې ورکړې دې چه که داسې وی نو نور حضرات کوم چه ایمان لره قابل زیادت او نقصان منی، هغوی ته معتزلی وئیل پکار دی، د امام صاحب په باره کښې د دې الزام تحقیق او د هغې تردید د مولانا عبدالحئ صاحب په کتاب الرفع والتکمیل فی الجرح والتعدیل ...کښې په تفصیل سره ذکر شوې دې کما فی هامش مقدمة فیض السمائی ۱/۱۶.

**﴿د فرقه کرامیه مذهب﴾**

دلته یو مذهب بل پاتې شو چه د هغې قائل کرامیه دی هغوی وائی چه د ایمان حقیقت صرف نطق دې نه د هغې تعلق د تصدیق سره دې نه د اعمال سره، په حاشیه د لامع کښې ذکر دی: قال الحافظ : السلف قالوا هو اعتقاد بالقلب ونطق باللسان وعمل بالأركان وأرادوا بذلك أن الأعمال شرط في كماله ومن هنا نشا لهم القول بالزياده والنقصان والمرجئة قالوا هو اعتقاد ونطق فقط والكراميه قالوا هو نطق فقط والمعتزله قالوا هو العمل والنطق والاعتقاد والفارق بينهم وبين السلف إنهم جعلوا الأعمال شرطا في صحته والسلف جعلوها شرطا في كماله اه په شرح عقائد نسفی کښې دی : اعلم ان الایمان فی الشرع هو التصدیق بما جاء به من عندالله تعالی ای تصدیق النبی بالقلب فی جمیع ما علم بالضرورة مجیئه به من عندالله تعالی اجمالا، والاقرار به ای باللسان الا ان التصدیق رکن لا یحتمل السقوط اصلا، والا اقرار قد یحتمله کما فی حالة الاکراه فاما الاعمال ای الطاعات فهی تتزاید فی نفسها والایمان لا یزید ولا ینقص ...چونکه د ډیرو آیتونو نه د ایمان د زیادت د قبلولو ثبوت ثابت دې د هغې جواب ورکوی چه : والایات الدالة علی زیادة الایمان

محمولة على ما ذكره ابوحنيفة انهم كانوا امنوا في الجملة ثم ياتي فرض بعد فرض فكانوا يومنون بكل فرض خاص، وحاصله كان يزيد بزيادة ما يجب به الايمان ...يعنى په كومو آيتونو كښې چه د ايمان د زيادت ذكر دي هغه د مومن به د زيادت په اعتبار سره دي، يعنى په كومو احكامو باندې چه ايمان راوړل واجب دى هغه چونكه بيل بيل نازل شوي دى نو هر څومره چه احكام نازليدل صحابه كرامو په هغې باندې ايمان راوړلو . په دې اعتبار سره ئې په ايمان كښې زيادت كيدلو ، وړاندې په هغې كښې دا دى : وقال بعض المحققين لا نسلم ان حقيقة التصديق لا تقبل الزيادة والنقصان بل تتفاوت قوة وضعفا للقطع بان تصديق احاد الامة ليس كتصديق النبى عليه السلام، ولهذا قال ابراهيم عليه السلام ﴿ ولكن ليطمئن قلبى ﴾ اه يعنى بعض محققينو دا خبره هم كړې ده چه دا خو صحيح ده چه اعمال حقيقة په اعمالو كښې داخل نه دى بلكه صرف تصديق قلب دې، خو دا مونږ ته قبوله نه ده چه حقيقة تصديق زيادة او نقصان نه قبلوى بلكه په دې تصديق كښې د قوت او ضعف په اعتبار سره ډير لوئې تفاوت دې ځكه چه دا خبره يقينى ده چه د يو امتى تصديق د نبى د تصديق برابر نه شى كيدې، خو د بعض محققينو دا اشكال صحيح نه دې، ځكه چه هغوى د زيادت او نقصان د بحث نه د قوت او ضعف طرف ته راغلل، زيادت او نقصان مقوله د كم نه ده او ضعف او قوة مقوله د كيف نه ده، لهذا د هغوى دا استدلال صحيح نه دې، يا داسې اوايه چه دا اختلاف صرف لفظى شو، كه د زيادة او نقصان نه قوة او ضعف مراد كول وى نو د هغې خو امام صاحب هم منكر نه دې، په شرح عقائد كښې په دې مقام كښې نور هم سوال او جواب او بحثونه دى د هغې طرف ته دې رجوع اوكړې شى، مثلا په هغې كښې يو اختلاف دا هم ذكر دې چه مصنف رحمه الله اقرار باللسان لره د تصديق بالقلب سره ذكر كړې دې دا د بعض علماء كرامو مذهب دې لكه شمس الائمة او فخر الاسلام او د جمهور محققين رائې دا ده چه د ايمان حقيقت صرف تصديق بالقلب دې، او د اقرار باللسان اجراء د احكام فى الدنيا دپاره شرط ده ځكه چه تصديق قلبى يو باطنى امر دې چه د هغې دپاره په ظاهر كښې څه علامت كيدل پكار دى الى اخر ما ذكر.

[٤٦٨٢](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا".

دحضرت ابو هريره رضي الله عنه نه مروى دى، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل " په ايمان كښې د ټولو نه كامل ايمان واله هم هغه دې كوم چې په اخلاقو كښې د ټولو نه لوئ وى- "

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم « أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا » ﴾ يعنى د كوم مومن اخلاق چه څومره ښه وى د هغه ايمان به هغه هومره كامل وى معلومه شوه چه په حسن خلق سره په ايمان كښې كمال پيدا كيږى او د هغې په كمى سره نقصان پيدا كيږى لهذا په ايمان كښې نقصان او زيادت اومونډلې شو. والحديث اخرجه الترمذى وقال حسن صحيح، قاله المنذرى.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥١٠٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الرضاع ١١ (١١٦٢)، مسند احمد (٢/٤٧٢، ٥٢٧) (حسن صحيح)

[٤٦٨٥]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ. ح وحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَسَمَ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ قَسْمًا فَقُلْتُ أَعْطِ فُلَانًا، فَإِنَّهُ مُؤْمِنٌ، قَالَ: أَوْ مُسْلِمٌ إِنِّي لَأُعْطِي الرَّجُلَ الْعَطَاءَ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ مَخَافَةَ أَنْ يُكَبَّ عَلَى وَجْهِهِ".

حضرت عامر د خپل والد حضرت سعد (بن ابی وقاص ﷛)نه روایت کوی چې نبی ﷺ په مسلمانانو کښې څه مال تقسیم کړو نو ما عرض اوکړو ،فلانکی لۀ هم څه ورکړئ بغیر د څه شک نه هغه هم مومن دې،حضور ﷺ اوفرمائیل مسلمان دې،بې شکه زۀ کوم سړی له عطیه ورکومه حالانکه دَ هغه په ځائ کوم بل ماته زیات محبوب وی (هغه له څه نه ورکوم) زۀ په دغه خیال هغه له ورکوم چې چرته هغه په پړ مخ اونه غورزول شی۔''

**قوله:**﴿عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- .......قَالَ « أَوْ مُسْلِمٌ إِنِّي لأُعْطِي الرَّجُلَ الْعَطَاءَ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ مَخَافَةَ أَنْ يُكَبَّ عَلَى وَجْهِهِ »﴾ ([2])

سعد بن ابی وقاص﷛ فرمائی چه یو ځل رسول الله ﷺ څه مال تقسیمولو، ما عرض اوکړو چه فلانی سړی ته هم ورکړئ هغه مومن دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل بلکه هغه مسلم دې، یعنی د مومن په ځائي ورته مسلم وایه، ځکه چه ایمان د اعتقاد نوم دې کوم چه باطنی څیز دې، او اسلام د انقیاد ظاهری نوم دې، او مونږ ته د نورو ظاهر معلوم دې باطن نه، بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه زه بعض وخت داسې سړی ته ورکړه کوم چه د هغه په مقابله کښې ماته بل زیات محبوب وی خو هغه ته ځکه ورکوم چه په نه ورکولو کښې دا ویره وی چه هسې نه په جهنم کښې پړ مخې واچولې شی.

په دې حدیث کښې هم په مسلمانانو کښې خپل مینځ کښې تفاوت په اعتبار د کمال ایمان و نقصان موندلې شی. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی.

[٤٦٨٣]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، قَالَ: وَأَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَعْطَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِجَالًا وَلَمْ يُعْطِ رَجُلًا مِنْهُمْ شَيْئًا، فَقَالَ سَعْدٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَعْطَيْتَ فُلَانًا وَفُلَانًا وَلَمْ تُعْطِ فُلَانًا شَيْئًا وَهُوَ مُؤْمِنٌ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَوْ مُسْلِمٌ حَتَّى أَعَادَهَا سَعْدٌ ثَلَاثًا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: أَوْ مُسْلِمٌ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي أُعْطِي رِجَالًا وَأَدَعُ مَنْ هُوَ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُمْ لَا أُعْطِيهِ شَيْئًا مَخَافَةَ أَنْ يُكَبُّوا فِي النَّارِ عَلَى وُجُوهِهِمْ".

حضرت عامر بن سعد د خپل والد (حضرت سعد بن ابی وقاص ﷛) نه روایت کوی چې (یو ځل) نبی ﷺ بعضو خلقو ته څه عنایت اوفرمائیلو او یو سړی له ئې څه ور نه کړل- نو

---

[1]): انظر حدیث رقم : (٤٦٨٣)، (تحفة الأشراف: ٣٨٩١) (صحیح)

[2]) في هامش البذل ويرد عليه ما في كتاب التفسير من الترمذي ١٥٢/٢ واذا رايتم من يتعاهد المسجد فاشهدوا له بالايمان الخ وجمع بينهما القاري ٤٦١/١ بحمل الامر علي الظن والنهي علي القطع اهـ قلت واصل الكلام القاري هكذا قال ابن حجر وقد يستشكل قوله فاشهدوا له بحديث عائشة الذي فيه انكار ﷺ قولها في طفل انصاري مات طوبي له عصفور من عصافير الجنة ويمكن ان يجمع بحمل ما هنا علي الامر بالشهادة له بالايمان ظنا وما في ذلك علي القطع بانه في الجنة الخ)

[3]): صحيح البخاري/الإيمان ١٩(٢٧)، الزكاة ٥٣ (١٤٧٨)، صحيح مسلم/الإيمان ٦٧ (١٥٠)، الزكاة ٤٥ (١٥٠)، سنن النسائي/الإيمان وشرائعه ٧(٤٩٩٥)، (تحفة الأشراف: ٣٨٩١) (صحيح)

حضرت سعد رضی الله عنه اووي: اې د الله رسوله ﷺ! تاسو فلانکي فلانکي ته عنايت اوفرمائيلو او فلانکي ته مو هيڅ څه ورنهٔ کړل حالانکه هغه مومن دې - نو نبي ﷺ اوفرمائيل: "يا مسلم دې - " حضرت سعد رضی الله عنه دغه خبره درې ځله اوکړه او نبي ﷺ يا مسلم دې،مسلم دې فرمائيل او بيا ئې اووې: "زهٔ بعضو کسانو ته ورکوم او بعضې پرېږدم حالانکه هغه ماته ددوی په نسبت باندې زيات محبوب وی په دغه انديښنه چې چرته هغوی د خپلو مخونو په طرف په اور کښې وانهٔ چولې."

[٤٦٨٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، قَالَ: وَقَالَ الزُّهْرِيُّ "قُلْ لَمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِنْ قُولُوا أَسْلَمْنَا سورة الحجرات آية ١٤"، قَالَ: نَرَى أَنَّ الإِسْلَامَ الْكَلِمَةُ وَالإِيمَانَ الْعَمَلُ".

حضرت ابن شهاب زهري رحمه الله ددغه ايت کريمه (قل لم تومنو ولکن قولو اسلمنا) "اووائې! (اې بانډيچيانو!) تاسو ايمان راؤ نه ړلو بلکې داسې اووائې چې مونږه اسلام قبول کړو." تفسير ئې بيان کړو مونږه ګڼړو د اسلام نه مراد ژبانې اقرار دې او د ايمان نهٔ مراد عمل دې.

**قوله:** ﴿عَنْ مَعْمَرٍ قَالَ وَقَالَ الزُّهْرِيُّ (قُلْ لَمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِنْ قُولُوا أَسْلَمْنَا) قَالَ نَرَى أَنَّ الإِسْلَامَ الْكَلِمَةُ وَالإِيمَانَ الْعَمَلُ به﴾

د موجوده سياق او ظاهرې الفاظو نه داسې معلوميږی چه دې باره کښې به معمر د نورو علماء کرامو رائې هم ذکر کړې وی چه په هغې باندې عطف کولو سره ئې د زهري کلام هم ذکر کړو، مقصود د هغه آيت کريمه تفسير دې، ﴿ قالت الاعراب امنا قل لم تومنوا ولکن قولوا اسلمنا ﴾ چه د هغې نه معلوميږی چه په ايمان او اسلام کښې فرق دې، هم دا فرق امام زهري رحمه الله بيانوی چه اسلام نوم دې په ژبه باندې د کلمه شهادت د ادا کولو او ايمان نوم دې د دې کلمې په مقتضاء باندې د عمل کولو، يعنی سره د کلمه شهادت لهذا ايمان اخص شو د اسلام نه، پس په آيت کريمه کښې د خاص نفی او د عام اثبات دې.

[٤٦٨٦]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: وَاقِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ أَخْبَرَنِي، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ، يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا تَرْجِعُوا بَعْدِي كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ".

حضرت ابن عمر رضی الله عنه بيان به کولو، نبي ﷺ اوفرمائيل: چرته زما نه پس کافران جوړ نهٔ شئ چې د يو بل نه څټونه وهئ.

**قوله:** ﴿أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عُمَرَ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– أَنَّهُ قَالَ « لاَ تَرْجِعُوا بَعْدِى كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ »﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه تاسو زما نه پس خپل مينځ کښې په جنګ وجدال او د يو بل سټ وهلو سره کافر نه شئ يعنی دکفارو مشابه چه هغوی خپل مينځ کښې جنګ کوی، يو بل لره قتل کول دی په خلاف د مومنانو چه د هغوی شان دا دې چه هغوی خپل مينځ

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٣٧٧) (صحيح الإسناد)

[2]: ● تخريج: صحيح البخاري/المغازي ٧٧ (٤٤٠٢)، الأدب ٩٥ (٦١٦٦)، الحدود ٩ (٦٧٨٥)، الديات ٢ (٦٨٦٨)، الفتن ٨ (٧٠٧٧)، صحيح مسلم/الإيمان ٢٩ (٦٦)، سنن النسائي/المحاربة ٢٥ (٤١٣٠)، سنن ابن ماجه/الفتن ٥ (٣٩٤٣)، (تحفة الأشراف: ٧٤١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٨٥، ٨٧، ١٠٤، ١٣٥) (صحيح)

کښې د رونړو په شان اوسيږي.

د دې حديث نه معلومه شوه چه خپل مينځ کښې جنګ کول کوم چه معصيت دې په هغې سره ايمان کښې نقصان پيدا کيږي لهذا په مرجئه باندې رد اوشو کوم چه مقصود بالباب دې. والحديث اخرجه البخاري ومسلم وابن ماجه، مطولا ومختصرا قاله المنذري.

[٤٦٨٧] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ فُضَيْلِ بْنِ غَزْوَانَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا رَجُلٍ مُسْلِمٍ أَكْفَرَ رَجُلًا مُسْلِمًا، فَإِنْ كَانَ كَافِرًا وَإِلَّا كَانَ هُوَ الْكَافِرُ".

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې، رسول الله ﷺ اوفرمائيل: کۀ يو مسلمان کوم بل مسلمان ته کافر اووې، نو که چرې هغه (فی الواقع) کافر شوې وو نو فبها، او که نۀ وی نو وئيونکې پخپله کافر دې."

قوله: ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أَيُّمَا رَجُلٍ مُسْلِمٍ أَكْفَرَ رَجُلاً مُسْلِمًا فَإِنْ كَانَ كَافِرًا وَإِلاَّ كَانَ هُوَ الْكَافِرَ » ﴾

يعنی که يو مسلمان د بل مسلمان تکفير اوکړی پس که هغه واقع کافر وو خو خير او که نه وو نو کفر به واپس دې ويونکی ته راځی يعنی د دې تکفير نحوست، سپيرۀ والې او وبال.

[٤٦٨٨] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ فَهُوَ مُنَافِقٌ خَالِصٌ، وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَلَّةٌ مِنْهُنَّ كَانَ فِيهِ خَلَّةٌ مِنْ نِفَاقٍ حَتَّى يَدَعَهَا: إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ، وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ، وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ، وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ".

حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما بيان کوی چی رسول الله ﷺ اوفرمائيل: " څلور خصلتونه چی په کوم سړی کښې وی هغه خالصه منافق وی او په کوم کښې چی په دغه څلورو کښې کوم يو وی نو په دۀ کښې د نفاق يو خصلت دې حتیٰ چی هغه ئې پريږدی. يعنی چی کله خبره کوی نو دروغ وائی، وعده چی کوی نو خلاف کوی، عهد معاهده چی کوی نو دهوکه به ورکوی او که چرې جګړا اوشی نو په بدزبانۍ (کنځل وينا) باندې به شروع اوکړی.

## شرح الحديث :

قوله: ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ فَهُوَ مُنَافِقٌ خَالِصٌ وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَلَّةٌ مِنْهُنَّ كَانَ فِيهِ خَلَّةٌ مِنْ نِفَاقٍ حَتَّى يَدَعَهَا إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ » ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه څلور عادتونه داسې دی چه په چا کښې هغه بيا موندلې شی نو هغه به خالص منافق وی او په چا کښې چه هغه ټول جمع نه وی بلکه يو پکښې اوموندلې

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٢٥٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ٧٣ (٦١٠٤)، صحيح مسلم/الإيمان ٣٦ (١١١)، سنن الترمذي/الإيمان ١٦ (١٢٣٧)، مسند احمد (٢٣/٢، ٦٠) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الإيمان ٢٤ (٣٤)، المظالم ١٧ (٢٤٥٩)، الجزية ١٧ (٣١٧٨)، صحيح مسلم/الإيمان ٢٥ (٥٨)، سنن الترمذي/الإيمان ١٤ (٢٦٣٢)، سنن النسائي/الإيمان وشرائعه ٢٠ (٥٠٢٣)، (تحفة الأشراف: ٨٩٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٩/٢، ١٩٨، ٢٠٠) (صحيح)

شي نو هغه سړی ته به دا وئيلې شي چه په هغه کښې د نفاق يو صفت دې ترڅو چه ئې هغه پرېخودلې نه وی، اوهغه صفتونه دا دی چه کله خبرې کوی نو دروغ وائی، او کله چه وعده کوی نو د هغې خلاف کوی، او چه کله څه معاهده اوکړی نو هغه دهوکې ورکولو سره ماتوی، او کله ئې چه د چا سره په څه خبره باندې په جنګ شی نو کنځلې کوی.

په بذل کښې د امام نووی رحمه الله نه په دې حديث باندې يو اشکال او د هغې جواب نقل کړې دې (١) چه ډير کرته دا عادتونه خو په مسلمان کښې هم موندلې شی حال دا چه هغه منافق نه دې، د دې يو جواب خو دا ورکړې شوې دې چه د منافق نه مراد کالمنافق، يعنی د منافقانو په شان کار کونکې، دا توجيه خو په هغه صورت کښې ده چه د نفاق نه مراد کفر وی، او دويم جواب دا دې چه د نفاق نه مراد نفاق عملی دې يعنی دا سړې عملا منافق دې اګر چه د اعتقاد په لحاظ نه دې اهـ او يو جواب د دې دا ورکړې شوې دې چه دا حديث په خپل ظاهر باندې دې په دې کښې هيڅ اشکال نشته، ځکه چه د دې حديث مطلب دا دې چه په کوم سړی کښې دا څلور عادتونه يو ځائې موندلې شی هغه به منافق حقيقی وی، او دا صحيح ده ځکه چه په مسلمان کښې اګر که هغه هر څومره نافرمان وی دا څلور خصلتونه نه شی جمع کيدې، هم په دې وجه وړاندې په حديث کښې وئيلې شوې دی چه په چا کښې دا څلور واړه خصلتونه نه وی راجمع نو بيا به هغه ته منافق نه شی وئيلې کيدې بلکه دا به وئيلې شی چه په دې سړی کښې د منافقت يو صفت دې، امام ترمذی رحمه الله د دې حديث د لاندې دا خبره هم ليکلې ده چه د نفاق دوه قسمونه دی يو اعتقادی او بل عملی او دلته مراد د نفاق نه نفاق عمل دې او د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نفاق حقيقی يعنی نفاق تکذيب خو موندلې شو يعنی ډيرو خلقو به خپل اسلام ظاهرولو او د هغوی په زړه کښې به کفر وو، خو نفاق عمل د هغوی په زمانه کښې نه وو.ځکه چه نفاق عمل خو فسق دې او د رسول الله ﷺ په زمانه کښې چه به کوم انسان په اسلام کښې داخليدو نو هغه به د رسول الله ﷺ د صحبت په فيض باندې د ايمان د کمال سره متصف کيدلو هلته فسق چرته وو اهـ د امام ترمذی رحمه الله د رائې تقاضا دا ده چه د دې حديث تعلق د صحابه کرامو رضی الله عنهم د زمانې سره نه دې بلکه د روستو زمانې سره دې، او يو جواب د دې حديث دا هم ورکړې شوې دې.كما في هامش الترمذی عن التوريشتی: دا هم ممکن ده چه رسول الله ﷺ دا خبره د خپلې زمانې د بعض منافقانو په اعتبار سره فرمائيلې ده چه د هغوی منافق کيدل رسول الله ﷺ ته د وحی د نور نه معلومه شوې وه او په هغوی کښې به دا صفات موندلې شو نو په دې وجه رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د دې منافقانو علامت ښودلې وو چه هغوی د هغوی نه ځان او ساتی او مصلحة ئې د هغوی تعين اونه فرمايه، مصلحت مثلا دا چه رسول الله ﷺ ته معلومه وه چه په هغوی کښې به بعضو ته الله پاک د توبې توفيق ورکړی په دې وجه رسول الله ﷺ هغه رسوا کول او نه غوښتل.(ترمذی ٢/٩١)

والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

(١) وذكر العيني ١/٢٥٨ لهذا الاشكال ثمانية اجوبة (هامش البذل)

[٤٦٨٩]() حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ الْأَنْطَاكِيُّ، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَلَا يَسْرِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِينَ يَشْرَبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَالتَّوْبَةُ مَعْرُوضَةٌ بَعْدُ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه بیان اوکړو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ''بدکار زناکار چی څه وخت زنا کوی، ایماندار نۀ وی- غل چی څه وخت غلا کوی، د ایمان واله نۀ وی- او شرابی چی څه وخت شراب څښی، مومن نۀ وی، ددې نه پس توبه د هغه د وړاندې وی-''

**قوله:**(عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لاَ يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلاَ يَسْرِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلاَ يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِينَ يَشْرَبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ »)

یعنی زانی چه کله زنا کوی نو هغه وخت هغه مومن نه وی، هم دغه شان غل چه کله غلا کوی نو هغه مومن نه وی، او هم دغه شان چه د شرابو څکونکې کله شراب څکی نو هغه مومن نه وی.

## توجیه الحدیث علی مسلک اهل السنة :

د دې حدیث مشهور جواب د اهل سنت د طرف نه دا دې چه په دې سره د نفس ایمان نفی نه ده مراد بلکه د کمال ایمان نفی مراد ده، ځکه چه ایمان د تصدیق قلب نوم دې او زنا وغیره ګناهونه د هغې منافی نه دی، بله دا چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د کومو خلقو نه زنا یا غلا شوې ده رسول الله ﷺ په هغوی باندې حد خو جاری کړو خو د هغې نه پس ئې ورته د تجدید ایمان حکم او نه فرمائیلو په بذل کښې د دې دوه توجیهات کړې شوې دی یو هم دا چه د کمال ایمان نفی ده یا دا چه دا محمول دې په مستحل باندې، یو جواب دا هم نقل دې چه دلته د مومن نه مراد (ذو امن) ای ذو امن من العذاب ...چه هغه د الله پاک د عذاب نه په امن نه دې.

د حدیث په آخر کښې دی (وَالتَّوْبَةُ مَعْرُوضَةٌ بَعْدُ) یعنی زنا او غلا او د شرب خمر نه پس که بنده توبه اوکړی نو د دې موقع شته، الله پاک به د هغه توبه قبوله کړی والحدیث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٤٦٩٠]() حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُوَيْدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا نَافِعٌ يَعْنِي ابْنَ يَزِيدَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ابْنُ الْهَادِ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيَّ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا زَنَى الرَّجُلُ خَرَجَ مِنْهُ الْإِيمَانُ كَانَ عَلَيْهِ كَالظُّلَّةِ فَإِذَا انْقَطَعَ رَجَعَ إِلَيْهِ الْإِيمَانُ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه بیان کوی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ''سړې چی څه وخت زنا کوی نو دهغه نه ایمان اوځی او د هغه دپاسه د چترئ په نسبت شی- پس چی هغه څه وخت د بدکارئ نه باهر تۀ راوځی نو ایمان د هغه طرفته واپس راشی-''

[1]: صحيح البخاري/المظالم ٣٠ (٢٤٧٥)، الأشربة ١ (٥٥٧٨)، الحدود ١ (٦٧٧٢)، صحيح مسلم/الإيمان ٢٣ (٥٧)، سنن الترمذي/الإيمان ١١ (٢٦٢٥)، سنن النسائي/قطع السارق ١ (٤٨٧٤)، الأشربة ٤٢ (٥٦٦٢، ٥٦٦٣)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٦٣، ١٢٤٨٩)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الأشربة ١١ (٢١٥٢)، الأضاحي ٢٣ (٢٠٣٧) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٠٧٩) (صحيح)

**قوله:**﴿ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِذَا زَنَى الرَّجُلُ خَرَجَ مِنْهُ الإِيمَانُ كَانَ عَلَيْهِ كَالظُّلَّةِ فَإِذَا انْقَطَعَ رَجَعَ إِلَيْهِ الإِيمَانُ » ﴾

يعني کله چه انسان په زنا کښې مشغول شی د هغه نه ايمان اوځی او په هغه باندې د وريځې په شان اودريږی، بيا چه کله هغه د زنا نه فارغ کيدلو سره لرې شی نو ايمان هغه طرف ته راواپس شی، پورته چه کوم حديث تير شوې دې ﴿ لا يزنى الزانى حين يزنى وهو مومن﴾ د هغې يو توجيه دا هم کړې شوې ده کومه چه په دې حديث مرفوع کښې ده چه ترڅو پورې زانی په زنا کښې اخته وی نو هغه وخت د هغه د نه ايمان يعنی نور ايمان بهر راوځی او بيا روستو په هغه کښې داخل شی، ګويا د ايمان نفی مستمر نه ده هم دا خبره حافظ په پورته حديث کښې وئيلې ده چه په حديث کښې نفی د ايمان مقيد کړې شوې ده ﴿ حين يزنى﴾ سره او امام ترمذی د مام محمد الباقر نه د دې حديث شرح دا نقل کړې ده : ﴿ انه قال فی هذا خروج من الايمان الی الاسلام ﴾ حافظ فرمائی چه هغوی ايمان اخص کړو د اسلام نه. پس هر کله چه هغه د ايمان نه خارج شو نو په اسلام کښې باقی پاتې شو ځکه چه د خاص په نفی سره د عام نه نفی نه لازميږی، خو د عام نفی عام لره مستلزم وی.اهـ په ظاهر کښې مطلب دا دې چه ايمان نوم دې د انقياد ظاهروباطن د دواړو د مجموعې او دا صفة په زانی کښې په وخت د زنا نه شی موندلې، او اسلام نوم دې صرف د انقياد ظاهر يعنی بس کلمه ويونکې کيدل، هغه ښکاره ده چه د زنا په وجه باندې منتفی نه شو، دا سړې په نوم خو مسلمان دې ځکه چه د ايمان نه وتلو سره اسلام ته راغلې دې، او يو جواب د دې دا هم نقل کړې شوې دې چه د ايمان د نفی نه مراد د حياء نفی ده کومه چه د ايمان ډيره لويه شعبه ده.

## بَاب فِي الْقَدَرِ

### بابـ ۱۶- د تقدير بيان

د قدر په دال کښې فتح او سکون دواړه جائز دی کما فی المرقاة،خو راجح په دې کښې فتح د دال ده وعليه الاکثر [1]او په شرح السنة کښې ليکلې دی چه ايمان بالقدر فرض لازم دې او هغه دا دې چه دا اعتقاد اولری چه الله پاک د بندګانو د اعمالو (که هغه د خير وی او که د شر) خالق دې.کوم چه هغه په لوح محفوظ کښې ليکلې دی د هغه د پيدا کولو نه مخکښې، او هغه ټول اعمال د الله پاک په قضاء او قدر او د هغه په اراده او مشيئت سره دی، خو هغه په دې کښې خوښوی ايمان او طاعت لره او په هغې ئې د ثواب وعده کړې ده، او نه خوښوی کفر او معصيت لره او د هغې دپاره ئې عقاب مقرر کړې دې، او تقدير يو راز دې د الله پاک د رازونو نه چه په هغې باندې الله پاک نه يوه مقربه فرشته خبر کړې ده او نه نبی

[1] پس د قاموس نه معلوميږی چه قدر کوم چه په معنی د قضاء دې هغه محرکة دې يعنی بفتح الدال او کوم قدر (طاقت) او مبلغ الشئ يعنی د مقدار په معنی دې هغه دواړه قسم دې يا بفتح والسکون، هم دغه شان حافظ په فتح البارئ کښې هغه صرف بفتح القاف والمهملة ضبط کړې دې او په قسطلانی کښې دی هو بفتح القاف والدال المهملة وقد تسکن، او هم دغه شان په تحفة الاحوذی کښې دی.

مرسل، او په دې کښې غور کول او د عقل په رڼا کښې په دې کښې بحث کول جائز نه دی بلکه واجب دې دا اعتقاد کول چه الله پاک ټول مخلوق پیدا کړې دې کوم ئې چه په دوه حصو کښې تقسیم کړې دې، بعضو لره ئې په خپل فضل سره د نعمتونو دپاره او بعضو لره په خپل عدل سره د عذاب دپاره.او په مرقاة ۵۸/۱ شرح مشکوة کښې دی : د اهل سنت والجماعت عقیده دا ده چه ټول افعال عباد خیر او شر د الله پاک مخلوق دې او د دې سره سره هغه مکتسب د عباد هم دی ځکه چه بندګانو ته فی الجملة اختیار ورکړې شوې دې د کسب اګر که د هغوی کسب هم تابع دې د الله پاک د ارادې او د هغه د خلق.پس خبره دا ده چه ﴿ لا یسئل عما یفعل وهم یسالون ﴾ او هم دا مذهب اعدل او اوسط دې د نصوص سره زیات موافقت لرلو والا دې لهذا هم دا حق او صواب دې په خلاف د جبریه کوم چه د دې خبرې قائل دی چه بندګان مجبور دی په خپلو افعالو کښ، او په خلاف د قدریه کوم چه د تقدیر نفی کوی یعنی معتزله کوم چه قائل دی د دې خبرې چه بندګان د خپلو افعالو خپله خالق دی په دې کښې د الله پاک د ارادې او قدرت هیڅ دخل نشته، بنده د خپلو افعالو په ایجاد کښې مستقل دې الی اخر ما ذکر.

دا ټول حضرات خو افعال عباد لره اخستلو سره بحث کوی په ظاهر کښې ځکه دا چه اختلاف زیات تر دې د قدریه او جبریه وغیره فرقو سره هم د دې افعال عباد په اعتبار سره دې او زیات تر بحث و مباحثه هم د هغوی سره وی، او بل په دې وجه هم چه په دې دنیا کښې چه اعمالو ته کوم اهمیت حاصل دې هغه ظاهر او بدیهی دې ګڼې د تقدیر تعلق صرف افعال عباد سره نه دې بلکه ټول کائنات عالم سره دې چه د دې د یو ذرې وجود او چه څه تر اوسه پورې په دنیا کښې موندلې شوې دی یا موندلې کیږی به او یابه روستو موندلې کیږی هغه ټول د الله پاک په قدرت او د هغه په ارادې او د هغه په تخلیق باندې د هغه د علم ازلی مطابق دې، او د چا چه په دې کښې تردد وی، والعیاذ بالله تعالی هغه مبتدع، او د اهل سنت نه خارج دې او په بعض صورتونو کښې ئې کفر هم لازمیږی، پس په مرقاة کښې دی چه د جبریه په مسلک کښې دا خبره لازمیږی چه انسان چه هر کله مجبور محض دې نو بیا به د امتحان او د تکلیف معنی هیڅ هم نه وی، هغوی لیکی چه څوک د دې لازم اعتراف اوکړی د دې نه نو هغه به کافر وی، او څوک چه د دې لازم اعتراف نه کوی بلکه داسې وائی چه زمونږ د بنده نه د قدرت نفی کول هغه د الله پاک د قدرت د تعظیم د وجې نه دې چه اصل قدرت د الله پاک دپاره دې د هغه په دې کښې څوک هم شریک نشته نو په دې صورت کښې به هغه مبتدع وی نه کافر.

## الفرق بین القضاء والقدر :

د دې نه پس پیژندل پکار دی چه یو خو دې قضاء او یو دې قدر، علماء کرامو په دې کښې فرق بیان کړې دې په فتح الباری (ص۴۸۶ج۱۱) کښې دی نقلا عن الکرمانی: المراد بالقدر حکم الله وقالوا أي العلماء القضاء هو الحکم الکلي الاجمالي في الازل والقدر جزئیات ذلك الحکم وتفاصیله او فتح الباری کښې بل ځائې کښې دی ۱۵۳/۱۱ القضاء الحکم بالکلیات علی سبیل

الإجمال في الازل والقدر الحكم بوقوع الجزئيات التي لتلك الكليات على سبيل التفصيل اهـ خو په قسطلانی ۹/۳۴۳ کښې د امام راغب نه دا نقل کړې دی : القدر هو التقدير،والقضاء هو التفصل والقطع،فالقَضَاءُ أخصّ من القدر، لأنه الفصل بين التقدير فالقدر كالاساس والقضاء هو التفصيل والقطع، ولهذا لما قال أبو عبيدة لعمر رضي الله عنهما لما أراد الفرار من الطّاعون بالشام أتفرّ من القضاء؟ قال : أفرّ من قضاء الله إلى قدر الله «۲»،تنبيها أنّ القدر ما لم يكن قضاء فمرجوّ أن يدفعه الله،فإذا قضى فلا مدفع له ويشهد لذلك قوله : وَكَانَ أَمْراً مَقْضِيًّا وقوله : كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْماً مَقْضِيًّا تنبيها على أنه صار بحيث لا يمكن تلافيه .....خو دا د فتح الباری نه چه څه تیر شو د هغې برعکس ده تقدیر اجمال او په منزله د بنیاد دې او قضاء په دې بنیاد د اجمال مطابق قطعی طور فیصله کول دی په تفصیل سره او بیا د هغې نه روستو چه هغوی د عمر رضي الله عنه کوم حدیث ذکر کړې دې او آیات قرانیه د هغې نه هم د دې خبرې تائید کیږی.

[۴۶۹۱](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي بِمِنًى، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْقَدَرِيَّةُ مَجُوسُ هَذِهِ الْأُمَّةِ إِنْ مَرِضُوا فَلَا تَعُودُوهُمْ وَإِنْ مَاتُوا فَلَا تَشْهَدُوهُمْ".

حضرت ابن عمر رضي الله عنه بیان کوی،نبی ﷺ اوفرمائیل :"قدریه (د تقدیر نه انکار کولو واله) د دې امت مجوسیان دی - که چرې بیمار شی نو د هغوی د عیادت دپاره مه ځئ او که چرې مړهٔ شی نو په جنازه کښې ئې شرکت مهٔ کوئ-"

**قوله:**( عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « الْقَدَرِيَّةُ مَجُوسُ هَذِهِ الأُمَّةِ إِنْ مَرِضُوا فَلاَ تَعُودُوهُمْ وَإِنْ مَاتُوا فَلاَ تَشْهَدُوهُمْ »)

قدریه د دې امت مجوسیان دی که بیمار شی نو د هغوی پوښتنه مه کوئ او که مړهٔ شی نو جنازه پرې مه کوئ، په دې حدیث کښې قدریه لره د مجوسو سره تشبیه ورکړې شوې ده ځکه چه هغوی خالق د خیر خو الله پاک منی او خالق د شر عبد لره ګویا هغوی د تعدد خالق قائل شو څنګه چه مجوس د تعدد خالق قائل دی، وئیلې شوې دی چه هغه د اصلین قائل دی چه دوه څیزونه اصل دی نور او ظلمت، خیر منسوب کوی نور ته او شر منسوب کوی تیرې ته، او دغه شان هم مشهوره ده چه هغوی د دوه څیزونو قائل دی د یزدان او اهرمن، د یو طرف ته خیر منسوب کوی یعنی د یزدان طرف ته او د اهرمن طرف ته شر منسوب کوی.

[۴۶۹۲](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عُمَرَ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عُمَرَ مَوْلَى غُفْرَةَ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِكُلِّ أُمَّةٍ مَجُوسٌ، وَمَجُوسُ هَذِهِ الْأُمَّةِ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا قَدَرَ، مَنْ مَاتَ مِنْهُمْ فَلَا تَشْهَدُوا جَنَازَتَهُ، وَمَنْ مَرِضَ مِنْهُمْ فَلَا تَعُودُوهُمْ وَهُمْ شِيعَةُ الدَّجَّالِ وَحَقٌّ عَلَى اللَّهِ أَنْ يُلْحِقَهُمْ بِالدَّجَّالِ".

دحضرت حذیفه رضي الله عنه نه مروی دی،رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " د هر امت مجوسیان وی او

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۷۰۸۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۸۶۷۲) (حسن)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۳۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۰۶۷۵) (ضعيف)

ددې امت مجوسیان هغه دی کوم چې د تقدیر نه منکر دی. په دوی کښې چې څوک مړه شي نو د هغوی په جنازه کښې مهٔ شامیلیږئ او چې کوم بیمار شي نو عیادت له ورله مهٔ ځئ. هم دغه خلق به د دجال منونکي وي او په الله باندې حق دی چې دوی په دجال کښې شامل کړی."

**تشریح**: اوددې نه په روستوحدیث کښې کوم چه دحذیفه رضي الله عنه نه روایت کړې شوې دې په هغې کښې دا زیادت دې ﴿ وَهُمْ شِيعَةُ الدَّجَّالِ وَحَقٌّ عَلَى اللَّهِ أَنْ يُلْحِقَهُمْ بِالدَّجَّالِ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائي دقدریه په باره کښې چه هغوی ددجال دجماعت نه دی اودالله پاک دطرف نه دا خبره مقرر ده چه د خروج دجال په وخت به الله پاک دوی هم د هغه سره یو ځائې کوی.

[٤٦٩٣]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ زُرَيْعٍ، وَيَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ حَدَّثَاهُمْ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَوْفٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا قَسَامَةُ بْنُ زُهَيْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ آدَمَ مِنْ قَبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيعِ الْأَرْضِ، فَجَاءَ بَنُو آدَمَ عَلَى قَدْرِ الْأَرْضِ جَاءَ مِنْهُمُ الْأَحْمَرُ، وَالْأَبْيَضُ، وَالْأَسْوَدُ وَبَيْنَ ذَلِكَ وَالسَّهْلُ، وَالْحَزْنُ، وَالْخَبِيثُ، وَالطَّيِّبُ"، زَادَ فِي حَدِيثِ يَحْيَى وَبَيْنَ ذَلِكَ وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ يَزِيدَ.

حضرت موسیٰ اشعری رضي الله عنه بیان اوکړو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله جل جلاله ادم علیه السلام د یو موټې خاورو نه پیدا کړو کومه چې هغه د ټولې زمکې نه راجمع فرمائیلې وه - ددې دپاره د آدم اولاد ددغې خاورې په لحاظ سره شوې دې، څه سرۀ دی، او څه سپین، څه تور دی او څه ددې بین بین - څه نرم خو دی او څه سخت طبیعت واله څه د بد طبیعت مالکان دی او څه د ښه او د عمده طبیعت واله - " د یحییٰ بن سعید په روایت کښې اضافه ده: "او څه ددې په مینځ مینځ کښې دی - " یزید (بن زریع) په روایت کښې د (اخبرنا) اضافه استعمال شوې ده.

**قوله**: ﴿ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ آدَمَ مِنْ قَبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيعِ الْأَرْضِ فَجَاءَ بَنُو آدَمَ عَلَى قَدْرِ الْأَرْضِ جَاءَ مِنْهُمُ الْأَحْمَرُ وَالأَبْيَضُ وَالأَسْوَدُ وَبَيْنَ ذَلِكَ وَالسَّهْلُ وَالْحَزْنُ وَالْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ » ﴾

یعنی رسول الله ﷺ فرمائي چه الله پاک ادم علیه السلام پیدا کړو د خاورې د یو موټی نه داسې خاوره کومه چه الله پاک د پوره زمکې نه اخستلې وه، او چونکه د زمکې حصې مختلف دی د یو ځائې خاوره یو شان ده د بل ځائې بل شان ده، د رنګ په اعتبار سره هم او د خاصیتونو په اعتبار سره هم، هم دغه شان اولاد آدم علیه السلام هم مختلف شو، بعض بالکل سپین رنګ والا بعض سرۀ او بعض تور، او بعض بین بین، دا خو د رنګ په اعتبار سره فرق شو، او د مزاج او طبیعت په اعتبار سره بعض نرم مزاج او بعض سخت مزاج، بعض نیک سیرت او بعض بد سیرت، او دا هر څه چونکه په تقدیر الهی سره اوشو د چا په تقدیر کښې چه څنګه کیدل لیکلې شوې وو، هم په دې وجه دا حدیث مصنف رحمه الله په باب القدر کښې راوړلې دې.

والحدیث اخرجه الترمذی وقال حسن صحیح، قاله المنذری.

[1]: سنن الترمذي/تفسير القرآن ٣ (٢٩٥٥)، (تحفة الأشراف: ٩٠٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٠/٤، ٤٠٦) (صحيح)

[٤٦٩٤]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ مَنْصُورَ بْنَ الْمُعْتَمِرِ يُحَدِّثُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حَبِيبٍ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ السُّلَمِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ رضى الله عنه، قَالَ: "كُنَّا فِي جَنَازَةٍ فِيهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَقِيعِ الْغَرْقَدِ، فَجَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَلَسَ وَمَعَهُ مِخْصَرَةٌ فَجَعَلَ يَنْكُتُ بِالْمِخْصَرَةِ فِي الْأَرْضِ، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ، فَقَالَ: مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ مَا مِنْ نَفْسٍ مَنْفُوسَةٍ إِلَّا كَتَبَ اللهُ مَكَانَهَا مِنَ النَّارِ أَوْ مِنَ الْجَنَّةِ، إِلَّا قَدْ كُتِبَتْ شَقِيَّةً أَوْ سَعِيدَةً، قَالَ: فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ: يَا نَبِيَّ اللهِ أَفَلَا نَمْكُثُ عَلَى كِتَابِنَا وَنَدَعُ الْعَمَلَ فَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ السَّعَادَةِ لَيَكُونَنَّ إِلَى السَّعَادَةِ، وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الشِّقْوَةِ لَيَكُونَنَّ إِلَى الشِّقْوَةِ، قَالَ: اعْمَلُوا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ أَمَّا أَهْلُ السَّعَادَةِ فَيُيَسَّرُونَ لِلسَّعَادَةِ، وَأَمَّا أَهْلُ الشِّقْوَةِ فَيُيَسَّرُونَ لِلشِّقْوَةِ، ثُمَّ قَالَ نَبِيُّ اللهِ: فَأَمَّا مَنْ أَعْطَى وَاتَّقَى ۝٥ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَى ۝٦ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَى ۝٧ وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنَى ۝٨ وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَى ۝٩ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَى ۝١٠ سورة الليل آية ٥-١٠".

د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دی چی مونږ د بقیع غرقد په قبرستان کښې یوه جنازه کښې وو په کومه کښې چی رسول الله ﷺ هم وو- رسول الله ﷺ تشریف راوړو او کیناستو، د هغوی په لاس کښې کوتنۍ (همسا) وه - هغوی ﷺ زمکه کنستل شروع کړل- بیا هغوی ﷺ خپل سر مبارک اوچت کړو او وی فرمائیل:- "الله تعالیٰ په تاسو کښې د هر هر نفس مقام په جهنم یا جنت کښې اولیکلو او ددغې په حقله اولیکل شو چی هغه بدبخت دې یا سعادت مند." نو د قوم نه یو کس اووې: اې د الله نبی ﷺ! نو آیا مونږه بیا په دغه لیکلو باندې اونه دریږو او عمل پریږدو- کوم چی په اهل سعادت کښې وی خپل سعادت به واخلی او کوم چی بدبخت وی خپله بدبختی به واخلی - هغوی ﷺ اوفرمائیل: "عمل کوئ- هر چاله توفیق ورکړې شوې دې - نیک بختو له د سعادت په اعمالو کښې توفیق ورکړل کیږی او بدبختانو له د بد بختو اعمالو توفیق میلاویږی-" بیا د الله نبی ﷺ دغه آیات اولوستل: (فاما من اعطیٰ ...فسنیسره للعسری) او چا چی (د الله دپاره مال) ورکړو او تقویٰ ئې اختیار کړه او د نیکۍ تصدیق ئې اوکړو، مونږ هغه ته د آسان منزل توفیق ورکوؤ- او چا چی بخل اوکړو او هغه بې پرواه پاتې شو او نیکی ئې هیره کړه، نو مونږ هغه له د تنګۍ واله د منزل توفیق ورکوؤ-

**قوله:**﴿عَنْ عَلِيٍّ رضى الله تعالى عنه قَالَ كُنَّا فِي جَنَازَةٍ فِيهَا رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– بِبَقِيعِ الْغَرْقَدِ فَجَاءَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَجَلَسَ وَمَعَهُ مِخْصَرَةٌ فَجَعَلَ يَنْكُتُ بِالْمِخْصَرَةِ فِي الْأَرْضِ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ ﴾

## مضمون الحديث:

د سیدنا علی رضی الله عنه نه روایت دې چه مونږ یو ورځ په یو جنازه کښې وو چه په هغې کښې رسول الله ﷺ هم شریک وو د مدینې طیبې په قبرستان بقیع الغرقد کښ، غرقد د یو قسم اونې نوم دې کوم چه هغه وخت په بقیع کښې وه هم په دې وجه د بقیع اضافت د هغې طرف

[1]: صحيح البخاري/الجنائز ٨٢ (١٣٦٢)، تفسير سوره الليل ٣ (٤٩٤٥)، الأدب ١٢٠ (٦٢١٧)، القدر ٤ (٦٦٠٥)، التوحيد ٥٤ (٧٥٥٢)، صحيح مسلم/القدر ١ (٢٦٤٧)، سنن الترمذي/القدر ٣ (٢١٣٦)، والتفسير ٨٠ (٣٣٤٤)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٠ (٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٠١٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد ١/٨٢، ١٢٩، ١٣٢، ١٤٠) (صحيح)

ته کولې شي، لږ ساعت پس رسول الله ﷺ هم تشریف راوړلو یعنی په کوم ځائې کښې چه مونږ ناست وو، رسول الله ﷺ هم مونږ سره هلته کیناستلو هغه وخت د هغوی په لاس کښې یو چوکه وه پس هغوی په ناسته ناسته په هغې باندې زمکه کنستل شروع کړل، لکه څنګه د څه سوچ په وخت انسان عادة داسې کوی، پس هغوی لږ ساعت پس سر مبارک اوچت کړو او دا مضمون ئې اوفرمائیلو د تقدیر متعلق : په تاسو کښې هیڅ یو ساه لرونکې نه دې پیدا شوې مګر الله پاک د هغه استوګنه یا په جنت کښې لیکلې ده او یا په دوزخ کښې، او دا چه هغه سړې به نیک بخت او که بدبخت وی، چونکه د صحابه کرامو ﷢ د رسول الله ﷺ په هر قول باندې یقین کامل وو او د هرې خبرې نه به ئې هم هغه شان اثر اخستلو د کوم قسم چه به هغه مضمون وو په دې وجه یو صحابی ﷛ د هغوی نه د تقدیر په دې مضمون اوریدلو باندې تپوس اوکړو چه آیا مونږ په خپل تقدیر او د الله پاک لیکلې خبره باندې اعتماد کولو سره هسې نه کینو او د خپل طرف نه عمل پرینږدو، د چا په قسمت کښې چه سعادت لیکلې وی هغه به خپل انجام اوګوری او د چا په تقدیر کښې چه شقاوت وی هغه به خپلې استوګنې ته اورسیږی، دا سوال دې صحابی په تقدیر باندې د کمال ایمان د وجې نه اوتپوسلوؤ، خو چونکه دا ئې هم په ذهن کښې راغله چه زما دا رائې غلطه نه وی نو راځه چه د رسول الله ﷺ نه په دې باره کښې ځان پوهه کړم، پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د کومو اعمالو تاسو مکلف یئ د الله پاک د طرف نه هغه کوئ، د چا په تقدیر کښې چه الله پاک څه لیکلې وی جنت یا دوزخ د هغه دپاره به الله پاک هم هغه شان اعمال اختیارول آسان اوفرمائی. د چا په تقدیر کښې چه جنت دې هغوی ته به د جنت د اعمالو توفیق او تیسر ورکړی او د چا په مقدر کښې چه جهنم دې هغه به هم هغه شان اعمال کوی، یعنی مونږ له دا نه دی کتل پکار چه زمونږ په تقدیر کښې څه دی هغه خو الله پاک ته معلوم دی بلکه مونږ خو به دا ګورو چه مونږ په کوم څیز باندې مکلف یو لهذا د خپل طرف نه د هغې کوشش پکار دې، انجام د الله پاک په لاس کښې دې. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

[٤٦٩٥](١) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا كَهْمَسٌ، عَنْ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، قَالَ: كَانَ أَوَّلَ مَنْ تَكَلَّمَ فِي الْقَدَرِ بِالْبَصْرَةِ مَعْبَدٌ الْجُهَنِيُّ، فَانْطَلَقْتُ أَنَا، وَحُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحِمْيَرِيُّ حَاجَّيْنِ أَوْ مُعْتَمِرَيْنِ، فَقُلْنَا: لَوْ لَقِينَا أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْنَاهُ عَمَّا يَقُولُ هَؤُلَاءِ فِي الْقَدَرِ فَوَفَّقَ اللَّهُ لَنَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ دَاخِلًا فِي الْمَسْجِدِ فَاكْتَنَفْتُهُ أَنَا وَصَاحِبِي، فَظَنَنْتُ أَنَّ صَاحِبِي سَيَكِلُ الْكَلَامَ إِلَيَّ فَقُلْتُ: أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ إِنَّهُ قَدْ ظَهَرَ قِبَلَنَا نَاسٌ يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ وَيَتَقَفَّرُونَ الْعِلْمَ يَزْعُمُونَ أَنْ لَا قَدَرَ وَالْأَمْرَ أُنُفٌ، فَقَالَ: إِذَا لَقِيتَ أُولَئِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنِّي بَرِيءٌ مِنْهُمْ وَهُمْ بُرَآءُ مِنِّي وَالَّذِي يَحْلِفُ بِهِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ لَوْ أَنَّ لِأَحَدِهِمْ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا، فَأَنْفَقَهُ مَا قَبِلَهُ اللَّهُ مِنْهُ حَتَّى يُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ، ثُمَّ قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ، شَدِيدُ سَوَادِ الشَّعْرِ لَا يُرَى عَلَيْهِ أَثَرُ السَّفَرِ، وَلَا نَعْرِفُهُ

١): صحيح مسلم/الإيمان ١ (٨)، سنن الترمذي/الإيمان ٤ (٢٦١٠)، سنن النسائي/الإيمان ٥ (٤٩٩٣)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٦٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٥٧٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الإيمان ٣٧ (٥٠)، تفسير سورة لقمان ٢ (٤٧٧٧)، مسند احمد (١/٢٧، ٢٨، ٥١، ٥٢) (صحيح)

حَتَّى جَلَسَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْنَدَ رُكْبَتَيْهِ إِلَى رُكْبَتَيْهِ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ وَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِسْلَامِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْإِسْلَامُ أَنْ تَشْهَدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، وَتُقِيمَ الصَّلَاةَ، وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ، وَتَصُومَ رَمَضَانَ، وَتَحُجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَعْتَ إِلَيْهِ سَبِيلًا، قَالَ: صَدَقْتَ، قَالَ: فَعَجِبْنَا لَهُ يَسْأَلُهُ وَيُصَدِّقُهُ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِيمَانِ، قَالَ: أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ، وَمَلَائِكَتِهِ، وَكُتُبِهِ، وَرُسُلِهِ، وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ، قَالَ: صَدَقْتَ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِحْسَانِ، قَالَ: أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ، فَإِنَّهُ يَرَاكَ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ، قَالَ: مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ، قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَاتِهَا، قَالَ: أَنْ تَلِدَ الْأَمَةُ رَبَّتَهَا، وَأَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ يَتَطَاوَلُونَ فِي الْبُنْيَانِ، قَالَ: ثُمَّ انْطَلَقَ فَلَبِثْتُ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ: يَا عُمَرُ هَلْ تَدْرِي مَنِ السَّائِلُ؟ قُلْتُ: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: فَإِنَّهُ جِبْرِيلُ أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ دِينَكُمْ".

یحیی بن یعمر رحمه الله بیان اوکړو چې (په مسلمانانو کښې) د ټولو نه وړاندې چا د تقدیرنه انکار اوکړو هغه د بصرې معبد جهني وو- ددې دپاره زۀ او حمید بن عبدا لرحمن حمیری د حج یا عمرې دپاره روان شو نو مونږ اووې: کاش چې د رسول الله ﷺ په اصحابو کښې دکوم یو سره هم زمونږه ملاقات اوشی د چا نه چې مونږ د هغو خلقو په حقله تپوس اوکړې شو کوم چې په تقدیر کښې کلام کوی-(انکار کوی) نو دَ الله کول وو، چه هم داسې اوشوه چې حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه مونږته په مسجد کښې د ننوتو سره میلاؤ شو - ددې دپاره ما او زما ملګرې هغه راګاڼ له کړو او ماله خیال راغلو چې زما دوست به ما خبرې ته پریږدی - ددې دپاره ما اووې: اې عبد الرحمن ! (عبدالله بن عمر!) زمونږ نه ګیر چاپیر داسې خلق راپیدا شوي دی کوم چې قرآن لولي او د علم باریکیانی راوباسی- د هغوی خیال دې چې تقدیر هیڅ څیزنۀ دې او معاملات هم داسې کیږی- نو هغوی اووې: چې کله تاسو هغوی سره میلاؤ شئ نو هغوی ته اووائې چې زه (عبدالله بن عمر) د هغوی نه بری یم او هغوی زما نۀ بری دی- قسم دې په هغه ذات د چا چې عبد الله بن عمر قسم کوی! (دالله تعالی!) په هغوی کښې که څوک د احد د غر هومره سرۀ هم خرچ کړی نو الله بۀ هغه نه قبلوی ترکومې چې هغوی په تقدیر باندې ایمان راؤ نۀ ړی- بیا ئې اووې: ماته حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه بیان اوکړو چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې اچانک یو سړې راغلو د چا جامې چې انتهائی سپینې او ویختۀ ئې انتهائی تور وو، په هغه باندې د سفر څه آثار نه ښکاریدل او په مونږ کښې چا هغه پیژندو هم نه - هغه راغلو او د رسول الله ﷺ په وړاندې کیناستو- هغه خپلې ګونټې (ګودې) د هغوی ﷺ د ګودو سره میلاؤکړې او خپل لاسونه ئې هم د هغوی ﷺ په پتونانو باندې کیښودل او وې وئیل: اې محمد ﷺ ! ماته د اسلام په حقله اووایه؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "اسلام دادې چې تۀ ګواهي ورکړه چې د یو الله نه سیوابل معبود نشته او محمد د الله رسول دې- مونځ قائم کړه، زکواه ورکړه، د رمضان روژې اونیسه او د بیت الله حج اوکړه که چرې تر هغې د رسیدو استطاعت په تا کښې وی-" وې وئیل: تاسو رښتیا اوفرمائیل: مونږ ته په دې باندې ډیر تعجب اوشو چې د هغوی ﷺ نه سوال هم کوی او تصدیق هم کوی- بیا ئې اووې! تاسو ماته د ایمان په حقله اووائیئ؟ هغوی اوفرمائیل:" (ایمان دا دې) چې ته په الله باندې، د هغه په فریښتو باندې، د هغه په کتابونو باندې، د هغه په رسولانو باندې، او د آخرت په ورځ باندې ایمان راوړې

او د تقدير په ښه او بد باندې ايمان راوړې- " هغه اووې : تاسو رښتيا اوفرمائيل- بيا ئې اووې : ما ته د احسان په حقله اووايئ؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل:" د الله عبادت داسې کوه چې ته ګويا هغه وينې، که چرې دغه کيفيت نه وی درحاصل نوچې داوی چې هغه تاګوری-" هغه اووې چې ماته د قيامت په حقله اووايئ؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل:"ددې بابت چې د چا نه تپوس کوې، هغه د تپوس کوونکی نه زيات نه پوهيږی- بيا هغه اووې : ښه ده ماته ددې علامات اووايئ؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل:دا چې وينځه خپل مالک لۀ جنم ورکړی او چې ته وينې چې د پښو او د بدن نۀ بربنډ،فقيران او شپانۀ (ګډی بيزی څرولو واله) لوئ لوئ عمارتونه جوړه وی او د يو بل نه په لوئ والی کښې سبقت يوسی-" بيا هغه لاړو- بيا زۀ (عمر بن خطاب) درې ورځې خاموشه ووم نو هغوی ﷺ اوفرمائيل اې عمر! آيا تۀ خبر يئ هغه سائل څوک وو؟"ما عرض اوکړو:الله اودهغه رسول بهتر پوهيږی- هغوی ﷺ اوفرمائيل: " بې شکه هغه جبريل وو کوم چې تاسو ته ستاسو دَ دين ښودلو دپاره راغلې وو-"

**د فتنه انکار تقدير ابتداء :**

**قوله:**﴿عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ قَالَ كَانَ أَوَّلَ مَنْ تَكَلَّمَ فِي الْقَدَرِ بِالْبَصْرَةِ مَعْبَدٌ الْجُهَنِيُّ فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَحُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحِمْيَرِيُّ حَاجَّيْنِ أَوْ مُعْتَمِرَيْنِ فَقُلْنَا ......... يَزْعُمُونَ أَنْ لاَ قَدَرَ وَالأَمْرُ أُنُفٌ.فَقَالَ إِذَا لَقِيتَ أُولَئِكَ فَأَخْبِرْهُمْ أَنِّي بَرِيءٌ مِنْهُمْ وَهُمْ بُرَآءُ مِنِّي الخ ﴾

د مشکوٰة شريف په شروع کښې چه کوم حديث جبرائيل عليه السلام ذکر کړې شوې دې د سيدنا عمر رضي الله عنه په روايت سره هغې لره د هغوی نه روايت کونکې د هغوی ځوئې عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې، سيدنا عبدالله رضي الله عنه دا حديث د يحيی بن يعمر په سوال باندې بيان کړې وو چا چه د هغوی نه د فرقه قدريه په باره کښې تپوس کړې وو لکه چه دلته په روايت کښې ذکر دی، هغه دا چه يحيی بن يعمر وايی چه په بصره کښې د ټولو نه مخکښې د انکار تقدير مسئله اوچتونکې معبد جهنی وو.په بذل کښې د هغه په باره کښې ليکلې دی : **هو معبد بن عبدالله بن عکيم ويقال ابن عبدالله بن عويم، ويقال ابن خالد** او بيا ئې وړاندې ليکلې دی چه دا سړې د دې فتنې چلونکې وو ، دا سړې د بصرې نه مدينې ته راغلو او هلته راتلو سره ئې خلق په دې عقيده باندې خراب کړل، حسن بصری رحمه الله به فرمائيل : **اياکم ومعبدا فانه ضال مضل،** او دا ئې هم ليکلې دی چه دې تابعی او ثقه دې، په روايت حديث کښې متهم نه وو يعنی اګر چه عقيده ئې غلطه وه خو په روايت کښې معتبر وو ، **قتله الحجاج سنة ثمانين او بعدها،** د صحيحين په رواياتو کښې ډير راويان د عقيدې په اعتبار سره مبتدع وو خو صادقان وو.د مبتدع د روايت څه حکم دې دا اصولی مسئله ده د اصولو په کتابونو کښې ذکر شوې ده، په مقدمه د مشکوٰة کښې هم ذکر ده کم از کم هلته کتل پکار دی.

يحيی بن يعمر وائی چه د دې مسئلې د تحقيق دپاره زه او حميد بن عبدالرحمن حميری د حج يا عمرې په سفر باندې اوتلو ، په مخکښې زمانه کښې به د حج او عمرې سفر د سماع حديث او د تحصيل حديث بلکه د مطلق تحصيل علم لويه ذريعه وه، ځکه چه مکې مکرمې او مدينې طيبې ته به د حج او عمرې او زيارت په غرض باندې د هر ملک نه علماء

فقهاء اومحدثين هلته رارسيدل چه دهغې په وجه باندې به خلقوته ددې حضراتو نه د استفادې موقع ملاويده. يحيى وائي چه مونږ په دې سوچ باندې اوتلو چه كه ديو صحابي سره زمونږ ملاقات اوشو نو د تقدير په باره كښې چه دا خلق څه وائي مونږ به د هغوى نه تپوس كوو، نو د دې مقصد د پوره كولو دپاره الله پاک زمونږ دپاره عبدالله بن عمر ﷺ راوستلو په داسې حال كښې چه هغوى مسجد ته داخليدل (معلومه نه ده چه كوم مسجد مراد دې) د هغوى په ليدو باندې مونږ د هغوى مخې ته ورغلو ښي او ګس طرف ته. يو طرف ته زه او بل طرف ته زما ملګرې. زما چونكه خيال دا وو چه زما ملګرې به ماته د خبرې كولو موقع راكړي (د يو بل د طبيعت نه به خبر وو) پس ما اول سوال اوكړو او د هغوى نه مې دا تپوس اوكړو چه زمونږ په علاقه كښې د څه داسې خلقو ظهور شوې دې چه په هغوى كښې د تلاوت قرآن هم اهتمام دې او هغوى علمي امورو كښې تحقيق هم كوي، او دعوى دا كوي چه تقدير هيڅ څيز نه دې، او وائي چه د هر سړي معامله ناآشنا او نوې ده، يعني هر سړې په خپل عمل او كردار كښې باختيار او مستقل دې، نو هغوى په دې اوريدلو باندې اوفرمائيل چه كه ستاسو د داسې قسم خلقو سره (بيا دپاره) ملاقات اوشي نو هغوى ته زما د طرف نه خبر وركړئ چه زه يعني عبدالله بن عمر ﷺ د هغوى نه بيزاره دې او د هغوى سره تعلق ساتل نه غواړم، او هغوى له هم پكار دى چه زما نه برى او بيزاره شي او هيڅ تعلق دې نه ساتي، او بيا ئې په قسم سره دا خبره اوكړه چه كه داسې عقيده لرونكو كښې څوک د احد برابر سرۀ زر هم د الله پاک لار كښې خرچ كړي نو الله پاک به ئې ترې نه قبول نه كړي ترڅو چه هغه په تقدير باندې ايمان رانه وړي.

### د حديث جبرائيل ﷺ تشريح :

او بيا د دې نه پس د هغې په دليل كښې هغوى هغه حديث بيان كړو كوم چه ئې د خپل پلار عمر بن الخطاب ﷺ نه اوريدلې وو، يعنى هم هغه حديث كوم چه د حديث جبرائيل ﷺ په نوم باندې مشهور دې، چه د هغې مضمون داسې دې: چه يوه ورځ مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضر وو چه ناڅاپه يو سړې مجلس ته راغلو چه د هغه حال دا وو چه د ډيرو صفا او سپينو جامو والا وو، او د ډيرو تورو ويښتو والا، يعنى ځوان چه په هغه باندې د سفر هيڅ اثر يا ګردو غبار وغيره نه ښكاره كيدل او نه په حاضرينو كښې څا پيژندلو، په دې باندې دا سوال واردېږي چه هغه ته څنګه پته اولګيده چه هغه څا نه پيژندلو، د دې جواب دا دې چه دا خبره به هغوى ته په څه خارجي قرينې سره معلومه شوې وي، پس په بعض رواياتو كښې راځي چه د دې سړي په راتلو باندې حاضرين مجلس يو بل ته كتل شروع كړل (فنظر بعضنا الى بعض) دې صحابه كرامو ﷺ ته تعجب په دې خبره وو چه مقامي سړې خو دا دې نه او ښكاره ده چه د لرې نه راغلې دې چه د هغې تقاضا دا ده چه د لرې راتلو اثرات ګردوغبار وغيره اثر د هغه په جامه باندې كيدل پكار دى حال دا چه هغه هم نشته تر دې چه هغه د رسول الله ﷺ په خوا كښې كيناستلو او خپل زنګونان ئې د رسول الله ﷺ د زنګونانو سره يو ځائې كړل او په زنګونانو كيناستلو سره ئې خپل لاسونه په خپلو

پتونانو باندې کيخودل د ادب د وجې نه، يا د رسول اللهﷺ په پتونانو باندې، وهو الراجح لرواية النسائی ...او داسې کيناستلو نه پس ئې پرله پسې څو تپوسونه اوکړل، اول سوال د اسلام په باره کښې، نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل : الإِسْلاَمُ أَنْ تَشْهَدَ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَتُقِيمَ الصَّلاَةَ وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ وَتَصُومَ رَمَضَانَ وَتَحُجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَعْتَ إِلَيْهِ سَبِيلاً قَالَ صَدَقْتَ.قَالَ فَعَجِبْنَا لَهُ يَسْأَلُهُ وَيُصَدِّقُهُ ﴾ رسول اللهﷺ چه کله د اسلام په باره کښې اوفرمائيل چه د اسلام مصداق دا دې نو هغه اوريدلو سره اوئيل چه تاسو صحيح اوفرمائيل، په دې باندې راوی وائی چه مونږ د هغه په دې طرز باندې تعجب اوکړو چه سوال هم کوی او هم په هغې کښې د رسول اللهﷺ تصديق هم کوی، تعجب ځکه دې چه تصديق په هغه څيز کښې کولې شی کوم چه انسان ته معلوم وی او د سوال تقاضه دا ده چه هغه په هغې باندې نه پوهيږی، نو ګويا اجتماع د ضدين شوه، ﴿ قال فاخبرنی عن الايمان ﴾ يعنی د اسلام نه پس ئې د ايمان تعريف معلوم کړو، ﴿ قال أَنْ تُؤْمِنَ بِاللَّهِ وَمَلاَئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ قَالَ صَدَقْتَ ﴾ دلته هم هغه شان اوشو چه د ايمان د تعريف اوريدلو نه پس هغه د رسول اللهﷺ تصديق اوکړو، دلته يو طالب علمانه سوال دا دې چه د ايمان په تعريف کښې د ايمان لفظ راوړلې شوې دې ﴿ ان تومن بالله الی اخره ﴾ نو دا تعريف بالمجهول شو، جواب دا دې چه ايمان کوم چه معرَّف دې هغه ايمان اصطلاحی دې، او په تعريف کښې چه کوم لفظ ايمان ذکر دې د دې نه لغوی معنی مراد ده يعنی تصديق ﴿ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ الإِحْسَانِ ﴾ دريم سوال دې سړی د رسول اللهﷺ نه د احسان په باره کښې اوکړو چه احسان څه ته وائی يعنی هم هغه احسان دکوم ذکر چه په قرآنی ايتونو او احاديثو کښې په کثرت سره راځی ﴿ ان الله يامر بالعدل والاحسان، وبالوالدين احسانا، ان الله يحب المحسنين وغيره وغيره ﴾ نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل : ﴿ أَنْ تَعْبُدَ اللَّهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ﴾ چه احسان دا دې چه ته د الله پاک عبادت داسې اوکړې ګويا ته هغه وينې يعنی ډير غوره، په توجه سره، ځکه چه غلام چه د آقا په ليدو باندې کوم کار کوی هغه ډير مزيدار کوی د هغه د خوشحالولو دپاره په خلاف د هغه کار کوم چه يو غلام د آقا په غير موجودګئ کښې کوی هغه دومره غوره نه وی، وړاندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ ﴾ يعنی که ته هغه نه وينې نو هغه خو تا وينی، د دې جملې په تشريح کښې د شارحينو دوه قوله دی يو دا چه په عبادت کښې دوه مقامونه دی، مقام مشاهده، او مقام مراقبه، په اول جمله کښې مقام مشاهده ذکر ده کومه چه ډيره اوچته ده او په دويمه جمله کښې مقام مراقبه ذکر ده چه د هغې درجه د مخکښې نه کمه ده، ځکه چه مقام مشاهده خو دا ده چه داسې عبادت اوکړې شی چه ګويا په حقيقت کښې معبود وينی، او دويم مقام دا دې چه کم از کم دا سوچ اوکړی چه الله پاک خو ماوينی اګر چه زه هغه نه وينم، يعنی اول رسول اللهﷺ په عبادت کښې د اعلی درجې د حاصلولو په باره کښې اوفرمائيل او بيا دا چه که دا او نه شی نو بيا کم از کم دا دويمه درجه کيدل پکار دی او

دویم قول په دې کښې دا دې کوم ته چه زمونږ مشائخو ترجیح ورکړې ده چه په دې حدیث کښې دوه مقامونه نه دی ذکر بلکه د اول مقام د حصول دپاره په دویمه جمله کښې د هغې تائید او تقویت کړې شوې دې او هغه داسې چه مونږ چه دا اووې چه د الله پاک عبادت دې داسې اوکړې شی لکه ته چه هغه وینې نو په دې باندې دا سوال اوشو چه کله مونږ هغه وینو فی الواقع نو بیا داسې عبادت څنګه کولې شو کوم چه د لیدو په وخت کښې وی نو بیا رسول اللهﷺ د دې وجه باندې پوهه ورکړه چه د مولې د لیدو په وخت کښې چه کوم کار غوره او بهتر وی د هغې وجه څه ده آیا زمونږ هغه ته کتل یا د هغه مونږ ته لیدل، د دې جواب ښکاره دې چه زمونږ کتل د دې غوره والی باعث نه دې بلکه د مولی سونږ لره لیدل، نو رسول اللهﷺ فرمائی چه دا خبره خو هر وخت حاصله ده یعنی د الله پاک مونږ لره کتل چه د هغې مثال دا دې چه که یو مزدور کار کوی د مولې په غیبت کښې یعنی چه کله مولی هغه ته مخامخ نه وی او مزدور هغه نه وینی، خو مزدور ته دا معلومه وی چه پورته په روشن دان کښې زما مالک ماته په کار کولو باندې بار بار ګوری نو په دې صورت کښې به هم هغه غلام هغه کار هم هغه هومره ښه کوی څنګه چه ئې د هغه د لیدو په وخت کولو، د دې مثال نه معلومه شوه چه د مزدور په کار کښې د غوره والی باعث د مزدور مولی لیدل نه دی بلکه د مولی مزدور لیدل دی، پس د حدیث دا جمله ثانیه د جمله اولی دپاره تعلیل او د هغې تاکید دې.او بعض صوفیاء په دې حدیث کښې یو بله نکته پیدا کړه هغه دا چه ﴿ فان لم تکن تراه ﴾ دا مستقل جمله شرطیه ده چه په هغې کښې جزاء هم ذکر ده او په دې کښې اشاره ده د فنا طرف ته چه که ته خپله هستی فنا کړې نو هغه به اوینې، او د دې نه پس ﴿ فانه یراک ﴾ مستقل جمله ده چه چونکه الله پاک د عباد د احوال نه واقف دې لهذا څوک چه ځان د هغه دپاره فنا کړی نو الله پاک به هغه ته دا مرتبه د مشاهدې ورکړی، خو دا مطلب د قواعد عربیه نه بالاتر کیدو سره کیدې شی.

﴿ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ ﴾ دا خلورم تپوس د قیامت په باره کښې دې یعنی د قیامت د وخت د تعین په باره کښې چه د هغې په باره کښې رسول اللهﷺ لا علمی ښکاره کړه او وې فرمائیل : ﴿ مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ ﴾ ای لیس الذی سئل عن وقت قیام الساعة باعلم من السائل، چه د چا نه د قیامت د وخت د تعین په باره کښې تپوس کولې شی هغه په دې کښې د سائل نه زیات نه دې خبر بلکه دواړه د هغې په عدم معرفت کښې برابر دی، د ﴿ لستُ اعلم بذلک ﴾ په ځائې چه رسول اللهﷺ کومه لویه جمله استعمال اوفرمائیله په هغې کښې علماء کرامو دا نکته لیکلې ده چه په دې کښې اشاره ده دې خبرې طرف ته چه دا مسئله داسې ده چه که د دې سائل هر څوک وی او هم دغه شان مسئول هم یعنی د چا نه چه تپوس کولې شی هغه که هر څوک وی په هر ځائې کښې به جواب یو وی یعنی عدم علم، څکه چه په قرآن کریم کښې تصریح راغلې ده چه د هغې علم سوا د الله پاک نه چاته هم نشته، په مرقاة کښې لیکلې دی چه د قیامت په باره کښې هم دغه شان سوال او جواب د حضرت عیسی او جبرائیل علیهما السلام ترمینځه هم راپیښ شوې وو خو په هغې کښې

سائل عیسی علیه السلام او مسئول جبرائیل علیه السلام وو نو د عیسی علیه السلام په دې سوال باندې هغوی خپل لاسونه (وزرې) اوخوزول او وې فرمائیل: مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ، دا خبره هغوی د امام شعبی رحمه الله نه نقل کړې ده.

**قوله:** ﴿ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَاتِهَا قَالَ أَنْ تَلِدَ الأَمَةُ رَبَّتَهَا ﴾ چه کله رسول الله ﷺ د قیامت د وقوع په باره کښې د علم نفی اوفرمائیله نو هغه عرض اوکړو چه بیا کم از کم د هغې علامات بیان کړئ، نو په دې سوال باندې رسول الله ﷺ دلته د قیامت دوه علامت بیان کړل، او دا هغه علامات دی کوم چه په کتاب الفتن کښې د امارات الساعة په بیان کښې نه دی ذکر شوی، اول علامت چه وینځې به خپلې میاندې اوزیږوی، دا جمله د جوامع الکلم نه ده، په ډیرو طریقو باندې د دې شرحې شوې دی یو دا چه په دې سره اشاره عقوق الوالدین ته ده او د وینځو نه مراد میاندې دی یعنی د زنانو نه به داسې اولاد پیدا کیږی چه هغه به ورسره داسې معامله کوی لکه مالک چه د خپلې وینځې سره کوی، د تحقیر او تنقیص، یو معنی ئې دا لیکلې ده چه په دې سره کثرت سراری طرف ته اشاره ده، سراری جمع د سریه ده او سریه وائی هغه وینځې ته کوم چه انسان د خپل ځان سره د وطی دپاره ساتی او د هغې نه ام ولد جوړه کړی، او تشریح د دې دا ده چه په اسلام کښې به په کثرت سره فتوح اوموندلې شی چه په هغې سره به د خلقو په حصه کښې په کثرت سره وینځې راشی د کومو نه چه به هغوی ام ولد جوړوی او د ام ولد وینځې نه چه به کوم اولاد پیدا کیږی نو چونکه هلته ماشوم د هغې د حریت ذریعه جوړیږی په دې وجه د هغې د ماشوم نه په رب سره تعبیر اوکړې شو او چونکه دا کثرت سراری به حاصلیږی په اسلام کښې د کثرت فتوح او د هغه د کمال عروج او ترقئ په وخت او د ځیز خپل کمال ته رسیدل دا علامت وی د هغه خپل انتهاء ته د رسیدو، (هرکمالے راز والے) او لکه څنګه چه په سورة نصر کښې دی ﴿ ورایت الناس یدخلون فی دین الله افواجا ﴾ چه په روایاتو کښې راځی چه په دې آیت کریمه کښې اشاره ده د امهات الاولاد د بیع طرف ته کومه چه بالاتفاق ناجائز ده ګویا اشاره ده کثرت جهل طرف ته، او دا معنی د دې حدیث په دې طریقه شوه چه کله سړې د خپل ولد بیع کوی نو هغه ام ولد به په خرڅیدو خرڅیدو مختلفو لاسونو ته لاړه شی تر دې چه څه موده پس به دې ته هم خبره اورسی چه د دې ام ولد چه کوم بچې وو کوم چه خپل پلار سره پاتې شوې وو هغه به غټیدو سره دې مور لره یو وینځه ګنړلو سره واخلی، نه به هغه وینځې ته معلومه وی چه دا زما ځوئې دې او نه به دې ځوی ته خبر وی چه دا زما مور ده نو دې به د هغې په اخستلو باندې د هغې رب شی، او دلته به دا خبره صادقه شی چه وینځې خپل رب او مولی زیږولې دې.

**قوله:** ﴿ وَأَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ يَتَطَاوَلُونَ فِي الْبُنْيَانِ ﴾ دویم علامت رسول الله ﷺ دا بیان اوفرمائیلو چه تاسو به غریبانان او فقیر قسم خلق چه ګډې بیزې څرونکې به وی اوینئ چه په لوړو لوړو آبادو باندې به فخر کوی، حفاة جمع د حافی ده یعنی پښې ابله او پیزار ورسره نه وی، عراة جمع د عاری ده، یعنی بربنډ چا سره چه پوره جامه هم نه وی عالة

جمع د عائل یعنی فقیر، رِعاء په کسرې د راء او مد سره جمع د راعی ده یعنی شپونکې الشاء جمع د شاة ده، بنیان آبادئ، تطاول په معنی د تفاخر، یعنی کم مرتبه او کم حیثیت والا خلق به دنیوی مناصب حاصلولو سره مالداری او ریاست حاصل کړی او لوړ لوړ کورونه به جوړوی.

**قوله:** ﴿ ثُمَّ انْطَلَقَ فَلَبِثْتُ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ يَا عُمَرُ هَلْ تَدْرِی مَنِ السَّائِلُ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهُ جِبْرِيلُ أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ دِينَكُمْ ﴾ د حدیث راوی سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه فرمائی چه د دې سوال او جواب نه پس هغه سائل لاړو او مجلس ختم شو، بیا درې ورځې زه ایسار اوم یعنی د دې قصې نه درې ورځې پس رسول الله ﷺ په مونږ باندې راتیر شو او تر اوسه پورې مونږ د هغوی نه د دې سائل په باره کښې تپوس نه وو کړې چه دا سائل څوک وو. د درې ورځو د تیریدو نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اې عمر تاته معلومه هم ده چه دا سائل څوک وو؟ ما عرض اوکړو الله او د هغه رسول ښه پوهیږی.نو هغوی اوفرمائیل چه هغه جبرائیل علیه السلام وو تاسو ته ستاسو د دین ښودلو دپاره راغلې وو، د سوالاتو جواب ورکونکې او ښودونکې خو رسول الله ﷺ وو خو چونکه جبرائیل علیه السلام د دې تعلیم ذریعه شو په دې وجه د تعلیم نسبت رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیلو او بیا دا هم ده چه هغه ښه ښه تپوسونه اوکړل، او د رسول الله ﷺ د جواباتو تصدیق ئې هم اوکړو، په دې حیثیت سره هغه هم معلم شو، او ښه ښه سوالونه کول دا هم دعلم او قابلیت خبره ده، مشهوره ده چه ﴿ حسن السوال نصف العلم ﴾ د دې حدیث نه دې خبرې طرف ته هم اشاره ملاویږی چه ایمان او اسلام واحد نه دی بلکه په دواړو کښې فرق دې، دا هم یو مستقل بحث دې چه په هغې باندې علماء کرامو کلام کړې دې، د حدیث شارحینو هم او متکلمینو هم او د چا استقرار هم په یو رائې باندې نه معلومیږی، په دې وجه مونږ هغه پریخودلو، لعل الله یحدث بعد ذلک امرا.

## د اسلام اطلاق صرف په دین محمدی ﷺ باندې کیږی:

په حاشیه د بذل کښې دلته یو بلې اختلافی مسئلې طرف ته اشاره کړې ده هغه دا چه د لفظ اسلام اطلاق په ټولو ملل سماویه سابقه حقه یعنی قبل التحریف باندې کیدې شی یا که صرف د دین محمدی سره خاص دې؟ په دې باندې په تفصیل سره کلام په الفتاوی الحدیثیة لابن حجر المکی کښې ذکر شوې دې صفحه ۷۷ ابن صلاح قول اول ته ترجیح ورکړې ده او نورو حضراتو چه په هغوی کښې علامه سیوطی رحمه الله هم دې هغوی قول ثانی ته ترجیح ورکړې ده، هغه دا چه په اسلام سره امم سابقه موصوف نه دی سوا د انبیاء نه، او دا د دې امت [1] خصوصی شرف دې چه کوم صفت د انبیاء سابقین علیهم السلام وو هغه دې امت ورکړې شو، تشریفا لهذه الامة وتکریما، او علامه سیوطی رحمه الله په دې باندې تفصیلی کلام کړې دې یعنی د دې په دلائلو کښې، بعض د هغې نه دا دی، ﴿ هو سماکم المسلمین ﴾ او هم دغه شان د الله پاک قول ﴿ ورضیت لکم الاسلام دینا ﴾ هغوی لیکی: وهو ظاهر فی الاختصاص بهم لان تقدیمه

[1] یعنی د دین محمدی نوم اسلام تجویز کول

يستلزمه، ويفيد انه لم يرضه لغيرهم، كما يقتضيه كلام اهل البيان الخ ...يعنى د لكم تقديم په الاسلام باندې تخصيص لره مقتضى دې چه دا لقب مونږ صرف ستاسو دپاره غوره كړې دې. والحديث اخرجه مسلم والترمذى والنسائى وابن ماجه، قاله المنذرى.

**قوله:** ﴿حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى﴾ دا حديث او د دې نه پس چه كوم راروان دې ﴿حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ﴾ دا د تير شوې حديث طريق دى په دې دواړو طريق كښې چه كوم زيادت دې مصنف رحمه الله صرف هم هغه ذكر كړې دى، په اول كښې دا زيادت دې: ﴿وَسَأَلَهُ رَجُلٌ مِنْ مُزَيْنَةَ أَوْ جُهَيْنَةَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فِيمَا نَعْمَلُ أَفِي شَيْءٍ قَدْ خَلاَ أَوْ مَضَى أَوْ شَيْءٍ يُسْتَأْنَفُ الآنَ قَالَ «فِي شَيْءٍ قَدْ خَلاَ وَمَضَى»﴾ يعنى، يو مزنى يا جهنى سړى د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه يا رسول الله ﷺ! په څنګه كارونو كښې مونږ لګيا يو، آيا داسې كارونه چه د هغې فيصله شوې ده؟ يا په داسې كارونو كښې كوم چه اوس كيږى، يعنى بغير د څه سابقه فيصلې نه، رسول الله ﷺ اوفرمائيل: بلكه په داسې كارونو كښې كوم چه تير شوې دى او د هغې فيصله شوې ده. او په ديم طريق كښې د اسلام په تعريف كښې د نورو عبادأتو سره اغتسال من الجنابة هم ذكر دې.

[٤٦٩٦](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ غِيَاثٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، وَحُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالاَ: لَقِينَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ فَذَكَرْنَا لَهُ الْقَدَرَ وَمَا يَقُولُونَ فِيهِ فَذَكَرَ نَحْوَهُ زَادَ، قَالَ: وَسَأَلَهُ رَجُلٌ مِنْ مُزَيْنَةَ أَوْ جُهَيْنَةَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فِيمَا نَعْمَلُ أَفِي شَيْءٍ قَدْ خَلاَ أَوْ مَضَى أَوْ فِي شَيْءٍ يُسْتَأْنَفُ الآنَ؟ قَالَ: فِي شَيْءٍ قَدْ خَلاَ، وَمَضَى، فَقَالَ الرَّجُلُ أَوْ بَعْضُ الْقَوْمِ: فَفِيمَ الْعَمَلُ؟ قَالَ: إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يُيَسَّرُونَ لِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ، وَإِنَّ أَهْلَ النَّارِ يُيَسَّرُونَ لِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ.

حضرت يحيى بن يعمر او حميد بن عبدالرحمن بيان اوكړو چې مونږ د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه سره ميلاؤ شو او د هغه سره مو د تقدير او د نورو مسائلو كوم چې هغه خلقو وئيل، دريافت مو كړل... نو د مذكوره بالا حديث په رنګ ئې ذكر كړل او مزيد ئې اوويې: د مزينه يا جهينه يو سړى د هغوى ﷺ نه تپوس اوكړو: اې د الله رسوله! مونږ عمل په كوم بناء باندې كوؤ؟ آيا په هغه څيز كښې چه هغه ټول طې شوې دى يا دا اوګڼړو چې معامله نوې ده؟ هغوى ﷺ اوفرمائيل: "دغه اوګڼړئ چې هر څۀ طې شوې دى-" [ يعنى هر څه تير شوې دى ] نو د قوم نه يو كس اوويې: نو بيا عمل ولې دې؟" هغوى ﷺ اوفرمائيل: بې شكه جنتيانو ته داهل جنت د عملونو توفيق وركول كيږى او اهل دوزخ ته د اهل جهنم د عملونو توفيق وركول كيږى-

[٤٦٩٧](2) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَلْقَمَةُ بْنُ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنِ ابْنِ يَعْمَرَ بِهَذَا الْحَدِيثِ يَزِيدُ وَيَنْقُصُ، قَالَ: فَمَا الإِسْلاَمُ؟ قَالَ: إِقَامُ الصَّلاَةِ وَإِيتَاءُ الزَّكَاةِ وَحَجُّ الْبَيْتِ وَصَوْمُ شَهْرِ رَمَضَانَ وَالاِغْتِسَالُ مِنَ الْجَنَابَةِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: عَلْقَمَةُ مُرْجِئٌ.

1): تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٥٧٢) (صحيح)
2): تفرد به أبو داود، لنظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٥٧٢) (صحيح)

حضرت سلیمان بن بریده د ابن یعمر نه دغه روایت نقل کړو چې په هغې کښې څه کمې بیشې دي (د هغه په الفاظو کښې -) وې وئیل : اسلام څه دې؟ وې فرمائیل :"مونځ قائمول، زکوه ورکول، د بیت الله حج کول، د رمضان روژې نیول، او د جنابت نه غسل کول-امام ابو داود رحمه الله اووې چې د علقمه (بن مرثد) تعلق د فرقه مرجئه سره وو-

[٤٦٩٨]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ أَبِي فَرْوَةَ الْهَمْدَانِيِّ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَا: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْلِسُ بَيْنَ ظَهْرَيْ أَصْحَابِهِ، فَيَجِيءُ الْغَرِيبُ، فَلَا يَدْرِي أَيُّهُمْ هُوَ حَتَّى يَسْأَلَ، فَطَلَبْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَجْعَلَ لَهُ مَجْلِسًا يَعْرِفُهُ الْغَرِيبُ إِذَا أَتَاهُ، قَالَ: فَبَنَيْنَا لَهُ دُكَّانًا مِنْ طِينٍ، فَجَلَسَ عَلَيْهِ وَكُنَّا نَجْلِسُ بِجَنْبَتَيْهِ، وَذَكَرَ نَحْوَ هَذَا الْخَبَرِ فَأَقْبَلَ رَجُلٌ فَذَكَرَ هَيْئَتَهُ حَتَّى سَلَّمَ مِنْ طَرَفِ السِّمَاطِ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُحَمَّدُ، قَالَ: فَرَدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د حضرت ابو ذر او د حضرت ابو هریره رضی الله عنهما بیان دې چې رسول الله ﷺ د خپلو اصحابو په مینځ کښې به ناست وو - ددې دپاره که چرې څوک نوې سړې به راتللو نو هغه سړی به هغوی ﷺ نۀ شو پیژندلې حتیٰ چې د هغوی ﷺ متعلق به ئې تپوس کولو (چې رسول الله ﷺ څوک دې؟) نو مونږ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چې د تاسو دپاره خاص ځائ جوړه وو ځکه چې نوې کس چې کله راځی نو چې تاسو پېژنی- ددې دپاره مونږه یوه د خاورو چبوتره (چونتره) جوړه کړه او هغوی ﷺ به په هغې باندې کیناستل - او د مذکوره بالا خبر (حدیث) په رنګ ئې بیان اوکړو نو یو کس راغلو او د هغې شکل او صورت ئې بیان کړو، حتیٰ چې هغه د جماعت د یو طرف نه سلام اوکړو او وې وئیل : السلام علیک یا محمد! نبی ﷺ د هغه د سلام جواب ورکړو-

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي ذَرٍّ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالاَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَجْلِسُ بَيْنَ ظَهْرَىْ أَصْحَابِهِ فَيَجِيءُ الْغَرِيبُ فَلاَ يَدْرِى أَيُّهُمْ هُوَ حَتَّى يَسْأَلَ ﴾

یعنی په شروع کښې به رسول الله ﷺ هم دغه شان د صحابه کرامو ترمینځۀ په مجلس کښې کیناستلو، بغیر د څه امتیازی ځائې نه، نو د بهر نه چه به څوک مسافر راغلو نو هغه ته به د تپوس ضرورت راتلو چه په حاضرینو کښې رسول الله ﷺ کوم دې هم په دې وجه مونږ هغوی ته درخواست اوکړو چه مونږ د هغوی د ناستې دپاره داسې ځائې جوړ کړو چه په هغې سره راتلونکې هغوی پیژنی رسول الله ﷺ د دې اجازت ورکړو ﴿ فَبَنَيْنَا لَهُ دُكَّانًا ﴾ په دې باندې مونږ د هغوی دپاره د خاورې یو لوړ ځائې جوړ کړو چه په هغې باندې رسول الله ﷺ کیناستلو او صحابه کرام رضی الله عنهم به د هغوی نه ګیرچاپیره لاندې.

﴿ وَذَكَرَ نَحْوَ هَذَا الْخَبَرِ ﴾ د هذا الخبر نه مراد هم هغه حدیث جبرائیل علیه السلام دې خو دلته راویان د دې ابوهریره او ابوذرغفاری رضی الله عنهما دی، د دې دواړو په حدیث کښې یو خو د رسول الله ﷺ د ناستې ځائې ته اشاره ده کومه چه په اول حدیث کښې نشته، بل په دې کښې وړاندې تلو

(): وحديث أبي ذر قد أخرجه: سنن النسائي/ الإيمان ٦ (٤٩٩٤)، مختصراً، وحديث أبي هريرة قد أخرجه: صحيح البخاري/الإيمان ٣٨ (٥٠)، تفسير سورة لقمان ٢ (٤٧٧٧)، صحيح مسلم/الأيمان ١ (٩)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٦٤)، (تحفة الأشراف: ١٩٢٩٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٢٦) (صحيح)

سره دې کښې د سلام زیادت هم دې چه دې راتلونکی سائل اول رسول اللهﷺ ته سلام اوکړو، ﴿ السلام علیک یا محمد﴾ چه د هغې رسول اللهﷺ جواب ورکړو یعنی بیا د دې نه روستو د سوال او جواب سلسله شروع شوه والحدیث اخرجه النسائی مختصرا، واخرجه مسلم والنسائی وابن ماجه، بتمامه من حدیث ابی هریرة وحده قاله النووی.

[٤٦٩٩]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي سِنَانٍ، عَنْ وَهْبِ بْنِ خَالِدٍ الْحِمْصِيِّ، عَنِ ابْنِ الدَّيْلَمِيِّ، قَالَ: "أَتَيْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ، فَقُلْتُ لَهُ: وَقَعَ فِي نَفْسِي شَيْءٌ مِنَ الْقَدَرِ فَحَدِّثْنِي بِشَيْءٍ لَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُذْهِبَهُ مِنْ قَلْبِي، قَالَ: لَوْ أَنَّ اللَّهَ عَذَّبَ أَهْلَ سَمَاوَاتِهِ وَأَهْلَ أَرْضِهِ عَذَّبَهُمْ وَهُوَ غَيْرُ ظَالِمٍ لَهُمْ، وَلَوْ رَحِمَهُمْ كَانَتْ رَحْمَتُهُ خَيْرًا لَهُمْ مِنْ أَعْمَالِهِمْ وَلَوْ أَنْفَقْتَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ مَا قَبِلَهُ اللَّهُ مِنْكَ حَتَّى تُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ، وَتَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ، وَأَنَّ مَا أَخْطَأَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَكَ، وَلَوْ مُتَّ عَلَى غَيْرِ هَذَا لَدَخَلْتَ النَّارَ، قَالَ: ثُمَّ أَتَيْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ مَسْعُودٍ، فَقَالَ مِثْلَ ذَلِكَ، قَالَ: ثُمَّ أَتَيْتُ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ، فَقَالَ مِثْلَ ذَلِكَ، قَالَ: ثُمَّ أَتَيْتُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ فَحَدَّثَنِي عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذَلِكَ".

حضرت (عبدالله بن فیروز) ابن دیلمی اووې: زۀ د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه خواله له لاړم او عرض می اوکړو چې زما په زړه کښې د تقدیر په حقله څه لږه شبه غوندې ده. ماته کوم حدیث بیان کړئ چې زما د زړه نه دا وسوسې لرې شي - په دې باندې هغوی اووې - که چرې الله تعالیٰ د تمامو آسمانونو واله ؤ له او د خپلې زمکې واله ؤ له عذاب ورکول غواړی نو هغه به په دوی باندې ظالم نه وی او که چرې هغه په هغوی باندې رحمت اوکړی نو د هغه رحمت د هغوی د پاره د هغوی د اعمالو نه ډیر بهتر دې - او که چرې تۀ د احد په غر باندې خومره سرۀ هم د الله تعالیٰ په لار کښې خرچ کړې نو تر کومې چې په تقدیر باندې ایمان نۀ راوړې الله تعالیٰ به هغه د تا نه نۀ قبلوی او (ترکومې چې) دا اونۀ پیژنې چې څه هم تا ته رسیدلې دی، هغه په هیڅ صورت کښې هم فوت کیدې نه شواو څه چې درته حاصل نه شو، هغه په یو صورت کښې هم حاصلیدې نه شو. که چرې تۀ ددې عقیدې نه علاوه په کومه بله عقیده باندې مړ شوې نو جهنم ته به څې. (ابن دیلمی) وائی چې بیا زۀ دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه خواله لاړم نو هغوی هم داسې اووې. هغوی اووې: بیا زۀ د حضرت حذیفه بن یمان رضی الله عنه خواله له لاړم نو هغوی هم داسې اووې. بیا زۀ د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه خواله له لاړم نو هغوی هم ماته د نبی ﷺ نه هم دغه مثال بیان کړو.

**قوله:**﴿عَنِ ابْنِ الدَّيْلَمِيِّ قَالَ أَتَيْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ فَقُلْتُ لَهُ وَقَعَ فِي نَفْسِي شَيْءٌ مِنَ الْقَدَرِ فَحَدِّثْنِي بِشَيْءٍ لَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُذْهِبَهُ مِنْ قَلْبِي ﴾

د عبدالله بن فیروز الدیلمی نه روایت دې هغوی فرمائی چه زه ابی بن کعب رضی الله عنه ته لاړم نو ما هغوی ته عرض اوکړو چه زما په زړه کښې د تقدیر په باره کښې څه شک او شبهه پیدا کیږی نو تاسو ماته څه داسې خبره بیان کړئ چه د هغې په برکت سره الله پاک زما د زړه نه دا وسوسه لرې کړی نو هغوی اوفرمائیل چه ښه په غور سره واوره! خبره دا ده چه الله پاک ټول اسمانونو او زمکې والو ته عذاب ورکول غواړی نو هغه به په دې عذاب ورکولو

[1]: سنن ابن ماجه المقدمة ۱۰ (۷۷)، (تحفة الأشراف: ۳۷۲٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۲/۵، ۱۸۵، ۱۸۹) (صحیح)

کښې ظالم نه وی، ځکه چه ظلم خو وائی د بل په ملک کښې تصرف کولو ته او دلته دا خبره نشته، ټول مخلوق الله پاک په خپله جوړ کړې دې، د هغه خپل څیز دې هغه چه په دې کښې څه غواړی او څنګه غواړی کوی، او که په ځائې د عذاب ورسره د رحم او کرم معامله اوفرمائی نو دا د الله پاک معامله او د هغه رحمت به د هغه د اعمال خیر نه ډیره غوره وی، او که ته یا بل یو سړې د احد د غر برابر سرۀ زر د الله پاک په لاره کښې خرچ کړی نو الله پاک به ئې ترې نه قبول نه کړی تر څو چه ئې په تقدیر باندې ایمان نه وی راوړلې (او په ایمان بالقدر کښې دا هم داخل ده کوم چه مخکښې راغې چه) تاته دا معلومه وی چه کومه خبره تاته رسیدلې ده یعنی مصیبت یا راحت، غم یا خوشحالی، ممکن نه وه چه هغه دې درته نه وې رسیدلې، او کوم څیز چه درته اونه رسیدو او حاصل درته نه شو نو ممکن نه وه چه هغه څیز تاته رسیدلې او حاصل شوې وې، مطلب دا دې چه څۀ اوشو هغه خو به کیدل، وړاندې فرمائی ﴿ وَلَوْ مُتَّ عَلَى غَيْرِ هَذَا لَدَخَلْتَ النَّار ﴾ که ته د دې عقیدې خلاف په بله عقیده باندې مړ شې نو نیغ به جهنم ته ځې، هغه یعنی ابن الدیلمی رحمه الله فرمائی (چه زه د خپل نور اطمینان او د ابی بن کعب رضی الله عنه د خبرې د تللو دپاره) عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته هم لاړم هم دا سوال کولو سره هغوی هم بعینه هم دا جواب راکړو، او هم دغه شان بیا زه حذیفه رضی الله عنه ته لاړم هغوی هم دا جواب راکړو، بیا په آخیر کښې زه زید بن ثابت رضی الله عنه ته لاړم نو هغوی هم دغه شان خبره ماته د رسول الله ﷺ نه نقل کولو سره اوفرمائیله والحدیث اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۷۰۰]([1]) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ الْهُذَلِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ رَبَاحٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ أَبِي عَبْلَةَ، عَنْ أَبِي حَفْصَةَ، قَالَ: قَالَ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ لِابْنِهِ: يَا بُنَيَّ إِنَّكَ لَنْ تَجِدَ طَعْمَ حَقِيقَةِ الْإِيمَانِ حَتَّى تَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ، وَمَا أَخْطَأَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَكَ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "إِنَّ أَوَّلَ مَا خَلَقَ اللَّهُ الْقَلَمَ فَقَالَ لَهُ: اكْتُبْ قَالَ: رَبِّ وَمَاذَا أَكْتُبُ؟ قَالَ: اكْتُبْ مَقَادِيرَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ، يَا بُنَيَّ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: مَنْ مَاتَ عَلَى غَيْرِ هَذَا فَلَيْسَ مِنِّي".

حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه خپل ځوئ ته اووې: زما ځویه! تۀ تر هغه وخته پورې د ایمان حقیقت نه شې حاصلولې ترکومې چې دا یقین اونه کړې چې کوم څه تا ته حاصل شوې دی، دا د تا نه پاتې کیدې نۀ شول او څه چې تا ته نۀ دی حاصل شوی، هغه میلاویدې نۀ شو- ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی، هغوی فرمائیل "د ټولو نۀ وړومبې څیز چې الله تعالیٰ پیدا کړې دې هغه قلم وو. بیا ئې هغه تۀ اوفرمائیل چې اولیکه، هغه اووې: اې زما ربه! څه اولیکمه؟ الله تعالیٰ اوفرمائیل: د قیامت قائمیدو پورې د هر یو څیز تقدیر اولیکه" اې زما ځویه: بې شکه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی هغوی فرمائیل "کوم سړې چې ددې نه سیوا (په کومه بله عقیده) باندې مړ شو هغه زما نه نۀ دې.

**قوله:** ﴿ قَالَ عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ لِابْنِهِ يَا بُنَيَّ إِنَّكَ لَنْ تَجِدَ طَعْمَ حَقِيقَةِ الْإِيمَانِ حَتَّى تَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَكَ

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۰۸۲)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/القدر ۱۷ (۲۱۵۵)، تفسير سورة النون ۶۶ (۳۳۱۹) (صحيح)

لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ وَمَا أَخْطَأَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَكَ ﴾

يعنى يوه ورځ عباده رضي الله عنه خپل ځوى ته اووې چه اې زما ځويه ته به د ايمان حلاوت تر هغه وخته پورې او نه څکې ترڅو چه دې د دې خبرې يقين نه وى کړې چه کوم څيز تاته رسيدلې دې نو ممکن نه وه چه هغه تاته نه وې رسيدلې او کوم څيز چه درته نه دې رسيدلې نو ممکن نه ده چه هغه تاته در رسيدلې وې.

**قوله:**﴿ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « إِنَّ أَوَّلَ مَا خَلَقَ اللَّهُ الْقَلَمَ فَقَالَ لَهُ اكْتُبْ. قَالَ رَبِّ وَمَاذَا أَكْتُبُ قَالَ اكْتُبْ مَقَادِيرَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ »﴾

سيدنا عباده رضي الله عنه چه کومه خبره خپل ځوى ته کړې وه د تقدير متعلق د هغې په ثبوت او دليل کښې هغوى د رسول الله صلى الله عليه وسلم مرفوع حديث واورلو چه د هغې حاصل دا دې چه مسئله د تقدير خو په اول الواجبات کښې ده. الله پاک د ټولو نه اول قلم پيدا کړو بيا ئې د هغې په ذريعه د هر څيز تقدير د هغه د پيدا کيدو نه مخکښې په لوح محفوظ کښې اوليکلو.

## د اول ما خلق الله په باره کښې مختلف روايات او د هغې تطبيق:

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د اول ما خلق الله .....په باره کښې روايات مختلف دى، په دې روايت کښې خو د قلم په باره کښې دى چه هغه اول مخلوق دې، د ترمذى په حاشيه کښې په حواله د زين العرب فى شرح المصابيح کښې دا دى: يعارض هذا الحديث ما روى ان اول ما خلق الله العقل، ان اول ما خلق الله نوره، اول ما خلق الله الروح، ان اول ما خلق الله العرش، بيا ئې د دې جواب دا ورکړې دې چه اوليت په امور اضافيه کښې دې هم هغه دلته په دې حديث کښې مراد دې، او مطلب دا دې چه په دې کښې هر يو د خپل جنس په اعتبار سره اول مخلوق دې، پس قلم کوم چه د أشجار د جنس نه دې هغه د خپل جنس په اعتبار سره اول مخلوق دې، او هم دغه شان د رسول الله صلى الله عليه وسلم نور د باقى انواراتو په مقابله کښې اول مخلوق دې، او عقل کوم چه په اجسام لطيفه کښې دې هغه په اجسام لطيفه کښې اول مخلوق دې او عرش کوم چه په اجسام کثيفه کښې دې د هغې په اعتبار سره هغه اول مخلوق دې، او دا هم وئيلې شوې دى چه حديث العقل موضوع دې اهـ او هم په دې حاشيه کښې د عرف الشذى نه منقول دى فى بعض الروايات ان اول المخلوقات نور النبى صلى الله عليه وسلم ذكره القسطلانى فى المواهب بطريق الحاكم، والترجيح لحديث النورعلى حديث الباب اهـ په نشر الطيب کښې حضرت تهانوى د ټولو نه اول فصل د نور محمدى په بيان کښې ذکر فرمائيلې دې، چه په هغې کښې ئې ډير روايات ذکر کړى دى چه د هغې په باره کښې هم په هغه حاشيه کښې ليکلې دى: روايات هذا الفصل كلها من المواهب ...او د دې فصل په شروع کښې د ټولو نه مخکښې چه کوم روايت نقل کړې دې هغه داسې دې عبدالرزاق په خپل سند سره د جابر بن عبدالله انصارى رضي الله عنهما نه روايت کړې دې چه ما عرض اوکړو چه زما مور پلار دې په تاسو قربان وى ماته خبر راکړئ چه د ټولو نه اول الله پاک کوم څيز پيدا کړې دې، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم

اوفرمائیل اي جابر الله پاک د ټولو څیزونو نه مخکښې ستا د نبی نور پیدا کړې دې.(۱) (په دې معنی چه نور الهی د هغې ماده وه بلکه د خپل نور په فیض باندې) بیا هغه نور د الله پاک په قدرت باندې چرته چه الله پا ک ته منظوره وه سیل کولو او هغه وخت نه لوح وو او نه قلم او نه جنت او نه دوزخ وو او نه ملائک او نه اسمان وو او نه زمکه وه نه نمر وو او نه سپوږمۍ وه او نه جن وو او نه انسان وو، بیا چه کله الله پاک مخلوق پیدا کول اوغوښتل نو د هغه نور ئې څلور حصې کړې او د یو حصې نه ئې قلم پیدا کړو او دبلې نه لوح او د دریمې نه عرش، وړاندې په اوږد حدیث کښې دی.

**فائده** : د دې حدیث نه د نور محمدی اول الخلق پیدا کیدل په اولیت حقیقیه سره ثابت شو ځکه چه د کومو څیزونو متعلق په روایاتو کښې د اولیت حکم راغلې دې د هغه څیزونو د نور محمدی نه متاخر کیدل په دې حدیث کښې منصوص دی.الی اخر ما ذکر من الروایات، دا روایت دلته په ابوداؤد کښې مختصر دې او په ترمذی کښې روایت مفصل دې څوک چه غواړی هلته دې اوګوری.

[۴۷۰۱](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ الْمَعْنَى، قَالَ: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، سَمِعَ طَاوُسًا، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يُخْبِرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "احْتَجَّ آدَمُ، وَمُوسَى، فَقَالَ مُوسَى: يَا آدَمُ أَنْتَ أَبُونَا خَيَّبْتَنَا وَأَخْرَجْتَنَا مِنَ الْجَنَّةِ، فَقَالَ آدَمُ: أَنْتَ مُوسَى اصْطَفَاكَ اللَّهُ بِكَلَامِهِ، وَخَطَّ لَكَ التَّوْرَاةَ بِيَدِهِ تَلُومُنِي عَلَى أَمْرٍ قَدَّرَهُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي بِأَرْبَعِينَ سَنَةً، فَحَجَّ آدَمُ، مُوسَى"، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ: عَنْ عَمْرٍو، عَنْ طَاوُسٍ، سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ.

حضرت ابو هریره رضی الله عنه د نبی ﷺ نه روایت کوی - هغوی ﷺ بیان اوفرمائیلو: "په حضرت آدم علیه السلام او حضرت موسی علیه السلام کښې بحث اوشو- موسی علیه السلام اووې : اې آدم! تاسو زمونږ پلار یئ؟ تاسو مونږ له ډیر نقصان راکړو او د جنت نه مو راوښکلو - آدم اووې: ته موسی یئ، الله تعالیٰ تا له د خپل ځان سره د هم کلامه کیدلو شرف درکړې دې او ستا د پاره ئې په خپل لاس باندې تورات لیکلې دې- ته ما په یوه داسې خبره (تقدیر) باندې ملامته کوې کومه چې زما د پیدا کیدو نه څلوېښت کاله مخکښې زما په مقدر کښې لیکلې وه - په دې باندې آدم علیه السلام په موسی علیه السلام باندې غالب شولو-

﴿ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يُخْبِرُ عَنِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « احْتَجَّ آدَمُ وَمُوسَى فَقَالَ مُوسَى يَا آدَمُ أَنْتَ أَبُونَا خَيَّبْتَنَا وَأَخْرَجْتَنَا مِنَ الْجَنَّةِ.فَقَالَ آدَمُ أَنْتَ مُوسَى اصْطَفَاكَ اللَّهُ بِكَلاَمِهِ وَخَطَّ لَكَ التَّوْرَاةَ بِيَدِهِ تَلُومُنِي عَلَى أَمْرٍ قَدَّرَهُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِي بِأَرْبَعِينَ سَنَةً فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى »﴾

**د ادم علیه السلام او موسی علیه السلام ترمینځه محاجة** :

یعنی د حضرت ادم او موسی علی نبینا وعلیه الصلوة والسلام ترمینځه محاجه واقع شوه یعنی

(۱) الفاظ د دې روایت داسې دی : ان الله تعالي خلق قبل الاشياء نور نبيك من نوره ۱۲)

(۲): صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ۳۱ (۳۴۰۹)، القدر ۱۱ (۶۶۱۴)، صحيح مسلم/القدر ۲ (۲۶۵۲)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۱۰(۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۲۹)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/القدر ۲ (۲۱۳۴)، موطا امام مالك/القدر ۱ (۱)، مسند احمد (۲/۲۴۸، ۲۶۸) (صحيح)

مناظره او طلب حجة، چه د هغې ابتداء د موسی علیه السلام د طرف نه اوشوه، پس هغوی عرض اوکړو چه اې ادم علیه السلام تاسو زمونږ والد محترم یئ تاسو مونږ په خساره او نقصان کښې واقع کړو، یعنی د جنت نه مو راویستلو د اکل شجره د وجې نه، که تاسو نه دا قصور نه شوې نو مونږ به په خساره او نقصان کښې نه اخته کیدلې، په دې باندې ادم علیه السلام اوفرمائیل چه ته هغه موسی ئې څوک چه الله پاک د خپل کلام دپاره منتخب کړو او ستا دپاره ئې توراة په خپل لاس باندې اولیکلو (چه په هغې کښې د تقدیر ذکر دې او په هغې باندې د ایمان راوړلو حکم ذکر شوې دې ته په داسې کار باندې ما ملامته کوې کوم چه الله پاک زما دپاره مقدر کړې وو زما د پیدا کولو نه څلویښت کاله مخکښې، چه په هغې باندې موسی علیه السلام خاموش شو، رسول الله ﷺ فرمائی چه په دې خبرو کښې ادم علیه السلام په موسی علیه السلام باندې غالب شو، څکه آدم علیه السلام د تقدیر حواله ورکړه، او ایمان بالقدر دا مسئله متفق علیه ده په ټولو انبیاء او امتونو کښې، د دې محاجه په باره کښې د شارحینو دواړه اقوال دی چه دا محاجه روحانی اوشوه، په عالم برزخ یا عالم ارواح کښې، لکه چه د مسلم په روایت کښې دی ﴿ احتج ادم وموسی عند ربهما ﴾ ملا علی قاری رحمه الله فرمایی چه دا هم ممکن ده چه دا محاجه جسمانی وی، په داسې طریقه چه د دواړو د وفات نه روستو هغوی الله پاک ژوندی کړی وی، یا ئې د موسی علیه السلام په حیاة کښې آدم علیه السلام ژوندې کړې وی، او په مجمع البحار کښې دی لکه چه په حاشیه د ترمذی کښې چه دی:وکانت هذه المحاجة حین التقت ارواحهما فی السماء ....او ددې نه پس بیا هم هغه دواړه احتمالات مذکور دی کوم چه د قاری نه ذکر کړې شو، په دې روایت کښې دی ﴿قبل ان یخلقنی باربعین سنة ﴾ اوهم دغه شان دمسلم په روایت کښې دی،اودترمذی په روایت کښې دی ﴿ قبل ان یخلق السموات والارض ﴾ امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې روایت کښې یعنی د دې اربعین سنة والا روایت کښې د تقدیر نه مراد لیکل دی په لوح محفوظ کښې، یا لیکل په الواح د تورات کښې، لهذا مراد د خلق آدم علیه السلام نه مخکښې لیکلې کیدل وو نفس تقدیر مراد نه دې، څکه چه د الله پاک علم او د هغه تقدیر خو ازلی دې

**(اشکال: ایا دجرم په وخت د تقدیر حواله ورکول جائز دی؟)**

دلته دا سوال واردیږی چه آیا یو مجرم یا عاصی لره د ملامت کولو په وخت کښې د تقدیر حواله ورکول او په هغې کښې عذر پیش کول جائز او صحیح دی،

**(جواب: ۱:)**: جواب دا دې چه په دنیا او دې عالم کښې خو جائز نه دی کوم چه دار التکلیف والعمل دې، او دلته په عصیان باندې ملامت مفید هم دې او دا محاجه چونکه په دې عالم کښې نه ده پیښه شوې بلکه په عالم علوی کښې کوم چه دار التکلیف نه دې هلته تقدیر لره په عذر کښې پیش کولې شی خصوصا چه د الله پاک د طرف نه د هغې ګناه معافی هم شوې وی بلکه په دې وخت کښې خو ملامت کول هم بې محل دی.

**(جواب: ۲:)**:او یو جواب دا ورکړې شوې دې چه آدم علیه السلام د خپل قصور او جرم نفی نه ده کړې هغوی د دې واقعې په پیښیدو کښې چه د الله پاک کوم مصلحت وو هغه پیش کړې دې.

**(د ادم علیه السلام په مذکوره واقعه کښې جنت ارضی وو که اُخروی؟)**

د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې یو بل بحث طرف ته اشاره ده هغه دا چه د کوم جنت نه د آدم ﷺ اخراج اوشو دا هم هغه معروف جنت دې د کوم ذکر چه په عام آیتونو او احادیثو کښې دې یا که بل دې؟ او په دې کښې د اختلاف سره حضرت د الیواقیت والجواهر ۱۵۵ حواله ورکړې ده او حجة الله البالغة نه ئې مختصرا لیکلي دی چه جنتونه دوه دی حقیقة او مثالیه (اقول) دې باره کښې په معارف القرآن ادریسی کښې هم کلام مذکور دې او هغوی د دلائلو او قرائنو نه ثابته کړې ده چه دا هم هغه جنت دې کوم چه معروف دې او دا چه د دې جنت نه د زمکې یو باغ نه دې مراد لکه چه بعض ته غلط فهمی پیدا شوې ده چه آدم ﷺ ته چه په کوم جنت کښې د اوسیدو حکم ملاؤ شوې وو هغه د دنیا په باغونو کښې یو کور باغ وو، دا غلطه ده، باقی دا اشکال چه د دخول جنت نه پس به بیا د هغه ځائې نه خروج نه وی پس دا هغه دخول دې کوم چه به د قیام قیامت نه پس وی، د هغه دخول نه پس به بیشکه خروج نه وی اهـ مخلصا ..... په عرف الشذی کښې یو خبره لیکلې ده چه آدم ﷺ چه کوم جواب موسی ﷺ ته ورکړو نو هم هغه جواب هغوی د الله پاک د عتاب په وخت ولې عرض نه کړو؟ د دې جواب ئې دا لیکلې دې چه د کوم وخت دا واقعه ده هغه وخت د تکلیف وخت وو، او بله خبره دا هم ده چه یو هغه خبرې دی کومې چه بنده د بنده سره کوی. او یو هغه خبرې دی چه مخلوق ئې د خالق سره کوی، په دواړو کښې ډیرفرق دې.والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه،قاله المنذری.

[۴۷۰۲](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مُوسَى قَالَ: يَا رَبِّ أَرِنَا آدَمَ الَّذِي أَخْرَجَنَا وَنَفْسَهُ مِنَ الْجَنَّةِ، فَأَرَاهُ اللَّهُ آدَمَ، فَقَالَ: أَنْتَ أَبُونَا آدَمُ، فَقَالَ لَهُ آدَمُ: نَعَمْ، قَالَ: أَنْتَ الَّذِي نَفَخَ اللَّهُ فِيكَ مِنْ رُوحِهِ وَعَلَّمَكَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا، وَأَمَرَ الْمَلَائِكَةَ فَسَجَدُوا لَكَ، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَمَا حَمَلَكَ عَلَى أَنْ أَخْرَجْتَنَا وَنَفْسَكَ مِنَ الْجَنَّةِ؟ فَقَالَ لَهُ آدَمُ: وَمَنْ أَنْتَ؟ قَالَ: أَنَا مُوسَى، قَالَ: أَنْتَ نَبِيُّ بَنِي إِسْرَائِيلَ الَّذِي كَلَّمَكَ اللَّهُ مِنْ وَرَاءِ الْحِجَابِ، لَمْ يَجْعَلْ بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ رَسُولًا مِنْ خَلْقِهِ، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: أَفَمَا وَجَدْتَ أَنَّ ذَلِكَ كَانَ فِي كِتَابِ اللَّهِ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فِيمَ تَلُومُنِي فِي شَيْءٍ سَبَقَ مِنَ اللَّهِ تَعَالَى فِيهِ الْقَضَاءُ قَبْلِي؟ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عِنْدَ ذَلِكَ فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى، فَحَجَّ آدَمُ مُوسَى".

د حضرت عمر بن خطاب ﷺ نه مروی دی،رسول الله ﷺ اوفرمائیل: حضرت موسی ﷺ دعا اوکړه: اې زما ربه ! مونږ ته آدم ﷺ اوښایه،چا چې مونږه او خپل ځان هم د جنت راوښکلي وو- په دې باندې الله تعالیٰ هغوی ته آدم ﷺ اوښودلو ،نو حضرت موسی ﷺ اووې: تاسو زمونږه پلار آدم یئ؟ آدم ﷺ اووې: او- موسی ﷺ اووې: تاسو هم هغه یئ په کوم کښې چې الله تعالیٰ روح پوکلې وو او د تمامو ځیزونو د نومونو تعلیم ئې درکړې ووا و تمامو فرښتو تهٔ ئې حکم ورکړو نوهغوی تاسوته سجده کړې وه؟ وې وئیل - او' موسی ﷺ اووې: تاسو کوم یو ځیز آماده کړې وئ چې تاسو مونږ او خپل ځان د جنت نه

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۹۷) (حسن)

رابهر کړو؟ آدم علیه السلام هغوی ته اووې: او ته څوک یې؟ هغوی اووې: زهٔ موسیٰ یم. هم تهٔ د بنی اسرائیلو هغه نبی یې د کوم سره چې به الله تعالیٰ د پردې شاته کلام فرمائیلو اود ځان او ستا ترمینځه ئې د مخلوق نه هیڅوک هم واسطه نهٔ وه جوړه کړې. وې وئیل: او. آدم علیه السلام اووې: آیا تهٔ پوهه نهٔ یې چې دا هر څه زما د پیدا کیدو نه مخکښې په کتاب الله کښې (هم داسې) وو؟ موسیٰ علیه السلام اووې: او. آدم علیه السلام اووې: نو بیا تهٔ ما په کوم څیز باندې ملامته کوې، حالانکه هغه زما نه مخکښې د الله تعالیٰ په فیصله کښې وو. " په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "آدم علیه السلام په موسیٰ علیه السلام باندې غالب شولو.

[۴۷۰۳](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أُنَيْسَةَ، أَنَّ عَبْدَ الْحَمِيدِ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ أَخْبَرَهُ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سُئِلَ عَنْ هَذِهِ الْآيَةِ {وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ} سورة الأعراف آية ۱۷۲ قَالَ: قَرَأَ الْقَعْنَبِيُّ الْآيَةَ فَقَالَ عُمَرُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ خَلَقَ آدَمَ، ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَمِينِهِ، فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً، فَقَالَ: خَلَقْتُ هَؤُلَاءِ لِلْجَنَّةِ وَبِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَعْمَلُونَ، ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً، فَقَالَ خَلَقْتُ هَؤُلَاءِ لِلنَّارِ، وَبِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ يَعْمَلُونَ، فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَفِيمَ الْعَمَلُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ إِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلْجَنَّةِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتَّى يَمُوتَ عَلَى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ الْجَنَّةِ، فَيُدْخِلَهُ بِهِ الْجَنَّةَ، وَإِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلنَّارِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتَّى يَمُوتَ عَلَى عَمَلٍ مِنْ أَعْمَالِ أَهْلِ النَّارِ، فَيُدْخِلَهُ بِهِ النَّارَ".

د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه نه (و اذ اخذ ربک من بنی ادم من ظهورهم ....) الخ "او چې کله ستا رب د بنو آدم د شاګانو نه د هغوی اولاد راوښکل او هغوی ئې ټولو هم په هغوی باندې ګواهان کړل، آیا زه ستا رب نهٔ یم؟ هغوی اووې: او، مونږ اقرار کوؤ. "د تفسیر تپوس اوشو نو حضرت عمر رضی الله عنه اووې: ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دي، د هغوی ﷺ نه په دې حقله تپوس شوې وو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "الله عزوجل آدم علیه السلام پیدا کړو، بیا ئې خپل ښي لاس د هغوی په پشت باندې راښکلو او د هغې نه ئې د هغه اولاد راوښکلو او وې فرمائیل: دوی ما د جنت دپاره پیدا کړې دي او دا به د جنتیانو واله عمل کوی. بیا ئې د هغه په پشت باندې لاس راښکلو او د هغې نهٔ ئې د هغه اولاد راوښکلو او وې فرمائیل: دوی ما د دوزخ د پاره پیدا کړل او دوی به د دوزخیانو واله عمل کوی." یو سړی اووې: اې د الله رسوله ﷺ! نو بیا عمل څنګه دې؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: بغیر د څه شک نه الله عزو جل چې کله بندیان د جنت دپاره پیدا کړې دی نو د هغوی نه د جنت واله عمل کوی حتیٰ چې هغوی د اهل جنت واله په عمل کښې به مړ شي نو الله به هم د دغه اعمالو په وجه باندې هغه په جنت کښې داخل کړی او چې کوم سړې ئې د اور د پاره ئې پیدا کړې دې نو د هغه نه بهٔ د دوزخیانو واله عمل کوی حتیٰ چې هغه به د دوزخیانو واله عمل کولو کښې مړ شي نو الله تعالیٰ به هم په دغه سبب هغه په اور کښې واچوی.

(1): سنن الترمذي/تفسير سورة الأعراف (۳۰۷۷)، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۵۴)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/القدر ۱ (۲)، مسند احمد (۴۵/۱) (صحيح)

**قوله:**﴿أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ سُئِلَ عَنْ هَذِهِ الآيَةِ (وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِى آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ). فَقَالَ عُمَرُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- سُئِلَ عَنْهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ خَلَقَ آدَمَ ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَمِينِهِ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً ﴾

**د وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ الاية تفسير:**

د سیدنا عمر رضی الله عنه نه د دې آیت کریمه په باره کښې کوم چه پورته ذکر شو یعنی د دې د تفسیر په باره کښې سوال اوکړې شو، هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي وو هغوی د یو سړي په سوال باندې فرمائیلي وو چه الله پاک کله آدم علیه السلام پیدا کړو نو خپل ښي لاس ئې د هغوی په شا باندې راښکلو او د هغوی د شا نه ئې د هغوی اولاد راویستلو او د هغوی په باره کښې ئې اوفرمائیل یعنی کوم چه د الله پاک په موټي کښې وو چه ما دوی د جنت دپاره پیدا کړي دی او دوی به د اهل جنت عملونه کوی، او د دې نه پس ئې بیا د هغه په شا باندې لاس راښکلو او هم دغه شان ئې ترې نه نور اولاد راویستلو او وې فرمائیل ما دا د جهنم دپاره پیدا کړي دی، او دوی به د جهنمیانو عملونه کوی.

دا حدیث امام ترمذی رحمه الله په کتاب التفسیر کښې د سورة الاعراف په تفسیر کښې ذکر کړې دې ځکه چه په دې آیت کریمه کښې دی ﴿وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ﴾ خو په آیت کریمه کښې خو دا دی چه الله پاک د اولاد آدم علیه السلام د هغوی د شا نه راویستلو، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه په آیت کریمه کښې ادم مع اولاده مراد دې.په حدیث کښې اکتفاء کړې شوې ده په ادم علیه السلام باندې د هغوی د اصل کیدو د وجې نه، او د آدم علیه السلام د شا نه د راویستلو مطلب دا نه دې چه ټول انسانان براه راست د آدم علیه السلام د شا نه راویستلې شوې دی بلکه په کوم ترتیب سره چه په دنیا کښې پیدائش کیږی هم هغه ترتیب سره ئې واسطه په واسطه راویستل، یعنی د ادم علیه السلام صلبی اولاد ئې خپله د آدم علیه السلام نه او بیا ئې د اولاد ادم نه د هغوی د اولاد اولاد.هم دغه شان الی اخره، هر ذریت په شان د ذر یعنی د میږی برابر راویستلې شو کوم چه ټول په ټول د آدم علیه السلام مخکښې موجود وو، وړاندې په آیت کریمه کښې دی: ﴿ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ﴾ یعنی الله پاک د هغوی نه اقرار واخستلو او ګواهی ئې ترې نه واخستله په خپل ربوبیت باندې، هم د دې لفظ د الست د وجې نه دې ته عهد الست وائی ﴿ قَالُوا بَلَى ﴾ یعنی ټولو د الله پاک د ربوبیت اقرار اوکړو.په جلالین کښې دی چه دا واقعه په وادی نعمان کښې پیښه شوې وه د عرفې په ورځ باندې، او الله پاک د هغوی دپاره په خپل ربوبیت باندې دلائل قائم کړل او باقاعده ئې هغوی ته پوهه ورکړه، په حاشیه د جمل کښې لیکلي دی چه آیت کریمه لره د هغې په ظاهری معنی باندې محمول کول د سلفو طریقه ده او خلف په دې کښې بله طریقه اختیار کړې ده چه د هغې حاصل دا دې چه حقیقة دلته نه اخراج شته او نه شهادت بلکه دا کلام علی سبیل المجاز او تمثیل دې الی اخرما ذکر...کوکب ۲/۲۲۱ کښې دی: قوله فاستخرج منه ذرية اى على الترتيب كلا من ابيه،دهغې په حاشیه کښې دی﴿ وبذلك جزم عامة المفسرين﴾ اودائې هم لیکلي دی چه صاحب جمل د علامه شعرانی نه په دې کښې لس بحثونه نقل کړی دی فارجع اليه لو شئت اه.

### د ایت کریمه متعلق لس سوالونه او د هغې جوابات:

په حاشیه د جمل (۲۰۹/۲) کښې د دې آیت کریمه متعلق لس سوالونه او د هغې جوابونه ذکر دی، شروع ئې داسې ده: الاول این موضع اخذ الله تعالى هذا العهد، د دې نه پس د دې جواب ذکر دې، د دې په باره کښې هم هغه بطن نعمان لیکلې شوې دې هغوی کوم چه پورته ذکر شوې دی د جلالین نه،

او دا چه هو واد بجنب عرفة، وقيل اخذه بسر نديب من ارض الهند، هو الموضع الذى هبط ادم فيه من الجنة، الثاني كيف استخرجهم من ظهره؟ والجواب ورد في الصحيح انه تعالى مسح ظهر ادم واخرجه ذريته منه كلهم كهيئة الذر الخ .....الثالث كيف اجابوه تعالى ببلى هل كانوا احياء عقلاء ام اجابوه بلسان الحال الخ د دې په باره کښې پورته ذکر شو چه په دې کښې دوه قوله دی یو طريقة السلف او يو طريقة الخلف، الرابع فاذا قال الجميع بلى فلم قبل تعالى قوما ورد اخرين؟ والجواب كما قاله الحكيم الترمذى ان الله تعالي تجلى للكفار بالهيبة فقالوا بلى مخافة منه فلم يك ينفعهم ايمانهم فكان ايمانهم كايمان المنافقين، وتجلى للمومنين بالرحمة فقالوا بلى مطيعين مختارين فنفعهم ايمانهم الخ .......الخامس اذا سبق لنا عهد وميثاق مثل هذا فلاى شئ لا نذكره اليوم، د دې نه پس د دې جواب ذکر دې،

السادس هل كانت تلك الذرات مصورة بصورة الانسان ام لا؟ یعنی دا اولاد ادم علیه السلام کوم چه د میږو په شان وو دا د انسان په صورت کښې وو په سترګه پوزه،غوږ وغیره کښې یا نه، وړاندې د دې جواب ذکر دې،

السابع متى تعلقت الارواح بالذرات التى هى الذرية. قبل خروجها من ظهره ام بعد خروجها منه، وړاندې د دې جواب ذکر دې.

الثامن ما الحكمة في اخذ الميثاق منهم؟ والجواب ان الحكمة في ذلك اقامة الله الحجة على من لم يوف بذلك العهد الخ، التاسع هل اعادهم الى ظهر ادم ام استداروا ارواحهم ثم اعادهم اليه امواتا؟ یعنی د ویستلو نه پس چه کله دا ذریة دوباره د آدم علیه السلام په شا کښې واپس شو نو هغه وخت هغوی ژوندی وو یا د هغوی د ارواح قبض کیدو نه پس په هغې کښې واپس کړې شو؟ والجواب ان الظاهر انه لما ردهم الى ظهره قبض ارواحهم الخ، العاشر اين رجعت الارواح بعد رد الذرات الى ظهره؟ والجواب ان هذه المسئلة غامضة.الى اخر ما ذكر ........والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وقال الترمذي هذا حديث حسن ،قاله المنذري.

[٤٧٠٤](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ جُعْثُمٍ الْقُرَشِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي زَيْدُ بْنُ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ رَبِيعَةَ، قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ بِهَذَا الْحَدِيثِ وَحَدِيثُ مَالِكٍ أَتَمُّ.

حضرت نعیم بن ربیعه وائی چې زۀ د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه سره ووم ... او حدیث ئې روایت کړو- او (مذکوره بالا) حدیث مالک زیات مکمل دې-

(١) انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٦٥٤) (صحيح)

[٤٧٠٥]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَقَبَةَ بْنِ مَصْقَلَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْغُلَامُ الَّذِي قَتَلَهُ الْخَضِرُ طُبِعَ كَافِرًا، وَلَوْ عَاشَ لَأَرْهَقَ أَبَوَيْهِ طُغْيَانًا وَكُفْرًا".

د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه نه روایت دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل "هغه هلک کوم چې حضر قتل کړې وو هغه کافر پیدا کړې شوې وو- که چرې ژوندی وې نو خپل مور پلار به ئې په سرکشئ او کفر باندې مجبوره کړې وو-"

**قوله:**《عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « الْغُلاَمُ الَّذِى قَتَلَهُ الْخَضِرُ طُبِعَ كَافِرًا وَلَوْ عَاشَ لأَرْهَقَ أَبَوَيْهِ طُغْيَانًا وَكُفْرًا »》

یعنی کوم ماشوم چه سیدنا خضر علیه السلام قتل کړې وو([2]) یعنی د حضرت موسی او خضر علیهما السلام په قصه کښې هغه پیدائشي کافر وو. او که هغه ژوندې پاتې شوې وې نو خپل مور پلار به ئې په کفر او سرکشئ کښې اخته کول، د 《 طبع كافرا 》 تاویل دا کړې شوې دې چه د 《 كل مولود يولد على الفطرة 》 خلاف نه شي چه هغه په داسې صفت او حالت سره پیدا شوې که ژوندې پاتې شو او لوئی شو نو کافر به شی.اهـ والحديث اخرجه مسلم والترمذي، قاله المنذري.

[٤٧٠٦]([3]) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "فِي قَوْلِهِ وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ سورة الكهف آية ٨٠ وَكَانَ طُبِعَ يَوْمَ طُبِعَ كَافِرًا".

حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه اووې چې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی : هغوی د الله تعالی د فرمان (واما الغلام فکان ابواه مؤمنین) "او د هغه هلک مور او پلار مومنان وو-" تفسیر ئې فرمائیلو- " هغه هلک چې کله پیدا کړې شو، کافر پیدا کړې شوې وو- "

[٤٧٠٧]([4]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِهْرَانَ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ، حَدَّثَنِي أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَبْصَرَ الْخَضِرُ غُلَامًا يَلْعَبُ مَعَ الصِّبْيَانِ فَتَنَاوَلَ رَأْسَهُ فَقَلَعَهُ، فَقَالَ مُوسَى: أَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً سورة الكهف آية ٧٤".

حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه بیان اوکړو رسول الله ﷺ اوفرمائیل : حضرت حضر علیه السلام هغه

---

[1]): صحيح مسلم/القدر ٦ (٢٦٦١)، سنن الترمذي/التفسير ١٩ (٣١٤٩)، (تحفة الأشراف: ٤٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العلم ٤٤ (١٢٢)، مسند احمد (١٢١/٥) (صحيح)

[2]) د خضر علیه السلام په باره کښې په حاشیه د بذل کښې ډیرې حوالې لیکلې دی څوک چه د هغوی حالات کتل غواړی د هغوی دپاره مونږ هغه حوالې نقل کوو : واختلف في حياة خضر اثبته الصوفية وقال السخاوي في المقاصد الحسنة ١٠٦ اخي الخضر لوكان حيا لزارني لا يثبت مرفوعا بل مقولة لبعض السلف، وذكر ترجمته ايضا في حيوة الحيوان ٢٣٤/١ وقال في لطائف المنن ٨٤/١ بقاءه مجمع عند الصوفية اهـ وبسط العيني ص ٤٤٧ج١علي احوال الخضر من الاسم والزمان والمكان، وبسط الحافظ في القسم الاول من الاصابة، وفي الفتح ٢٧٤/٦ والفتاوي الحديثية ١٣١ وهامش الكوكب ٢٣٩/٢ وهامش المسلسلات ٧٤)

[3]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٠) (صحيح)

[4]): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم :(٤٧٠٥)، (تحفة الأشراف: ٤٥) (صحيح)

هلک اولیدو کوم چې د نورو ماشومانو سره لوبې کولې - نو هغوی هغه راو نیوو تاؤ راتاؤ ئې کړو-نو موسی علیه السلام اووې : "تاسو یو پاک ځان قتل کړو-"

[۴۷۰۸] (۱) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ الْمَعْنَى وَاحِدٌ وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ سُفْيَانَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، قَالَ: حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ "إِنَّ خَلْقَ أَحَدِكُمْ يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، ثُمَّ يَكُونُ عَلَقَةً مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذَلِكَ، ثُمَّ يُبْعَثُ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيُؤْمَرُ بِأَرْبَعِ كَلِمَاتٍ فَيُكْتَبُ رِزْقُهُ، وَأَجَلُهُ، وَعَمَلُهُ، ثُمَّ يُكْتَبُ شَقِيٌّ أَوْ سَعِيدٌ، ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ الرُّوحُ، فَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ أَوْ قِيدُ ذِرَاعٍ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فَيَدْخُلُهَا وَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتَّى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ أَوْ قِيدُ ذِرَاعٍ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ، فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَدْخُلُهَا".

حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اووې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته بیان اوفرمائیلو ،او هغوی صادق،او مصدوق دی - (د الله تعالیٰ د طرفنه او د هغه ملائیکې،انبیاء ورسل او د مومنینو د طرفنه د هغوی تصدیق کړې شوې دې ) "ستاسو د پیدائش په مراحلو کښې نطفه د مور په خیټه کښې تر څلویښتو ورځو پورې مجتمع وی،بیا هم دومره ورځې دجمع شوی وینې یو ټکړه جوړه شی - بیا هم په دومره ورځو کښې د غوښې یو بوټۍ جوړه شی - بیا د الله تعالیٰ د طرف نه یو فرېښته اولیګلې شی او هغه ته د څلورو خبرو لیکلو حکم اوشی - هغه د هغه رزق، اجل(عمر یا مرګ)،عمل او دا چې هغه به خوش بخته وی یا بدبخته،دا ټول اولیکی - بیا په هغه کښې روح اوپوکل شی- ددې دپاره په تاسو څوک د اهل جنت واله عمل کوی حتیٰ چې د هغه او د جنت په مینځ کښې صرف دیو لاس هومره فاصله پاتې شی،خو د دی نه وړاندې چې څه رنګ لیکل شوی دی دهغې مطابق د دوزخیانو واله عمل شروع کړی او په دوزخ کښې پریوځی - او بې شکه په تاسو کښې څوک د دوزخیانو واله عمل کوی حتیٰ چې د هغه او د دوزخ په مینځ کښې د یو لاس هومره فاصله پاتې شی خو ددې نه وړاندې چې څه لیکل شوې دی دهغې مطابق هغه د جنتیانو واله عمل اوکړی او هغه به جنت ته لاړ شی-

**قوله:** ﴿ حدثنا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْعُودٍ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ خَلْقَ أَحَدِكُمْ يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا ثُمَّ يَكُونُ عَلَقَةً مِثْلَ ذَلِكَ ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذَلِكَ ثُمَّ يُبْعَثُ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيُؤْمَرُ بِأَرْبَعِ كَلِمَاتٍ فَيُكْتَبُ رِزْقُهُ وَأَجَلُهُ وَعَمَلُهُ ثُمَّ يُكْتَبُ شَقِيٌّ أَوْ سَعِيدٌ ثُمَّ يُنْفَخُ فِيهِ الرُّوحُ ﴾

## شرح الحدیث :

رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه په تاسو کښې د هر یو ماده د خلق (د هغه د پیدائش ماده یعنی نطفه) د هغه د مور په رحم کښې جمع وی تر څلویښتو ورځو پورې، د دې نه پس په اربعین ثانی کښې علقه یعنی چک وینه شی، سوال دا دې چه په اربعین اول کښې نطفه ولې

(۱): صحيح البخاري/بدء الخلق ٦ (٣٢٠٨)، الأنبياء ١ (٣٣٩٣)، القدر ١ (٦٥٩٤)، صحيح مسلم/القدر ١(٢٦٤٣)، سنن الترمذي/القدر ٤ (٢١٣٧)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٠ (٧٦)، (تحفة الأشراف: ٩٢٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٨٢، ٤١٤، ٤٣٠) (صحيح)

پاتې شوه. آيا په هغې کښې تغير رانغلو؟ جواب دا دې چه نطفه د اول څلويښتو ورځو پورې نطفه وی چه په هغې کښې خمير پيدا شي، يعنی د بيا دپاره راپيښيدونکی انقلابات او تغيراتو د قبلولو صلاحيت پيدا شي بيا په دريمه چله کښې د هغې د اخرې پورې هغه د غوښې ټکړه جوړه شي يعنی د درې چلو تيريدلو نه پس چه د هغې نه څلور مياشتې جوړيږی د ماشوم بدن او اندامونه جوړ شي بيا په څلورم اربعين کښې الله پاک د هغه طرف ته ملائک راليږی کوم چه څلور خبرې د هغه په باره کښې ليکی د هغه رزق، او د عمر موده، او د هغه اعمال او نيک بخت او بدبخت کيدل. او هم په دې کښې بيا د روح نفخ وی علماء کرامو ليکلي دی چه په څلورمه چله باندې د لسو ورځو د تيريدلو نه پس، چه کله هغه د څلور مياشتو او لسو ورځو شي هغه وخت پکښې روح پوکلې شي،(۱) په اربعين رابع کښې د ملائکو د راليږلو مطلب بعض شارحينو ليکلي دې چه د راليږلو نه مراد امر دې يعنی هغه ته حکم کولې شي چه داسې دې اوکړی ځکه چه ملائک خو د مخکښې نه هلته موجود وی د حمل محافظ، او بعض حديث لره د دې په ظاهر باندې محمول کړې دې چه ممکنه ده د دې څيزونو ليکونکې بل ملائک وی کوم چه خاص د دې کار دپاره راليږلې شوې وی.

وړاندې بيا په حديث کښې دی چه بعض خلق په شروع کښې د جنت اعمال کوی خو چه کله د هغوی او د مرګ ترمينځه صرف د يو لاس په اندازه فاصله پاتې شی نو په دې سرې باندې د الله پاک ليکل او د هغه تقدير غالب راشی او د اهل جهنم عمل کوی او بيا هم په دې کښې داخليږی او د بعض حال د دې برعکس چه د اول نه تر آخره پورې د اهل نار عمل کوی او کله ئې چه د يو لاس په اندازه ژوند پاتې شی نو تقدير پرې غالب شی او د جنت په اعمالو کښې لګيا شی او بيا هم په دې کښې داخل دی.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي وابن ماجه، قاله المنذري.

[۴۷۰۹](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ يَزِيدَ الرِّشْكِ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعُلِمَ أَهْلُ الْجَنَّةِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَفِيمَ يَعْمَلُ الْعَامِلُونَ؟ قَالَ: كُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ".

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه نه روايت دې، د رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو: اې د الله رسوله! آيا د دوزخيانو په مقابله کښې جنتيانو ته علم شته؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل: "او"

(۱) د حضرت ګنګوهی رحمه الله په تقرير د ترمذی او ابوداؤد کښې ﴿اربعين يوما﴾ باندې ليکلې شوې دی چه د بعض رواياتونو نه معلوميږی چه دا تمام تحولات په يو اربعين کښې کيږی او مشاهده کله کله د دوارو خلاف شی (نه صرف په يو اربعين کښې نه په څلورو کښې) او جواب دا دې چه د هر يو تغير په يو اربعين کښې کيدل د حمل په اکثر موده کښې وی، او صرف يو اربعين والا روايت دې په اقل موده د حمل باندې محمول کړې شی او باقی روايات دې د دې دوارو زمانو په مينځ باندې محمول کړې شی، او د هغې په حاشيه کښې دی: وبسط الحافظ اشد البسط في اختلاف الفاظ هذا الحديث مع الترجيح لبعضها والجمع في بعضها فارجع اليه لوشئت التفصيل)

(۲): صحيح البخاري/القدر ۲ (۶۵۹۶)، والتوحيد ۵۳ (۷۵۵۱)، صحيح مسلم/القدر ۱ (۲۶۴۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۵۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۴۲۷، ۴۳۱) (صحيح)

نو وینا اوشوه چې بیا د ا عمل ولې کوئ؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل: "هر چاته هم د هغې توفیق میلاویږی د څه دپاره چې هغه پیدا کړې شوې دې."

**قوله:** ﴿ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعُلِمَ أَهْلُ الْجَنَّةِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ قَالَ « نَعَمْ ». قَالَ فَفِيمَ يَعْمَلُ الْعَامِلُونَ قَالَ « كُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ » ﴾

یعنی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو آیا مړۀ شوی جنتیان د اهل النار نه جدا کړې شوې دی؟ یعنی آیا جنت ته تلونکی او جهنم ته تلونکی متعین کړې شوې دی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل او متعین شوی دی نو هغه صحابی عرض اوکړو نو بیا د څه دپاره عمل کوی عمل کونکی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل د چا دپاره چه کوم ځائې مقرر دې د هغه دپاره د هم هغه ځائې عملونه هم آسان دی، د الله پاک عادت هم داسې جاری دې چه د ثواب او عقاب بنیاد ظاهرا او صورة په اعمالو باندې کیخودلې شوې دې والحدیث اخرجه البخاری ومسلم، قاله المنذری.

[۴۷۱۰] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ الْمُقْرِئُ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، حَدَّثَنِي عَطَاءُ بْنُ دِينَارٍ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ شَرِيكٍ الْهُذَلِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ مَيْمُونٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ رَبِيعَةَ الْجُرَشِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُجَالِسُوا أَهْلَ الْقَدَرِ وَلَا تُفَاتِحُوهُمْ".

د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه بیان دې، نبی ﷺ اوفرمائیل: "د منکرین تقدیر سره مۀ کینئ او نه د هغوی سره خبرې اترې (یا د مناظرې) ابتداء کوئ."

**قوله:** ﴿ لاَ تُجَالِسُوا أَهْلَ الْقَدَرِ وَلاَ تُفَاتِحُوهُمْ ﴾

یعنی د فرقه قدریه سره خپله ناسته مه ساتئ، وئیلې شوې دی چه د دې مطلب دا دې چه د هغوی سره په عقائدو کښې مناظره مه کوئ چرته هغوی تاسو په شک کښې وانه چوی او ستاسو اعتقاد خراب نه کړی او نه هغوی سره په سلام او کلام کښې ابتداء کوئ، او وئیلې شوې دی چه مفاتحه په معنی د حکومت او فیصلې دې، یعنی په خپلو معاملاتو کښې په هغوی باندې فیصله مه کوئ او د هغوی نه حکم مه جوړوئ اهـ.

## بَابٌ فِي ذَرَارِيِّ الْمُشْرِكِينَ

### باب ۱۷ - د مشرکانو د اولاد بیان

[۴۷۱۱] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْ أَوْلَادِ الْمُشْرِكِينَ؟ فَقَالَ: "اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ".

د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی چې نبی ﷺ نه د مشرکینو د اولاد په حقله تپوس اوشو (کوم چې په وړوکوالی کښې مړه شی) نو هغوی ﷺ اوفرمائیل: "الله په ښه شان باندې خبرداره دې چې هغوی (په لوئیدو) باندې څه عمل کوونکی وو."

---

١): تفرد به أبوداود، مسند احمد (١/٣٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٦٦٩) (ضعيف)

٢): صحيح البخاري/الجنائز ٩٢ (١٣٨٣)، والقدر ٣ (٦٥٩٧)، صحيح مسلم/القدر ٦ (٢٦٦٠)، سنن النسائي/الجنائز ٦٠ (١٩٥٤)، (تحفة الأشراف: ٥٤٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢١٥، ٣٢٨، ٣٤٠، ٣٥٨) (صحيح)

قوله: ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- سُئِلَ عَنْ أَوْلَادِ الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ « اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ » ﴾ یعنی د رسول الله ﷺ نه د مشرکینو د اولاد په باره کښې تپوس اوکړې شو یعنی د هغوی د نابالغه ماشومانو په باره کښې چه د هغوی څه حکم دې د عذاب یا د نجات نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه الله ته ښه معلومه ده چه هغوی په لوئیدو باندې څه عمل کوی یعنی غټیدو سره به څه کوی.

## شرح الحدیث:

امام خطابی رحمه الله فرمائی چه د ظاهر د کلام نه وهم پیدا کیږی چه رسول الله ﷺ د اولاد المشرکین دپاره هیڅ فیصله او نه فرمائیله بلکه د الله پاک په علم باندې ئې محمول کړه، هغوی وائی: خو دا مطلب نه دې بلکه د رسول الله ﷺ مراد دا دې چه هغه کافر دې د خپلو پلارانو تابع دې په کفر کښې په دې وجه الله پاک ښه پوهیږی چه که هغوی ژوندی وې او لوئې شوې وې نو د کفر کارونه به ئې کول.هغوی فرمائی چه د دې مطلب قرینه دا ده چه په حدیث د عائشه رضی الله عنها کښې دی (کوم چه وړاندې راځی) چه ما د رسول الله ﷺ نه د مسلمانانو د بچو په باره کښې تپوس اوکړو نو هغوی اوفرمائیل: من آبائهم ......یعنی د خپل مور پلار په حکم کښې دی، هغه فرمائی چه په دې ترې نه ما تپوس اوکړو چه یا رسول الله ﷺ بغیر د عمل نه، یعنی بغیر د عمل نه به د خپلو پلارانو په حکم کښې وی؟ نو په دې باندې هغوی اوفرمائیل: ﴿ الله اعلم بما کانوا عاملین ﴾ لهذا په دواړو ځایونو کښې د ﴿ الله اعلم بما کانوا عاملین ﴾ مطلب یو شو، او د حضرت گنگوهی په تقریر کښې ﴿ کل مولود یولد علی الفطرة ﴾ چه د هغې په اخیر کښې هم دا دی یا رسول الله ﷺ! ﴿ افرایت من یموت وهو صغیر؟ قال الله اعلم بما کانوا عاملین ﴾ نو د حضرت رائې د هغه حدیث د وجې نه دا ده چه د مشرکینو ماشومان جنتیان دی د فطرة اعتبار کولو سره، او بیا د سائل د سوال په جواب کښې چه رسول الله ﷺ دا اوفرمائیل: ﴿ الله اعلم بما کانوا عاملین ﴾ په دې کښې مقصود د مشرکانو د ماشومانو په باره کښې اظهار د تردد نه دې او نه تعلیق علی العمل دې لکه چه د بعض شارحینو رائې ده بلکه د دې جملې مطلب دا دې چه هغه د مشرکینو بچو به غټیدو سره څه کول خو د پلارانو په اتباع کښې به ئې کفر اختیارولو یا به په اصل فطرت باندې قائم وې هغه خو الله پاک ته پته ده چه څه به ئې کول خو موجوده صورت حال خو دا دې چه هر ماشوم پیدا کیدونکې که هغه د مشرکینو وی او که د مومنینو هغه په فطرت باندې پیدا کیږی پس کله چه د بلوغ نه مخکښې مړ شو نو گویا په اصل فطرت باندې مړ شو چه د هغې تقاضا خلاصې او جنت دې، د حضرت رائې کومه چه په کوکب کښې لیکلې شوې ده او دلته د باب په اول حدیث یعنی د حدیث ابن عباس رضی الله عنهما د لاندې په بذل کښې د حضرت گنگوهی د تقریر نه په اوړد کلام کښې نقل کړې شوی ده [1] د عائشې رضی الله عنها د حدیث متعلق چه په هغې کښې دواړه ځایه دا دی چه ﴿ هم من آبائهم ﴾ ...

---

[1] خو چونکه د کوکب عبارت زیات واضح او اسان وو په دې وجه مونږ هم هغه نقل کړو.

[٤٧١٢]() حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ الرَّقِّيُّ، وَكَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمَذْحِجِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَرْبٍ الْمَعْنَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ ذَرَارِيُّ الْمُؤْمِنِينَ فَقَالَ: "هُمْ مِنْ آبَائِهِمْ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ بِلَا عَمَلٍ، قَالَ: اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ فَذَرَارِيُّ الْمُشْرِكِينَ، قَالَ: مِنْ آبَائِهِمْ، قُلْتُ: بِلَا عَمَلٍ، قَالَ: اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ".

ام المؤمنين سيده عائشه رضي الله عنها وائی چی ما عرض اوکړو : اې د الله رسوله ! د مومنانو د اولادونو به څه انجام وی؟ نو هغوی ﷺ اوفرمائيل "چی هغوی د خپلو مشرانو نه دی." ما اوويل: اې د الله رسوله! د عمل نه بغير هم؟ وې فرمائيل: "د الله سره ښه علم دې چی هغوی کوم عمل کوؤنکی وو." ما عرض اوکړو: اې د الله رسوله! د مشرکانو د اولادونو به څه انجام وی؟ هغوی اوفرمائيل: "هغوی د خپلو مشرانو نه دی" ما اوويل: د عمل نه بغير هم؟ وې فرمائيل: "الله ته بهتر علم دې چی هغوی کوم عمل کوؤنکی وو."

## د اطفال مشرکين په باره کښې د علماء کرامو اقوال :

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د مشرکينو د ماشومانو په باره کښې ډير اقوال دی په حاشيه د بذل کښې دی چه حافظ په فتح البارى کښې په دې کښې لس مذاهب نقل کړې دی او په بذل کښې د ملا على قارى نه دا لاندې ليکلې شوې اقوال نقل کړی دی : ۱: انهم من اهل النار تبعا للابوين، ۲: من اهل الجنة نظرا الى اصل الفطرة، ۳: دريم قول دا دې چه هغوی به د اهل جنت خادمان وی، ۴: او څلورم قول دا چه هغوی به بين الجنة والنار وی يعنی نه معذب او نه منعم، يعنی د اهل اعراف نه به وی، ۵: او پنځم قول دا دې چه د چا په باره کښې چه د الله پاک په علم کښې وی چه که دې ژوندې پاتې شی نو کفر به ئې اختيارولو نو هغه خو جهنمی دې او د چا په باره کښې چه دا علم دې چه دوی به لوئيدو سره په فطرت باندې قائم وی نو هغه به د اهل جنت نه وی، ۶: او شپږم قول دا دې چه د هغوی په باره کښې دې توقف اوکړې شی او هيڅ فيصله دې اونکړې شی، او د اکثر اهل سنت رائې هم دا ده، خو ابن حجر وائی چه دا توقف خو د هغه وخت خبره ده چه کله د هغوی په باره کښې څه نازل شوې نه وو، او اوس اصح قول هم دا دې چه انهم من اهل الجنة او په حاشيه د بذل کښې دی چه حافظ رحمه الله د امام شافعی او امام مالک نه دا نقل کړې دی چه ﴿ انهم تحت المشيئة ﴾ او د امام نووی رحمه الله نه ئې دا نقل کړې دی چه د جمهورو قول د هغوی په باره کښې د جنتی کيدو دې، والبسط فی الاوجز ۵۲۲/۲ والفتاوى الحديثية ۴، وفی شرح الاقناع ۲۰۰/۲ ان الخلاف فی اولاد الكفرة من هذه الامة، واما من غيرهم ففی النار، شرح اقناع کوم چه د فقه شافعی مشهور کتاب دې په هغې کښې دا دی چه دا مختلف اقوال د دې امت د کفارو د اولاد په باره کښې دی او د نورو امتونو د کفارو اولاد جهنميان دی بغير د اختلاف نه، او په هغې کښې د دې امت د کفارو د اولاد په باره کښې دجنتى کيدو جزم کړې شوې دې.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٢٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٤/٦) (صحيح الإسناد)

[۴۷۱۳]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ يَحْيَى، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ، عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَتْ: "أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَبِيٍّ مِنَ الْأَنْصَارِ يُصَلِّي عَلَيْهِ، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ طُوبَى لِهَذَا لَمْ يَعْمَلْ شَرًّا وَلَمْ يَدْرِ بِهِ، فَقَالَ: أَوَغَيْرُ ذَلِكَ يَا عَائِشَةُ إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ الْجَنَّةَ وَخَلَقَ لَهَا أَهْلًا، وَخَلَقَهَا لَهُمْ وَهُمْ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ، وَخَلَقَ النَّارَ وَخَلَقَ لَهَا أَهْلًا وَخَلَقَهَا لَهُمْ وَهُمْ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ".

ام المؤمنین حضرت سیده عائشه رضی الله عنها بیان اوکړو. هغوی اووې: نبی ﷺ له د انصارو یو ماشوم راوستل شو چې هغوی ﷺ د هغه جنازه اوکړي- وئیل ئې چې ما ورته اووې: اې د الله رسوله ! مبارکي دې وی دهٔ ته ! دهٔ نه څه بد عمل کړې دې او نه د بدو عملو ده ته څه خبر اوشو- نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "عائشه ! یا بیاددې نه مختلف؟ بې شکه الله تعالیٰ جنت پیدا فرمائیلې دې نو ددې دپاره ئې مخلوق هم پیدا کړو او دغه جنت ئې هم ددوی دپاره جوړ کړواو داچې لا تراوسه هغوی د خپلو پلارانو په پشتونو (ملاګانو) کښې وی او اور (جهنم) ئې پیدا کړو نو ددې دپاره ئې مخلوق هم پیدا کړو او دا جهنم ئې هم د ددې خلقودپاره جوړ کړې دې او داچې هغوی لا تراوسه د پلارانو په پشتونو (ملاګانو) کښې وی-

《عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ قَالَتْ أُتِيَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِصَبِيٍّ مِنَ الأَنْصَارِ يُصَلِّي عَلَيْهِ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ طُوبَى لِهَذَا لَمْ يَعْمَلْ شَرًّا وَلَمْ يَدْرِ بِهِ......وَخَلَقَ النَّارَ وَخَلَقَ لَهَا أَهْلاً وَخَلَقَهَا لَهُمْ وَهُمْ فِي أَصْلاَبِ آبَائِهِمْ »》

## شرح الحديث:

سیده عائشه فرمائی چه رسول الله ﷺ ته یو انصاری ماشوم راوستلې شو په هغه باندې د جنازې د مونځ کولو دپاره، هغه فرمائی چه په دغه موقعه ما عرض اوکړو چه یا رسول الله ﷺ د دې ماشوم دپاره خوشحالی ده ځکه چه هغه نه څه بد کار اوکړو او نه په بدئ باندې پوهه شو، یعنی کول څه چه هغه پیژنی هم نه، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ته دا خبرې کوئ حال دا چه خبره بل شان ده، تقدیرد عبارت د دې لفظ دا دې 《اتعتقدين ما قلت والحق غير ذلك》 یعنی دا همزه استفهامیه ده او واؤ عاطفه چه د هغې معطوف علیه مقدر دې، او هغه دویمه خبره کومه چه حق ده هغه عدم الجزم بکونه من اهل الجنة دې چه په یقین سره دې ورته جنتی او نه وئیلې شی، دا حدیث اکر چه د اولاد المسلمین په باره کښې دې چه د هغوی په باره کښې اجمالی طور دا مسئله متفق علیه ده: انهم من اهل الجنة خو په تعین سره او یقینی طور د یو خاص سړی دپاره که هغه ماشوم وی او که لوئې د جنتی کیدو د فیصلې کولو نه رسول الله ﷺ منع اوفرمائیله چه دا خبره د احتیاط خلاف ده.

حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخاري ومسلم والنسائي، وحديث عائشة رضي الله عنها سكت عليه المنذري، وحديثها اخرجه مسلم والنسائي وابن ماجه، قاله المنذري.

(): صحيح مسلم/القدر ٦ (٢٦٦٢)، سنن النسائي/الجنائز ٥٨ (١٩٤٩)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٠ (٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١/٦، ٢٠٨) (صحيح)

[٤٧١٤]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ كَمَا تَنَاتَجُ الْإِبِلُ مِنْ بَهِيمَةٍ جَمْعَاءَ هَلْ تُحِسُّ مِنْ جَدْعَاءَ؟ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَرَأَيْتَ مَنْ يَمُوتُ وَهُوَ صَغِيرٌ؟ قَالَ: اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه بیان کوی چی رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "هر پیدا کیدونکی ماشوم په فطرت باندې وی (د دین حق، د اسلام او د توحید حامل وی) بیا دهغه مور پلار هغه یهودی او عیسائی جوړ کړی، څنګه چی د اوښ بچې صحیح او سلامت راپیدا کیږی، آیا تاسو د کوم غوږ پریکړې وینئ؟" خلقو اووې: اې د الله رسوله ! ددې متعلق اوفرمائیئ چی کوم په وړکوالی کښې مړه شی؟ وې فرمائیل: "الله ته بهتر علم دې چی هغوی کوم عمل کوؤنکی وو."

**قوله:** ﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « كُلُّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ.........وَهُوَ صَغِيرٌ قَالَ « اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ »﴾

## شرح الحدیث:

هر پیدا کیدونکې ماشوم په فطرت د اسلام باندې پیدا کیږی، په فطرت باندې د پیدا کیدو په شرح کښې دوه اقوال دی ([2]): ۱: په دین اسلام باندې پیدا کیدل یا د قبول دین په صلاحیت او استعداد باندې پیدا کیدل، وړاندې په حدیث کښې دی چه که پیدا کیدونکې ماشوم د یهودی کره پیدا شو نو د هغه مور پلار د هغه نه یهودی جوړ کړی او که نصرانی کره پیدا شی نو د هغه نه نصرانی جوړ کړی، یعنی د دې عارض د وجې نه هغه د خپل فطرت نه واوړی، وړاندې فرمائی چه څنګه اوښې بچې زیږوی کامل الخلقة بچې، آیا په تاسو کښې کوم یو غوږ پرې کړې وینئ، یعنی څنګه چه د اوښ په بچو کښې تغیر او نقص روستو پیدا کیږی هم دغه شان بعض ماشومان هم په اصل فطرت باندې د پیدا کیدو نه پس خراب شی، په دې باندې صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ نه د هغه ماشوم په باره کښې تپوس اوکړو کوم چه په ماشوم توب کښې مړ شی، نو هغوی اوفرمائیل: ﴿ الله اعلم بما کانوا عاملین ﴾ دا مخکښې تیر شو چه د ﴿ الله اعلم بما کانوا عاملین ﴾ مطلب خطابی رحمه الله وغیره شارحین څه اخلی او حضرت ګنګوهی د دې مطلب څه اخستلې دې.

[٤٧١٥]([3]) قَالَ قَالَ أَبُو دَاوُد: قُرِئَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ وَأَنَا أَسْمَعُ، أَخْبَرَكَ يُوسُفُ بْنُ عَمْرٍو، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: سَمِعْتُ مَالِكًا قِيلَ لَهُ: إِنَّ أَهْلَ الْأَهْوَاءِ يَحْتَجُّونَ عَلَيْنَا بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ مَالِكٌ "احْتَجَّ عَلَيْهِمْ بِآخِرِهِ، قَالُوا: أَرَأَيْتَ مَنْ يَمُوتُ وَهُوَ صَغِيرٌ؟ قَالَ: اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ".

د امام مالک رحمه الله له طرفنه اووئیلې شو چی اهل اهواء یعنی بدعتیان خلق دغه

---

[1]): صحیح البخاري/الجنائز ۹۲ (۱۳۸۳)، والقدر ۳ (۶۵۹۲)، صحیح مسلم/القدر ٦ (۲٦٥٨)، سنن النسائي/الجنائز ٦٠ (۱۹٥۱)، سنن الترمذي/القدر ٥ (۲۱۳۸)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸٥۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجنائز ١٦ (٥٢)، مسند احمد (۲/۲٤٤، ۲٥۳، ۲٥۹، ۲٦٨، ۳۱٥، ۳٤٧، ۳۹۳، ٤٧١، ٤٨٨، ٥١٨) (صحیح)

[2]) د دې نه علاوه په دې کښې دوه اقوال وړاندې راځی.

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۲٥۳) (صحیح الإسناد)

مذکوره حدیث زمونږ خلاف پیش کوی (په انکار تقدیر او اثبات جبر کښي.) امام مالک رحمه الله اووې: ته هم ددغي حدیث آخري حصه په هغوی باندې اپوته کوه - (په کوم کښي چې دی) خلقو اووې: د هغه بچي متعلق اوفرمائی کوم چي په وړوکوالی کښي مړه شی؟ هغوی اوفرمائیل: "الله ته بهتر علم دې چي هغوی به کوم عمل کوؤ."

**قوله:**《 قَالَ أَبُو دَاوُدَ قُرِئَ عَلَى الْحَارِثِ بْنِ مِسْكِينٍ ....... الْحَدِيثِ. قَالَ مَالِكٌ احْتَجَّ عَلَيْهِمْ بِآخِرِهِ، قَالُوا أَرَأَيْتَ مَنْ يَمُوتُ وَهُوَ صَغِيرٌ قَالَ « اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا عَامِلِينَ »》

دا مخکښي تیر شو په کتاب الخراج کښي یو ځائې (۱) چه د مصنف رحمه الله طریقه د حارث بن مسکین نه د روایت کولو هم دغه شان ده کومه ئې چه دلته اختیار کړې ده، په ټولو ځایونو کښي هم دغه شان دی د دې په باره کښي هلته نور څه هم تیر شوې دی.

**شرح الحدیث:**

د امام مالک رحمه الله شاګرد ابن وهب فرمائي چه زمونږ د استاد نه تپوس اوکړې شو چه اهل اهواء یعني مبتدعین چه د هغوی نه مراد قدریه دی، زمونږ مخکښي د دې حدیث نه استدلال کوی چه اوګوري ددې نه زمونږ تائید کیږی، ځکه چه په حدیث کښي دی 《فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ》 چه ماشوم خو پیدا کیږی په فطرت د اسلام باندې بیا هغه لره د هغه مور پلار او ماحول خراب کړی، بیا خو ماحول هر څه شو تقدیر هیڅ څیز نه شو، امام مالک رحمه الله ددې جواب دا ورکړو چه که دا خلق ددې حدیث د اولې حصې نه استدلال کوی نو تاسو په هغوی باندې د حدیث د آخری حصې نه استدلال اوکړئ، د هغې نه د اهل سنت تائید او د تقدیر اثبات کیږی، د آخر نه مراد 《 الله اعلم بما کانوا عاملین 》 دی چه الله ښه پوهیږی چه که لوئې شوې وې نو څه به ئې کول، یعني هم هغه به ئې کول کوم چه د الله پاک په علم ازلی کښي دی او د هغه د تقدیر نه ده، سبحان الله، څه ښه جواب ئې ورکړې دې چه د کوم حدیث نه هغوی استدلال کولو هم د هغه حدیث نه ئې د هغې جواب راویستلو.

[۴۷۱۶](۲) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ الْمِنْهَالِ، قَالَ: سَمِعْتُ حَمَّادَ بْنَ سَلَمَةَ يُفَسِّرُ حَدِيثَ كُلِّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ، قَالَ: "هَذَا عِنْدَنَا حَيْثُ أَخَذَ اللَّهُ عَلَيْهِمُ الْعَهْدَ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ حَيْثُ، قَالَ: أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى سورة الأعراف آية ۱۷۲".

حماد بن سلمه ددغه حدیث "هر ماشوم په فطرت باندې پیدا کیږی." تشریح کښي اووې: ددې مفهوم زمونږ په نزد دا دې چې دا د هغه وخت خبره ده کله چې الله عزوجل د روحونو نه عهد واخستو لا هغوی د پلارانو په ملاګانو کښي وو، هغه وخت ئې وئیلي وو (الست بربکم) "آیا زه ستاسو رب نۀ یم"

**قوله:**《 سَمِعْتُ حَمَّادَ بْنَ سَلَمَةَ يُفَسِّرُ حَدِيثَ « كُلُّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ ». قَالَ هَذَا عِنْدَنَا حَيْثُ أَخَذَ اللَّهُ عَلَيْهِمُ الْعَهْدَ فِي أَصْلَابِ آبَائِهِمْ حَيْثُ قَالَ (أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى)》

---

(۱) في باب ما جاء في حكم ارض خيبر)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۵۹۱) (صحيح الإسناد)

## د فطرت په مصداق کښې اقوال:

يعنی حماد بن سلمه د ﴿ كُلُّ مَوْلُودٍ يُولَدُ عَلَى الفِطْرَةِ ﴾ په شرح کښې دا خبره کړې ده چه د فطرت نه مراد هغه عهد دې کوم چه په عالم ذر کښې د خلقو د وجود دنيا ته د راتلو نه مخکښې هغوی د آدم علیه السلام نه د شا نه راويستلې شو ﴿ الست بربكم قالوا بلى ﴾ نو د فطرت مصداق د هغوی په نزد د عهد الست دې کوم چه د زړې زمانې عهد دې څه تازه خصلت نه دې کوم چه د تولو نه اخستلې شوې وو څوک چه دنيا ته د راتلو نه پس مسلمانان شوی دی د هغوی نه هم او کوم چه کافر شوی دی د هغوی نه هم، امام خطابی رحمه الله فرمائی چه د حماد بن سلمه دا تفسير ډېر غوره دې او ګويا هغوی دا وئيل غواړی چه په احکامات دنيا کښې د ايمان فطری اعتبار نشته اصل اعتبار د ايمان شرعی دې کوم چه په خپله اراده باندې اختيار کړې شی او په کوم کښې چه د خپل کسب او ارادې دخل وی، څکه چه رسول الله ﷺ فرمائی د مولود په باره کښې چه ﴿ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ ﴾ نو اوګورئ سره د ايمان فطری په مولود کښې د هغې اعتبار اونکړې شو بلکه په هغه باندې د هغه د کافر مور پلار حکم جاری کړې شو، د دې نه پس امام خطابی رحمه الله فرمائی چه د دې په تفسير کښې يو بل قول دې کوم چه عبد الله بن مبارک اختيار کړې دې هغه دا چه د فطرت نه مراد هغه سعادت يا شقاوت دې کوم چه د کوم بچی په حصه کښې راغلې وی د الله پاک په قدرت او د هغه په ارادې سره، يعنی کفر يا ايمان پس د هر پيدا کيدونکی ماشوم انجام آخر هم هغه وی په کوم باندې چه هغه پيدا شوې وو او په دنيا کښې هغه هم هغه شان کار کوی کوم چه د هغه د فطرت مطابق وی که هغه فطرت سعادت وی يا شقاوت او د ماشوم د سعادت او شقاوت په آثارو کښې دا ده چه د هغه ماشوم مور پلار يا يهوديان وی يا نصاری، نو د هغه مور پلار يهوديان يا نصاری د دې بچی د شقاوت د وجې نه د يهودو او نصاری دين ته تياروی او يهوديت او نصرانيت ورته ښائی او يا دا چه هغه د عقل او شعور د پيدا کيدو نه مخکښې مړ شی نو هغه به د خپل مور پلار په حکم کښې وی څکه چه هغه شرعا د خپل مور پلار تابع دې، او هم دا مطلب دې د رسول الله ﷺ د قول ﴿ فَأَبَوَاهُ يُهَوِّدَانِهِ وَيُنَصِّرَانِهِ ﴾، او د دې رائې تائيد د هغه حديث عائشه رضي الله عنها نه کيږی چه په هغې کښې دا دی ﴿ أُتِيَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِصَبِيٍّ مِنَ الأَنْصَارِ يُصَلِّي عَلَيْهِ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ طُوبَى لَه ﴾ چه په هغې باندې رسول الله ﷺ فرمائيلې وو ﴿ أَوَغَيْرَ ذَلِكَ يَا عَائِشَةُ إِنَّ اللَّهَ خَلَقَ الْجَنَّةَ وَخَلَقَ لَهَا أَهْلاً وَخَلَقَهَا لَهُمْ وَهُمْ فِي أَصْلاَبِ آبَائِهِمْ الحديث ﴾ د فطرت په تفسير کښې دوه قوله دا دی او دوه قوله په شروع کښې تير شوې دی.

[٤٧١٧] (١) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ عَامِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْوَائِدَةُ وَالْمَوْءُودَةُ فِي النَّارِ"، قَالَ يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا: قَالَ أَبِي، فَحَدَّثَنِي أَبُو إِسْحَاقَ أَنَّ عَامِرًا حَدَّثَهُ بِذَلِكَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٤٦٦) (صحيح)

حضرت عامر شعبی رحمه الله بیان اوکړو چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ''ماشوم ژوندي ښخولو واله او ژوندي ښخیدونکی (دواړه) په جهنم کښې دی.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « الْوَائِدَةُ وَالْمَوْءُودَةُ فِى النَّارِ ». قَالَ يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا قَالَ أَبِى فَحَدَّثَنِى أَبُو إِسْحَاقَ أَنَّ عَامِرًا حَدَّثَهُ بِذَلِكَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم ﴾

## شرح السند:

د یحیی نه مراد ابن ابی زائده دې کوم چه پورته په سند کښې راغلو، د یحیی نه دا حدیث د هغه پلار زکریا په شوروع کښې بغیر د واسطې د ابواسحاق نه د عامر شعبی نه مرسلا و معضلا نقل کړو او په دویم ځل دا حدیث د یحیی نه د هغه پلار په واسطه د ابواسحاق متصلا او مسندا روایت کړو، پس په اول روایت کښې عامر یعنی شعبی وئیلي وو چه ﴿قال رسول الله ﷺ ﴾ او په دویم روایت کښې کوم چه په واسطه د ابواسحاق دې په هغې کښې د عامر شعبی او رسول الله ﷺ ترمینځه دوه واسطې ذکر دی علقمه او ابن مسعود رضي الله عنه

د دې حدیث مضمون دا دې چه وائده یعنی هغه دائی چه نوې پیدا شوې ماشومه به ئې ژوندئ ښخوله او موؤده یعنی خپله هغه جینئ دواړه د جهنم مستحق دی، که دا حدیث په خپل ظاهر باندې کیخودلې شی نو د ذراری مشرکین په باره کښې چه کوم یو قول دې چه انهم من اهل النار، نو دا به د هغې دپاره دلیل شی.

## د دوه متعارض احادیثو تطبیق:

دا حدیث د هغه حدیث خلاف دې کوم چه په کتاب الجهاد کښې په باب فی فضل الشهادة کښې تیر شوې دې چه د هغې په اخر کښې دی ﴿ المولود فی الجنة والوئید فی الجنة ﴾ د دې جواب هم هلته تیر شو. وئید او موؤده دواړه یوه معنی لری. هلته دې ته جنتی وئیلې شوې ده او دلته جهنمی، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه د ﴿ الموؤده ﴾ نه پس د هغې صله محذوف ده یعنی د هغې متعلق. په اصل کښې وو الموؤدة لها چه د هغې مصداق د هغه ماشومې کافره مور ده

[٤٧١٨]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَجُلًا قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيْنَ أَبِي؟ قَالَ: أَبُوكَ فِي النَّارِ فَلَمَّا قَفَّى، قَالَ: إِنَّ أَبِي وَأَبَاكَ فِي النَّارِ".

حضرت انس رضي الله عنه بیان اوکړو چې یو سړی رسول الله ﷺ ته اووې اې د الله رسوله ﷺ! زما پلار چرته دې؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل ''ستا پلار په اور کښې دې''. کله چې هغه څټ تاؤ کړو نو هغوی ﷺ اوفرمائیل'' زما پلار او ستاپلار په جهنم کښې دی.''

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلاً قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَيْنَ أَبِى قَالَ « أَبُوكَ فِى النَّارِ ». فَلَمَّا قَفَّى قَالَ « إِنَّ أَبِى وَأَبَاكَ فِى النَّارِ » ﴾

---

(): صحيح مسلم/الإيمان ٨٨(٢٠٣)، (تحفة الأشراف: ٣٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٩/٣، ٢٦٨) (صحيح)

**د رسول الله ﷺ د مور پلار د نجات مسئله او په هغې کښې د علامه شامی رائې:**

يو سړی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه زما پلار چرته دې او د هغه په (جهنم او جنت دواړو کښ) کوم ځائې کښې دې؟ نو رسول الله ﷺ جواب ورکړو چه ستا پلار په جهنم کښې دې ځکه چه هغه په کفر باندې مړ شوې دې، د حديث راوی انس ﷺ فرمائی چه کله هغه سړې روان شو نو رسول الله ﷺ (د هغه په طبيعت باندې اثر ليدلو سره) اوفرمائيل چه بيشکه زما پلار او ستا پلار دواړه په جهنم کښې دی.په بذل المجهود کښې د فتح الودود نه نقل کړې شوې دی چه کوم خلق د رسول الله ﷺ دمور پلار د نجات قائل دی نو هغه په دې حديث کښې لفظ اب لره په عم باندې حمل کوی ځکه چه د اب اطلاق په عم باندې هم کيږی ﴿ عم الرجل صنو ابيه ﴾ او خصوصا په دې وجه هم چه د رسول الله ﷺ تربيت په ماشوم والی کښې د هغوی ترهٔ ابو طالب کړې وو، په دې لحاظ سره د اب اطلاق په هغوی باندې نور هم مناسب دې د حضرت شيخ په دې باندې دوه حاشيې دی : يو دا چه تقدم الکلام عليه يعنی په کتاب الجنائز کښې چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ سوال فاطمه نه روايت کړې شوې دې :﴿ ابلغت معهم الکدی قالت لا فذکر شديدا ﴾ د لاندې، او دويمه حاشيه ئې دا ده چه دا محمول دې په قبل علمه ﷺ باندې کما فی الشامی ۳/۳۱۷وقال ايضا ۲ /۴۱۸ ان الاحياء کان فی حجة الوداع، يعنی د دې حديث تاويل دا دې په ځائې د دې چه په ترهٔ باندې ئې محمول کړو داسې به اوايو چه دا خبره رسول الله ﷺ په شروع کښې کړې وه چه کله هغوی ته د خپل مور پلار د خلاصی علم نه وو لکه چه په شامی کښې دی او په بل ځائې کښې په شامی کښې دی چه د رسول الله ﷺ د مور پلار احياء يعنی هغوی لره ژوندی کول د حجة الوداع په موقع باندې شوې وو انتهی ما فی هامش البذل (قلت) په شامی کښې چه چرته دا مسئله ذکر ده چه توبة الياس مقبول ده نه ايمان الياس، هلته ئې د ابن حجر نه دا نقل کړې دی چه د دې قاعدې نه به د يونس ﷺ قوم مستثنی منلې شی ﴿ لقوله تعالی الا قوم يونس ﴾ استثناء لره په اتصال باندې محمول کولو سره، او دا چه د هغوی ايمان د معاينة العذاب په وخت وو لکه چه د بعض مفسرينو قول دې او دا به د هغه نبی خصوصيت او کرامت منلو سره قبلولې شی.

**د رسول الله ﷺ د مور پلار ايمان:**

او د دې نه پس فرمائی : ﴿ أَلَا تَرَى أَنَّ نَبِيَّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَكْرَمَهُ اللَّهُ تَعَالَى بِحَيَاةِ أَبَوَيْهِ لَهُ حَتَّى آمَنَا بِهِ كَمَا فِي حَدِيثٍ صَحَّحَهُ الْقُرْطُبِيُّ وَابْنُ نَاصِرِ الدِّينِ حَافِظُ الشَّامِ وَغَيْرُهُمَا،فَانْتَفَعَا بِالْإِيمَانِ بَعْدَ الْمَوْتِ عَلَى خِلَافِ الْقَاعِدَةِ إِكْرَامًا لِنَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا أَحْيَى قَتِيلَ بَنِي إسْرَائِيلَ لِيُخْبِرَ بِقَاتِلِهِ، وَكَانَ عِيسَى ﷺ يُحْيِي الْمَوْتَى،وَكَذَلِكَ نَبِيُّنَا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْيَا اللَّهُ تَعَالَى عَلَى يَدَيْهِ جَمَاعَةً مِنْ الْمَوْتَى وَقَدْ صَحَّ أَنَّ اللَّهَ تَعَالَى رَدَّ عَلَيْهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّمْسَ بَعْدَ مَغِيبِهَا حَتَّى صَلَّى عَلِيٌّ كَرَّمَ اللَّهُ وَجْهَهُ الْعَصْرَ،فَكَمَا أُكْرِمَ بِعَوْدِ الشَّمْسِ وَالْوَقْتِ بَعْدَ فَوَاتِهِ فَكَذَلِكَ أُكْرِمَ بِعَوْدِ الْحَيَاةِ وَوَقْتِ الْإِيمَانِ بَعْدَ فَوَاتِهِ وَمَا قِيلَ إنَّ قَوْله تَعَالَى - { وَلَا تُسْأَلُ عَنْ أَصْحَابِ الْجَحِيمِ } - نَزَلَ فِيهِمَا لَمْ يَصِحَّ وَخَبَرُ مُسْلِمٍ " { أَبِي وَأَبُوكَ فِي النَّارِ } " كَانَ قَبْلَ عِلْمِهِ ا هـ مُلَخَّصًا

اه او په شامی کښې په بل ځائي کښې په باب النکاح الکافر کښې داسې دی ﴿ کل نکاح صحیح بین المسلمین فهو صحیح بین اهل الکفر ﴾ او د دې په دلیل کښې ئې دا حدیث پیش کړو چه رسول اللهﷺ فرمائی : ولدت من نکاح لا من سفاح، ځکه چه په دې حدیث کښې رسول اللهﷺ د خپل مور پلار د جاهلیت د زمانې په نکاح باندې چه کوم قبل الاسلام وه په هغې باندې ئې د نکاح حکم لګولې دې لکه چه په فتح القدیر کښې دی ‹او چونکه د دې حدیث نه په استدلال باندې لازمیږی چه د رسول اللهﷺ د مور پلار نکاح په حالت د کفر کښې شوې وه په دې باندې علامه شامی فرمائی› وَلَا يُقَالُ : إِنَّ فِيهِ إِسَاءَةَ أَدَبٍ لِاقْتِضَائِهِ كُفْرَ الْأَبَوَيْنِ الشَّرِيفَيْنِ مَعَ أَنَّ اللَّهَ تَعَالَى أَحْيَاهُمَا لَهُ وَآمَنَا بِهِ كَمَا وَرَدَ فِي حَدِيثٍ ضَعِيفٍ لِأَنَّا نَقُولُ : إِنَّ الْحَدِيثَ أَعَمُّ بِدَلِيلِ رِوَايَةِ الطَّبَرَانِيِّ وَأَبِي نُعَيْمٍ وَابْنِ عَسَاكِرَ { خَرَجْت مِنْ نِكَاحٍ وَلَمْ أَخْرُجْ مِنْ سِفَاحٍ مِنْ لَدُنْ آدَمَ إِلَى أَنْ وَلَدَنِي أَبِي وَأُمِّي لَمْ يُصِبْنِي مِنْ سِفَاحِ الْجَاهِلِيَّةِ شَيْءٌ } .....یعنی رسول اللهﷺ چه دا د نکاح اثبات او د سفاح نفی فرمائی هغه صرف د خپل مور پلار په لحاظ نه فرمائی بلکه هغوی د سفاح نفی فرمائی د خپلو ټولو اصول نه تر د آدمؑ پورې، او ښکاره خبره ده چه د ټولو اصولو ایمان ثابت نه دې او د ابوین اګر چه ثابت دې خو د نکاح په وخت ثابت نه دې بلکه بعد الموت دوباره د ژوندی کولو نه پس.پس استدلال د دې حدیث نه ﴿ ولدت من نکاح لا من سفاح ﴾ سره په دې مسئله باندې ﴿ کل نکاح صحیح بین المسلمین فهو صحیح بین اهل الکفر ﴾ باندې صحیح دې.

## د حدیث الباب توجیه او دغه شان د فقه اکبر والا رائې جواب :

او دغه شان چه کوم نور ځیزونه نقل دی، مثلا د امام صاحب نه په فقه اکبر کښې چه : د رسول اللهﷺ د مور پلار مرګ په کفر باندې شوې دې او هم دغه شان څنګه چه په صحیح مسلم کښې دی : ﴿ اسْتَأْذَنْتُ رَبِّي أَنْ أَسْتَغْفِرَ لِأُمِّي فَلَمْ يَأْذَنْ لِي ﴾ او هم دغه شان دا حدیث ﴿یا رسول الله این ابی قال فی النار الخ﴾ ځکه چه د رسول اللهﷺ د مور پلار ایمان احیاء دې او احیاء د دې هر څه نه روستو په حجة الوداع کښې شوې ده او د دې نه پس علامه شامی دویم قول د نجاة ابوین شریفین په سلسله کښې د هغه خلقو ذکر کړې دې کوم چه د دې وجه دا بیانوی چه د هغوی د مور پلار وفات د فترة په زمانه کښې شوې دې، د دې په باره کښې هغوی فرمائی چه دا قول بنا دې په اصولو د اشاعره باندې ﴿ ان من مات ولم تبلغه الدعوة یموت ناجیا ﴾ د دې نه پس هغوی په دې کښې د ماتریدیه مسلک لیکلې دې چه هغوی د اهل فترت په باره کښې مطلقا د نجات قائل نه دی بلکه د هغوی په نزد دې کښې تفصیل دې[1] د کوم د

[1] ) د ماتریدیه مسلک ئې دا لیکلې دې : أَمَّا الْمَاتُرِيدِيَّةُ،فَإِنْ مَاتَ قَبْلَ مُضِيِّ مُدَّةٍ يُمْكِنُهُ فِيهَا التَّأَمُّلُ وَلَمْ يَعْتَقِدْ إيمَانًا وَلَا كُفْرًا فَلَا عِقَابَ عَلَيْهِ،بِخِلَافِ مَا إذَا اعْتَقَدَ كُفْرًا أَوْ مَاتَ بَعْدَ الْمُدَّةِ غَيْرَ مُعْتَقِدٍ شَيْئًا ".یعنی ماتریدیه وائی د اهل فترت په باره کښې چه کله د هغه بلوغ ته د رسیدو نه پس دومره موده نه وی تیره شوې چه په هغې کښې تامل اوکړې شی د حق او باطل ترمینځه او حال دا چه هغه نه اعتقاد د ایمان لری او نه د کفر نو په داسې صورت کښې به په هغه باندې عقاب نه وی هغه ناجی دې، او که د کفر عقیده......له

ذکر کولو نه پس چه شامی په اخیر کښې فرمائی : فَالظَّنُّ فِي كَرَمِ اللّٰهِ تَعَالَى أَنْ يَكُونَ أَبَوَاهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَحَدِ هٰذَيْنِ الْقِسْمَيْنِ (١)، بَلْ قِيلَ إِنَّ آبَاءَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ مُوَحِّدُونَ.

## اولی دا ده چه دا بحث او نه کړې شی :

او بیا ئې د بحث په اختتام باندې لیکلې دی د بعض محققینو طرف ته نسبت کولو سره چه دا مسئله که ذکر هم کړې شی نو ډیر په ادب سره کینې اول خو د ذکر کولو ضرورت څه دې چه د دې نه ناخبر کیدل هیڅ ضرر نه لری، نه به زمونږ نه په حشر یا په قبر کښې دې باره کښې تپوس کیږی فَحِفْظُ اللِّسَانِ عَنِ التَّكَلُّمِ فِيهَا إِلَّا بِخَيْرٍ أَوْلَى وَأَسْلَم (شامی ۳۸۵/۲) په ظاهر کښې دا فرمائی چه که ضرورة په دې کښې کلام کولې هم شی نو په خیر سره دې اوکړې شی اولی او اسلم هم دغه ده، او د دې نه مخکښې ئې بیان کړه چه ډیر په ادب سره، او دا دواړه خبرې خو په قول د بایمانهما کښې دی لکه چه د پورته نه ئې هم دا ثابتوله. والله اعلم وعلمه الموفق للصدق والصواب، والحدیث اخرجه مسلم، قاله المنذری.

[٤٧١٩] (٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ: "إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ ابْنِ آدَمَ مَجْرَى الدَّمِ".

دحضرت انس بن مالک رضی الله عنه بیان دې، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: "بغیر د څه شک نه شیطان د ابن آدم په بدن کښې داسې ګردش کوی څنګه چې وینه.

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنِ ابْنِ آدَمَ مَجْرَى الدَّمِ »﴾ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه شیطان د انسان په رګونو کښې ګرزی، قاضی عیاض فرمائی چه بعض علماء دې حدیث لره د دې په ظاهر باندې حمل کوی چه الله پاک په شیطان کښې دومره طاقت ایخودلې دې چه هغه د انسان په باطن کښې د هغه رګونو ته هم اورسیږی او وئیلې شوې دی چه د دې نه مراد مجازا کثرت اغواء او القاء الوساوس دی، ګویا هر وخت د انسان سره وی او د هغه نه نهٔ جدا کیږی، د وینې په شان والحدیث اخرجه مسلم بطوله واخرجه النسائی ومسلم وابن ماجه من حدیث صفیة بنت حیی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم وقد تقدم فی کتاب الصیام قاله المنذری.

---

(١)...... لری یا د تامل نه پس مړ شو بغیر د څه اعتقاد نه، نه په ایمان او نه په کفر نو په دې صورت کښې به ناجی نه وی، وړاندې په دې کښې دا دی چه په ماتریدیه کښې چه کوم بخاری دی هوی د اهل فترت په باره کښې د اشاعره موافق دی او کوم چه د امام صاحب نه نقل دی ﴿لا عذر لاحد في الجهل بخالقه﴾ هغه هغوی په مابعد البعثة باندې حمل کړې دې، خو د بخاریین دا رائې د هغه سړی نه په علاوه کښې ده کوم چه د کفر په اعتقاد باندې مړ شی ځکه چه کوم سړې په اعتقاد د کفر یعنی د شرک په حالت کښې مړ شی د هغه د جهنمی کیدو امام نووی او امام رازی تصریح کړې ده وَعَلَيْهِ حَمَلَ بَعْضُ الْمَالِكِيَّةِ مَا صَحَّ مِنَ الْأَحَادِيثِ فِي تَعْذِيبِ أَهْلِ الْفَتْرَةِ بِخِلَافِ مَنْ لَمْ يُشْرِكْ مِنْهُمْ وَلَمْ يُوَحِّدْ بَلْ بَقِيَ عُمْرُهُ فِي غَفْلَةٍ مِنْ هٰذَا كُلِّهِ فَفِيهِمُ الْخِلَافُ، وَبِخِلَافِ مَنِ اهْتَدَى مِنْهُمْ بِعَقْلِهِ كَقُسِّ بْنِ سَاعِدَةَ وَزَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ فَلَا خِلَافَ فِي نَجَاتِهِمْ..... د دې نه پس هم هغه عبارت دې کوم چه په شرح کښې تیر شو.

(١) يعني اما ايمانهما واما كونهما من اهل الفترة)

(٢): صحيح مسلم/السلام ٩ (٢١٧٤)، (تحفة الأشراف: ٣٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٥/٣، ١٥٦، ٢٨٥) (صحيح)

[۴۷۲۰]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ لَهِيعَةَ، وَعَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، وَسَعِيدُ بْنُ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ شَرِيكٍ الْهُذَلِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ مَيْمُونٍ، عَنْ رَبِيعَةَ الْجُرَشِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُجَالِسُوا أَهْلَ الْقَدَرِ وَلَا تُفَاتِحُوهُمُ الْحَدِيثَ".

د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه نه مروی دی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل :"د منکرین تقدیر دصحبت نه ځان بچ اوساتی او دهغوی سره په خبرو اترو (اومناظرو) کښې ابتداء مه کوئ.

## بَابٌ فِي الْجَهْمِيَّةِ

### بابه ۱۸-د جهمیه بیان

او په یو نسخه کښې دی فی الجهمیة والمعتزلة ...جهمیه هغه ډله ده کومه چه جهم بن صفوان ته منسوب ده کوم چه د اجبار او د اضطرار قائل وو یعنی انسان په خپلو اعمالو کښې باختیار نه دي بلکه مجبور دي او دا چه د انسان ټول افعال حقیقة د الله پاک طرف ته منسوب دی، د بنده طرف ته د هغې نسبت مجازی دي، او د الله پاک علم حادث منی، بله دا چه د الله پاک د صفاتو انکار کوی، صفات مشترکه یعنی د کوم صفت اطلاق چه په انسان باندې کیدې شی لکه علم قدرت او حیات، کلام ځکه چه دا صفات په انسان کښې هم موندلې شی که په الله پاک کښې هم اوموندلې شی نو شرکت به لازم شی او کوم صفات چه په غیر الله کښې نه شی موندلې لکه احیاء او اماتة او خلق د هغې هغوی انکار نه کوی او بله دا چه کلام الله حادث منی، سید مرتضی زبیدی وائی چه جهمیه یو جماعت دي په خوارجو کښې چه منسوب دي جهم بن صفوان ته کوم چه قتل کړې شو د بنوامیه په آخری دورکښې،اوپه میزان الاعتدال کښې دی، جهم بن صفوان السمرقندی الضال المبتدع راس الجهمیة هلک فی زمان صغار التابعین زرع شرا عظیما، او په فتح الباری کښې دی چه د هغه قتل په ۱۲۸ هجری کښې اوشو، دا خو د جهمیه په باره کښې شو او معتزله په قدریه کښې یو جماعت دې د هغوی نوم معتزله د یو قول په بناء باندې ځکه شو چه رئیس المعتزله واصل بن عطاء کوم چه به د حسن بصری رحمه الله په خدمت کښې حاضریدو چه کله واصل د منزلة من المنزلتین قول اختیار کړو، یعنی دا چه صاحب کبیره نه مومن مطلق دې نه کافر مطلق، بلکه بین المنزلتین دې نو په دې باندې حسن بصری رحمه الله اوفرمائیل: ﴿اعتزل عنا واصل﴾ هم په دې وجه هغوی ته معتزله وائی. (عون) معتزله د صفاتو قائل دی خو د جبر او اضطرار قائل نه دی، او هغوی دا وائی چه د صفاتو د د توحید مقتضاء ده ځکه چه که صفات د باری تعالی تسلیم کړې شی نو د دوه حالو نه خالی نه دی یا خو به هغه قدیم منلې شی یا حادث، که قدیم اومنلې شی نو تعدد د قدماء لازمیږی، او که حادث اومنلې شی نو د الله پاک به محل د حوادث کیدل لازم شی، د اهل سنت د طرف نه د دې جواب دا دې (کما فی شرح العقائد) چه ممنوع تعدد الوجبة دې نه تعدد القدماء مطلقا یعنی د واجب لذاته تعدد ممنوع

۱): انظر حدیث رقم: (۴۷۱۰)، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۶۹) (ضعیف)

دي تعدد قديم ممنوع نه دي لهذا صفات په دې کښې داخل نه دی، د هغې تعدد کيدې شی، وجواب اخر وهو ان الصفات ليست غير الذات وان لم تكن عين الذات ايضا، لکه چه په عقائد نسفی کښې دی : وهی لا هو ولا غيره چه د الله پاک صفات نه عين ذات دي او نه د هغې غير، شرح عقائد اوګوري معتزله خان ته اصحاب العدل والتوحيد وائی، اصحاب توحيد خو په دې وجه چه کومه وجه پورته ذکر شوه يعنی نفی د صفاتو ګيني د اثبات صفات په صورت کښې تعدد قدماء لازميږی کوم چه د توحيد منافی دی او اصحاب العدل په دې وجه چه د وجوب الجزاء علی الله تعالی قائل دی، يعنی په الله پاک باندې مطيع ته جزاء ورکول او عاصی ته سزا ورکول واجب دی، هغوی وائی د عدل تقاضا هم دا ده.

[۴۷۲۱]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ مَعْرُوفٍ، أخبرنا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَزَالُ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ حَتَّى يُقَالَ: هَذَا خَلَقَ اللَّهُ الْخَلْقَ، فَمَنْ خَلَقَ اللَّهَ، فَمَنْ وَجَدَ مِنْ ذَلِكَ شَيْئًا، فَلْيَقُلْ: آمَنْتُ بِاللَّهِ".

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دې، رسول الله ﷺ اوفرمائيل : خلق به سوالات کوی حتیٰ چې اوبه وئيلې شی : دغه مخلوق الله تعالیٰ پيدا کړې دې نو الله تعالیٰ چا پيدا کړې دې؟ پس که څوک داسې قسم خبره کوی (يا وهم کوی) نو هغه له پکار دی چې داسې اووائی "ما په الله باندې ايمان راوړې دې".

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِى هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ يَزَالُ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ حَتَّى يُقَالَ هَذَا خَلَقَ اللَّهُ الْخَلْقَ فَمَنْ خَلَقَ اللَّهَ .......فَلْيَقُلْ آمَنْتُ بِاللَّهِ »﴾

يعنی خلق به فضول تپوسونه چه د واهياتو نه به ډک وی کوی تر دې چه بعض به دا سوال اوکړی چه ټول مخلوق خو الله پاک پيدا کړې دې، او الله پاک چا پيدا کړې دې، پس کوم سړی ته چه داسې وسوسه راشی نو هغه دې اوائی : امنت بالله ..او د دې وسوسې او د دې سوال په جواب کښې دې غور نه کوی، يعنی الله پاک چه د خپل ذات او صفاتو په اعتبار سره څنګه دې مونږ په هغې باندې ايمان لرو، او د الله پاک يو صفت خلق دې يعنی صفت د خلق د الله پاک دپاره ثابت دې د هغه نه علاوه بل څوک خالق نشته لهذا دا سوال باطل دې چه الله پاک چا پيدا کړې دې (۲) رسول الله ﷺ د دې وسوسې په ازاله کښې چه کوم جواب اوفرمائيلو ان شاء الله په دې باندې عمل کولو سره به دا وسوسه خپله ختم شی، او د دې نه په روستو روايت کښې دا زيادت دې فَإِذَا قَالُوا ذَلِكَ فَقُولُوا (اللَّهُ أَحَدٌ اللَّهُ الصَّمَدُ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ) ثُمَّ لِيَتْفُلْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلاَثًا وَلْيَسْتَعِذْ مِنَ الشَّيْطَانِ ﴾

---

[1]: صحيح البخاري/بدء الخلق ۱۱ (۳۲۷۶)، صحيح مسلم/الإيمان ۶۰ (۱۳۴)، سنن النسائي/ اليوم والليلة (۶۶۲)، (تحفة الأشراف: ۱۴۱۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۳۱/۲) (صحيح)

[2]: او متکلمين د دې جواب داسې ورکوی چه د هر ممکن او حادث دپاره د خالق او موجد کيدل ضروری دی نه د واجب دپاره ګيني تسلسل به لازم شی، کوم چه عقلا محال دې.

[۴۷۲۲](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، أخبرنا سَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عُتْبَةُ بْنُ مُسْلِمٍ مَوْلَى بَنِي تَيْمٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ: "فَإِذَا قَالُوا ذَلِكَ فَقُولُوا: اللَّهُ أَحَدٌ اللَّهُ الصَّمَدُ ۚ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۚ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ ۚ سورة الإخلاص آية ۱-۴، ثُمَّ لِيَتْفُلْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا، وَلْيَسْتَعِذْ مِنَ الشَّيْطَانِ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه مروي دی، هغه وائی چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمائيل ئي، ... او د مذکوره بالا په رنګ ئي بيان اوکړو-وي وئيل: "کله چې دا خلق اووائي نو تهٔ اووايه: الله يو دې - الله بې نياز دې - نه د هغه نهٔ څوک پيدا دی او نهٔ هغه د چا نه پيدا دې او هيڅوک نشته دې چې د هغه برابري اوکړي - بيا پکار دی چې ګس طرفته څه لاړې اوتوکی او د شيطان د شر نه د الله پناه اوغواړي-

الحديث الاول اخرجه البخاري، ومسلم والنسائي، والثاني اخرجه النسائي، قاله المنذري.

[۴۷۲۳](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، أخبرنا الْوَلِيدُ بْنُ أَبِي ثَوْرٍ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمِيرَةَ، عَنِ الْأَحْنَفِ بْنِ قَيْسٍ، عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، قَالَ: "كُنْتُ فِي الْبَطْحَاءِ فِي عِصَابَةٍ فِيهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَمَرَّتْ بِهِمْ سَحَابَةٌ، فَنَظَرَ إِلَيْهَا، فَقَالَ: مَا تُسَمُّونَ هَذِهِ؟ قَالُوا: السَّحَابَ، قَالَ: وَالْمُزْنَ، قَالُوا: وَالْمُزْنَ، قَالَ: وَالْعَنَانَ، قَالُوا: وَالْعَنَانَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ أُتْقِنِ الْعَنَانَ جَيِّدًا، قَالَ: هَلْ تَدْرُونَ مَا بُعْدُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ؟ قَالُوا: لَا نَدْرِي، قَالَ: إِنَّ بُعْدَ مَا بَيْنَهُمَا: إِمَّا وَاحِدَةٌ، أَوِ اثْنَتَانِ، أَوْ ثَلَاثٌ وَسَبْعُونَ سَنَةً، ثُمَّ السَّمَاءُ فَوْقَهَا كَذَلِكَ حَتَّى عَدَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ، ثُمَّ فَوْقَ السَّابِعَةِ بَحْرٌ بَيْنَ أَسْفَلِهِ وَأَعْلَاهُ مِثْلُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ، ثُمَّ فَوْقَ ذَلِكَ ثَمَانِيَةُ أَوْعَالٍ بَيْنَ أَظْلَافِهِمْ وَرُكَبِهِمْ مِثْلُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ، ثُمَّ عَلَى ظُهُورِهِمُ الْعَرْشُ مَا بَيْنَ أَسْفَلِهِ وَأَعْلَاهُ مِثْلُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ، ثُمَّ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى فَوْقَ ذَلِكَ".

د سيدنا عباس بن عبد المطلب رضي الله عنه نه روايت دي وائي: زهٔ په وادی بطحاء کښې په يو جماعت کښې ناست ووم په کوم چې رسول الله ﷺ هم تشريف فرما وو، هلته نه د وريځې يوه ټکړه تيره شوه - هغوی ﷺ د هغې طرفته اوکتل او تپوس ئي اوکړو: "تاسو خلق دې ته څه وائيئ؟" هغوی اووې: "سحاب" هغوی ﷺ اوفرمائيل: "او "مزن" هم؟" هغوی اووې او "مزن" هم- هغوی ﷺ اوفرمائيل: "او عنان" هم؟ هغوی اووې: او "عنان" هم وايو-... امام ابو داود رحمه الله فرمائی: ماته د (العنان) ذکر څه په ښه شان بانديې ياد نه دې... هغوی ﷺ اوفرمائيل: "تاسو څه ګنړئ چې د آسمان او د زمکې ترمينځه څومره فاصله ده؟" هغوی اووې: مونږ ته نهٔ ده معلومه- هغوی اوفرمائيل: "ددې دواړو په مينځ يو اويا يا دوه اويا يا درې اويا کالو فاصله ده- "بيا د هغې نه پس د دويم آسمان هم دومره فاصله ده - " حتیٰ چې هغوی ﷺ د اووه آسمانونه شمار کړل- بيا ئي اوفرمائيل: "د اووم دپاڅه سمندر دې د کوم چې په دومره قدر ژور او اوږد دې لکه چې د يو آسمان نه تر بل آسمانه پورې- بيا د دې دپاڅه اووه چيلئ (بيزې) دی د کومو چې د پنجو او د ګودو په مينځ کښې دومره

(۱): تفرد به أبوداود، سنن النسائي/عمل اليوم والليلة (٦٦١)، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٤٩٧٨) (حسن)
(۲): سنن الترمذي/تفسير الحاقة ٦٧ (٣٣٢٠)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٩٣)، (تحفة الأشراف: ٥١٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٠٦، ٢٠٧) (ضعيف)

فاصله ده لکه چې د يو اسمان نه تر بل اسمانه پورې، بيا دهغوی په شاګانو باندې عرش دې، دکوم چې دبيخ اود لوړوالی هم دومره فاصله ده څنګه چې د يو آسمان نه تر بل آسمانه پورې - بيا ددې نه بره الله تبارک و تعالیٰ دې.''

**قوله:**﴿عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ قَالَ كُنْتُ فِي الْبَطْحَاءِ فِي عِصَابَةٍ فِيهِمْ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَمَرَّتْ بِهِمْ سَحَابَةٌ فَنَظَرَ إِلَيْهَا فَقَالَ « مَا تُسَمُّونَ هَذِهِ ». قَالُوا السَّحَابَ......مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالأَرْضِ ». قَالُوا لاَ نَدْرِى الخ ﴾

## د حديث الاوعال مضمون :

سيدنا عباس رضي الله عنه فرمائی چه زه په بطحاء مکه کښې په يو جماعت کښې اوم چه په هغوی کښې رسول الله ﷺ هم وو پس هم په دې وخت کښې په اسمان کښ د وريځ يو ټکړه تيره شوه رسول الله ﷺ هغې طرف ته اوکتل او د حاضرينو نه ئې تپوس اوکړو چه تاسو د دې څه نوم ږدئ، صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض اوکړو مونږ دې ته سحاب وايو، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو او مزن هم ورته وايئ؟ هغوی عرض اوکړو اوجی مزن هم ورته وايو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل عنان هم ورته وايئ؟ هغوی عرض اوکړو اوجی عنان هم ورته وايو، بيا رسول الله ﷺ تپوس اوکړو د اسمان او زمکې ترمينځه څومره فاصله ده؟ هغوی اووې مونږ ته پته نشته، رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د دې دواړو ترمينځه فاصله د يو اويا يا دوه اويا يا درې اويا کالو ده، ﴿ ثُمَّ السَّمَاءُ فَوْقَهَا كَذَلِكَ حَتَّى عَدَّ سَبْعَ سَمَوَاتٍ ﴾ بيا ئې اوفرمائيل چه د اسمان دپاسه چه کوم دويم اسمان دې د هغې ترمينځه هم دومره فاصله ده، او هم دغه شان هغوی اووهٔ اسمانونه شمار کړل او وې فرمائيل چه په اووم اسمان باندې يو سمندر دې چه د هغې د تل او د پورته سطح ترمينځه هم دومره فاصله ده څومره چه د يو اسمان نه بل آسمان پورې ده.﴿ ثُمَّ فَوْقَ ذَلِكَ ثَمَانِيَةُ أَوْعَالٍ بَيْنَ أَظْلاَفِهِمْ وَرُكَبِهِمْ مِثْلُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلَى سَمَاءٍ ثُمَّ عَلَى ظُهُورِهِمُ الْعَرْشُ ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه بيا د دې سمندر دپاسه اتهٔ چيلی دی يعنی ملائک چه د چيلو په شکل باندې دی کوم چه د خپل بدن او قامت په اعتبار سره داسې دی چه د هغوی د خپو د او د کونډو ترمينځه دومره فاصله ده څومره چه د يو اسمان نه تر د بل آسمان پورې ده، يعنی د هغوی خپې دومره اوږدې او لوئې دی، ﴿ ثُمَّ عَلَى ظُهُورِهِمُ الْعَرْش ﴾ او د دې ملائکو په شا باندې عرش دې چه د هغې ژور والې او اوچتوالې دومره دې لکه د يو اسمان نه بل آسمان پورې، ﴿ ثم الله تعالى فوق ذلک ﴾ بيا د دې عرش دپاسه الله پاک دې.

## (په جهميه باندې رد)

دا حديث دلالت کوی په دې خبره باندې چه الله پاک فوق العرش دې او جهميه د چا په رد کښې چه دا باب دې هغوی د عرش هم منکر دی او د الله پاک د فوق العرش کيدو هم منکر دی، يعنی هغوی صفا داسې وائی چه الله پاک په عرش باندې نه دې بلکه بيخی عرش هم نه منی، دا خو بيله خبره ده چه په عرش باندې د کيدو مطلب څه دې، خو هغوی بالکليه د دې څيز انکار کوی.

## (د الرحمن على العرش مفهوم)

او زمونږ سلف صالحين صحابه او تابعين وغيره اهل علم رضوان الله عليهم اجمعين د الله پاک فوق العرش کيدل منی، او په عرش باندې د کيدو تشريح او کيفيت نه بيانوی د دې د کيفيت په باره کښې هغوی د خپل جهالت اعتراف کوی يو سړی د امام مالک رحمه الله نه د ﴿الرحمن على العرش استوى﴾ تفسير معلوم کړې وو، تپوس کونکې به دمبتدعين نه وو، نو هغوی اوفرمائيل: الاستواء معلوم والكيف مجهول والسوال عنه بدعة، اخرجوا هذا المبتدع من المجلس.

## حديث الاوعال من حيث السند:

د دې حديث نه په حديث الاوعال سره تعبير کولې شی، لفظ د اوعال په دې حديث کښې ذکر دې کوم چه د وعل جمع ده، يعنی تيس جبلی، غريز چيلې، دا حديث په ترمذی کښې هم شته، هغوی د دې حديث په باره کښې فرمائی حسن غريب، وروى شريك بعض هذا الحديث عن سماک فوقفه، بعض محدثينو په دې حديث باندې کلام کړې دې د دوه وجهو نه يو په دې وجه چه د دې په سند کښې وليد بن ابی ثور دې، بل دا چه هم د دې مضمون حديث په ترمذی کښې د حسن په طريق باندې د ابوهريره رضی الله عنه نه ذکر دې چه په هغې کښې دا اخرى کلمه يعنی، ثم الله تعالى فوق ذلک. نشته بلکه د هغې نه روستو د زمکی تذکره ده، هل تدرون ماالذي تحتكم؟ قالوا الله ورسوله أعلم قال فإنها الأرض ثم قال هل تدرون ماالذي تحت ذلك؟ قالوا الله ورسوله أعلم قال فإن تحتها الأرض الأخرى بينهما مسيرة خمسمائة سنة حتى عد سبع أرضين، حافظ ابن القيم رحمه الله د مثبتين حديث د طرف نه د دواړو جواب ورکړې دې چه وليد بن ابی ثور منفرد چرته دې خپله په ابوداؤد کښې د هغه دوه متابع موجود دی عمرو بن ابی قيس عن سماک، ابراهيم بن طهمان عن سماک، او د حديث الحسن عن ابی هريرة د معارضې په باره کښې ئې ليکلې دی چه دا معارضه فاسد ده فان الترمذی ضعف حديث الحسن هذا وقال فيه "غريب" فقط (او د حديث الباب په باره کښې فرمائی حسن غريب، قال ويروى عن ايوب ويونس بن عبيد وعلى بن زيد قالوا لم يسمع الحسن من ابی هريرة (تهذيب السنن لابن القيم) الحديث اخرجه الترمذي وابن ماجه، وقال الترمذي حسن غريب، قاله المنذري.

[٤٧٢٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ، أنبأنا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ سَعِيدٍ، قَالَا: أنبأنا عَمْرُو بْنُ أَبِي قَيْسٍ، عَنْ سِمَاكٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ.

**ترجمه:** حضرت عمرو بن ابوقيس بواسطه سماک دخپل سند نه مذکوره بالا حديث هم معنی روايت کړو.

[٤٧٢٥](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَفْصٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ سِمَاكٍ بِإِسْنَادِهِ، ومعنى هذا الحديث الطويل.

١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٥١٢٤) (ضعيف)
٢): انظر حديث رقم: (٤٧٢٣)، (تحفة الأشراف: ٥١٢٤) (ضعيف)

حضرت ابراهیم بن طهمان بواسطه سماک د هغه د سند نه مذکوره بالا دطویله حدیث هم معنیٰ بیان اوکړو۔

[٤٧٢٦]() حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الرِّبَاطِيُّ، قَالُوا: أخبرنا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، قَالَ أَحْمَدُ: كَتَبْنَاهُ مِنْ نُسْخَتِهِ، وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْحَاقَ يُحَدِّثُ، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "أَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيٌّ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، جُهِدَتِ الْأَنْفُسُ، وَضَاعَتِ الْعِيَالُ، وَنُهِكَتِ الْأَمْوَالُ، وَهَلَكَتِ الْأَنْعَامُ، فَاسْتَسْقِ اللَّهَ لَنَا، فَإِنَّا نَسْتَشْفِعُ بِكَ عَلَى اللَّهِ، وَنَسْتَشْفِعُ بِاللَّهِ عَلَيْكَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَيْحَكَ، أَتَدْرِي مَا تَقُولُ؟، وَسَبَّحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَمَا زَالَ يُسَبِّحُ حَتَّى عُرِفَ ذَلِكَ فِي وُجُوهِ أَصْحَابِهِ، ثُمَّ قَالَ: وَيْحَكَ، إِنَّهُ لَا يُسْتَشْفَعُ بِاللَّهِ عَلَى أَحَدٍ مِنْ خَلْقِهِ، شَأْنُ اللَّهِ أَعْظَمُ مِنْ ذَلِكَ، وَيْحَكَ، أَتَدْرِي مَا اللَّهُ؟ إِنَّ عَرْشَهُ عَلَى سَمَاوَاتِهِ لَهَكَذَا، وَقَالَ بِأَصَابِعِهِ مِثْلَ الْقُبَّةِ عَلَيْهِ، وَإِنَّهُ لَيَئِطُّ بِهِ أَطِيطَ الرَّحْلِ بِالرَّاكِبِ"، قَالَ ابْنُ بَشَّارٍ فِي حَدِيثِهِ: إِنَّ اللَّهَ فَوْقَ عَرْشِهِ، وَعَرْشُهُ فَوْقَ سَمَاوَاتِهِ، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، وقَالَ عَبْدُ الْأَعْلَى، وَابْنُ الْمُثَنَّى، وَابْنُ بَشَّارٍ، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عُتْبَةَ، وَجُبَيْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ أبو داود: وَالْحَدِيثُ بِإِسْنَادِ أَحْمَدَ بْنِ سَعِيدٍ هُوَ الصَّحِيحُ، ووافَقَهُ عَلَيْهِ جَمَاعَةٌ مِنْهُمْ: يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ وَعَلِيُّ بْنُ الْمَدِينِيِّ، وَرَوَاهُ جَمَاعَةٌ، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، كَمَا قَالَ أَحْمَدُ أَيْضًا، وَكَانَ سَمَاعُ عَبْدِ الْأَعْلَى، وَابْنِ الْمُثَنَّى، وَابْنِ بَشَّارٍ مِنْ نُسْخَةٍ وَاحِدَةٍ فِيمَا بَلَغَنِي.

حضرت جبیر بن محمد بن جبیر بن مطعم د خپل والد محمد نه هغه د خپل نیکه جبیر بن مطعم ﷛ نه روایت کوی چې د رسول الله ﷺ خوا له یو اعرابی راغلو - هغه اووې: اې د الله رسوله ﷺ! په ځانونو مو جوړه شوه، بال بچ مو مرې، مالونه مو ختم شو او مال مو مرې، د الله نه مونږ دپاره باران اوغواړه - مونږ د الله په حضور ستاسو سفارش پیش کوؤاو الله ستاسو په حضور سفارشي راولو- رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "افسوس په تا باندې! آیا ته پوهه ئې چې ته څه وائې؟" او رسول الله ﷺ مسلسل تسبیح (سبحان الله) وئیله حتیٰ چې (ددې خوف اثر) د هغوی صحابه کرامو ﷛ په مخونو باندې محسوس شو - بیا هغوی ﷺ اوفرمائیل: "افسوس په تا باندې! الله تعالیٰ ته د هغه په مخلوق کښې څوک هم سفارشي نه شي پیش کیدلې - د الله تعالیٰ شان ددې نه څو چنده ډیر لوې باعظمت (او برتر) دې- افسوس په تا باندې! آیا ته پوهیږې چې د الله کوم شان دې؟ بغیر د څه شک نه د هغه عرش په آسمانونو باندې داسې دې-" او هغوی ﷺ د خپلو ګوتو نه د قبې په رنګ شکل جوړ کړو- او وې فرمائیل: "هغه عرش دغه رنګ چراچراکوی څنګه چې پالان د خپل سور سره کوی-" ابن بشار په خپل روایت کښې اووې: "بغیر د څه شک نه الله تعالیٰ دخپل عرش نه بره دې -"...بواسطه یعقوب بن عتبه او جبیر بن محمد جبیر، هغه د خپل والد نه، هغه دخپل نیکه نه روایت کړو- امام ابو داود ﷫ اووې: او حدیث هم د احمد بن سعید صحیح دې - او یو جماعت د محدثینو ددې موافقت کړې دې په کومو کښې چې یحیٰ بن معین اوعلی بن مدینی هم وو- او یو جماعت د ابن اسحاق نه په دارنګ روایت کړې دې څنګه چې احمد اووې او څنګه چې ماته روایت رسیدلې دې - دعبدالاعلیٰ، دابن مثنیٰ او

---

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٩٦) (ضعيف)

دابن بشار سماع هم ديوې نسخې نه دې۔

**قوله:** ﴿عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ أَتَى رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ جُهِدَتِ الأَنْفُسُ وَضَاعَتِ الْعِيَالُ وَنُهِكَتِ الأَمْوَالُ وَهَلَكَتِ الأَنْعَامُ فَاسْتَسْقِ اللَّهَ لَنَا فَإِنَّا نَسْتَشْفِعُ بِكَ عَلَى اللَّهِ وَنَسْتَشْفِعُ بِاللَّهِ عَلَيْكَ.قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « وَيْحَكَ أَتَدْرِى مَا تَقُولُ » وَسَبَّحَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَمَا زَالَ يُسَبِّحُ حَتَّى عُرِفَ ذَلِكَ فِى وُجُوهِ أَصْحَابِهِ ﴾

## د حديث الاطيط مضمون:

د جبير بن مطعم رضی اللہ عنہ نه روايت دې چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې يو بانډچی راغلو او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ ټول خلق په مشقت کښې پراته دی او ماشومان ضائع کيږی او په مالونو کښې ډير کمې راغلې دې، او څاروی مری. يعنی د خشک سالۍ د وجې نه، لهذا د الله پاک نه زمونږ دپاره د باران دعا اوکړئ، مونږ تاسو په الله پاک باندې د سفارشی په طور پيش کوو (په دې جمله کښې خو هيڅ اشکال نشته) او الله پاک لره سفارشی جوړوو په تاسو باندې (دا قابل اشکال ده پس) رسول الله ﷺ اوفرمائيل خوار شې تا ته پته شته چه ته څه وائې او رسول الله ﷺ د الله پاک تسبيح بيانوله، او هغوی تسبيح بيانوله تردې چه د هغې احساس د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم په مخونو کښې هم معلوم شو يعنی د رسول الله ﷺ د ناراضګۍ، بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل هلاک شې! حقيقت دا دې چه الله پاک سفارشی نه شی جوړولې په مخلوق کښې په چا باندې، ځکه چه د سفارشی درجه کمه وی، د هغه چا نه چه چاته سفارش اوړلې شی، لهذا الله پاک لره سفارشی جوړول بې محل دی، د دې نه پس رسول الله ﷺ اوفرمائيل:

**قوله:** ﴿ وَيْحَكَ أَتَدْرِى مَا اللَّهُ إِنَّ عَرْشَهُ عَلَى سَمَوَاتِهِ لَهَكَذَا وَقَالَ بِأَصَابِعِهِ مِثْلَ الْقُبَّةِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَيَئِطُّ بِهِ أَطِيطَ الرَّحْلِ بِالرَّاكِبِ ﴾ ﴿ قَالَ ابْنُ بَشَّارٍ فِى حَدِيثِهِ « إِنَّ اللَّهَ فَوْقَ عَرْشِهِ وَعَرْشُهُ فَوْقَ سَمَوَاتِهِ »﴾

چه هلاک شې! تاته د الله پاک په باره کښې معلومه ده يعنی د هغه عظمت، بيشکه د هغه عرش په اسمانونو باندې داسې دې، او بيا رسول الله ﷺ په خپلو ګوتو مبارکو باندې په اشارې سره پوهه ورکړه لکه څنګه چه په يو څيز دپاسه قبه جوړولې شی، يعنی د الله پاک عرش آسمانونه داسې ګير کړی دی لکه څنګه چه په يو څيز باندې قبه جوړه کې شی د يو وړوکی پليټ دپاسه يو غټ سر کيخودلې شی، او رسول الله ﷺ فرمائی چه د عرش د دومره عظيم کيدو باوجود چه هغه په ټولو اسمانونو باندې محيط دې بيا هم هغه چغارکوی د الله پاک د وجې نه يعنی د هغه د عظمت د وجې نه لکه کله چه چه کجاوه د خپل سور د وزن د وجې نه چغار کوی

## د حديث اطيط الرحل تشريح:

امام خطابی رحمہ اللہ فرمائی چه په دې حديث کښې د دې د ظاهری معنی په اعتبار سره خو د الله پاک په عرش باندې د کيدو کيفيت مذکور دې حال دا چه د استواء علی العرش چه کوم کيفيت دلته په دې حديث کښې ذکر دې الله پاک د هغې نه بری دې، نو بيا د دې جواب د

ادي چه دا حديث په خپله معنی حقيقی باندې محمول نه دې او د دې کلام نه مقصود د ظاهری معنی اثبات نه دې بلکه مقصود تمثيل او تقريب دې يعنی د الله پاک عظمت شان لره په يو حسی مثال سره بيانول، ځکه چه سوال کونکې يو ناخبره باندچی وو، نو د کوم ځائې پورې چه د هغه د فهم رسيدل کيدل هم د هغې مطابق په دې مثال سره د الله پاک عظمت شان د هغه ذهن ته نزدې کړې شوې دې، پس معنی مرادی د دې کلام ﴿ قوله أَتَدْرِى مَا اللَّهُ ﴾ دا ده ﴿ اتدرى ما عظمة الله وجلاله ﴾ يعنی د الله پاک نه مراد عظمة الله دې، وقوله أنه لينط به معناه أنه ليعجز عن جلاله وعظمته حتى يئط به إذ كان معلوماً أن أطيط الرحل بالراكب إنما يكون لقوة ما فوقه ولعجزه عن احتماله فقرب بهذا النوع من التمثيل عنده معنى عظمة الله وجلاله وارتفاع عرشه ليعلم أن الموصوف بعلو الشأن وجلالة القدر وفخامة الذكر لا يجعل شفيعاً إلى من هو دونه في القدر وأسفل منه في الدرجة وتعالى الله أن يكون مشبهاً بشيء أو مكيفاً بصورة خلق أو مدركاً بحد ليس كمثله شيء وهو السميع البصير ........فرمائی چه د عرش د چغار کولو مطلب د الله پاک د وجې نه دا دې چه هغه عرش سره د دومره عظمت چه هغه ټول اسمانونه او زمکې پټ کړی دی، د الله پاک د جلالت او عظمت شان مخکښې عاجز او کمزورې دې لکه چه د راکب په وزن سره بعض وخت کجاوه آواز کوی.نو د دې تمثيل په ذريعه د دې اعرابی دپاره د الله پاک عظمت شان لره د هغه ذهن ته نزدې کړې شو، او دا چه کوم ذات په دومره لوئې عظمت شان سره متصف وی هغه د يو داسې چا سفارشی نه شی جوړيدې کوم چه د هغه نه په مرتبه کښې کم وی، او بغير د حقيقت نه الله پاک ته د يو داسې څيز سره تشبيه ښنګه ورکړې کيدې شی او ښنګه د هغه د حد ادراک کيدې شی (ځکه چه الله پاک خو د خپل ذات او صفاتو په اعتبار سره غير محدود دې، محدود کيدل خو د ممکن صفت دې، هغه خو واجب لذاته دې) ليس كمثله شئ وهو السميع العليم.

د دې نه پس چه د دې په سند کښې کوم اختلاف دې مصنف رحمه الله هغه بيانوی.

﴿ وَقَالَ عَبْدُ الأَعْلَى وَابْنُ الْمُثَنَّى وَابْنُ بَشَّارٍ عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عُتْبَةَ وَجُبَيْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَالْحَدِيثُ بِإِسْنَادِ أَحْمَدَ بْنِ سَعِيدٍ هُوَ الصَّحِيحُ ﴾

## شرح السند :

پورته په سند کښې راغلی دی ﴿ عن يعقوب بن عتبة عن جبير ﴾ د مصنف رحمه الله په دې حديث کښې څلور استاذان دی په دې څلورو کښې احمد بن سعيد خو سند داسې بيان کړې دې يعنی جبير بن محمد ته ئې د يعقوب استاد وئيلې دې او باقی درې استاذان کوم د سند په شروع کښې ذکر دی هغوی د ﴿ عن جبير بن محمد ﴾ په وجبير بن محمد په عطف سره وئيلې دې.يعنی د جبير نه ئې د يعقوب ملګرې جوړ کړو، ګويا محمد بن اسحاق د يعقوب او جبير دواړو نه روايت کوی، بيا وراندې مصنف رحمه الله چه کوم سند پورته ذکر کړې دې د احمد بن سعيد والا د هغې تصحيح ئې کړې ده چه صحيح دغه شان دې، او وجه د ترجيح ئې دا بيان کړه چه په دې کښې د احمد بن سعيد موافقت کړې دې يو جماعت چه په هغوی کښې يحيی بن معين او علی بن المدينی هم دې، وراندې فرمائی چه ښنګه د احمد په سند

کښې د جرير محمد بن اسحاق نه روايت کوی هم دغه شان ځو نور حضرات هم د محمد بن اسحاق نه هم دغه شان روايت کوی ګويا د احمد متابعت کونکې دهغوی په استاذ کښې هم دې او په استاد الاستاد کښې هم، اول متابعت اصولا متابعت تامه دې او دويم متابعت قاصره، پس په شرح نخبه کښې دی،

والمتابعة على مراتب، لانها ان حصلت للراوی نفسه فهى التامة، وان حصلت لشيخه فمن فوقه فهى القاصرة، ويستفاد منها التقوية ........مصنف رحمه الله چونکه د احمد بن سعيد روايت له ترجيح ورکړې ده د متابعت او کثرت د وجې نه نو چا اووې چه په بل طرف کښې هم کثرت دې پس درې راويان دی، عبدالاعلی، ابن المثنی، ابن بشار، نو د هغې جواب ورکوی : ﴿ وكان سماع عبدالاعلى الخ ﴾ هغه دا چه اګر چه درې راويان دی خو د دې درې واړو سماع د خپل استاذ نه صرف يو نسخه ده لهذا دا درې واړه په حکم کښې ديو دی.

## په حديث الاطيط باندې کلام جرحا او تاويلا :

د دې نه پس پيژندل پکار دی چه د حديث الاطيط تشريح او تاويل کښې مونږ د امام خطابی کلام نقل کړې دې هغه مو د بذل المجهود نه اخستلې دې ګويا د حضرت رائې هم هغه ده کومه چه د امام خطابی ده خو صاحب دعون المعبود کوم چه د منکرين تقليد نه دی (او دا منکرين تقليد خپل ځان ته خلقو ته د دهوکې ورکولو دپاره سلفی او اهل حديث وائی) هغوی د امام خطابی په کلام باندې نقد کړې دې او ليکلې ئې دی چه د : كَلَامُ الْإِمَامِ الْخَطَّابِيِّ فِيهِ تَأْوِيلٌ بَعِيدٌ خِلَافُ لِلظَّاهِرِ لَا حَاجَةَ إِلَيْهِ، وَإِنَّمَا الصَّحِيحُ الْمُعْتَمَدُ فِي أَحَادِيثِ الصِّفَاتِ إِمْرَارُهَا عَلَى ظَاهِرِهَا مِنْ غَيْرِ تَأْوِيلٍ وَلَا تَكْيِيفٍ وَلَا تَشْبِيهٍ وَلَا تَمْثِيلٍ كَمَا عَلَيْهِ السَّلَفُ الصَّالِحُونَ وَاللَّهُ أَعْلَمُ ...زمونږ د خيال مطابق دا د صاحب عون مغالطه ده د امام خطابی دا تاويل د سلف صالحين د مسلک خلاف نه دې سلف صالحين چه د کومو احاديث صفات په باره کښې وئيلې دی چه ﴿ امرارها على ظاهرها ﴾ نو دا ئې د هغه حديث صفات په باره کښې وئيلې دی کوم چه مطلق دی، چه په هغې کښې کيفيت مذکور نه دې لکه ﴿ الرحمن على العرش استوى ﴾ او ﴿ ينزل ربنا كل ليلة فى الثلث الاخير ﴾ او ﴿ ويد الله على الجماعة ﴾ د داسې قسم احاديث صفات په باره کښې مونږ (متبعين د سلف صالحين) د هغې د حق کيدو قائل يو، او ورسره د دې هم چه دا حديث په خپله معنی باندې محمول نه دی، مثلا مونږ د الله پاک د يد قائل يو لکه چه په حديث کښې دی خو ورسره دا اعتقاد هم لرو چه ليس يده كيدنا بل لا نعلم حقيقتها وله سبحانه وتعالى يد تليق بشانه، ځکه چه سلف صالحين د تشبيه او تمثيل قائل نه دی خو که په يو حديث کښې په احاديث صفات کښې هم دغه شان د باری تعالی صفات په کيفيت سره مذکور وی لکه چه په دې حديث الاطيط کښې نو دغه شان احاديث د سلفو په نزد په خپل ظاهر باندې نه دی محمول، هم په دې وجه مونږ اووې چه د صاحب عون په کلام کښې مغالطه ده په ظاهر کښې به هغوی خپله هم پوهه شوی وی په دې خبره باندې خو هم دغه شان ليکی، او دغه شان حافظ ابن القيم هم په تهذيب السنن کښې د دې حديث په

تصحیح کښې لګیدلې دې هغوی په دې باندې ډیر مبسوط کلام کړې دې، امام خطابی رحمه الله خو په دې حدیث باندې کلام من حیث التاویل کړې دې هغوی دا موول ګرزولې دې او د جرح او د تعدیل په اعتبار سره ئې صرف دا لیکلی دی: وذکر البخاری هذا الحدیث فی التاریخ من روایة جبیر بن محمد بن جبیر عن ابیه عن جده، ولم یدخله فی الجامع الصحیح، خو حافظ منذری رحمه الله د دې حدیث په ثبوت باندې کافی جرح کړې ده، لهذا د هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی، خلاصه د هغوی د جرح دا ده چه د دې حدیث په سند کښې محمد بن اسحاق دې چه هغه مدلس دې او دا ئې په عن سره روایت کړې دې او عنعنه د مدلس معتبر نه ده، د ابن اسحاق په روایت باندې خو د سماع دتصریح نه پس هم محدثینو ته کلام دې پاتې لا دا چه په دې صورت کښې د سماع تصریح هم نه وی ﴿ فکیف اذا لم یصرح به ﴾ بلکه دا چه ابن اسحاق دې روایت لره د یعقوب نه په روایت کولو کښې منفرد دې او بل دا چه په دې سره یعقوب بن عتبه متفرد دې د جبیر بن محمد نه په روایت کولو کښې او د دې دواړو روایت په صحیحین کښې نشته دې او دریم اعتراض ئې دا کړې دې چه په لفظ د ﴿ لیئط به ﴾ کښې د راویانو اختلاف دې بعضو لفظ د "به" په هغې کښې ذکر کړې دې او یحیی بن معین لفظ د "به" نه دې ذکر کړې حال دا چه زیات دخل په اشکال کښې د لفظ د "به" دې.

صاحب د انوار الباری مولانا سید احمد رضا صاحب بجنوری رحمه الله په کتاب مذکور جلد ۱۱ صفحه ۲۴ کښې د څو علمی حدیثی فوائد د عنوان لاندې په فائده ثانیه کښې وائی: په بذل المجهود او انوار المحمود کښې په ﴿ اطیط عرش ﴾ والا حدیث مذکور باندې هیڅ کلام نه دې کړې شوې، حالانکه ضروری وو، او په فائده ثالثه کښې لیکی: په ابوداؤد کښې په باب الجهمیة کښې حدیث اوعال په طریق د سماک بن حرب روایت کړې شوې دې کوم چه په ترمذی او ابن ماجه کښې هم شته خو حافظ ابن معین، امام احمد، امام بخاری، امام مسلم، امام نسائی او امام ابن الجوزی رحمهم الله د دې حدیث د صحت نه انکار کړې دې، حافظ ابن القیم په تهذیب ابی داؤد کښې په کثرت د طرق ښودلو سره د دې د تصحیح او تقویت سعی کړې ده، حال دا چه د سماک د انفراد نه پس په کثرت طرق سره هیڅ فائده نه حاصلیږی، حقیقت دا دې چه د حافظ ابن القیم علم په معرفت رجال کښې ضعیف وو لکه چه علامه ذهبی هم په المعجم المختص کښې د دې تصریح کړې ده، د دې حدیث په باره کښې پوره تحقیق په په فصل المقال فی تمحیص احدوثة الاوعال کښې د کتلو قابل دې، په بذل المجهود کښې دلته هم د حدیث مذکور د رجال په باره کښې کلام ډیر ناکافی دې او په سماک باندې خو هیڅ هم نه دی لیکلې شوې، چه په هغه باندې رڼړا اچول ضروری وو. اهـ (۱)

(۱) مولانا سید احمد رضا صاحب رحمه الله په ملفوظات محدث کشمیری (ص ۲۰۵) نومې کتاب کښې یو ځائې ضمنا د تقویة الایمان په باره کښې د حضرت مدنی دا رائې چه په رساله تقویة الایمان کښې حذف او الحاق شوې دې ځکه د هغې نسبت د حضرت شهید طرف ته صحیح نه دې، خو لیکی چه احقر په انوار الباری کښې عرض کړې وو چه زه په دې نسبت کښې ځکه هم متردد یم چه دا کتاب........ لـه

[۴۷۲۷](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَفْصِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أخبرنا أَبِي، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أُذِنَ لِي أَنْ أُحَدِّثَ عَنْ مَلَكٍ مِنْ مَلَائِكَةِ اللَّهِ، مِنْ حَمَلَةِ الْعَرْشِ، إِنَّ مَا بَيْنَ شَحْمَةِ أُذُنِهِ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيرَةُ سَبْعِ مِائَةِ عَامٍ".

حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه روايت کوی. رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "ماته اوئيلي شو چې زهٔ تاسو ته د حاملين عرش نه د يوې فرېښتې متعلق اووايم. بغير د څه شک نه د هغه د غوږونو نه تر اوګې پورې فاصله د اووسوو کالو برابره ده."

**قوله:** ﴿عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « أُذِنَ لِى أَنْ أُحَدِّثَ عَنْ مَلَكٍ مِنْ مَلاَئِكَةِ اللَّهِ مِنْ حَمَلَةِ الْعَرْشِ إِنَّ مَا بَيْنَ شَحْمَةِ أُذُنِهِ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيرَةُ سَبْعِمِائَةِ عَامٍ »﴾

رسول الله ﷺ فرمائي چه ماته د پورته نه اجازت راکړې شوې دې د دې خبرې چه کومو ملائکو عرش اوچت کړې دې په هغوی کښې د يو ملائک حال بيان کړم خلقو ته، هغه دا چه هغه د بدن په اعتبار سره دومره لوئې دی چه د هغه د اوږې او غوږ ترمينځه فاصله د اووهٔ سوو کالو په مقدار ده. د دې حديث مناسبت هم د باب سره هم هغه دې کوم چه مخکښې تير شوې دې چه جهميه د عرش انکار کوی.

[۴۷۲۸](٢) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ نَصْرٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يُونُسَ النَّسَائِيُّ المعنى، قَالَا: أنبأنا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ الْمُقْرِئُ، أخبرنا حَرْمَلَةُ يَعْنِي ابْنَ عِمْرَانَ، حَدَّثَنِي أَبُو يُونُسَ سُلَيْمُ بْنُ جُبَيْرٍ مَوْلَى أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقْرَأُ

---

← ...... په عقائدو کښې دې چه د هغې دپاره د قطعيات ضرورت دې او حال دا چه په دې کښې حديث اطيط هم ذکر دې کوم چه شاذ او منکر دې اګر چه د ابوداؤد دې څکه چه امام ابوداؤ رحمه الله په قول دعلامه ذهبی وغيره په داسې احاديثوباندې سکوت اختيارکړې دې کوم چه دواضح ضعيف راويانودوجې نه ظاهر الضعف والنکارة دی اودا حديث د ثمانية اوعال هم ډير زيات منکر او شاذ دې، که دا پوره تصنيف د شهيد رحمه الله وې نو هغوی به د داسې ضعيف حديث نه په عقائدو کښې استدلال نه کولې چه د هغې نه عقائد څهٔ چه احکام هم نه ثابتيږی، په دې باندې ماته مولانا زکريا صاحب شيخ الحديث اوليکل چه تاسو داسې ولې ليکلې دی حال دا چه حافظ ابن القيم د حديث اطيط تصحيح کړې ده، ما حضرت ته اوليکل ... بيا چه کله د بذل المجهود طباعت په مصر کښې شروع شو نو ما حضرت ته توجه ورکړه چه په دې احاديثو باندې چه کوم کلام محدثينو کړې دې هغه دې په حاشيه کښې شائع کړې شی، حضرت اوليکل چه کوم حضرات د طباعت دپاره مصر ته تلی دی هغوی به دا کار اونکړې شی او په دې باندې چه کوم کلام کړې شوې دې هغه د مدرسې په نسخې باندې دلته قلمی موجود دې د هغې نقل درليږم، حضرت د هغې نقل کولو سره ماته رجستری په ډاک باندې راوليږله خو هغه زما نه ضائع شوه په هغه خط کښې د ابوداؤد په حديث اطيط او حديث ثمانية اوعال د دواړو په رجال باندې کلام او د شاذ او منکر کيدو تفصيل دې چونکه دا يو اهم حديثی تحقيق دې او د دې دواړو احاديثو نه سلفی حضرات هم برابر استدلال کوی په دې وجه د دې د بذل المجهود په حاشيه باندې طبع کيدل ډير ضروری وو خو افسوس چه هغه طبع نه شو، دا دې هم واضحه وی چه د حديث اطيط په وجه باندې سلفی حضرات والعياذ بالله د الله پاک دپاره د تولو وزنی څيزونو کانړو او اوسپنو نه زيات وزن منی او دارمی سجزی په خپل کتاب النقض کښې هم دا نقل کړې دی چه په هغې کښې نې د الله پاک دپاره قيام او جلوس وغيره هم ثابت کړې دی کوم چه علامه ابن تيمية په موافقة المعقول (هامشه منهاج السنة) کښې نقل کړې دې، ، ، الي اخره،،، په آخره کښې د مقالات کوثری (ص ۳۴۸) حواله ده)

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٠٨٦) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٦٧) (صحيح الإسناد)

هَذِهِ الْآيَةَ: "إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا إِلَى قَوْلِهِ تَعَالَى سَمِيعًا بَصِيرًا سورة النساء آية ۵۸، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ إِبْهَامَهُ عَلَى أُذُنِهِ، وَالَّتِي تَلِيهَا عَلَى عَيْنِهِ"، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَؤُهَا وَيَضَعُ إِصْبَعَيْهِ، قَالَ ابْنُ يُونُسَ: قَالَ الْمُقْرِءُ: يَعْنِي إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ: يَعْنِي أَنَّ لِلَّهِ سَمْعًا وَبَصَرًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذَا رَدٌّ عَلَى الْجَهْمِيَّةِ.

حضرت ابو هريره رضي الله عنه دغه ايت اولوستو (ان الله الله يامركم ان تودو الامنت الى اهلها...سميعاً بصيراً) "بغير د څه شک الله تعالیٰ تاسو ته حکم درکوی چې امانتونه د هغې حقدارانو ته اورسوئ او کله چې د خلقو په مينځ کښې فيصله کوئ نو د عدل او د انصاف سره فيصله کوئ، الله ښه نصيحت کوی، بغير د څه شک الله ښه اوريدونکې او ښه کتونکې دې." وائی چې ما رسول الله ﷺ اوليدو چې هغوی خپل کته ګوته په خپل غوږ او ورسره واله ګوته په خپلې سترګه باندې ايخودله. حضرت ابو هريره رضي الله عنه اووې: ما رسول الله ﷺ اوليدو چې دغه آيت به ئې وئيلو او خپلې ګوتې به ئې (په غوږ او سترګه) باندې ايخودې- ابن يونس روايت کړو چې عبد الله بن يزيد مقری اووې: مقصد دا دې چې بغير د څه شک الله تعالیٰ سميع و بصير دې يعنی هغه ښه اوری او ښه ګوری- امام ابو داود رحمه الله وائی چې په دې کښې د جهميه ترديد دې (الله عزوجل ددغو صفاتو نه فی الواقع متصف دې).

**قوله:** ﴿ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقْرَأُ هَذِهِ الْآيَةَ (إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا) إِلَى قَوْلِهِ تَعَالَى (سَمِيعًا بَصِيرًا) قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَضَعُ إِبْهَامَهُ عَلَى أُذُنِهِ وَالَّتِي تَلِيهَا عَلَى عَيْنِهِ ﴾ سيدنا ابوهريره رضي الله عنه فرمائی چه ما رسول الله ﷺ اوليدو چه د دې آيت کريمه د تلاوت فرمائيلو په وخت ﴿ ان الله کان سميعا بصيرا ﴾ ته چه کله راورسيدلو نو خپله کته ګوته ئې خپل غوږ او د شهادت ګوته به ئې په خپله سترګه باندې کيخودله، د الله پاک د سمع او بصر طرف ته د اشارې کولو دپاره (خو تشبيه او تکييف مقصود نه دې چه د الله پاک سترګې او غوږونه هم داسې دی) په جهميه باندې د رد کولو دپاره کوم چه د صفات مشترکه انکار کوی چه په هغې کښې سمع او بصر هم داخل دی.

## بَابٌ فِي الرُّؤْيَةِ

### باب ۱۹- دالهی د ديدار بيان

دا مسئله هم د اهل سنت او د نورو فرقو ترمينځه مختلف فيه ده، اهل سنت والجماعت د دې قائل دی د آيات قرآنيه او احاديث صحيحه د وجې نه، معتزله اوجهميه ددې انکار کوی يعنی د الله پاک رويت د بندګانو دپاره د قيامت په ورځ باندې، په شرح عقائد کښې دی ﴿ ورؤية الله تعال جائزة فی العقل واجبة بالنقل ﴾ وقد ورد الدليل السمعی بايحاب رؤية المومنين الله تعالی فی دارالآخرة اما لكتاب فقوله تعالی ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾ واما السنة فقوله عليه السلام انكم سترون ربكم كما ترون القمر ليلة البدر، وهو مشهور رواه احدوعشرون من اكابر الصحابة رضوان الله تعالی عليهم اجمعين، واما الاجماع فهو ان الامة مجمعين علی وقوع الرؤية فی الاخرة وان الايات الواردة فی ذلک محمولة علی ظواهرها.

## د منکرین رویة دلیل او د هغې جواب :

ثم ظهرت مقالة المخالفين وشاعت شبههم وتاويلاتهم، واقوى شبههم من العقليات ان الروية مشروطة بكون المرئي في مكان وجهة ومقابلة من الرائي وثبوت مسافة بينهما بحيث لا يكون في غاية القرب ولا في غاية البعد واتصال شعاع من الباصرة بالمرئي، وكل ذلك محال في حق الله تعالى، والجواب منع هذا الاشتراط واليه اشار بقوله فيرى لا في مكان ولا على جهة من مقابلة واتصال شعاع او ثبوت مسافة بين الرائي وبين الله تعالى وقياس الغائب على الشاهد فاسد ...الى اخر ما ذكر ...

یعنی د الله پاک لیدل عقلا منع نه دی بلکه جائز دی او شرعا ثابت دی د دې پورته ذکر شوې آیتونو او احادیثو په وجه باندې، مثلا د رویت دپاره عقلا شرط دا دې چه یو مرئی ځیز په یو ځائې او جهت کښې وی او د رائی او د مرئی مقابله موندلې شی او دا چه د یو رائی او مرئی ترمینځه څه اندازه مسافت او فاصله موندلې شی، نه غایت قرب وی او نه غایت بعد، غایت قرب هم د رویت نه مانع وی لکه هغه ځیزونه چه د سترګو دپاسه کیخودلې شی، سترګې هغه نه شی لیدلې، د غایت قرب د وجې نه او د غایت بعد مانع کیدل هم ښکاره دی لهذا چه کله دا شرطونه په رویت باری کښې موجود نه دی نو رویت هم ممکن نه دې، د دې جواب ئې دا ورکړو چه دا کوم شرطونه چه تاسو بیانوئ دا رویت د ممکن دې د ممکن دپاره، لهذا د واجب تعالی رویت لره په رویت د ممکن باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دی، پس د الله پاک رویت به مسلمانانو ته په آخرت کښې وی بغیر د دې نه چه الله پاک په یو جهت او مکان کښې یا په مقابله کښې وی او هم دغه شان بغیر د اتصال شعاع نه، هم دغه شان د هغوی نور اشکالات ﴿ لا تدركه الابصار ﴾ وغيره جوابات هلته ذکر دی، د هغې طرف ته دې رجوع اوکړې شی.

## روية باری تعالى فى الدنيا وفى المعراج :

د اصل مسئلې تعلق خو د رویت فی الاخرة سره دې، خو رویت باری تعالی فی الدنیا او هم دغه شان د رسول الله ﷺ الله پاک لره لیدل په واقعه د معراج کښې دا خپله د اهل سنت او صحابه کرامو رضي الله عنهم ترمینځه مختلف فیه ده، په شرح عقائد کښې د معراج په بیان کښې دی : ثم الصحيح انه عليه الصلوة والسلام انما راى ربه بفواده لا بعينه ...او په جلالین کښې دی ﴿ ما كذب الفواد ما راى ببصره من صورة جبريل ﴾ وفي هاشية الجمل قوله من صورة جبريل بيان لما راى، وهذا احد قولين في تفسير ما راى، والثاني ان الذى راه هو ذات الله تعالى وعبارة الخازن : واختلفوا في الذي رآه،فقيل : رأى جبريل وهو قول ابن عباس وابن مسعود وعائشة وقيل : هو الله عز وجل ثم اختلفوا على هذا في معنى الرؤية فقيل جعل بصره في فؤاده وهو قول ابن عباس روى مسلم عن ابن عباس ما كذب الفؤاد ما رأى ولقد رآه نزلة اخرى قال : رآه بفؤاده مرتين وذهب جماعة إلى أنه رآه بعينه حقيقة وهو قول أنس بن مالك والحسن وعكرمة قالوا : رأى محمد ربه عز وجل.وروى عن ابن عباس،قال : إن الله عز وجل اصطفى إبراهيم بالخلة،واصطفى موسى بالكلام،واصطفى محمدا بالرؤية.وقال كعب : إن الله قسم رؤيته وكلامه بين محمد وموسى فكلم موسى مرتين ورآه محمد

مرتين أخرجه الترمذي بأطول من هذا.وكانت عائشة تقول : لم ير رسول الله صلّى الله عليه وسلّم ربه.وتحمل الآية على رؤية جبريل...وفي الخطيب : وحاصل المسألة : أنّ الصحيح ثبوت الرؤية وهو ما جرى عليه ابن عباس حبر الأمّة،وهو الذي يرجع إليه في المعضلات،وقد راجعه ابن عمر فأخبره انه رآه ولا يقدح في ذلك حديث عائشة،لأنها لم تخبر انها سمعت من رسول الله صلى الله عليه وسلم أنه قال لم أر وإنما اعتمدت على الاستنباط مما تقدم وجوابه ظاهر،فإنّ الإدراك هو الإحاطة والله تعالى لا يحاط به وإذا ورد النص بنفي الإحاطة لا يلزم منه نفي الرؤية بغير إحاطة،وأجيب عن احتجاجها بقوله تعالى : {وما كان لبشر أن يكلمه الله} بأنه لا يلزم من الرؤية وجود الكلام حال الرؤية فيجوز وجود الرؤية من غير كلام،وبأنه عام مخصوص بما تقدّم من الأدلة اهـ د جمل روايت چونكه ډير زيات واضح او جامع وو او په مسئلې باندې د پوهې دپاره كافي وو په دې وجه ټول نقل كړې شو ،والله تعالى الموفق.

حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې د جمل نه علاوه نور هم د ډيرو كتابونو حوالې ذكر كړې دى، او په هغې كښې دا هم دى : ورجح القارى فى شرح الشفاء ص ٤٣٠ ان الروية للصفات لا للذات وقال فى شرح الفقه الاكبر : الصحيح ما فى شرح العقائد انه راه بقلبه وهكذا فى التفسير الاحمدى وختار مولانا التهانوى فى بيان القرآن التوقف وفى نشر الطيب روية البصر واختار فى فتح الملهم انه راه مرة بقلبه ومرة ببصره وفى الفتاوى الحديثية ١٥٧ لابن حجر، هل يرا ه المومنات ايضا ام لا؟ والملائكة والامم السابقة ام لا؟

[٤٧٢٩](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ،أخبرنا جَرِيرٌ،وَوَكِيعٌ،وَأَبُو أُسَامَةَ،عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ،عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ،عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ،قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُلُوسًا،فَنَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَيْلَةَ أَرْبَعَ عَشْرَةَ،فَقَالَ: "إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هَذَا،لَا تُضَامُّونَ فِي رُؤْيَتِهِ،فَإِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَا تُغْلَبُوا عَلَى صَلَاةٍ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا،فَافْعَلُوا،ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ: ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا﴾".

حضرت جرير بن عبد الله رضي الله عنه بيان كوى چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چې هغوى ﷺ د سپوږمۍ طرفته نظر پورته كړو او شپه د څورلسمې وه او سپوږمۍ ښه پريكيده - هغوى ﷺ اوفرمائيل: تاسو به خپل رب ګورئ څنګه چې دا ګورئ،د هغه په كتو كښې به څه ګنړه نۀ وى،ددې دپاره كه چرې كولې شئ نو دا اوكړئ چې د نمر ختو او د پريوتو نه د مخكښې مونځونو كښې مغلوبه نه شئ بيا هغوى ﷺ دغه آيت تلاوت اوفرمائيلو- «سبح بحمد ربک قبل طلوع الشمس و قبل غروبها)''پس د خپل رب حمد او ثناء بيان كړى،د نمر ختلو نه مخكښې او د نمر پريوتو نه مخكښې.''

﴿ عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- جُلُوسًا فَنَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَيْلَةَ أَرْبَعَ عَشْرَةَ فَقَالَ « إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ كَمَا تَرَوْنَ هَذَا لاَ تُضَامُّونَ فِى رُؤْيَتِهِ ﴾ ...او د دې نه په روستو روايت كښې دى:

(١): صحيح البخاري/المواقيت ١٦ (٥٥٤)، التوحيد ٢٤ (٧٤٣٥)، صحيح مسلم/المساجد ٣٧ (٦٣٣)، سنن الترمذي/صفة الجنة ١٦ (٢٥٥١)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٧٧)، (تحفة الأشراف: ٣٢٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٦٠، ٣٦٢، ٣٦٥) (صحيح)

[۴۷۳۰] (¹) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أخبرنا سُفْيَانُ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ سَمِعَهُ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ نَاسٌ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ قَالَ: هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ فِي الظَّهِيرَةِ لَيْسَتْ فِي سَحَابَةٍ؟، قَالُوا: لَا، قَالَ: هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَيْسَ فِي سَحَابَةٍ؟، قَالُوا: لَا، قَالَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَتِهِ إِلَّا كَمَا تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ أَحَدِهِمَا".

حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان اوکړو چې خلقو تپوس اوکړو : اې د الله رسوله ﷺ! ايا مونږ به د قيامت په ورځ الله عزوجل کتې شو؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل :"آيا د غرمې په وخت، کله چې په آسمان باندې وريځ وغيره نه وی نو په نمر کتو کښې تاسو ته څه تکليف يا مشکل وی؟" هغوی اووې : نه- هغوی ﷺ اوفرمائيل :"آيا تاسو د څوارلسمې سپوږمۍ په شپه کښې چې کله وريځ وغيره نه وی نو په سپوږمۍ کتو کښې څه تکليف يا مشکل وی؟" هغوی اووې: نه- هغوی ﷺ اوفرمائيل :"قسم مې دې په هغه ذات وی د چا په لاس کښې چې زما ځان دې ! تاسو ته به د هغه په کتو کښې څه قسمه تکليف يا مشکل نه وی خو هم دومره چې څومره تاسو ته د سپوږمۍ يا د نمر په ليدو کښې وی-" (هيڅ مشکل به نه وی-)

**قوله**: ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ نَاسٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَرَى رَبَّنَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ « هَلْ تُضَارُّونَ فِي رُؤْيَةِ الشَّمْسِ فِي الظَّهِيرَةِ ﴾

يعنی يو ځل يو صحابی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه آيا مسلمانان به د قيامت په ورځ باندې د الله پاک ديدار کوی؟ (په ذهن کښې ئې دا وو چه که وی نو څنګه به وی يعنی د خلقو په دومره ګڼره کښې چه د هغې اندازه نه شی لګولې کيدې هغوی به د غه ذات واحد څنګه وينی، ممکنه ده چه په هغې کښې ديکو ته خبره اورسيږی چه په هغې کښې به ئې بعض اوکړې شی او بعض به هم داسې پاتې شی، نو رسول الله ﷺ د دې جواب ډير په واضحه مثال سره بيان کړو چه آيا ته نه ګورې چه د سپوږمۍ يو مختصر شان وجود دې چه کله هغه د څوارلسمې په شپه باندې پوره شی نو د ټولې دنيا انسان هغې ته ډير په آرام سره بغير د ګڼرې نه په خپل ځائې باندې ولاړ کتلې شی.

او د دې نه په روستو روايت کښې دی : ﴿ أَكُلُّنَا يَرَى رَبَّهُ مُخْلِيًا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾ په دې کښې د صحابی د رسول الله ﷺ نه هم دغه تپوس دې چه د قيامت په ورځ باندې به هر سړې په خپل ځائې باندې کيدو سره، يواځې بغير د زحمت نه الله پاک وينی.

[۴۷۳۱] (²) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أخبرنا حَمَّادٌ ح وأخبرنا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، أخبرنا شُعْبَةُ الْمَعْنَى، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ وَكِيعٍ، قَالَ مُوسَى: ابْنِ عُدُسٍ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، قَالَ مُوسَى: الْعُقَيْلِيِّ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَكُلُّنَا يَرَى رَبَّهُ؟ قَالَ ابْنُ مُعَاذٍ: مُخْلِيًا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَمَا آيَةُ ذَلِكَ فِي خَلْقِهِ؟ قَالَ: يَا أَبَا رَزِينٍ، أَلَيْسَ كُلُّكُمْ يَرَى الْقَمَرَ؟، قَالَ ابْنُ مُعَاذٍ: لَيْلَةَ الْبَدْرِ مُخْلِيًا بِهِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، قُلْتُ: بَلَى، قَالَ: فَاللَّهُ أَعْظَمُ؟، قَالَ

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٦٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ١٢٩ (٨٠٦)، والرقاق ٥٢ (٦٥٧٣)، والتوحيد ٢٤ (٧٤٣٧)، صحيح مسلم/الإيمان ٨١ (١٨٢) والزهد ١ (٢٩٦٦)، سنن الترمذي/صفة الجنة ١٧ (٢٥٥٤)، سنن الدارمي/الرقاق ٨١ (٢٨٤٣) (صحيح)

²): سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (١٨٠)، (تحفة الأشراف: ١١١٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١١، ١٢) (حسن)

ابْنُ مُعَاذٍ: قَالَ: فَإِنَّمَا هُوَ خَلْقٌ مِنْ خَلْقِ اللَّهِ، فَاللَّهُ أَجَلُّ وَأَعْظَمُ".

حضرت ابو رزین (لقیط بن عامر) رضی الله عنه بیان اوکړو چې ما اووې: اې د الله رسوله ﷺ! ایا مونږ ټول به خپل رب کتې شو؟ دعبید الله بن معاذ الفاظ دی: آیا مونږ ټول به د قیامت په ورځ هغه ځان ځان له وینونو په مخلوق کښې به د هغه څه علامت وی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل: ''اې ابورزین! آیا په تاسو کښې هر څوک سپوږمۍ نه وینی؟'' د ابن معاذ الفاظ دی: ''آیا په څوارلسمې شپه کښې سپوږمۍ خلق ځان ځان له نه شی کتې؟''... بیا د دواړو راویانو اتفاق دې...ما اووې: ولې نه (ددې په کتو کښې وخت یا ازدحام نه وی) هغوی ﷺ اوفرمائیل: ''نودالله شان ډیر لوئ اوبلند دې-''دابن معاذ الفاظ دی، هغوی ﷺ اوفرمائیل: ''دا خودالله د یو مخلوق حال دې او د الله تعالیٰ شان خو ډیر بلند دې-''

د دې حدیث په باره کښې پورته تیر شو د شرح عقائد نه چه دا حدیث مشهور دې د یویشت اکابر صحابه کرامو رضی الله عنهم نه روایت دې، پس دا حدیث په ډیرو طرقو سره په صحاح سته کښې موجود دې.

حدیث جریر رضی الله تعالیٰ عنه اخرجه البخاری ومسلم والترمذی وابن ماجه، وحدیث ابوهریرة رضی الله عنه اخرجه مسلم، وحدیث ابی رزین رضی الله عنه اخرجه ابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الرَّدِّ عَلَى الْجَهْمِيَّةِ

### بابه... دجهمیه تردید

[٤٧٣٢](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ: أَنَّ أَبَا أُسَامَةَ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ عُمَرَ بْنِ حَمْزَةَ، قَالَ: قَالَ سَالِمٌ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَطْوِي اللَّهُ السَّمَاوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْيُمْنَى، ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ، أَيْنَ الْجَبَّارُونَ، أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ؟ ثُمَّ يَطْوِي الْأَرَضِينَ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ، قَالَ ابْنُ الْعَلَاءِ: بِيَدِهِ الْأُخْرَى، ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ، أَيْنَ الْجَبَّارُونَ، أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ".

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما بیان اوکړو، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د قیامت په ورځ به الله تعالیٰ آسمانونه راونغاړی او هغه به خپل ښی لاس کښې واخلی او وائی به: هم زۀ بادشاه یم. چرته دی جابران؟ چرته دی تکبر کولو واله؟ بیا به زمکې راونغاړی او هغه به اونیسی. ابن العلاء اووې: هغه به په بل لاس کښې اونیسی او فرمائی به: هم زۀ بادشاه یم- چرته دی جابران؟ چرته دی د تکبر کولو واله؟''

**قوله:** ﴿قَالَ سَالِمٌ أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « يَطْوِي اللَّهُ السَّمَوَاتِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْيُمْنَى ........ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ ».قَالَ ابْنُ الْعَلَاءِ « بِيَدِهِ الأُخْرَى ثُمَّ يَقُولُ أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ الْجَبَّارُونَ أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ »﴾

یعنی الله پاک به د قیامت په ورځ باندې اووۀ واړه اسمانونه په خپل ښی لاس کښې راټول کړی، هغه کلمات کوم چه پورته ذکر شو او بیا هم دغه شان به اووۀ واړه زمکې په خپل بل لاس کښې اونیسی (چه هغه هم یمین دې) او بیا به هم هغه خبره ارشاد

(1): صحيح البخاري/التوحيد ١٩ (٧٤١٤تعليقًا)، صحيح مسلم/صفة القيامة (٢٧٨٨)، (تحفة الأشراف: ٦٧٧٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المقدمة ١٤ (١٩٨) (صحيح)

اوفرمائی. یعنی هغه لوئي لوئي بادشاهان کوم چه په دنیا کښې تیر شوي دی چا چه به ناحق تکبر کولو، او په مخلوق باندې به ئې ناحقه رعب او زور کولو. هغه چرته دی رادي شی او دې کوری د خپلې لوئي والی دعوی او د هغې حقیقت....

دا حدیث هم چونکه په دې کښې د یدالله ذکر دې د احادیث صفات نه هم په دې وجه دلته مصنف رحمه الله راوړې دی. والحدیث اخرجه مسلم واخرجه البخاری تعلیقا، قاله المنذری.

[۴۷۳۳]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَعَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الْأَغَرِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النبی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَنْزِلُ رَبُّنَا عزوجل كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى سَمَاءِ الدُّنْيَا، حَتَّى يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ، فَيَقُولُ: مَنْ يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ؟ مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ؟ مَنْ يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ؟".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه بیان اوکړو، نبی ﷺ اوفرمائیل: "هره شپه چې کله ددې اخری دریمه حصه باقي پاتې شی نو زمونږ رب د دنیا آسمان طرفته راشي او ندا ورکوی: څوک شته کوم چې ما له آواز راکړی، زهٔ د هغه واورم او قبول ئې کړم؟ څوک شته چې ما نه ئې اوغواړی او زهٔ هغه له عطا کړم؟ څوک شته چې مانه بخشش (بخښنه) اوغواړي او زهٔ هغه اوبخښم؟"

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « يَنْزِلُ رَبُّنَا كُلَّ لَيْلَةٍ الخ ﴾

دا حدیث د کتاب الصلاة په اخر کښې په باب ای اللیل افضل کښې تیر شوي دې او په دې باندې کلام هم هلته تیر شوي دې، یعنی د احادیث صفات په باره کښې مذاهب مختلفه او د اهل سنت والجماعت مسلک، چه په هغې کښې د متقدمین او متاخرین طرز مختلف دې، هغه هر څه هلته تیر شوي دی، په حاشیه د بذل کښې دلته یو علمی فائده لیکلې ده هغه لاندې په حاشیه کښې اوګورئ. ([2])

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

## باب فِي الْقُرْآنِ

### باب: ۲۰- د قرآن مجید بیان

### د مصنف رحمه الله غرض او د باری تعالی دپاره په صفت کلام ثابتیدلو کښې د معتزله اختلاف

مصنف رحمه الله دا بیانول غواړی لکه څنګه چه د احادیث الباب نه ثابتیږی چه قرآن کریم د الله پاک کلام دې چه د هغې متکلم الله پاک دې، لهذا هغه د الله پاک صفت دې، لکه څنګه چه هر کلام د خپل متکلم صفت وی، او هر چه دا خبره ده چه قرآن کریم د الله پاک کلام دې او د الله پاک صفت دې نو بیا هغه قدیم دې ځکه چه الله پاک د خپل ذات او صفاتو په اعتبار سره قدیم دې، معتزله وائی چه قرآن کریم حادث دې ځکه چه مرکب من الحروف والاصوات

[1]): انظر حدیث رقم: (۱۳۱۵)، (تحفة الأشراف: ۱۳۴۶۳، ۱۵۲۴۱) (صحیح)

[2]) حکي الباجي ۳۰۷/۱ عن الامام مالک: لا باس برواية النزول ورواية ضحکه تعالي ولا ينبغي ان يروي حديث اهتز العرش في جنازة سعد ولا حديث ان الله خلق ادم علي صورته وحديث الساق والفرق بينهما بوجهين اما لان الاولين صحاح وحديث الاهتزاز انكر عليه وحديث الصورة والساق ليست اسانيدها تبلغ في الصحة حديث النزول، او لان التاويل في اولين اقرب، كذا في الاوجز اهـ

دې وکل مرکب حادث فالقرآن حادث، هم دې سره هغوی وائی چه کلام د الله پاک په صفاتو کښې نه دې یعنی صفت د کلام د الله پاک دپاره نه دې ثابت څنګه چه نور صفات د هغه دپاره ثابت دی علم قدرت سمع او بصر وغیره، وجه د هغې هم دا بیانوی چه هر کلام حادث وی، او قرآن کریم ته چه کلام الله وئیلې کیږی لکه چه په کثرت سره احادیثو کښې راغلی دی د هغې ټولو مطلب دا نه دې چه هغه د الله پاک صفت دې بلکه د کلام نسبت د الله پاک طرف ته په اعتبار د تخلیق دې یعنی ﴿ کلام خلقه الله تعالی فی اللوح المحفوظ ﴾ لکه چه وئیلې شی بیت الله.

## د کلام دوه قسمونه لفظی او نفسی :

او اهل سنت والجماعت وائی چه کلام د صفات الهی نه دې خو د کلام نه مراد د هغوی کلام نفسی دې یعنی مدلول د کلام لفظی کوم چه مرکب من الحروف والاصوات نه دې، ګویا اهل سنت د کلام تقسیم کوی د لفظی او نفسی طرف ته، کلام نفسی هغه دې چه د متکلم په زړه کښې کومه خبره راځی کومه چه هغه په خپله ژبه باندې ادا کوی،
قال الشاعر :

ان الکلام لفی الفؤاد وانما ::: جعل اللسان علی الفؤاد دلیلا

شاعر وائی چه کلام خو په اصل کښې هغه دې چه کومه خبره او مضمون چه د انسان په زړهٔ کښې وی، ژبه خو د هغه کلام د ادا کولو آله ده، معلومه شوه چه د کلام دوه قسمونه دی نفسی او لفظی کوم چه د محاورات او د کلام شعراء نه هم ثابت دې لهذا د دې انکار مکابره ده، او قرآن کریم اګر چه کلام لفظی دې په دې حیثیت سره هغه لره حادث کیدل پکار دی مګر چونکه قرآن ته کلام الله وئیلې کیږی په دې وجه احتیاطا او ادبا په دې باندې د حادث اطلاق نه کیږی، د کلام لفظی او نفسی بحث په مقدمه کښې هم مختصرا تیر شوې دې د علم حدیث د مرتبې په بیان کښې.

معتزله حضرات د کلام د تقسیم قائل نه دی هغوی صرف په کلام لفظی باندې د کلام اطلاق کوی، په کلام نفسی باندې هغوی د کلام اطلاق نه کوی، هم په دې وجه وئیلې شوی دی چه دا اختلاف زمونږ او د هغوی ترمینځه لفظی شو ځکه چه کوم څیز ته چه هغوی حادث وائی هغه مونږ هم قدیم نه منو، او کوم ته چه مونږ قدیم وایو هغه هغوی هم حادث نه منی بلکه بالکل ئې د وجود انکاری دی، چه کلام نفسی هیڅ څیز نه دې.

## د خلق قران مسئله :

د خلق قران مسئله په تاریخ کښې یو مشهوره اختلافی مسئله ده، د امام احمد بن حنبل رحمه الله په زمانه کښې دا مسئله ډیره په زور او شور سره اوچته شوې وه، د هغه زمانې خلفاء د معتزله د مسلک طرف ته مائل وو په دې وجه هغوی علماء اهل سنت مجبور کړل په عقیده خلق القرآن باندې، بعضو خو د دې اقرار اوکړو او بعض ترې نه ښکاره انکار اوکړو هم په هغوی کښې امام احمد رحمه الله هم دې په دې باندې هغوی ته کوړې هم ورکړې شوې او قید هم کړې شو، د معتصم بالله په خلافت کښې، او د هغوی په خپو کښې بیړئ واچولې شوې خو

امام احمد رحمه الله د استقلال غر وو، بيا د دي نه روستو د واثق بالله زمانه راغله د هغه هم دا طرز وو، د دي نه پس متوکل بالله ته الله پاک هدايت اوکړو هغه د امام احمد رحمه الله ډير تعظيم اوکړو او دا فتنه ئي ختم کړه فجزاه الله تعالى احسن الجزاء ....شيخ عبد الفتاح ابوغده رحمه الله په دي موضوع باندي مستقل يو رساله تاليف کړي ده د مسئله خلق القران په نوم باندي چه په هغي کښي هغوی دا مسئله او د دي متعلقات ډير په تفصيل او تحقيق سره ليکلي دی په هغي کښي ليکلی دی چه د دي مسئلي نفس ابتداء خو په عهد اموی کښي د جهم بن صفوان بلکه د هغه نه هم مخکښي د جعد بن درهم د طرف نه اوشوه جعد بن درهم په ۱۱۸ هجری او جهم بن صفوان ۱۲۸ هجری کښي د عهد اوموی آخر کښي قتل کړي شو، په هغي کښي دا هم ليکلي شوي دی چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په زمانه کښي هم دا مسئله ډيره اوچته شوي وه خو امام صاحب هغه ختم کړه؟، د دي مسئلي نوم هم په تاريخ او کتب تراجم رجال کښي مشهور دي، د مسئلة خلق القرآن نه علاوه په مسئلة اللفظ او مسئلة المحنة باندي هم مشهوره ده، پس په کتب رجال کښي راځي، ﴿ ابتلى بالمحنة ﴾ يعنى مسئله د خلق القران سره مخامخ شوي وو.

## د امام بخاری رحمه الله د طرف نه په غلاة حنابله باندي رد :

د دي نه پس ځان پوهه کړئ چه امام احمد رحمه الله به دا فرمائيل : لا يقولن احدكم لفظى بالقرآن حادث ...يعنى په ژبه باندي دا هم مه ښکاره کوئ چه د قرآن کريم الفاظ حادث دی (احتياطا د معتزله په مخالفت کښي) خو غلاة حنابله دا اوکړل چه هغوی د قرآن کريم الفاظو ته حقيقة قديم وئيل شروع کړل او صرف دا نه بلکه د دي نه هم وړاندي وينا ئي شروع کړه : كل ما بين الدفتين فهو قديم ....بلکه دي دفتين ته ئي هم قديم وئيل شروع کړل، او د قرآن کريم اوراق او په کوم قلم او سياهئ چه ليکلي شوي دي هغي ته ئي هم قديم وئيل شروع کړل، بيا د امام بخاری رحمه الله زمانه راغله نو هغوی د دي مسئلي اصلاح او تحقيق اوفرمائيلو او وي فرمائيل : لفظى بالقرآن حادث، او وي فرمائيل : الفاظنا اعمالنا واعمالنا حادثة، او په اصل کښي هم دا رائي د امام احمد بن حنبل هم وه خو هغوی د ﴿ لفظى بالقرآن حادث ﴾ نه ځان ساتلو د خپل ماحول په اعتبار سره، په دي سره بعض خلقو دا اوګڼله چه د امام بخاری او د امام احمد خپل مينځ کښي په رائي کښي هم اختلاف دي حال دا چه داسي نه ده لکه چه مونږه ليکلي، كذا افاد الشيخ قدس سره فى درس البخارى وفى مقدمة اللامع.

[۴۷۳۴] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أنبأنا إِسْرَائِيلُ، أخبرنا عُثْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْرِضُ نَفْسَهُ عَلَى النَّاسِ فِي الْمَوْقِفِ، فَقَالَ: أَلَا رَجُلٌ يَحْمِلُنِي إِلَى قَوْمِهِ، فَإِنَّ قُرَيْشًا قَدْ مَنَعُونِي أَنْ أُبَلِّغَ كَلَامَ رَبِّي".

---

[1]: سنن الترمذي/فضائل القرآن ٢٤ (٢٩٢٥)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٣ (٢٠١)، (تحفة الأشراف: ٢٢٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٩٠)، دي/فضائل ٥ (٣٣٩٧) (صحيح)

دَ حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روایت دې چه (دَ بعثت په ابتدائی ورځو کښې) پیغمبر ﷺ خپل ځان په میدان عرفات کښې خلقو ته پیش کولو او فرمائیل ئې: آیا څوک شته دې چه ما لره خپل قوم طرف ته بوځی، بې شکه قریشو ما لره دَ خپل رب دَ کلام دَ رسولو نه منع کړې دې."

**قوله:**﴿ عن جابر بن عبد الله قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَعْرِضُ نَفْسَهُ عَلَى النَّاسِ فِي الْمَوْقِفِ فَقَالَ « أَلاَ رَجُلٌ يَحْمِلُنِي إِلَى قَوْمِهِ فَإِنَّ قُرَيْشًا قَدْ مَنَعُونِي أَنْ أُبَلِّغَ كَلاَمَ رَبِّي »﴾

سیدنا جابر رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ به د حج په موسم کښې په خلقو باندې ځان پیش کولو، یعنی د هجرت نه مخکښې د نبوت په شروع کښې، د حج په زمانه کښې چونکه د ځلورو واړو طرفونو نه، د مختلفو ښهرونو نه به خلق مکې مکرمې ته راتلل نو په دې موقع باندې رسول الله ﷺ پخپله د خلقو سره ملاقات کولو، د خپل ځان د پیش کولو مطلب هم دا دې او هغوی ته به رسول الله ﷺ هم دا فرمائیل چه په تاسو کښې څوک داسې شته چه ما ځان سره په واپسئ کښې بوځی چه زه هلته د تبلیغ او د رسالت کار سره ته اورسولې شم، او د خپل رب کلام هغوی ته اورسولې شم، دا زما قوم قریش ما دې کار ته نه پرېږدی.

په دې حدیث کښې رسول الله ﷺ ﴿ کلام ربی ﴾ فرمائیلې دې معلومه شوه چه کلام د الله پاک صفت دې، هم دا د مصنف رحمه الله غرض دې.

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي وابن ماجه، وقال الترمذي حسن صحيح غريب.

[٤٧٣٦](١) حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عُمَرَ، أَنبأنا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ مُجَالِدٍ، عَنْ عَامِرٍ يَعْنِي الشَّعْبِيَّ، عَنْ عَامِرِ بْنِ شَهْرٍ، قَالَ: "كُنْتُ عِنْدَ النَّجَاشِيِّ، فَقَرَأَ ابْنٌ لَهُ آيَةً مِنَ الْإِنْجِيلِ، فَضَحِكْتُ، فَقَالَ: أَتَضْحَكُ مِنْ كَلَامِ اللَّهِ؟".

حضرت عامر بن شهر رضي الله عنه روایت کړې دې هغوی فرمائیلې دی چه زۀ د نجاشی په دربار کښې وم چه د هغه ځوی د انجیل یو آیت اولوستو، ما اوخندل نو هغه اووې آیا ته د الله پاک په کلام پورې خندا کوې؟

**قوله:**﴿عَنْ عَامِرِ بْنِ شَهْرٍ قَالَ : كُنْتُ عِنْدَ النَّجَاشِيِّ فَقَرَأَ ابْنٌ لَهُ آيَةً مِنَ الإِنْجِيلِ فَضَحِكْتُ فَقَالَ : أَتَضْحَكُ مِنْ كَلاَمِ اللَّهِ تعالى﴾

سیدنا عامر بن شهر رضي الله عنه فرمائی چه یو ځل زه شاه حبشه نجاشی سره ناست اوم نو د هغه ځوئی د انجیل یو آیت اولوستلو چه په هغې باندې ماته خندا راغله، خندا به ورته د څه وجې نه راغلې وی چه هغه مونږ ته نه ده معلومه، یا خو به په دې کښې د آیت د مضمون دخل وی، یا د هغه په طرز قراءت باندې یا بل څه وجه، دلته د نجاشی په کلام کښې هم د کلام اضافت د الله پاک طرف ته کړې شوې دې معلومه شوه چه دا خبره د مخکښې نه مشهوره ده او اهل کتاب هم دا منی.

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٠٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٨/٣، ٤٢٩، ٢٦٠/٤) (صحيح)

[٤٧٣٥]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَنبأنا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، وَعَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ، وَكُلٌّ حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِنَ الْحَدِيثِ، قَالَتْ: "وَلَشَأْنِي فِي نَفْسِي كَانَ أَحْقَرَ مِنْ أَنْ يَتَكَلَّمَ اللَّهُ فِيَّ بِأَمْرٍ يُتْلَى".

د ام المؤمنين حضرت عائشې نه روايت دې چه ما به خپل ځان لره په نفس خپل کښې ډير زيات حقير ګنړلو ددې خبرې نه چه الله تعالیٰ به زما دَ براء ت په سلسله کښې داسې کلام فرمائي چه دَ هغې به تلاوت کولې شي."

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ وَسَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ وَعَلْقَمَةُ بْنُ وَقَّاصٍ وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ حَدِيثِ عَائِشَةَ وَكُلٌّ حَدَّثَنِي طَائِفَةً مِنَ الْحَدِيثِ ﴾ ابن شهاب رحمه الله فرمائي چه د عائشې رضي الله عنها متعلق حديث الافک ماته خپله د عائشې رضي الله عنها په روايت د څلورو استاذانو نه رارسيدلې دې کوم چه په سند کښې ذکر دی، خو هغه پوره حديث ماته د هر يو نه نۀ دې رارسيدلې بلکه د هر يو نه د دې اورد حديث څه نه څه حصه، چه د هغې يو ټکړه دا هم ده چه کله د عائشې رضي الله عنها په باره کښې د آيات براءت نزول اوشو نو د هغې په باره کښې هغه فرمائي چه ما به خپله مرتبه د دې نه ډيره کمه ګنړله چه الله پاک به د دې مسئلې په باره کښې کلام فرمائي يعنی د وحی په ذريعه به فيصله فرمائي او وحی هم داسې چه متلو وی، بلکه زما په ذهن کښې دا وه چه زما په باره کښې به رسول الله ﷺ څه خوب وغيره اوينی، د عائشې رضي الله عنها په باره کښې په دې کلام کښې ﴿ان يتكلم الله فی ﴾ ذکر دې، يعنی د کلام نسبت د الله پاک طرف ته په قرآن کريم کښ، ترجمة الباب ثابت شو چه قرآن کريم کلام الله او د الله پاک صفت دې، په حاشيه د بذل کښې دی د حديث افک متعلق اخرجه البخاری مفصلا فی مواضع كثيرة من كتابه وبسط الحافظ شرحها فی التفسير، زمونږ په نزد هم د دې حوالې په کتاب الحدود، باب حد القذف کښې تيرې شوې.والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی مطولا ومختصرا، قاله المنذری.

[٤٧٣٦]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أخبرنا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ الْمِنْهَالِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَوِّذُ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ: أُعِيذُكُمَا بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ، وَمِنْ كُلِّ عَيْنٍ لَامَّةٍ، ثُمَّ يَقُولُ: كَانَ أَبُوكُمْ يُعَوِّذُ بِهِمَا إِسْمَاعِيلَ، وَإِسْحَاقَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا دَلِيلٌ عَلَى أَنَّ الْقُرْآنَ لَيْسَ بِمَخْلُوقٍ.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به حضرات حسن، حسين رضي الله عنهما په دې الفاظو سره دمول: [ أُعِيذ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيطَانٍ وَ هَامَّةٍ، وَ مِنْ كُلِّ عَيْنٍ لَامَّةٍ ] زۀ دواړو لره دَ الله پاک دَ کامل کلماتو په پناهٔ کښې ورکووم چه دَ هر شيطان، دَ هر موذی او دَ هر بد نظر دَ شر نه محفوظ وی." بيائې فرمائيل ستاسو پلار (حضرت ابراهيم عليه السلام) به

[1]: صحيح البخاري/الشهادت ١٥ (٢٦٦١)، المغازي ١٢ (٤٠٢٥)، ٣٤ (٤١٤١)، صحيح مسلم/التوبة ١٠ (٢٧٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٦١٢٦، ١٦١٢٨، ١٦٣١١، ١٦٥٧٦، ١٧٤٠٩، ١٧٤١٢) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ١٠ (٣٣٧١)، سنن الترمذي/الطب ١٨ (٢٠٦٠)، سنن ابن ماجه/الطب ٣٦ (٣٥٢٥)، (تحفة الأشراف: ٥٦٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٦، ٢٧٠) (صحيح)

حضرت اسماعیل او اسحاق علیهم السلام ته ددې په ذریعې سره پناه ورکوله -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی دا دلیل دې ددې خبرې چه قرآن کریم مخلوق نهٔ دې -

**قوله:** ﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- يُعَوِّذُ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ : « أُعِيذُكُمَا بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ وَمِنْ كُلِّ عَيْنٍ لاَمَّةٍ ».ثُمَّ يَقُولُ : « كَانَ أَبُوكُمْ يُعَوِّذُ بِهِمَا إِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ عليهما السلام » ﴾

یعنی رسول الله ﷺ به د حسن او حسین رضی الله عنهما دپاره دا دعا کوله یعنی د دم کولو دپاره چه په هغې کښې د کلماتو اضافت الله پاک طرف ته کړې شوې دې ﴿ هامة ﴾ هر زهریله ځناور، مار لړم وغیره، او لامة یعنی ذات لمم او د لمم معنی ده یو څیز ته نزدې کیدل لهذا ترجمه به دا وی چه د هرې بدې سترګې او بد نظر نه کومه چه په بل لګیدونکې وی، او د ابوکم نه مراد سیدنا ابراهیم علیه السلام دې لانه ابوالعرب، یعنی ابراهیم علیه السلام به هم خپل دواړه ځامن اسماعیل او اسحاق علیهم السلام هم په دې دعا باندې دمول.

په بعض نسخو کښې د دې دعا نه پس دا زیادت دې : قَالَ أَبُو دَاوُدَ : هَذَا دَلِيلٌ عَلَى أَنَّ الْقُرْآنَ لَيْسَ بِمَخْلُوقٍ .....امام خطابی رحمه الله فرمائی چه امام احمد بن حنبل رحمه الله به د رسول الله ﷺ د قول ﴿بکلمات الله التامة ﴾ نه استدلال کولو چه قرآن کریم مخلوق او حادث نه دې ځکه چه په هر کلام مخلوق کښې څه نه څه نقص وی لهذا کوم کلام چه په ټولو صفاتو سره موصوف وی لکه دلته په حدیث کښې چه دی هغه به غیرمخلوق وی اوهغه د الله سبحانه وتعالی کلام دې.

## د الله پاک د صفت کلام په غیر مخلوق کیدو باندې د امام بیهقی استدلال :

د کلام الله په غیر مخلوق کیدو باندې امام بیهقی رحمه الله فرمائی چه د الله پاک کلام د هغه د صفات ذات نه دې او د الله پاک یو صفت د صفات ذات نه مخلوق او حادث نه دې، الله پاک فرمائی : ﴿ انما قولنا لشئ اذا اردناه ان نقول له کن فیکون ﴾ چه د هغې نه معلومیږی چه هر مخلوق څیز په کن سره پیدا کیږی نو که قرآن کریم مخلوق اومنلې شی نو ظاهره ده چه هغه به مخلوق وی په کن سره او کن هم د الله پاک قول او کلام دې لهذا د هغې دپاره به هم د کن ضرورت وی او چونکه هغه کن هم قول دې په دې وجه د هغې دپاره به د یو بل کن ضرورت وی، وهکذا الی غیر النهایة، یعنی تسلسل به لازم شی کوم چه باطل دې والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۷۳۸](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي سُرَيْجٍ الرَّازِيُّ، وَعَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ ابْنِ إِبْرَاهِيمَ، وَعَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ، قَالُوا: أخبرنا أَبُو مُعَاوِيَةَ، أنبأنا الأَعْمَشُ، عَنْ مُسْلِمٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا تَكَلَّمَ اللَّهُ بِالْوَحْيِ، سَمِعَ أَهْلُ السَّمَاءِ لِلسَّمَاءِ صَلْصَلَةً، كَجَرِّ السِّلْسِلَةِ عَلَى الصَّفَا، فَيُصْعَقُونَ، فَلَا يَزَالُونَ كَذَلِكَ حَتَّى يَأْتِيَهُمْ جِبْرِيلُ، حَتَّى إِذَا جَاءَهُمْ جِبْرِيلُ فُزِّعَ عَنْ قُلُوبِهِمْ، قَالَ: فَيَقُولُونَ: يَا جِبْرِيلُ، مَاذَا قَالَ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: الْحَقَّ، فَيَقُولُونَ: الْحَقَّ، الْحَقَّ".

(۱) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۵۸۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التوحيد ۳۱ (عقيب ۷۴۸۰ تعليقًا) (صحيح)

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: کله چه الله تعالیٰ په څه وحی باندې تکلم فرمائي نو آسمان والا په اسمان کښې يو آواز اوري لکه چه په کاڼړی باندې زنځير راښکلې شي - د هغې نه هغوی بې هوشه کيږی او بيا په هم دې کيفيت کښې وی تردې پورې چه هغوی ته جبريل امين راشي نو د هغه په راتلو سره ددوی نه هغه کيفيت زائله شي او هغوی د جبريل امين نه پوښتنه کوی چه ستا رب څه اوفرمائيل؟ هغه ورته وائي: حق ئې اوفرمائيل، نو هغوی هم اووائی چه حق ئې اوفرمائيل، حق ئې اوفرمائيل -"

**قوله:** (عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– : « إِذَا تَكَلَّمَ اللَّهُ بِالْوَحْيِ سَمِعَ أَهْلُ السَّمَاءِ لِلسَّمَاءِ صَلْصَلَةً كَجَرِّ السِّلْسِلَةِ عَلَى الصَّفَا .........قَالَ : « فَيَقُولُونَ : يَا جِبْرِيلُ مَاذَا قَالَ رَبُّكَ فَيَقُولُ : الْحَقَّ فَيَقُولُونَ : الْحَقَّ الْحَقَّ »)

## شرح الحديث:

چه کله الله پاک کلام فرمائي په وحی سره جبرائيل عليه السلام ته نو د اسمان ملائک ټول د آسمان يو آواز اوری، په يو روايت کښې دی: (اذا تکلم الله بالوحی اخذ السموات منه رجفة او قال رعدة شديدة من خوف الله تعالی فاذا سمع ذلک اهل السموات صعقوا وخروا لله سجدا، يعنی خپله په اسمان کښې يو آواز پيدا شي د هغې د خوزيدو او رپيدو د وجې نه د الله پاک د ويرې نه، چه کله د آسمان دا آواز ملائک واوری نو هغوی بيهوشه شي.

صلصلة هغه آواز ته وائي چه اوسپنه اوسپنې ته راګزار کړې شي او دلته په روايت کښې دی د دې په باره کښې چه داسې آواز پيدا شي لکه د اوسپنې زنځير چه په صفا کاڼړی باندې راښکلې شي، (فيصعقون) نو عام ملائک په دې باندې بيهوشه شي پس هغوی هم په دې کښې حالت کښې پراتهٔ وی تر دې چه جبرائيل عليه السلام هغوی ته تشريف راوړی او د هغوی په راتلو باندې د هغوی نه بيهوشي لرې شي او هغوی په هوش کښې راشي او د جبرائيل عليه السلام نه تپوس کوی چه ستا رب څه خبره اوکړه نو هغه فرمائي حق خبره ئې اوکړه نو په دې باندې هغه ټول ملائک وائي او صحيح ده حق خبره ئې اوکړه.

په دې حديث کښې هم د قول نسبت د الله پاک طرف ته کړې شوې دې معلومه شوه چه قول او کلام د الله پاک صفت دې.

د بخاری په شروع کښې په اول باب کښې د عائشې رضي الله عنها په حديث کښې داسې دی چه حارث بن هشام د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو (كَيْفَ يَأْتِيكَ الْوَحْيُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " أَحْيَانًا يَأْتِينِي مِثْلَ صَلْصَلَةِ الجَرَسِ، وَهُوَ أَشَدُّهُ عَلَيَّ، فَيُفْصَمُ عَنِّي وَقَدْ وَعَيْتُ عَنْهُ مَا قَالَ، وَأَحْيَانًا يَتَمَثَّلُ لِيَ المَلَكُ رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِي فَأَعِي مَا يَقُولُ) په دې حديث کښې د وحی دوه طريقې ذکر دی اول په مثل د صلصلة الجرس يعنی د جرس په شان آواز او بل شکل دا چه کله داسې هم کيږی چه هغه فرشته ماسره د انسان په شکل کښې خبرې کوی نو زه د هغه کلمات محفوظ کړم، د صلصلة الجرس په باره کښې د مولانا شبير احمد عثمانی په تقرير بخاری کښې دی: بيا په دې کښې کلام دې چه دا صوت د وحی وو يا که د ملائکو د وزرو، د

علماء کرامو دواړه اقوال پکښې شته، زمونږ په نزد ظاهر دا ده والله اعلم چه دا آواز به د وحی وو او دا بیان مشابه دې د هغې کوم چه په بل حدیث کښې راغلی دی چه کله الله پاک څه حکم رالیږی نو ملائک داسې آواز اوری کوم چه په صفا کاڼړی باندې د زنځیر راښکلو نه پیدا کیږی، ملائک په دې آواز اوریدلو سره په سجده کښې پریوځی او خپلې وزرې وهی او په هغوی باندې رعب راشی، او د حضرت شیخ په تقریر کښې دی چه په دې کښې د علماء کرامو شپږ اقوال دی (کوم چه وړاندې په هغې کښې ذکر دی) خو دا دې په ذهن کښې وی چه د بخاری والا حدیث کوم چه د هغې په شروع کښې دې په اول باب کښ، د کوم الفاظ چه مونږ پورته ذکر کړې دی هغه د اتیان الوحی علی الرسول په باره کښې دې چه د هغې تعلق د زمکې او دې عالم سره دې، او کوم حدیث چه د ابوداؤد دې دا بل دې اود دې تعلق د عالم علوی سره دې لکه چه د دې د الفاظو نه معلومیږی ﴿ اذا تکلم الله تعالی بالوحی سمع اهل السماء ﴾ دې طرف ته حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې هم اشاره کړې ده، لهذا دواړه احادیث بیل بیل ګڼړل پکار دی.

والحدیث اخرجه البخاری والترمذی وابن ماجه نحوه من حدیث عکرمة مولی ابن عباس عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه وقد تقدم فی کتاب الحروف، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي ذِكْرِ الْبَعْثِ وَالصُّورِ

### باب په قبر کښې دَ سوال جواب او دَ عذاب بیان

بعث یعنی د مړو د قبرونو نه پاسیدل او دوباره ژوندی کیدل. قال تعالی ﴿ ثم بعثناکم من بعد موتکم ﴾ او هم د دې نه دې ﴿ الباعث ﴾ د الله پاک په نومونو کښ، او صور هغه جسم دې کوم چه د ښکر مشابه دې په کوم کښې چه به اسرافیل علیه السلام پوکې وهی یعنی د چا په پوکی سره چه به په هغې کښې آواز پیدا شی په حدیث الباب کښې هم دا مضمون دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ﴿ الصُّورُ قَرْنٌ يُنْفَخُ فِيهِ ﴾ خو د بعث او صور مسئله خو په ظاهر اجماعی ده ټولې اسلامی ډلې د دې قائل دی او دلته د هغه ابوابو سلسله روانه ده چه په هغې کښې د نورو اسلامی ډلو اختلاف موندلې شی، او په ډیر نسخو کښې دا باب شته هم نه، پس د منذری په نسخه کښې دا باب نشته.

[٤٧٤٢](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أخبرنا مُعْتَمِرٌ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، قَالَ: أخبرنا أَسْلَمُ، عَنْ بِشْرِ بْنِ شَغَافٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: الصُّورُ قَرْنٌ يُنْفَخُ فِيهِ".

دَ حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی: "صور یو ښکر دې چه په هغې کښې به پوکې وهلې شی."

(١): سنن الترمذي/صفة القيامة ٨ (٢٤٣٠)، تفسير القرآن ٤٠ (٣٢٤٤)، (تحفة الأشراف: ٨٦٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٢/٢، ١٩٢)، سنن الدارمي/الرقاق ٧٩ (٢٨٤٠) (صحيح)

[٤٧٤٣]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كُلُّ ابْنِ آدَمَ تَأْكُلُ الْأَرْضُ، إِلَّا عَجْبَ الذَّنَبِ، مِنْهُ خُلِقَ، وَفِيهِ يُرَكَّبُ".

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : د ابن آدم به تمام جسم خاوره اوخوری مګر د لکئ آخری جړبج پاتې کیږي - هم ددې نه د پیدائش ابتداء کیږي او هم ددې نه به دوباره جسم مرکب کیږي -"

**قوله:**﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ : « كُلُّ ابْنِ آدَمَ تَأْكُلُ الأَرْضُ إِلاَّ عَجْبَ الذَّنَبِ مِنْهُ خُلِقَ وَفِيهِ يُرَكَّبُ »﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه د انسان د بدن ټول اندامونه زمکه خوری، سوا د ملا د هډوکی نه چه هم د دې نه الله پاک د دې انسان د پیدائش شروع کړې وو او هم د دې نه به ئې بیا دوباره وجود جوړوی.

د عجب الذنب په باره کښې اختلاف دې چه دا به زمکه خوری یا نه؟ بعضو وئیلي دی چه مقصود ترې نه طول بقا او طول مکث دې یعنی تر د ډیر زمانې پورې به باقی وی او آخر هغه به هم یوه ورځ فنا شی، او دویم قول دا دې چه هغه خو به زاړهٔ او خراب شی خو بالکلیه به نه فنا کیږي بلکه څه ذرات به د هغې په زمکه کښې په خاورو کښې مخلوط کیدو سره باقی وی اګر چه هغه محسوس او په نظر رانشی نو بیله خبره ده. فقد ورد انه یکون مثل حبة خردل، هم په دې وجه وئیلي شی د دې په باره کښې اول ما یخلق واخر ما یخلق یعنی په پیدائش کښې د بدن په ټولو اندامونو باندې مقدم او په زړیدو او خرابیدو کښې د ټولو نه روستو، په حاشیه د بذل کښې دی والیه یظهر میل الطحاوی فی مشکل الاثار اذ قال لا یستنکر من لطیف قدرته تعالی ان یبقی عجب الذنب لا تاکله التراب او النار اذا احترق، ویکون مثل نار ابراهیم ..

**د انبیاء علیهم السلام په شان هغه اشخاص د چا بدنونه چه خاورې نه خوری :**

علماء کرامو لیکلي دی چه د دې حدیث د عموم نه انبیاء کرام علیهم السلام مستثنی دی فان الله تعالی حرم علی الارض ان تاکل اجساد الانبیاء (بذل) او په حاشیه د بذل کښې دی چه د انبیاء کرامو علیهم السلام سره په دې کښې څو اشخاص نور هم دی کوم چه د هغوی سره ملحق دی او هغه دا دی : الشهداء، الموذن المحتسب، الصدیقون، العلماء العاملون، حامل القرآن والعامل به، والمرابط، والمیت بالطاعون صابرا محتسبا، والمکثر من ذکر الله تعالی، والمحب لله ...فتلک عشرة کاملة، کذا فی الاوجز عن الزرقانی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری.

........

[1]): سنن النسائي/الجنائز ١١٧ (٢٠٧٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٨٣٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تفسير الزمر ٤ (٤٨١٤)، تفسير النبأ ١ (٤٩٣٥)، صحيح مسلم/الفتن ٢٨ (٢٩٥٥)، سنن ابن ماجه/الزهد ٣٢ (٤٢٦٦)، موطا امام مالك/الجنائز ١٦ (٤٨)، مسند احمد (٢/٣١٥، ٣٢٢، ٤٢٨، ٤٩٩) (صحيح)

# بَاب فِي الشَّفَاعَةِ

## باب۲۰، ۲۱-دَ شفاعت بیان

په شفاعت کښې د معتزله او خوارجو اختلاف دې هغوی د مذنبين او عصاة (نافرمان) د پاره د شفاعت قائل نه دی، خو کوم شفاعت چه به د مومنانو دپاره د درجاتو د اوچتوالی دپاره کولې شی د هغې قائل دی، په شرح عقائد کښې دی : والشفاعة ثابتة للرسل والاخيار (الصلحاء والاتقياء) فی حق اهل الكبائر ما لمستفيض من الاخبار، خلافا للمتعزلة، وهذا مبنى على ما سبق من جواز العفو والمغفرة بدون الشفاعة فبالشفاعة اولى وعندهم لما لم يجز لم تجز، یعنی د اهل سنت په نزد د مذنبین مغفرت او معافی بغیر د شفاعت نه هم جائز ده د چا دپاره هم چه الله پاک اوغواړی، لهذا د شفاعت په صورت کښې مغفرت کیدل به په طریق اولی جائز وی، او د معتزله په نزد چونکه عقاب د عاصی واجب دې په الله پاک باندې معاف کول جائز نه دی هم په دې بناء د هغوی په نزد شفاعت هم جائز نه دې بیا د دې دلائل هم ذکر کړې شوې دی.

[٤٧٣٩](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، أخبرنا بِسْطَامُ بْنُ حُرَيْثٍ، عَنْ أَشْعَثَ الْحُدَّانِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: شَفَاعَتِي لِأَهْلِ الْكَبَائِرِ مِنْ أُمَّتِي".

د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : زما شفاعت به زما د امت د هغه کسانو دپاره وی کوم چه د کبیره گناه مرتکب شوې وی.-"

د باب د اول حدیث نه د معتزله تردید کیږی ﴿ شَفَاعَتِي لأَهْلِ الْكَبَائِرِ مِنْ أُمَّتِي ﴾ هغوی ددې قسم آیتونونه استدلال کړې دې (فما تنفعهم شفاعة الشافعين) او ( وما للظالمين من حميم ولا شفيع يطاع ﴾ د دې جواب دا دې چه دا آیتونه د کفارو په باره کښې دی.

### د شفاعت اقسام او د هغې مصاديق :

امام نووی رحمه الله د قاضی عیاض نه نقل کړی دی چه د شفاعت پنځه قسمونه دی ۱ : فی الاراحة من هول الموقف ...یعنی د حساب کتاب شروع کولو دپاره، د خلقو د قبرونو نه د اوچتیدلو نه پس په میدان حشر کښې چرته چه نمر څه دپاسه د یوې نیزې په مقدار وی د حساب کتاب په انتظار کښې به سخت حیران او سرگردان وی چه په څه طریقه حساب خو شروع شی، انجام چه هر څه وی هغه خو روستو خبره ده او بیا به ټول مخلوق د مشورې کولو نه پس آدم علیه السلام ته لاړ شی او بیا به د هغوی د عذر فرمائیلو نه پس پرله پسې د نورو انبیاء علیهم السلام په خدمت کښې او بیا په آخر کښې به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راشی، بیا به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سفارش باندې د حساب و کتاب سلسله شروع شی، هم د دې شفاعت نوم عظمی او کبری دې.

۲ : بعض خلقو لره بغیر د حساب کتاب نه جنت ته د داخلولو دپاره، ۳ : کوم خلق چه د عذاب مستحق وو د هغوی دپاره د جنت سفارش، ۴ : د اخراج من النار دپاره سفارش، پس ډیر نافرمان به د شفاعت د وجې نه د جهنم نه راویستلې شی او جنت ته به بوتلې

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٣/٣) (صحيح)

شی ۵. هغه شفاعت کوم چه به د رفع درجات دپاره وی. (هامش بذل)
په حاشیه د ترمذی کښې په دې باندې زیادت دې چه په هغې کښې د اهل سنت په دلائلو کښې دا آیت پیش کړې دې: يَوْمَئِذٍ لَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا ... دا چه د شفاعت په باره کښې آثار او روايات حد د تواتر ته رسيدلي دی د خپلې مجموعي په اعتبار سره د صحت شفاعة فی الآخرة په باره کښې، او د سلف صالحين اجماع هم، او بيا د شفاعت د ذکر شوې پنځو قسمونو د ذکر کولو نه پس په اخير کښې دی: هذا ما قاله الطيبی فی شرح المشكاة، وزاد الشيخ فی اللمعات خمسة اقسام اخر احدها فی الذين تساوت حسناتهم وسيئاتهم فيشفع فيهم ليدخلوا الجنة يعنی د کومو خلقو چه نيکۍ او ګناهونه برابر وی د هغوی دپاره شفاعت، الثانية فی استفتاح الجنة، يعنی د جنت دروازه د پرانستلو دپاره، الثالثة فی تخفيف العذاب لمن يستحقه، الرابعة لاهل المدينة، والخامسة لزائری قبره الشريف علی وجه الامتياز والاختصاص، والله تعالیٰ اعلم اهـ په دې کښې بعض د رسول الله ﷺ سره خاص دی او بعض عام دی (حاشيه ترمذی ۶۹/۲) والحديث اخرجه البخاری فی التاريخ الكبير بالاسناد الذی اخرجه به ابوداؤد، قاله المنذری.

[۴۷۴۰] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ ذَكْوَانَ، قَالَ: أخبرنا أَبُورَجَاءٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَةِ مُحَمَّدٍ، فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَيُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ".

د حضرت عمران بن حصين رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: يوه ډله به د جهنم نه دَ حضرت محمد ﷺ په شفاعت سره راوځی او جنت ته به داخل شی او دَ هغوی نوم به "جهنميين" وی.

﴿حَدَّثَنِي عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: « يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنَ النَّارِ بِشَفَاعَةِ مُحَمَّدٍ ﷺ فَيَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ وَيُسَمَّوْنَ الْجَهَنَّمِيِّينَ »﴾

د رسول الله ﷺ په شفاعت سره به بعض خلق جهنم ته رسيدلو نه پس د هغې نه راويستلو سره جنت ته داخل کړې شی چه د هغوی نوم به جهنميين وی يعنی جنت ته د داخليدو نه پس هم، د تذکير نعمت دپاره.

والحديث اخرجه البخاری والترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۷۴۱] (٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أخبرنا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يَأْكُلُونَ فِيهَا وَيَشْرَبُونَ".

حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی: بې شکه اهل جنت به په

[1]: صحيح البخاري/الرقاق ٥١ (٦٥٦٦)، سنن الترمذي/صفة جهنم ١٠ (٢٦٠٠)، سنن ابن ماجه/الزهد ٣٧ (٤٣١٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٣٤) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الجنة وصفة نعيمها ٧ (٢٨٣٥)، (تحفة الأشراف: ٢٣٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٦/٣، ٣٦٤) سنن الدارمي/الرقاق ١٠٧ (٢٨٧٢) (صحيح)

جنت کښې خوراک، څښاک کوي۔"

**قوله:**﴿عَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ : « إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ يَأْكُلُونَ فِيهَا وَيَشْرَبُونَ »﴾ يعني جنتيان به په جنت کښې خوراک څکاک کوي څنګه چه په دنيا کښې خوراک څکاک کوي او د خوراک څکاک نعمتونه چه څنګه دلته دي هلته به هم وي، بلکه دا څيزونه اصل به هم هغه وي، په دنيا کښې خو لږ شان د نمونې په طور ورکړې شوې دي، په ابوداؤد کښې خو د جنت دوزخ سره متعلق مستقل ابواب نشته، په بخاري او ترمذي وغيره کښې په کثرت سره دي، په ترمذي کښې دي ابواب صفة الجنة يو غټه سرخي چه د هغې لاندې ډير ابواب د نعماء جنت متعلق مذکور دي، د دې نه پس د صفة جهنم سره متعلق ډير ابواب دي او په هغې کښې روايات مفصله ذکر دي او په ابواب صفة الجنة کښې يو باب صفة شجر الجنة دې او يو باب باب في صفة غرف الجنة، هم دغه شان صفة درجات الجنة، نساء اهل الجنة، صفت ثمار الجنة وغيره وغيره.

## ايا په جنت کښې به جماع او اولاد وي :

هم د دغې ابوابو نه يو باب صفة جماع اهل الجنة هم دې چه په هغې کښې دا حديث مذکور دې : ﴿ عن أنس : عن النبي صلى الله عليه و سلم قال يعطى المؤمن في الجنة قوة كذا وكذا من الجماع قيل يا رسول الله أو يطيق ذلك؟ قال يعطى قوة مائة ﴾ په جنت کښې به يو مومن ته دومره کرته، يا دومره زنانو سره د جماع طاقت ورکولې شي (تعداد ذکر نه دې) په دې باندې يو صحابي تپوس اوکړو چه آيا په هغه کښې به دومره طاقت وي نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل يو جنتي ته به په جنت کښې د سلو سړو طاقت ورکړې شي.اوس دا چه په جنت کښې به اولاد هم وي يا نه دې باره کښې په هغې کښې يا په بل باب کښې ئې ضمنا دا حديث ذکر کړې دې ﴿ عن أبي سعيد الخدري قال : قال رسول الله صلى الله عليه و سلم المؤمن إذا اشتهى الولد في الجنة كان حمله ووضعه وسنه في ساعة كما يشتهي ﴾ چه کله مومن په جنت کښې اولاد غواړي نو د جماع نه پس د حمل استقرار او د هغه پيدائش او د هغه پوره عمر (درې ديرش کاله) دا ټول کارونه به په يو ساعت کښې اوشي.هذا حديث حسن غريب ....وقد اختلف أهل العلم في هذا فقال بعضهم في الجنة جماع ولا يكون ولد هكذا روي عن طاووس و مجاهد و إبراهيم النخعي وقال محمد قال إسحق بن إبراهيم في حديث النبي صلى الله عليه و سلم إذا اشتهى المؤمن الولد في الجنة كان في ساعة واحد كما يشتهي ولكن لا يشتهي قال محمد وقد روي عن أبي رزين العقيلي عن النبي صلى الله عليه و سلم قال إن أهل الجنة لا يكون لهم فيها ولد ...اهـ د محمد نه مراد امام بخاري رحمه الله دې او اسحاق بن ابراهيم هم هغه دې کوم چه په اسحق بن راهويه سره مشهور دې هغوی فرمائي چه که غواړي نو هم دغه شان به اوشي څنګه چه په حديث کښې ذکر دي خو هغه به داسې نه غواړي، لهذا هلته به د پيدائش سلسله نه وي.

دا حديث کوم چه مصنف رحمه الله په دې باب کښې راوړې دې د ترجمة الباب مناسب نه دې چه دا حديث که په راروان باب کښې وې نو ډيره به غوره وه.والحديث اخرجه مسلم بأتم منه، قاله المنذري.

# بَابٌ فِي خَلْقِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ

**باب:...... دَ فنا نه ورستو پورته کيدل او دَ شپيلۍ پوک وهلو بيان**

[۴۷۴۴]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أخبرنا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ الْجَنَّةَ، قَالَ لِجِبْرِيلَ: اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا، ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ: أَيْ رَبِّ، وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا، ثُمَّ حَفَّهَا بِالْمَكَارِهِ، ثُمَّ قَالَ: يَا جِبْرِيلُ اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ: أَيْ رَبِّ، وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ لَا يَدْخُلَهَا أَحَدٌ، قَالَ: فَلَمَّا خَلَقَ اللَّهُ النَّارَ، قَالَ: يَا جِبْرِيلُ، اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا، ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ: أَيْ رَبِّ، وَعِزَّتِكَ لَا يَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ فَيَدْخُلُهَا، فَحَفَّهَا بِالشَّهَوَاتِ، ثُمَّ قَالَ: يَا جِبْرِيلُ، اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا، فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا، ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ: أَيْ رَبِّ، وَعِزَّتِكَ لَقَدْ خَشِيتُ أَنْ لَا يَبْقَى أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : کله چه الله تعالىٰ جنت پيدا کړو نو جبريل امين ته ئې اوفرمائيل : لاړ شه او دې لره اوګوره بيا راغې نو وې وئيل اې زما رب ! ستا په عزت مې دې قسم وی ددې متعلق چه څوک هم اوری نو په دې کښې به داخليدل غواړی - بيا الله جل شانه هغه (جنت) لره په مکروهاتو کښې پټ کړو -" (يعنى جنت چه دَ راتللو دپاره کوم عمل کولې شي او دَ کومو شرعى پابنديانو قبلول چه به وی نو يقينا هغې ته دَ انسان طبيعت مائل نۀ وی، يا دَ حق په لاره کښې چه کوم تکاليف مخې ته راځي نو په هغې باندې دَ استقامت په وجه سره تکليفونه اوچتولې شي-) بيا الله تعالىٰ اوفرمائيل : جبريل ! لاړ شه هغې لره اوګوره او راشه هغه لاړو هغه ئې اوکتلو او بيا راغې اووې وئيل اې زما ربه ! ستا په عزت باندې مې قسم وی ! ما ته يره ده چه دې کښې خو به هيڅ څوک داخل نۀ شی - حضور ﷺ اوفرمائيل بيا چه هر کله الله تعالىٰ دوزخ پيدا کړو نو جبريل ئې اوفرمائيل : جبريل ! لاړ شه او هغه اوګوره هغه لاړو وې کتل او بيا راغې اووې وئيل : اې زما ربه ! زما دې ستا په عزت باندې قسم وی څوک داسې نشته دې چه ددې متعلق واوری او بيا په دې کښې داخل شی - بيا الله تعالىٰ جهنم لره په نفسانى خواهشاتو او مرغوباتو سره پټ کړو - بيا ئې اوفرمائيل : جبريل ! لاړ شه او هغه اوګوره جبريل لاړو هغه ئې اوکتلو او بيا راغې اووې وئيل اې زما ربه ! زما دې ستا په عزت باندې قسم وی او زما دې ستا په جلال باندې قسم وی ! ما ته يره ده چه دې ته دَ داخليدو نه خو به هيڅ څوک بچ نۀ شی-"

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ : « لَمَّا خَلَقَ اللَّهُ الْجَنَّةَ قَالَ لِجِبْرِيلَ : اذْهَبْ فَانْظُرْ إِلَيْهَا الخ ﴾

مضمون د حديث دا دې چه کله الله پاک جنت پيدا کړو او جوړيدو سره تيار شو نو جبرائيل عليه السلام ته ئې اوفرمائيل لاړه شه هغه اوګوره هغه لاړو او د ليدو نه پس راغلو او دا راتلو نه پس ئې ډير په وثوق سره قسم خوړلو سره دا عرض اوکړو چه د داسې جنت چه کوم انسان حال واوری نو هغه به هغې ته ضرور ځی.د دې نه پس الله پاک جنت لره په ناخوښه او

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۰۱۵)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الأيمان والنذور ۲ (۳۷۹۴)، مسند احمد (۲/۲۵۴، ۳۳۲، ۳۷۳) (حسن صحيح)

د مشقت په كارونو باندې ګير كړو كوم چه ذريعه وى د دخول جنت، او بيا ئې اوفرمائيل جبرائيل عليه السلام ته چه اوس لاړ شه او وې ګوره هغه لاړو او د كتلو نه پس راغلو نو دې ځل ئې قسم خوړلو نه پس په وثوق سره اووې چه اوس خو زما دا ويره ده چه كيدې شي څوک به هم په دې كښې داخل نه شى، د دې نه پس په حديث كښې د جهنم حال ذكر دې چه كله الله پاک هغه پيدا كړو نو جبرائيل ته ئې اوفرمائيل چه لاړ شه او هغه اوګوره، هغه لاړو او د كتلو نه پس راغلو او هم هغه شان ئې په قسم خوړلو سره اووې چه د دې حال چه څوک هم واورى نو ممكن نه ده چه دې ته به داخل شى، د دې نه پس الله پاک هغه په خواهشاتو او د نفس په غوره څيزونو سره ګير كړو او وې فرمائيل چه اوس لاړ شه او وې ګوره هغه اوكتلو او راغلو او قسم خوړلو سره ئې عرض اوكړو چه اوس خو زما دا ويره ده چه څوک به هم دې ته د داخليدو نه بغير پاتې نه شى.

د مصنف رحمه الله غرض په ترجمة الباب سره دا بيان دې چه جنت او جهنم دواړه پيدا شوې دى، نه داسې لكه معتزله چه وائى چه جنت او دوزخ تر اوسه پورې نه دې پيدا كړې شوې هغه به د قيامت په ورځ باندې پيدا كيږى، دا بحث په شرح عقائد كښې هم ذكر دې، د معتزله شبهات او د هغې جوابات دې هلته اوكتلې شى.حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې د علامه شعرانى د اليواقيت والجواهر ۱۵۵ په حوالې سره چه جنت او دوزخ پيدا كړې شوې دى خو د هغې جوړيدل لا نه دې مكمل شوې، د خلقو د اعمالو په اعتبار سره په مزه مزه آباديږى د هغه روايت د وجې نه په كوم كښې چه د جنت په باره كښې دى چه ﴿ انها قيعان وغراسها سبحان الله والحمد لله ﴾ دا اشاره د حديث معراج د يو ټكړې طرف ته ده چه په هغې كښې دى چه كله رسول الله ﷺ د پورته نه په واپسئ باندې په ابراهيم عليه السلام باندې راتير شو نو هغوى رسول الله ﷺ ته اوفرمائيل چه خپل امت ته زما سلام وايه او هغوى ته د جنت په باره كښې دا اووايه كوم چه پورته ذكر شوه ﴿ انها قيعان ﴾ يعنى جنت خو هوار ميدان دې د هغې اونې او بوټى دا دى سبحان الله الحمد لله، هم دغه شان په دليل كښې هغوى يو بل حديث پيش كړو چه ﴿ من بنى لله مسجدا بنى الله له بيتا فى الجنة ﴾ وړاندې هم په دې حاشيه كښې دى چه جنتونه اووۀ دى امام راغب اصفهانى د هغې نومونه ذكر كړې دى.

### د جهنم عذاب ابدى دې او د فناء نار قول مردود دې :

او د دې نه پس بيا دا دى چه د جهنم عذاب د كفارو دپاره ابدى دې او بيا ئې د دې نه پس د شيخ محى الدين ابى عربى رائې دا نقل كړه چه د كفارو دپاره به جهنم د يوې مودې دپاره خو عذاب وى، بيا به د هغوى طبيعت طبيعت ناريه جوړ شى بيا به هغوى د اور نه په خائې د اذيت مزې اخلى او د ابن تيميه او د ابن قيم او د سلفو د يو جماعت نه منقول دى چه اور به فنا شى كذا فى تفسير الجمل، په تفسير جمل كښې دا مسئله د سورة هود په آخر كښې د ﴿خالدين فيها ما دامت السموات والارض الا ماشاء ربک ﴾ د لاندې ذكر شوې ده فارجع اليه لوشئت، د هغې په اخر كښې دا دى د فناء نار قول د بعض علماء كرامو نه د نقل كولو نه پس وقد نصر هذا القول ابن القيم كشيخه ابن تيميه وهو مذهب متروک وقول مهجور لا يصار اليه ولا

يعول عليه وقد اول ذلک کله الجمهور واجابوا عن الآيات المذكورة بنحو عشرين وجها الخ.

والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

# بَاب فِي الْحَوْضِ

## بابـ ۲۲، ۲۱- دَ جنت او دوزخ دَ پیدا کولو بیان

د دې حوض کوثر خوارجو او بعض معتزله ؤ انکار کړې دې او هم په دې وجه د دې بحث په شرح عقائد کښې ذکر کړې شوې دې پس په هغې کښې دی : ﴿ والحوض حق لقوله تعالى : انا اعطينک الكوثر ﴾ ولقوله عليه الصلوة والسلام حوضى مسيرة شهر وزواياه سواء ماؤه ابيض من اللبن وريحه اطيب من المسک وكيزانه اكثر من نجوم السماء من يشرب منها فلا يظماء ابدا، والاحاديث فيه كثيرة اهـ د دې په حاشيه کښې دی چه د مصنف رحمه الله د کلام نه معلومیږی چه هم کوثر حوض دې او اصح دا ده چه کوثر جنت دې او حوض موقف دې، او د دې توجیه دا هم کیدې شی چه یو خو دې کوثر او یو نهر الکوثر او یو دې حوض الکوثر لهذا کوثر په دواړو باندې صادقیږی د بعض روایاتو نه معلومیږی چه د قیامت په ورځ به د هر نبی دپاره یو حوض وی، پس د ترمذی روایت دې : عن قتادة عن الحسن عن سمرة قال : قال رسول الله صلى الله عليه و سلم إن لكل نبي حوضا وإنهم يتباهون أيهم أكثر واردة وإني أرجو أن أكون أكثرهم واردة قال أبو عيسى هذا حديث غريب وقد روى الأشعث بن عبد الملك هذا الحديث عن الحسن عن النبي صلى الله عليه و سلم مرسلا ولم يذكر فيه عن سمرة وهو أصح.

[٤٧٤٥](١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: أخبرنا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَمَامَكُمْ حَوْضًا، مَا بَيْنَ نَاحِيَتَيْهِ كَمَا بَيْنَ جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ".

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : بې شکه وړاندې (په محشر کښې) یو حوض دې - دَ هغې کنارې دومره قدرې اوږدې دی لکه چه دَ جرباء او اذرح په مابین کښې څومره قدرې فاصله ده- (دا دَ شام دوه علاقې دی ددې په درمیان کښې په پخوا زمانه کښې دَ دوریو شپو دَ مسافت فاصله وه-)

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- : « إِنَّ أَمَامَكُمْ حَوْضًا مَا بَيْنَ نَاحِيَتَيْهِ كَمَا بَيْنَ جَرْبَاءَ وَأَذْرُحَ » ﴾

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه یقینا ستاسو مخکښې حوض دې (یعنی ستاسو مخې ته راتلونکې دې) چه د هغې د دواړو غاړو دومره مزل او فاصله ده څومره چه د جرباء او اذرح ترمینځه.

جرباء او اذرح دوه علاقې دی په شام کښې د هغې ترمینځه د درې ورځو مسافت دې وقد جاء في تحديد الحوض حدود مختلفة ووجه التوفيق ان تحمل على بيان تطويل المسافة لا على تحديدها (بذل) دا روایات مختلفه په ترمذی شریف کښې هم شته.

والحديث اخرجه مسلم، قاله المنذري.

(١): صحيح مسلم/الفضائل ٩ (٢٢٩٩)، (تحفة الأشراف: ٧٥٣٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الرقاق ٥٣ (٦٥٧٧)، مسند احمد (٢/٢١، ٦/١٢٥) (صحيح)

[۴۷۴٦]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَزَلْنَا مَنْزِلًا، فَقَالَ: "مَا أَنْتُمْ جُزْءٌ مِنْ مِائَةِ أَلْفِ جُزْءٍ مِمَّنْ يَرِدُ عَلَيَّ الْحَوْضَ"، قَالَ: قُلْتُ: كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: سَبْعَمِائَةٍ، أَوْ ثَمَانِمِائَةٍ.

د زيد بن ارقم رضی الله عنه نه روايت دې چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو مونږ په يو منزل باندې پړاؤ اوکړو نو حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل تاسو خلق يو لاکهمه حصه هم نۀ ئۍ د هغه خلقو نه کوم چه به ماته په حوض باندې راځي- ابو حمزه وائی ما تپوس اوکړو : په دغه ورځ باندې ستاسو تعداد څومره وو؟ هغه اوفرمائيل اووۀ سوه يا اتۀ سوه.

﴿عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ : كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَنَزَلْنَا مَنْزِلاً فَقَالَ : « مَا أَنْتُمْ جُزْءٌ مِنْ مِائَةِ أَلْفِ جُزْءٍ مِمَّنْ يَرِدُ عَلَيَّ الْحَوْضَ » الخ ﴾

سيدنا زيد بن ارقم رضی الله عنه فرمائی چه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو په يو سفر کښې په لاره کښې مونږ په يو منزل باندې کوز شو نو هلته رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبره ارشاد اوفرمائيله چه تاسو د هغه خلقو د لکهمې حصې برابر هم نه يئ کوم چه به د قيامت په ورځ زما حوض باندې راځي، د دې صحابی رضی الله عنه شاګرد د هغوی نه تپوس اوکړو چه تاسو هغه وخت څومره تعداد کښې وئ؟ هغوی اووې اووۀ سوه يا اته سوه.

[۴۷۴۷]() حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، أَخبرنا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ الْمُخْتَارِ بْنِ فُلْفُلٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: "أَغْفَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِغْفَاءَةً، فَرَفَعَ رَأْسَهُ مُتَبَسِّمًا، فَإِمَّا قَالَ لَهُمْ، وَإِمَّا قَالُوا لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لِمَ ضَحِكْتَ؟ فَقَالَ: إِنَّهُ أُنْزِلَتْ عَلَيَّ آنِفًا سُورَةٌ، فَقَرَأَ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ حَتَّى خَتَمَهَا، فَلَمَّا قَرَأَهَا، قَالَ: هَلْ تَدْرُونَ مَا الْكَوْثَرُ؟، قَالُوا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: فَإِنَّهُ نَهْرٌ وَعَدَنِيهِ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ فِي الْجَنَّةِ، وَعَلَيْهِ خَيْرٌ كَثِيرٌ، عَلَيْهِ حَوْضٌ تَرِدُ عَلَيْهِ أُمَّتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ، آنِيَتُهُ عَدَدُ الْكَوَاكِبِ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه په حضور صلی الله علیه وسلم باندې پرکالي راغله بيا مسکي شو او خپل سر مبارک ئې اوچت کړو- بيا حضور صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو رضی الله عنهم، يا صحابه کرامو رضی الله عنهم د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه اوکړه اې د الله رسوله ! تاسو ولې مسکي شوئ؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل په ما باندې اوس يو سورت نازل شوې دې -" او بيا حضور صلی الله علیه وسلم اولوستو: {بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ { إِنَّا أَعْطَيناكَ الْكَوْثَرَ ...... } آخره پورې- کله چه حضور صلی الله علیه وسلم دا اولوستو نو وې فرمائيل تاسو څه پوهيږئ چه کوثر څه څيز دې؟ صحابه کرامو رضی الله عنهم اوفرمائيل الله او د هغه رسول ښۀ پوهيږي، حضور اوفرمائيل دا يو نهر دې چه ددې ما سره الله تعالیٰ په جنت کښې د راکولو وعده فرمائيلې ده او په هغې باندې به خير کثير وی او په هغې باندې به يو حوض وی چه هغې ته به د قيامت په ورځ باندې زما امت راځی د هغې د څښلو لوښی به د ستورو په شمير باندې وی-

**قوله:** ﴿ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُولُ : أَغْفَى رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– إِغْفَاءَةً فَرَفَعَ رَأْسَهُ مُتَبَسِّمًا الخ ﴾ سيدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه يو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې په ناسته ناسته پرکالی

[1]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٦٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٦٧، ٣٦٩، ٣٧١) (صحيح)

[2]): انظر حديث رقم (٧٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٥٧٥) (صحيح)

راغله، لږ ساعت پس ئې سر پورته اوچت کړو او مسکې شو، بيا رسول الله ﷺ خپله اوفرمائيل : يا د صحابه کرامو ﷺ په تپوس باندې د (مسکې کيدو په وجه) رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په ما باندې هم دې وخت کښې يو سورة نازل شوې دې او بيا رسول الله ﷺ بسم الله الرحمن الرحيم لوستلو نه پس ﴿ أنا اعطيناک الکوثر ﴾ تر آخره پورې تلاوت اوفرمائيلو او بيا ئې تپوس اوکړو چه تاسو ته پته شته چه کوثر څه څيز دې؟ صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو : الله ورسوله اعلم ....﴿ قال فَإِنَّهُ نَهْرٌ وَعَدَنِيهِ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ فِي الْجَنَّةِ وَعَلَيْهِ خَيْرٌ كَثِيرٌ عَلَيْهِ حَوْضٌ تَرِدُ عَلَيْهِ أُمَّتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ آنِيَتُهُ عَدَدُ الْكَوَاكِبِ ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه يو نهر دې چه د هغې ماسره وعده کړې ده زما رب په جنت کښې، په هغې باندې خير کثير دې، په هغې باندې حوض دې په کوم چه به راځي زما امت د قيامت په ورځ د هغې جامونه به د اسمان د ستورو په تعداد کښې وی دا حديث هم په دې سند سره په کتاب الصلوة باب من لم ير الجهر ببسم الله الرحمن الرحيم کښې هم تير شوې دې. والحديث اخرجه مسلم والنسائي، قاله المنذري.

[۴۷۴۸]([1]) حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ النَّضْرِ، أخبرنا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، قَالَ: أخبرنا قَتَادَةُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "لَمَّا عُرِجَ بِنَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنَّةِ، أَوْ كَمَا قَالَ: عُرِضَ لَهُ نَهْرٌ حَافَتَاهُ الْيَاقُوتُ الْمُجَيَّبُ، أَوْ قَالَ: الْمُجَوَّفُ، فَضَرَبَ الْمَلَكُ الَّذِي مَعَهُ يَدَهُ، فَاسْتَخْرَجَ مِسْكًا، فَقَالَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمَلَكِ الَّذِي مَعَهُ: مَا هَذَا؟ قَالَ: الْكَوْثَرُ الَّذِي أَعْطَاكَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ.

د حضرت انس بن مالک ﷺ نه روايت دې چه کله نبي کريم ﷺ د معراج په موقع باندې جنت ته بوتللې شو نو هغه ته يو نهر اوښودلې شو چه د هغې کنارې د داسې ياقوتو نه وې چه هغه حول دار وو، نو هغه فرښتې کومه چه د نبی کريم ﷺ سره وه هغې (د هغه نهر په ويخ کښې) خپل لاس اوهلو او مشک ئې ترينه راويستل. نو حضرت محمد ﷺ د فرښتې نه پوښتنه اوکړه داڅه دی؟ هغې اووې داهغه حوض دې کوم چه الله تعالیٰ تاته درکړې دې."

قوله:﴿ فَضَرَبَ الْمَلَكُ الَّذِى مَعَهُ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَ مِسْكًا ([2]) فَقَالَ مُحَمَّدٌ -صلى الله عليه وسلم-

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۳٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الرقاق ٥٣ (٦٥٨١)، التوحيد ۳۷ (٧٥١٦) (صحيح)

[2]) د دنيا د نعمتونو حقيقت صرف نومونه دی د دې اصل حقيقت په جنت کښې دی : په حاشيه د بذل کښې دی چه په الکوکب الدری صفحه ۲ : لا تعلم نفس ما اخفي لهم من قرة اعين د لاندې تير شوې دې چه په احاديثو کښې د سرو او سپينو او د مشک و عنبر چه کوم ذکر راځی هغه صرف يو تمثيل دې صرف په نوم کښې د اشتراک د وجې نه اهـ مطلب دا دې چه په جنت کښې چه به کوم سرة او سپين او مشک وغيره وی په دنيا کښې داسې څيزونه کوم دی د مثال په طور وئيلې شی، په جنت کښې خو د هغه نومونو حقيقت موندلې شی په دنيا کښې خو د هغه څيزونه صرف نومونه دی ګينې د دواړو ځايونو په سرو او سپينو زرو کښې ډير فرق دې بلکه د آسمان او زمکې نه هم زيات فرق دې لکه چه حضرت په تير شوی حديث کښې ﴿ ان اهل الجنة ياکلون فيها ويشربون ﴾ په شرح کښې ليکلې دی او حافظ په فتح الباری کښې د امام نووی رحمه الله نه نقل کړی دی چه د اهل جنت تنعم به د اهل دنيا په شان وی په لذت کښې په تفاضل سره، او بله خبره دا چه د هغه ځاني نعمتونه دائمی دی په هغې کښې انقطاع نشته، هم دغه شان په بخاری کښې دی ﴿ قالوا هذا الذي رزقنا من قبل بعضه اوتوا به متشابها يشبه بعضه بعضا ويختلف في الطعم ﴾ د دې د لاندې حافظ رحمه الله ليکلي دی هو کقول ابن عباس ﷺ ليس في الدنيا مما في الجنة الا الاسماء اهـ)

لِلْمَلَكِ الَّذِي مَعَهُ : « مَا هَذَا »...الخ﴾

يعني چه کله د معراج په شپه رسول اللهﷺ جنت ته لاړو نو په هغوی باندې يو داسې نهر پيش کړې شو چه د هغې دواړه طرفونه (د هغې د ژور والې ديوالونه) د ياقوت نه جوړ وو داسې ياقوت کوم چه د دننه نه ډډ وی او کلک نه وی، نو کوم ملک چه د هغوی سره وو هغه په دې نهر کښې لاس وهلو سره يو مشک راويستلو نو رسول اللهﷺ د هغه فرشتې نه تپوس اوفرمائيلو چه دا څه څيز دې هغې جواب ورکړو دا کوثر دې کوم چه الله پاک تاسو ته درکړې دې، د مشک راويستلو مطلب دا دې چه په دې نهر کښې دننه زمکه په ځائې د خاورې مشک دی، الله اکبر څه حال دې د جنت د نعمتونو، والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٤٧٤٩]() حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، أخبرنا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ أَبُو طَالُوتَ، قَالَ: شَهِدْتُ أَبَا بَرْزَةَ دَخَلَ عَلَى عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ زِيَادٍ، فَحَدَّثَنِي فُلَانٌ، سَمَّاهُ مُسْلِمٌ، وَكَانَ فِي السِّمَاطِ، فَلَمَّا رَآهُ عُبَيْدُ اللَّهِ، قَالَ: "إِنَّ مُحَمَّدِيَّكُمْ هَذَا الدَّحْدَاحُ، فَفَهِمَهَا الشَّيْخُ، فَقَالَ: مَا كُنْتُ أَحْسَبُ أَنِّي أَبْقَى فِي قَوْمٍ يُعَيِّرُونِي بِصُحْبَةِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ عُبَيْدُ اللَّهِ: إِنَّ صُحْبَةَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَكَ زَيْنٌ، غَيْرُ شَيْنٍ، قَالَ: إِنَّمَا بَعَثْتُ إِلَيْكَ لِأَسْأَلَكَ عَنِ الْحَوْضِ، سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ فِيهِ شَيْئًا، فَقَالَ لَهُ أَبُو بَرْزَةَ: نَعَمْ، لَا مَرَّةً، وَلَا ثِنْتَيْنِ، وَلَا ثَلَاثًا، وَلَا أَرْبَعًا، وَلَا خَمْسًا، فَمَنْ كَذَّبَ بِهِ، فَلَا سَقَاهُ اللَّهُ مِنْهُ، ثُمَّ خَرَجَ مُغْضَبًا".

مسلم بن ابراهيم بيان کوی چه مونږ ته عبد السلام بن ابو حازم ابو طالوت بيان کړې دی او فرمائيلي دی چه ما ابو برزه رضی الله عنه لره اوليدو چه هغه (د يزيد بن معاويه د جانب نه د کوفې امير) عبيد الله بن زياد ته ورغې - عبد السلام وائی : ما ته يو کس بيان کړې دې کوم چه په دې مجلس کښې شريک وو - (ابوداود رحمه الله فرمائی) مسلم بن ابراهيم د هغه نوم هم اخستې دې، عبيد الله چه کله حضرت ابو برزه رضی الله عنه لره اوليدو نووې وئيل : خپل دې موټا محمدی ته اوګوره - شيخ د هغه په خبره باندې پوهه شو (چه دهٔ طعنه راکړه) نو هغوی اووې چه ما ته دا اميد نهٔ وو چه زهٔ به په داسې قوم کښې باقی پاتې شم چه هغه به ماته د حضرت محمد ﷺ په صحابيت باندې طعنه راکوی - نو عبيد الله هغه ته اووې : بې شکه د حضرت محمد ﷺ صحبت ستاسو دپاره باعث عزت دې په دې کښې څه د عيب خبره نشته دې - بيا ئې اووې چه ما تاله ددې دپاره راوبللو چه زهٔ ستانه د حوض متعلق تپوس اوکړم - آيا تا د رسول الله نه په دې باره کښې څه اوريدلي دی - نو حضرت ابو برزه رضی الله عنه اوفرمائيل : او ! څه يو ځل، دوه درې ځله، څلور پنځه ځله نهٔ (بلکې ډير زيات مې ترينه اوريدلي دی) نو څوک چه د هغې تکذيب کوی الله تعالیٰ دې په هغه باندې ددې نه اونهٔ څکوی، بيا په غصه کښې بهر راوتلو -''

قوله: ﴿ حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ أَبُو طَالُوتَ قَالَ......... سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَذْكُرُ فِيهِ شَيْئًا فَقَالَ أَبُو بَرْزَةَ : نَعَمْ لاَ مَرَّةً وَلاَ ثِنْتَيْنِ وَلاَ ثَلاَثًا وَلاَ أَرْبَعًا وَلاَ خَمْسًا فَمَنْ كَذَّبَ بِهِ فَلاَ سَقَاهُ اللَّهُ مِنْهُ ثُمَّ خَرَجَ مُغْضَبًا ﴾

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٦٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٩/٤، ٤٢١، ٤٢٤، ٤٢٦) (صحيح)

## مضمون الحدیث:

عبدالسلام بن ابی حازم رحمه الله فرمائی د چا کنیت چه ابوطالوت دې چه زه یو ځل د ابوبرزه صحابی رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شوم هغوی دغه وخت کښې د عبیدالله بن زیاد سره ناست وو (اوس ورانډې چه د عبیدالله بن زیاد په مجلس کښې کومه خبره راپیښه شوه د ابوبرزه سره هغې لره یو هغه سړې کوم چه په دغه مجلس کښې وو د هغه ځائې نه په راتلو باندې هغوی ته یعنی ابوطالوت ته بیانوی خو د هغه سړی نوم دلته ذکر نه دې دا نوم مصنف رحمه الله ته یاد نه دې پاتې شوې د مصنف رحمه الله استاد مسلم بن ابراهیم خو بیان کړې وو) ابوطالوت وائی چه دې فلانی د دننه واقعه ماته داسې بیان کړه چه کله ابوبرزه رضی الله عنه لره عبیدالله اولیدلو نو هغه د هغوی په لیدو باندې دا جمله اوئیله حاضرینو ته خطاب کولو سره : اوګورئ ساسو دا محمدی د وړوکی قد والا راغلو، په ظاهر به هغه په ښکته آواز سره وئیلې وی خو هغه صحابی دا جمله واوریده او فورا ئې اووې چه زما دا خیال نه وو چه د داسې خلقو دنیا ته د راتلو پورې به زه باقی یم کوم چه به ماته پیغور راکوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په صحبت باندې، په دې باندې عبیدالله زر اووې نه صاحبه! د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحبت (ستاسو دپاره مبارک دې) د ښائست باعث دې هیڅ د عیب خبره نه ده بیا ئې اووې چه ما خو په تاسو پسې سړې د دې دپاره درلیږلې وو چه ستاسو نه د حوض په باره کښې تپوس اوکړم چه تاسو د دې په باره کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه څۀ اوریدلې دی که نه؟ په دې باندې ابوبرزه رضی الله عنه د خفګان په لهجه کښې اوفرمائیل: یو ځل نه دوه کرته نه درې کرته څلور کرته نه پنځه کرته نه بلکه د دې نه مې هم زیات اوریدلې دی (اوس څه ئې اوریدلې دی هغه ته ئې بیان نه کړل بلکه وې فرمائیل) کوم سړې چه حوض دروغژن ګنړی الله پاک دې ترې نه هغه خروب نه کړی محروم دې ترې نه اوساتی، او د دې وینا نه پس په خفګان سره راواپس شو.

**قوله:** ﴿الدحداح﴾ د دې معنی ده کوم چه پیړ بدن والا او وړوکی قد والا وی، نو ابوبرزه رضی الله عنه به هم دغه شان وو، خو ورسره ئې هغوی ته محمدی هم اوئیلو یعنی چاته چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحبت حاصل وی، حضرت خو په بذل کښې دا لیکلې دی چه د دحداح په وینا خو هغوی ته غصه رانغله خو د محمدی په لفظ کوم چه ئې د تمسخر په انداز کښې وئیلې وو د هغې په وینا ورته غصه ورغله، او عبیدالله بن زیاد وو هم د فساق او فجار نه، خو دویم احتمال دا هم دې چه دلته هغه دا لفظ محمدی د تمسخر په طور نه وو وئیلې د توقو دپاره خو ئې دحداح وئیلې وو خو هغوی دا اوګنړله چه ګینې دا محمدی لفظ هم د طنز په طور وائی په دې وجه هغوی ته غصه ورغله : الاحتمال الثانی ذکره شیخنا مولانا محمد اسعد الله رحمه الله تعالی فی هامش کتابه، چه د هغې قرینه هغوی دا لیکلې ده ولذا قال ان صحبة محمد صلی الله علیه وسلم لک زین غیر شین ...

عبیدالله بن زیاد او د هغه پلار زیاد ابن ابیه د دواړو څه نه څه حال په کتاب الصلوة باب قول النبی صلی الله علیه وسلم کل صلوة لا یتمها صاحبها ....کښې تیر شوې دې.

دا چه حضرت ابوبرزه رضی الله عنه اوفرمائیل فمن کذب فلا سقاه الله منه،په دې باندې په حاشیه د بذل

کښې دی چه کیدې شی دا په عبیدالله بن زیاد باندې تعریض وی څکه چه هغه د حوض کوثر منکر وو کما بسطه الحافظ ۱۱/۳۷۳اه پس په فتح الباری کښې دی په باب فی الحوض کښې په کتاب الرقاق کښې قلت وانکره الخوارج وبعض المعتزلة وممن کان ینکره عبیدالله بن زیاد احد امراء العراق لمعاویة وولده، د دې نه پس حافظ د ابوداؤد هم دا روایت لیکلې دې او هم په دې کښې دی : وعند احمد عن أبي سبرة قال قال عبيد الله بن زياد ما اصدق بالحوض وذلك بعد ان حدثه أبو برزة والبراء وعائذ ابن عمرو فقال له أبو سبرة بعثني أبوك في مال إلى معاوية فلقيني عبد الله بن عمرو فحدثني وكتبته بيدي من فيه انه سمع رسول الله صلى الله عليه و سلم يقول موعدكم حوضي الحديث فقال ابن زياد حينئذ اشهد أن الحوض حق الى اخر ما ذكر .....د دې نه معلومه شوه چه کوم وخت هغه ابوبرزه راطلب کړو په خپل مجلس کښې او د دواړو ترمینځه سوال او جواب اوشو تر هغه وخته پورې هغه د حوض قائل نه وو، روستو د ابوبسره د حدیث اوریدلو نه پس د حوض قائل شوې وو، په دې حدیث کښې چه کوم لفظ فلان راغلې دې کوم چه د عبد السلام استاد دې حافظ په مبهمات تقریب کښې لیکلې دی چه د دې نه مراد د هغوی تره دې : هو عمه ولم اقف علی اسمه ....د دې نه پس حضرت د مسند احمد په روایت د هغوی نوم عباس الجریری نقل کړې دې،هلته ئې د نوم تصریح شته، حدثنا عبدالسلام ابوطالوت ثنا العباس الجریری ان عبیدالله بن زیاد قال لابی برزة الخ.

## ایا دا حدیث الحوض سندا ثلاثی دې؟:

د دې پورته ذکر کړې شوې حدیث نه معلومه شوه چه په دې حدیث کښې د عبدالسلام استاد ابوبرزه ﷺ صحابی نه دې بلکه د دواړو ترمینځه یو واسطه ده لهذا دا حدیث رباعی شو نه ثلاثی لکه چه امام سخاوی ته وهم شوې دې په فتح المغیث کښې چه دا حدیث ثلاثی دې او دا خبره د الدرر المنضود په مقدمه کښې هم تیره شوې ده فتذکر.

په حاشیه د بذل کښې داسې دی :

**فائده** : فی الجامع الصغیر : اذا جعلت اصبعیک فی اذنیک سمعت خریر الکوثر (قط) عن عائشة ﷺ .....یعنی تاسو په خپلو دواړو غوږونو کښې خپلې ګوتې داخلولو سره اوګورې هغه وخت چه کوم آواز محسوسیږی هغه د نهر کوثر د غورځیدلو او د ببهیدلو آواز وی، حافظ ابن القیم فرمائی وقد روی احادیث الحوض اربعون من الصحابة وکثیر منها واکثرها فی الصحیح او بیا هغه ټول نومونه هغوی ذکر کړل او په حاشیه د بذل کښې دی وعد العینی من روی الحوض من الصحابة اکثر من خمسین صحابیا.

.......

# بَاب فِي الْمَسْأَلَةِ فِي الْقَبْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ

## باب ۲۲، ۲۳- دَ حوض بيان

[٤٧٥٠](١) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، أخبرنا شُعْبَةُ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنْ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا سُئِلَ فِي الْقَبْرِ، فَشَهِدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَلِكَ قَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ سورة إبراهيم آية٢٧".

د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د مسلمان نه چه كله په قبر كښې سوال كولې شي نو هغه ګواهي وركوي چه دَ الله نه سوا بل څوک دَ عبادت لائق نشته دې او حضرت محمد ﷺ دَ الله رسول او بنده دې - او هم ددې مصداق دا قول دَ الله تعالىٰ دې: { يثَبِّتُ اللهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ ...... } الله تعالىٰ اهل ايمانو لره په پخه خبره باندې په دُنيا كښې ثابت قدم لرى او په آخرت كښې به ئې هم ثابت قدم لرى -"

**قوله:** ﴿ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ: « إِنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا سُئِلَ فِي الْقَبْرِ ......... فَذَلِكَ قَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ (يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ) ﴾

يعنى دا آيت كريمه چه د هغې ترجمه دا ده چه الله پاک اهل ايمان لره ثابت قدم ساتى په كلكه خبره باندې د دې نه مراد د قبر سوال دې او د قول ثابت نه مراد كلمه شهادت ده او په عون المعبود كښې دى: اذا سئل فى القبر التخصيص للعادة او كل موضع فيه مقره فهو قبره ...يعنى د قبر تخصيص د اكثريت په اعتبار سره دې چه اكثر انسان په قبر كښې دفن كولې شي يا دا چه د قبر نه مراد هر هغه ځائې دې چرته چه د مرګ نه پس مرې وى يعنى د مرى مقر مراد دې هم د هغې نه په قبر سره تعبير كړې شوې دې او په دې حديث كښې مسئول عنه حذف كړې شوې دې اى سئل عن ربه ودينه ونبيه لما ثبت فى الاحاديث الاخرى اه وفيه ايضا قال النووى مذهب اهل السنة اثبات عذاب القبر وقد تظاهرت عليه الادلة من الكتاب والسنة اه او په شرح عقائد كښې دى: ﴿ وعذاب القبر للكافرين ولبعض عصاة المومنين ﴾ خص البعض لان منهم من لا يريد الله تعالى تعذيبه فلا يعذب ﴿ وتنعيم اهل الطاعة فى القبر بما يعلمه الله تعالى ويريد ﴾ وهذا اولى مما وقع فى عامة الكتب من الاقتصار على اثبات عذاب القبر دون تنعيمه بناء على ان النصوص الواردة فيه اكثر الخ يعنى مصنف د عذاب قبر مقابل يعنى تنعيم دواړه ذكر كړل چه دا اولې ده د هغې نه كوم چه په اكثر كتابونو كښې دى يعنى صرف عذاب قبر لره ذكر كول او هغې سره تنعيم لره نه ذكر كول او د هغې په حاشيه كښې دى قال ابن عباس رضی الله عنهما ثلاث يعصمهم الله تعالى من عذاب القبر المؤذن والشهيد والمتوفى يوم الجمعة او ليله اه (٢) او د دې نه

(١): صحيح البخاري/الجنائز ٨٦ (٣١٢٠)، وتفسير سورة إبراهيم ٢ (٤٦٩٩)، صحيح مسلم/الجنة ١٧ (٢٨٧١)، سنن الترمذي/تفسير سورة إبراهيم ١٥ (٣١٢٠)، سنن النسائي/الجنائز ١١٤ (٢٠٥٩)، سنن ابن ماجه/الزهد ٣٢ (٤٢٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٨٢، ٢٩١) (صحيح)

(٢) پرون په ورځ د جمعې دلته مديني طيبې ته د سهارنپور نه خبر راغلو چه برادرم ..........له

پس دی ﴿ وسوال منكر ونكير ثابت ﴾ دا ثابت د دي درې واړو خبر دې يعنی عذاب او تنعيم او سوال، قال السيد ابوشجاع ان للصبيان سوالا وكذا للانبياء عليهم السلام عن التبليغ والوعظ .عند البعض (بالدلائل السمعية ﴾ لانها امور ممكنة اخبر بها الصادق على ما نطقت به النصوص، يعنی دا امور عقلا ممکن دی خلاف عقل نه دی مخبر صادق ﷺ د دې خبر ورکړې دې بيا د دې په ثابت کيدو کښې څه تامل دې د دې نه پس هغوی د دې دلائل آيات قرانيه او احاديث ذکر کړې دی او د هغې نه پس ئې ليکلې دی . وانكر عذاب القبر بعض المعتزلة والروافض لان الميت جماد لا حياة له ولا ادراک فتعذيبه محال، والجواب انه يجوز ان يخلق الله تعالى فى جميع الاجزاء او فى بعضها نوعا من الحياة قدر ما يدرک الم العذاب او لذة التنعيم، وهذا لا يستلزم اعادة الروح الى بدنه ولا ان يتحرک ويضطرب او يرى اثر العذاب عليه حتى ان الغريق فى الماء والماكول فى بطون الحيوانات والمصلوب فى الهواء يعذب وان لم نطلع عليه ومن تامل فى عجائب ملكه وملكوته وغرائب قدرته وجبروته لم يستبعد امثال ذلک فضلا عن الاستحالة اهـ

والحديث اخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه بنحوه، قاله المنذري.

[٤٧٥١]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، أخبرنا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَطَاءٍ الْخَفَّافُ أَبُو نَصْرٍ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ نَخْلًا لِبَنِي النَّجَّارِ، فَسَمِعَ صَوْتًا، فَفَزِعَ، فَقَالَ: مَنْ أَصْحَابُ هَذِهِ الْقُبُورِ؟ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، نَاسٌ مَاتُوا فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَقَالَ: تَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنْ عَذَابِ النَّارِ، وَمِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ، قَالُوا: وَمِمَّ ذَاكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ، أَتَاهُ مَلَكٌ، فَيَقُولُ لَهُ: مَا كُنْتَ تَعْبُدُ؟ فَإِنِ اللَّهُ هَدَاهُ، قَالَ: كُنْتُ أَعْبُدُ اللَّهَ، فَيُقَالُ لَهُ: مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ؟ فَيَقُولُ: هُوَ عَبْدُ اللَّهِ وَرَسُولُهُ، فَمَا يُسْأَلُ عَنْ شَيْءٍ غَيْرِهَا فَيُنْطَلَقُ بِهِ إِلَى بَيْتٍ كَانَ لَهُ فِي النَّارِ، فَيُقَالُ لَهُ: هَذَا بَيْتُكَ كَانَ لَكَ فِي النَّارِ، وَلَكِنَّ اللَّهَ عَصَمَكَ، وَرَحِمَكَ، فَأَبْدَلَكَ بِهِ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ، فَيَقُولُ: دَعُونِي حَتَّى أَذْهَبَ فَأُبَشِّرَ أَهْلِي، فَيُقَالُ لَهُ: اسْكُنْ، وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ، أَتَاهُ مَلَكٌ، فَيَنْتَهِرُهُ، فَيَقُولُ لَهُ: مَا كُنْتَ تَعْبُدُ؟ فَيَقُولُ: لَا أَدْرِي، فَيُقَالُ لَهُ: لَا دَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ، فَيُقَالُ لَهُ: فَمَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ؟ فَيَقُولُ: كُنْتُ أَقُولُ مَا يَقُولُ النَّاسُ، فَيَضْرِبُهُ بِمِطْرَاقٍ مِنْ حَدِيدٍ بَيْنَ أُذُنَيْهِ، فَيَصِيحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا الْخَلْقُ غَيْرُ الثَّقَلَيْنِ"،

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د بنو نجار په يو نخلستان کښې داخل شو، هغوی يو آواز واوريدو او يره پرې راغله او تپوس ئې اوکړو : دا دَ قبرونو والا څوک دی؟ هغوی اووئيل اې دَ الله رسوله ! داڅه خلق وو چه په دور دَ جاهليت کښې مړهٔ شوې دی نو حضور ﷺ اوفرمائيل په الله سره دَ اور دَ عذاب او دَ دجال دَ فتنې نه پناه غواړئ ـ" هغوی اووئيل او دا څنګه دی اې دَ الله رسوله ! حضور ﷺ اوفرمائيل بې شکه کله چه

↩.....مولوی حکيم محمد اسرائيل مرحوم نن په ١٦ ذيقعده ١٤٢٤ هجری د جمعې په ورځ په دولس نيمې بجې د ورځې وفات شو ﴿ انا لله وانا اليه راجعون يغفر الله لنا وله ﴾ حسن اتفاق ته ګوره چه د دغه رور د وفات خبر راورسيدلو او نن دلته د خالی په ورځ باندې دا مضمون ليکلې شی : يثبت الله الذين امنو بالقول الثابت الاية ...او دا چه د جمعې په ورځ باندې چه د چا وفات کيږی هغه دَ قبر د عذاب او سوال او جواب نه محفوظ وی فالحمد لله علي احسانه فالمرجو من الله سبحانه وتعالي ان اخي محفوظ من فتنة القبر، وندعو الله سبحانه وتعالي ان يعصمني اياي وجميع اهل بيتي ومن لحق بي وجميع احبابي من فتنة القبر ويجعلنا ممن ينعم في القبر.آمين)

(): انظر حديث رقم: (٣٢٣١)، (تحفة الأشراف: ١٢١٤) (صحيح)

مؤمن بنده په قبر کښې ایخودلې شي نو هغه ته فرښته راځي او هغه دهٔ نه پوښتنه کوي تا دَ چا عبادت کولو؟ نو که چرې الله تعالیٰ هغه ته توفیق ورکړی نو هغه وائی ما دَ الله تعالیٰ عبادت کولو ،بیا دَ هغه نه تپوس کولې شي تا ددې کس په باره کښې څه وئیلې؟ نو هغه وائی دا دَ الله بنده او دَ هغه رسول دې - نو دَ هغه نه ددې نه علاوه نور تپوس نهٔ کوی - چنانچه هغه یو کور ته بوتللې شي کوم چه دَ هغه دپاره په دوزخ کښې تیار شوې وو او دهٔ ته وائی (اوګوره) دا ستا په دوزخ کښې کور وو لیکن الله تعالیٰ تهٔ ددې نه بچ کړې ئې،او په تا باندې ئې رحم کړې دې او ددې په بدله کښې تاته په جنت کښې کور درکړې دې -نو هغه به وائی ما پریږدئ چه زهٔ لاړشم او خپل کور والو ته خوشخبری ورکړم نو دهٔ ته وئیلې شي آرام اوکړه - او کافر چه کله په قبر کښې کیخودې شي نو هغه ته فرښته راځي او دَ هغه نه پوښتنه کوي : تا دَ چا عبادت کولو؟ هغه وائی ماته معلومه نهٔ ده - بیا هغه ته وئیلې شي تا نهٔ زده کړې دی او نهٔ دې لوستلې دی - بیا دَ هغه نه پوښتنه کولې شي تا دَ ددې کس په باره کښې څه وئیل؟ نو هغه به جواب ورکوی ما به هغه وئیلې کوم چه به خلقو وئیل - نو هغه فرښته دهٔ لره دَ اوسپنې په درونډ ګرز سره دَ غوږونو په مینځ کښې وهی نو هغه په دې سره دومره چغې وهی چه دَ جن او انسان نه علاوه تمام مخلوق ددهٔ آواز اوری -"

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ : إِنَّ نَبِيَّ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– دَخَلَ نَخْلاً لِبَنِي النَّجَّارِ فَسَمِعَ صَوْتًا فَفَزِعَ فَقَالَ : « مَنْ أَصْحَابُ هَذِهِ الْقُبُورِ ».قَالُوا : يَا رَسُولَ اللَّهِ نَاسٌ مَاتُوا فِي الْجَاهِلِيَّةِ.فَقَالَ : « تَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنْ عَذَابِ النَّارِ وَمِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ »﴾

### په قبر کښې سوال او جواب د اوږد حدیث مفصل شرح:

یعنی یو ځل رسول الله ﷺ د قبیله بنو النجار د کهجورو باغ ته تشریف یوړلو، هلته هغوی ته د ویرې څه آواز واوریدلو ، هغوی تپوس اوکړو چه دا د قبرونو والا څوک دی؟ صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو چه بعض هغه خلق دی کوم چه د جاهلیت په زمانه کښې مړهٔ شوی دی، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د الله پاک نه پناه اوغواړئ د اور د عذاب نه او د دجال د فتنې نه، صحابه کرامو ﷺ عرض اوکړو او دا ولې؟ یعنی د اصحاب قبور د سوال کولو نه پس هغوی د دې دعاء د غوښتلو ولې ترغیب اوفرمائیلو نو په دې باندې رسول الله ﷺ په قبر کښې سوال او جواب وغیره بیان اوفرمائیل، او وې فرمائیل چه کله مومن په قبر کښې کیخودلې شي نو هغه ته یو فرښته راځي او هغه ته وائی تا د چا عبادت کولو پس که الله پاک هغه ته هدایت فرمائیلې وی یعنی په دنیا کښې، او یا دا مطلب دې چه دا رهنمائی به ئې اوفرمائی دلته په قبر کښې، نو هغه به جواب ورکوی چه ما به د الله پاک عبادت کولو بیا به هغه ته اوئیلې شي: ﴿ما کنت تقول فی هذا الرجل؟ فیقول هو عبدالله ورسوله﴾ چه د دې سړی په باره کښې څه وائې نو هغه به وائی چه د الله پاک بنده او د هغه رسول دې بیا به د هغه د دې جواباتو نه پس د هغه نه تپوس نه شی کولې، بیا به هغه خپل مکان طرف ته بوتلې شی د جهنم او ورته به اوئیلې شي چه په دوزخ کښې ستا ځائې دا وو (یعنی که ایمان دې نه وې راوړې او نافرمانی دې کړې وې)، خو الله پاک په تا باندې رحم

اوفرمائیلو ! او ته ئې د دې نه بچ کړې او د هغې په بدل کښې ئې تاته په جنت کښې ځائې درکړو، په یو حدیث کښې دی چه د هر سړی دپاره که هغه دنیا ته د راتلو نه پس مومن وی او که کافر وی الله پاک د هغه د استوګنې دوه ځایونه تیار کړې دی (۱) یو په جنت کښې او بله په جهنم کښې چه که ایمان راوړی نو د جنت استوګنې ته به بوتلې شی او که ایمان نه راوړی نو د جهنم استوګنې ته به بوتلې شی، نو هغه به په دې اکرام او انعام لیدو باندې وائی چه ما پرېږدئ چه د خپل کور خلقو ته زیرې ورکړم، نو هغه ته به اوئیلې شی چه ته په سکون سره دلته ایسار شه، یعنی د تلو اجازت نشته، وړاندې په حدیث کښې د کافر حال مذکور دې چه هغه ته هم فرشته راځی په قبر کښې او د هغه نه سخت تپوس کوی چه تا به د چا بندګی کوله؟ نو هغه وائی ﴿ لا ادری ﴾ چه ماته پته نشته ﴿ فیقال له لا دریت ولا تلیت ﴾ تلوت او تلیت دواړو طریقو سره مستعمل دې او د دې مصدر تلو دې په وزن د سمو یعنی اتباع کول او په چا پسې کېدل، پس په قاموس کښې دی تلوته کدعوته ورمیته تلوا کسمو تبعته، او که مصدر د دې تلاوت اومنلې شی نو د دې استعمال په واؤ سره کیږی تلوت او دلته د ازدواج د وجې نه واو په یاء سره بدل کړې شو (۲) او معنی د دې هم دغه قراءت ده، نو د پوره جملې معنی دا شوه چه نه خو تا خپله تحقیق اوکړو او نه دې د پوهه خلقو اتباع اوکړه یا دا چه قران یا کتابونه دې نه دی لوستلې ګویا نه دې تحقیق اوکړو او نه دې د اهل حق اتباع اوکړه، او د امام خطابی رحمه الله رائې دا ده چه محدثین دا لفظ هم دغه شان وائی ﴿ لا دریت ولا تلیت ﴾ او دا غلطه ده او کوم چه صحیح ده هغه هم دغه شان ده : لا دریت ولا ائتلیت دې ای ولا استطعت ان تدری.

او په مظاهر حق (ص ۶۹ ج ۱) کښې د دې ترجمه داسې کړې شوې ده : نه تا په خپل عقل ځان پوهه کړو او نه دې قرآن اولوستلو اه په دې حدیث کښې دی ﴿ ما کنت تقول فی هذا الرجل ﴾ چه ته د دې سړی په باره کښې څۀ وائې چه د هغه نه مراد رسول الله ﷺ دې، د هغوی نه به په رجل سره تعبیر کولې شی د ازمیښت او امتحان په طور، ځکه چه که یو تعظیمی لفظ اختیار کړې شوې وې نو بیا به هغه د سائل د سوال نه پوهه شوې وې چه په هغې سره به د امتحان معنی باقی نه پاتې کېده، اوس وړاندې په دې کښې دوه احتماله دی یو دا چه د هغوی او د مړی ترمینځه چه کوم حجابات دی هغه به لرې کړې شی، تردې چه هغه به رسول الله ﷺ وینی، که داسې وی نو دا ډېر لوئې بشارت دې د مومن دپاره خو د دې په باره کښې هیڅ حدیث زما په علم کښې نشته، او چا چه دا احتمال بیان کړې دې هغه صرف په دې حیثیت سره چه لفظ هذا د حاضر طرف ته د اشارې کولو دپاره دې خو احتمال دا هم دې چه د هذا اشاره ما فی الذهن طرف ته وی (ځکه چه په قبر کښې د الله او رسول ﷺ نه علاوه

---

۱) په کفارو باندې د حجت قائمولو دپاره چه اوګوره مونږ ستاسو د ایمان راوړلو په صورت کښې ستاسو دپاره په جنت کښې حصه کړې وه چه هغوی دا او نه وائی چه یا الله تا خو زمونږ حصه په جنت کښې کړې هم نه وه)

۲) یعنی که د هغې مصدر تلاوت اومنلې شی، او د تلؤ منلو په صورت کښې دې ته احتیاج نشته)

څوک په ذهن کښې کیدې شي) بذل عن القسطلانی او په مظاهر حق کښې دی، دا اشاره یا خو په سبب د شهرت د رسول اللهﷺ ده او یا به ورته د رسول اللهﷺ صورت مثالی اوښائی، پس په دې صورت کښې د مرګ خواهش کول د دې نعمت عظمی د حصول دپاره غوره ده او په دې کښې زیرې دې د محبینو دپاره.

شب عاشقان بیدل چه قدر دراز باشد  تو بیا کز اول شب در صبح باز باشد

او د دې دوارو استوګنو د ښودلو په باره کښې په مظاهر حق کښې دی: دواړه استوګنې ورته ښودلې شی چه که دوزخی وې نو د دې لائق وې اوس چه جنتی شوې نو دا درته ملاؤ شو، دې دپاره چه د جنت د نعمتونو قدر ورسره پیدا شی.

**قوله:** ﴿ فَيُقَالُ لَهُ : فَمَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ فَيَقُولُ كُنْتُ أَقُولُ مَا يَقُولُ النَّاس ﴾ بیا به د دې کافر نه تپوس اوکړې شی د معبود د تپوس کولو نه پس، چه د دې سړی په باره کښې به تا څه وئیل؟ نو هغه به وائی چه څۀ به نورو خلقو وئیل هم هغه به ما هم وئیل، او د بخاری په روایت کښې دلته د ﴿ لا ادری ﴾ لفظ اضافه ده چه ماته پته نشته، ما به هم هغه څه وئیل څه چه به نورو خلقو وئیل یعنی مومنانو، او د بخاری په روایت کښې د دې نه پس دا هم دی، ﴿ لا دريت ولا تليت ﴾ وړاندې په روایت کښې دی ﴿فَيَضْرِبُهُ بِمِطْرَاقٍ مِنْ حَدِيدٍ بَيْنَ أُذُنَيْهِ فَيَصِيحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا الْخَلْقُ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ ﴾ پس فرشته ئې وهی هغه لره داوسپنې په ګرز د هغه د دواړو غوږونو ترمینځه یعنی په تندی باندې پس هغه چغې وهی داسې چغې چه ټول مخلوق ئې اوری سوا د انسانانو او پیریانو نه، په مظاهر حق کښې دی: او جنات او انسان ئې آواز ځکه نه اوری چه د اوریدلو نه پس ایمان بالغیب نه پاتې کیږی او مسئله د معیشت منقطع کیږی.

## په قبر کښې به فاسق مسلمان سره څه معامله کیږی:

په مظاهر حق کښې د فائدې د لاندې یو خبره دا لیکلې ده چه په احادیث صحیحه کښې چه کوم حال مذکور دې یعنی د مومن د نجات او د کافر او منافق د عذاب نو دا د مومن مطیع حال دې، خو د مومن فاسق حال په دې احادیثو کښې ذکر نه دې چه د هغه دپاره عذاب شته او که نه د هغې په باره کښې هغوی لیکی: پس وئیلې دی علماء کرامو چه حکم د فاسق مومن دا دې چه په جواب کښې د مومن مطیع سره شریک دې او بشارت او دروازه پرانستلې کیدل په جنت کښې او د داسې نوپه هغې کښې شریک نه دې، یا به په هغې کښې هم شریک وی خو په مرتبه کښې د هغې نه کم تر، تر دې چه څۀ عذاب به هم وی خو کوم فاسق لره چه الله پاک اوغواړی هم داسې به ئې اوبخښی.(۱)

## په روایات مختلفه کښې تطبیق:

دلته په بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه یو اشکال او د هغې جواب لیکلې شوې دې چه په دې روایت کښې دی ﴿ يسمعها الخلق ﴾ او په یو بل روایت کښې دی ﴿ يسمعها من يليه ﴾ او په یو کښې دی ﴿ يسمعها ما بين المشرق والمغرب ﴾ چه په دې کښې په ظاهر تعارض دې چه

(۱) د دې متعلق څه د باب په اخیر کښې هم راځی.

یو کښې دی چه نزدې ځیزونه ئې اوری او په دویم کښې دی چه ټول مخلوق ئې اوری سوا د انسان او پیری نه او په دریم کښې دی چه د مشرق او مغرب ترمینځه چه څه دی هغوی ټول ئې اوری، د دې جواب ئې دا لیکلې دې چه د ﴿ من یلیه ﴾ والا روایت کښې د هغې د علاوه نفی چرته ده د نزدې خلقو سره ئې لرې خلق هم اوری او دویم جواب ئې دا لیکلې دې چه د ﴿ ما بین المشرق والمغرب ﴾ والا مسافت بعید کیدل هغه زمونږ په اعتبار سره دی په دې عالم کښې زمونږ د ضعف په لحاظ سره، او د هغه ځائې د خلقو په اعتبار سره دا بعد نه دې بلکه د هغه عالم په اعتبار سره د مشرق او مغرب ترمینځه مسافت او بعد صرف دومره دې څنګه چه د یو وسیع کور د دوه دیوالونو ترمینځه وی.

د دې نه پس چه کوم روایت راځی په هغې کښې دا دی: ﴿ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ ﴾

[٤٧٥٢](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، أخبرنا عَبْدُ الْوَهَّابِ بِمِثْلِ هَذَا الْإِسْنَادِ، نَحْوَهُ، قَالَ: إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ وَتَوَلَّى عَنْهُ أَصْحَابُهُ، إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ فَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ، فَيَقُولَانِ لَهُ: فَذَكَرَ قَرِيبًا مِنْ حَدِيثِ الْأَوَّلِ، قَالَ فِيهِ: وَأَمَّا الْكَافِرُ، وَالْمُنَافِقُ، فَيَقُولَانِ لَهُ: زَادَ الْمُنَافِقَ، وَقَالَ: يَسْمَعُهَا مَنْ وَلِيَهُ غَيْرُ الثَّقَلَيْنِ.

محمد بن سلیمان د عبد الوهاب نه هم په دې اسناد سره ددې حدیث په مثل باندې روایت کړې دې - فرمائی: کله چه بنده په خپل قبر کښې کیخودې شی او د هغه ملګری د هغه نه واپس شی نو دې د هغوی د پښو آواز اوری او دهٔ ته دوه فرښتې راځی او دهٔ ته وائی ... " او اول حدیث ته نزدې نزدې ئې حدیث بیان کړو - په دې کښې ئې وئیلې دی: " کافر او منافق وائی ... " په دې کښې د منافق لفظ زیات دې - او مزید ئې دا وئیلې دی: " ددهٔ دې چغو لره د پیریانو او انسانانو نه علاوه قریب قریب تمام مخلوق اوری -"

چه کله مړی لره خلق د دفن کولو نه واپس شی او هغه مړې د هغه خلقو د خپو کشارې اوری هم دغه وخت دې مړی ته دوه ملائک راشی د سوال دپاره مطلب دا دې چه څنګه خلق د مړی د دفن کولو نه فارغ شی فورا هم په دغه وخت کښې دهغه ځائې احوال شروع شی، او په دې روایت کښې دا هم دی ﴿ یسمعها من یلیه غیر الثقلین ﴾ او د هغې نه په روستو روایت کښې کوم چه د براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت کړې شوې دې او اورد دې په هغې کښې د مومن او د کافر حال مفصلا ذکر کړې شوې دې: ﴿ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ ﴾

[٤٧٥٣](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ ح وحَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، وَهَذَا لَفْظُ هَنَّادٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنِ الْمِنْهَالِ، عَنْ زَاذَانَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جِنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ، وَلَمَّا يُلْحَدْ، فَجَلَسَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ، كَأَنَّمَا عَلَى رُءُوسِنَا الطَّيْرُ، وَفِي يَدِهِ عُودٌ يَنْكُتُ بِهِ فِي الْأَرْضِ، فَرَفَعَ رَأْسَهُ، فَقَالَ: اسْتَعِيذُوا بِاللَّهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا، زَادَ فِي حَدِيثِ جَرِيرٍ هَاهُنَا، وَقَالَ: وَإِنَّهُ لَيَسْمَعُ خَفْقَ نِعَالِهِمْ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ، حِينَ

---

(١): انظر حديث رقم: (٣٢٣١)، (تحفة الأشراف: ١١٧٠) (صحيح)
(٢): انظر حديث رقم (٣٢١٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٨) (صحيح)

يُقَالُ لَهُ: يَا هَذَا، مَنْ رَبُّكَ؟ وَمَا دِينُكَ؟ وَمَنْ نَبِيُّكَ؟ قَالَ هَنَّادٌ: قَالَ: وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ، فَيُجْلِسَانِهِ، فَيَقُولَانِ لَهُ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: رَبِّيَ اللَّهُ، فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا دِينُكَ؟ فَيَقُولُ: دِينِيَ الإِسْلَامُ، فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا هَذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ؟ قَالَ: فَيَقُولُ: هُوَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَيَقُولَانِ: وَمَا يُدْرِيكَ؟ فَيَقُولُ: قَرَأْتُ كِتَابَ اللَّهِ، فَآمَنْتُ بِهِ، وَصَدَّقْتُ، زَادَ فِي حَدِيثِ جَرِيرٍ، فَذَلِكَ قَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الآخِرَةِ سورة إبراهيم آية ۲۷، ثُمَّ اتَّفَقَا، قَالَ: فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ أَنْ قَدْ صَدَقَ عَبْدِي، فَأَفْرِشُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ، وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ، وَأَلْبِسُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ، قَالَ: فَيَأْتِيهِ مِنْ رَوْحِهَا وَطِيبِهَا، قَالَ: وَيُفْتَحُ لَهُ فِيهَا مَدَّ بَصَرِهِ، قَالَ: وَإِنَّ الْكَافِرَ، فَذَكَرَ مَوْتَهُ، قَالَ: وَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ، وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ، فَيَقُولَانِ لَهُ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي، فَيَقُولَانِ لَهُ: مَا دِينُكَ؟ فَيَقُولُ هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي، فَيَقُولَانِ: مَا هَذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ؟ فَيَقُولُ: هَاهْ هَاهْ لَا أَدْرِي، فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ أَنْ كَذَبَ، فَأَفْرِشُوهُ مِنَ النَّارِ، وَأَلْبِسُوهُ مِنَ النَّارِ، وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى النَّارِ، قَالَ: فَيَأْتِيهِ مِنْ حَرِّهَا، وَسَمُومِهَا، قَالَ: وَيُضَيَّقُ عَلَيْهِ قَبْرُهُ حَتَّى تَخْتَلِفَ فِيهِ أَضْلَاعُهُ" زَادَ فِي حَدِيثِ جَرِيرٍ، قَالَ: ثُمَّ يُقَيَّضُ لَهُ أَعْمَى، أَبْكَمُ مَعَهُ مِرْزَبَّةٌ مِنْ حَدِيدٍ، لَوْ ضُرِبَ بِهَا جَبَلٌ لَصَارَ تُرَابًا، قَالَ: فَيَضْرِبُهُ بِهَا ضَرْبَةً يَسْمَعُهَا مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ إِلَّا الثَّقَلَيْنِ، فَيَصِيرُ تُرَابًا، قَالَ: ثُمَّ تُعَادُ فِيهِ الرُّوحُ".

د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د یو انصاری جنازې ته لاړو - مونږ قبر ته اورسیدو ،لا تر اوسه پورې لحد تیار نهٔ وو ،نو رسول الله ﷺ کیناستو او مونږ هم د رسول الله ﷺ نه ګیر چاپیره کیناستو ،ګویا چه زمونږ په سرونو باندې مارغان ناست دی - (نهایت پُرسکون او په خاموشئ سره ناست وو) د حضور ﷺ په لاس کښې ډکې وو او په هغې سره ئې زمکه ګروله - حضور ﷺ خپل سر اوچت کړو اووې فرمائیل : په الله سره د عذاب قبر نه امان غواړئ -" حضور ﷺ دا خبره دوه یا درې خله اوفرمائیله - د جریر په روایت کښې دلته کښې دا اضافه ده ... " کله چه خلق واپس ځی نو مړې د هغوی د پښو آواز اوری ،او د هغه نه پوښتنه کولې شی : اې فلاں ! ستا رب څوک دې؟ ستا دین څه دې؟ او ستا نبی څوک دې؟ " هناد وئیلې دی : فرمائی دهٔ ته دوه فرشتې راځی او دهٔ لره کینه وی او دهٔ ته وائی ستا رب څوک دې؟ نو هغه وائی زما رب الله دې بیا ترینه تپوس کوی ستا دین څه دې؟ نو هغه وائی زما دین اسلام دې - بیا هغوی تپوس کوی دا کس څوک دې کوم چه په تاسو کښې مبعوث کړې شوې وو؟ نو هغه فرمائی هغه د الله رسول دې ،بیا هغوی وائی تاته څنګه علم اوشو؟ هغه وائې ما د الله کتاب لوستې دې ،ما په هغې باندې ایمان راوړو او د هغې تصدیق مې اوکړو -" د جریر په روایت کښې مزید دادی : هم دا (سوال او جواب) مصداق دې د الله جل شانه ددې فرمان : { يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ} بیا دواړه په روایت کولو کښې متفق دی - فرمائی : بیا د اسمان نه یو منادی اعلان کوی په تحقیق سره زما بنده رښتیا اووې ،دهٔ ته د جنت بستره خوره کړئ ،او دهٔ ته د جنت لباس واغوندئ او دهٔ ته د جنت د طرف نه یوه دروازه کولاؤ کړئ -" فرمائی : د جنت د طرف نه د هغه ځائې هواګانې ،راحتونه ،او خوشبوئې دهٔ ته راځی - او دهٔ ته قبر دومره کولاؤ کړې شی څومره چه ددهٔ نظر لګی - بیا ئې د کافر او د هغه د مرګ ذکر اوکړو اووې فرمائیل : د هغه روح د هغه په جسم کښې واپس کولې شی او هغه (یعنی فرشتې) دهٔ ته راځی او دهٔ لره کینه وی او ددهٔ نه پوښتنه کوی : ستا رب څوک دې؟ نو

هغه وائی هاه هاه ! ماته خبر نشته، بیا ترینه تپوس کوی ستا دین څه دې؟ نو هغه وائی هاه هاه ! ماته خبر نشته - بیا ترینه تپوس کوی : دا کس څوک دې کوم چه په تاسو کښې لیږلې شوې وو؟ نو هغه وائی هاه هاه ! ماته خبر نشته دې - نو منادی دَ اسمان نه اعلان کوی چه دهٔ دروغ اووې، دهٔ ته دَ اور بستره خوره کړئ، دهٔ ته دَ اور لباس واغونده وئ او دهٔ ته دَ دوزخ دَ طرف نه دروازه کولاؤ کړئ - فرمائی چه بیا دَ جهنم دَ طرف نه دَ هغې سخت تپش او سخته ګرمه هوا دهٔ ته راځی او په دهٔ باندې قبر تنګولې شی تردې پورې چه ددهٔ پوښتئ په یو بل کښې ننوځی -" دَ جریر په روایت کښې مزید دادی :" بیا په دهٔ باندې ړنده او ګونګا فرشته مقرر کړې شی، چه د هغه سره دروند ګرز وی - که چرې په هغې باندې غر اووهلې شی نو هغه به هم خورې شی (یعنی ریزه ریزه به شی) بیا دهٔ لره په هغې سره داسې ګزار ورکړی چه دَ هغې آواز دَ پیریانو او انسانانو نه علاوه دَ مشرق او مغرب په مابین کښې تمام مخلوق اوری - او بیا هغه خاوره (ریزه ریزه) شی -" فرمائی بیا په هغه کښې روح واپس کړې شی -"
[او دارنګه بار بار عذاب ورکولې شی -]

مونږ یو ځل د رسول الله ﷺ د یو انصاری صحابی په جنازه کښې اوتلو او قبرستان ته اورسیدلو خو قبر په کنستلو کښې تیار شوې نه وو، پس رسول الله ﷺ په انتظار کښې کیناستلو او مونږ هم د هغوی نه ګیر چاپیره په سکون سره کیناستلو ﴿ كَأَنَّمَا عَلَى رُءُوسِنَا الطَّيْرُ ﴾ لکه چه زمونږ په سرونو باندې مارغان ناست وی، یعنی ډیر په سکون او سکوت سره، (لکه د چا په سر باندې چه مرغئ کینی او هغه غواړی چه هغه هم دغه شان ناست وی او پانسی نو ظاهره ده چه هغه به دې وخت کښې بالکل په سکون سره کینی) په دغه وخت کښې د رسول الله ﷺ په لاس مبارک کښې یو چوکه وه چه د هغې په ذریعه هغوی په ناسته ناسته باندې زمکه راګروله لکه چه په څه سوچ کښې وی، بیا لږ ساعت پس ئې خپل سر اوچت کړو او وې فرمائیل چه د عذاب قبر نه د الله پاک پناه اوغواړئ، هغوی دوه یا درې کرته اوفرمائیل.

دا روایت ډیر اوږد دې په دې کښې دا هم دی ﴿ فَيُنَادِي مُنَادٍ مِنَ السَّمَاءِ : أَنْ قَدْ صَدَقَ عَبْدِي فَأَفْرِشُوهُ مِنَ الْجَنَّةِ والبسوه من الجنة وَافْتَحُوا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ ﴾ یعنی کله چه هغه مړې په خپل سوال او جواب کښې کامیاب شی نو د اسمان نه یو فرشته آواز کوی چه زما دې بنده رشتیا اووې پس د هغه دپاره د جنت فرش خور کړئ او هغه ته د جنت جامې واغوندوئ او د هغه دپاره جنت طرف ته یو کهړکئ پرانیزئ رسول الله ﷺ اوفرمائیل پس هغه ته په هغه کهړکئ د جنت هواګانې او خوشبویانې راځی، او هغه دپاره د هغه په قبر کښې د نظر د رسیدو پورې فراخی اوکړې شی، بیا په دې روایت کښې د کافر حال ذکر شوې دې : ﴿ « وَإِنَّ الْكَافِرَ ». فَذَكَرَ مَوْتَهُ قَالَ : « وَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولاَنِ : مَنْ رَبُّكَ فَيَقُولُ : هَاهْ هَاهْ لاَ أَدْرِي فَيَقُولاَنِ لَهُ : مَا دِينُكَ فَيَقُولُ الخ﴾ چه د هغه روح د هغه په بدن کښې واپس کړې شی او هغه ته دوه ملائک راځی کوم چه هغه کینوی، اول ترې نه د رب په باره کښې تپوس کوی چه ستا رب څوک دې نو هغه په ویره باندې هم هغه لفظ استعمالوی کوم چه د

دهشت او د حیرانتیا په وخت باندې انسان وائي یعنی ﴿ هاه هاه ﴾ او دا چه زه نه پوهیږم، بیا د هغه نه د هغه د دین په باره کښې تپوس کوی هغه د هغې په جواب کښې هم وائي ﴿ لا ادری ﴾ هم دغه شان وړاندې د رسول الله ﷺ په باره کښې هم، پس د اسمان نه یو فرشته آواز کوی چه دې سړی دروغ اووې (ځکه چه دین خو په دنیا کښې ښکاره شوې وو خو دهٔ ئې طلب اونکړو) او بیا حکم کولې شی چه د اور بستره ورته واچوئ او د هغې جامې ورته واغوندوئ او د جهنم د طرف نه ورته یو کهړکئ پرانیزئ، پس هغه ته د جهنم ګرمی او د هغې ګرمه هوا راځی او په هغه باندې د هغه قبر تنګ کړې شی چه د هغې د وجې نه ئې پختئ په یو بل کښې ننوځی. ﴿ قال ثُمَّ يُقَيَّضُ لَهُ أَعْمَى أَبْكَمُ مَعَهُ مِرْزَبَّةٌ مِنْ حَدِيدٍ لَوْ ضُرِبَ بِهَا جَبَلٌ لَصَارَ تُرَابًا ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه بیا په دې کافر انسان باندې یو داسې فرشته مقرر کړې شی چه په یو لحاظ سره ړنده او ګونګئ وی، دا اشاره ده د هغه فرشتې د تشدد طرف ته، ګویا د هغه حال نه وینی او د هغه آواز او چغې بالکل اوری نه او هم په دې وجه ئې پرې رحم نه راځی چه هغې سره د اوسپنې یو ګرز وی داسې که هغه غر ته راخلاص کړې شی نو هغه به هم خاورې شی، نو هغه فرشته دې کافر لره د هغې په ذریعه باندې وهی داسې وهل چه اوری د هغه چغې د مشرق او مغرب ترمینځهٔ هر یو څیز سوا د انسان او پیری نه پس هغه خاورې شی بیا په هغه کښې دوباره روح واچولې شی (چه د عذاب دا سلسله هم دغه شان روانه وی) په مظاهر حق کښې لیکی: ﴿ ان كذب ﴾ چه دروغژن دې ځکه چه د دین اسلام او د نبوت دعوت د مشرق نه تر مغربه رسیدلې وو د نه پوهیدلو څه معنی (چه دا کافر وائي زه نه پوهیږم).

## په قبر کښې د سوال او جواب متعلق بعض علمی فوائد:

په قبر کښې د سوال سره متعلق په حاشیه د بذل کښې دی: والسوال بالعربية وقيل بالسريانية كذا فى الفتاوى الحديثية ۷ وقال ايضا السوال فى القبر من خواص هذه الامة وكذا قال فى الانوار الساطعة ۳۰ من فروع الشافعية : ان السوال خاص بهذه الامة وذكر فيه العينى الاختلاف ۲۲۸/٤ د فتاوی (حدیثیة) عبارت دا دې: وظاهر أحاديث سؤالهما أنهما يسألان كل أحد بالعربية،وفي بعض طرق حديث الصور الطويل عند علي بن معبد : تخرجون منها شبانا كلكم أبناء ثلاث وثلاثين،واللسان يومئذ بالسريانية سراعا إلى ربهم ينسلون،فإن أريد يومئذاختصاص تكلمهم بالسريانية بيوم النفخ لم ينافي ما مر وإن أريد بيومئذ وقت كونهم في الصور نافاه والحاصل الأخذ بظاهر الحديث هو أن السؤال لسائر الناس بالعربية نظير ما مر أنه لسان أهل الجنة إلا إن ثبت خلاف ذلك ولا يستبعد تكلم غير العربي بالعربية لأن ذلك الوقت تخرق فيه العادات او په دې کښې دا هم دی: وجزم الترمذي الحكيم وابن عبد البر أيضا بأن الؤال من خواص هذه الأمة لحديث مسلم " إن هذه الأمة تبتلى في قبورها " وخالفهما جماعة منهم ابن القيم وقال : ليس في الأحاديث ما ينفي السؤال عمن تقدم من الأمم،وإنما أخبر النبي صلى الله عليه وسلم أمته بكيفية امتحانهم في القبور لا أنه نفى ذلك عن ذلك وتوقف آخرون وللتوقف وجه لأن قوله " أن هذه الأمة " فيه تخصيص فتعدية السؤال

لغيرهم تحتاج إلى دليل،وعلى تسليم اختصاصه بهم فهو لزيادة درجاتهم ولخفة أحوال المحشر عليهم ففيه رفق بهم أكثر من غيرهم،لأن المحن إذا فرقت هان أمرها بخلاف ما إذا توالت فتفريقها لهذه الأمة عند الموت وفي القبور والمحشر دليل ظاهر على تمام عناية ربهم بهم أكثر من غيرهم،وكان اختصاصهم بالسؤال في القبر من التخفيفات التي اختصوا بها عن غيرهم لما تقرر فتأمل ذلك، يعنى که دا تسليم کړې شی چه عذاب قبر د دې امت خصوصيت دې نو په اصل کښې هم دهغوی د فائدې دپاره دې د تخفيف عذاب دپاره چه ټول مصيبتونه ورته په محشر کښې راجمع نه شی، څه سختی پرې د مرګ په وخت راشی او څه په قبر کښې او باقی څه چه ئې په مقدر کښې وی هغه په محشر کښ، او بيا د دې نه پس په دې کښې دا هم دی چه د دې احاديثو د ظاهر نه معلوميږی چه مومن اګر چه فاسق وی نو هغه د مومن عادل په شان صحيح جواب ورکوی، خو وراندې د زيری والا خبره چه ده هغه کيدې شی چه د هغه د حال مناسب وی، او په هغې کښې دا هم دی چه د مومن عاصی نه د تپوس کونکې فرشتې نوم منکر دې، او کوم چه فرمانبردار دې د هغې نوم مبشر او بشير دې.

والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه مختصرا،وقد تقدم فى كتاب الجنائز مختصرا، قاله المنذرى.

[٤٧٥٤](١) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ نُمَيْرٍ، أخبرنا الْأَعْمَشُ، أخبرنا الْمِنْهَالُ، عَنْ أَبِي عُمَرَ زَاذَانَ،قَالَ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ،عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،قَالَ: فَذَكَرَ نَحْوَهُ.

ابو عمر ذازان وائی چه ما د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه واوريدل ـ هغوی د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه ددې په مثل باندې روايت اوکړو ـ

## بَابٌ فِي ذِكْرِ الْمِيزَانِ

### باب د ميزان بيان

په هامش بذل کښې دی : انكره المعتزلة شرح مواقف ۲/۲۳۱او په بذل کښې دی : وقد ذكر فى كلام الله تعالى فى مواضع اه او په شرح عقائد کښې دی : والوزن حق لقوله تعالى وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ والميزان عما يعرف به مقادير الاعمال، والعقل قاصر عن ادراك كيفيته وانكرته المعتزلة لان الاعمال اعراض ان امكن اعادتها لم يمكن وزنها، ولانها معلومة لله فوزنها عبث، والجواب انه قد ورد فى الحديث ان كتب الاعمال هى التى توزن فلا اشكال الخ وعلى تقدير تسليم كون افعال الله تعالى معللة بالاغراض، لعل فى الوزن حكمة لا نطلع عليها، وعدم اطلاعنا على الحكمة لا يوجب العبث،

**(په وزن باندې د معتزله رومبې اشکال)**

يعنی معتزله د دې نه انکار ځکه کوی چه اعمال که هغه حسنات وی يا سيئات دا اعراض دی نه جواهر، او اعراض باقی پاتې کيدونکې څيز نه دی، العرض لا يبقى زمانين مشهور دې د فلاسفه په نزد، يعنی عرض خو موجود کيدو سره فنا کيږی لهذا د هغې اعاده ممکن نه ده، او که اعاده ممکن اومنو نو د هغې وزن ممکن نه دې ځکه چه هغه وزنی او مادی څيز نه دې.

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٥٨) (صحيح)

**جواب**: د دې اشكال جواب دا دې چه اعمال اګر چه اعراض دی خو د وزن تعلق د اعمالو سره نه دې بلکه د اعمال نامو سره دې فلا اشكال،

**د معتزله دویم اشکال**

او دویم اشکال هغوی دا کړې دې چه د بندګانو اعمال خو الله پاک ته معلوم دی لهذا د هغې وزن کول عبث دی.

**جواب**: نو د هغې جواب دا ورکړې شوې دې چه د الله پاک افعال معلل بالاغراض نه وی لهذا دا سوال نه پیدا کیږی چه په تللو کښې څه فائده ده، او که د لږ ساعت دپاره اومنو هم چه د الله پاک د فعل دپاره هم څه غرض او فعل کیدل پکار دی نو د دې جواب به دا وی چه کیدې شی په دې وزن کښې څه فائده او حکمت وی چه په هغې باندې مونږ خبردار نه يو، او په شروع کښې هغوی وئیلې دی چه: خو د دې وزن کیفیت به څه وی نو زمونږ عقل د دې د فهم نه قاصر دې، او د معتزله رائې د وزن په باره کښې کومه چه په قرآن کریم او حدیث کښې ذکر ده دا ده چه د دې نه مراد عدل دې نه ظاهری معنی د وزن او هغوی وائی چه میزان د الوان بصر دې او میزان الاصوات سمع ده او میزان المعقولات هغه عقل دې په دې وجه په لفظ د جمع سره ذکر کړې شو، قال الله تعالى فاما من ثقلت موازينه واجيب عنه بان الجمع للتعظيم وقيل لكل مكلف ميزان والظاهر ان يعتبر تعدده بالاعتبار الاشخاص وان اتحد ذاته (شرح عقائد) خو دا ټول اشکالات او جوابات کوم چه په مخکښې تیرو شوؤ زمانو کښې وو، خو په دې دور کښې دا ټول څیزونه اظهر من الشمس شو، ریډیو، ټی وی، کمپیوټر، انټرنیټ او موبائل وغیره ایجادات د اغراضو او د جواهرو فرقونه ختم کړل، په وړوکی شان مشین کښې معلومه نه ده داسې څیزونو د مودو دپاره محفوظ شی، تردې چه د حرارت او بردودت په شان اعراضو هم د مشینانو په ذریعه معلومات کیږی چه کله د قادر مطلق د یو مخلوق دا کمال دې نو خپله د هغه د قدرت کامله به څۀ حال وی.

[٤٧٥٥] (¹) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، وَحُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، أَنَّ إِسْمَاعِيلَ بْنَ إِبْرَاهِيمَ حدثهم، قَالَ: أَخْبَرَنَا يُونُسُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّهَا ذَكَرَتِ النَّارَ، فَبَكَتْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا يُبْكِيكِ؟، قَالَتْ: ذَكَرْتُ النَّارَ، فَبَكَيْتُ، فَهَلْ تَذْكُرُونَ أَهْلِيكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَّا فِي ثَلَاثَةِ مَوَاطِنَ، فَلَا يَذْكُرُ أَحَدٌ أَحَدًا عِنْدَ الْمِيزَانِ، حَتَّى يَعْلَمَ أَيَخِفُّ مِيزَانُهُ أَوْ يَثْقُلُ، وَعِنْدَ الْكِتَابِ حِينَ يُقَالُ: هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ حَتَّى يَعْلَمَ أَيْنَ يَقَعُ كِتَابُهُ، أَفِي يَمِينِهِ، أَمْ فِي شِمَالِهِ، أَمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ؟ وَعِنْدَ الصِّرَاطِ إِذَا وُضِعَ بَيْنَ ظَهْرَيْ جَهَنَّمَ". قَالَ يَعْقُوبُ: عَنْ يُونُسَ، وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِهِ.

د ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه هغوی د جهنم ذکر اوکړو او په ژړا شوه، نو رسول الله ﷺ تپوس اوکړو: " تالره څه څیز ژړولې دې؟ هغې اوفرمائیل: ماته جهنم رایاد شوې دې نو ژاړم، نو آیا تاسو به د قیامت په ورځ باندې خپل کور والو لره یاده وئ؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل درې مقامات داسې دی چه په هغې کښې به څوک چالره

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٠٥٨)، وقد أخرجه: حم (١٠١/٦) (ضعيف)

نهٔ یاده وی : دَ میزانِ (تلې) سره تردې پورې چه دهٔ ته پته اولګی چه ددهٔ تول سپک شو یا درونډ، دَ عمل نامې دَ میلاویدو په وخت کښې، کله چه اووئیلې شی {ہَاؤمُ اقْرَءُوا کِتَابِیَه} راشه ! زما عمل نامه اولوله -" تردې پورې چه ورته معلومه شی چه ددهٔ عمل نامه دَدهٔ په ښی لاس کښې راځی یا په ګس لاس کښې دَ ملا نه شا طرف ته - او (دریم مقام) پُل صراط دې کله چه کیخودې شی دَ جهنم په عین وسط باندې - [ یعنی پل صراط به دَ جهنم په مینځ باندې تیر کړې شوې وی -]

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ : أَنَّهَا ذَكَرَتِ النَّارَ فَبَكَتْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– : « مَا يُبْكِيكِ ». قَالَتْ : ذَكَرْتُ النَّارَ فَبَكَيْتُ فَهَلْ تَذْكُرُونَ ........ يَعْلَمَ أَيْنَ يَقَعُ كِتَابُهُ أَفِي يَمِينِهِ أَمْ فِي شِمَالِهِ أَمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِهِ وَعِنْدَ الصِّرَاطِ إِذَا وُضِعَ بَيْنَ ظَهْرَىْ جَهَنَّمَ » ﴾

د عائشې صدیقې رضی الله عنها نه روایت دې چه یوه ورځ هغې ته د جهنم خیال راغلو نو په ژړا شوه رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو ولې ژاړې نو هغې اووې د جهنم په خیال راته ژړا راغله، آیا تاسو به د قیامت په ورځ خپل کور والا هم یادوئ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه درې موقعې خو داسې دی چه په هغې باندې به څوک هم چاته یاد نه وی، یو د میزان په وخت ترڅو چه ئې دا نه وی پیژندلې چه د هغه د نیکو تله درنیږی او که د ګناهونو، او یو چه کله د اعمال نامو د تقسیم وخت راشی، چه کله هر یو ته د هغه اعمال نامه ورکولو سره اوئیلې شی واخله دا خپل کتاب اولوله نو تر څو چه هغه ته یقین رانشی چه د هغه اعمال نامه به په کوم لاس کښې ورکولې شی په ښی لاس کښې یا په ګس لاس کښې، دشا دطرف ته او په پل صراط باندې چه کله هغه د جهنم په شا باندې کیخودلې شی او خلق په هغې باندې تیریږی.

## په دوه احادیثو کښې دفع تعارض :

دلته دا سوال واردیږی چه دا حدیث عائشه د حدیث انس خلاف دې کوم چه په ترمذی (ص ۱۶۹ ج۲) "باب ما جاء في شان الصراط" کښې راغلې دې ﴿ سالت النبي صلى الله عليه و سلم أن يشفع لي يوم القيامة فقال أنا فاعل قلت يا رسول الله فأين أطلبك؟ قال اطلبني أول ما تطلبني على الصراط قلت فإن لم ألقك على الصراط؟ قال فاطلبني عند الميزان قلت فإن لم ألقك عند الميزان؟ قال فاطلبني عند الحوض فإني لا أخطئ هذه الثلاث المواطن ﴾ څکه چه کله سیدنا انس رضی الله عنه د رسول الله ﷺ نه د قیامت په ورځ باندې د سفارش درخواست اوکړو نو هغوی اوفرمائیل او ضرور به کوم، بیا هغوی تپوس اوکړو چه زه تاسو چرته اوګورم نو رسول الله ﷺ ورته دا ځایونه اوښودل چه زه به تاته یا په پل صراط باندې ملاویږم او که هلته ملاؤ نه شوم نو په میزان باندې او دریم ځائې ئې چه کوم اوښودلو نو هغه حوض کوثر دې او په دې حدیث عائشه رضی الله عنها کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه په پل صراط او میزان باندې به څوک هم چاته یاد نه وی، د دې جواب په حاشیه د ترمذی او په حاشیه د سید علی المشکاة دا نقل کړې دې چه د ترمذی په روایت کښې سوال کونکې انس رضی الله عنه دې کوم چه د زړه د ساتنې محتاج وو په دې وجه ورته رسول الله ﷺ داسې جواب ورکړو چه مایوس نه شی، لهذا دَ هغوی مناسب

جواب ئې ورکړو، او عائشه صدیقه ﷞ چونکه د رسول الله ﷺ حرم ده هلته د هغې د اعماد او اتکال ویره وه چه د ښځې په خپل خاوند باندې ناز وی لهذا هغې ته رسول الله ﷺ هغه جواب ورکړو او دویم جواب د دې دا ورکړې شوې دې چه د عائشې ﷞ او د انس سوالات دواړه مختلف دی یو په بل باندې نه شی قیاس کیدلې، ځکه چه د عائشې ﷞ سوال د یادولو په باره کښې وو چه تاسو به مونږ هلته یاد ساتئ او که نه او د انس ﷛ سوال د طلب او د تلاش کولو په باره کښې وو چه زه تاسو تلاش کوم نو چرته به مو تلاش کوم یعنی د سفارش دپاره پس په حدیث انس کښې دا نشته چه تاسو به ما چرته یادوئ بلکه په دې کښې خو د تلاش او طلب ذکر دې.

# بَابٌ فِي الدَّجَّالِ

## د دجال بیان

په کتاب الفتن کښې هم د دجال ذکر تیر شوې دې هلته دا د باب اشراط الساعة په ح. ثیت سره تیر شوې دې او دلته په دې حیثیت سره چه بعض فرق باطله د دې انکار کوی یعنی خوارج او معتزله او جهمیه.

[٤٧٥٦](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، أخبرنا حَمَّادٌ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سُرَاقَةَ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: إِنَّهُ لَمْ يَكُنْ نَبِيٌّ بَعْدَ نُوحٍ إِلَّا وَقَدْ أَنْذَرَ الدَّجَّالَ قَوْمَهُ، وَإِنِّي أُنْذِرُكُمُوهُ، فَوَصَفَهُ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ: لَعَلَّهُ سَيُدْرِكُهُ مَنْ قَدْ رَآنِي وَسَمِعَ كَلَامِي، قَالُوا: يَارَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ قُلُوبُنَا يَوْمَئِذٍ أَمِثْلُهَا الْيَوْمَ؟ قَالَ: أَوْ خَيْرٌ".

د حضرت عبیده بن جراح ﷛ نه روایت دې هغه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی: "په تحقیق سره د نوح علیه السلام نه پس چه کوم یو نبی هم راغلی دې نو هغه خپل قوم لره هم د دجال د فتنې نه یرولې دې او زهٔ هم تاسو لره د هغه نه یره وم." چنانچه رسول الله ﷺ د هغه علامات بیان اوفرمائیل اووې فرمائیل: ممکنه ده چه هغه لره هغه سړې بیا مومی چاچه زهٔ لیدلې یم او زما خبرې ئې اوریدلې دی." صحابهٔ کرامو ﷡ اوفرمائیل اې د الله رسوله! په دغه ورځو کښې به زمونږ زړونه څنګه وی؟ آیا هم داسې به وی څنګه چه نن دی؟ فرمائی یا ددې نه بهتر."

﴿ لَمْ يَكُنْ نَبِيٌّ بَعْدَ نُوحٍ إِلاَّ وَقَدْ أَنْذَرَ الدَّجَّالَ قَوْمَهُ ﴾ په دې باندې خو کلام په اول ځائې کښې تیر شوې دې په کتاب الفتن کښې ﴿ لَعَلَّهُ سَيُدْرِكُهُ مَنْ قَدْ رَآنِي وَسَمِعَ كَلاَمِي ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی قریبه ده چه د دجال زمانه بعض هغه خلق بیا مومی چا چه زه لیدلې یم او زما کلام ئې اوریدلې دې یعنی صحابه کرام ﷡، خو علامه سندهی لیکلې دی چه د سماع دوه صورتونه دی بغیر د واسطې نه او په واسطې سره که بغیر د واسطې نه مراد وی نو په دې صورت کښې به دا محمول کولې شی په خضر علیه السلام باندې ځکه چه هغوی به تر آخرې زمانې پورې وی د یو قول مطابق، او که مراد سماع وی بالواسطه نو بیا د دې د ذکر فائده دا

---

(١): سنن الترمذي/الفتن ٥٥ (٢٢٣٤)، (تحفة الأشراف: ٥٠٤٦) (ضعيف)

کیدې شی چه په دې کښې اشاره کیدې شی دې طرف ته چه د هغوی کلام یعنی د هغوی حدیث او د هغې د سماع او روایت سلسله به تر د خروج الدجال پورې قائم وی، په دې باندې حضرت په بذل کښې لیکلې دی چه په سماع کښې خو دواړه احتمالات دی بالواسطه او بلا واسطه خو رویت خو بالواسطه نه شی کیدې لهذا بلا واسطه به مراد کولې شی اوس یا خو به محمول کولې شی په خضر علیه السلام باندې یا په بعض معمرین جناتو باندې اهـ اقول او زه وایم چه دا حدیث به په هغه وخت باندې محمول کولې شی د کوم وخته پورې چه هغوی ته د خروج الدجال علم نه وو ګینې د اشراط الساعة احادیث په دې باندې دال دی چه د هغه د خروج زمانه به اخره زمانه وی. والحدیث اخرجه الترمذی، قاله المنذری.

[۴۷۵۷] (١) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ، فَأَثْنَى عَلَى اللَّهِ بِمَا هُوَ أَهْلُهُ، فَذَكَرَ الدَّجَّالَ، فَقَالَ: إِنِّي لَأُنْذِرُكُمُوهُ، وَمَا مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا قَدْ أَنْذَرَهُ قَوْمَهُ، لَقَدْ أَنْذَرَهُ نُوحٌ قَوْمَهُ، وَلَكِنِّي سَأَقُولُ لَكُمْ فِيهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ: تَعْلَمُونَ أَنَّهُ أَعْوَرُ، وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِأَعْوَرَ".

حضرت سالم د خپل پلار (حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه) نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ خلقو ته دَ خطبې لوستلو دپاره اودریدو، حضور ﷺ دَ الله تعالیٰ حمد او ثنا بیان اوفرمائیله دَ کومو چه هغه لائق دې - بیا حضور ﷺ دَ دجال ذکر اوکړو اووې فرمائیل زهٔ تاسو لره دَ هغه نه یره وُم او کوم یو نبی چه هم راغلي دې نو هغه خپل قوم لره دَ هغه نه یرولي دې - یقینا حضرت نوح علیه السلام هم خپل قول لره ددهٔ نه یرولي وو، لیکن زهٔ تاسو ته دَ هغه په باره کښې داسې خبرې کووم چه هغه هیڅ نبی خپل قوم ته نهٔ دی بیان کړې، تاسو پوهه شئ! هغه کانادې (یعنی په یوه سترګه کښې ئې عیب دې) او الله جل شانه کانا نهٔ دې-

## بَابٌ فِي قِتَالِ الْخَوَارِجِ

### باب: دَ خوارجو سره د جنګ بیان

خوارج د اهل باطل یوه ډله ده کوم چه دعلی رضی الله عنه د جماعت نه وتلو سره باغیان شوې وو او په علی رضی الله عنه باندې ئې خروج کړې وو، د علی رضی الله عنه او د هغوی ترمینځه زبردست جنګ اوشو په مقام نهروان باندې د دې جنګ نهروان ذکر وړاندې څهٔ اندازه خپله په متن کښې راروان دې، په دې جنګ کښې علی رضی الله عنه شانداره فتحه حاصله کړې وه، په انجاح الحاجة کښې لیکلې دی : ولهم عقائد فاسدة، د عثمان، علی، عائشه او کومو صحابه کرامو رضی الله عنهم ترمینځه چه جنګ واقع شو د هغه ټولو سره دوی بغض لرلو او د مرتکب کبیره به ئې تکفیر کولو، سیدنا علی رضی الله عنه د خپل خلافت په زمانه کښې او سیدنا معاویه رضی الله عنه هم په خپل دور کښې د هغوی سره قتال اوکړو

ماسره په خپل یو یادداشت کښې لیکلې دی : د قتل خوارج نه مقصود بالذات د مصنف رحمه الله قتل لره بیانول نه دی بلکه دَ دې فرقې بطلان چه دوی د اهل سنت نه خارج دی، اوس

[1]): صحیح البخاري/الفتن ۲۶ (۷۱۲۷)، صحیح مسلم/الفتن ۱۹ (۲۹۳۱)، سنن الترمذي/الفتن ۵۶ (۲۲۳۶)، (تحفة الأشراف: ۶۹۳۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۳۵، ۱۴۹) (صحیح)

چونکه په حدیث کښې د قتل ذکر وو په دې وجه په ترجمة الباب کښې هم هغه ذکر کړې شو، بل دا چه خوارجو لره دلته دجال سره نزدې ذکر کولو کښې په ظاهر کښې دا مناسبت دې چه هم من شعبة الدجال فتدبر...دا اشکال لیکلې شوې د ځو کلونو روستو دې، د هغې نه بیا ځو کاله پس لیکلې شوې دی : لکن یؤند ما قلته اولا ما فی ابن ماجه [۱]هـ...او د ابن ماجه په صحفه ۱۲ باندې په باب فی ذکر الخوارج کښې دا روایت دې ﴿ عَنِ ابْنِ عُمَرَ،أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّمَ قَالَ : يَنْشَأُ نَشْؤٌ يَقْرَؤُونَ الْقُرْآنَ لاَ يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ،كُلَّمَا خَرَجَ قَرْنٌ قُطِعَ , قَالَ ابْنُ عُمَرَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّمَ يَقُولُ : كُلَّمَا خَرَجَ قَرْنٌ قُطِعَ،أَكْثَرَ مِنْ عِشْرِينَ مَرَّةً،حَتَّى يَخْرُجَ فِي عِرَاضِهِمُ الدَّجَّالُ ﴾

یعنی ابن عمر رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کوی چه یو جماعت به پیدا شی کوم چه به په کثرت سره د قرآن کریم تلاوت کوی خو د هغوی حال به دا وی چه قران به ئې د مرئ نه ښکته کیږی.یا خو لاندې طرف مراد دې یعنی په خلوص به ئې نه لولی، یا ترې نه مراد پورته طرف دې چه د هغوی دا عمل به آسمان ته نه خیژی چه کله هم او په کومه زمانه کښې هم د دوی څوک جماعت ښکاره کیږی نو هغه به قطع کړې شی، یعنی مسلمانان به ورسره قتال کوی، ابن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه ما دا جمله ﴿ کلما قرن قطع ﴾ د رسول الله ﷺ نه د شلو کرتو نه زیات ځل اوریدلې ده.او بیا وړاندې په حدیث کښې دی تردې چه هم د دوی په مینځ کښې به د دجال خروج کیږی، د دې نه معلومه شوه چه اهل حق به اګر چه دا خوارج هلاکوی خو د هغوی جرړې به ختمې نه کړې شی تر دې چه د خروج الدجال وخت به راشی، وړاندې ظاهره ده چه هغوی به د دجال سره وی، لهذا د مصنف رحمه الله د دې دوه بابونو مناسبت په فهم کښې راغلو.

[۴۷۵۸]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، أخبرنا زُهَيْرٌ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، وَمَنْدَلٌ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ أَبِي جَهْمٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ وَهْبَانَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا، فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ".

د حضرت ابو ذر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : چه چا د جماعت نه یو لیشت هم جدائی اختیار کړه،نو هغه د اسلام رسئ د خپل څټ نه اویستله۔"

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِى ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– : « مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الإِسْلاَمِ مِنْ عُنُقِهِ » ﴾

کوم سړې چه د جماعت یعنی سواد اعظم (د اهل حق جماعت) نه د یو لیشت په مقدار باندې جدا شی نو پوهه شه چه هغه د اسلام کړئ د خپلې مرئ نه ویستله، دا حدیث په خوارجو باندې صادق راځی، د دې نه په روستو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : كَيْفَ أَنْتُمْ وَأَئِمَّةٌ مِنْ بَعْدِى يَسْتَأْثِرُونَ بِهَذَا الْفَىْءِ الخ ...چه ستاسو به څه حال وی او تاسو به څه کوئ هغه وخت چه کله زما نه پس داسې خلفاء راشی چه په مال فئ کښې به ځان ته ترجیح

---

[۱]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۱۸۰) (صحیح)

ورکوی یا به ناحق یو بل ته ترجیح ورکوی، په دې باندې صحابی حدیث ابوذر رضي الله عنه اوفرمائیل چه والله زه خو به په خپله اوږه باندې توره ږدلو سره هغوی د هغې په ذریعه قتل کوم تردې چه تاسو ته در اورسم، یعنی تردې چه مړ شم، رسول الله ﷺ اوفرمائیل آیا د دې نه درته غوره خبره او نه ښائم هغه دا چه صبر کوه تر دې چه ماسره ملاؤ شې.

[٤٧٥٩]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، أخبرنا مُطَرِّفُ بْنُ طَرِيفٍ، عَنْ أَبِي الْجَهْمِ، عَنْ خَالِدِ بْنِ وَهْبَانَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: كَيْفَ أَنْتُمْ وَأَئِمَّةٌ مِنْ بَعْدِي يَسْتَأْثِرُونَ بِهَذَا الْفَيْءِ؟، قُلْتُ: إِذَنْ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ أَضَعُ سَيْفِي عَلَى عَاتِقِي، ثُمَّ أَضْرِبُ بِهِ، حَتَّى أَلْقَاكَ، أَوْ أَلْحَقَكَ، قَالَ: أَوَلَا أَدُلُّكَ عَلَى خَيْرٍ مِنْ ذَلِكَ، تَصْبِرُ حَتَّى تَلْقَانِي".

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: زما نه پس به ستاسو څه حال وی کله چه به امام (خلیفه) دې مال فئ او مال غنیمت لره خپل ذاتی مال ګڼړی.'' (یعنی د شرعی تقاضو مطابق به ئې نۀ خرچ کوی او تقسیم به ئې هم نۀ کوی) ما عرض اوکړو زما دې په هغه ذات باندې قسم وی کوم ذات چه تۀ په حق سره رالیږلې ئې! زۀ به خپله توره په اوږه باندې کیږدم او په هغې سره به وهل کووم تردې پورې چه له تاسو سره ملاؤ شم حضور ﷺ اوفرمائیل آیا زۀ تاته ددې نه بهتر څیز اونۀ ښایم؟ صبر کوه تردې پورې چه زما سره ملاؤ شې.''

[٤٧٦٠]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَعْنَى، قَالَا: أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ الْمُعَلَّى بْنِ زِيَادٍ، وَهِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ ضَبَّةَ بْنِ مِحْصَنٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَتَكُونُ عَلَيْكُمْ أَئِمَّةٌ، تَعْرِفُونَ مِنْهُمْ وَتُنْكِرُونَ، فَمَنْ أَنْكَرَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ هِشَامٌ بِلِسَانِهِ فَقَدْ بَرِئَ، وَمَنْ كَرِهَ بِقَلْبِهِ، فَقَدْ سَلِمَ، وَلَكِنْ مَنْ رَضِيَ وَتَابَعَ، فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفَلَا نَقْتُلُهُمْ؟، قَالَ ابْنُ دَاوُدَ: أَفَلَا نُقَاتِلُهُمْ؟، قَالَ: لَا، مَا صَلَّوْا".

د ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: '' په تاسو باندې به داسې امام (خلیفه) مقررشی چه دهغه بعضې خبرې به تاسو ته ښۀ معلومیږی او څه بدې، نو چا چه انکار اوکړو ... د هشام الفاظ دادی ... په خپلې ژبې سره ئې انکار اوکړو، نو هغه برى شو او چا چه په زړۀ سره انکار اوکړو هغه محفوظ پاتې شو، لیکن چه څوک راضی پاتې شو او د هغوی متبع شو.'' اووئیلې شو: اې د الله رسوله! آیا مونږ هغوی لره قتل نۀ کړو؟ حضور ﷺ اوفرمائیل نۀ، ترڅو پورې چه هغوی مونځ کوی.'' امام ابوداود رحمه الله فرمائی: افلا نقاتلهم؟ آیا مونږ د هغوی سره قتال اونۀ کړو؟

**قوله:** ﴿ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم–: « سَتَكُونُ عَلَيْكُمْ أَئِمَّةٌ تَعْرِفُونَ مِنْهُمْ وَتُنْكِرُونَ فَمَنْ أَنْكَرَ ». قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ هِشَامٌ: « بِلِسَانِهِ فَقَدْ بَرِئَ وَمَنْ كَرِهَ بِقَلْبِهِ فَقَدْ سَلِمَ ﴾

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٩٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٩/٥، ١٨٠) (ضعيف)

[2]: صحيح مسلم/الإمارة ١٦ (١٨٥٤)، سنن الترمذي/الفتن ٧٨ (٢٢٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٨١٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٥/٦، ٣٠٢، ٣٠٥، ٣٢١) (صحيح)

یعنی رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په تاسو باندې به راروانه زمانه کښې داسې خلفاء او ائمه راشي چه د هغوی بعض خبرې به تاسو ښه وینئ او بعض بدې، نو کوم سړی چه د هغوی په بده خبره باندې په ژبې سره انکار اوکړو نو هغه خو خپل حق ادا کولو سره د ذمې نه بری شو، او چا چه صرف په زړه باندې بد اوګڼړلو او په ژبه باندې ئې نکیر اونکړو نو هغه بری دې د ګناه نه او وړاندې هم داسې دی چه چا بد اوګڼړلو هغه سلامت پاتې شو او محفوظ پاتې شو د ګناه نه.

**قوله:** ﴿ وَلَكِنْ مَنْ رَضِيَ وَتَابَعَ ﴾ خو څوک چه په ناجائز حرکاتو باندې راضی پاتې شو او د هغوی موافقت ئې اوکړو یعنی بد ئې او نه ګڼړلو، د دې جملې جزاء محذوف ده، یعنی هغه هلاک شو او هغه خپل دین برباد کړو، په دې باندې چا تپوس اوکړو چه یا رسول الله ﷺ مونږ هغوی قتل نه کړو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل نه، تر څو چه هغوی مونځ کوی یعنی د مسلمانانو قبلې طرف ته.

د اهل قبله اطلاق په هغوی باندې کیږی کوم چه د ضروریات دین انکار نه کوی، په دې باندې په حاشیه د بذل کښې دی، یشکل علیه قتال الخوارج وقتال منکری الزکاة، یعنی هر کله چه دا خبره ده چه د اهل قبله سره قتال مه کوئ نو د خوارجو سره قتال ولې اوکړې شو او د منکرین زکاة سره قتال ولې اوکړې شو، خو وړاندې د دې هیڅ جواب حضرت نه دې ورکړې، د دې جواب دا دې چه په دې حدیث کښې خو د ائمه او خلفاء ذکر دې چه عوامو لره هغوی سره قتال کول نه دی پکار نه د دې برعکس، په ائمه او خلفاء باندې خو د سرکشه عوامو او باغیانو سر وهل ضروری دی، د ابوداؤد د دې حدیث الفاظ زمونږ په نسخه کښې داسې دی، او په حاشیه د بذل کښې دی: ولفظ المشكاة عن المسلم: من انكر فقد برئ ومن كره فقد سلم، وهكذا في الترمذي وهو اوضح من لفظ ابی داؤد اهـ زه وایم چه د ابوداؤد نسخې هم مختلف دی زمونږ د بذل والا نسخه کښې خو هم دغه شان دی کوم چه پورته اولیکلې شو خو د ابوداؤد په بعض نورو نسخو کښې د مسلم او ترمذی د روایت پشان دی کوم لره چه حضرت شیخ اوضح فرمائی.

[٤٧٦١] (1) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، أخبرنا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، أخبرنا الْحَسَنُ، عَنْ ضَبَّةَ بْنِ مِحْصَنٍ الْعَنَزِيِّ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، قَالَ: فَمَنْ كَرِهَ، فَقَدْ بَرِءَ، وَمَنْ أَنْكَرَ، فَقَدْ سَلِمَ" قَالَ قَتَادَةُ: يَعْنِي مَنْ أَنْكَرَ بِقَلْبِهِ، وَمَنْ كَرِهَ بِقَلْبِهِ.

حضرت ام سلمه رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ د مذکوره روایت هم معنی روایت نقل کړې دې - حضور ﷺ اوفرمائیل "چا چه په زړۀ سره ناخوښه اوګڼړلو او مکروه ئې اوګڼړلو هغه بری شو او چا چه انکار اوکړو هغه محفوظ پاتې شو -" قتاده رحمه الله فرمائیلې دی مقصد دادې چه په زړۀ سره ئې انکار اوکړو او په زړۀ سره ئې بد اوګڼړل -"

**قوله:** ﴿ قَالَ قَتَادَةُ : يَعْنِي مَنْ أَنْكَرَ بِقَلْبِهِ وَمَنْ كَرِهَ بِقَلْبِهِ ﴾ خو که د انکار او کراهت دواړو تعلق د زړه سره اومنلې شی نو لکه چه قتاده وائی نو په دواړو جملو کښې به تکرار واقع شی لکه

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨١٦٦) (صحيح)

چه په بذل کښې دی او بیا ئې د هغې نه روستو د حضرت گنگوهی د تقریر نه دا نقل کړی دی چه د قتاده تفسیر وهم دې او د غیر قتاده تفسیر صحیح دې چه انکار کولې شی په ژبه باندې او کراهت په قلب سره او په حاشیه د بذل کښې دی : وبسط علی هذا التفسیر القاری اشد البسط اهـ والحدیث اخرجه مسلم والترمذی، قاله المنذری.

[٤٧٦٢] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أخبرنا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، عَنْ عَرْفَجَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: سَتَكُونُ فِي أُمَّتِي هَنَاتٌ وَهَنَاتٌ وَهَنَاتٌ، فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يُفَرِّقَ أَمْرَ الْمُسْلِمِينَ وَهُمْ جَمِيعٌ، فَاضْرِبُوهُ بِالسَّيْفِ كَائِنًا مَنْ كَانَ".

د حضرت عرفجه رضی الله عنه نه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی چه فرمائیل ئې: زما په امت کښې به فتنې وی، فتنې او فتنې - چنانچه چاچه اوغوښتل چه هغه د مسلمانانو په معامله کښې تفرقه واچوی او حال دادې چه هغوی متحد وو نو دهٔ لره په توره سره قتل کړئ، خواه که هرڅوک وی.''

**قوله:** ﴿عَنْ عَرْفَجَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ : « سَتَكُونُ فِى أُمَّتِى هَنَاتٌ وَهَنَاتٌ فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يُفَرِّقَ أَمْرَ الْمُسْلِمِينَ وَهُمْ جَمِيعٌ فَاضْرِبُوهُ بِالسَّيْفِ كَائِنًا مَنْ كَانَ »﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه زما په امت کښې به وړاندې زمانه کښې شرونه او فسادونه وی، شرونه او فسادونه به وی دا ئې درې کرته اوفرمائیل، پس کوم سړې چه اراده کوی د مسلمانانو ترمینځه د اختلاف پیدا کولو او حال دا چه هغوی د مخکښې نه متفق وی یعنی په یو امام باندې نو د هغه سټ په توره باندې اوهئ که هرڅوک وی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی قاله المنذری.

[٤٧٦٣] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى الْمَعْنَى، قَالَا: أخبرنا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَبِيدَةَ، أَنَّ عَلِيًّا ذَكَرَ أَهْلَ النَّهْرَوَانِ، فَقَالَ: "فِيهِمْ رَجُلٌ مُودَنُ الْيَدِ، أَوْ مُخْدَجُ الْيَدِ، أَوْ مَثْدُونُ الْيَدِ، لَوْلَا أَنْ تَبْطَرُوا، لَنَبَّأْتُكُمْ مَا وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ يَقْتُلُونَهُمْ، عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قُلْتُ: أَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْهُ؟ قَالَ: إِي وَرَبِّ الْكَعْبَةِ".

حضرت عبیده سلمانی روایت کړې دې چه حضرت علی رضی الله عنه د اهل نهروان تذکره اوکړه اووې وئیل چه په هغوی کښې به یو سړې وی چه د هغه به یو لاس وړوکې وی یا به په کښې نقص وی لکه څنګه چه د ښځې ورون وی - که چرې ماته دا یره نهٔ وې چه تاسو به خوشالئ کښې راشئ او ډیر وړاندې به لاړ شئ نو ما به تاسو ته هغه ضرر ضرور ښودلې وې کوم چه الله جل شانه د حضرت محمد ﷺ په ژبه باندې د هغه سره د جنګ کوونکو په باره کښې فرمائیلي دې - عبیده وائی چه ما حضرت علی رضی الله عنه نه پوښتنه اوکړه چه آیا دا فرمان تاسو د نبی کریم ﷺ نه اوریدلې دې؟ هغه اوفرمائیل او ! په رب د کعبې مې دې قسم وی!

---

(١): صحيح مسلم/الإمارة ١٤ (١٨٥٢)، سنن النسائي/المحاربة ٦ (٤٠٢٥)، (تحفة الأشراف: ٩٨٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤/٤) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الزكاة ٤٨ (١٠٦٦)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٢ (١٦٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٣/١، ٩٥، ١٤٤، ١٥٥، ١١٣، ١٢١، ١٢٢) (صحيح)

**قوله:** ﴿عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عَبِيدَةَ : أَنَّ عَلِيًّا ذَكَرَ أَهْلَ النَّهْرَوَانِ﴾ په بعض نسخو کښې په دې حديث باندې، باب فی قتل الخوارج ذکر دې او زمونږ په نسخه کښې د قتل الخوارج باب په حديث ابوذر من فارق الجماعة قيد شبر الخ باندې وو او دا ټول احاديث د هغې د لاندې روان دی، او په بعض نسخو کښې په دې احاديثو باندې په ځائې د قتل الخوارج باب فی الخوارج ذکر کړې شوې دې او په دې حديث باندې کوم چه اوس شروع کيږی په دې باندې سرخی ده، باب فی قتال الخوارج او هم دا نسخه زياته مناسب معلوميږی.

دا حديث کوم چه مونږ اوس شروع کړو په دې کښې عبيده سلمانی فرمائی چه سيدنا علی ﷺ د آهل نهروان ذکر اوکړو يعنی د خوارجو چا سره چه علی ﷺ په مقام نهروان کښې قتال کړې وو جنګ نهروان معروف دې.

**قوله:** ﴿فَقَالَ : فِيهِمْ رَجُلٌ مُودَنُ الْيَدِ أَوْ مُخْدَجُ الْيَدِ أَوْ مَثْدُونُ الْيَدِ لَوْلاَ أَنْ تَبْطَرُوا لَنَبَّأْتُكُمْ مَا وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ يَقْتُلُونَهُمْ عَلَى لِسَانِ مُحَمَّدٍ -صلى الله عليه وسلم﴾

سيدنا علی ﷺ فرمائی د اهل نهروان په باره کښې چه په هغوی کښې به يو سړې داسې ضرور وی چه د هغه يو لاس ناقص دې يعنی د هغه يو لاس به صرف د مټ پورې وی وړاندې مړوند به ئې نه وی که ته بطر او فخر نه کوې نو زه به تاته هغه حديث بيان کړم چه په هغې کښې د الله پاک وعده د هغه خلقو سره کوم چه به د خوارجو سره قتال کوی ذکر ده، په نهروان کښې چه کوم جنګ او قتال شوې وو د هغې تفصيلی روايت وړاندې راروان دې چه په هغې کښې علی ﷺ ته په خوارجو باندې فتح نصيب شوې وه، په ظاهر کښې دا روايت د فتح نه روستو دې او په ظاهر کښې او دهغه مفصل روايت يوه ټکړه ده.

﴿قَالَ قُلْتُ : أَنْتَ سَمِعْتَ هَذَا مِنْهُ قَالَ : إِى وَرَبِّ الْكَعْبَةِ﴾ چه کله سيدنا علی ﷺ دا خبره اوفرمائيله کومه چه پورته ذکر شوه نو د هغوی شاګرد د هغوی نه تپوس اوکړو چه آيا واقعی تاسو دا حديث د رسول الله ﷺ نه اوريدلې وو؟ نو هغوی په قسم خوړلو سره اوفرمائيل او ما خپله اوريدلې وو، والحديث اخرجه مسلم وابن ماجه، قاله المنذری.

[۴۷۶۴](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "بَعَثَ عَلِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذُهَيْبَةٍ فِي تُرْبَتِهَا، فَقَسَمَهَا بَيْنَ أَرْبَعَةٍ: بَيْنَ الْأَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ الْحَنْظَلِيِّ، ثُمَّ الْمُجَاشِعِيِّ، وَبَيْنَ عُيَيْنَةَ بْنِ بَدْرٍ الْفَزَارِيِّ، وَبَيْنَ زَيْدِ الْخَيْلِ الطَّائِيِّ، ثُمَّ أَحَدِ بَنِي نَبْهَانَ، وَبَيْنَ عَلْقَمَةَ بْنِ عُلَاثَةَ الْعَامِرِيِّ، ثُمَّ أَحَدِ بَنِي كِلَابٍ، قَالَ: فَغَضِبَتْ قُرَيْشٌ، وَالْأَنْصَارُ، وَقَالَتْ: يُعْطِي صَنَادِيدَ أَهْلِ نَجْدٍ وَيَدَعُنَا، فَقَالَ: إِنَّمَا أَتَأَلَّفُهُمْ، قَالَ: فَأَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ، مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ، نَاتِئُ الْجَبِينِ، كَثُّ اللِّحْيَةِ، مَحْلُوقٌ، قَالَ: اتَّقِ اللَّهَ يَا مُحَمَّدُ، فَقَالَ: مَنْ يُطِيعُ اللَّهَ إِذَا عَصَيْتُهُ، أَيَأْمَنُنِي اللَّهُ عَلَى أَهْلِ الْأَرْضِ وَلَا تَأْمَنُونِي؟ قَالَ: فَسَأَلَ رَجُلٌ قَتْلَهُ، أَحْسِبُهُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ، قَالَ: فَمَنَعَهُ، قَالَ: فَلَمَّا وَلَّى، قَالَ: إِنَّ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا، أَوْ فِي عَقِبِ هَذَا قَوْمًا يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ، لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ، يَمْرُقُونَ مِنَ الْإِسْلَامِ مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ، يَقْتُلُونَ أَهْلَ الْإِسْلَامِ، وَيَدَعُونَ أَهْلَ

(1): صحيح البخاري/الأنبياء ٦ (٤٦٦٧)، المغازي ٦١ (٤٣٥١)، تفسير التوبة ١٠ (٣٣٤٤)، التوحيد ٢٣ (٧٤٣٢)، صحيح مسلم/الزكاة ٤٧ (١٠٦٣)، سنن النسائي/الزكاة ٧٩ (٢٥٧٩)، التحريم ٢٢ (٤١٠٦)، (تحفة الأشراف: ٤١٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣، ٣١، ٦٨، ٧٢، ٧٣) (صحيح)

الْأَوْثَانِ، لَئِنْ أَنَا أَدْرَكْتُهُمْ قَتَلْتُهُمْ قَتْلَ عَادٍ".

د حضرت ابو اسعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه حضرت علی رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې څه سونا (سرۀ زر) اولیږل چه لا صفا شوې نۀ وو - نو حضور ﷺ هغې لره د اقرع بن حابس حنظلی، عیینه بن بدر فزاری، د بنو نبهان زید الخیل الطائی او د بنو کلاب علقمه بن علاثه عامری دې څلورو کسانو په مابین کښې تقسیم کړل، نو قریشو او انصارو ته په دې باندې غصه ورغله او هغوی اووې چه د اهل نجد لویو خلقو ته ئې ورکوی او مونږ لره پریږدی- حضور ﷺ اوفرمائیل زۀ خو د هغوی تالیف قلب کول غواړم (ددې دپاره چه په اسلام کښې د هغوی زړونه جم شی) نو په دې کښې یو سړې راغې چه د هغه سترګې دننه ورغلې وې او تندې ئې بهر راوتې وو ګیره ئې ګڼړه، او سر ئې خرئیلې وو- هغه اووې اې محمد! د الله نه اویریږه - نو حضور ﷺ اوفرمائیل که چرې زۀ د هغه نافرمانی اوکړم نو څوک به د هغه اطاعت کوی؟ الله جل شانه خو مالره د زمکې امین جوړ کړې دې او تاسو مالره امین نۀ ګڼرئ؟ راوی وائی : په دې باندې یو کس پوښتنه اوکړه : آیا زۀ دۀ لره قتل کړم؟ زما خیال دې چه هغه حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه وو مګر حضور ﷺ هغه لره منع کړو- بیا هر کله چه هغه شا کړه او واپس لاړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ددې کس په نسل کښې به داسې خلق وی چه هغوی به قرآن لولې مګر دا به د هغوی د مرو نه بره نۀ خیژی، د اسلام نه به داسې اوځی لکه څنګه چه غشې د ښکار نه اوځی دا خلق به مسلمانانو لره وژنې او بت پرستو لره به پریږدی، په الله قسم! که چرې ما دوی لره بیا موندو نو هغوی لره به د قوم عاد په شان قتلوم-''

**قوله: ﴿عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: بَعَثَ عَلِيٌّ رضى الله عنه إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم بِذُهَيْبَةٍ فِي تُرْبَتِهَا فَقَسَّمَهَا بَيْنَ أَرْبَعَةٍ بَيْنَ : الأَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ الْحَنْظَلِيِّ ثُمَّ الْمُجَاشِعِيِّ وَبَيْنَ عُيَيْنَةَ بْنِ بَدْرٍ الْفَزَارِيِّ وَبَيْنَ زَيْدِ الْخَيْلِ الطَّائِيِّ ثُمَّ أَحَدِ بَنِي نَبْهَانَ وَبَيْنَ عَلْقَمَةَ بْنِ عُلاَثَةَ الْعَامِرِيِّ ثُمَّ أَحَدِ بَنِي كِلاَبٍ قَالَ فَغَضِبَتْ قُرَيْشٌ وَالأَنْصَارُ وَقَالَتْ : يُعْطِي صَنَادِيدَ أَهْلِ نَجْدٍ وَيَدَعُنَا. فَقَالَ : « إِنَّمَا أَتَأَلَّفُهُمْ »﴾**

یعنی یو ځل سیدنا علی رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته لږ شان سرۀ زر کوم چه په خاورو کښې ګډ شوې وو هغه راولیږل، یعنی د چا د غوږونو نه وتلې شوې سرۀ زر وو کوم چه تراوسه پورې صفا کړې شوې هم نه وو، نو هغه سرۀ زر هغوی لاس په لاس هم د هغه مجلس په څلورو کسانو باندې تقسیم کړل او د هغه څلورو ترمینځه د چا نومونه چه په روایت کښې ذکر دی د: الحنظلی ثم الجاشعی مطلب دا دې چه که د هغوی نسبت لوئې خاندان ته اوکړې شی نو حنظلی به ورته وئیلې شی او که د هغه خاندان د یو څانګې او بطن طرف ته اوکړې شی نو هغوی ته به مجاشعی وئیلې شی، لکه چه د یو سړی په باره کښې اوئیلې شی الهاشمی ثم الحسنی، دلته هم په دواړو نسبتونو کښې د عموم او خصوص فرق دې، بهر حال په دې روایت کښې دی چه په دې تقسیم باندې قریش او انصار خفه شو او دې خلقو اووئیل چه د نجد لوئې لوئې خلقو ته تاسو ورکړه کوئ او مونږ پریږدئ، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا خو د هغوی د تالیف قلب دپاره ورکوم، یعنی مصلحة ﴿قَالَ : فَأَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ مُشْرِفُ

الْوَجْنَتَيْنِ نَاتِئُ الْجَبِينِ كَثُّ اللِّحْيَةِ مَحْلُوقٌ قَالَ : اتَّقِ اللَّهَ يَا مُحَمَّدُ (ﷺ) ﴾ يعنى د رسول اللهﷺ د دې تقسيم نه پس او دقراو انصارو لره د پوهه كولو نه پس اودقريشو يو بل سړي رامخكښې شو د اعتراض دپاره چه د هغه حليه راوى بيان كړې ده چه د هغه سترګې چوڅې وې او دواړه اننګى ئې پورته پورته وو هم دغه شان ئې تندي هم راوتلي وو او ګيره د هغه ګڼړه وه او د سر ويښته ئې اخستلي شوي وو، هغه اودريدلو او وې وئيل اې محمد (ﷺ) د الله پاک نه اويريږه، په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه كه هم زه د الله پاک نافرمانى شروع كړم نو اطاعت به ئې څوک كوى، الله پاک خو ماته امانتدار او امين وائى د زمكې والو په حق كښې او تاسو ما امين نه ګڼړئ، په دې باندې خالد بن الوليدؓ رسول اللهﷺ ته عرض اوكړو چه تاسو ماته اجازت راكړئ زه به دې قتل كړم؟ راوى وائى چه رسول اللهﷺ د قتل نه منع اوفرمائيله. ﴿ قَالَ : فَلَمَّا وَلَّى قَالَ : « إِنَّ مِنْ ضِئْضِئِ هَذَا أَوْ فِي عَقِبِ هَذَا قَوْمًا يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لاَ يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الإِسْلاَمِ مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ يَقْتُلُونَ أَهْلَ الإِسْلاَمِ وَيَدَعُونَ أَهْلَ الأَوْثَانِ لَئِنْ أَنَا أَدْرَكْتُهُمْ لاقتلنهم قَتْلَ عَادٍ» ﴾ يعنى كله چه هغه اعتراض كونكې روان شو د بكواس كولو نه پس نو رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه د دې سړي د نسل نه به داسې قوم پيدا كيږى كوم چه به په كثرت سره قرآن لولى خو هغه به د هغوى د مرو نه نه كوزيږى (د دې شرح تيره شوه) د اسلام نه به داسې بهر وى لكه څنګه چه غشې د ښكار نه بهر اوځى، په غشى چه يو وړوكې شان څناور ويشتلې شى نو هغه د هغه د بدن نه بل طرف ته فورا صفا اوځى نو رسول اللهﷺ د تشبيه په طور د خوارجو حال بيانوى چه هغوى به هم د غشى په شان د اسلام نه اوځى. د اسلام نه د هغه لغوى معنى مراد ده يعنى د امير د اطاعت نه، او دا مطلب نه دې چه خوارج به د دائره اسلام نه خارج وى چه څوک دا اشكال اونكړى چه د اهل سنت په نزد خو د اهل قبله تكفير نه شى كولې، او هم دغه شان د هغوى قتل كول د هغوى د كفر د وجې نه نه وو بلكه د بغاوت د وجې نه وو. وړاندې دا دى چه قتل كوى به هغوى اهل اسلام لره او پريږدى به د غير الله بندګان. په بذل كښې په ﴿ يَقْتُلُونَ أَهْلَ الإِسْلاَمِ ﴾ باندې دى بتكفيرهم اياهم ..... يعنى د خوارجو د خپل مقابل تكفير كول هم دا ګويا د هغوى قتل كول دى ګينې په قتال كښې خو سيدنا علىؓ او اهل حق هميشه غالب پاتې شوې دى په خوارج باندې، وړاندې فرمائى چه زه د هغوى زمانه بيا مومم يعنى د خوارجو نو زه به هغوى د قوم عاد په شان قتل كړم يعنى څنګه چه په آفت سماوى سره الله پاک قوم عاد لره بالكل هلاک كړل او ختم ئې كړل.

په دې حديث كښې ﴿ رجل غائر العينين ﴾ راغلې دې يعنى رئيس الخوارج، د هغه نوم په بذل كښې حرقوص بن زهير ذوالخويصره ليكلې دې د ذوالخويصره ذكر په كتاب الطهارة كښې په باب الارض يصيبها البول كښې تير شوې دې، او په صحيح بخارى كښې په كتاب استتابة المرتدين كښې په باب من ترک قتال الخوارج للتالف كښې د ابوسعيد خدرىؓ په روايت كښې داسې دى : ﴿ بَيْنَا النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يَقْسِمُ جَاءَ عَبْدُ اللهِ بْنُ ذِي الْخُوَيْصِرَةِ التَّمِيمِيُّ فَقَالَ اعْدِلْ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ وَيْلَكَ مَنْ يَعْدِلُ إِذَا لَمْ أَعْدِلْ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ دَعْنِي

أَضْرِبْ عُنُقَهُ ﴾ حافظ د دې په شرح کښې د ذوالخويصره نوم په يو روايت کښې حرقوص نقل کړې دې او د هغې نه پس ئې ليکلې دی : وقد جاء ان حرقوصا اسم ذی الثدية كما سياتى، وزعم بعضهم انه ذوالثدية الاتى ذكره وليس كذلک .....او بيا وړاندې حافظ ﴿ فقال عمر ﴾ باندې ليکلې دې: وتقدم فى المغازى .....عن ابى سعيد فى هذا الحديث فساله رجل اظنه خالد بن الوليد قتله، وفى رواية مسلم فقال خالد بن الوليد بالجزم، وقد ذكرت وجه الجمع بينهما فى اواخر المغازى وان كلا منهما سال، نور تفصيل دې د دې اوکتلې شی په فتح البارى ۲۰۳/۱۲کښې او په حاشيه د بذل کښې حضرت شيخ داسې ليکلې دی ﴿ قال الحافظ فى الفتح ۲۳۶/۱۲وهذه القصة غير قصة جابر ومن فسره به فقد وهم الخ والمنكر فيها غيره لكن قال فى ص ۲۳۹ ان المنكر فى موضعين واحد. د دې نه په روستو روايت کښې دی : ﴿ لاَ يَرْجِعُونَ حَتَّى يَرْتَدَّ عَلَى فُوقِهِ ﴾

[۴۷۶۵]([۱]) حَدَّثَنَا نَصْرُبْنُ عَاصِمٍ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، وَمُبَشِّرٌ يَعْنِي ابْنَ إِسْمَاعِيلَ الْحَلَبِيَّ بِإِسْنَادِهِ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو، قَالَ يَعْنِي الْوَلِيدَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو، قَالَ: حَدَّثَنِي قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي اخْتِلَافٌ وَفُرْقَةٌ، قَوْمٌ يُحْسِنُونَ الْقِيلَ وَيُسِيئُونَ الْفِعْلَ، يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ، يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ، لَا يَرْجِعُونَ حَتَّى يَرْتَدَّ عَلَى فُوقِهِ، هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ، طُوبَى لِمَنْ قَتَلَهُمْ وَقَتَلُوهُ، يَدْعُونَ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ وَلَيْسُوا مِنْهُ فِي شَيْءٍ، مَنْ قَاتَلَهُمْ كَانَ أَوْلَى بِاللَّهِ مِنْهُمْ"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا سِيمَاهُمْ؟ قَالَ: "التَّحْلِيقُ".

د حضرت ابو سعيد خدری رضی الله عنه او د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل زما په امت کښې به اختلاف او افتراق راځي - يو قوم به خبرې ډيرې ښې کوی مګر کار به دَ هغوی ډير زيات خراب وی - قرآن مجيد به لولی مګر دَ هغوی د مرئ نه به نۀ متجاوز کيږی، هغوی به دَ دين نه داسې اوځی لکه څنګه چه غشې دَ خپل هدف نه اوځی دَ هغوی به حق طرف ته راتلل داسې محال وی لکه څنګه چه دَ غشی خپلې ليندې ته راتلل محال دی، هغوی به په انسانانو او مخلوقاتو کښې دَ ټولو نه زيات بد وی - مبارکی دې وی داسې کس ته چه دوی لره قتل کړی او هغوی دۀ لره قتل کړی - (شهادت اومومی) او په ظاهره سره به دَ الله کتاب طرف ته رابلل کوی مګر دَ هغوی به هيڅ تعلق ددې کتاب سره نۀ وی - څوک چه دَ هغوی سره قتال کوی هغه به په نسبت ددوی الله تعالیٰ ته ډير زيات قريب وی -'' صحابه کرامو رضی الله عنهم اوفرمائيل اې دَ الله رسوله ! دَ هغوی به علامات څه وی؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل سر کټا کول -''

چه دا خلق به دين او د امام داطاعت طرف ته واپس نشی تر څو چه غشې د خپل فوق طرف ته رانشی او د غشی خپل فوق طرف ته واپس کيدل محال دی، لهذا دا دَ تعليق بالمحال د قبيلې نه دې، فوق وائی په غشی او ليندۀ کښې وتر ته يعنی د غشی ايخودلو هغه ځائې چه غشې ترې نه ويشتلې شی، په لغت کښې ليکلې دی چه هغې ته سوفار وائی، ﴿ هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ ﴾ يعنی په ټول مخلوق کښې هغوی بدترين مخلوق دې په بذل کښې دی چه

[۱]: تفرد به أبو داود، انظر ما قبله ومابعده، (تحفة الأشراف: ۱۳۱۲) (صحيح)

کیدي شی د خلق نه مراد مسلمانان او د خلیقه نه مراد نور خلق او ځناور وی، ﴿ طُوبَى لِمَنْ قَتَلَهُمْ ﴾ زیرې او بشارت دې د هغه سړي دپاره کوم چه دا خوارج قتل کړي، او د هغه چا دپاره هم چا دا خوارج ئې قتل کړي، ﴿ يَدْعُونَ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ وَلَيْسُوا مِنْهُ فِي شَيْءٍ ﴾ په ظاهر کښې به خلق رابلی د کتاب الله طرف ته یعنی د هغې د حکم طرف ته، حال دا چه د هغوی به د کتاب الله سره هیڅ تعلق نه وی، وړاندې دی، چه کوم سړې د هغوی سره قتال کوی یعنی زما په امت کښې نو هغه به زیات اقرب الی الله وی د هغوی د مقابلین نه یعنی څوک چه د هغوی سره قتال نه کوی، ﴿ قَالُوا : يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا سِيمَاهُمْ قَالَ : « التَّحْلِيقُ » ﴾ صحابه کرامو تپوس اوکړو چه د دوی ظاهری علامت څه دې چه د هغې نه هغوی فورا اوپیژندلې شی څه دې؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل تحلیق، او د دې نه په روستو روایت کښې التسبید دې یعنی په ویښتو خرئیلو کښې مبالغه، چه په سر باندې بالکل ویښته نه پریږدی د بار بار حلق د وجې نه، ﴿ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمْ فَأَنِيمُوهُمْ ﴾ چه کله تاسو دوی وینئ نو هغوی اوده کړئ، دا هم داسې ده لکه په کتاب الخراج کښې په باب ماجاء فی خبر مکة کښې تیر شوې دی، ﴿ فلا يشرفن لكم احد الا انمتموه ﴾ په الدر المنضود جلد اول کتاب الطهارة کښې د علی رضی الله عنه دا حدیث ﴿ ومن ثم عاديت راسي عاديت راسي ﴾ د لاندې په تحلیق باندې څه کلام تیر شوې دې چه دا سنت دې او که خلاف سنت او بله دا چه د امام احمد په روایت کښې تحلیق مکروه دې ځکه چه دا د خوارجو علامت دې.

حدیث ابی سعید الاول اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[٤٧٦٦] (١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، قَالَ: سِيمَاهُمُ التَّحْلِيقُ وَالتَّسْبِيدُ، فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمْ فَأَنِيمُوهُمْ، قَالَ أَبُو دَاوُد: التَّسْبِيدُ اسْتِئْصَالُ الشَّعْرِ.

حضرت قتاده رضی الله عنه د حضرت انس رضی الله عنه نه او هغوی د نبی کریم ﷺ نه د مذکوره بالا روایت هم معنیٰ روایت کړې دې - په دې روایت کښې دی: " ددغه خوارجو علامات سر کتها کول او ویښتان لرې کول دی - کله چه تهٔ هغوی لره بیا اومومې نو هغوی لره اوده (یعنی مړهٔ) کړئ -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه په حدیث کښې دَ [ التسبید ] معنیٰ ده [ استئصال الشعر ] ویښتانو لره دَ ویخ نه ویستل -"

[٤٧٦٧] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ خَيْثَمَةَ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: إِذَا حَدَّثْتُكُمْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثًا، فَلَأَنْ أَخِرَّ مِنَ السَّمَاءِ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَكْذِبَ عَلَيْهِ، وَإِذَا حَدَّثْتُكُمْ فِيمَا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ، فَإِنَّمَا الْحَرْبُ خَدْعَةٌ، سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: يَأْتِي فِي آخِرِ الزَّمَانِ قَوْمٌ حُدَثَاءُ الْأَسْنَانِ، سُفَهَاءُ الْأَحْلَامِ، يَقُولُونَ مِنْ قَوْلِ خَيْرِ الْبَرِيَّةِ، يَمْرُقُونَ مِنَ الْإِسْلَامِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ، لَا يُجَاوِزُ إِيمَانُهُمْ حَنَاجِرَهُمْ، فَأَيْنَمَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاقْتُلُوهُمْ، فَإِنَّ قَتْلَهُمْ أَجْرٌ لِمَنْ قَتَلَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

(١): سنن ابن ماجه/المقدمة ١٢ (١٧٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٧/٣) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/المناقب ٢٥ (٣٦١١)، وفضائل القرآن ٣٦ (٥٠٥٧)، والمرتدين ٦ (٦٩٣٠)، صحيح مسلم/الزكاة ٤٨ (١٠٦٦)، سنن النسائي/المحاربة ٢٢ (٤١٠٧)، (تحفة الأشراف: ١٠١٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨١/١، ١١٣، ١٣١) (صحيح)

حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه کله زهٔ تاسو ته د رسول الله ﷺ حدیث بیانوم (نو په هغې کښې هیڅ خفا نهٔ وی، بلکې هغه بالکل حق او صاف وی) ماته د اسمان نه راپریوتل، په رسول الله ﷺ باندې د دروغو وئیلو نه زیات خوښ دی او کله چه زهٔ تاسو سره ستاسو په مابین کښې خبرې کووم (نو یاد ساتئ) جنګ د چال (او دهوکې) نوم دې (ډیر مصلحتونه ملحوظ ساتل ضروری دی دې وجې نه دې خبرو لره عام کول نهٔ دی پکار) ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغه فرمائیل په آخره زمانه کښې به خلق راځی چه په عمرونو کښې به ځوانان وی مګر بې عقل، په مخلوق کښې به د ټولو نه د بهترین شخصیت (رسول الله ﷺ) خبرې کوی، مګر د دین نه به داسې تیریږی لکه څنګه چه غشې د خپل ښکار نه اوځی - د هغوی ایمان به د هغوی د حلق نه لاندې نهٔ کوزیږی - تاسو چه د هغوی سره کوم ځائې هم ملاؤ شئ نو هغوی لره قتل کړئ - بې شکه د هغوی په قتل کښې به د قاتل دپاره په ورځ د قیامت ډیر لوې اجر وی -"

﴿قَالَ عَلِيٌّ : إِذَا حَدَّثْتُكُمْ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حَدِيثًا فَلأَنْ أَخِرَّ مِنَ السَّمَاءِ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَكْذِبَ..... سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ﴾

د سیدنا علی رضی الله عنه مقصود دلته د رسول الله ﷺ هغه خبر بیانول دی کوم چه هغوی د خوارجو په باره کښې ورکړې دې او په دې مضمون باندې د یقین قائمولو دپاره او دا چه دا حدیث بالکل صحیح نقل کوم د دې دپاره ئې د تمهید په طور دا خبره بیان اوفرمائیله چه د رسول الله ﷺ په حدیث کښې د خپل طرف نه د څه یو ځائې کولو نه زما دپاره د اسمان نه راپریوتل غوره دی، او کومه خبره چه زمونږ او ستاسو ترمینځه وی د هغې دا حکم نه دې او نه د هغې دا درجه ده ځکه چه ﴿ الحرب خدعة ﴾ جنګ کښې په چال کولو باندې کار کیږی، او په هغې کښې د څه لږو شان دروغو یعنی توریې ګنجائش دې د دې نه پس چه کوم حدیث مقصود بالذکر دې هغه ئې بیان اوفرمائیلو چه رسول الله ﷺ به فرمائیل زما نه روستو به څهٔ خلق وی چه د نوی عمر والا به وی او د عقل نه به کم وی یا د عقل نه به خلاص وی (یعنی عقل به پکښې نه وی) په ژبه باندې خو به هغوی ښه خبرې راوباسی، قیل اراد به القرآن ویحتمل ان یراد به قولهم ﴿ لا حکم الا الله ﴾ (بذل) الی
اخر الحدیث، والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

[٤٧٦٨]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ الْجُهَنِيُّ، أَنَّهُ كَانَ فِي الْجَيْشِ الَّذِينَ كَانُوا مَعَ عَلِيٍّ عَلَيْهِ السَّلَامُ الَّذِينَ سَارُوا إِلَى الْخَوَارِجِ، فَقَالَ عَلِيٌّ: "أَيُّهَا النَّاسُ، إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنْ أُمَّتِي يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ، لَيْسَتْ قِرَاءَتُكُمْ إِلَى قِرَاءَتِهِمْ شَيْئًا، وَلَا صَلَاتُكُمْ إِلَى صَلَاتِهِمْ شَيْئًا، وَلَا صِيَامُكُمْ إِلَى صِيَامِهِمْ شَيْئًا، يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ يَحْسِبُونَ أَنَّهُ لَهُمْ، وَهُوَ عَلَيْهِمْ، لَا تُجَاوِزُ صَلَاتُهُمْ تَرَاقِيَهُمْ، يَمْرُقُونَ مِنَ الْإِسْلَامِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ، لَوْ يَعْلَمُ الْجَيْشُ الَّذِينَ يُصِيبُونَهُمْ مَا قُضِيَ لَهُمْ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنَكَلُوا عَنِ الْعَمَلِ، وَآيَةُ ذَلِكَ أَنَّ فِيهِمْ رَجُلًا لَهُ عَضُدٌ، وَلَيْسَتْ لَهُ ذِرَاعٌ عَلَى عَضُدِهِ، مِثْلُ حَلَمَةِ الثَّدْيِ عَلَيْهِ شَعَرَاتٌ بِيضٌ، أَفَتَذْهَبُونَ إِلَى مُعَاوِيَةَ وَأَهْلِ الشَّامِ، وَتَتْرُكُونَ هَؤُلَاءِ يَخْلُفُونَكُمْ فِي ذَرَارِيِّكُمْ وَأَمْوَالِكُمْ؟ وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرْجُو أَنْ يَكُونُوا هَؤُلَاءِ الْقَوْمَ، فَإِنَّهُمْ قَدْ سَفَكُوا الدَّمَ الْحَرَامَ، وَأَغَارُوا فِي سَرْحِ النَّاسِ،

[1]: صحیح مسلم/الزکاة ٤٨ (١٠٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٠١٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٩٠) (صحیح)

فَسِيْرُوا عَلَى اسْمِ اللَّهِ"، قَالَ سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ: فَنَزَّلَنِي زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ مَنْزِلًا مَنْزِلًا، حَتَّى مَرَّ بِنَا عَلَى قَنْطَرَةٍ، قَالَ: فَلَمَّا الْتَقَيْنَا وَعَلَى الْخَوَارِجِ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ الرَّاسِبِيُّ، فَقَالَ لَهُمْ: أَلْقُوا الرِّمَاحَ وَسُلُّوا السُّيُوفَ مِنْ جُفُونِهَا، فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يُنَاشِدُوكُمْ كَمَا نَاشَدُوكُمْ يَوْمَ حَرُورَاءَ، قَالَ: فَوَحَّشُوا بِرِمَاحِهِمْ وَاسْتَلُّوا السُّيُوفَ وَشَجَرَهُمُ النَّاسُ بِرِمَاحِهِمْ، قَالَ: وَقَتَلُوا بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضِهِمْ، قَالَ: وَمَا أُصِيبَ مِنَ النَّاسِ يَوْمَئِذٍ إِلَّا رَجُلَانِ، فَقَالَ عَلِيٌّ: الْتَمِسُوا فِيهِمُ الْمُخْدَجَ، فَلَمْ يَجِدُوا، قَالَ: فَقَامَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِنَفْسِهِ، حَتَّى أَتَى نَاسًا قَدْ قُتِلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ، فَقَالَ: أَخْرِجُوهُمْ، فَوَجَدُوهُ مِمَّا يَلِي الْأَرْضَ فَكَبَّرَ، وَقَالَ: صَدَقَ اللَّهُ وَبَلَّغَ رَسُولُهُ، فَقَامَ إِلَيْهِ عَبِيدَةُ السَّلْمَانِيُّ، فَقَالَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، وَاللَّهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ لَقَدْ سَمِعْتَ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِي وَاللَّهِ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ حَتَّى اسْتَحْلَفَهُ ثَلَاثًا، وَهُوَ يَحْلِفُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ مَالِكٌ: ذُلٌّ لِلْعِلْمِ أَنْ يُجِيبَ الْعَالِمُ كُلَّ مَنْ سَأَلَهُ.

د زید بن وهب جهني رضی الله عنه نه روایت دي چه هغه د حضرت علي رضی الله عنه سره په هغه لښکر کښې شریک وو کوم چه د خوارجو طرف ته تلي وو - حضرت علي رضی الله عنه اوفرمائیل اې خلقو ! ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی هغه فرمائیل : زما په امت کښې به داسې خلق وی چه هغوی به قرآن مجید لولي - ستاسو قراءت به د هغوی د قراءت په مقابله کښې هیڅ نهٔ وی نهٔ به ستاسو مونځ د هغوی د مونځ په مقابله کښې څه وی، نهٔ به ستاسو روژې د هغوی د روژو په مقابله کښې څه حیثیت لري - هغوی به قرآن لولي او دا به ګڼړی چه دا د هغوی په حق کښې دلیل او تائید دي، حالانکه دا به د هغوی خلاف وی د هغوی مونځونه به د هغوی د حلق نه بره نهٔ ځی - د اسلام نه به داسې اوځی لکه څنګه چه غشي د خپل ښکار نه اوځی -" که چرې هغه لښکر ته کوم چه به دوی لره وژنی د هغه فضائلو علم اوشی کوم چه الله تعالیٰ د هغوی د نبی ﷺ په ژبه باندې د هغوی دپاره مقدر کړې دی نو هغوی به هم په دې باندې تکیه اوکړې - او د هغوی (خوارجو) نشانی داده چه په هغوی کښې به یو داسې سړې وی چه د هغه خو به د څنګل نه بره لاس وی مګر لاندې به ئې لاس نهٔ وی - د بره لاس آخر به د هغه د [ ښځې ] د تی په شان وی - په هغې باندې به سپین ویښتهٔ وی - آیا تاسو معاویه او د اهل شام طرف ته تلل غواړئ او هغه (خوارجو) لره په خپل اولاد، مال او اسباب کښې ورستو پریخودل غواړئ؟ په الله قسم ! ماته امید دې چه هم دا هغه خلق دی - (د کومو خلقو خبر چه رسول الله ﷺ ورکړې دې) دوی حرامې وینې لره توې کړې ده او د خلقو محفوظ علاقې ئې لوټ کړې دی، چنانچه د الله نوم واخلئ (د هغوی د مقابلې دپاره) روان شئ، سلمه بن کهیل وائی چه مونږ لره زید بن وهب منزل په منزل اوګرځولو تردې پورې چه مونږ په یو پُل باندې تیر شو کله چه مونږ د هغوی مقابل شو او د خوارجو سردار عبد الله بن وهب راسبی وو نو هغه خپلو خلقو ته اووئیل نیزې اولئ او تورو لره د خپلو تیکو نه راوباسئ ماته پته ده چه دوی تاسو سره هغه شان مقابله کوی لکه څنګه چه ئې د حروراء په ورځ باندې کړې وه : چنانچه هغه خلقو خپلې نیزې اوغورځولې او تورې ئې د تیکو نه راویستې نو خلقو په خپلو نیزو سره هغوی لره اوچیرلو او قتل کړو بعضو بعضو نورو لره - د حضرت علي رضی الله عنه د لښکر نه صرف دوه کسان شهید شو - نو حضرت علي رضی الله عنه اوفرمائیل تلاش کړئ په دوی کښې، په دوی کښې به یو مُخدج وی [یعنی لاس به ئې عیب جن وی]، مګر هغه اونهٔ موندلې شو نو حضرت علي رضی الله عنه خپله پاسیدو تردې پورې چه هغه مړو ته راغې چه هغوی

په یو بل باندې قتل شوې وو- هغوی اوفرمائیل:دوی لره راوباسئ- چنانچه دوی هغه لره اوموندو،چه هغه د ټولو نه لاندې په زمکه باندې پروت وو حضرت علی رضی الله عنه الله اکبر اووئیل اووې فرمائیل : الله تعالی رښتیا فرمائیلي دي او د هغه رسول هغې لره رسولي دي - پس حضرت عبیده سلماني د هغوی د طرف نه پاسیدو اووې وئیل : اې امیر المؤمنین ! قسم په هغه ذات باندې چه د هغه نه سوا څوک معبود نشته دې ! آیا دا بیان تاسو د نبی کریم ﷺ نه اوریدلي دې؟ هغوی اوفرمائیل هاں ! په الله قسم ! چه د هغه نه سوا څوک معبود نشته دې - تردې پورې چه هغه درې ځله قسم ورکړو او حضرت علی رضی الله عنه هم درې ځله په قسم سره جواب ورکړو -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی : چه امام مالک رحمه الله فرمائیلي دي : دا د علم اهانت دې چه عالم د هر سوال جوب ورکړي -

**قوله:** ﴿ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ قَالَ أَخْبَرَنِي زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ الْجُهَنِيُّ : أَنَّهُ كَانَ فِي الْجَيْشِ ......... يَقُولُ : « يَخْرُجُ قَوْمٌ مِنْ أُمَّتِي يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَيْسَتْ قِرَاءَتُكُمْ إِلَى قِرَاءَتِهِمْ شَيْئًا وَلاَ صَلاَتُكُمْ إِلَى صَلاَتِهِمْ شَيْئًا وَلاَ صِيَامُكُمْ إِلَى صِيَامِهِمْ شَيْئًا ﴾

## د جنګ نهروان قصه :

په دې روایت کښې د جنګ نهروان ذکر دې چه د هغې ذکر او حواله اوس نزدې تیره شوې ده، او د کوم راوی او حکایت کونکې چه زید به وهب الجهنی دې هغوی وائی چه زه خپله په دې لښکر کښې اوم کوم چه د سیدنا علی رضی الله عنه سره وو کوم چه د خوارجو طرف ته تلې وو.هغوی فرمائی چه علی رضی الله عنه اوفرمائیل (یعنی خوارجو سره په جنګ کولو کښې د ترغیب دپاره) چه اې خلقو ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل هغوی فرمائیل چه یو قوم به زما د امت نه داسې راوځی هغوی به د قرآن کریم تلاوت کوی او داسې غوره قراءت به کوی چه ستاسو قراءت به د هغوی په مقابله کښې هیڅ نوی او نه ستاسو مونځونه د هغوی د مونځونو په مقابله کښې او نه ستاسو روژې د هغوی د روژو په مقابله کښې، قران به لولي او دا به ګنړي چه ګیني دا د هغوی دپاره مفید دې، حال دا چه هغه به په هغوی باندې حجت وی، که پوهه شی هغه لښکر چه کوم هغوی سره قتال کوی چه د هغوی د پاره د رسول الله ﷺ په ژبه مبارکه باندې څه فیصله شوې ده، یعنی د الله پاک د طرف نه د ثواب وعده ﴿ لتكلوا عَلَى الْعَمَلِ ﴾ نو هغوی به هم په دې عمل باندې اعتماد اوکړي یعنی دې خلقو سره په قتال باندې یعنی بیا به د بل څه عمل ضرورت نه ګنړي د ثواب عظیم د حصول نه پس، او په یو نسخه کښې دی ﴿ لنكلوا عن العمل ﴾ د دې ترجمه به دا وی چه د دې قتال نه علاوه به د نورو اعمالو نه منع شی، حاصل د دواړو یو دې، ﴿وَآيَةُ ذَلِكَ أَنَّ فِيهِمْ رَجُلاً لَهُ عَضُدٌ وَلَيْسَتْ لَهُ ذِرَاعٌ عَلَى عَضُدِهِ مِثْلُ حَلَمَةِ الثَّدْيِ عَلَيْهِ شَعَرَاتٌ بِيضٌ ﴾ او د دوی علامه دا ده یعنی د دې قوم چه هغوی سره د قتال رسول الله ﷺ ترغیب ورکړې دې چه په دوی کښې به یو سړې وی چه د هغه به یو طرف ته صرف مټ وی او د هغې سره به مړوند نه وی، او بله دا چه د هغه په لاس باندې به د سینې په شان یو بوټئ وی چه د هغې نه ګیر چاپیره به سپین ویښته وی او د دې نه په روستو روایت کښې دی ﴿ ﴿ مثل شعيرات التى تكون على ذنب اليربوع ﴾ داسې ویښته

لکه د یربوع په لکئ باندې چه وی، یربوع د مږې په شان یو ځناور دې، چه د هغه په لکئ باندې د ولاړو ویښتو یو حصه وی، او د هغې نه په روستو روایت کښې دی ﴿ مثل سبالة السنور ﴾ چه هغه ویښته داسې اودریږی لکه د پیشو بریت، پس تاسو معاویه رضی الله عنه او اهل الشام ته ځائې هغوی سره د قتال دپاره او دا خلق د ځان نه شاته خپل آل او اولاد ته پریږدئ، مطلب دا دې چه اول دوی ختم کړئ د ددوی نه روستو به د اهل الشام قصه کتلې شی، والله زه امید کوم چه هم دا هغه خلق دی د چا په باره کښې چه رسول الله ﷺ خبر ورکړې دې، یقینا دا خلق ناحقه وینې تویوی او خلق لوټ کوی، د الله پاک نوم اخستلو سره د دوی طرف ته روان شئ ..... ﴿ قَالَ : سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ : فَنَزَّلَنِي زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ مَنْزِلاً مَنْزِلاً ﴾ سلمه بن کهیل څوک چه دا قصه د زید بن وهب نه روایت کوی هغوی وائی چه زید بن وهب زه د دې جنګ په هر هر منزل باندې کوز کړم، یعنی پوره په تفصیل سره هغوی ماته دا قصه بیان کړه، منزل په منزل، حتی مررنا علی قنطرة هغه وائی تردې چه په تلو تلو کښې زمونږ تیریدل په یوپل باندې اوشو یعنی په قنطره دبرجان باندې، زید بن وهب وائی چه کله مونږ او هغوی مخامخ شو او حال دا چه د هغوی امیر یعنی د خوارجو امیر عبدالله بن وهب راسبی وو نو هغه خپلو خلقو ته اووې : ﴿ أَلْقُوا الرِّمَاحَ وَسُلُّوا السُّيُوفَ مِنْ جُفُونِهَا ﴾ چه نیزې یو طرف ته اوغورزوئ او تورې راوباسئ د تیکو نه، مطلب دا چه مونږ به په حمله کښې تندی کوو څکه چه د جنګ په شورع کښې خو نیزې استعمالولې شی چه کله هغوی لرې په فاصله باندې وی او چه کله هغوی رانزدې شی نو بیا تورې استعمالولې شی ﴿ فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يُنَاشِدُوكُمْ كَمَا نَاشَدُوكُمْ يَوْمَ حَرُورَاءَ ﴾ څکه چه زه ویریږم د دې خبرې نه چه هغوی ستاسو نه صلح طلب نه کړی لکه څنګه ئې په یوم حروراء کښې طلب کړې وه، د دې نه معلومه شوه چه د دې نه مخکښې به څه خبره په مقام حروراء کښې هم راپیښه شوې وی، ﴿ قَالَ : فَوَحَّشُوا بِرِمَاحِهِمْ وَاسْتَلُّوا السُّيُوفَ ﴾ پس هغوی د خپل امیر د حکم مطابق نیزې اوغورزولې او تورې ئې راویستلې، ﴿ وَشَجَرَهُمُ النَّاسُ بِرِمَاحِهِمْ ﴾ (د الله پاک د قدرت کرشمه اوګورئ چه) خلقو یعنی اصحاب علی رضی الله عنه دا خلق هم په هغه نیزو سره ختم کړل، یعنی کومې نیزې چه هغوی د خپل امیر په هدایت باندې غورزولې وې هم هغه نیزې د اصحاب علی رضی الله عنه په کار شوې، ﴿ قَالَ - وَقُتِلُوا بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضِهِمْ ﴾ یعنی هغوی داسې قتل کړې شو چه د یو بل دپاسه پراته وو ﴿ قَالَ : وَمَا أُصِيبَ مِنَ النَّاسِ يَوْمَئِذٍ إِلاَّ رَجُلاَنِ ﴾ یعنی د اصحاب علی رضی الله عنه نه په دې جنګ کښې صرف دوه کسان قتل کړې شو، او د خوارجو تعداد اته زره وو او په هغوی کښې اکثر قتل شو، ﴿ فَقَالَ عَلِيٌّ الْتَمِسُوا فِيهِمُ الْمُخْدَجَ ﴾ یعنی کله چه جنګ ختم شو او د اهل حق فتح اوشوه نو علی رضی الله عنه اوفرمائیل خپلو ملګرو ته چه اوس هغه ناقص الید اوګورئ په دې قتل کړې شوې خلقو کښې چه دا یقینی طور معلومه شی او مشاهده اوشی چه د کوم قوم رسول الله ﷺ نخښه ورکړې وه هغه هم دا دی خو هغوی ته په لټون باندې داسې یو سړې هم ملاؤ نه شو ﴿ فَقَامَ عَلِيٌّ رضى الله عنه بِنَفْسِهِ ﴾ بیا علی رضی الله عنه خپله د لټون دپاره پاسیدلو تردې چه

هغوی په لټولو لټولو د مقتولینو یو ډهیری ته اورسیدل کوم چه په یو کنده کښې پراته وو. سیدنا علی رضی الله عنه اوفرمائیل خپلو ملګرو ته چه دا راوباسئ کیدې شی چه په دې کښې وی پس هغه ملاؤ شو د ټولو نه لاندې، سیدنا علی رضی الله عنه د هغه په لیدو باندې تکبیر اووئیلو او وې فرمائیل ﴿ صَدَقَ اللّٰهُ وَبَلَّغَ رَسُولُهُ ﴾ په دې باندې عبیده سلمانی اودریدو سره د علی رضی الله عنه نه تپوس اوکړو چه اې امیر المومنین په هغه الله پاک قسم چه د هغه نه سوا بل هیڅوک معبود نشته چه تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه خپله دا حدیث اوریدلې دې یعنی د وعده ثواب والا، نو هغوی هم په قسم خوړلو سره اوفرمائیل چه او هم دغه شان ده، او د هغوی دا په قسم خوړلو سره سوال او جواب درې کرته اوشو، په بل روایت کښې دی ﴿ قال ابو اوضئ كَأَنِّى أَنْظُرُ إِلَيْهِ حَبَشِيٌّ عَلَيْهِ قُرَيْطَقٌ لَهُ إِحْدَى يَدَيْنِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْأَةِ ﴾ ابوالوضئ د دې مخدج مقتول کوم چه هغوی لیدلې وو، د هغه حال بیانوی چه ګویا زه هغه لره دا وخت وینم یعنی د هغه نقشه زما مخکښې ده چه هغه مخدج داسې ښکاریدو لکه چه څوک حبشی وی چه د هغه په بدن باندې یو قمیص ګوټې (وړوکې قمیص) وو او د هغه یو لاس داسې وو لکه د زنانه سینه چه وی، قریطق تصغیر دې د قرطق او هغه معرب دې د قمیص نه، د قریطق د تصغیر نه معلومه شوه چه هغه قمیص به وړوکې شان وو هم په دې وجه مونږ د هغې ترجمه په قمیص ګوټی سره کړې ده.

[٤٧٦٩] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ جَمِيلِ بْنِ مُرَّةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَضِيءِ، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ: اطْلُبُوا الْمُخْدَجَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، فَاسْتَخْرَجُوهُ مِنْ تَحْتِ الْقَتْلَى فِي طِينٍ، قَالَ أَبُو الْوَضِيءِ: فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ حَبَشِيٌّ عَلَيْهِ قُرَيْطِقٌ لَهُ إِحْدَى يَدَيْنِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْأَةِ، عَلَيْهَا شُعَيْرَاتٌ مِثْلُ شُعَيْرَاتِ الَّتِي تَكُونُ عَلَى ذَنَبِ الْيَرْبُوعِ.

ابو وضئ بیان کوی چه حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل: هغه مخدج لره تلاش کړئ. او حدیث ئې بیان کړو. چنانچه هغه دَ مقتولینو دَ لاندې نه راویستلې شو، چه په خټو کښې لیت پیت پروت وو. ابو وضئ وئیلې دی: ګویا چه زهٔ هغه ته ګورم، حبشی سړې وو، په هغه باندې چغه وه، دَ هغه یو لاس داسې وو لکه دَ ښځې سینه باندې تې. په هغې باندې څو ویښتان وو لکه څنګه چه دَ څنګلی مږې په لکۍ باندې وی.

[٤٧٧٠] (٢) حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَ: "إِنْ كَانَ ذَلِكَ الْمُخْدَجُ لَمَعَنَا يَوْمَئِذٍ فِي الْمَسْجِدِ نُجَالِسُهُ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ، وَكَانَ فَقِيرًا وَرَأَيْتُهُ مَعَ الْمَسَاكِينِ يَشْهَدُ طَعَامَ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مَعَ النَّاسِ، وَقَدْ كَسَوْتُهُ بُرْنُسًا لِي"، قَالَ أَبُو مَرْيَمَ: وَكَانَ الْمُخْدَجُ يُسَمَّى نَافِعًا ذَا الثُّدَيَّةِ، وَكَانَ فِي يَدِهِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْأَةِ، عَلَى رَأْسِهِ حَلَمَةٌ مِثْلُ حَلَمَةِ الثَّدْيِ، عَلَيْهِ شُعَيْرَاتٌ مِثْلُ سِبَالَةِ السِّنَّوْرِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهُوَ عِنْدَ النَّاسِ اسْمُهُ حَرْقُوسٌ.

ابو مریم وائی په تحقیق سره دغه مخدج سړې به په دغه ورځو کښې زمونږ سره په جمات کښې وو. ورځ او شپه به مونږ دَ هغه سره ناست وو، فقیر سړې وو، ما هغه لره دَ هغه مسکینانو سره اولیدو، چه دَ حضرت علی رضی الله عنه په طعام کښې به شریک وو، کومو خلقو چه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠١٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٣٩، ١٤٠، ١٤١) (صحيح الإسناد)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٣٣٣) (ضعيف الإسناد)

په د هغه سره تناول کولو ،او ما هغه ته خپل برنس هم ورکړي وو - [ برنس هغه اوږدې توپۍ ته وائی کومه چه عربیان په سره وي ] ابو مریم وائی . هغه ته به نافع ذو الثدیه (سینو والا) ونیلي شو - د هغه په مټ باندې د ښځو د سینو په شان سینه وه او د هغې په سر باندې تې غوندې زړ وه ،او په هغې باندې د پیشو د بریتو په شان څوویښتۀ وو- امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه په خلقو کښې د هغه نوم حرقوس معروف دې -

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي مَرْيَمَ قَالَ : إِنْ كَانَ ذَلِكَ الْمُخْدَجَ لَمَعَنَا يَوْمَئِذٍ فِي الْمَسْجِدِ.........وَكَانَ فَقِيرًا وَرَأَيْتُهُ مَعَ الْمَسَاكِينِ يَشْهَدُ طَعَامَ عَلِيٍّ رضی الله عنه مَعَ النَّاسِ وَقَدْ كَسَوْتُهُ بُرْنُسًا لِي ﴾

## د دې رئیس الخوارج ابتدائی حال :

ابومریم د دې رئیس الخوارج ابتدائی حال بیانوی چه دا مخدج په شروع کښې یعنی په خپله ابتدائی زمانه کښې مسجد کښې اوسیدلو زمونږ د هغه سره شپه ورځ ناسته پاسته وه او په اصل کښې هغه غریب او فقیر سړې وو د مسکینانو سره به د علی رضی الله عنه په لنګر کښې شریکیدلو او یو ځل ما هغه ته خپله چوغه هم ورکړې وه، یعنی په شروع کښې خو هغه داسې غریب او مسکین وو چه زمونږ ګمان هم نه وو چه هغه به په راروانه زمانه کښې داسې وي.

# بَابٌ فِي قِتَالِ اللُّصُوصِ

## بابه ۲۸ ، ۲۹- د ډاکوانو سره د قتال بیان

د دې باب د دې کتاب سره څه مناسبت دې او دلته دا ولې ذکر کړې شوې دې، دې باره کښې زما په ذهن کښې دا راځی چه مصنف رحمه الله په دې کښې دا وئیل غواړی چه دا د خوارجو سره د علی رضی الله عنه قتال کول د هغوی د کفر د وجې نه نهٔ وو بلکه د بغاوت د وجې نه وو لکه څنګه چه غلهٔ او ډاکوان یعنی قطاع الطریق قتل کولې شی، د هغې وجه هم د هغوی کفر نه وی بلکه هغوی دحکومت باغیان وی په دې وجه دهغوی سزاسخته ده، فتدبر وتشکر.

[۴۷۷۱](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَسَنٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَمِّي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ طَلْحَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنْ أُرِيدَ مَالُهُ بِغَيْرِ حَقٍّ فَقَاتَلَ فَقُتِلَ، فَهُوَ شَهِيدٌ".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه د چا د مال په ناحقه سره د اخستو کوشش اوکړې شو او بیا هغه قتال اوکړو او په هغې کښې دې قتل شو،نو دا شهید دې.“

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم- قَالَ : « مَنْ أُرِيدَ مَالُهُ بِغَيْرِ حَقٍّ فَقَاتَلَ فَقُتِلَ فَهُوَ شَهِيدٌ » ﴾

---

(1): سنن الترمذي/الديات ۲۲ (۱۴۲۰)، سنن النسائي/المحاربة ۱۸ (۴۰۹۳)، سنن ابن ماجه/الحدود ۲۱ (۲۵۸۰)، (تحفة الأشراف: ۸۶۰۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المظالم ۳۳ (۲۴۸۰)، صحيح مسلم/الايمان ۶۲ (۲۲۵)، مسند احمد (۲/۱۶۳، ۱۹۳، ۱۹۴، ۲۰۵، ۲۰۶، ۲۱۰، ۲۱۵، ۲۱۷، ۲۲۱، ۲۲۴) (صحيح)

[۴۷۷۲]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الطَّيَالِسِيُّ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ يَعْنِي أَبَا أَيُّوبَ الْهَاشِمِيَّ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَوْفٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ، وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ، أَوْ دُونَ دَمِهِ، أَوْ دُونَ دِينِهِ، فَهُوَ شَهِيدٌ".

د حضرت سعيد بن زيد رضی الله عنه نه روايت دي چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: " کوم کس چه د خپل مال په حفاظت کښې مړ شو هغه شهيد دې . او څوک چه د خپل کور والو په حفاظت کښې يا د وينې يا د دين په دفاع کښې قتل شو هغه شهيد دې ."

يعنې څوک چه د خپل مال په حفاظت کښې د چا سره قتال اوکړی او بيا قتل کړې شي، هم دغه شان د خپل اهل وعيال د حفاظت دپاره قتال کوی يا د خپل دين د بچ کولو دپاره، په دې ټولو صورتونو کښې به شهيد وی يعنی حکمی، او هغه ته به د شهادت ثواب ملاويږی. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، وحديث سعيد بن زيد اخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه، قاله المنذری.

[اخر كتاب السنة]

..............................

ځان پوهول پکار دی چه اوس د کتاب الادب د شروع کيدو نه مخکښې دوه احاديث نور ذکر دی چه د هغې نه اول خو په باب الخلفاء کښې تير شو يعنی ﴿ مثل عثمان عبدالله کمثل عيسى ﴾ د هغې شرح هلته تيره شوه.لهذا دا حديث دلته مکرر دې، خو دلته د دې حديث نه پس يو ﴿ قال ابوداؤد ﴾ دې د هغې شرح مونږ دلته ليکو:

() حَدَّثَنَا أَبُو ظَفَرٍ عَبْدُ السَّلَامِ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، عَنْ عَوْفٍ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ يَخْطُبُ، وَهُوَ يَقُولُ: "إِنَّ مَثَلَ عُثْمَانَ عِنْدَ اللَّهِ كَمَثَلِ عِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ، ثُمَّ قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ يَقْرَؤُهَا وَيُفَسِّرُهَا: إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا سورة آل عمران آية ۵۵، يُشِيرُ إِلَيْنَا بِيَدِهِ وَإِلَى أَهْلِ الشَّامِ". سَمِعْتُ أحمد بْنَ حَنْبَلٍ يَقُولُ قَالَ عَفَّانُ كان يحيى لَا يُحَدِّثُ عَنْ هَمَّامٍ، قَالَ أَحْمَدُ قَالَ عَفَّانُ فَلَمَّا قَدِمَ مَعَاذُ ابْنُ هِشَامٍ وَافَقَ هَمَّامًا فى احاديث كان يحيى رُبَّمَا قَالَ بَعْدَ ذلك كيف قَالَ هَمَّامٌ فى هَذَا. قَالَ ابوداؤد سَمِعْتُ أَحْمَدَ يَقُولُ سَمَاعُ هَؤُلَاءِ، عَفَّانُ واصحابه. مِنْ هَمَّامٍ أَصْلَحُ مِنْ سَمَاعِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وكان يَتَعَاهَدُ كتبه بَعْدَ ذلك.

عوف (بن جميله اعرابی) بيان اوکړو، هغوی اووې: ما د حجاج (بن يوسف) نه په خطبه ورکولو کښې اوريدلي وو، هغه وئيل چې د حضرت عثمان رضی الله عنه مثال د الله تعالىٰ په نزد د عيسىٰ ابن مريم عليهما السلام په رنګ دې . بيا ئې دغه آيت اولوستو: (إِذْ قَالَ اللَّهُ يٰعِيسَىٰ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَ رَافِعُكَ وَ مُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا)" کله چې الله تعالىٰ اوفرمائيل: اې عيسىٰ ! زه تا (ددې جهان نه پورا پورا اچتولو واله يم او خپل ځان طرفته رابللو واله يم او ددې

[1]: سنن الترمذي/الديات ٢٢ (١٤٢١)، سنن النسائي/المحاربة ١٨ (٤٠٩٥، ٤٠٩٦، ٤٠٩٩)، سنن ابن ماجه/الحدود ٢١ (٢٥٨٠)، (تحفة الأشراف: ٤٤٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٨٧، ١٨٨، ١٨٩، ١٩٠) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩١٨٣) (ضعيف)

کافرانو د صحبت نه تا پاکولو واله یم.'' هغه به دغه آیت لوستلو او د دې په شرح کولو به ئې زمونږ طرفته او د اهل شام طرفته اشاره کوله.
امام احمد رحمه الله فرمائی چه عفان دا خبره اوکړه چه امام حدیث یحیی القطان به د همام نه روایت نه کولو یعنی د هغوی نه به ئې احادیث نه اخستل (دا خبره خو د هغوی د شروع ده) وړاندې عفان وائی چه کله معاذ بن هشام راغلو او په ډیرو احادیثو کښې هغوی د همام موافقت اوکړو نو کله چه یحیی دا اولیدل نو بیا هغه په همام باندې اعتماد شروع کړې وو پس یحیی القطان به په ډیرو روایتونو کښې د همام په باره کښې معلومات کول چه هغوی د دې روایت په باره کښې څه وائی، د دې نه پس دی.
﴿ قال ابوداؤد سمعت احمد بن حنبل یقول سماع هؤلاء عفان واصحابه من همام اصلح من سماع عبدالرحمن وکان یتعاهد کتبه بعد ذلک ﴾
عفان د چا ذکر چه پورته راغلې دې هغه د همام په شاگردانو کښې، امام احمد رحمه الله فرمائی چه د عفان او د هغه د اصحابو سماع د همام نه زیاته معتبر ده د عبدالرحمن بن مهدی د سماع نه، دا عبدالرحمن هم د همام د شاگردانو نه دې، په دې کښې د اصلح او غیر اصلح وجه وړاندې ذکر ده چه په شروع کښې د همام عادت د روایاتو په سلسله کښې خپل کتاب طرف ته د مراجعت نه وو بلکه په خپل حفظ سره به ئې بیانول خو بیا په اخر کښې د هغوی عادت بدل شو او د روایاتو په سلسله کښې ئې خپل کتاب طرف ته مراجعت شروع کړو او صرف په خپل حفظ باندې ئې اعتماد پریخودلې وو، نو کیدې شی چه د عفان او د هغه د اصحابو سماع د عبدالرحمن نه په اخر کښې شوې وی (یعنی کله چه هغوی په خپل حفظ باندې اعتماد ترک کړو) او د عبدالرحمن بن مهدی سماع ترې په شروع کښې شوې وی ځکه چه د عبدالرحمن سماع د همام نه کمزورې ده او د عفان وغیره قوی، پس وړاندې خپله په کتاب کښې راځی

حدثنا حسین بن علی حدثنا عفان ان شاء الله تعالی قال قال لی همام کنت أخطئ ولا أرجع وأستغفر الله تعالی، قال ابوداؤد سمعت علی بن عبد الله یقول فی ذکر اصحاب قتادة اعلمهم بإعادة ما یسمع مما لم یسمع منه شعبة، وأرواهم هشام وأحفظهم سعید بن ابی عروبة، قال ابوداؤد فذکرت ذلک لأحمد فقال: سعید بن ابی عروبة فی قصة هشام هذا کله یحکون عن معاذ بن هشام، این کان یقع هشام من سعید لو برزله.

ترجمه: دحضرت حسین بن علی رحمه الله نه روایت دې چه عفان ان شاء الله مونږ ته اووئیل چه ماته همام بن یحی اووئیل چه ما به غلطی کوله او رجوع به مې نه کوله، او په دې خبره باندې د الله تعالی نه معافی غواړم امام ابوداؤد فرمائی چه ما د علی بن عبدالله نه واؤریدل چه د هشام په شاگردانو کښې د خپلو آوریدلې شوو احادیثو د زیات معلوماتو کښې دهغې نه دکوم چه ما سماع نه ده کړې شعبه دې، او په روایت کولو کښې دټولو نه بهتر هشام او په حفظ کښې سعید بن ابی عروبه دټولو نه زیات دې امام ابوداؤد فرمائی چه ما دا خبره د امام احمد په مخکښې اوکړه، نو هغوی اووئیل چه سعید بن ابی عروبه دهشام (دستوائی) په باره کښې څه وئیلی دی هغه ټول ئې د معاذ بن هشام نه بیان کړی دی

اود هشام د سعيد سره څه مقابله؟ که هغه ددوی سره موازنه هم اوکړې شي.
﴿ قال قال لي همام كنت اخطئ ولا ارجع واستغفر الله تعالى ﴾ يعني همام خپله وائي چه زما نه به په روايت کښې خطاء کيدله او ما به رجوع نه کوله، په ظاهر کښې مطلب دا دې چه د کتاب طرف ته د عدم رجوع د وجې نه به زما نه خطآء کيدله، د دې نه معلومه شوه چه هغوی ته د خپلې خطاء احساس روستو اوشو هم په دې وجه ئې د کتاب طرف ته رجوع شروع کړه، لهذا د دې نه هم دا معلومه شوه چه د هغوی د شروع روايات زيات قابل اعتماد نه دی په خلاف د اخر کښې، ﴿ واستغفر الله تعالى ﴾ مطلب هم دا دې چه زه د دې خپل عادت نه توبه اوباسم او بيا دپاره به داسې نه کوم او دا عادت به پريږدم.
﴿ قال ابوداؤد سمعت على بن عبدالله يقول اعلمهم باعادة[1]ما يسمع مما لم يمسع شعبة، وارواهم هشام واحفظهم سعيد بن ابى عروبة ﴾
د علی بن عبدالله نه مراد علی ابن المدينی دې، د امام بخاری مشهور استاد، هغوی د قتاده په شاګردانو کښې خپل مينځ کښې فرق مراتب بيانوی چه په هغوی کښې هغه درې شاګردان ذکر کړل، شعبه، هشام او سعيد، چه د شعبه دا حال وو چه کوم روايت به هغوی د خپل استاد نه براه راست اوريدلو هغه به ئې بيل ساتلو او کوم چه ئې براه راست نه وو اوريدلې هغه بيل، او هشام د قتاده په شاګردانو کښې زيات کثير الرواية دې او سعيد بن ابی عروبه د ټولو نه زيات حافظ وو.
﴿ قال ابوداؤد : فذكرت ذلك لاحمد فقال : سعيد بن ابى عروبة فى قصة هشام هذا كله يحكونه عن معاذ بن هشام، اين كان يقع هشام من سعيد لو برزله ﴾
امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه کومه خبره ما د علی ابن المدينی نه اوريدلې وه نو د هغې ذکر ما خپل استاد محترم احمد بن حنبل رحمه الله ته اوکړو نو هغوی اوفرمائيل چه ته سعيد بن ابی عروبه د هشام په مقابله کښې ذکر کوې يعنی دا چه د هغوی خوبی دا ده او په هغوی کښې دا خبره اصل کښې خلق د معاذ بن هشام نه نقل کوی چه په هغه کښې دا خوبی وه او په هغه کښې دا، يعنی يو ته هم په بل باندې على الاطلاق ترجيح نشته بلکه هر يو په بل باندې من وجه اوچت دې د دې په باره کښې امام احمد رحمه الله فرمائی چه دا خبره خو د هشام په باره کښې د هغه ځوی معاذ کړې ده او دا خبره د هم هغه ځائې نه مشهوره شوې ده حال دا چه د سعيد بن ابی عروبه مقام ډير اوچت دې که هغه مخامخ راشی نو هشام د هغه په مقابله کښې هيڅ هم نه دې.

حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَخِيهِ، عَنْ مُعَاوِيَةَ: اشْفَعُوا تُؤْجَرُوا فَإِنِّي لَأُرِيدُ الْأَمْرَ، فَأُؤَخِّرُهُ كَيْمَا تَشْفَعُوا فَتُؤْجَرُوا، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «اشْفَعُوا تُؤْجَرُوا»

ترجمه : دحضرت معاويه رضي الله عنه نه روايت دې چه حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه سفارش کوئ اجر به درکولې شی، بعضې ځل داسې کيږی چه دځه کار د کولو زه اراده کوم

[1] ) اي ما يتميز ما سمع من قتاده مما لم يسمع منه)

خو دا روسته کوم ستاسو د سفارش کولو په نیت سره، چه تاسو په دې کښې سفارش اوکړئ، ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه سفارش کوئ اجر به درته درکولې شی.

**قوله:** ﴿ عَنْ مُعَاوِيَةَ اشْفَعُوا تُؤْجَرُوا فَإِنِّي لأُرِيدُ الأَمْرَ فَأُؤَخِّرُهُ كَيْمَا تَشْفَعُوا فَتُؤْجَرُوا فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ – صلى الله عليه وسلم– قَالَ « اشْفَعُوا تُؤْجَرُوا » ﴾

د سیدنا معاویه رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه سفارش کوئ تاسو ته به اجر درکولې شی د دې نه پس معاویه رضی الله عنه اوفرمائیل چه بعض وخت داسې کیږی چه زه د یو کار کولو اراده اوکړم خو هغه موخر کړم ستاسو د سفارش په نیت باندې چه تاسو په هغې کښې سفارش اوکړئ چه تاسو ته د سفارش اجر ملاؤ شی، ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائی: اشْفَعُوا تُؤْجَرُوا. بیا هم دا حدیث مصنف رحمه الله په بل سند سره ذکر کړې دې چه د هغې راوی ابوموسی اشعری رضی الله عنه دې.

| |
|---|
| حدثنا ابومعمر حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ بُرَيْدٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مثله. |

ترجمه: د حضرت ابوموسی رضی الله عنه نه هم دغسې روایت منقول دې.

**بسم الله الرحمن الرحيم**

# اوّل كِتَابُ الأَدَبِ

## دَ ادابو او اخلاقو بیان

د ادب تعریف حضرت شیخ یو ځل فرمائیلې وو ﴿ هو ما یستحسن قولا وفعلا ﴾ چه هغه قول او فعل کوم چه شرعا او عقلا غوره وی، دا کتاب الادب په سنن ابی داؤد کښې آخری کتاب دې، کتاب الادب د خپلې موضوع په اعتبار سره یو جامع کتاب دې، په شریعت مطهره کښې، مخصوص احکام، فرائض واجبات، عبادات او معاملات، چه د هغې بیان په شروع د کتاب کښې تردې ځائې پورې اوشو، د دې نه علاوه هم د هر څیز ادب او مناسب طریقه ده، اوسیدل سلام او خوراک او خوب مجلس او د هغې ختمول، زیارت او ملاقات، تعلق او ترک تعلق او په ژوند کښې پیښیدونکې نور امور او احوال، د خوشحالئ او د خفګان، د دې ټولو متعلق د اسلام هدایات او آداب پکښې راغلی دی، هم دا هدایات او مناسب طرق حضرات محدثین په کتاب الادب کښې بیانوی.

## باب فِي الْحِلْمِ وَأَخْلاَقِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم

### باب ۱- دَ نبی کریم ﷺ د حلم او اخلاقو بیان

### د حسن اخلاق فضیلت:

اخلاق جمع د خلق ده، امام ترمذی رحمه الله یو مستقل باب تړلې دې: باب ما جاء فی حسن الخلق، چه په هغې کښې یو روایت دې ﴿ عن أبي الدرداء قال: سمعت النبي صلى الله عليه و سلم يقول ما من شيء يوضع في الميزان أثقل من حسن الخلق وإن صاحب حسن الخلق ليبلغ به درجة صاحب الصوم والصلاة ﴾ یعنی د قیامت په ورځ باندې به چه کله د اعمالو وزن وی نو

ټولو نه وزنی څیز به په هغې کښې حسن خلق وی، او دا چه د دې حسن خلق په وجه باندې انسان د صوم او صلوة د پابندی کونکو درجې ته اورسیږی، او په بل حدیث کښې چه د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې په هغې کښې دی ﴿ قال سئل رسول الله صلی الله علیه و سلم عن أکثر ما یدخل الناس الجنة؟ فقال تقوی الله وحسن الخلق وسئل عن اکثر ما یدخل النار، قال الفم والفرج ﴾ یعنی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه جنت ته د تلو غټ سبب به څه وی نو رسول الله ﷺ مختصرا شان جواب ورکړو چه د الله پاک ویره او حسن اخلاق او هم دغه شا ن د هغوی نه دا سوال هم
اوکړې شو چه زیات تر د دخول نار سبب څه وی نو وې فرمائیل چه ژبه او شرمګاه.

## د حسن خلق تعریف:

د ترمذی په حاشیه کښې د علامه طیبی نه نقل کړې شوې دی چه په تقوی سره اشاره ده د معامله مع الخالق طرف ته چه ټول اوامر پوره کړی او د ټولو منهیاتو نه پرهیز اوکړی، او په حسن خلق سره اشاره ده د ﴿ حسن المعامله مع الخلق ﴾ طرف ته، یعنی الله پاک سره د معاملې صفائی فیما بینه وبین الله دا خو تقوی شوه، او د مخلوق سره په ښه طریقه باندې راتلل دا حسن خلق دې، خپله د ترمذی په متن کښې ذکر دی : عن عبدالله بن المبارک انه وصف حسن الخلق فقال ﴿ هو بسط الوجه وبذل المعروف وکف الاذی ﴾ عبدالله بن المبارک رحمه الله د چا ثقاهت او جلالت شان چه متفق علیه بین المحدثین دې هغوی د حسن خلق دا تعریف کړې دې چه په هغې کښې درې اجزاء ذکر دی خلقو سره په رونړ تندی ملاویدل، او په خلقو باندې احسان کول که په مال سره وی او که په نفس سره وی په نورو الفاظو د خلقو په کار راتلل او د تکلیف ورکولو نه منع کیدل، یعنی په دې کوشش کښې اوسیدل چه زمونږ نه چاته تکلیف او نه رسیږی بغیر د وجې نه، او د امام احمد رحمه الله نه نقل دی چه حسن الخلق ﴿ ان لا تغضب ولا تحقد ﴾ چه یو خو دا چه انسان غصه نه کوی یعنی د غصې عادت ئې نه وی، دویم دا چه د چا سره حسد او کینه نه ساتی، او په یو روایت کښې دی د هغوی نه : ان تحتمل ما یکون من الناس ....چه د خلقو د طرف نه چه بعض ناخوښه امور راپیښ شی نو هغه برداشت کول (تحفه۶/۱۳)(او د رسول الله ﷺ په باره کښې په قرآن کریم کښې ارشاد دې : وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ .....

## د احادیث الباب مضمون:

په دې باب کښې مصنف رحمه الله درې احادیث ذکر کړې دی دوه د انس رضی الله عنه او یو د ابوهریره رضی الله عنه

[٤٧٧٣](1) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ الشَّعِيرِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ يَعْنِي ابْنَ عَمَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، قَالَ: قَالَ أَنَسٌ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ خُلُقًا، فَأَرْسَلَنِي يَوْمًا لِحَاجَةٍ، فَقُلْتُ: وَاللَّهِ لَا أَذْهَبُ وَفِي نَفْسِي أَنْ أَذْهَبَ لِمَا أَمَرَنِي بِهِ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى

(1): صحيح مسلم/الفضائل ١٣ (٢٣١٠)، (تحفة الأشراف: ١٨٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوصايا ٢٥ (٢٧٦٨)، الأدب ٣٩ (٦٠٣٨)، الديات ٢٧ (٦٩١١)، سنن الترمذي/البر والصلة ٦٩ (٢٠١٥) (حسن)

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَخَرَجْتُ حَتَّى أَمُرَّ عَلَى صِبْيَانٍ وَهُمْ يَلْعَبُونَ فِي السُّوقِ، فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَابِضٌ بِقَفَايَ مِنْ وَرَائِي، فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ يَضْحَكُ، فَقَالَ: يَا أُنَيْسُ، اذْهَبْ حَيْثُ أَمَرْتُكَ"، قُلْتُ: نَعَمْ، أَنَا أَذْهَبُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ أَنَسٌ: وَاللَّهِ لَقَدْ خَدَمْتُهُ سَبْعَ سِنِينَ أَوْ تِسْعَ سِنِينَ، مَا عَلِمْتُ قَالَ لِشَيْءٍ صَنَعْتُ: لِمَ فَعَلْتَ كَذَا وَكَذَا؟ وَلَا لِشَيْءٍ تَرَكْتُ: هَلَّا فَعَلْتَ كَذَا وَكَذَا".

د حضرت انس ﷛ نه روایت دي فرمائی چه رسول الله ﷺ په خلقو کښې د ټولو نه زیات د عمده اخلاقو مالک وو- حضور ﷺ یو ځل زۀ د څه کار دپاره اولیږلم، ما اووې په الله قسم ! زۀ نۀ ځم، حالانکه زما په زړۀ کښې وو چه د الله نبی ﷺ څه فرمائیلي دی زۀ د هغې دپاره ځم - فرمائی چه زۀ اووتلم تردې پورې چه په ماشومانو باندې زما تیردل اوشو چه هغوی په بازار کښې لوبې کوولې - نو اچانک (څه ګورم) چه رسول الله ﷺ د ورستو نه زما څټ نیولې وو - ما د هغوی طرف ته اوکتل نو هغه ﷺ خندل - اوئې فرمائیل " أنیس ! هلته کښې لاړ شه د کوم ځائې چه ما تاته وئیلې دی ما عرض اوکړو هاں ! اې د الله رسوله ! ځم - حضرت انس ﷛ فرمائی قسم دې په الله ! چه ما اووۀ کاله د حضور ﷺ خدمت کړې دې یا نهۀ کاله، ماته معلومه نۀ ده چه هغه په یو کار باندې کوم چه ما کړې وی چرته داسې وئیلې وی تا داسې ولې اوکړل؟ یا څه کار چه ما پریخودې وی او هغوی وئیلې وی چه داسې دې ولې اونۀ کړل؟ -"

د اول حدیث مضمون دا دې انس ﷛ فرمائی چه رسول الله ﷺ په خلقو کښې د ټولو نه زیات بااخلاقه وو، هغوی وړاندې د رسول الله ﷺ د اخلاقو یو واقعه بیانوی هغه دا چه هغوی یوه ورځ ماته د یو کار اووې چه لاړ شه او دا اوکړه، نو ما اووې چه والله زه خو نه ځم خو زما په زړه کښې دا وو چه ضرور به ځم چه هر کله رسول الله ﷺ حکم کوی. پس زه د هغه کار دپاره اوتلم، په لاره کښې ماشومانو لوبې کولې چه کله زه په هغوی باندې ورتیر شوم نو ما د هغوی تماشه شروع کړه، لږ ساعت پس زه څه ګورم چه رسول الله ﷺ د شاته نه زما سټ اونیولو، چه کله ما هغوی ته شاته اوکتل نو هغه وخت هغوی خندل، نو رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل لاړ شه کنه د کوم دپاره چه ما تاته وئیلې دی، ما اووې جی دا دې اوس ځم. هغوی فرمائی چه قسم په الله ما د هغوی په خدمت کښې اووۀ یا نهه کاله تیر کړی دی ماته نه دی یاد چه هغوی ماته چرته زما د یو کار په باره کښې وئیلې وی چه تا داسې ولې اوکړل او یا مې یو کار پریخودلې وی نو د هغې په باره کښې ئې هم داسې تپوس نه دې کړې چه تا ولې اونکړو.

او په بل روایت کښې دی هغوی فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ خدمت تر لسو کالو پورې اوکړو په مدینه منوره کښې او زه هلک (کم عمره) اوم ټول کارونه مې خو د هغوی د خوښې نه وو خو د دې سره سره رسول الله ﷺ کله هم د یو کار په باره کښې اف قدرې نه دې کړې.

[٤٧٧٤] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "خَدَمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ سِنِينَ بِالْمَدِينَةِ، وَأَنَا غُلَامٌ لَيْسَ كُلُّ أَمْرِي كَمَا يَشْتَهِي صَاحِبِي أَنْ أَكُونَ عَلَيْهِ، مَا

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٩٥/٣) (صحيح)

قَالَ لِي فِيهَا: أُفٍّ قَطُّ، وَمَا قَالَ لِي: لِمَ فَعَلْتَ هَذَا، أَوْ: أَلَّا فَعَلْتَ هَذَا".

حضرت انس رضی الله عنه فرمائي چه ما د نبی کریم ﷺ په مدینه منوره کښې لس کاله خدمت اوکړو او زۀ يو کم عمره هلک وم- زما ټول کارونه به په هغه معيار باندې پوره نۀ وو څنګه چه به د حضور ﷺ خواهش وو، (ددې باوجود) نبی کریم ﷺ ما ته چرې اُف قدرې هم نۀ دی وئيلې او نۀ ئې داسې وئيلې دی: تا ولې داسې اوکړل؟ او داسې دې ولې اونۀ کړل-"

او د مسلم په يو روايت کښې ﴿تسع سنين﴾ دې بغير د شک نه، او په بل روايت کښې ﴿عشر سنين﴾ دې نو کيدې شي چه د خدمت موده د لسو کالو نه کمه او د نهو نه زياته وی، په يو روايت کښې ئې کسر حذف کړو او په بل کښې ئې پوره کړو.

او د ابوهريره رضی الله عنه په حديث کښې دی هغوی فرمائی چه

[٤٧٧٥]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ هِلَالٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَاهُ يُحَدِّثُ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ وَهُوَ يُحَدِّثُنَا: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْلِسُ مَعَنَا فِي الْمَجْلِسِ يُحَدِّثُنَا، "فَإِذَا قَامَ قُمْنَا قِيَامًا حَتَّى نَرَاهُ قَدْ دَخَلَ بَعْضَ بُيُوتِ أَزْوَاجِهِ، فَحَدَّثَنَا يَوْمًا، فَقُمْنَا حِينَ قَامَ، فَنَظَرْنَا إِلَى أَعْرَابِيٍّ قَدْ أَدْرَكَهُ، فَجَبَذَهُ بِرِدَائِهِ، فَحَمَّرَ رَقَبَتَهُ، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: وَكَانَ رِدَاءً خَشِنًا، فَالْتَفَتَ، فَقَالَ لَهُ الْأَعْرَابِيُّ: احْمِلْ لِي عَلَى بَعِيرَيَّ هَذَيْنِ، فَإِنَّكَ لَا تَحْمِلُ لِي مِنْ مَالِكَ، وَلَا مِنْ مَالِ أَبِيكَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا وَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ، لَا وَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ، لَا وَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ، لَا أَحْمِلُ لَكَ حَتَّى تُقِيدَنِي مِنْ جَبْذَتِكَ الَّتِي جَبَذْتَنِي، فَكُلُّ ذَلِكَ، يَقُولُ لَهُ الْأَعْرَابِيُّ: وَاللَّهِ لَا أُقِيدُكَهَا، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ: ثُمَّ دَعَا رَجُلًا، فَقَالَ لَهُ: احْمِلْ لَهُ عَلَى بَعِيرَيْهِ هَذَيْنِ عَلَى بَعِيرٍ شَعِيرًا، وَعَلَى الْآخَرِ تَمْرًا، ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيْنَا، فَقَالَ: انْصَرِفُوا عَلَى بَرَكَةِ اللَّهِ تَعَالَى".

حضرت ابوهريره رضی الله عنه مونږ ته روايت بيان کړې دې چه رسول الله ﷺ به مونږ سره په جمات کښې ناست وو او خبرې به ئې کولې - کله چه به هغه ﷺ پاسيدو نومونږ به هم پاسيدو، تردې پورې چه مونږ به اوليدل چه حضور ﷺ خپلې کومې بی بی کره لاړو، چنانچه يو ځل حضور ﷺ مونږ سره خبرې کوولې کله چه هغه پاسيدو نو مونږ هم پاسيدو - بيا مونږ اوليدل چه يو باندېچی هغه لره بيا موندو او د حضور ﷺ څادر ئې اونيولو او راښکلو تردې پورې چه د حضور ﷺ بدن مبارک سور شو حضرت ابوهريره رضی الله عنه فرمائي چه څادر هم ډير زيات سخت وو، حضور ﷺ هغه ته متوجه شو نو هغه اعرابی حضور ﷺ ته اووئيل: ماته زما دا دوه اوښان راکړه بې شکه ته ماته څه خپل ذاتی مال نۀ راکوې او نۀ څه د خپل پلار د مال نه راکوې - نبی کریم ﷺ اوفرمائل: "نۀ زۀ د الله نه طلب د مغفرت کووم، نۀ زۀ د الله نه طلب د مغفرت کووم، نۀ زۀ د الله نه طلب د مغفرت کووم - او زۀ تاته تر هغه وختنه پورې نۀ شم درکولې ترڅو چه تۀ مالره پرې نۀ دې د هغه څه نه چه تا زۀ نيولې يم -" او هغه باندېچی به هر ځل وئيل په الله قسم زۀ تا نۀ پرېږدم - او راوی پوره حديث ذکر کړو - بيا حضور ﷺ يو شخص راوبللو او هغه ته ئې اوفرمائيل دۀ ته ددۀ دوه اوښان راوله په يو باندې اوربشې او په بل باندې کجورې -" بيا حضور ﷺ زمونږ طرف ته متوجه شو اووې فرمائيل تاسو لاړ شئ، په تاسو دې د الله تعالیٰ برکت وی -"

(): سنن النسائي/القسامة ١٨ (٤٧٨٠)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٨٨) (ضعيف)

رسول اللهﷺ به په مجلس کښې مونږ ته احاديث بيانول فَإِذَا قَامَ قُمْنَا قِيَامًا حَتَّى نَرَاهُ قَدْ دَخَلَ بَعْضَ بُيُوتِ أَزْوَاجِهِ .....پس چه کله به هغوی يو مجلس ختمولو سره پاسيدل نو مونږ به هم د هغوی سره اودريدلو نو هغوی ته به مو کتل تر دې چه هغوی به په خپل بيبيانو کښې د يوې کور ته داخل شو، يعنې مونږ به اودريدو سره فورا نه راتلو بلکه ترڅو چه به هغوی کور ته نه وو داخل شوې مونږ به د هغوی زيارت کولو تردې چه د نظر نه به غائب شو، د دې نه پس ابوهريرهﷺ د يوې ورځې واقعه بيانوی چه رسول اللهﷺ مجلس ختمولو سره اودريدل د عادت مطابق مونږ هم اودريدلو نو مونږ اوکتل چه يو اعرابی راغلو او هغوی سره ملاؤ شو او د هغوی څادر ئې راښکلو خپل طرف ته چه د هغې په زور سره د رسول اللهﷺ سټ مبارک سور شو ځکه چه هغه څادر نرم نه وو بلکه زيګ وو، رسول اللهﷺ د هغه طرف ته متوجه شو چه اوګوری څه وئيل غواړی نو دې اعرابی رسول اللهﷺ ته اووې چه زما په دې دوه اوښانو باندې غله بار کړه ځکه چه ته چاله خپل مال يا د خپل پلار مال نه ورکوې يعنی په بيت المال کښې زمونږ حق دې نو په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائيل : استغفرالله دا صحيح ده چه زه د خپل طرف نه نه ورکوم او دا جمله ئې درې کرته اوفرمائيله، د دې نه پس ئې اوفرمائيل چه زه به تا ته هر ګز غله درنکړم تر څو چه ته ماته زما د قصاص حق رانکړې يعنی د راښکلو د څادر، هغه اعرابی به بار بار وئيل چه قصاص خو زه تاسو ته نه درکوم......فذكر الحديث.

د دې نه معلوميږی چه د دې نه پس بل څه هم وو کوم چه مصنفﷺ حذف کړل بيا رسول اللهﷺ يو سړې راوغوښتلو د بيت المال د خادمانو نه يا په عاملينو کښې او هغه ته ئې اوفرمائيل چه د هغه په دواړو اوښانو کښې په يو باندې اوربشې او په بل باندې کهجورې بار کړه، دې منظر لره د مجلس نه اوچتيدونکو ټولو صحابه کرامو چونکه اوليدو نو رسول اللهﷺ هغوی ته اوفرمائيل چه لاړشئ د الله پاک نوم اخستلو سره ځوک چه چرته ځئ.

د رسول اللهﷺ د هغه اعرابی نه د قصاص مطالبه کول دا د خوش اخلاقئ په طور باندې وو په انبساط سره ګينې که د رسول اللهﷺ مقصود قصاص اخستل وې نو په دې کښې د دې وينا څه حاجت وو د رسول اللهﷺ د خادمانو جماعت هلته ولاړ وو چا چه د هغوی د اوچتو اخلاقو مشاهده کوله او صرف د دې نه بلکه چونکه هغوی شارعﷺ وو په دې وجه په دې مسئله باندې هم هغوی دغه اعرابی خبر کړو ﴿ جزاء سيئة سيئة مثلها ﴾ او دويمه خبره دا چه ﴿فمن عفا واصلح فاجره على الله ﴾ په دې باندې رسول اللهﷺ عمل اوفرمائيلو. والحديث اخرجه النسائي، قاله المنذري

...............

# بَابٌ فِي الْوَقَارِ

## بابـ۲- په عزت سره د اوسیدو بیان

وقار یعنی سنجیده کیدل او حلم په دې کښې معنی د رزانت ده، او وقر په معنی د باوقار شخص.

[۴۷۷٦](1) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا قَابُوسُ بْنُ أَبِي ظَبْيَانَ، أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ: أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّ الْهَدْيَ الصَّالِحَ، وَالسَّمْتَ الصَّالِحَ، وَالِاقْتِصَادَ، جُزْءٌ مِنْ خَمْسَةٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ".

د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: " نیک چلن، عمده کردار، او میانه روی د نبوت پنځهٔ ویشتمه (۲۵) حصه ده ."

**قوله**: ﴿ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « إِنَّ الْهَدْىَ الصَّالِحَ وَالسَّمْتَ الصَّالِحَ وَالاِقْتِصَادَ جُزْءٌ مِنْ خَمْسَةٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ » ﴾

یعنی ښه عادتونه او غوره اخلاق او میانه روی دا څیزونه د نبوت په پنځویشتو اجزاء کښې یو دې، یعنی دا عادتونه د نبوت په اوصافو کښې دی چه د هغې نه معلومیږی چه دا ډیر ښه خصلتونه دی او د نبوت د اوصافو نه دی کوم چه په انبیاء ﷺ کښې موندلې شی، او وقار هم په دې اوصافو کښې داخل دې.

# بَابُ مَنْ كَظَمَ غَيْظًا

## بابـ د غصې بيان

[۴۷۷۷](2) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ سَعِيدٍ يَعْنِي ابْنَ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ أَبِي مَرْحُومٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ أَبِيهِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنْ كَظَمَ غَيْظًا وَهُوَ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُنْفِذَهُ، دَعَاهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، حَتَّى يُخَيِّرَهُ اللَّهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ مَا شَاءَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: اسْمُ أَبِي مَرْحُومٍ: عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَيْمُونٍ.

حضرت سهل بن معاذ د خپل پلار نه روایت کوی، چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " کوم کس چه غصه اوخکی او حال دادې چه دې په هغې باندې د عمل درآمد قدرت لری نو الله تعالیٰ به دهٔ لره د قیامت په ورځ باندې را وبلی په سرونو د مخلوق باندې، او دهٔ ته به اختیار ورکړې شی چه د جنت د حور عین نه چه کومه یوه ئې خوښه شی منتخب دې کړی .امام ابوادود رحمه الله فرمائی چه د سند د راوی ابو مرحوم نوم عبد الرحمن بن میمون دې.

﴿ مَنْ كَظَمَ غَيْظًا – وَهُوَ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يُنْفِذَهُ ﴾ یعنی کوم سړې چه غصه برداشت کړی سره د هغې چه د دې په پوره کولو باندې قادر وی یعنی مجبور نه وی نو الله پاک به هغه ته د قیامت په ورځ باندې د ټولو خلقو مخکښې راوستلو سره اختیار ورکړی په حورو کښې

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۵۴۰۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۶/۱) (حسن)

(2): سنن الترمذي/البر والصلة ۷۴ (۲۰۲۱)، صفة القيامة ۴۸ (۲۴۹۳)، سنن ابن ماجه/الزهد ۱۸ (۴۱۸۶)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۹۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۳۸/۳، ۴۴۰) (حسن)

د یوې حورې د منتخب کولو. والحدیث أخرجه الترمذی وابن ماجه، قاله المنذری.

او د دې نه په روستو روایت کښې دی ﴿ مَلأَهُ اللَّهُ أَمْنًا وَإِيمَانًا ﴾ چه داسې سړې به الله پاک د امن وایمان یعنی د سکون نه ډک کړی، د دې نه پس دا دی هم په دې روایت کښې چه چا سره ښه جامې موجود وی او د هغې په استعمال باندې د قادر کیدو باوجود هغه ترک کړی تواضعا نو الله پاک به په آخرت کښې هغه ته د اعزاز او اکرام جوړه اچوی. ﴿ ومن زوج لله توجه لله ﴾ یعنی څوک چه د چا وادهٔ په اخلاص سره چرته اوکړی (نو دا د هغه ډیر لوئې خدمت دې او احسان دې په دې دجه) به الله پاک هغه ته په آخرت کښې د بادشاهانو والا تاج په سر کړی.

[٤٧٧٨] (¹) حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ مَهْدِيٍّ، عَنْ بِشْرٍ يَعْنِي ابْنَ مَنْصُورٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، قَالَ: مَلأَهُ اللَّهُ أَمْنًا وَإِيمَانًا، لَمْ يَذْكُرْ قِصَّةَ دَعَاهُ اللَّهُ زَادَ، وَمَنْ تَرَكَ لُبْسَ ثَوْبِ جَمَالٍ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَيْهِ، قَالَ بِشْرٌ: أَحْسِبُهُ، قَالَ: تَوَاضُعًا، كَسَاهُ اللَّهُ حُلَّةَ الْكَرَامَةِ، وَمَنْ زَوَّجَ لِلَّهِ تَعَالَى تَوَّجَهُ اللَّهُ تَاجَ الْمُلْكِ.

د نبی کریم ﷺ د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم نه د یو صحابی ځوې د خپل پلار نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: او د مذکوره بالا حدیث په مثل ئې روایت اوکړو- فرمائی: "الله تعالیٰ به دهٔ لره په امن او امان سره ډک کړی-" مګر په دې سند کښې دا نهٔ دی ذکر چه: الله تعالیٰ به دهٔ لره را وبلی-" مزید فرمائی: چاچه د زینت او جمال والا لباس پریخودو حالانکه دې دهغې استطاعت لری ....... " بشر بن منصور فرمائی زما خیال دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل: دهٔ هغې لره د تواضع په وجه سره پریخودې وی نو الله تعالیٰ به دهٔ ته د عزت او د کرامت جوړه واغونده وی- او چا چه د الله تعالیٰ د رضا دپاره نکاح اوکړه نو الله تعالیٰ به هغه ته تاج شاهی ورپه سر کړی-"

[٤٧٧٩] (²) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا تَعُدُّونَ الصُّرَعَةَ فِيكُمْ؟ قَالُوا: الَّذِي لَا يَصْرَعُهُ الرِّجَالُ، قَالَ: "لَا، وَلَكِنَّهُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ".

د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل تاسو خلق زبردست پهلوان چاته وائئ؟ صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اوفرمائیل چه هغه لره څوک راپرځولې نهٔ شی- حضور ﷺ اوفرمائیل نهٔ، پهلوان هغه څوک دې چه هغه د غصې په حالت کښې خپل ځان په قابو کښې اوساتی-"

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « مَا تَعُدُّونَ الصُّرَعَةَ ..الخ» ﴾

رسول الله ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اوفرمائیل چه تاسو پهلوان څوک ګنړئ نو هغوی عرض اوکړو چه څوک ئې راچولې نه شی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه داسې نه ده بلکه بهادر هغه

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٧٠٤) (ضعيف)
²): صحيح مسلم/البر والصلة ٣٠ (٢٦٠٨)، (تحفة الأشراف: ٩١٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٨٢) (صحيح)

انسان دي کوم چه په خپل نفس باندې قابو ساتي د غصې په وخت. والحديث اخرجه مسلم اتم منه، قاله المنذري.

# باب مَا يُقَالُ عِنْدَ الْغَضَبِ

## باب ...... غصه چه راشي نو څه به والي؟

[٤٧٨٠] (١) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: "اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَغَضِبَ أَحَدُهُمَا غَضَبًا شَدِيدًا حَتَّى خُيِّلَ إِلَيَّ أَنَّ أَنْفَهُ يَتَمَزَّعُ مِنْ شِدَّةِ غَضَبِهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا لَذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُهُ مِنَ الْغَضَبِ فَقَالَ: مَا هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ"، قَالَ: فَجَعَلَ مُعَاذٌ يَأْمُرُهُ فَأَبَى وَمَحِكَ، وَجَعَلَ يَزْدَادُ غَضَبًا.

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دې چه دوو کسانو د نبي کريم ﷺ په وړاندې باندې يو بل ته کنځل اوکړل - په هغوی کښې يو کس دومره غصه شو چه ما ته خيال راغې چه د زياتې غصې د وجې نه به ددۀ پوزه شليږي- نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل: بې شکه ما ته يوه کلمه معلومه ده که چرې دا اووائي نو ددۀ غصه به لرې شي -" (معاذ رضي الله عنه اوفرمائيل: اې د الله رسوله! هغه کومه کلمه ده؟ حضور ﷺ اوفرمائيل دا وائي: { اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ } اې الله زۀ د شيطان مردود نه په تاسره پناه غواړم -" چنانچه حضرت معاذ رضي الله عنه هغه کس ته اوفرمائيل چه دا کلمه اووايه مګر هغه انکار اوکړو بلکې جنګ ئې کولو او غصه ئې زياتيدله -"

**قوله:** ﴿عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَغَضِبَ أَحَدُهُمَا غَضَبًا شَدِيدًا الخ﴾

د رسول الله ﷺ مخکښې دوه کسانو کنځلې اوکړې، په هغوی کښې يو ډير زيات غصه وو چه زمونږ خيال راتلو چه د شدت او غضب د وجې نه به ئې پوزه اوشليږي نو په دې موقع باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زه يو داسې کلام او دعا پيژنم چه که دا سړې ئې اولولي نو غصه به ترې نه لاړه شي، د صحابه کرامو رضي الله عنهم په تپوس باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه هغه دا ده: ﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ سيدنا معاذ رضي الله عنه په دې حديث اوريدلو باندې هغه غصه کونکي ته د دې دعاء تلقين شروع کړو، خو هغه د دې د وينا نه انکار اوکړو، او ضد ئې شروع کړو په جنګ کولو باندې، او غصه ئې زياتيدله. والحديث اخرجه الترمذي والنسائي، قاله المنذري.

[٤٧٨١] (٢) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ، قَالَ: "اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَعَلَ أَحَدُهُمَا تَحْمَرُّ عَيْنَاهُ وَتَنْتَفِخُ أَوْدَاجُهُ، فَقَالَ

---

(١): سنن الترمذي/الدعوات ٥٢ (٣٤٥٢)، (تحفة الأشراف: ١١٣٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٤٠، ٢٤٤) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/بدء الخلق ١١ (٣٢٨٢)، الأدب ٤٤ (٦٠٥٠)، ٧٥ (٦١١٥)، صحيح مسلم/البر والصلة ٣٠ (٢٦١٠)، (تحفة الأشراف: ٤٥٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٩٤) (صحيح)

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنِّي لَأَعْرِفُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا هَذَا الَذَهَبَ عَنْهُ الَّذِي يَجِدُ: أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ "فَقَالَ الرَّجُلُ: هَلْ تَرَى بِي مِنْ جُنُونٍ؟.

د حضرت سلمان بن صرد رضی الله عنه نه روایت دي چه دوه کسانو یو بل ته د نبی کریم ﷺ په وړاندې باندې رد بد اووئیل تردې پورې چه په دوی کښې د یو کس سترګې سرې شوې او د مرئ رګونه ئې اوپړسیدل - نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ما ته یوه کلمه معلومه ده، که چرې دا کس هغه کلمه اووائی نو ددهٔ نه به دا کیفیت لرې شی - (او هغه کلمه داده ،) { أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ }" زهٔ دَ شیطان دَ شر نه په الله پاک سره پناه غواړم -"
مګر هغه سړی اووې آیا تهٔ وینې مالره چه زهٔ مجنون یم -"

**قوله:** ﴿عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدَ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ ‑صلى الله عليه وسلم الخ﴾
دوه سړو په خپل مینځ کښې کنځلې کولې د رسول الله ﷺ په موجودګئ کښ، چه هغوی کښې د یو تن سترګې د غصې د وجې نه سرې وې او د مرئ رګونه ئې پړسیدل نو رسول الله ﷺ هم هغه خبره ارشاد اوفرمائیله کومه چه په اول حدیث کښې تیره شوه، دې سړی په اوریدلو باندې اووې چه آیا ته ما مجنون ګنړې، دې سړی په خپل بیوقوف توب سره دا اوګنړله چه استعاذه د جنون علاج دې، وئیلې شوې دی چه ممکنه ده چه دا سړې د منافقینو نه وی یا څوک ناپوهه اعرابی. والحدیث اخرجه مسلم والنسائی، قاله المنذری.

[۴۷۸۲](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي حَرْبِ بْنِ أَبِي الْأَسْوَدِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَنَا: إِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ قَائِمٌ فَلْيَجْلِسْ، فَإِنْ ذَهَبَ عَنْهُ الْغَضَبُ وَإِلَّا فَلْيَضْطَجِعْ".

د حضرت ابو ذر غفاری رضی الله عنه نه روایت دې چه په تحقیق سره رسول الله ﷺ مونږ ته اوفرمائیل کله چه په تاسو کښې چاته غصه راشی او ولاړ وی نو هغه دې کینی په دې شان که ددهٔ نه غصه لاړه (خو بهتره ده) ورنه بیا دې څملی -

**قوله:** ﴿ إِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ قَائِمٌ فَلْيَجْلِسْ الخ ﴾ یعنی که څوک په ولاړه باندې غصه شی نو هغه له دا تدبیر اختیارول پکار دی چه کینی، که په دې سره ترې نه غصه لاړه شی نو صحیح ده کینې بیا دې سملی، د دې نه معلومه شوه چه د ظاهری تدابیرو هم اعتبار شته دا اختیارول پکار دی.

[۴۷۸۳](۲) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ دَاوُدَ، عَنْ بَكْرٍ: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ أَبَا ذَرٍّ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهَذَا أَصَحُّ الْحَدِيثَيْنِ.

د حضرت بکر (بن عبد الله) نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ حضرت ابو ذر غفاری رضی الله عنه لره (د څه کار دپاره) اولیږلو او دا حدیث ئې بیان کړو - امام ابو داود رحمه الله فرمائی چه دا حدیث (باوجود ددې نه چه مرسل دې) صحیح تر دې -

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۰۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵۲/۵) (صحيح)
(۲): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۰۱، ۱۸۴۵۹) (صحيح)

[٤٧٨٤]( ) حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ خَلَفٍ، وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو وَائِلٍ الْقَاصُّ، قَالَ: دَخَلْنَا عَلَى عُرْوَةَ بْنِ مُحَمَّدٍ السَّعْدِيِّ فَكَلَّمَهُ رَجُلٌ، فَأَغْضَبَهُ، فَقَامَ فَتَوَضَّأَ، ثُمَّ رَجَعَ وَقَدْ تَوَضَّأَ، فَقَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي عَطِيَّةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الْغَضَبَ مِنَ الشَّيْطَانِ، وَإِنَّ الشَّيْطَانَ خُلِقَ مِنَ النَّارِ، وَإِنَّمَا تُطْفَأُ النَّارُ بِالْمَاءِ، فَإِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ، فَلْيَتَوَضَّأْ".

ابو وائل القاص (واعظ) بیان کوی چه مونږ حضرت عروه بن محمد سعدی ته ورغلو - یو سړی د هغه سره څه خبره اوکړه نو هغه ته غصه ورغله نو هغه پاسیدو او اودس ئي اوکړو بیا واپس راغي اووي وئیل چه ماته زما پلار زما دَ نیکهٔ عطیه رضی الله عنه نه روایت کړې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دی: " بې شکه غصه دَ شیطان دَ طرف نه وی او شیطان دَ اور نه پیدا شوې دې او اور په اوبو سره مړ کولې شی - نو کله چه په تاسو کښې چاته غصه راشی نو هغه له پکار دی چه هغه اودس اوکړی -"

**قوله:** ﴿عَنْ دَاوُدَ عَنْ بَكْرٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم الخ﴾ دا حدیث مرسل دې، اول مسند وو، هم دې باره کښې مصنف رحمه الله فرمائي: ﴿هذا اصح الحديثين﴾

**قوله:** ﴿قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ الْغَضَبَ مِنَ الشَّيْطَانِ الخ﴾

چه غصه د شیطان د طرف نه وی او شیطان د اور نه پیدا کړې شوې دې او اور په اوبو باندې مړکولې شی پس کله چه په تاسو کښې چاته غصه ورشی نو هغه له پکار دی چه اودس اوکړی، د دې حدیث په شروع کښې دی چه عروه بن محمد سعدی ته د یو سړی په خبره باندې غصه ورغله نو هغه لاړو او اودس ئې اوکړو.

## بَابٌ فِي الْعَفْوِ وَالتَّجَاوُزِ فِي الْأَمْرِ

### باب: دَ معاف کولو بیان او په څه کار کښې زیاتې کول (دَ حد نه تیریدل)

[٤٧٨٥]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَمْرَيْنِ إِلَّا اخْتَارَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا، فَإِنْ كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ، وَمَا انْتَقَمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ إِلَّا أَنْ تُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللَّهِ تَعَالَى، فَيَنْتَقِمُ لِلَّهِ بِهَا".

ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها بیان کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چه کله هم په دوو کارونو کښې اختیار ورکړې شوې دې نو هغه همیشه آسان کار اختیار فرمائیلې دې، خو په دې شرط چه هغه به ګناه نۀ وه - او که په هغې کښې به ګناه وه نو حضور صلی الله علیه وسلم به دَ ټولو نه زیات دَ هغې نه لرې کیدونکې وو، او رسول الله صلی الله علیه وسلم هیڅ کله دَ خپل ذات دپاره انتقام نۀ دې اخستې، سوا ددې نه چه دَ الله دَ حرماتو سپکوالې به کیدو نو په هغې کښې به ئې دَ الله دپاره انتقام اخستو -"

**قوله:** ﴿عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّهَا قَالَتْ مَا خُيِّرَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِى أَمْرَيْنِ إِلاَّ اخْتَارَ أَيْسَرَهُمَا الخ﴾

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۹۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۲۲٦) (ضعيف)

[2]: صحيح البخاري/المناقب ۲۳ (۳٥٦۰)، والأدب ۸۰ (٦۱۲٦)، والحدود ۱۰ (٦۸٥۳)، صحيح مسلم/الفضائل ۲۰ (۲۳۲۷)، (تحفة الأشراف: ۱٦٥۹٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الجامع ۱ (۲)، مسند احمد (٦/۱۱٦، ۱۸۲، ۲۰۹، ۲٦۲) (صحيح)

يعنی رسول الله ﷺ ته چه به کله هم په دوه کارونو کښې د يو اختيار ورکړې شو نو رسول الله ﷺ به په هغې کښې چه کوم اسان کار وو هغه اختيارولو په دې شرط چه په هغې کښې ګناه نه وی، او که په هغې کښې به ګناه وه نو د هغې نه به لرې اوسيدلو، او دويم جزء د حديث دا دې چه رسول الله ﷺ کله هم د يو سړی نه د خپلې وجې نه انتقام نه دې اخستلې مګر هله چه د الله پاک حکم به ماتيدلو نو هغه وخت به ئې د الله پاک دپاره انتقام اخستلو. والحديث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی، قاله المنذری.

[۴۷۸۶](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: مَا ضَرَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَادِمًا، وَلَا امْرَأَةً قَطُّ".

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ کله هم چا خادم يا ښځې لره نۀ دی وهلې.

[۴۷۸۷](²) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الطُّفَاوِيُّ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ الزُّبَيْرِ فِي قَوْلِهِ: "خُذِ الْعَفْوَ سورة الأعراف آية ١٩٩"، قَالَ: أَمَرَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْخُذَ الْعَفْوَ مِنْ أَخْلَاقِ النَّاسِ".

دَ حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه نه روايت دې - دَ الله تعالیٰ دا فرمان: { خُذِ الْعَفْوَ }" معاف کول خپل کړئ -" ددې په تفسير کښې هغوی اوفرمائيل چه دَ الله نبی ته حکم کړې شوې وو چه دَ خلقو په عاداتو او معاملاتو کښې دَ هغوی سره دَ معافئ رويه اختيار کړی.

## بَابٌ فِي حُسْنِ الْعِشْرَةِ

### باب: په خپلو معاملاتو کښې دَ حسن اخلاق بيان

يعنی د خپل مجلس خلقو سره په ښه طريقه باندې ملاويدل.

[۴۷۸۸](³) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ يَعْنِي الْحِمَّانِيَّ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ مُسْلِمٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَلَغَهُ عَنِ الرَّجُلِ الشَّيْءُ، لَمْ يَقُلْ: مَا بَالُ فُلَانٍ يَقُولُ، وَلَكِنْ يَقُولُ: مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَقُولُونَ كَذَا وَكَذَا".

حضرت عائشه رضي الله عنها بيان فرمائی چه نبی کريم ﷺ ته به کله دَ چا (نامناسب) خبر ملاؤ شو نو داسې به ئې نۀ فرمائيل: فلانکی لره څه شوې دی چه داسې وائی يا کوی؟ بلکې داسې به ئې فرمائيل: خلقو لره څه شوې دی چه داسې داسې وائی يا کوی."

**قوله:** ﴿لَمْ يَقُلْ مَا بَالُ فُلَانٍ يَقُولُ وَلَكِنْ يَقُولُ « مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَقُولُونَ كَذَا وَكَذَا »﴾

يعنی کله به چه رسول الله ﷺ ته د چا بده خبره راورسيده نو رسول الله ﷺ به په هغې باندې خبرداری د هغه نوم اخستلو سره نه کولو چه فلانی سړی ته څه شوی دی چه هغه داسې وائی، بلکه دا هغوی طريقه په داسې موقعو باندې دا وه چه د خبرداری په وخت به ئې عام خطاب فرمائيلو چه بعض خلقو باندې څه چل شوې دې چه هغوی وائی يا هغوی کوی په

¹): تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٦٦٦٤، ١٧٢٦٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الفضائل ٢٠ (٢٣٢٨)، سنن ابن ماجه/النكاح ٥١ (١٩٨٤)، مسند احمد (٢٠٦/٦)، سنن الدارمي/النكاح ٣٤ (٢٢٦٤) (صحيح)

²): صحيح البخاري/تفسير سورة الأعرف ٥ (٤٦٤٤)، (تحفة الأشراف: ٥٢٧٧) (صحيح)

³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٦٤٠) (صحيح)

کوم ځيز چه به د رسول الله ﷺ تنبيه کول مقصود وو هغه به ئې بيان اوفرمائيلو. والحديث اخرجه النسائي بمعناه، قاله المنذري.

[۴۷۸۹](۱) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، حَدَّثَنَا سَلْمٌ الْعَلَوِيُّ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ أَثَرُ صُفْرَةٍ، وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَلَّمَا يُوَاجِهُ رَجُلًا فِي وَجْهِهِ بِشَيْءٍ يَكْرَهُهُ، فَلَمَّا خَرَجَ، قَالَ: لَوْ أَمَرْتُمْ هَذَا أَنْ يَغْسِلَ ذَا عَنْهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَلْمٌ لَيْسَ هُوَ عَلَوِيًّا، كَانَ يُبْصِرُ فِي النُّجُومِ، وَشَهِدَ عِنْدَ عَدِيِّ بْنِ أَرْطَاةَ عَلَى رُؤْيَةِ الْهِلَالِ، فَلَمْ يُجِزْ شَهَادَتَهُ.

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه يو کس نبی کريم ﷺ ته راغې او په هغه (سړی) باندې د زرد (زيړ) رنګ څه نشان وو - او رسول الله ﷺ به چا ته داسې خبره په خلې سره ډير کم کرتې کووله چه کومه به هغه بده ګڼړله - (يعنی د هغه په غلطئ سره به ئې هغه لره نۀ رټلو -) کله چه هغه لاړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل "که چرې هم تاسو دۀ ته اووائئ چه دې دا رنګ اووينځی (نو دا به بهتره وی) امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه ددې راوی (سلم علوی) په حقيقت کښې د علی رضی الله عنه د اولاد نه نۀ دې (دا بل څوک دې، ددۀ نوم سلم بن قيس دې او دا بصری دې، او چونکه ستوری بره وی) نو په ستورو باندې د نظر ساتلو په وجه سره دۀ ته علوی وئيلې شی - دۀ د حضرت عدی بن ارطات په وړاندې د مياشتې د ليدو ګواهی ورکړه نو هغوی قبوله نۀ کړه -

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا سَلْمٌ الْعَلَوِيُّ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلاً دَخَلَ الخ ﴾ چه يو سړې د رسول الله ﷺ مجلس ته راغلو چه د هغه په جامو باندې د زيړ رنګ اثر وو (د زعفران يا عصفر) ﴿وَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ – صلى الله عليه وسلم– قَلَّمَا يُوَاجِهُ رَجُلاً فِي وَجْهِهِ بِشَيْءٍ يَكْرَهُهُ ﴾

يعنی د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو چه د چا څه خبره به ئې ناخوښه وه نو هغه به ئې مخامخ نه رټلو پس چه کله هغه لاړو نو رسول الله ﷺ حاضرينو ته اوفرمائيل چه تاسو هغه ته ولې او نه وئيل چه دا وينځی. او په حاشيه د بذل کښې حضرت شيخ ليکلې دی چه د تولو شراح شمائل ترمذی رائې دا ده چه په ﴿ يكرهه ﴾ کښې چه کوم ضمير د فاعل دې هغه د رجل طرف ته راجع دې، په دې صورت کښې به ترجمه دا وی چه کوم ځيز لره کوم سړې ناخوښه ګڼړی او هغه ئې ناخوښه وی نو هغه خبره به رسول الله ﷺ هغه ته مخامخ نه کوله. والحديث اخرجه الترمذی والنسائی، قاله المنذری.

**قوله:** ﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ سَلْمٌ لَيْسَ هُوَ عَلَوِيًّا كَانَ يُبْصِرُ فِي النُّجُوم ..الخ ﴾ (۲).

---

(۱): انظر حديث رقم: (۴۱۸۲)، (تحفة الأشراف: ۸۶۷) (ضعيف)

(۲) د شيخ محمد عوامه په تعليق کښې دی چه د ابوداؤد په يو نسخه کښې د حافظ يوسف بن خليل په قلم سره چه هغې لره املاء کونکې ملک محسن دې دا عبارت دې: قال أحمد ابن يوسف: سلم العلوي ليس هو من ولد علي بن ابي طالب كما قال أبوداؤد واما هو منسوب الي بني علي بن سود وهو معروف بهم وقول ابي داود يبصر في النجوم سهو منه، واما علي (الظاهر بدله سلم) يبصر الهلال قبل الناس بيوم لحدة بصره وهو معروف بذلك، وقيل انه كان يبصر النجوم كالدلاء لحدة بصره، ولقد قال له انس بن مالك يا سلم خل بين الناس وبين هلالهم حتي يروه وهو ضعيف، فهو حديد البصر يبصر النجوم، لا يبصر في النجوم بمعني انه كان منجما)

## په سلم علوی کښې د نسبت تحقیق:

یعنی پورته چه کوم راوی سلم علوی راغلې دې نو هغه علوی په دې لحاظ سره نه دې چه هغه د اولاد علی نه وو بلکه پورته د ستورو طرف ته به ئې کتل په دې وجه ورته علوی وئیلې شی، پس یو ځل هغوی عدی بن ارطاة ته په رویت هلال باندې ګواهی ورکړه نو هغوی د هغه د شهادت اعتبار اونکړو.

په عربی حاشیه کښې مونږ د بعض علماء کرامو نه دا تحقیق نقل کړې دې چه د امام ابوداؤد رحمه الله رائې د سلم په باره کښې چه علوی په معنی د اولاد علی نه دې بلکه هغه ته علوی په دې لحاظ سره وئیلې شی چه ﴿کان یبصر فی النجوم﴾ دا خبره د امام ابوداؤد رحمه الله صحیح نه ده، هغوی ته خو علوی په دې وجه وائی چه هغه د بنو علی بن سود نه دې او د هغوی طرف ته منسوب دې، بله دا چه د هغوی په باره کښې دا هم مشهوره ده چه سپوږمئ او ستوری به هغه ته ډیر زر په نظر راتلل د ټولو نه اول د حدید البصر او تیز نظر کیدو د وجې نه.

دا حدیث بسنده ومتنه مکرر دې، په کتاب الترجل کښې په باب فی الخلوق للرجال کښې تیر شوې دې او هلته مونږ د سلم علوی په باره کښې د امام ابوداؤد رائې کوم چه هغوی دلته ښکاره کړې ده لیکلې ده.

[۴۷۹۰](۱) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنِي أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ فُرَافِصَةَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا بِشْرُ بْنُ رَافِعٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَفَعَاهُ جَمِيعًا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمُؤْمِنُ غِرٌّ كَرِيمٌ، وَالْفَاجِرُ خِبٌّ لَئِيمٌ".

نصر بن علی او محمد بن متوکل عسقلانی دواړه د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه مرفوعا روایت کوی، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: "مؤمن ساده او سخی وی، او فاجر سړې دهوکه باز او بخیل وی."

**قوله:** ﴿الْمُؤْمِنُ غِرٌّ كَرِيمٌ وَالْفَاجِرُ خِبٌّ لَئِيمٌ﴾

### شرح الحدیث:

یعنی د مومن شان چه هغه په حقیقت کښې مومن وی دا دې چه هغه ساده وی، شریف الطبع وی، د غر ترجمه خو د بې وقوف او ده خو دلته دا مراد نه ده چه هغه غافل او جاهل وی بلکه چونکه د هغه په طبیعت کښې شر نه وی په دې وجه د داسې قسم خبرو لټول هم نه کوی، د شرارت د طریقو او د چالاکیانو نه بې خبره وی، او د فاجر په باره کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه هغه دهوکه باز چالاک او رذیل وی.

### تطبیق بین الحدیثین

دلته یو سوال واردیږی چه دا حدیث په ظاهر کښې د ﴿اتقوا فراسة المومن﴾ خلاف دې، هغه دوه طریقو سره جمع کړې شوې دې یو دا چه حدیث الباب د عام مومنین په اعتبار

(۱): سنن الترمذي/البر والصلة ۴۱ (۱۹۶۴)، (تحفة الأشراف: ۱۵۳۶۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۹۴) (حسن)

سره دي او حديث الفراسة د لوئي خلقو په اعتبار سره دي چه كوم صاحب كشف وى او يا داسې اوئيلې شى چه د كوم سړى د ساده توب تعريف كيږى هغه داسې دې چه د هغې منشاء بې خبرى نه ده بلكه حسن ظن وى، ځكه چه حسن ظن مامور به دې يعنى بالمومنين، په دې وجه هغوى كله كله د حسن ظن په بناء باندې دهوكه اوخورى ګينې فهم ئې ښه وى. والحديث اخرجه الترمذى، قاله المنذرى

[۴۷۹۱](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "اسْتَأْذَنَ رَجُلٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: بِئْسَ ابْنُ الْعَشِيرَةِ، أَوْ بِئْسَ رَجُلُ الْعَشِيرَةِ، ثُمَّ قَالَ: ائْذَنُوا لَهُ، فَلَمَّا دَخَلَ أَلَانَ لَهُ الْقَوْلَ، فَقَالَتْ عَائِشَةُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَنْتَ لَهُ الْقَوْلَ وَقَدْ قُلْتَ لَهُ مَا قُلْتَ، قَالَ: إِنَّ شَرَّ النَّاسِ عِنْدَ اللَّهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَنْ وَدَعَهُ، أَوْ تَرَكَهُ النَّاسُ لِاتِّقَاءِ فُحْشِهِ".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه يو كس نبى كريم ﷺ ته راغى او د داخليدو اجازت ئې طلب كړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل: " ډير بد دې ابن العشيره " (يعنى په خاندان كښې د ټولو نه بدترين) يا ئې اوفرمائيل ډير بد دې رجل العشيره " بيا حضور ﷺ اوفرمائيل دهٔ ته اجازت وركړئ. كله چه هغه دننه راغى نو حضور ﷺ دَ هغه سره ډيرې په نرمۍ خبرې اترې اوكړې، سيده عائشه رضي الله عنها فرمائى چه ما ورته اووې: اې دَ الله رسوله! تاسو دهٔ سره ډير زياتې په نرمى خبرې اوكړې، حالانكه تاسو دهٔ متعلق داسې داسې فرمائيلې وو. حضور ﷺ اوفرمائيل دَ قيامت په ورځ باندې به دَ ټولو نه زيات بد هغه سړې وى چه هغه لره خلقو دَ دبد كلامۍ په وجه سره پريخودې وى."

**قوله:** ﴿فقال بِئْسَ ابْنُ الْعَشِيرَةِ أَوْ بِئْسَ رَجُلُ الْعَشِيرَةِ﴾ يعنى يو سړى د رسول الله ﷺ په دروازه باندې اجازت طلب كړو رسول الله ﷺ هغه د آواز نه اوپيژندلو نو وې فرمائيل چه دا دخپلې قبيلې بد سړې دې، خو كور ته د دننه راتلو اجازت رسول الله ﷺ هغه ته وركړو د هغه د دننه راتلو نه پس رسول الله ﷺ هغه سره نرمې خبرې اوفرمائيلې، بيا د هغه د تلو نه پس عائشې رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه تپوس اوكړو چه تاسو د دې خبرې باوجود هغه سره نرمې خبرې ولې اوكړې، نو وې فرمائيل چه د قيامت په ورځ باندې به د ټولو نه بد سړې هغه وى چه هغه لره خلق پريږدى د هغه د سختو خبرو او د بې هوده خبرو د وجې نه.

## (په ښكاره د فسق كونكى غيبت)

د دې حديث نه علماء كرامو دا مسئله مستنبط كړې ده چه كوم سړې فاسق او ملعون وى يعنى علانيه طور ګناه كوى د هغه د غيبت ګنجائش شته دا راتلونكې سړې څوك وو د هغه په باره كښې حافظ منذرى ليكلى دى چه دا عيينه بن الحصن الفزارى وو (كوم چه اول په مولفة القلوب كښې وو) وقيل هو مخرمة بن نوفل والد مسور بن مخرمة، والحديث اخرجه البخارى ومسلم والترمذى، قاله المنذرى.

١): صحيح البخاري/الأدب ٣٨ (٦٠٣٢)، ٤٨ (٦٠٥٤)، ٨٢ (٦١٣١)، صحيح مسلم/البر والصلة ٢٢ (٢٥٩١)، سنن الترمذي/البر والصلة ٥٩ (١٩٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٦٧٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨/٦) (صحيح)

[٤٧٩٢]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَائِشَةَ: "أَنَّ رَجُلًا اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِئْسَ أَخُو الْعَشِيرَةِ، فَلَمَّا دَخَلَ انْبَسَطَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَلَّمَهُ، فَلَمَّا خَرَجَ، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَمَّا اسْتَأْذَنَ؟ قُلْتَ: بِئْسَ أَخُو الْعَشِيرَةِ، فَلَمَّا دَخَلَ انْبَسَطْتَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: يَا عَائِشَةُ، إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَاحِشَ الْمُتَفَحِّشَ".

د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چه يو كس راغي او د نبي كريم ﷺ نه ئي د راتلو اجازت طلب كړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل : دَ خاندان دَ ټولو نه بدترين سړي دي -" بيا چه كله هغه حضور ﷺ ته راغي نو حضور ﷺ دَ هغه سره ډيري په نرمئ خبري اوكړې - كله چه هغه واپس لاړو نو ما عرض اوكړو اي دَ الله رسوله ! كله چه دهٔ اجازت طلب كړو نو تاسو اوفرمائيل : دَ خاندان ډير بدترين سړي دي -" كله چه راغي نو تاسو دَ هغه سره ډيري په نرمئ خبرې اترې اوكړې،نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل اي عائشه ! بي شكه الله تعالى دَ بدګو ،[ بدې كوونكې] په تكلف سره دَ بد ګوئى كوونكي سره محبت نهٔ كوي -"دَ امام ابوداود رحمه الله نه دَ نبي كريم ﷺ ددې فرمان [ بئس اخو العشير ] دَ معنىٰ متعلق پوښتنه اوكړې شوه نو هغوى اوفرمائيل چه دا دَ نبي كريم ﷺ خاصه ده -"

[٤٧٩٣]([2]) حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا أَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَائِشَةَ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَتْ: فَقَالَ، تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَا عَائِشَةُ، إِنَّ مِنْ شِرَارِ النَّاسِ الَّذِينَ يُكْرَمُونَ اتِّقَاءَ أَلْسِنَتِهِمْ.

سيده حضرت عائشه رضي الله عنها په مذكوره قصه كښې فرمائي چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل : اي عائشه ! بدترين دى هغه خلق چه دَ هغوى دَ ژبې دَ شر نه دَ بچ كيدو دپاره دَ هغوى عزت اوكړې شي -"

[٤٧٩٤]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو قَطَنٍ، أَخْبَرَنَا مُبَارَكٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: مَا رَأَيْتُ رَجُلًا الْتَقَمَ أُذُنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُنَحِّي رَأْسَهُ، حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ هُوَ الَّذِي يُنَحِّي رَأْسَهُ، وَمَا رَأَيْتُ رَجُلًا أَخَذَ بِيَدِهِ فَتَرَكَ يَدَهُ حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ هُوَ الَّذِي يَدَعُ يَدَهُ".

حضرت انس رضي الله عنه بيان كوي چه ما نهٔ دي ليدلي چه چا د نبي كريم ﷺ په غوږ كښې سرګوشي كول غوښتل او هغه ترې نه غوږ مبارك لرې كړې وى،تردې پورې چه هغه كس به خپله دَ حضور ﷺ نه خپل سر لرې كولو -او ما نهٔ دي ليدلي چه چا دَ نبي كريم ﷺ لاس مبارك نيولې وى او حضور ﷺ دَ هغه لاس پريخودې وى،تردې پورې چه هغه كس به خپله لاس پريخودو -"

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ رَجُلاً الْتَقَمَ أُذُنَ النبي –صلى الله عليه وسلم– فَيُنَحِّي رَأْسَهُ ..الخ ﴾

سيدنا انس رضي الله عنه فرمائي چه ما نه دي ليدلې يو سړې چا چه د رسول الله ﷺ غوږ ته خوله نزدې كړې وى، يعنى خپله خوله ئې د هغه غوږ ته نزدې كړې وى او هغوى سره ئې پټه خبره

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٧٥٥) (حسن صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٥٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١١/٦) (ضعيف الإسناد)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٣) (حسن)

کړې وی او رسول اللهﷺ خپل سر مبارک یعنی غوږ دهغه نه لرې کړی وی تر څو چه هغه سړی خپله خوله نه لرې کړې، وړاندې په حدیث کښې هم دغه شان د لاس د نیولو په باره کښې هم دی، چه که یو سړی به د رسول اللهﷺ لاس اونیولو یعنی دلاس کښې ئې ترې نه لاس اونیولو د یو کار یا خبرې دپاره نو رسول اللهﷺ به ترې نه خپل لاس نه راښکلو تردې چه هغه سړی به پریخودلو.

**قوله:** ﴿ قوله : إِنَّ اللَّهَ لاَ يُحِبُّ الْفَاحِشَ الْمُتَفَحِّشَ ﴾

فاحش هغه سړې دې چه فحش گوئی د هغه طبیعت جوړ شوې وی لهذا بغیر د تکلف نه د هغه نه فحش گوئی صادریږی، او متفحش هغه سړې چه فحش گوئی ئې عادت خو نه وی خو د څه وجې نه ئې په تکلف سره اختیار کړی.

# بَابٌ فِي الْحَيَاءِ

## باب: د حیا بیان

**د حیاء تعریف :**

د حیاء تعریف داسې کوی : هو خلق يبعث على ترك القبيح ويمنع من التقصير في حق ذوى الحق ...وروى عن السيد الجليل ابى القاسم الجنيد انه قال : الحياء روية الآلاء وروية التقصير فيتولد بينهما حالة تسمى الحياء (الحل المفهم عن النووی) یعنی حیاء د انسان د هغه خصلت نوم دې کوم چه هغه لره د ترک قبیح دپاره تیار کړی او خاوند د حق لره د حق د کوتاهۍ کولو نه منع کړی او جنید بغدادی دا فرمائی چه د الله پاک د طرف نه چه په بنده باندې کوم نعمتونه دی د هغې د تصور او د خپل طرف نه په عمل کښې د کوتاهۍ احساس او د دواړو د مجموعې نه چه کوم حالت پیدا کیږی د هغې نوم حیاء دې.

**د انسان غوره حالت :**

ما په یو کتاب کښې لوستلې وو چه د حسن بصریؒ په زمانه کښې یو ځوان هلک وو چه په هغه باندې د هغوی نظر پریوتلو هغه به همیشه خاموش په نظر راتلو چا سره په خبرو اترو باندې هغوی هغه هلک نه وو لیدلې یوه ورځ هغه ځوان روان وو حسن بصریؒ هغه راوغوښتلو او د هغه نه ئې د هغه حالت اوتپوسلو چه د دې وجه څۀ ده؟ هغه عرض اوکړو خبره دا ده چه زه دا سوچ کوم چه د الله پاک په مونږ باندې دومره انعامات دی او زمونږ عملی حالت څومره کمزورې دې، د دې احساس په وجه زما دا کیفیت وی، حسن بصریؒ د هغه په جواب اوریدلو باندې اوفرمائیل ښه زه لاړه شه ته د حسن بصری نه هم وړاندې تلې ئې.

[٤٧٩٥](١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "مَرَّ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعْهُ، فَإِنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الْإِيمَانِ".

(١): صحيح البخاري/الإيمان ١٦ (٢٤)، سنن النسائي/الإيمان ٢٧ (٥٠٣٦)، (تحفة الأشراف: ٦٩١٣) وقد أخرجه: صحيح مسلم/الإيمان ١٢ (٣٦)، سنن الترمذي/الإيمان ٧ (٢٦١٨)، سنن ابن ماجه/المقدمة ٩ (٥٨)، موطا امام مالك/حسن الخلق ٢(١٠)، مسند احمد (٢/٥٦، ١٤٧) (صحيح)

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي چه نبی کریم ﷺ په یو انصاری باندې تیر شو او هغه خپل رور ته د حیا په باره کښې وعظ کولو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " دهٔ لره پریږده - بې شکه حیا د ایمان حصه ده -"

**قوله:** ﴿مَرَّ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الأَنْصَارِ وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ الخ﴾ یو رسول الله ﷺ په یو انصاری صحابی باندې تیر شو چا چه خپل رور ته نصیحت کولو د حیاء په باره کښې، یعنی د کثرت حیاء په باره کښې ئې هغه پوهولو چه سړی لره زیات شرمیدل نه دی پکار بیا هغه د ډیرو فوائدو نه محرومه کیږی رسول الله ﷺ په اوریدو سره اوفرمائیل: دې پریږده چه شرمیږی ځکه حیاء خو د ایمان نه ده یعنی د هغې یو جزء دې.

[٤٧٩٦] (١) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، قَالَ: كُنَّا مَعَ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، وَثَمَّ بُشَيْرُ بْنُ كَعْبٍ، فَحَدَّثَ عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْحَيَاءُ خَيْرٌ كُلُّهُ، أَوْ قَالَ: الْحَيَاءُ كُلُّهُ خَيْرٌ"، فَقَالَ بُشَيْرُ بْنُ كَعْبٍ: إِنَّا نَجِدُ فِي بَعْضِ الْكُتُبِ أَنَّ مِنْهُ سَكِينَةً وَوَقَارًا، وَمِنْهُ ضَعْفًا، فَأَعَادَ عِمْرَانُ الْحَدِيثَ، وَأَعَادَ بُشَيْرٌ الْكَلَامَ، قَالَ: فَغَضِبَ عِمْرَانُ حَتَّى احْمَرَّتْ عَيْنَاهُ، وَقَالَ: أَلَا أُرَانِي أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَتُحَدِّثُنِي عَنْ كُتُبِكَ، قَالَ: قُلْنَا: يَا أَبَا نُجَيْدٍ إِيهٍ إِيهٍ.

حضرت ابو قتاده بیان کوی چه مونږ د حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه سره وو او هلته کښې بُشیر بن کعب هم وو حضرت عمران بن حصین حدیث بیان کړو، رسول الله ﷺ فرمائیلي دی: " حیا سراسر خیر دي -" بُشیر بن کعب اووې مونږ ته په څو کتابونو کښې ملاؤ شوې دی چه بعضې حیا د وقار او اطمینان په وجه سره وی - او بعضې حیا د کمزورئ او بزدلئ په وجه سره وی، نو حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه حدیث دوباره بیان کړو - او بیا بُشیر هم خپله خبره دوباره ذکر کړه - راوی بیان کوی چه حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه دومره په غصه کښې راغي چه د هغه سترګې سرې شوې اووې فرمائیل: زهٔ تاته د رسول الله ﷺ حدیث بیانوم او ته ماته د خپلو کتابونو نه بیانوې - مونږ اووې: اې ابو نجید! بس کړه - بس کړه، (دهٔ دپاره دومره تنبیه کافی ده)

**قوله:** ﴿فَقَالَ بُشَيْرُ بْنُ كَعْبٍ إِنَّا نَجِدُ فِي بَعْضِ الْكُتُبِ أَنَّ مِنْهُ سَكِينَةً وَوَقَارًا وَمِنْهُ ضَعْفًا الخ﴾ یعنی یو ځل عمران بن حصین رضی الله عنه د رسول الله ﷺ دا حدیث نقل کړو ﴿الْحَيَاءُ خَيْرٌ كُلُّهُ﴾ چه حیاء خو ټول خیر دې نو په دې باندې بشیر بن کعب اووې چه مونږ په بعض کتابونو کښې داسې لیکلي مومو چه بعض قسمونه د حیاء سکینه او وقار وی او بعض قسمونه د هغې د ضعف د قبیلې نه وی. (لهذا دا چه دویم قسم دې دا خیر نه دې) په دې باندې عمران رضی الله عنه د رسول الله ﷺ دا حدیث دوباره واورولو او بشیر دوباره خپله خبره اوکړه، په دې باندې عمران بن حصین رضی الله عنه خفه شو تردې چه د هغوی سترګې سرې شوې او وې فرمائیل چه زه خپل ځان ته ګورم چه زه خو تاسو ته د رسول الله ﷺ حدیث بیانوم کوم چه زمونږ دپاره واجب الاتباع دې او تاسو مونږ ته د خپلو کتابونو خبرې نقل کوئ او د مسلم د روایت الفاظ دا دی:

(١): صحيح مسلم/الإيمان ١٢ (٣٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٧٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ٧٧ (٦١١٧)، مسند احمد (٤/٤٢٧) (صحيح)

**قوله:** ﴿ فَقَالَ بُشَيْرُ بْنُ كَعْبٍ إِنَّهُ مَكْتُوبٌ فِي الْحِكْمَةِ أَنَّ مِنْهُ وَقَارًا وَمِنْهُ سَكِينَةً. فَقَالَ عِمْرَانُ أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَتُحَدِّثُنِي عَنْ صُحُفِكَ ﴾

د دې نه پس په روايت کښې دی : ﴿ قَالَ قُلْنَا يَا أَبَا نُجَيْدٍ إِيهٍ إِيهٍ ﴾ دا آخرى لفظ دوه کرته لوستلې شوې دې ﴿ ايهٍ ايهٍ ﴾ يعنى د حاء په کسره سره د تنوين نه، او ﴿ ايه ايه ﴾ په سکون د هاء سره، اول کلمه استزاده ده يعنى نور اوفرمايئ اوفرمايئ، او دويم د زجر دپاره ده يعنى حسبک، يعنى بس کړئ بس کړئ ډير مه خفه کيږئ.

[٤٧٩٧]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْأُولَى: إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ، فَافْعَلْ مَا شِئْتَ".

دَ حضرت ابو مسعود رضي الله عنه نه روايت دې هغوی فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دی : "دَ تير شوی پيغمبرانو عليهم السلام دَ تعليماتو نه چه کومه خبره دَ خلقو سره باقی پاتې شوې ده هغه دا خبره ده چه کله ستا نه حيا لاړه شی نو بيا چه دې څه خوښه شی هغه کوه ." دَ امام ابوداود رحمه الله نه تپوس اوکړې شو چه دَ قعنبی سره دَ شعبه په واسطې سره ددې حديث نه علاوه بل کوم حديث هم شته دې؟ هغوی اوفرمائيل نۀ.

**قوله:** ﴿ إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الأُولَى إِذَا لَمْ تَسْتَحِ فَافْعَلْ مَا شِئْتَ ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه بيشک د ايمان هغه خصلت کوم چه خلقو د مخکښې انبياء کرامو عليهم السلام نه حاصلولو (هغه د حياء په باره کښې دې) چه کله په تا کښې حياء پاتې نه شی نو کوه هر څه چه کوې، ځکه چه د بدو کارونو نه حياء مانع وی، نو چه کله هغه پاتې نه شی نو انسان هر قسم کار کولې شی.

د دې حديث نه معلومه چه حياء داسې خصلت حسنه ده کوم چه د تيرو انبياء عليهم السلام په تعليم هم موندلې شی او په هيڅ يو شريعت کښې هم دا منسوخ نه شو، او يو مطلب د دې حديث دا هم بيان کړې شوې دې چه انسان چه د کوم کار د کولو اراده اوکړی نو هغې لره د کولو نه مخکښې پکار دی چه دا سوچ اوکړی چه د دې کار نه روستو به شرمنده کيږی خو نه، که طبيعت فيصله اوکړی چه نه به شرمنده کيږی نو هغه دې اوکړی او که په ذهن کښې ئې دا راشی چه د دې د کولو نه پس به شرمنده کيږی نو نه دې کوی.

..........

(): صحيح البخاري/أحاديث الأنبياء ٥٤ (٣٤٨٣)، الأدب ٧٨ (٦١٢٠)، سنن ابن ماجه/الزهد ١٧ (٤١٨٣)، (تحفة الأشراف: ٩٩٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢١/٤، ١٢٢، ٢٧٣/٥) (صحيح)

# بَاب فِي حُسْنِ الْخُلُقِ (¹)

## باب: دَ ښهٔ اخلاقو بیان

[۴۷۹۸](²) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي الْإِسْكَنْدَرَانِيَّ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ الْمُطَّلِبِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ الصَّائِمِ الْقَائِمِ".

د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي هغه فرمائيل : بې شکه مؤمن دَ ښهٔ اخلاقو په بناء باندې دَ روژه دار او دَ شوګيره کوونکی درجه حاصله وی -"

[۴۷۹۹](³) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَحَفْصُ بْنُ عُمَرَ، قَالَا: حَدَّثَنَا ح حَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ أَبِي بَزَّةَ، عَنْ عَطَاءٍ الْكَيْخَارَانِيِّ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَا مِنْ شَيْءٍ أَثْقَلُ فِي الْمِيزَانِ مِنْ حُسْنِ الْخُلُقِ"، قَالَ أَبُو الْوَلِيدِ، قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءً الْكَيْخَارَانِيَّ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ عَطَاءُ بْنُ يَعْقُوبَ، وَهُوَ خَالُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ نَافِعٍ، يُقَالُ: كَيْخَارَانِيٌّ وَكَوْخَارَانِيٌّ.

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه نه روايت دي چه نبي كريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل :" په ميزان (تله) كښې د حسن خلق نه زيات بل كوم څيز زيات وزن دار نهٔ دې -"ابو الوليد طيالسي وائي (دَ قاسم بن ابي بزه په سند كښې تصريح ده چه) ما دَ عطاء كيخاراني نه اوريدلي دی - امام ابو داود رحمه الله فرمائی چه دا عطاء بن يعقوب دې او دَ ابراهيم بن نافع ماما دې - ددهٔ په نسبت

---

(¹) د اخلاق حسنه او اوصاف مرضيه مصداق:(وفي حاشية البذل عن الراغب : الخَلْقُ والخُلْقُ في الأصل واحد، كالشَّرب والشُّرب، لكن خص الخلق الذي بالفتح بالهيئات والصور المدركة بالبصر وخص الخلق الذي بالضم بالقوي والسجايا المدركة بالبصيرة انتهي وقد كان النبي صلي الله عليه و سلم يقول اللهم كما حسنت خلقي فحسن خلقي أخرجه أحمد وفي حديث علي الطويل في دعاء الافتتاح عند مسلم واهدني لأحسن الأخلاق لا يهدي لأحسنها إلا أنت وقال القرطبي في المفهم الاخلاق اوصاف الانسان التي يعامل بها غيره وهي محمودة ومذمومة، فالمحمودة علي الاجمال ان تكونه مع غيرك علي نفسك فتنصف منها ولا تنصف لها وعلي التفصيل العفو والحلم والجود والصبر وتحمل الاذي والرحمة والشفقة وقضاء الحوائج والتوادد ولين الجانب ونحو ذلك، والمذموم منها ضد ذلك اهـ بزيادة من الفتح، دويمه خبره په حاشيه د بذل كښې داده : ويشكل علي الحديث بانه كيف يمكن تحسين الاخلاق وقد قال عليه السلام (جامع الصغير ۶۹/۱ برواية احمد في مسنده عن ابي الدرداء) اذا سمعتم بجبل زال عن مكانه فصدقوه واذا سمعتم برجل تغير عن خلقه فلا تصدقون واجاب عنه القاري ۱۶۲/۱ بان المراد في الحديث التبديل بالكلية، والمراد في احاديث التحسين الازالة الوصفي يعني القدرة علي العمل بها كما ينبغي فالغضب مثلا زواله بالكلية ممنوع لكنه يغضب لله لا لغيره هذا خلق حسن اهـ ويه قرر في مكاتيب مرزا مهر جان جانان ص ۱۰۱ وايده بقول عمر رضي الله عنه لم يزل عني لغضب لكنه كان اولا في حماية الكفر والآن في حماية الاسلام، وذكر القاري في شرح الشمائل ۱۸۶/۲ الاختلاف في انها طبيعية او مكتسبة ورجح ان بعضها كذا وبعضها كذا.

**انصاف من النفس لا للنفس** : قلت ان تكون مع غير علي نفسك الخ ..يعنى كله چه ستا د بل سره معامله راشی نو ته خپل نفس لاندې کړه، او د خپل نفس نه انصاف طلب کړه د بل دپاره او د خپل نفس دپاره د بل نه انصاف مه طلب کوه مثلا ستا د خپل ملګری یا د يو پردی سړی سره څه ناخوښه واقعه پېښه شوه چه په هغې کښې په ظاهر کښې د بل قصور ښکاری خو تاله پکار دی چه ښه په سوچ سره اوګوره چه آیا واقعی په دې کښې يو اړخ د خپلې کمزورۍ هم شته، دا دې انصاف من النفس او انصاف للنفس د دې مقابل دې، دا کتل چه دې بل انسان په ما باندې څه زياتې اوکړو.والله تعالي اعلم)

(²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۶۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۴/۶، ۹۰، ۱۳۳، ۱۸۷) (صحيح)

(³): سنن الترمذي/البر والصلة ۶۲ (۲۰۰۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۹۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۴۶/۶، ۴۴۸) (صحيح)

کښې "کیخارانی، او کوخارانی" دواړه قسمه بیانولې شي.

د خلق تعریف د کتاب الادب په شروع کښې تیر شو هغه د دې باب په اول او د دویم په شروع کښې هم په روایت د ترمذی تیر شوې دې او د دې باب دریم حدیث دا دې.

[٤٨٠٠]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُثْمَانَ الدِّمَشْقِيُّ أَبُو الْجَمَاهِرِ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو كَعْبٍ أَيُّوبُ بْنُ مُحَمَّدٍ السَّعْدِيُّ، حَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ حَبِيبٍ الْمُحَارِبِيُّ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَا زَعِيمٌ بِبَيْتٍ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْمِرَاءَ، وَإِنْ كَانَ مُحِقًّا، وَبِبَيْتٍ فِي وَسَطِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ، وَإِنْ كَانَ مَازِحًا، وَبِبَيْتٍ فِي أَعْلَى الْجَنَّةِ لِمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهُ".

سیدنا ابو امامه رضی الله عنه بیان کوی، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: زهٔ د یو محل ذمه دار یم د جنت په یو جانب کښې، دَ هغه کس دپاره چه هغه جګړا پریږدی، اګر چه دې په حقه باندې وی. او دَ یو محل، دَ جنت په درمیان کښې دَ هغه کس دپاره چه هغه دروغ پریږدی، اګر که په مزاح کښې ولې نهٔ وی، او دَ جنت په اعلیٰ منزلونو کښې دَ یو محل (ذمه دار یم) دَ هغه کس دپاره چه هغه خپل اخلاق عمده کړی."

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « أَنَا زَعِيمٌ بِبَيْتٍ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْمِرَاءَ وَإِنْ كَانَ مُحِقًّا وَبِبَيْتٍ فِي وَسَطِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ وَإِنْ كَانَ مَازِحًا وَبِبَيْتٍ فِي أَعْلَى الْجَنَّةِ لِمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهُ »﴾

د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه زه ذمه داری اخلم د جنت په طرفونو کښې د یو محل د هغه سړی دپاره کوم چه جنګ کول پریږدی یعنی د هغې نه ځان ساتی اګر چه په حق باندې ولې نه وی، او ذمه داری اخلم د جنت په مینځ کښې د یو محل د هغه سړی دپاره کوم چه د دروغو عادت پریږدی اګر چه په ټوقو کښې وی، او هم دغه شان ئې اوفرمائیل چه کوم انسان خپل اخلاق برابر کړی زه د هغه دپاره ذمه داری اخلم د جنت دَ محل په اعلی مقام کښې، او ترمذی کښې په روایت د انس رضی الله عنه مرفوعا داسې دی: من ترک الکذب وهو باطل بنی له فی ربض الجنة، ومن ترک المراء وهو محق بنی له فی وسطها .....په دې کښې په ترک کذب باندې مرتب کړې شوې دې ربض الجنة لره او ترک مراء باندې په بیت فی وسط الجنة، او بله دا چه په دې کښې د کذب نه پس دی وهو باطل دا یا خو صفت کاشفه دې کوم چه د تنفیر دپاره ذکر کړې شوې دې په دې صورت کښې به داجمله معترضه وی، او یا به دا جمله حالیه منلې شی وهو باطل یعنی په داسې حال کښې چه هغه کذب باطل وی یعنی بغیر د مصلحت نه، ځکه چه بعض کذب باطل نه وی نو کوم چه په څه خاص مصلحت باندې مبنی وی مثلاً اصلاح ذات البین یا په حرب کښې، امام غزالی رحمه الله فرمائی چه د مراء نه مراد یا خو دا مراد دې چه د بل په خبره باندې اعتراض کول په هغې کښې څه نقص او خلل ظاهروار سره د الفاظو په اعتبار سره یا د معنی په اعتبار سره یا د قصد متکلم په اعتبار سره، او د ترک مراء حقیقت دې ترک الاعتراض والانکار، د دې نه پس فرمائی چه کومه خبره تاسو واورئ

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٨٧٦) (حسن).

پس که هغه حق وی نو د هغې تصدیق کوئ، او که هغه باطله وی خو د امور دین سره ئې څه تعلق نه وی نو هلته تاسو له پکار دی چه د هغې نه دې سکوت اوکړې. (تحفة الاخوذی ۹۹/۶)

[۴۸۰۱]() حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ، وَعُثْمَانُ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ، وَلَا الْجَعْظَرِيُّ"، قَالَ: وَالْجَوَّاظُ: الْغَلِيظُ الْفَظُّ.

د حضرت حارثه بن وهب رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " ترش رو او بد مزاجه به جنت ته نۀ داخلیږی، او نۀ په تکبر سره تللو والا -" دَ جواظ معنیٰ ده سخت مزاجه، بد اخلاقه -

**قوله:** ﴿« لاَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ وَلاَ الْجَعْظَرِيُّ ».قَالَ وَالْجَوَّاظُ الْغَلِيظُ الْفَظُّ ﴾

جنت ته به نه داخلیږی جواظ چه د هغې تفسیر خپله په کتاب کښې دې سخت مزاج او بد مزاج، او بعض دا معنی د جعظری لیکلې ده او د جواظ معنیٰ ئې لیکلې ده مختال یعنی متکبر، او بعضو وئیلي دی بخیل. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم بنحوه اتم منه، قاله المنذری.

## باب فِي كَرَاهِيَةِ الرِّفْعَةِ فِي الْأُمُورِ

### باب ۸- په امورو کښې دَ رفعت او برترئ دَ اظهار ممانعت

یعنی تکبر او غرور (خود پسندی)

[۴۸۰۲]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَتِ الْعَضْبَاءُ لَا تُسْبَقُ، فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلَى قَعُودٍ لَهُ، فَسَابَقَهَا فَسَبَقَهَا الْأَعْرَابِيُّ، فَكَأَنَّ ذَلِكَ شَقَّ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: حَقٌّ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ لَا يَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وَضَعَهُ".

حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه د رسول الله ﷺ (اوښه) عضباء به د ټولو نه وړاندې وه څوک به هم ددې نه وړاندې کیدو نه، یو بانډیچی په خپل یو ځوان اوښ باندې راغې او ددې اوښې سره ئې په مقابله کړو او دَ هغې نه وړاندې لاړو - دا په اصحاب رسول ﷺ باندې ګران تیر شو، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل :" په الله پاک باندې دا حق دې چه څوک هم په دُنیا کښې اوچت اوسی هغوی لره الله تعالیٰ خکته کوی -"

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَتِ الْعَضْبَاءُ لاَ تُسْبَقُ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلَى قَعُودٍ لَهُ فَسَابَقَهَا فَسَبَقَهَا الأَعْرَابِيُّ الخ ﴾ د رسول الله ﷺ اوښه کومه چه مشهوره ده په عضباء باندې هغه به د چا نه روستو نه پاتې کیدله بلکه د ټولو اوښانو نه به مخکښې وتله، د مدینې یو اعرابی راغلو په خپله یو معمولی اوښه باندې کیناستلو سره، هغه اعرابی د عضباء سره مسابقه اوکړه، په مسابقه کښې د دې اعرابی اوښه مخکښې شوه، حال دا چه د رسول الله ﷺ اوښه ډیره تیزه او سابقة الحاج وه (لکه چه په باب النذر فيما لا يملك د دې باب په حدیث کښې تیر شوې دی) دا خبره

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٢٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠٦/٤) (صحيح)

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ٥٩ (٢٨٧٢ تعليقًا)، سنن النسائي/الخيل ١٥ (٣٦٢٢)، مسند احمد (٢٥٣/٣) (صحيح)

په صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې بده اولګيده نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ حَقٌّ عَلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ لاَ يَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا إِلاَّ وَضَعَهُ ﴾ چه عادة الله هم داسې جاري دې چه د کوم څيز درجه اوچتوی هغه کله نه کله ښکته هم ښکاره کوی.

دې حديث ته په رارسيدو باندې ماته خپله واقعه رايادېږی چه يو ځل زما د طالب علمئ په زمانه کښې داسې اوشوه چه زه د يو کتاب په امتحان کښې فيل شوم نو د دې ډير شهرت اوشو ځکه چه زما به هميشه اعلی نمبرې راتلې تر دې چه خبره حضرت شيخ ته اورسيدله، احقر د څۀ کار دپاره د حضرت شيخ په خدمت کښ پورته دار التصنيف ته لاړو د هم هغه ورځو خبره ده نو حضرت شيخ ډير په انبساط سره په مسکی کيدو باندې ماته دا حديث واورولو، د دې نه ماته پته اولګيده چه دا خبره حضرت ته هم راورسيده، وې فرمائيل ګوره ! زړه مه خفه کوه د الله پاک عادت شريفه دې لکه چه څنګه په حديث پاک کښې راځی چه کوم څيز پورته شی نو کله کله هغه په دې څيز کښې ښکته هم ښائی. والحديث اخرجه البخاری تعليقاً، قاله المنذری.

[۴۸۰۳] (¹) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ لَا يَرْتَفِعَ شَيْءٌ مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وَضَعَهُ.

د حضرت انس رضی الله عنه نه دا قصه مروی ده په دې کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" بې شکه په الله باندې دا حق دی چه په دُنيا کښې کوم څيز هم سر اوچتوی نو الله هغې لره پست او خکته کوی-"

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ التَّمَادُحِ

### باب ۹- د يو بل د مدحې کولو د کراهيت بيان

يعنی د مبالغه فی المدح ناخوښه کيدل.

[۴۸۰۴] (²) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ فَأَثْنَى عَلَى عُثْمَانَ فِي وَجْهِهِ، فَأَخَذَ الْمِقْدَادُ بْنُ الْأَسْوَدِ تُرَابًا، فَحَثَا فِي وَجْهِهِ، وَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا لَقِيتُمُ الْمَدَّاحِينَ، فَاحْثُوا فِي وُجُوهِهِمُ التُّرَابَ".

حضرت همام بن حارث فرمائی چه يو کس راغې او هغه د حضرت عثمان رضی الله عنه په وړاندې د هغه تعريف شروع کړو، نو حضرت مقداد بن اسود رضی الله عنه خاوره اوچته کړه او د هغه په خله باندې ئې ورواچوله اووې فرمائيل چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دی :" کله چه تاسو د داسې خلقو سره ملاؤ شئ چه هغوی مدحه کوونکی او خوشامندې کوونکی وی نو د هغوی په خلهٔ کښې خاوره واچوئ-"

**قوله:** ﴿ جَاءَ رَجُلٌ فَأَثْنَى عَلَى عُثْمَانَ فِي وَجْهِهِ فَأَخَذَ الْمِقْدَادُ بْنُ الْأَسْوَدِ تُرَابًا فَحَثَا فِي وَجْهِهِ الخ ﴾

¹): صحيح البخاري/الجهاد ٥٩ (٢٨٧٢)، (تحفة الأشراف: ٦٦٣) (صحيح)

²): صحيح مسلم/الزهد ١٤ (٣٠٠٢)، (تحفة الأشراف: ١١٥٤٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الزهد ٥٤ (٢٣٩٣)، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٦ (٣٧٤٢)، مسند احمد (٥/٦) (صحيح)

یو سړي د عثمان رضی الله عنه په خدمت کښي حاضر شو نو هغه د مخامخ د هغوی تعریفونه شروع کړل نو سیدنا مقداد رضی الله عنه کوم چه هلته موجود وو یو موټي خاورې واخستلې او د هغه په مخ باندې ور ویشتلې چه د رسول الله ﷺ ارشاد دی: إِذَا لَقِيتُمُ الْمَدَّاحِينَ فَاحْثُوا فِي وُجُوهِهِمُ التُّرَابَ.

## (د مداحین نه څوک مراد دي؟)

امام خطابی رحمه الله فرمائي چه د مداحین نه مراد هغه خلق دي کوم چه د خلقو مدح د ګټې وټې ذریعه جوړوي، او که څوک د چا په یو ښه کار باندې د چا تعریف اوکړي او د هغه همت اوچت کړي او د نورو د تحریص او ترغیب دپاره نو دا سړي به په هغه مداحین کښي داخل نه وي، هغه فرمائي چه مقداد دا حدیث په ظاهر باندې محمول کړې دې او داسې ئې کړي دي، او وئیلې شوې دي چه په مخ باندې د خاورو ویشتلو نه مراد هغه د ورکړې نه محروم کول دي د کوم مقصد دپاره چه هغه تعریف کوي وللعاهر الحجر.

والحديث اخرجه مسلم والترمذي وابن ماجه، قاله المنذري

[۴۸۰۵] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا أَبُو شِهَابٍ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ رَجُلًا أَثْنَى عَلَى رَجُلٍ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ قَالَ: إِذَا مَدَحَ أَحَدُكُمْ صَاحِبَهُ لَا مَحَالَةَ، فَلْيَقُلْ: إِنِّي أَحْسِبُهُ كَمَا يُرِيدُ أَنْ يَقُولَ، وَلَا أُزَكِّيهِ عَلَى اللَّهِ".

حضرت عبد الرحمن بن ابو بکره د خپل پلار نه روایت کوي چه یو کس د نبي کریم ﷺ په موجودګئ کښي د بل کس مدحه اوکړه نو حضور ﷺ ورته اوفرمائیل: تا د خپل ملګری مرئ کټ کړه." حضور ﷺ دا درې ځله اوفرمائیل- بیا ئي اوفرمائیل که چرې څوک د چا ملګری تعریف کول غواړي نو هغه لره پکار دي چه داسي اووائی: زۀ دۀ لره داسې ګنړم ...... چه دې داسې داسې دې ...... او د الله تعالیٰ د علم په مقابله کښي،زۀ دده صفائی نه کووم."

**قوله**: ﴿أَنَّ رَجُلاً أَثْنَى عَلَى رَجُلٍ عِنْدَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ لَهُ « قَطَعْتَ عُنُقَ صَاحِبِكَ﴾

یو سړي د بل سړي تعریف اوکړو د رسول الله ﷺ په مجلس کښي نو رسول الله ﷺ هغه مادح ته اوفرمائیل چه تا د خپل ملګری یعني ممدوح سټ مات کړو، او دا خبره هغوی درې کرته اوکړه.

د سټ ماتولو نه مراد دیني نقصان رسول دی ځکه چه په دې مدح کولو کښي احتمال دې چه دا سبب جوړ شي د ممدوح د اعجاب بنفسه یعني خود پسندی به پکښي پیدا شي کوم چه سراسر دیني نقصان دې او په دې باندې بیا دنیوی مضرت هم مرتب کیدې شي ځکه چه د اعجاب نه پس به هغه د خپلې ترقئ نه منع شي، او بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې د چا تعریف کوي نو داسې دې اووائي چه زما په نزد هغه داسې دې، او حتمي فیصله دې د چا په باره کښي نه کوي چه د هغې نه دا فهم کړې شي چه هغه واقعي داسې دې د الله پاک په نزد هم. والحديث اخرجه البخاري ومسلم وابن ماجه، قاله المنذري.

(۱): صحيح البخاري/الأدب ٩٥ (٦١٦٢)، صحيح مسلم/الزهد ١٤ (٣٠٠٠)، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٦ (٣٧٤٤)، (تحفة الأشراف: ١١٦٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١/٥، ٤٥، ٤٦، ٤٧، ٥٠) (صحيح)

[٤٨٠٦]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا أَبُو مَسْلَمَةَ سَعِيدُ بْنُ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ مُطَرِّفٍ، قَالَ: قَالَ أَبِي: "انْطَلَقْتُ فِي وَفْدِ بَنِي عَامِرٍ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْنَا: أَنْتَ سَيِّدُنَا، فَقَالَ: السَّيِّدُ اللَّهُ، قُلْنَا: وَأَفْضَلُنَا فَضْلًا وَأَعْظَمُنَا طَوْلًا، فَقَالَ: قُولُوا بِقَوْلِكُمْ أَوْ بَعْضِ قَوْلِكُمْ، وَلَا يَسْتَجْرِيَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ".

حضرت مطرف بیان کوی چه زما پلار (عبد الله بن شخیر ﷺ) فرمائیلي دی چه زهٔ د بنو عامر د وفد سره د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم - نو مونږ اووې تاسو زمونږ سید (سردار) یئ - حضور ﷺ اوفرمائیل: " سید (او حقیقی سردار) الله تعالیٰ وتبارک دې -" مونږ اووې تاسو زمونږ صاحب فضل او فضیلت، او صاحب جود او سخا یئ- نو حضور ﷺ اوفرمائیل تاسو خوداسې خبرې کوئ مگر چرته کښې شیطان تاسو لره خپل وکیل جوړ نهٔ کړی- (او چرته کښې داسې خبره اونهٔ کړئ چه هغه زما د شان سره مناسب نهٔ وی-)

**قوله:** ﴿ فَقُلْنَا أَنْتَ سَيِّدُنَا. فَقَالَ « السَّيِّدُ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى ». قُلْنَا وَأَفْضَلُنَا فَضْلاً وَأَعْظَمُنَا طَوْلاً. فَقَالَ « قُولُوا بِقَوْلِكُمْ أَوْ بَعْضِ قَوْلِكُمْ وَلاَ يَسْتَجْرِيَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ » ﴾

مطرف بن عبدالله بن الشخير فرمائی چه زما والد یو ځل په وفد د بنو عامر کښې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، مونږ د هغوی په حق کښې دا تعظیمی الفاظ عرض کړل : انت سیدنا وغیره ...کوم چه وړاندې په روایت کښې ذکر دی نو رسول الله ﷺ د دې په جواب کښې اوفرمائیل : السید، الله ...چه اصل سیادت خو د الله پاک دپاره دې، او دا ئې هم اوفرمائیل چه دا ټولې خبرې مه کوئ یعنی په بیان مناقب کښې مبالغه مه کوئ چه شیطان تاسو زړور نه کړی، یعنی د مخلوق په تعظیم کښې داسې تعظیم کوم چه ناجائز حد ته رسیدونکې وی.

د حضرت گنگوهی په تقریرکښې دی چه د رسول الله ﷺ دا منع کول هضما لنفسه النفیسة وو یعنی تواضعا او سهارنپوری صاحب فرمائی: او دا هم ممکنه ده چه دا د هغه وخت واقعه وی چه هغوی ته دا وحی نه وه کړې شوې چه هغوی سید ولد ادم دی.

والحدیث اخرجه النسائی، قاله المنذری.

## باب فِي الرِّفْقِ

### باب ـ ١٠ - د نرم خویی بیان

[٤٨٠٧]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ يُونُسَ، وَحُمَيْدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِنَّ اللَّهَ رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ، وَيُعْطِي عَلَيْهِ مَا لَا يُعْطِي عَلَى الْعُنْفِ".

د حضرت عبد الله بن مغفل ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " الله تعالیٰ په رفق او نرمئ سره موصوف دې، هغه ته نرمی او نرم خویی خوښ دې - او په دې باندې هغه څهٔ ورکوی چه هغه په ترش رویئ (او سخت مزاجئ) باندې نهٔ ورکوی -"

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٣٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤/٤، ٢٥) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٦٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٨٧/٤) (صحيح)

[٤٨٠٨] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ، وَأَبُو بَكْرٍ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، قَالُوا: حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنِ الْبَدَاوَةِ، فَقَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْدُو إِلَى هَذِهِ التِّلَاعِ، وَإِنَّهُ أَرَادَ الْبَدَاوَةَ مَرَّةً، فَأَرْسَلَ إِلَيَّ نَاقَةً مُحَرَّمَةً مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ، فَقَالَ لِي: يَا عَائِشَةُ، ارْفُقِي، فَإِنَّ الرِّفْقَ لَمْ يَكُنْ فِي شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا زَانَهُ، وَلَا نُزِعَ مِنْ شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا شَانَهُ". قَالَ ابْنُ الصَّبَّاحِ فِي حَدِيثِهِ: مُحَرَّمَةٌ يَعْنِي: لَمْ تُرْكَبْ.

حضرت مقداد بن شريح د خپل پلار نه روايت کوی، هغوی فرمائی چه ما د حضرت عائشي رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه ځنګل ته تلل څنګه دی؟ نو هغې اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ به دې ټيلو (او ځنګلو) طرف ته تللو - هغه يو ځل اراده اوکړه چه ځنګل ته لاړ شی نو هغه د صدقې د اوښانو نه ماته يوه اوښه راوليږله چه په هغې باندې لا سورلی نۀ وه شوې - حضور ﷺ اوفرمائيل : عائشه ! نرمی اختيار کړه بې شکه نرمی چه په کوم څيز کښې هم وی نو هغې لره مزين او خائسته کوی او د کوم څيز نه چه اويستلې شی نو هغې لره بد صورته کوی ." ابن صباح په خپل حديث کښې واضح کړې دی چه د [ محرمه ] نه مراد داسې اوښه ده چه په هغې باندې باقاعده سورلی نۀ وی شوې -

**قوله:** ﴿سالت عن البداوة الخ﴾ دا حديث د کتاب الجهاد په شروع کښې تير شوې دې.

[٤٨٠٩] (²) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، وَوَكِيعٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ يُحْرَمِ الرِّفْقَ، يُحْرَمِ الْخَيْرَ كُلَّهُ".

د حضرت جرير بن عبد الله رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" کوم کس چه د نرم خويی نه محروم شو هغه د خير نه محروم پاتې شو -"

[٤٨١٠] (³) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ الْأَعْمَشُ، عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحَارِثِ، قَالَ الْأَعْمَشُ: وَقَدْ سَمِعْتُهُمْ يَذْكُرُونَ، عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ الْأَعْمَشُ: وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: التُّؤَدَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ إِلَّا فِي عَمَلِ الْآخِرَةِ".

حضرت مصعب د خپل پلار (حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه) نه روايت کوی - اعمش وائی او ماته هم داسې معلومه ده چه هغوی د نبی کريم ﷺ نه روايت کړې دې، حضور ﷺ اوفرمائيل :په څه کار کښې جلدبازی (تيزی) کول نۀ دی پکار سوا ددې نه چه د آخرت کار وی.

**قوله:** ﴿ التؤدة فی کل شئ الا فی عمل الاخرة ﴾ يعنی ترک تعجيل په هر عمل کښې غوره دې سوا د عمل آخرت نه چه په هغې کښې تعجيل پکار دې.

..........

(¹): انظر حديث رقم : (٢٤٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٦١٥٠) (صحيح)

(²): صحيح مسلم/البر والصلة ٢٣ (٢٥٩٢)، سنن ابن ماجه/الأدب ٩ (٣٦٨٧)، (تحفة الأشراف: ٣٢١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٢/٤، ٣٦٦) (صحيح)

(³): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٩٤١) (صحيح)

# بَابٌ فِي شُكْرِ الْمَعْرُوفِ

## باب: ۱۱ - په احسان او کار خیر باندې دَ شکر ادا کولو بیان

[٤٨١١](1) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: لَا يَشْكُرُ اللَّهَ مَنْ لَا يَشْكُرُ النَّاسَ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: " کوم کس چه د خلقو شکریه نهٔ ادا کوی نو دې دَ الله تعالیٰ هم شکر گزار نهٔ وی."

**قوله:** ﴿ لاَ يَشْكُرُ اللَّهَ مَنْ لاَ يَشْكُرُ النَّاسَ ﴾ یعنی کوم سړې چه د خلقو شکر گزار نه وی، یعنی د کوم سړی عادت چه د خلقو د شکر ادا کولو نه وی نو د هغه عادت د الله پاک د شکر ادا کولو په باره کښې هم دغه شان وی، او یا مطلب دا دې چه کوم انسان د خلقو شکر نه ادا کوی نو الله پاک د داسې انسان شکر نه قبلوی، او یا مطلب دا دې چه کوم انسان د خلقو شکر نه ادا کوی نو د الله پاک هم کامل شکر گزار نه شی کیدې، گویا د شکر کمال دا دې چه منعم حقیقی یعنی د الله پاک سره د هغه انسان شکر هم ادا کوئ کوم چه په ظاهر کښې سبب د نعمت جوړ شوې دې.

پس د حضرت عادت شریفه وو چه کله به ئې چاته د شکریه خط لیکلو نو په هغې کښې به داسې وو چه الله پاک دې معطی او وسائط ته د دې غوره جزاء خیر ورکړی. والحديث اخرجه الترمذي، قاله المنذري.

[٤٨١٢](2) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ الْمُهَاجِرِينَ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، ذَهَبَتِ الْأَنْصَارُ بِالْأَجْرِ كُلِّهِ، قَالَ: لَا، مَا دَعَوْتُمُ اللَّهَ لَهُمْ وَأَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِمْ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه مهاجرینو اووئیل اې د الله رسوله! تمام اجر خو انصارو یوړو - حضور ﷺ اوفرمائیل نهٔ - ترڅو پورې چه تاسو دَ الله تعالیٰ نه دَ هغوی دپاره دعاګانې کوئ او دَ هغوی سره دَ احسان مندئ اظهار کوئ -" [ نو په دې شان به دَ هغوي دَ اجر سره تاسو ته هم اجر ملاویږی).

[٤٨١٣](3) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ، أخبرنا عُمَارَةُ بْنُ غَزِيَّةَ، حَدَّثَنِي رَجُلٌ مِنْ قَوْمِي، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أُعْطِيَ عَطَاءً فَوَجَدَ فَلْيَجْزِ بِهِ، فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُثْنِ بِهِ، فَمَنْ أَثْنَى بِهِ فَقَدْ شَكَرَهُ وَمَنْ كَتَمَهُ فَقَدْ كَفَرَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ شُرَحْبِيلَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ شُرَحْبِيلُ، يَعْنِي رَجُلًا مِنْ قَوْمِي، كَأَنَّهُمْ كَرِهُوهُ فَلَمْ يُسَمُّوهُ.

حضرت عماره بن غزیه بیان کړې دې چه زما په قوم کښې یو سړی د حضرت جابر رضی الله عنه بن عبد الله رضی الله عنه نه روایت کړې دې، هغوی فرمائیلې دی: چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چاته

---

(1): سنن الترمذي/البر والصلة ٣٥ (١٩٥٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٩٥، ٤٦١، ٣٠٣، ٥/٢١١، ٢١٢) (صحيح)

(2): سنن النسائي "في اليوم والليلة" (١٨١)، (تحفة الأشراف: ٣٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٠٠، ٢٠١) (صحيح)

(3): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٢٧٧) (حسن)

چه څه عطیه او هدیه ورکړې شی نو که چرې دده همت وی نو د هغه دې مدح او تعریف اوکړی - چا چه د خپل محسن مدح او تعریف اوکړو نو دهٔ د هغه شکریه ادا کړه او چا چه د هغه (احسان) لره پټ کړو نو دهٔ د هغه ناشکری اوکړه -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روایت لره یحیی بن ایوب په واسطه د عماره بن غزیه، د شرحبیل نه او هغه د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت کړې دې - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه په سند کښې عماره بن غزیه چه د چا نوم اخستې دې او داسې ئې وئیلې دی چه زما د قوم نه یو سړی ماته بیان کړې دې -" هغه هم شرحبیل دې -" ګویا چه هغې دهٔ د نوم ذکر کول خوښ نهٔ کړل -

**قوله:** ﴿مَنْ أُعْطِيَ عَطَاءً فَوَجَدَ فَلْيَجْزِ بِهِ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُثْنِ بِهِ فَمَنْ أَثْنَى بِهِ فَقَدْ شَكَرَهُ وَمَنْ كَتَمَهُ فَقَدْ كَفَرَهُ﴾ چه کوم سړی ته یو څیز ورکړې شی یعنی هدیه نو که هغه سره ګنجائش وی نو هغه له پکار دی چه په خپل مال سره دې بدله ورکړی او که ګنجائش نه وی د بدل د ورکړې نو د ورکونکی دې کم از کم ذکر خیر کوی، او د هغه د نعمت اظهار دې کوی په خپله ژبه باندې، چه دا ذکر خیر هم د هغه په دې شکریه کښې داخل دې او کوم سړې چه ئې پټ کړی یعنی نه ئې په بدله کښې څه ورکړل او نه ئې د هغې په ژبه باندې څهٔ اظهار اوکړو بلکه خاموش پاتې شو (یعنی هغه سره چا د خیر بالکل هیڅ کار اونکړو) نو بیشکه دې سړی د هغه ناشکری اوکړه او په کفران نعمت کښې اخته شو. د رسول الله ﷺ په باره کښې راځی: ﴿کان يقبل الهدية ويثيب عليها﴾ چه د رسول الله ﷺ عادت مبارک د هدیه د قبلولو وو (په دې شرط چه څه مانع نه وی) او بیا به رسول الله ﷺ هغه مهدی ته د هغې بدله هم ورکوله.

[٤٨١٤] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْجَرَّاحِ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أُبْلِيَ بَلَاءً فَذَكَرَهُ فَقَدْ شَكَرَهُ، وَإِنْ كَتَمَهُ فَقَدْ كَفَرَهُ".

د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: "چا چه په چا باندې احسان اوکړو بیا دې دویم د هغه ذکر اوکړو نو دا د هغه شکریه ادا کول دی او که دې دویم کس هغه لره پټ کړو نو دهٔ د هغه ناشکری اوکړه -"

## بَابٌ فِي الْجُلُوسِ فِي الطُّرُقَاتِ

### باب: ۱۲ - په لارو کښې کیناستل ښهٔ نهٔ دی

[٤٨١٥] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ زَيْدٍ يَعْنِي ابْنَ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا بُدَّ لَنَا مِنْ مَجَالِسِنَا نَتَحَدَّثُ فِيهَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ أَبَيْتُمْ فَأَعْطُوا الطَّرِيقَ حَقَّهُ"، قَالُوا: وَمَا حَقُّ الطَّرِيقِ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "غَضُّ الْبَصَرِ، وَكَفُّ الْأَذَى، وَرَدُّ السَّلَامِ، وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ".

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٣٢٩) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/المظالم ٢٢ (٢٤٦٥)، الاستئذان ٢ (٦٢٢٩)، صحيح مسلم/اللباس ٣٢ (٢١٢١)، (تحفة الأشراف: ٤١٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٦، ٤٧) (صحيح)

د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " په لارو کښې د کیناستو نه احتراز اوکړئ -" خلقو اووې اې د الله رسوله ! زمونږ خو ددې نه سوا بله چاره نشته دې، زمونږ په خپل مابین کښې خبرې اترې کیږی نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل که چرې ددې نه انکار کوئ نو بیا د لارې د حق خیال ساتئ -" هغوی عرض اوکړو اې د الله رسوله ! د لارې څه حق دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل نظر خکته ساتل، د تکلیف ده څیز لرې کول، د سلام جواب ورکول، ښۀ خبره کول او د بدئ نه منع کول-"

**قوله**: ﴿ إِيَّاكُمْ وَالْجُلُوسَ بِالطُّرُقَاتِ ﴾ ځان بچ کړئ په لارو کښې د ناستې نه. صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ مونږ سره خو بل ځائې نشته د خبرو اترو د کولو، د لارو په غاړو باندې ناستې سره خبرې اترې کوو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل څه که تاسو ضرور کینئ د لارو په غاړو باندې نو بیا د لارې حق ادا کوئ، صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو د لارې حق څه دې؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ﴿ عض البصر ﴾ یعنی سترګې ښکته ساتل چه بې ځآیه نظر پرنوځی او ﴿ کف الاذی ﴾ د دې خیال ساتئ چه زمونږ نه چاته نقصان او نه رسیږی او ﴿ رد السلام ﴾ یعنی په خبرو کښې دومره مه مشغول کیږئ چه د سلام کونکی د سلام خبر هم درته نه وی، بلکه د هغه د سلام جواب ورکول او د ﴿ امر بالمعروف او نهی عن المنکر ﴾ هم لحاظ ساتئ، او په بل روایت کښې دی ﴿ فتغیثوا الملهوف وتهدوا الضال ﴾ یعنی د مظلوم امداد کول او د چا نه چه لار ورکه وی هغه ته لاره ښودل.

[۴۸۱۶](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: وَإِرْشَادُ السَّبِيلِ.

حضرت ابو هریره رضی الله عنه په دې قصه کښې د نبی کریم ﷺ نه نقل کړې دی، حضور ﷺ اوفرمائیل د راه ګیر (په لاره تلونکې مسافر) رهنمائی کول(هم د لارې په حق کښې داخل دی) ﴿ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ خَيْرُ الْمَجَالِسِ أَوْسَعُهَا ﴾

[۴۸۱۷](۲) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عِيسَى النَّيْسَابُورِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، أَخْبَرَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنِ ابْنِ حُجَيْرٍ الْعَدَوِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: وَتُغِيثُوا الْمَلْهُوفَ، وَتَهْدُوا الضَّالَّ.

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه په دې قصه کښې بیان کړې دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: د پریشان حال مدد کوئ او د چا نه چه لاره غلطه شی هغه ته لاره ښایئ ."

[۴۸۱۸](۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى بْنِ الطَّبَّاعِ، وَكَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، قَالَ ابْنُ عِيسَى، قَالَ: حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لِي إِلَيْكَ حَاجَةً، فَقَالَ لَهَا: يَا أُمَّ فُلَانٍ، اجْلِسِي فِي أَيِّ نَوَاحِي السِّكَكِ شِئْتِ، حَتَّى أَجْلِسَ إِلَيْكِ، قَالَ: فَجَلَسَتْ، فَجَلَسَ

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۹۷۵) (حسن صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۷۳) (صحيح)
(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۴/۳) (صحيح)

النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهَا حَتَّى قَضَتْ حَاجَتَهَا"، لَمْ يَذْكُرِ ابْنُ عِيسَى: حَتَّى قَضَتْ حَاجَتَهَا. وَقَالَ كَثِيرٌ: عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ.

د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه يوه ښځه نبي كريم ﷺ ته راغله اووې وئيل: اې د الله رسوله! زما تاسو سره يو كار دې حضور ﷺ اوفرمائيل اې ام فلان! د كوڅې په كونه [جانب] كښې كينه زۀ تاسره كيناستې شم (او ستا خبره اوريدې شم) چنانچه هغه كيناسته تردې پورې چه هغې خپل حاجت پوره كړو - ابن عيسىٰ د [حتى قضت حاجته] الفاظ ذكر كړې نۀ دى او كثير (ابن عبيد) په خپل سند كښې (په عنعنه سره روايت كړې دې او) عن حميد عن انس ئې وئيلې دي.

[٤٨١٩](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ امْرَأَةً كَانَ فِي عَقْلِهَا شَيْءٌ، بِمَعْنَاهُ.

د حضرت انس رضي الله عنه روايت دې چه د هغه ښځې په عقل كښې څه كمې وو، او د مذكوره بالا هم معنیٰ ئې روايت اوكړو -

## بَابٌ فِي سَعَةِ الْمَجْلِسِ

### بابـ ...... د مجلس د فراخوالی بیان

[٤٨٢٠](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الْمَوَالِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: خَيْرُ الْمَجَالِسِ أَوْسَعُهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرَةَ الْأَنْصَارِيُّ.

حضرت ابو سعيد خدرى رضي الله عنه فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دى، هغه فرمائيل: بهترين مجلس هغه دې كوم چه فراخه او كولاؤ وى.'' امام ابوداود رحمه الله فرمائى چه د حديث د راوى عبد الرحمن بن ابو عمره صحيح نسب داديې: '' عبد الرحمن بن عمر بن ابو عمره الانصارى.''

يعنى زيات فراخه ځائې د جلوس دپاره غوره دې، ځكه چه په هغې كښې د ناستو دپاره هم ارام وى د ځائې د وسعت د وجې نه، او د نورو خلقو دپاره هم مثلاً د تيريدونكى دپاره.

## بَابٌ فِي الْجُلُوسِ بَيْنَ الظِّلِّ وَالشَّمْسِ

### بابـ ١٣ - په نمر او سورى كښې د كيناستو بيان

[٤٨٢١](٣) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَمَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، قَالَ: حَدَّثَنِي مَنْ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ أَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الشَّمْسِ، وَقَالَ مَخْلَدٌ: فِي الْفَيْءِ، فَقَلَصَ عَنْهُ الظِّلُّ وَصَارَ بَعْضُهُ فِي الشَّمْسِ وَبَعْضُهُ فِي الظِّلِّ، فَلْيَقُمْ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې، چه سيدنا ابو القاسم ﷺ فرمائيلي دى: كله چه

(١): صحيح مسلم/الفضائل ٢٣ (٢٣٢٦)، (تحفة الأشراف: ٣٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٥/٣) (صحيح)
(٢): تفرد به، أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤١٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨/٣، ٦٩) (صحيح)
(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٠٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٣/٢) (صحيح)

څوک په نمر کښې ناست وی ...... دَ مخلد الفاظ دی که څوک په سوری کښې ناست وی ...... او بیا ددهٔ نه سورې لاړ شی او څه په نمر باندې راشی او څه په سوری باندې نو هغه دې دَ هغه ځائې نه پاسی۔"

**قوله:** ﴿ إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الشَّمْسِ ﴾.وَقَالَ مَخْلَدٌ « فِي الْفَيْءِ ».« فَقَلَصَ عَنْهُ الظِّلُّ الخ ﴾

چه د ناستې په وخت د انسان څه حصه په نمر وی او څه په سوری کښ، د دې نه منع کولې شی، که د مخکښې نه نمر ته ناست دې او بیا د نمر په ښکته کیدو او وخت تیریدلو سره د بدن څه حصه په نمر کښې پاتې شوه او څه په سوری کښ، هم دغه شان که د مخکښې نه په سوری کښې ناست دې او بیا روستو دغه شان اوشی نو د هغه ځائې نه پاسیدو سره ځائې بدلول پکار دی.

[۴۸۲۲](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي قَيْسٌ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّهُ جَاءَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ، فَقَامَ فِي الشَّمْسِ، فَأَمَرَ بِهِ، فَحُوِّلَ إِلَى الظِّلِّ".

حضرت قیس (بن ابو حازم) دَ خپل پلار نه روایت کوی چه هغه راغې او حضور ﷺ خطبه لوستله، نو دې په دهوپ کښې اودریدو، نو حضور ﷺ دهٔ ته حکم اوکړو نو سوری ته لاړو۔"

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنِي قَيْسٌ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ جَاءَ وَرَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَخْطُبُ فَقَامَ فِي الشَّمْسِ فَأَمَرَ بِهِ فَحُوِّلَ إِلَى الظِّلِّ ﴾

قیس بن ابی حازم د خپل پلار نه روایت کوی چه هغه یعنی ابوحازم رضی الله عنه یو ځل د رسول الله ﷺ مجلس ته راغلو په داسې حال کښې چه رسول الله ﷺ خطبه ورکوله، نو هغوی نمر ته اودریدل نو رسول الله ﷺ اولیدلو نو هغوی ورته د نمر نه په سوری کیدو حکم اوکړو یا خو په دې وجه چه موسم ګرم وو بغیر د څه وجې نه په نمر اودریدل نقصانی دی خو هغوی د رسول الله ﷺ د خطبې د اوریدلو په شوق کښې زر زر په نمر اودریدل، او یا هغه ځائې داسې وو چه نزدې هلته د نمر د خوزیدو په وجه پاندې د هغې څه حصه په نمر پاتې کیده او څه په سوری کښ، په دې دویم مطلب کښې به حدیث د ترجمة الباب موافق شی.

## بَابٌ فِي التَّحَلُّقِ

### باب: ۱۴- دَ مختلف حلقو جوړولو بیان

[۴۸۲۳](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ الْأَعْمَشِ، حَدَّثَنِي الْمُسَيَّبُ بْنُ رَافِعٍ، عَنْ تَمِيمِ بْنِ طَرَفَةَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ وَهُمْ حِلَقٌ، فَقَالَ: مَا لِي أَرَاكُمْ عِزِينَ".

د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ جمات ته تشریف راوړلو په داسې حال کښې چه صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم ټولې جوړ کړې ناست وو ۔ نو حضور ﷺ اوفرمائیل : څه خبره ده چه تاسو په ټولو کښې جُدا جُدا ناست یئ؟"

**قوله:** ﴿ مَا لِى أَرَاكُمْ عِزِينَ ﴾ یعنی یو ځل رسول الله ﷺ مسجد ته تشریف راوړلو نو دغه

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٨٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٢٦، ٤٢٧، ٤/٢٦٢) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الصلاة ٢٧ (٤٣٠)، (تحفة الأشراف: ٢١٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٣،١٠١،١٠٧) (صحيح)

وخت کښې صحابه کرامو ﷺ ځائله ځائله حلقې جوړې کړې وې نو رسول الله ﷺ په دې باندې انکار او فرمائيلو چه څه خبره ده چه زه تاسو بيل بيل مجلسونو کښې وينم.
عزين جمع د عزه ده، په ظاهره به دا حضرات د رسول الله ﷺ په انتظار کښې ناست وو لهذا بغير د څه مصلحت او حاجت نه رسول الله ﷺ بيل بيل مجلسونو کښې ناسته خوښه او نه فرمائيله ټول يو مجلس جوړ کړئ چه معلومه شي چه ټول د يو مقصد دپاره ناست دی، او په ظاهر کښې د اتفاق صورت محسوس شي.

[٤٨٢٤] (¹) حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنِ ابْنِ فُضَيْلٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ بِهَذَا، قَالَ: كَأَنَّهُ يُحِبُّ الْجَمَاعَةَ.

ترجمه : د اعمش نه هم دا حديث نقل دې البته په دې کښې دی: ګويا چه هغه به اجتماعيت خوښولو.

[٤٨٢٥] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ الْوَرْكَانِيُّ، وَهَنَّادٌ، أَنَّ شَرِيكًا أَخْبَرَهُمْ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي".

د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه نه روايت دې چه کله به مونږه د نبی کريم ﷺ په مجلس کښې راتلو نو تر کوم ځائې پورې چه به مجلس وو (نو د هغې په آخر کښې به) کيناستو -
﴿ كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي ﴾ دا حديث په باب فی التحلق کښې ذکر شوې دې خو د دې د باب سره په ظاهر کښې هيڅ جوړ نشته، بلکه دا خو يو مستقل ادب دې چه په هغې باندې امام بخاری رحمه الله يو مستقل باب قائم کړې دې من قعد حيث ينتهی المجلس، هغه دا چه روستو راتلونکې سړې چرته چه مجلس ختميږی هغه له هم هلته کيناستل پکار دی، او د خلقو په سټونو باندې اوختلو سره ورله وړاندې تلل نه دی پکار، خو که د مجلس په وړاندې حصه کښې خالی ځائې وی نو بيا بيله خبره ده، هلته که خلاف مصلحت نه وی نو وړاندې تلل پکار دی، امام بخاری رحمه الله خو د دې باب د لاندې د درې کسانو يو خاص واقعه ذکر کړې ده هغه په حديث په بخاری او ترمذی کښې دواړه ځايه دې هلته دې اوکتلې شي.

## بَابُ الْجُلُوسِ وَسْطَ الْحَلْقَةِ

### باب ...... دَ حلقې په مينځ کښې دَ کيناستو بيان

[٤٨٢٦] (³) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، حَدَّثَنِي أَبُو مِجْلَزٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ مَنْ جَلَسَ وَسْطَ الْحَلْقَةِ".

د حضرت حذيفه رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ لعنت کړې دې په هغه سړی باندې چه هغه دَ حلقې په مينځ کښې کينی -"
قوله: ﴿ عَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَعَنَ مَنْ جَلَسَ وَسْطَ الْحَلْقَةِ ﴾

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢١٢٩) (صحيح)
²): سنن الترمذي/الاستئذان ٢٩ (٢٧٢٥)، (تحفة الأشراف: ٢١٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩١/٥، ١٠٧) (صحيح)
³): سنن الترمذي/الأدب ١٢ (٢٧٥٣)، (تحفة الأشراف: ٣٣٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٤/٥، ٣٩٨، ٤٠١) (ضعيف)

رسول الله ﷺ لعنت فرمائيلي دي په هغه سړي باندي کوم چه د حلقي په مينځ کښي کيني، د دي په شرح کښي دري اقوال دی يا خو په دي کښي تخطی رقاب مونډلي شی چه هغه سړي د خلقو په ستونو باندي اوختلو سره هلته ناست دي او يا په دي وجه چه د بعض اهل مجلس په حق کښي هغه د مخامخ کتلو نه حجاب جوړيږی، دريم قول دا دي چه په مينځ کښي د ناست انسان نه مراد هغه سړي دي چه د خندا او ټوقو خبري کوی او خپلي مسخري ښکاره کولو دپاره ناست دي چه د هغه نه ګير چاپيره د خلقو حلقه جوړه شوه.په دي حديث باندي په بعض نسخو کښي مستقل ترجمه ده، باب الجلوس وسط الحلقة او کيدل هم پکار دی چه حديث د باب مناسب وی.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُومُ لِلرَّجُلِ مِنْ مَجْلِسِهِ

### که چري يو کس بل ته دَ خپل ځائي نه اودريږی نو.......؟

[٤٨٢٧](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ مَوْلَى آلِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ، قَالَ: "جَاءَنَا أَبُو بَكْرَةَ فِي شَهَادَةٍ، فَقَامَ لَهُ رَجُلٌ مِنْ مَجْلِسِهِ، فَأَبَى أَنْ يَجْلِسَ فِيهِ، وَقَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ذَا، وَنَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَمْسَحَ الرَّجُلُ يَدَهُ بِثَوْبِ مَنْ لَمْ يَكْسُهُ".

:- حضرت سعيد بن ابو الحسن بيان کوی چه حضرت ابو بکره رضی الله عنه د يو ګواهئ په سلسله کښي مونږ ته تشريف راوړو نو د مجلس نه يو کس هغه ته دَ خپل ځائي نه پاسيدو -نو هغه په هغه ځائي کښي دکيناستو نه انکار اوکړو اووي فرمائيل په تحقيق سره نبی کريم ﷺ ددي نه منع فرمائيلي ده او نبی کريم ﷺ ددي نه هم منع فرمائيلي ده چه څوک دَ چا هغه کپړي لره مسح کړی کومه چه ئي اغوستي وی -

**قوله:** ﴿ عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحَسَنِ قَالَ جَاءَنَا أَبُو بَكْرَةَ فِي شَهَادَةٍ فَقَامَ لَهُ رَجُلٌ مِنْ مَجْلِسِهِ فَأَبَى أَنْ يَجْلِسَ فِيهِ وَقَالَ إِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ ذَا الخ ﴾

سعيد بن الحسن چه رور دي د حسن بصری رحمه الله هغه فرمائی چه يوه ورځ مونږ ته سيدنا ابوبکره رضی الله عنه صحابی تشرف راوړلو په څه معامله کښي د ګواهئ ورکولو دپاره نو يو سړي د هغوی په ليدو باندي د خپل ځائي نه پاسيدو چه هغه د هغوی په ځائي باندي کيني نو هغه په هغه ځائي کښي د کيناستلو نه انکار اوکړو او وي فرمائيل چه رسول الله ﷺ منع فرمائيلي ده د دي نه، په ذا سره اشاره څه ته ده؟ په دي کښي علامه طيبی خو دا ليکلي دی يعنی بل دپاره د اودريدلو نه، او ملا علی قاری فرمائی چه ظاهره دا ده چه اشاره پکښي جلوس ته ده يعنی د بل په ځائي کښي کوم سړي چه د هغه په وجه باندي اودريدلي دي د ملا علی قاری خبره خو واضحه ده او د طيبی خبره هم په خپل ځائي صحيح ده په بعض صورتونو کښي مثلا مجلس د وعظ يا علم وی نو په هغي کښي ناسته کونکی لره خپل مقصد طرف ته يعنی سماع علم يا سماع وعظ طرف ته متوجه کيدل پکار دی، د چا د

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٦٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤/٥، ٤٨) (ضعيف)

راتلو په وجه باندې اودريدل د توجه تام منافی دی، خو مستثنيات هر ځائې کښې وی د موقع او محل په اعتبار سره.

او د دې حديث دويم جزء دا دې ﴿ وَنَهَى النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يَمْسَحَ الرَّجُلُ يَدَهُ بِثَوْبِ مَنْ لَمْ يَكْسُهُ ﴾ چه رسول الله ﷺ د دې نه هم منع فرمائيلې ده چه يو سړې خپل لاس د هغه سړی په جامه باندې پاک کړی يا اوچ کړی چاته چه هغه کپړه ور اغوستولې نه ده يعنی د پردی سړی په جامه باندې، معلومه شوه چه که خپل ځوئې يا خادم وی څوک چه هم د هغه ورکړې جامې اغوندی نو په دې کښې هيڅ قباحت نشته.

[۴۸۲۸](¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ عَقِيلِ بْنِ طَلْحَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْخَصِيبِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ لَهُ رَجُلٌ مِنْ مَجْلِسِهِ، فَذَهَبَ لِيَجْلِسَ فِيهِ، فَنَهَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو الْخَصِيبِ اسْمُهُ: زِيَادُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ ته يو کس راغې نو يو سړې هغه ته پاسيدو د خپل ځائې نه، هغه (راتلونکې) په هغه ځائې باندې کيناستو نو نبی کريم ﷺ هغه له منع کړو ـ امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه د ابو خصيب نوم زياد بن عبد الرحمن دې ـ

## بَابُ مَنْ يُؤْمَرُ أَنْ يُجَالَسَ

### باب: ۱۶ - د څنګه خلقو صحبت اختيار کړې شی؟

يعنی کومو خلقو سره چه د ناستې حکم دې هغوی سره دې ناسته اوکړې شی.

[۴۸۲۹](²) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ مَثَلُ الْأُتْرُجَّةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا طَيِّبٌ، وَمَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ التَّمْرَةِ طَعْمُهَا طَيِّبٌ وَلَا رِيحَ لَهَا، وَمَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الرَّيْحَانَةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ، وَمَثَلُ الْفَاجِرِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ وَلَا رِيحَ لَهَا، وَمَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْمِسْكِ إِنْ لَمْ يُصِبْكَ مِنْهُ شَيْءٌ أَصَابَكَ مِنْ رِيحِهِ، وَمَثَلُ جَلِيسِ السُّوءِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْكِيرِ إِنْ لَمْ يُصِبْكَ مِنْ سَوَادِهِ أَصَابَكَ مِنْ دُخَانِهِ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې، چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل مؤمن کوم چه د قران مجيد تلاوت کوی د هغه مثال د ترنج په شان دې چه د هغې خوشبو هم وی او ذائقه ئې هم ښۀ وی ـ او هغه مؤمن چه د قرآن مجيد تلاوت نۀ کوی د هغه مثال د کجوری په شان دې چه د هغې ذائقه عمده وی مګر خوشبو په کښې نۀ وی ـ او فاجر سړې چه قرآن لولی د هغه مثال د ريحان په شان دې چه د هغې خوشبو خو وی ليکن خوند ئې تريخ وی، او فاجر انسان چه قرآن مجيد نۀ لولی د هغه مثال د حنظل دې چه د هغې خوند تريخ وی او خوشبو په کښې هم نۀ وی ـ او د نيک صالح ملګری مثال د مشکو په شان دې که تاته ددۀ نه څه ملاؤ هم نۀ شی

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۷۲۵)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجمعة ۲۰ (۹۱۱)، الاستئذان ۳۱ (۶۲۶۹)، صحيح مسلم/السلام ۱۱ (۲۱۷۷)، سنن الترمذي/الأدب ۹ (۲۷۵۰)، مسند احمد (۲/۱۴۹)، سنن الدارمي/الاستئذان ۲۴ (۲۶۹۵) (حسن)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۸) (صحيح)

خو د هغه خوشبو به تاته ضرور رسيږي، او د بد ملگرى مثال د بټۍ والا په شان دي كه تاته د هغې تور والې هم اونه رسي خو لوگې به ئې ضرور تاته رسيږي -

**قوله:** ﴿ مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِى يَقْرَأُ الْقُرْآنَ مَثَلُ الأُتْرُجَّةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا طَيِّبٌ وَمَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِى لاَ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ...... الَّذِى لاَ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ طَعْمُهَا مُرٌّ وَلاَ رِيحَ لَهَا ﴾[1]

په دې حديث كښې په يو خاص حيثيت سره د مومن سړى درې قسمونه بيان كړې شوې دى او د هغه مرتبه په تشبيه سره بيان كړې شوې ده ....د ټولو نه اول قسم د هغه مومن دې چه د صالح كيدو سره سره د قرآن كريم تلاوت هم كوى چه د هغه مثال د نارنج دې چه د هغې خوشبوئى هم خائسته ده او ذائقه ئې هم خائسته ده، او كوم مومن سړې چه د قران كريم تلاوت نه كوى نو هغه په شان د كهجورې دې چه ذائقه خو ئې ښكلې ده خو خوشبوئى پكښې نشته، او د هغه فاجر مسلمان مثال چه تلاوت د قرآن كريم كوى په شان د گل دې چه د هغې خوشبوئى خو ښه وى خو د هغې خوند تريخ دې، او د هغه فاسق مثال چه د قران كريم تلاوت نه كوى په شان د حنظله دې يعنى د اندرائن (كركنډې) ([2]) د ميوې دې چه د هغې مزه ترخه ده او بوئې ئې هم نشته، او په مظاهر حق كښې د اترجه ترجمه په ترنج سره كړې شوې ده او په فائده كښې ليكى چه مومن سړې چه قرآن لولى په شان د نارنج څكه دې چه مزه ئې ښه ده په سبب د هغې چه ايمان پكښې ثابت دې، او خوشبوئى لرى چه خلق ثواب مومى په سبب د اوريدلو د قراءت د هغه، او زده كوى قرآن د هغه نه.(مظاهرحق ۲/۲۰۷)

**قوله:** ﴿وَمَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْمِسْكِ الخ ﴾ د صالح ملگرى مثال د مشک والا سره د ناسته كونكى دې (اى كمثل جليس صاحب المسک) چه كه تاته د هغه نه مشک ملاؤ نه شى نو د هغه خوشبوئى خو درته حاصليږى او بد انسان سره د ناسته كونكى مثال د بټۍ والا سره د ناسته كونكى دې چه كه د هغه تور والې په تا رانشى نو لوگې خو به ئې دربانډې ضرور راځى.

[۴۸۳۰]([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، ح وحَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِى، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ أَبِى مُوسَى، عَنِ النَّبِىِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْكَلاَمِ الأَوَّلِ إِلَى قَوْلِهِ: وَطَعْمُهَا مُرٌّ، وَزَادَ ابْنُ مُعَاذٍ، قَالَ: قَالَ أَنَسٌ: وَكُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّ مَثَلَ جَلِيسِ الصَّالِحِ وَسَاقَ بَقِيَّةَ الْحَدِيثِ.

حضرت انس رضي الله عنه د حضرت ابو موسى رضي الله عنه نه او هغوى د رسول الله ﷺ نه د مذكوره حديث اولې حصې " چه د هغې خوند تريخ وى -" پورې روايت كړې دې - او ابن معاذ مزيد وئيلې دى چه حضرت انس رضي الله عنه فرمائيلې دى مونږ به وئيل چه د صالح ملگرى مثال ...... او باقى

[1]) ريحان د يو خوشبويه گيا نوم دې)

[2]) د خربوزې په شكل يوه ترخه ميوه ده خو په جسم كښې ډيره وړه ده غرنيزه علاقو كښې كيږى دا په دوايانو كښې استعماليږى.

[3]): وقد أخرجه: صحيح البخاري/فضائل القرآن ۱۷ (۵۰۲۰)، ۳۶ (۵۰۵۹)، والأطعمة ۳۰ (۵۴۲۷)، والتوحيد ۵۷ (۷۵۶۰)، صحيح مسلم/المسافرين ۳۷ (۷۹۷)، سنن الترمذي/الأمثال ۴ (۲۸۶۵)، سنن النسائي/الإيمان ۳۲ (۵۰۴۱)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۱۶ (۲۱۴)، مسند احمد (۴/۳۹۷، ۴۰۸)، (تحفة الأشراف: ۸۹۸۱) (صحيح)

حديث لره ئې بيان کړو ـ"

[٤٨٣١](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الصَّبَّاحِ الْعَطَّارُ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَامِرٍ، عَنْ شُبَيْلِ بْنِ عَزْرَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَثَلُ الْجَلِيسِ الصَّالِحِ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ.

شبيل بن عزره دَ حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کړې دې، چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: دَ صالح ملګرې مثال ......" او مذکوره بالا حديث ئې روايت کړو ـ"

[٤٨٣٢](٢) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ حَيْوَةَ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ غَيْلَانَ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، أَوْ عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُصَاحِبْ إِلَّا مُؤْمِنًا وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ".

حضرت ابو سعيد رضي الله عنه روايت کوی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: صرف دَ مؤمن سړی صحبت اختيار کړه، او ستا خوراک دې نهٔ خوری مګر متقی ـ"

**قوله:** ﴿ لاَ تُصَاحِبْ إلاَّ مُؤْمِنًا وَلاَ يَأْكُلْ طَعَامَكَ إلاَّ تَقِيٌّ ﴾ مومن سړی سره خپله ناسته کوه او نه دې خوری ستا ډوډئ مګر متقی انسان، يعنی هغه ډوډئ چه د دوستئ او مينې په وجه په چا خورلې شی، او هغه خوراک چه په يو اوږی باندې د هغه د حاجت د وجې نه اوخوړې شی يعنی طعام الحاجة هغه عام دې په هغې کښې د متقی قيد نشته، قال الله سبحانه وتعالی: وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَى حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا....... دا حکم عام دې.

[٤٨٣٣](٣) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، وَأَبُو دَاوُدَ، قَالَا: حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ وَرْدَانَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: الرَّجُلُ عَلَى دِينِ خَلِيلِهِ فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ مَنْ يُخَالِلُ".

دَ حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: انسان دَ خپل محبوب ملګرې په دين باندې وی ـ نو تاسو لره پکار دی چه غور اوکړئ چه تاسو دَ چا سره دوستی کوئ ـ"

**قوله:** ﴿ الرَّجُلُ عَلَى دِينِ خَلِيلِهِ فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ مَنْ يُخَالِلُ ﴾ چه انسان د خپل دوست په دين او مسلک باندې وی يعنی هم هغه اختياروی د صحبت د اثر د وجې نه لهذا سړی له پکار دی چه ښه دې اوګوری هغه دوست چا سره چه دوستی کوی.

د دې حديث امام ترمذی رحمه الله تحسين کړې دې او حاکم ورته صحيح وئيلې دې، دا خبره حافظ ابن حجر د سراج الدين قزوينی په ترديد کښې کړې ده هغه دې حديث ته موضوع وئيلې دې، په حاشيه د کتاب کښې په دې باندې مبسوط کلام دې.

(١): تفرد به أبو داود، وانظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٠٥) (صحيح)
(٢): سنن الترمذي/الزهد ٥٥ (٢٣٩٥)، (تحفة الأشراف: ٤٣٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٨) (حسن)
(٣): سنن الترمذي/الزهد ٤٥ (٢٣٧٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٦٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٠٣، ٣٣٤) (حسن)

[٤٨٣٤](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ يَعْنِي ابْنَ بُرْقَانَ، عَنْ يَزِيدَ يَعْنِي ابْنَ الْأَصَمِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَرْفَعُهُ، قَالَ: "الْأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا ائْتَلَفَ وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه مرفوعا (د نبی کریم ﷺ نه) روایت کوی - روحونه (په ازل کښې) مجتمع لښکر وو، د کومو چه هلته کښې تعارف اوشو نو (په دنیا کښې) د هغوی په مابین کښې الفت او محبت وی او د چا په مابین کښې چه هلته کښې نا واقفی شوې ده (نو په دې دنیا کښې) هغوی د یو بل نه جُدا جُدا اوسی.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَرْفَعُهُ قَالَ « الأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا ائْتَلَفَ وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ » ﴾(٢)

---

١): صحيح مسلم/البر والصلة ٤٩ (٣٦٣٨)، (تحفة الأشراف: ١٤٨٢٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٩٥، ٥٢٧، ٥٣٩) (صحيح)

٢) دا حدیث په بخاری او مسلم دواړو کښې دې، په مسلم کښې مسندا او په بخاری کښې معلقا، په کتاب الانبیاء کښې امام بخاری رحمه الله په دې باندې یو باب تړلې دې باب الارواح جنود مجندة، دا حدیث په مقاصد حسنه کښې د احادیثو د ګڼړو کتابونو نه کمی زیاتی سره نقل کړې دې اود مسند ابی یعلی یو روایت نې نقل کړې دې چه په هغې سره د دې حدیث شان ورود یعنی سبب حدیث معلومیږی، سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه په مکه مکرمه کښې یو زنانه وه بطاله ټوقې مسخرې به نې کولې او هم دا قسم یو زنانه په مدینه منوره کښې هم اوسیدله نو یو ځل دا مکیه زنانه مدینې ته راغله او د راتلو سره هم دې مدنیه سره دیره شوه او بیا دا دواړه عائشې رضی الله عنها ته راغلې، عائشې رضی الله عنها ته د دې دواړو په لیدو باندې تعجب پیدا شو پس عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما د دې مکیه نه تپوس اوکړو چه آیا تا دا مدنیه د مخکښې نه پیژندله؟ هغې اووې نه د مخکښې نه خو مې نه پیژندله خو چه کله زه دې سره ملاؤ شوم نو ما اوپیژندله (لکه چه د مخکښې نه مې ورسره پیژند ګلو وی) په دې باندې عائشه رضی الله عنها په خندا شوه او وې فرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې وو او هم دا حدیث الارواح جنود مجندة الخ نې بیان کړو، او په یو روایت کښې داسې دی، عائشه رضی الله عنها فرمائی چه د دې نه پس رسول الله ﷺ زما کور ته تشریف راوړلو او هغوی د هغې مکیه په باره کښې تپوس اوکړو چه آیا هغه دلته موجوده ده؟ ما عرض اوکړو او جی موجوده ده، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو هغه چرته دیره شوې ده ما اووې فلانئ مدنیه سره، نو په دې باندې هغوی اوفرمائیل: الحمد لله الارواح جنود مجندة الحدیث.....او په یو روایت کښې داسې دی (په مقاصد حسنه کښې): الارواح جنود مجندة تلتقي فتتشام كما تتشام الخيل فما تعارف منها ائتلف وما تناكر منها اختلف .....یعنی روحونه چه کله خپل مینځ کښې یو بل سره ملاؤ شی یعنی په عالم ارواح کښې نو یو بل بویوی فما تعارف منها ائتلف وما تناكر منها اختلف پس کوم روح چه د بل روح متعارف وی (د اوصافو د اتحاد د وجې نه) نو هغه د هغه سره مانوس شی او کوم چه غیر متعارف راوځی هغه غیر مانوس پاتې شی هم په دې کتاب کښې یو واقعه بله لیکلې شوې ده چه د اویس قرنی رحمه الله سره هرم بن حیان عبدی ملاؤ شو چه ورسره نې د دې نه مخکښې ملاقات نه وو کړې نو اویس رحمه الله هغه په خپل نوم سره مخاطب کړو، هم نه په دې باندې تعجب اوشو، او تپوس نې ترې نه اوکړو چه تاسو ته زما او زما د پلار نوم څنګه معلوم دې، نو هغوی اوفرمائیل: عرف روحي روحك حين كلمت نفسي نفسك لان الارواح لها انفس كانفس الاجساد ...یعنی زما روح ستا روح په عالم ارواح کښې پیژندلې وو، د دې حدیث شرح د عجلونی په کتاب "کشف الخفاء" کښې هم ذکر ده او په هغې کښې دا هم دی: اختلفوا اهل الارواح خلقت قبل الاجساد او معها، والراجح الاول بل ادعي فيه ابن حزم الاجماع ....الي اخر ما ذكر .پس حاصل د حدیث دا شو چه په دې دنیا کښې د بعض خلقو د بعضو نورو سره مینه محبت او هم دغه شان د بعضو د بعضو نورو نه نفرت او عدم تعلق دا متفرع دی د ارواح په موانست او عدم موانست باندې.او د دې دواړو څیزونو تعلق د اوصافو او طبائعو په موافقت او عدم موافقت باندې دی، پس په دنیا کښې مونږ ګورو چه د اتقیاء ..........له

## د الارواح جنود مجندة تشریح :

رسول اللهﷺ فرمائی چه ارواح لښکرې لښکرې دی، دا لفظ په کتاب الجهاد کښې هم په یو حدیث کښې تیر شوې دی، ﴿ سَيَصِيرُ الْأَمْرُ إِلَى أَنْ تَكُونُوا جُنُودًا مُجَنَّدَةً جُنْدٌ بِالشَّامِ وَجُنْدٌ بِالْيَمَنِ الخ﴾ لکه چه وائی قناطیر مقنطرة، د مبالغة فی الکثرة دپاره، اوس دا چه هغه چرته دی جواب دادې چه په خپل عالم کښې دی کوم ته چه عالم ارواح وائی، ارواح دې دنیا کښې د راتلو او بدنونو کښې د منتقل کیدو نه مخکښ په خپل مستقر باندې جمع دی بیا د هغه ځائې نه دنیا ته په خپل خپل وخت باندې په بدنونو کښې منتقل کیږی، ﴿ فما تعارف منها ائتلف ﴾ یعنی د کومو روحونو چه په هغه عالم ارواح کښې تعارف اوشی (او تعارف وی د طبائعو په اتحاد سره په شر او خیر کښې) نو داسې روحونه خپل مینځ کښې د یو بل سره مانوس شی، یعنی هم هلته په عالم ارواح کښې چه د هغې لازمی نتیجه دا وی چه داسې روحونه دنیا ته د راتلو نه پس هم ډیر زر مانوس کیږی لکه چه مشهور ده ﴿ الجنس یمیل الی الجنس ﴾ دا د حدیث د جمله اولی مطلب شو او جمله ثانیه ﴿ وتناکر منها اختلف ﴾ د دې د شرح اوس خاص حاجت پاتې نه شو دا د اول صورت مقابل دې یعنی بعض روحونه داسې وی چه د هغوی خپل مینځ کښې تعارف او آشنائی نه وی نو د طبائع د اختلاف د وجې نه خو داسې روحونه چه کله بدن کښې منتقل کیدو سره دې دنیا ته راشی نو دلته هم د هغوی خپل مینځ کښې جوړ نه وی څکه چه په عالم ارواح کښې ئې جوړ او مناسبت نه وو، د دې نور وضاحت د واقعاتو په رنړا کښې په حاشیه کښې اوګوریَ. والحدیث اخرجه مسلم، قاله المنذری.

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ الْمِرَاءِ

### باب ۱۷ - دَ جنګ او فساد دَ کراهیت بیان

[۴۸۳۵]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَعَثَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِهِ فِي بَعْضِ أَمْرِهِ، قَالَ: بَشِّرُوا وَلَا تُنَفِّرُوا وَيَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا".

---

٦......او صلحاء جوړ هم د دې قسم حضراتو سره وی، او د فساق او فجار تعلق د خپلو هم جنسو سره، په فتح الباري جلد ٦ کښې دی فتعارف الارواح يقع بحسب الطباع التي جبلت عليها من خير وشر، فاذا اتفقت تعارفت واذا اختلفت تناكرت او بیا په اخر کښې حافظ لیکلی دی : خو مونږ ګورو چه هم د نوع واحد په بعض اشخاصو کښې تالف وی او په بعضو کښې تناکر نو د هغې منشاء به د روستو عوارضو سره وی یعنی خارجی امور او هم دا خبره په بذل المجهود کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه لیکلې شوې ده (زما زړه غوښتل چه د دې حدیث شرح په ښه طریقه واضحه شی، فالحمد لله مطلب واضح شو که د چا خوښه شی نو دعاء د مغفرت دې اوکړی، د دې حدیث په باره کښې د ابن عبدالسلام الفاظ هم واوری: هغه فرمائی د تعارف ارواح نه مراد خو تقارب فی الصفات دې لهذا په کومو روحونو کښې چه عالم ارواح کښې تعارف یعنی موافقة فی الصفات وی نو په هغه ارواح کښې په عالم دنیا کښې د راتلو نه پس ائتلاف او جوړ وی، او د کومو ارواح چه په خپل مینځ کښې تعارف نه وی نو دې دنیا ته په راتلو کښې هم په هغې کښې ائتلاف او جوړ نه وی)

۱: صحیح مسلم/للجهاد ۳ (۱۷۳۲)، (تحفة الأشراف: ۹۰۶۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۹۹/٤، ٤٠٧) (صحیح)

حضرت ابو موسیٰ رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ به کله خپلو صحابو رضی الله عنهم لره د خپل څه کار دپاره لیږل نو هغوی ته به ئي فرمائیل : خوشبری ورکوونکی جوړ شئ،نفرت مهٔ پیدا کوئ،آسانی کوئ تنګی او مشقت مهٔ پیدا کوئ."

**قوله**: ﴿ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا بَعَثَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِهِ فِى بَعْضِ أَمْرِهِ قَالَ « بَشِّرُوا وَلاَ تُنَفِّرُوا وَيَسِّرُوا وَلاَ تُعَسِّرُوا » ﴾

یعنی رسول الله ﷺ به چه کله یو صحابی د څه کار دپاره لیږلو نو هغه ته به ئي فرمائیل چه چرته روان ئي هلته تلو سره د هغه ځائي خلقو ته د زیری احادیث اوروئ او هغوی خوشحاله کوئ، یعنی الله پاک چه په اطاعت باندې کومې وعدې فرمائیلې دی هغه بیانوئ، او د هغوی نفرت مه پیدا کوئ، او ویروئ ئې مه صرف د عذاب او وعید په احادیثو اورولو باندې، او د خلقو سره د سهولت معامله کوئ نه د سختئ او تنګسیا، د سختئ او تنګسیا په معاملې سره خپل مینځ کښې اختلاف او جدال پیدا کیږی.لهذا په حدیث کښې د جدال د کراهت بیان اوشو لکه مصنف رحمه الله چه په ترجمې سره ښکاره کړې ده.والحديث اخرجه مسلم،قاله المنذري.

[۴۸۳۶]()حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ،حَدَّثَنَا يَحْيَى،عَنْ سُفْيَانَ،قَالَ: حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْمُهَاجِرِ،عَنْ مُجَاهِدٍ،عَنْ قَائِدِ السَّائِبِ،عَنِ السَّائِبِ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلُوا يُثْنُونَ عَلَيَّ وَيَذْكُرُونِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَا أَعْلَمُكُمْ يَعْنِي بِهِ، قُلْتُ: صَدَقْتَ، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي كُنْتَ شَرِيكِي فَنِعْمَ الشَّرِيكُ كُنْتَ لَا تُدَارِي وَلَا تُمَارِي.

د حضرت سائب رضی الله عنه نه روایت دې چه زهٔ د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو خلقو زما مدحه او زما د اعمالو د تذکرې ذکر اوکړو،نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل زهٔ ددهٔ متلعق د ټولو نه زیات پوهه یم - ما عرض اوکړو تاسو رښتیا اوفرمائیل،زما مور او پلار دې په تاسو باندې قربان وی ! تاسو زما شراکت دار وئ او ډیر زیات ښهٔ شراکت دار وئ،په تاسو کښې د مخالفت کولو یا د جنګ جګړې څه خبره بالکل نهٔ وه."

**قوله**: ﴿ عَنْ قَائِدِ السَّائِبِ عَنِ السَّائِبِ ﴾

## شرح الحديث :

سائب رضی الله عنه کوم چه صحابی دې هغوی په اخر کښې نابینا شوې وو په دې وجه د هغوی یو قائد وو چا چه به د هغوی لاس نیولې وو، نو هغه قائد د سائب رضی الله عنه نه روایت کوی چه سائب فرمائی چه زه یو ځل د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلم نو حاضرین مجلس هغوی ته زما ذکر خیر شروع کړو او تعریف ئې کولو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ما ته د هغه خوبیانې او حال ستاسو نه زیات معلوم دې، نو په دې باندې سائب اووې رښتیا اوفرمائیل تاسو یا رسول الله ﷺ! زما مور پلار دې په تاسو باندې قربان وی، تاسو زما په (څه زمانه کښې) شریک وئ نو واقعی چه تاسو ښه شریک وئ، تاسو به جنګ جهګړې نه کولې بلکه هغې نه به لرې اوسیدې.په بذل کښې دی چه کیدې شی د دې نه مراد شرکت فی السفر وی

( ): سنن ابن ماجه /التجارات ۶۳ (۲۲۸۷). (تحفة الأشراف: ۳۷۹۱). وقد أخرجه: مسند احمد (۴۲۵/۳) (صحيح)

کوم سفر چه ملک شام طرف ته شوې وو د رسول اللهﷺ د نبوت نه مخکښې، او دا سائب رضی الله عنه صحابي قرشي مکي دې.

**(د راوی حضرت سائب رضی الله عنه تعارف)**

خان پوهه کړه چه د سائب په نوم باندې ډير صحابه کرام دی، السائب بن خلاد الانصاری، السائب والد خلاد کوم چه راوی دې د استنجاء بثلاثة احجار، يو دې السائب بن ابی السائب، حافظ ابن حجر رحمه الله په اصابه کښې دا حديث الباب د ابن ابی السائب په ترجمه کښې ذکر کړې دې او په اسد الغابة کښې هم د دوی په باره کښې ليکلي دی (وکان شريک النبیﷺ قبل المبعث بمکة) او بيا وړاندې ليکی : وقد اختلف فيمن کان شريک النبیﷺ فقيل هذا (يعنی السائب ابن ابی السائب) وقيل ان اباه کان شريک النبیﷺ (يعنی ابوالسائب) وقيل قيس بن السائب وقيل غيره، والحديث اخرجه النسائي وابن ماجه، قاله المنذری.

## بَابُ الْهَدْيِ فِي الْكَلَامِ

### باب: ۱۸- دَ نبی کريمﷺ دَ خبرو او ګفتګو کولو اسلوب (طريقه)

[۴۸۳۷][1] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ يَعْقُوبَ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ يَتَحَدَّثُ يُكْثِرُ أَنْ يَرْفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ".

حضرت يوسف رحمه الله د خپل پلار عبد الله بن سلام رضی الله عنه نه روايت کوی چه هغوی اوفرمائيل: چه رسول اللهﷺ به کله ناست وو او خبرې به ئې کولې نو د هغوی نظر به اکثر اسمان طرف ته وو.

**قوله:** ﴿ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– إِذَا جَلَسَ يَتَحَدَّثُ يُكْثِرُ أَنْ يَرْفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ﴾ يعنی رسول اللهﷺ به په خپل مجلس کښې د خبرو کولو په وخت په کثرت سره اسمان طرف ته نظر اوچتولو، په دې باندې په متن بين السطور کښې دی: ﴿کالمنتظر للوحی او کالمتفکر فی امر﴾ يعنی يا خو د انتظار وحی د وجې نه يا په يو کار کښې د سوچ کولو د وجې نه، او په حاشيه کښې د ملا علی قاری نه هم دادی او دا زائد دی: وشوقا الی الرفيق الاعلی ...يعنی د باری تعالی د ملاقات په شوق کښې.

او د دې نه په روستو حديث کښې دی : كَانَ فِي كَلَامِ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– تَرْتِيلٌ أَوْ تَرْسِيلٌ ....او په مشکاة کښې په روايت د ابوداؤد ﴿وترسيل﴾ دې په ځائې د او ....واو دې.

[۴۸۳۸][2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ، عَنْ مِسْعَرٍ، قَالَ: سَمِعْتُ شَيْخًا فِي الْمَسْجِدِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "كَانَ فِي كَلَامِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرْتِيلٌ أَوْ تَرْسِيلٌ".

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۳۳۵) (ضعيف)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۱۷۲) (صحيح)

د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه بيان دی چه د رسول الله ﷺ په خبرو کښې به ترتيل وو. (يعني خبرې به ئې په مزه مزه او واضحه کولې)

يعنى د رسول الله ﷺ خبرې به په مزه مزه وې (يعنى وقفې وقفې سره) د دې نه معلومه شوه چه په مزه مزه خبرې کول د کلام غوره طريقه ده، د دې نه په روستو روايت کښې دی ﴿ كَلَامًا فَصْلًا يَفْهَمُهُ كُلُّ مَنْ سَمِعَهُ ﴾ يعنى هره خبره بيله بيله او واضحه، چه په هغې باندې هر اوريدونکې پوهه شي.

[۴۸۳۹]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ، وَأَبُو بَكْرٍ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ أُسَامَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَحِمَهَا اللَّهُ، قَالَتْ: "كَانَ كَلَامُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلَامًا فَصْلًا يَفْهَمُهُ كُلُّ مَنْ سَمِعَهُ".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه د رسول الله ﷺ خبرې به دومره واضحه وې چه هر اوريدونکې به په هغې باندې پوهيدو.

[۴۸۴۰]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو تَوْبَةَ، قَالَ: زَعَمَ الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ قُرَّةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ كَلَامٍ لَا يُبْدَأُ فِيهِ بِالْحَمْدُ لِلَّهِ فَهُوَ أَجْذَمُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ يُونُسُ، وَعَقِيلٌ، وَشُعَيْبٌ، وَسَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرْسَلًا.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: هره يوه خبره چه د هغې ابتداء دَ الله تعالىٰ په حمد او ثنا سره نهٔ وی هغه بې برکته وی. امام ابوداود رحمه الله فرمائي چې دې روايت لره يونس، عُقيل، شعيب او سعيد په واسطه دَ زهری، دَ نبی کريم ﷺ نه مرسل روايت کړې دې.

**قوله:** ﴿ كُلُّ كَلَامٍ لَا يُبْدَأُ فِيهِ بِحَمْدِ لِلَّهِ فَهُوَ أَجْذَمُ ﴾ يعنى د کوم کلام په شروع کښې چه د الله پاک حمد او ثناء نه وی نو هغه کلام نقاص دې او د ابن ماجه په روايت کښې دی ﴿فهو اقطع﴾ يعنى هغه مقطوع البرکة دې.

د دې حديث په سند باندې مصنف رحمه الله کلام کړې دې هغه دا چه اکثر راويانو دا حديث د زهری نه مرسلا روايت کړې دې ([3]) عن الزهری عن النبی ﷺ ....والحديث اخرجه النسائي مسندا ومرسلا قاله المنذری.

## بَابٌ فِي الْخُطْبَةِ

### باب ۱۹ - دَ خطبې ونيلو بيان

[۴۸۴۱]([4]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ كُلَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ".

[1]: سنن الترمذي/المناقب ۹ (۳۶۳۹)، (تحفة الأشراف: ۱۶۴۰۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۸/۶، ۲۵۷) (حسن)

[2]: سنن ابن ماجه/النكاح ۱۹ (۱۸۹۴)، (تحفة الأشراف: ۱۵۲۳۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۹/۲) (ضعيف)

[3]: او د دې حديث په اسنادی مرتبه کښې د علماء اختلاف دې، سبکی د طبقات شافعيه په شروع کښې په دې باندې تفصيلی کلام کولو سره خپل ميلان د تحسين يا تصحيح طرف ته ظاهر کړې دې.

[4]: سنن الترمذي/النكاح ۱۶ (۱۱۰۶)، (تحفة الأشراف: ۱۴۲۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۳/۲) (صحيح)

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل هر هغه خطبه چه په هغې کښې د تشهد (د الله د توحيد او د محمد رسول الله ﷺ د رسالت ذکر) نۀ وي نو هغه داسې ده لکه جزام زده (ناقص او عيب دار) لاس.''

**قوله: ﴿ كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ ﴾**

خطبه وائي هغه اهم کلام و خبرې ته کومه چه د خلقو مخې ته کيخودلې شي، د تشهد نه مراد شهادتين، لکه چه د حمد او ثناء نه پس معروف او مروج دى (د باب اول او د دې باب د دواړو) احاديثو د يو ځائې کولو نه معلومه شوه چه د قابل اهتمام او اهم خبرې په شروع کولو کښې حمد وثنا او تشهد کيدل پکار دى (د دې دواړو مجموعې ته زمونږ په عرف کښې خطبه وائى) والحديث اخرجه الترمذى، قاله المنذرى.

## بَابٌ فِي تَنْزِيلِ النَّاسِ مَنَازِلَهُمْ

**باب: ۲۰- د هر کس د مقام او مرتبې د خيال ساتلو بيان**

يعنې هر سړي لره د هغه مناسب مقام او مرتبه ورکول.

[۴۸۴۲](1) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، وَابْنُ أَبِي خَلَفٍ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ الْيَمَانِ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ أَبِي شَبِيبٍ، أَنَّ عَائِشَةَ مَرَّ بِهَا سَائِلٌ فَأَعْطَتْهُ كِسْرَةً، وَمَرَّ بِهَا رَجُلٌ عَلَيْهِ ثِيَابٌ وَهَيْئَةٌ فَأَقْعَدَتْهُ فَأَكَلَ، فَقِيلَ لَهَا فِي ذَلِكَ، فَقَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنْزِلُوا النَّاسَ مَنَازِلَهُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ يَحْيَى مُخْتَصَرٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: مَيْمُونٌ لَمْ يُدْرِكْ عَائِشَةَ.

د ميمون بن شبيب نه روايت دې چه په حضرت عائشې رضي الله عنها باندې يو سائل تير شو، نو هغې هغه سوال کړى ته د روټۍ يوه ټکړا ورکړه. بيا يو دويم کس تير شو چه هغه ښۀ کپړې اغوستې وې او د هغه حالت عمده وو نو حضرت عائشې رضي الله عنها هغه لره کينولو او خوراک ئې پرې اوکړو. د هغې نه ددې فرق په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغې اوفرمائيل: چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دى خلقولره په خپلو منازلو باندې اوساتئ.''امام ابوداود رحمه الله فرمائى: چه د يحيى حديث مختصر دې،امام ابوداود رحمه الله فرمائى چه ميمون حضرت عائشې رضي الله عنها لره نۀ ده موندلې.

د باب د اول حديث مضمون دا دې چه د عائشې رضي الله عنها د کور مخې ته يو سوالگر تير شو نو هغې د هغه په لاس کښې د ډوډۍ يو ټکړه ورکړه او چه د يو ښه هيئت او جامو والا تير شو نو عائشې رضي الله عنها هغه کينولو او خوراک ئې پرې اوکړو، بيا د چا په تپوس باندې هغې د دې وجه بيان کړه چه رسول الله ﷺ هم دا فرمائيلي دى: أَنْزِلُوا النَّاسَ مَنَازِلَهُمْ.

[۴۸۴۳](2) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الصَّوَّافُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حُمْرَانَ، أَخْبَرَنَا عَوْفُ بْنُ أَبِي جَمِيلَةَ، عَنْ زِيَادِ بْنِ مِخْرَاقٍ، عَنْ أَبِي كِنَانَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ إِجْلَالِ اللَّهِ إِكْرَامَ ذِي الشَّيْبَةِ الْمُسْلِمِ وَحَامِلِ الْقُرْآنِ غَيْرِ الْغَالِي فِيهِ وَالْجَافِي عَنْهُ وَإِكْرَامَ ذِي السُّلْطَانِ الْمُقْسِطِ".

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۶۹) (ضعيف)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۱۵۰) (حسن)

دَ حضرت ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه نه رایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: '' بې شکه دَ بوډا مسلمان او دَ صاحب قرآن عزت کول، چه هغه په دې کښې غلو او دَ تقصیر نه ځان بچ ساتي، (دغه شان) دَ عادل حاکم عزت کول، دَ الله عز وجل دَ عزت حصه ده .''

**قوله:** ﴿ إِنَّ مِنْ إِجْلَالِ اللَّهِ إِكْرَامَ ذِي الشَّيْبَةِ الْمُسْلِمِ وَحَامِلِ الْقُرْآنِ غَيْرِ الْغَالِي فِيهِ وَالْجَافِي عَنْهُ وَإِكْرَامَ ذِي السُّلْطَانِ الْمُقْسِطِ ﴾

د بوډا مسلمان اکرام کول دا ګویا د الله پاک اعزاز او اکرام کول دی او هم دغه شان د حافظ قرآن اکرام، داسې حافظ قرآن کوم چه د قرآن کریم په تلاوت کښې غلو او د حد نه تجاوز نه کوی، یعنی په تجوید او ادا کولو د حروفو کښې (بذل) او دویم قول د غالی په تفسیر کښې دا دې یعنی په اعتبار د عمل او په اعتبار د تتبع د مشتبهاتو او د ﴿ جافي عنه ﴾ نه مراد تارک تلاوت دې، یعنی چه کوم تارک تلاوت نه وی او وړاندې په حدیث کښې دی د سلطان عادل اکرام، یعنی هغه هم د الله پاک په تعظیم کښې داخل دې، په دې حدیث کښې د بوډا مسلمان تعظیم ته ډیر اهمیت ورکړې شوې دې تردې چه هغې ته د الله پاک تعظیم وئیلې شوې دې دا تعظیم د هغه د اسلام او د بوډاتوب د وجې نه دې او هیڅ علم یا فضل لره په دې کښې دخل نشته که هغه په دې انسان کښې وی او که نه وی هم دغه شان د حافظ قرآن حال هم دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَجْلِسُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ بِغَيْرِ إِذْنِهِمَا

### بابـ ۲۱- بغیر دَ اجازت نه دَ دوو کسانو په مابین کښې دَ کیناستو بیان

[٤٨٤٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا عَامِرٌ الْأَحْوَلُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، قَالَ ابْنُ عَبْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: لَا يُجْلَسْ بَيْنَ رَجُلَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا".

حضرت عمرو بن شعیب، د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکۀ نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: '' دَ دوو کسانو په مابین کښې به ناسته نۀ شي کولې مګر دا چه هغوی اجازت اوکړی .''

[٤٨٤٥]([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ اللَّيْثِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا".

دَ حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دَ چا دپاره حلال نۀ دی چه هغه دوو کسانو لره جُدا جُدا کړی (کوم چه یوځائې ناست وی او دې ورشی دَ هغوی په مابین کښې کینی) مګر دا که دَ هغې دوارو اجازت وی .''

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۲۳) (حسن)

[2]: سنن الترمذي/الأدب ۱۲ (۱۷۵۳)، (تحفة الأشراف: ۸۶۵٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۱۳) (حسن صحيح)

# بَاب فِي جُلُوسِ الرَّجُلِ

## باب: ۲۲: دَ سړي دَ ناستې متعلق احکام او مسائل

[٤٨٤٦](١) حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْأَنْصَارِيُّ، عَنْ رُبَيْحِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا جَلَسَ احْتَبَى بِيَدِهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ شَيْخٌ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ.

دَ حضرت ابو سعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به کله کيناستو نو خپلې پنډئ به ئې دَ سينې سره پيوسته کولې او خپل لاسونه به ئې ترې نه چاپيره کول - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه په سند کښې مذکور عبد الله بن ابراهيم شيخ منکر الحديث دې.

[٤٨٤٧](٢) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ حَسَّانَ الْعَنْبَرِيُّ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي جَدَّتَايَ صَفِيَّةُ، وَدُحَيْبَةُ ابنتا عليبة، قَالَ مُوسَى: بِنْتِ حَرْمَلَةَ وَكَانَتَا رَبِيبَتَيْ قَيْلَةَ بِنْتِ مَخْرَمَةَ وَكَانَتْ جَدَّةَ أَبِيهِمَا أَنَّهَا أَخْبَرَتْهُمَا، "أَنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ قَاعِدٌ الْقُرْفُصَاءَ، فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخْتَشِعَ، وَقَالَ مُوسَى: الْمُتَخَشِّعَ فِي الْجِلْسَةِ أُرْعِدْتُ مِنَ الْفَرَقِ.

حضرت قيله بنت مخرمه رضی الله عنها فرمائی چه هغې پيغمبر ﷺ لره اوليدو چه هغه دَ " قُرفصاء " په حالت کښې ناست وو (د احتباء په شکل يعنی پنډئ ئې دَ سينې سره لګولې وې او لاسونه ئې دَ پښو نه راچاپيره کړې وو -) فرمائی چه ما کله رسول الله عليه السلام ﷺ لره دَ خشوع او دَ انکسار په دې کيفيت کښې اوليدو نو دَ يرې نه په ما باندې لرزه راغله -

**قوله:** ﴿ عَنْ قَيْلَةَ بِنْتِ مَخْرَمَةَ أَنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– وَهُوَ قَاعِدٌ الْقُرْفُصَاءَ ﴾
قيله رضی الله عنها فرمائی چه ما يو ځل رسول الله ﷺ اوليدو په داسې حال کښې چه هغوی خپلو دواړو لاسونو لره د خپو نه راتاؤ کړی وو او ناست وو، هغه فرمائی چه کله زما نظر په هغوی باندې پريوتلو په دې خشوع سره ناسته کولو سره نو زه د ويرې نه اوريپدم، په بذل کښې ليکی چه دا روايت په طبرانی کښې بطوله دې چه د هغې په اخير کښې دا دی چه قيله رضی الله عنها فرمائی چه کوم سړې ما سره خوا کښې ناست وو هغه زما په باره کښې رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ ﴿ ارعدت المسکينة ﴾ چه دا مسکينه زنانه خو رپيږی نو په دې باندې رسول الله ﷺ زما طرف ته د کتلو نه بغير په خپل لاس مبارک سره تسلی راکولو سره اوفرمائيل : يا مسکينة عليک السکينة ...د رسول الله ﷺ په دې فرمائيلو باندې الله پاک زما نه هغه ويره لرې کړه.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤١٢٠) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الإشتذان ٥٠ (٢٨١٤)، الشمائل (٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٨٠٤٧) (حسن)

## بَابٌ فِي الْجِلْسَةِ الْمَكْرُوهَةِ

### باب: ....... دَ ناستې يو مکروهه انداز

[٤٨٤٨]() حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الشَّرِيدِ، عَنْ أَبِيهِ الشَّرِيدِ بْنِ سُوَيْدٍ، قَالَ: "مَرَّ بِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا جَالِسٌ هَكَذَا وَقَدْ وَضَعْتُ يَدِيَ الْيُسْرَى خَلْفَ ظَهْرِي وَاتَّكَأْتُ عَلَى أَلْيَةِ يَدِي، فَقَالَ: أَتَقْعُدُ قِعْدَةَ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ".

حضرت شريد بن سويد بيان کوی چه رسول الله ﷺ په ما باندې تير شو په داسې حال کښې چه ما ګس لاس شاته ايخودې وو او دَ ګوتې په څائې باندې مې ډډه لګولې ناست وم نو حضور ﷺ اوفرمائيل آيا تهٔ دَ هغه خلقو په شان ناسته کوې چه په هغوی باندې دَ الله غضب شوې دې۔"

**قوله:** ﴿ عن الشَّرِيدِ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ مَرَّ بِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَنَا جَالِسٌ هَكَذَا الخ ﴾

شريد وائی چه يو ځل زه داسې ناست اوم چه خپل ګس لاس مې شاته په زمکه باندې ايخودلې وو او په هغې باندې مې تکيه لګولې وه، نو رسول الله ﷺ په داسې ناسته باندې نکير اوفرمائيلو چه ته د مغضوب عليهم په شان کينې.

د مغضوب عليهم نه مراد کيدې شي چه يهود وی، د دې نه معلومه شوه چه داسې په ګس لاس باندې ډډه وهلو سره ناسته نه ده پکار.

## بَابُ النَّهْيِ عَنِ السَّمَرِ بَعْدَ الْعِشَاءِ

### باب ۲۳- دَ ماسخوتن نه ورستو په بې مقصده خبرو کښې مشغوله کيدل

[٤٨٤٩]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عَوْفٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو الْمِنْهَالِ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى عَنِ النَّوْمِ قَبْلَهَا وَالْحَدِيثِ بَعْدَهَا".

دَ حضرت ابو برزه رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به منع فرمائيله دَ اودهٔ کيدو نه دَ ماسخوتن دَ مونځ نه مخکښې او ددې نه ورستو دَ خبرو کولو نه۔

﴿ يَنْهَى عَنِ النَّوْمِ قَبْلَهَا وَالْحَدِيثِ بَعْدَهَا ﴾ دا حديث په مواقيت الصلاة کښې تير شوې دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَجْلِسُ مُتَرَبِّعًا

### باب ۲٦- په بيان دَ هغه سړی کښې چه چارزانو باندې ناسته کوی

[٤٨٥٠]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ تَرَبَّعَ فِي مَجْلِسِهِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ حَسْنَاءَ".

سيدنا جابر بن سمره رضی الله عنه بيان کوی چه رسول الله ﷺ به کله دَ سحر مونځ اوکړو نو بيا به په

---

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٨٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٨/٤) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/ المواقيت ٢٣ (٥٦٨)، سنن الترمذي/الصلاة ١١ (١٦٨)، سنن ابن ماجه/ الصلاة ١٢٥ (٧٠١)، (تحفة الأشراف: ١١٦٠٥، ١١٦٠٦) (صحيح)

[3]: صحيح مسلم/المساجد ٥٢ (٦٧٠)، (تحفة الأشراف: ٢١٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٠/٥، ١٠١، ١٠٧) (صحيح)

چارزانو باندې کیناستو، تردې پورې چه نمر به ښهٔ طلوع شو۔

**قوله:** ﴿ إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ تَرَبَّعَ فِي مَجْلِسِهِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ حَسْنَاءَ ﴾ یعنی د رسول الله ﷺ معمول دا وو چه د سحر د مانځه نه پس به خپل ځائې کښې پرلت وهلو سره کیناستلو تردې چه نمر به ښکاره شو چه په هغې کښې سرخی نه وی کومه چه په شروع کښې وی.

## بَابٌ فِي التَّنَاجِي

### باب: ۲۴ - دَ سرګوشۍ بیان

[۴۸۵۱]() حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ شَقِيقٍ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَنْتَجِي اثْنَانِ دُونَ الثَّالِثِ فَإِنَّ ذَلِكَ يُحْزِنُهُ".

سیدنا عبد الله بن مسعود رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: څوک دوه کسان دې سرګوشي نهٔ کوی بغیر دَ ملګری خپل نه۔ [یعنی چه درې کسان وی نو دوه کسان دې یو بل سره پټې خبرې نهٔ وی]

**قوله:** ﴿ لَا يَنْتَجِي اثْنَانِ دُونَ الثَّالِثِ فَإِنَّ ذَلِكَ يُحْزِنُهُ ﴾ یعنی د آداب مجلس نه دا هم ده چه په کوم ځائې کښې درې کسان ناست وی نو د هغوی نه دې دوه کسان خپل مینځ کښې پټې خبرې نه کوی ځکه چه هغه دریم کس به په دې باندې غمژن کیږی، او وړاندې په روایت کښې دی چه که څلور کسان وی نو بیا د دوه کسانو په تناجی کښې هیڅ باک نشته، په حاشیه د بذل کښې دی چه د دې حدیث په شرح کښې اووهٔ بحثونه دی چه د هغې خلاصه په حاشیه د کوکب کښې ذکر شوې ده او هغه اووهٔ بحثونه دا دی، علة النهی، الحزن او سوء الادب او خوف الغیبة هل الحکم باقی او کان فی اول الاسلام للخوف، هل یختص بالسفر؟ والجمهور علی العموم، وذکر الاثنین لیس باحتراز بل المعنی ترک الواحد ویستثنی منه الاذن والرضاء ولا یجوز للثالث الدخول اذا کانا متناجیین من قبل، النهی للتحریم کما عند الجمهور، او نهی ادب وکمال اهـ

[۴۸۵۲]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ، قَالَ أَبُو صَالِحٍ: فَقُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ: فَأَرْبَعَةٌ، قَالَ: لَا يَضُرُّكَ.

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دی: او مذکوره بالا روایت ئې بیان کړو۔

[1]: صحیح مسلم/السلام ۱۵ (۲۱۸٤)، سنن الترمذي/الأدب ۵۹ (۲۸۲۵)، سنن ابن ماجه/الأدب ۵۰ (۳۷۷۵)، (تحفة الأشراف: ۹۲۵۳)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الاستئذان ٤۵ (٦۲۸۸)، ٤۷ (٦۲۹۰)، موطا امام مالك/الكلام ٦ (١٤)، مسند احمد (٤۲۵/١، ٤٦۲، ٤٦٤)، دي/الاستئذان ۲۸ (۲٦۹۹) (صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦۷١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١۸/۲، ٤۳، ١٤١) (صحیح)

## باب إذا قام من مجلس ثم رجع

**باب: ٢٥ - كوم كس چه دَ خپل ځائي نه پاسي او بيا واپس راشي**

[٤٨٥٣] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، قَالَ: كُنْتُ عِنْدَ أَبِي جَالِسًا وَعِنْدَهُ غُلَامٌ فَقَامَ ثُمَّ رَجَعَ، فَحَدَّثَ أَبِي عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا قَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسٍ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ".

حضرت سهيل بن ابي صالح بيان كوي چه زۀ د خپل پلار سره ناست وم، نو هغه پاسيدو لاړو او بيا واپس راغي نو زما پلار دَ حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت بيان كړو چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل: "كوم كس چه دَ خپل ځائي نه پاسي لاړ شي او بيا واپس راشي نو دې د دې ځائي زيات حقدار دې."

**قوله:** ﴿ إِذَا قَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسٍ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ ﴾ يعنى كه يو سړې د مجلس نه د څۀ ضرورت په وجه لاړ شي، د واپس راتلو په اراده باندې نو كه بيا هغه راغلو نو زيات حقدار هم هغه دې، او دا په هغه صورت كښې ده چه كله دا ځائي د هغه راواپس كيدونكي سړي ملك نه وي بلكه حقوق عامه وي، خو كه هغه ځائي د چا ملك وي نو بيا به هغه مالك احق وي (بذل) امام نووي رحمه الله فرمائي چه د واپس كيدونكي احقيت هغه وخت دې چه كله د يو مختصر كار د كولو دپاره پاسيدلې وي، او هغوي دا هم فرمائي چه دا حكم عام دې كه هغه سړې په هغه ځائي باندې خپله څه كپړه وغيره كيخودلو سره پاسي يا بغير د دې نه.
او د دې نه په روستو حديث كښې دي چه د رسول الله ﷺ معمول وو چه كه هغوى به د مجلس په دوران كښ د څه كار دپاره پاسيدل نو د پاسيدو په وخت به ئي خپل څه څيز هلته پريخودلو نعلين شريف يا كپړه وغيره چه د هغې نه به د هغوى اصحابو رضي الله عنهم ته پته اولګيده چه رسول الله ﷺ به واپس راځي لهذا هغوى به هم هلته ناست وو.

[٤٨٥٤] (٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا مُبَشِّرٌ الْحَلَبِيُّ، عَنْ تَمَّامِ بْنِ نَجِيحٍ، عَنْ كَعْبٍ الْإِيَادِيِّ، قَالَ: كُنْتُ أَخْتَلِفُ إِلَى أَبِي الدَّرْدَاءِ، فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ فَقَامَ فَأَرَادَ الرُّجُوعَ نَزَعَ نَعْلَيْهِ أَوْ بَعْضَ مَا يَكُونُ عَلَيْهِ فَيَعْرِفُ ذَلِكَ أَصْحَابُهُ فَيَثْبُتُونَ".

حضرت كعب ايادي رحمه الله فرمائي چه زۀ به حضرت ابو درداء رضي الله عنه ته تلم راتلم. نو حضرت ابو درداء رضي الله عنه اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ به كله په يو ځائي باندې ناست وو او مونږ به هم دَ هغه نه ګير چاپيره كيناستو، نو كه چرې هغه به پاسيدو او تلو به او دَ واپس راتلو اراده به ئي وه نو خپل پيزار يا چه څه به په هغه باندې وو [ يعنى كپړا وغيره ] نو هغه به ئي هلته كښې پريخودلو، نو په دې سره به صحابۀ كرامو رضي الله عنهم ته دَ هغوى دَ واپس راتلو پته لګيده نو هغوى به ناست وو.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٢٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/السلام ١٢ (٢١٧٩)، سنن ابن ماجه/الأدب ٢٢ (٣٧١٧)، مسند احمد (٢/٣٤٢، ٥٢٧)، سنن الدارمي/الاستئذان ٢٥ (٢٦٩٦) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٩٦٠) (ضعيف)

# بَابُ كَرَاهِيَةِ أَنْ يَقُومَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ وَلَا يَذْكُرُ اللَّهَ

**باب: ...... دَمجلس نه بغیر دَ الله په ذکر سره دَ پاسیدو کراهت**

[٤٨٥٥](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ قَوْمٍ يَقُومُونَ مِنْ مَجْلِسٍ لَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ فِيهِ إِلَّا قَامُوا عَنْ مِثْلِ جِيفَةِ حِمَارٍ وَكَانَ لَهُمْ حَسْرَةً".

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کوم خلق چه د مجلس نه پاسي او هغوی په دې مجلس کښې دَ الله تعالیٰ ذکر نهٔ وی کړې، نو دا داسي دی لکه چه دوی دَ مړ خر نه پاسیدلي او (په آخرت کښې به) دا مجلس دَ دوی دپاره دَ حسرت باعث وی." [یعنی دا تمنا به کوی چه کاش مونږ په دې مجلس کښې دَ الله تعالیٰ ذکر کړې وې.]

**قوله:** ﴿مَا مِنْ قَوْمٍ يَقُومُونَ مِنْ مَجْلِسٍ لَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ فِيهِ إِلَّا قَامُوا عَنْ مِثْلِ جِيفَةِ حِمَارٍ وَكَانَ عليهم حَسْرَةً﴾ دا حدیث زمونږ په نسخه کښې د ذکر شوي باب د لاندې دې خو د دې حدیث دې باب سره هیڅ مناسبت نشته، او په بعض نسخو په دې باندې مستقل بله ترجمه ده هم د دې حدیث مناسب: **باب كراهية ان يقوم الرجل من مجلسه ولا يذكر الله تعالى.** مضمون د حدیث دا دې چه کوم خلق د یو داسې مجلس د پوره کولو نه پس پاسی چه په هغې کښې د الله پاک ذکر چا نه وی کړې نو هغوی داسې دی ګویا د یو مردار خر نه پاسیدلي وی، او دا مجلس به د هغوی دپاره د قیامت په ورځ باندې د افسوس سبب وی، ځکه چه مجلس عادة د فضول خبرو نه خالی نه وی او ذکر الله په منزله د کفاره وی، او د مولانا یحیی صاحب په تقریر کښې دی چه په دې حدیث کښې مراد دا نه دې چه دا خلق د مردارې خوړلو نه پاسیدلي دی ګڼې بیا خو به دا مجلس مجلس د حرامو شي او ترک ذکر ته حرام نه شی وئیلي کیدې بلکه مطلب دا دې چه ګویا د مردار ځناور د خوا نه پاسیدلي دی او د مردار ځناور قرب مکروه خو دې ضرور. (بذل)

[٤٨٥٦](2) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ قَعَدَ مَقْعَدًا لَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ فِيهِ كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ اللَّهِ تِرَةٌ، وَمَنِ اضْطَجَعَ مَضْجَعًا لَا يَذْكُرُ اللَّهَ فِيهِ كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ اللَّهِ تِرَةٌ".

حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کوم کس چه په یو ځائې، یا په مجلس کښې ناست وی او دهٔ په هغې کښې دَ الله تعالیٰ ذکر نهٔ وی کړې، نو دا به ددهٔ دپاره دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ ډیر نقصان باعث وی، او څوک چه په یو ځائې کښې ملاست وی او په هغې کښې دهٔ دَ الله تعالیٰ ذکر نهٔ وی کړې، نو دا به ددهٔ دپاره دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ ډیر نقصان باعث وی."

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۹۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۵۱۵، ۵۲۷) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۰۴۳)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ۸ (۳۳۸۰)، مسند احمد (۲/۴۳۲، ۴۵۲، ۴۸۱، ۴۸۴) (حسن صحيح)

# بَابٌ فِي كَفَّارَةِ الْمَجْلِسِ

## باب: ۲۷ - دَ مجلس دَ کفارې دُعا

[۴۸۵۷] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ أَبِي هِلَالٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ سَعِيدَ بْنَ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيَّ حَدَّثَهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّهُ قَالَ: "كَلِمَاتٌ لَا يَتَكَلَّمُ بِهِنَّ أَحَدٌ فِي مَجْلِسِهِ عِنْدَ قِيَامِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ إِلَّا كُفِّرَ بِهِنَّ عَنْهُ، وَلَا يَقُولُهُنَّ فِي مَجْلِسِ خَيْرٍ وَمَجْلِسِ ذِكْرٍ إِلَّا خُتِمَ لَهُ بِهِنَّ عَلَيْهِ كَمَا يُخْتَمُ بِالْخَاتَمِ عَلَى الصَّحِيفَةِ: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ".

حضرت عبد الله بن عمر بن العاص رضی الله عنه فرمائی چه: څو کلمات دي څوک چه دا دَ مجلس نه دَ پاسیدو په وخت کښې درې ځله اووائی نو دا به دَ هغه دپاره کفاره جوړیږي، او څوک چه دې لره په خپل دغه مجلس کښې اووائی، که هغه مجلس دَ خیر وی او که دَ ذکر نو دا به ددهٔ دپاره داسې وی لکه چه په تحریر باندې مهر لګولې شوې وی (ددهٔ دپاره به ددې اجر او ثواب او دَ ګناهونو نه کفاره کیدل محفوظ وی: هغه کلمات دادی) { سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِکَ، لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُکَ وَ أَتُوبُ إِلَيْکَ. }

په حدیث الباب کښې دی چه د مجلس په ختم باندې که دا دعا اولوستلې شی: ﴿سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ﴾ نو دا دعا د هغه مجلس کفاره شی، د هغه مجلس د لغزش او ګناهونو دپاره، او د مجلس خیر په ختمیدو باندې که اولوستلې شی نو دا دعا په منزله د مهر شی یعنی هغه نیکی نوره هم مضبوطه او محفوظ شی.

[۴۸۵۸] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: قَالَ عَمْرٌو، وَحَدَّثَنِي بِنَحْوِ ذَلِكَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي عَمْرٍو، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

عبد الرحمن بن ابو عمرو په واسطه د مقبری د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه، او هغوی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه د مذکوره حدیث په مثل باندې روایت کړې دې.

[۴۸۵۹] (٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ الْجَرْجَرَائِيُّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، أَنَّ عَبْدَةَ بْنَ سُلَيْمَانَ أَخْبَرَهُمْ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي هَاشِمٍ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيِّ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ بِأَخَرَةٍ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَقُومَ مِنَ الْمَجْلِسِ: سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ، فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّكَ لَتَقُولُ قَوْلًا مَا كُنْتَ تَقُولُهُ فِيمَا مَضَى، فَقَالَ: كَفَّارَةٌ لِمَا يَكُونُ فِي الْمَجْلِسِ".

د حضرت ابو برزه اسلمی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به په خپل اخری ورځو کښې کله دَ مجلس نه پاسیدو نو دا کلمات به ئې وئیل: {(سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِکَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٩٨١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ٣٩ (٣٤٢٩)، مسند احمد (٤٩٤/٢) (صحيح) دون قوله: "ثلاث مرات"

(٢): انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ١٢٩٨١) (صحيح)

(٣): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٦٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٥/٤)، سنن الدارمي/الاستئذان ٢٩ (٢٧٠٠) (حسن صحيح)

إِلَّا أَنْتَ،أَسْتَغْفِرُكَ وَ أَتُوبُ إِلَيْكَ)} يو كس دَ نبی كريم ﷺ نه پوښتنه اوكړه چه اې دَ الله رسوله ! تاسو دا سې كلمات وائې چه مخكښې به مو نهٔ وئيلې؟ (ددې څه وجه ده؟) حضور ﷺ اوفرمائيل دا دَ هغې څيز دَ كفارې دپاره دی كوم چه په مجلس كښې كيږی.

**قوله:** ﴿ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ بِأَخَرَةٍ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَقُومَ مِنَ الخ ﴾

يعنی رسول الله ﷺ به د مجلس په آخر او ختم باندې دا دعا لوستله او يا مطلب دا چه په آخری عمر او اخره زمانه كښې ئې دا دعا لوستل شروع كړل د مجلس نه د پاسيدو په وخت.

# بَابٌ فِي رَفْعِ الْحَدِيثِ مِنَ الْمَجْلِسِ

## باب: د مجلس خبره بل ځائې ته اوړل

يعنی د يو ځائې خبره بل ځائې ته نقل كول، د يو خبره بل ته په طور د شكايت رسول، د اول مطلب مناسب دې حديث﴿ المجالس بالامانة ﴾ او د ويم مطلب مناسب دا حديث الباب دې.

[٤٨٦٠]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، عَنْ إِسْرَائِيلَ، عَنِ الْوَلِيدِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَنَسَبَهُ لَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ إِسْرَائِيلَ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ الْوَلِيدُ ابْنُ أَبِي هِشَامٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ زَائِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُبَلِّغُنِي أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِي عَنْ أَحَدٍ شَيْئًا فَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَخْرُجَ إِلَيْكُمْ وَأَنَا سَلِيمُ الصَّدْرِ".

ضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" څوك دې ماته زما د صحابه وُ په باره كښې څه خبره نهٔ رارسوی - زهٔ غواړم چه زهٔ تاسو ته راشم،او زهٔ سليم الصدر يم - (يعنی زما سينه دې پاكه وی ]

**قوله:** ﴿ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « لاَ يُبَلِّغُنِى أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِى عَنْ أَحَدٍ شَيْئًا فَإِنِّى أُحِبُّ أَنْ أَخْرُجَ إِلَيْكُمْ وَأَنَا سَلِيمُ الصَّدْرِ » ﴾

رسول الله ﷺ خپلو صحابه كرامو رضی الله عنهم ته هدايت فرمائی چه په تاسو كښې دې څوك هم د خپل ملګری شكايت ماته نه راوړی ځكه چه زما د خپل ځان په باره كښې دا خبره خوښه ده چه زه ستاسو مخكښې مجلس ته راشم په داسې حال كښې چه زما سينه (مباركه) محفوظ وی.يعنی د اهل مجلس د طرف نه يا د چا د طرف نه زما په زړه كښې څهٔ نه وی، ظاهره ده چه د شكايت رارسيدو په صورت كښې خو به د رسول الله ﷺ په زړه كښې د هغه سړی تشريح متعلق تكدر پيدا كيږی.

### د ترمذی شريف د يو ترجمة الباب تشريح :

امام ترمذی رحمه الله په دې حديث باندې باب فی فضل الازواج ترجمه قائم كړې ده او هغوی د دې حديث نه د ازواج مطهرات فضيلت ثابت كړو ، هغه په ظاهر كښې د دې حديث نه داسې په فهم كښې راځی چه رسول الله ﷺ دا فرمائی چه څنګه زه د كور دننه مجلس نه د بهر مجلس ته سليم الصدر راځم نو هم دغه شان د بهر د مجلس په اعتبار سره هم زه سليم الصدر كيدل غواړم لهذا په تاسو كښې دې ماته څوك د ملګری شكايت نه كوی، پس د دې نه معلومه

[1]: سنن الترمذي/المناقب ٦٤ (٣٨٩٦)، (تحفة الأشراف: ٩٢٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٩٦) (ضعيف)

شوه چه په ازواج مطهراتو کښې به يوې هم د بلې شکايت رسول الله ﷺ ته نه کولو.(١)

## بَابٌ فِي الْحَذَرِ مِنَ النَّاسِ

**باب: ۲۹ - په خلقو کښې هوښيار اوسيدل [هر يو کس باندې اعتماد نۀ شی کولې]**

يعنی د خلقونه احتياط کول او د هغوی د شر نه بچ کيدل په هر يو باندې اعتماد نه کول،

[ ٤٨٦١ ](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا نُوحُ بْنُ يَزِيدَ بْنِ سَيَّارٍ الْمُؤَدِّبُ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِيهِ ابْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ عِيسَى بْنِ مَعْمَرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْفَغْوَاءِ الْخُزَاعِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "دَعَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ أَرَادَ أَنْ يَبْعَثَنِي بِمَالٍ إِلَى أَبِي سُفْيَانَ يَقْسِمُهُ فِي قُرَيْشٍ بِمَكَّةَ بَعْدَ الْفَتْحِ، فَقَالَ: الْتَمِسْ صَاحِبًا، قَالَ: فَجَاءَنِي عَمْرُو بْنُ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيُّ، فَقَالَ: بَلَغَنِي أَنَّكَ تُرِيدُ الْخُرُوجَ وَتَلْتَمِسُ صَاحِبًا، قَالَ: قُلْتُ: أَجَلْ، قَالَ: فَأَنَا لَكَ صَاحِبٌ، قَالَ: فَجِئْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْتُ: قَدْ وَجَدْتُ صَاحِبًا، قَالَ: فَقَالَ: مَنْ؟ قُلْتُ: عَمْرُو بْنُ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيُّ، قَالَ: إِذَا هَبَطْتَ بِلَادَ قَوْمِهِ فَاحْذَرْهُ، فَإِنَّهُ قَدْ قَالَ الْقَائِلُ: أَخُوكَ الْبِكْرِيُّ وَلَا تَأْمَنْهُ، فَخَرَجْنَا حَتَّى إِذَا كُنْتُ بِالْأَبْوَاءِ، قَالَ: إِنِّي أُرِيدُ حَاجَةً إِلَى قَوْمِي بِوَدَّانَ، فَتَلَبَّثْ لِي، قُلْتُ: رَاشِدًا، فَلَمَّا وَلَّى ذَكَرْتُ قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَدَدْتُ عَلَى بَعِيرِي حَتَّى خَرَجْتُ أُوضِعُهُ حَتَّى إِذَا كُنْتُ بِالْأَصَافِرِ إِذَا هُوَ يُعَارِضُنِي فِي رَهْطٍ، قَالَ: وَأَوْضَعْتُ فَسَبَقْتُهُ، فَلَمَّا رَآنِي قَدْ فُتُّهُ انْصَرَفُوا وَجَاءَنِي، فَقَالَ: كَانَتْ لِي إِلَى قَوْمِي حَاجَةٌ، قَالَ: قُلْتُ: أَجَلْ وَمَضَيْنَا حَتَّى قَدِمْنَا مَكَّةَ، فَدَفَعْتُ الْمَالَ إِلَى أَبِي سُفْيَانَ".

عبد الله بن عمرو بن فغواء خزاعی د خپل پلار نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ ما لره راوبللو ......او حضرت ﷺ ماته مال راکړو او دې لره ئې په مکه کښې ابو سفيان ته ليږل غوښتل - چه هغه ئې په اهل قريشو کښې تقسيم کړی او دا د فتح مکې نه ورستو واقعه ده ......حضور ﷺ ماته اوفرمائيل :" څوک ملګرې تلاش کړه -" چنانچه عمرو بن اميه ضمری ماته راغې او وئيل ئې ما اوريدلی دی چی تۀ مکې ته تلل غواړې او د رفيق سفر په تلاش کښې ئې ما اووې او - هغه اووې چه زۀ درسره ځمه - چنانچه زۀ د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې اوکړو ما د سفر ملګرې تلاش کړې دې - حضور ﷺ اوفرمائيل څوک دې؟ ما ورته اووې چه عمرو بن اميه ضمری، حضور ﷺ اوفرمائيل کله چه تاسو ددۀ د قوم علاقې ته اورسئ نو خوشيار [ بيدار ] اوسئ وئيلو والا وائی چه بکری (د با په زير سره ) ستا رور دې مګر په دۀ باندې اعتماد مۀ کوه، چنانچه مونږه اووتلو تردې پورې چه ابواء مقام ته اورسيدو نو هغه ما ته اووې چه زما خپل قوم سره لږ غوندې کار دې زۀ ودان ته ځمه تۀ دلته کښې اودريږه زما انتظار کوه، ما ورته اووې خير په سلامتيا سره لاړ شه کله چه هغه روان شو نو ماته د نبی کريم ﷺ فرمان ياد شو نو زۀ په خپل اوښ باندې سور شوم او هغې لره مې شړولو تردې پورې چه اصافر مقام ته اورسيدم، نو اچانک ګورم چه اميه د خپل قوم د څو کسانو سره زما په معارضه کښې راروان دې چنانچه ما خپل اوښ

(١) څکه چه رسول الله ﷺ د خپل زړه سلامتی صدر د بهر د مجلس والو په عدم شکايت باندې موقوف کړه اود کور د مجلس نه هغوی مطمئن وو هلته داسې څۀ خبره نه موندلې کيدله چه د خفګان سبب وی.

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٧٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٩/٥) (ضعيف)

نور هم تیز اوشړلو تردې پورې چه د هغوی نه وړاندې شوم هر کله چه هغه اوکتل چه زۀ د هغوی د لاسونو نه اووتلم نو هغوی واپس شو - بیا هغه یوائې ماته راغې اووې وئیل چه زما د خپل قوم سره څه کار وو - ما اووې وو به - تردې پورې چه مونږ مکې ته راورسیدو او ما هغه مال ابو سفیان رضی الله عنه ته حواله کړو -

په دې کښې مصنف رحمه الله یو واقعه ذکر کړې ده چه د هغې خلاصه دا ده چه د عمرو بن الفغواء الخزاعی صحابی رضی الله عنه نه روایت دی چه یو ځل زه رسول الله ﷺ راطلب کړم، هغوی زما په لاس باندې څه مال ابوسفیان رضی الله عنه ته لیږلو چه بیا هغه په قریش مکه کښې د تقسیمولو دپاره او دا واقعه د فتح مکې نه روستو ده، رسول الله ﷺ ماته دا حکم اوفرمائیل چه په سفر باندې د تلو دپاره څوک ملګرې اولټوه، هغوی فرمائی چه ماته عمرو بن امیه الضمری راغلو او وې وئیل چه ماته دا خبره رارسیدلې ده چه ته مکې ته د تلو اراده کوې چه د هغې دپاره یو ملګرې ګورې، هغوی فرمائی چه او صحیح ده هم دغه شان ده، په دې باندې هغوی اووې چه زه د تلو دپاره تیار یم زه رسول الله ﷺ ته لاړم او هغوی ته مې عرض اوکړو چه ماته ملګرې ملاؤ شو، هغوی تپوس اوکړو څوک؟ ما عرض اوکړو عمرو بن امیه، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ إِذَا هَبَطْتَ بِلَادَ قَوْمِهِ فَاحْذَرْهُ فَإِنَّهُ قَدْ قَالَ الْقَائِلُ أَخُوكَ الْبِكْرِيُّ وَلَا تَأْمَنْهُ ﴾ ([1]) (عمرو بن امیه چه د کوم ځائې اوسیدونکې وو هغه لار د مکې او مدینې ترمینځه وه) نو په دې وجه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله ته هغه علاقې ته اورسیږې نو د هغه نه ځان ساته ځکه چه ویونکې وئیلې دی چه ستا رور اګر که ستا حقیقی او مشر رور ولې نه وی خو په هغه باندې هم اعتماد مه کوه، د بکری معنی ئې لیکلې ده الشقیق الاکبر یعنی سکه مشر رور، زه د رسول الله ﷺ په دې نصیحت اوریدلو سره په سفر باندې اوتلم تردې چه مونږ مقام ابواء ته اورسیدلو نو زما ملګرې عمرو بن امیه ماته اووې چه زه به د خپل یو ضرورت په وجه خپل کور ته ښکاره شم کوم چه په مقام ودان کښې دې ته هم دلته زما انتظار اوکړه ﴿قُلْتُ رَاشِدًا ﴾ مسافر لره د رخصت کولو په وخت دا جمله دعائیه یعنی "راشدا" وئیلې شی چه په هغې کښې د رشد او هدایت دعا ده چه کله هغه لاړو نو ماته د رسول الله ﷺ نصیحت رایاد شو، په یاد راتلو سره ما په خپلې سورلئ باندې کجاوه اوتړله او هغې ته مې منډه ورکړه او هلته ولاړ پاتې نه شوم تردې چه مقام اصافر ته چه کله زه اورسیدم نو ما اوکتل چه هغه د یو جماعت سره زما طرف ته راروان دې (ما په خپل زړه کښې خطره محسوس کړه چه معلومه نه ده چه څه معامله ده) او ما خپلې سورلئ ته نوره هم منډه ورکړه چه په هغې سره زه د هغه نه نور هم مخکښې اوتلم، پس چه کله هغه اوکتل چه زه د هغوی د لاس نه اوتلم او د هغه د وس نه بهر شوم نو هغه جماعت واپس شو او دې یعنی عمرو بن امیه ما سره ملاؤ شو، او وې وئیل زما د خپل قوم سره څه کار وو ما ورته اووې او جی تاسو صحیح اووې، او مونږ لاړو تردې چه مکې ته اورسیدلو او هغه مال ما

[1] البکری په کسرې د باء اول ولد الابوین ای اخوک شقیقك احذره، فاخوك مبتداء والبکري نعته والخبر محذوف تقدیره یخاف منه اهـ(عون) قلت الظاهر ان قوله (فلا تامنه) قائم مقام الخبر)

په حفاظت سره ابوسفیان رضي الله عنه ته اورسولو، د حضرت ګنګوهي رحمه الله په تقریر کښې دی ﴿ اذا هو یعارضني في رهط ﴾ چه هغه د یو جماعت سره زما طرف ته راروان وو، حضرت فرمائی چه ممکنه ده چه هغه خلق د دې ضمری د رخصت کولو دپاره دکور نه تلي وی، خو خزاعي رضي الله عنه دا اوګنړله چه هغوی د مال اخستلو دپاره په ما پسې راروان دی او په دې کښې هیڅ استبعاد نشته چه دا ګمان صحیح وی.

[٤٨٦٢]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ".

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه مروی دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه تک نۀ شي ورکولې کیدې مؤمن ته د یو سورې نه دوه ځله.''

**قوله: ﴿ لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ ﴾**

په ﴿ لا يلدغ ﴾ کښې دوه احتماله دی یو دا چه دا په ضمې د غین سره اولوستلې شی د مضارع منفی کیدو د وجې نه او په دې صورت کښې به مطلب دا وی چه مومن یعنی چاته چه مومن وئیل پکار وی هغه نقصان نه اوچتوی د یو مقام نه بار بار، یعنی مومن ممدوح هغه دې چه هوښیار او حاضر ذهن وی او د غفلت نه لرې، او هغه داسې نه وی چه په یو کار کښې بار بار دهوکه خوری او هغه ته پته هم نه لګی، او دویم احتمال په دې کښې دا دې چه د غین په کسرې سره اولوستلې شی بنا په صیغې د نهی په دې صورت کښې به دا تنبیه وی چه مومن لره هر وخت هوښیار اوسیدل پکار دی بار بار دې د یو ځائې نه دهوکه نه خوری، هغه له پکار دی چه د ویرې او د نقصان د ځائې نه پرهیز کوی د اول مطلب په باره کښې لیکلې دی چه د دې تعلق د امور اخرت سره دې نه د امور دنیا سره، او په احتمال ثانی کښې امر دنیا او آخرت دواړو سره تعلق کیدې شی، د دې حدیث یو شان ورود هم دې هغه دا چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه موقع باندې فرمائیلې وو چه کله هغوی ابوغره شاعر قید کولو نه پس په دې معاهده باندې آزاد کړو چه هغه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم خلاف تحریض نه کوی او نه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم بدی وائی، خو هغه د آزادیدو نه پس چه کله خپل قوم ته لاړو نو د دې معاهدې خلاف اوکړه نو دوباره رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه په جنګ احد کښې قید کړو، هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دوباره د من او احسان درخواست اوکړو نو هغه وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم دا جمله اوفرمائیله (عون) اخرجه البخاری ومسلم وابن ماجه قاله المنذری.

......

[1]: صحيح البخاري/الأدب ٨٣ (٦١٣٣)، صحيح مسلم/الزهد ١٢ (٢٩٩٨)، سنن ابن ماجه/الفتن ١٣ (٣٩٨٢)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٧٩)، سنن الدارمي/الرقاق ٦٥ (٢٨٢٣) (صحيح)

# بَابٌ فِي هَدْيِ الرَّجُلِ

## باب: ۳۰ - دَ پیدل سړی دَ چال بیان

د سړی د طریقې په باره کښې (دلته د دې تعلق محذوف دې) یعنی په تلو راتلو کښې.

[٤٨٦٣](1) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَشَى كَأَنَّهُ يَتَوَكَّأُ".

سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله تللو نو داسې به معلومیده لکه چه وړاندې تتیږی -

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا مَشَى كَأَنَّهُ يَتَوَكَّأُ ﴾
انس رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم چال اود رفتار کیفیت بیانوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم چه به کله تلو نو لږ شان به وړاندې طرف ته مائل تللو لکه یو سړې چه د همسا په تکیه باندې ګرځی، یعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم به سینه راویستلو سره نه ګرځیدو کوم چه د تکبر چال دې بلکه لږ شان وړاندې طرف ته به مائل کیدو سره ګویا د لرګی په تکیه روان وی.

[٤٨٦٤](2) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُعَاذِ بْنِ خُلَيْفٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قُلْتُ: كَيْفَ رَأَيْتَهُ؟ قَالَ: كَانَ أَبْيَضَ مَلِيحًا إِذَا مَشَى كَأَنَّمَا يَهْوِي فِي صَبُوبٍ".

حضرت ابو طفیل (عامر بن واثله) رضی الله عنه فرمائی چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم لره لیدلې وو - سعید جریری دَ هغه تپوس اوکړو تا هغه لره څنګه لیدې دې؟ هغوی اوفرمائیل هغه سپین رنګې او انتهائی خوبصورته وو او کله چه به تللو نو داسې به لګیده چه هغه دَ بره نه لاندې کوزیږی -

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-.قُلْتُ كَيْفَ رَأَيْتَهُ قَالَ كَانَ أَبْيَضَ مَلِيحًا ﴾ یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم رنګ سپین وو چه مائل وو د سرخئ په طرف، بالکل د سپینې چونې په شان نه وو.

**قوله:** ﴿ إِذَا مَشَى كَأَنَّمَا يَهْوِي فِي صَبُوبٍ ﴾ په بعض روایاتو کښې صبب هم راغلې دې په معنی د لاندې زمکې، یعنی کله چه به رسول الله صلی الله علیه وسلم ګرځیدو نو داسې به محسوس کیده چه ګویا لاندې زمکې ته کوزیدونکې دې، د لوړې زمکې نه ښکته زمکې ته، د دې مفهوم هم هغه دې کوم چه په پورته حدیث کښې تیر شو، والحدیث اخرجه مسلم والترمذی بنحوه، قاله المنذری.

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٥٦) (صحيح الإسناد)

(2): صحيح مسلم/الفضائل ٢٨ (٢٣٤٠)، سنن الترمذي/الشمائل (١٤)، (تحفة الأشراف: ٥٠٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٥٤/٥) (صحيح)

# بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَضَعُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الأُخْرَى

## باب: ۳۱- په بیان د هغه سړی کښې چه هغه یوه پښه په بله باندې ږدی

[٤٨٦٥] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَضَعَ وَقَالَ قُتَيْبَةُ: يَرْفَعَ الرَّجُلُ إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى، زَادَ قُتَيْبَةُ وَهُوَ مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ".

د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده ددې نه چه سړې یوه پښه په بله باندې کیږدی - دقتیبه په روایت کښې اضافه ده: چه کله هغه په ملا باندې اوده وی.

قوله: ﴿ عَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَنْ يَضَعَ - وَقَالَ قُتَيْبَةُ يَرْفَعَ الرَّجُلُ إِحْدَى - رِجْلَيْهِ عَلَى الأُخْرَى - زَادَ قُتَيْبَةُ - وَهُوَ مُسْتَلْقٍ عَلَى ظَهْرِهِ ﴾

یعنی رسول الله ﷺ د داسې ستونی ستغ ملاستې نه منع فرمائیلې ده چه یوه خپه په بلې خپې باندې کیږدی، او د دې نه په روستو روایت کښې دی کوم چه د عم عباد یعنی د عبدالله بن زید بن عاصم نه روایت هغې په دې کښې دا دی چه ما رسول الله ﷺ لره یوه خپه په بله خپه باندې کیخودلو سره په ملاسته باندې لیدلې دې، په دې دواړو احادیثو کښې جمع داسې کیږې شوې ده چه منع په هغه صورت کښې ده چه کله احتمال د عورت د ښکاره کیدو وی داسې چه لباس په ځائې د پرتوګ ازار او لنګ وی، یا د ازار وسیع او غیر وسیع فرق وی، که لباس پاجامه ده یا فراخه لنګ دې چه په هغې کښې د عورت د ښکاره کیدو احتمال نه وی په دې کښې کراهت هم نشته، دا توجیه خو خطابی وغیره شراح لیکلې ده، او حضرت په بذل کښې توجیه داسې بیان کړې ده چه د نیغ ملاستو نه پس خپه په خپه باندې د کیخودلو دوه صورتونه دی یو دا چه دواړه خپې مبسوط او خورې شوې وی، په دې صورت کښې یوې لره په بلې باندې کیخودلو سره کشف عورت نه کیږی، لهذا په حدیث کښې ثبوت د هغه صورت دې، او دویم صورت دا دې چه یو ګونډې اودروی او دویمه پرې کیږدی نو په دې صورت کښې ئې که لنګ اچولې وی نو د کشف عورت احتمال دې، لهذا محمل د نهی به په دې صورت کښې منلې شی.

[٤٨٦٦] (٢) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ. ح وحَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيمٍ، عَنْ عَمِّهِ، "أَنَّهُ رَأَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَلْقِيًا، قَالَ الْقَعْنَبِيُّ: فِي الْمَسْجِدِ وَاضِعًا إِحْدَى رِجْلَيْهِ عَلَى الْأُخْرَى".

حضرت عباد بن تمیم د خپل تره (عبد الله بن زید عاصم انصاری رضی الله عنه) نه روایت کوی چه هغه رسول الله ﷺ لره اولیدو په داسې حال کښې چه هغه په ملا باندې ملاست وو - قعنبی

(١): صحيح مسلم/اللباس ٢٠ (٢٠٩٩)، سنن الترمذي/الأدب ٢٠ (٢٧٦٧)، (تحفة الأشراف: ٢٦٩٢، ٢٩٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٢٦٢، ٣٦٧) (صحيح)

(٢): خ /الصلاة ٨٥ (٤٧٥)، اللباس ١٠٣ (٥٩٦٩)، الاستئذان ٤٤ (٦٢٨٧)، صحيح مسلم/اللباس ٢٢ (٢١٠٠)، سنن الترمذي/الأدب ١٩ (٢٧٦٥)، سنن النسائي/المساجد ٢٨ (٧٢٢)، (تحفة الأشراف: ٥٢٩٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/السفر ٢٤ (٨٧)، مسند احمد (٤/٣٩، ٤٠)، دي/الاستئذان ٢٧ (٢٦٩٨) (صحيح)

وائي په جمات کښې ملاست وو او حضور ﷺ يو پښه په بله باندې ايخودې وه -

[٤٨٦٧]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضى الله عنه وَعُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ كَانَا يَفْعَلَانِ ذَلِكَ.

د حضرت سعيد ابن المسيب نه مروي دي چه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه او حضرت عثمان بن عفان به داسې کول - (دَ اوده کيدو په حالت کښې به ئې يوه پښه په بله باندې کيخوده -)

## بَابٌ فِي نَقْلِ الْحَدِيثِ

### باب: ٣٢ - خبره نقل کول (ډير بد دی)

[٤٨٦٨]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا حَدَّثَ الرَّجُلُ بِالْحَدِيثِ ثُمَّ الْتَفَتَ فَهِيَ أَمَانَةٌ".

د حضرت جابر بن عبد الله نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کله يو سړې خبره اوکړي او بيا التفات [يعنې اخوا بل خوا اوګوري] نو دا خبره امانت دې -

**قوله:** ﴿ إِذَا حَدَّثَ الرَّجُلُ بِالْحَدِيثِ ثُمَّ الْتَفَتَ فَهِيَ أَمَانَةٌ ﴾

يعنې کله چه يو سړې څه خبره تاسو ته اوکړه او د خبرې کولو په وخت ئې يوخوا بل خوا اوکتل نو دا قسم خبره امانت وي هغه بل ته نقل کول نه دي پکار ځکه چه ښي او ګس طرف ته کتل علامت د دې خبرې د د راز کيدو چه څوک زمونږ خبره اورې خو نه، او دويم مطلب د ﴿ التفت ﴾ دا هم بيان کړې شوې دې يعنې ﴿ غاب وانصرف ﴾ يعنې کله چه يو سړې تا ته څه خبره اوکړه او هغه لاړو نو اوس د هغه دا خبره تاسره امانت دې د هغې ذکر دې په بل ځائې کښې اونکړې شي.

[٤٨٦٩]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَافِعٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ ابْنِ أَخِي جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمَجَالِسُ بِالْأَمَانَةِ إِلَّا ثَلَاثَةَ مَجَالِسَ: سَفْكُ دَمٍ حَرَامٍ، أَوْ فَرْجٌ حَرَامٌ، أَوِ اقْتِطَاعُ مَالٍ بِغَيْرِ حَقٍّ".

د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: " مجالس په امانتونو سره دی - ما سوا دَ درې مجلسونو نه چه په هغې کښې دَ ناحق وينې تويولو، يا ناحق فهش کارى، يا دَ ناحق مال وهلو خبره وي -"

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « الْمَجَالِسُ بِالأَمَانَةِ إِلاَّ ثَلاَثَةَ مَجَالِسَ سَفْكُ دَمٍ حَرَامٍ أَوْ فَرْجٌ حَرَامٌ أَوِ اقْتِطَاعُ مَالٍ بِغَيْرِ حَقٍّ » ﴾ يعنې عام قاعده دا ده چه په مجلس کښې کيدونکې خبرې امانت وي هغې لره بل طرف ته نقل کول پکار نه دي خو د

[1]: انظر ماقبله، (تحفة الأشراف: ٥٢٩٨) (صحيح الإسناد عن عثمان)
[2]: سنن الترمذي/البر والصلة ٣٩(١٩٥٩)، (تحفة الأشراف: ٢٣٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٢٤، ٣٥٢، ٣٧٩، ٣٩٤) (حسن)
[3]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣١٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٤٢) (ضعيف)

دي نه دري قسم مجلسونه مستثنى دي، د دي مجالسو اظهار نه صرف دا چه جائز دي بلكه واجب دي يو هغه مجلس چه په هغې كښې د چا د ناحق قتل كيدو مشوره اوكړې شي، يا د فرج حرام يعنى د زناكارئ مشوره كړې شوې وى، يا ناحق د بل په مال باندې د قبضې كولو په باره كښې مجلس شوې وى، د دې مجالسو خبرې متعلقه سړى ته ضرور كول پكار دى.

[٤٨٧٠]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، قَالَا: أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُمَرَ، قَالَ: إِبْرَاهِيمُ هُوَ: عُمَرُ بْنُ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْعُمَرِيُّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَعْظَمَ الْأَمَانَةِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الرَّجُلُ يُفْضِي إِلَى امْرَأَتِهِ وَتُفْضِي إِلَيْهِ ثُمَّ يَنْشُرُ سِرَّهَا".

حضرت ابو سعيد خدرى رضي الله عنه روايت كوى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : د الله پاك په نزد باندې به د قيامت په ورځ باندې په امانت كښې دا خبره د ټولو نه زيات خيانت شميرلې شى چه سړې خپلې ښځې ته او يا ښځه خپل خاوند ته نزدې شى او بيا د هغې را ز ښكاره كړى.

قوله: ﴿إِنَّ مِنْ أَعْظَمِ الْأَمَانَةِ عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الرَّجُلَ يُفْضِي إِلَى امْرَأَتِهِ وَتُفْضِي إِلَيْهِ ثُمَّ يَنْشُرُ سِرَّهَا﴾ من اعظم الامانة اى من اعظم نقض الامانة يعنى د لوئې درجې خيانت چه د هغې خيانت كيدل به د قيامت په ورځ ښكاره كيږى چه سړې خپلې ښځې سره ملاؤ شى يعنى په يوائې والى كښې او په پرده كښې او بيا په بل مجلس كښې د دې مجلس راز ښكاره كړى، د دې حديث په مضمون باندې د كتاب النكاح په اخر كښې يو مستقل ترجمة الباب تير شوې دې.باب ما يكره من ذكر الرجل ما يكون من اصابته اهلة .....كافى مفصل حديث دې فارجع اليه لوشئت.

## باب فِي الْقَتَّاتِ

### باب-٣٣- دَ چغل خوربيان

قتات يعنى نمام (چغل خور) كما فى البذل، او په هامش بذل كښې د علامه عينى نه په دې دواړو كښې فرق نقل كړې شوې دې هغه دا چه نمام خو هغه سړې دې كوم چه د هغه مجلس خبره نقل كړى چه په كوم كښې هغه خپله شريك شى، او قتات هغه سړې دې كوم چه د يو مجلس خبره په پټه واورى او بغير په هغه مجلس كښې د شركت كولو نه ئې نقل كړى، بلكه دا چه كوم سړې دا اهل مجلس نه په پټه يا د خلقو نه په پټه خبره اورى كه هغه بل ځائې كښې نقل كوى او كه نه، هغه ته هم اهل لغت قتات وئيلې دې كما فى البذل عن القاموس، په حديث الباب كښې دى: ﴿لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ﴾

[٤٨٧١]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ هَمَّامٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ".

[1]: صحيح مسلم/النكاح ٢١ (١٤٣٧)، (تحفة الأشراف: ٤١١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٩/٣) (ضعيف)

[2]: صحيح البخاري/الأدب ٥٠ (٦٠٥٦)، م /الإيمان ٤٥ (١٥٠)، سنن الترمذي/البر والصلة ٧٩ (٢٠٢٦)، (تحفة الأشراف: ٣٣٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٢/٥، ٣٨٩، ٣٩٧، ٤٠٣، ٤٠٤) (صحيح)

ترجمه: د حضرت حذیفه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل :" چغل خور به جنت ته نه ځی ."

## باب فِي ذِي الْوَجْهَيْنِ

### بابـ ۳۴ - د ذووجهین بیان

ذوالوجهین یعنی د دوه مخونو والا چاته چه دوه پریز وائی، چاته چه لاړ شی هم د هغه موافق خبره کوی، او د هغه مخکښې د هغه د مخالف بدی بیانوی.نو چونکه دا سړې د خپل مخ نه دوه مختلف قسم خبرې ظاهروی په دې لحاظ سره ذوالوجهین شو او هم داسې سړی ته منافق وائی داسې سړی ته په حدیث الباب کښې شر الناس وئیلې کیږی

[۴۸۷۲](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مِنْ شَرِّ النَّاسِ ذُو الْوَجْهَيْنِ الَّذِي يَأْتِي هَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ وَهَؤُلَاءِ بِوَجْهٍ".

د حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل بدترین دې هغه سړې چه هغه ذو وجهین (دوه پریزې) وی چه هغوی ته ورشی نو یو مخ ئې وی او چه بل ته ورشی نو بل مخ ئې وی ."

[۴۸۷۳](²) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنِ الرُّكَيْنِ بْنِ الرَّبِيعِ، عَنْ نُعَيْمِ بْنِ حَنْظَلَةَ، عَنْ عَمَّارٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ لَهُ وَجْهَانِ فِي الدُّنْيَا كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانَانِ مِنْ نَارٍ".

د حضرت عمار بن یاسر ﷺنه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د چا په دنیا کښې دوه مخونه وی نو د قیامت په ورځ باندې به دده دوه ژبې وی د اور نه ."

قوله: ﴿ مَنْ كَانَ لَهُ وَجْهَانِ فِي الدُّنْيَا كَانَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانَانِ مِنْ نَارٍ ﴾ کوم انسان چه په دنیا کښې د دوه مخونو والا وی د هغه به په قیامت کښې دوه ژبې وی د اور نه.

## باب فِي الْغِيبَةِ

### بابـ ۳۶ - د غیبت احکام او مسائل

[۴۸۷۴](³) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنِ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ قِيلَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الْغِيبَةُ؟ قَالَ: ذِكْرُكَ أَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ قِيلَ: أَفَرَأَيْتَ إِنْ كَانَ فِي أَخِي مَا أَقُولُ، قَالَ: إِنْ كَانَ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ، وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدْ بَهَتَّهُ".

د حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړې شوه : اې د الله رسوله ! غیبت څه څیز دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل ستاسو خپل رور لره په داسې انداز کښې ذکر کول چه هغې لره هغه بد ګنړی ." اووئیلې شو او که زۀ کومه خبره کووم هغه زما

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۷۱۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المناقب ۱ (۳۴۹۴)، والأدب ۵۲ (۷۱۷۹)، صحيح مسلم/فضائل الصحابة ۴۸ (۲۵۲۶)، سنن الترمذي/البر والصلة ۷۸ (۲۰۲۵)، مسند احمد (۲/۲۴۵، ۴۵۵) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۳۶۹)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الرقاق ۵۱ (۲۸۰۶) (صحيح)

³): سنن الترمذي/البر والصلة ۲۳ (۱۹۳۴)، (تحفة الأشراف: ۱۴۰۵۴)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البر والصلة ۲۰ (۲۵۸۹)، مسند احمد (۲/۲۳۰، ۴۵۸)، سنن الدارمي/الرقاق ۶ (۲۷۵۶) (صحيح)

په رور کښې موجوده وی؟ (نو بیا به هم غیبت وی؟) حضور ﷺ اوفرمائیل که چرې په هغه کښې دا خبره وی او تاسو ئې وائئ،نو هم دا غیبت دې - او که چرې تاسو څه داسې خبره کوئ چه په دهٔ کښې نهٔ وی نو بیا خو تاسو په هغه باندې بهتان اولګوو-

د باب په اول حدیث کښې د غیبت تعریف د رسول الله ﷺ نه ذکر دې ﴿ ذکرک اخاک بما یکره﴾ یعنی د چا ذکر د چا مخکښې داسې کول کوم چه په هغه باندې بد لګی، چا د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه که هغه بدې واقعی په هغه سړی کښې وی نو بیا به هم غیبت وی نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه که هغه صفت په هغه کښې اوموندلې شی نو بیا خو ستا هغې لره ذکر کول غیبت دې او که پکښې نه وی نو بیا به ستا ذکر کول په هغه باندې بهتان وی، په حاشیه د بذل کښې دی

وبسط الکلام علی الغیبة وما یباح من انواعها الشامی ۲۸۹/۵ وقد وردت روایات معناها انه لا غیبة للفاسق المعلن کذا فی اتحاف السادة ۱۱۷/۳ وفی امداد المشتاق ۶۳ للشیخ التهانوی عن شیخه ان المعصیة علی نوعین الباهی والجاهی والثانی اعظم، ولذا اکبر اثم ابلیس علی اثم ادم، ولذا قیل الغیبة اشد من الزنا اهـ او د مولانا عبدالحئ لکهنوی رحمه الله په دې باندې مستقل تصنیف دې زجر الشبان والشیبة عن ارتکاب الغیبة ...

[۴۸۷۵](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ الْأَقْمَرِ، عَنْ أَبِي حُذَيْفَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَسْبُكَ مِنْ صَفِيَّةَ كَذَا وَكَذَا، قَالَ: غَيْرُ مُسَدَّدٍ تَعْنِي قَصِيرَةً، فَقَالَ لَقَدْ قُلْتِ كَلِمَةً لَوْ مُزِجَتْ بِمَاءِ الْبَحْرِ لَمَزَجَتْهُ، قَالَتْ: وَحَكَيْتُ لَهُ إِنْسَانًا، فَقَالَ: مَا أُحِبُّ أَنِّي حَكَيْتُ إِنْسَانًا وَأَنَّ لِي كَذَا وَكَذَا".

ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما رسول الله ﷺ ته اوئیل : ستاسو دپاره په حضرت صفیه رضی الله عنها کښې هم دا کافي دی چه هغه داسې داسې ده؟ ...... دَ مسدد نه علاوه نورو وضاحت کړې دې چه ددې نه دَ هغې مراد دَ حضرت صفیه وړوکې قد والا کیدل وو - ...... نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل تا داسې کلمه وئیلې ده که چرې دا په سمندر کښې ملاؤ کړې شي نو هغه به هم تریخ شی -'' حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما دَ حضور ﷺ په وړاندې دَ چا حکایت نقل کړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل زهٔ دا نهٔ خوښه وُم چه دَ چا حکایت نقل کړم خواه که ماته پرې دومره دومره مال هم ملاؤ شی -

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– حَسْبُكَ مِنْ صَفِيَّةَ كَذَا وَكَذَا قَالَ تَعْنِي قَصِيرَةً. فَقَالَ « لَقَدْ قُلْتِ كَلِمَةً لَوْ مُزِجَتْ بِمَاءِ الْبَحْرِ لَمَزَجَتْهُ....الخ»﴾

سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ مخکښې اووې چه ستاسو دپاره خو د صفیه رضی الله عنها دا یو صفت کافی دې غالبا د لاس په اشارې سره ئې اووې چه د هغې قد وړوکې دې، نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه یقینا دې وخت کښې تا یو داسې لفظ د

(۱): سنن الترمذي/صفة القيامة ۵۱ (۲۵۰۲، ۲۵۰۳)، (تحفة الأشراف: ۱۶۱۳۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۸/۶، ۱۳۶، ۱۸۹، ۲۰۶) (صحيح)

خولې نه راویستلو چه که په سمندر کښې واچولې شي یعنې دې لره یو مجسم څيز فرض کولو سره نو هغه لفظ به په پوره سمندر باندې غالب شي، یعنې د هغې تولې اوبه به خرابې او ګنده کړې ﴿ قَالَتْ وَحَكَيْتُ لَهُ إِنْسَانًا فَقَالَ الخ ﴾ هغه دا هم فرمائي چه ما يوه ورځ د رسول الله ﷺ مخکښې د يو سړي د څه خبرې او د صفت نقل اوکړو، يعنې هغه شان مې ورته اوکړل نو په دې باندې هغوی اوفرمائيل چه زما د يو انسان نقل کول خوښ نه دی اګر چه ماته دومره دومره مال راکړې شي، وقال النووى ومن الغيبة المحاكاة بان يمشى متعارجا او مطاطاء راسه، امام نووي رحمه الله فرمائي چه محاكاة هم غيبت دې مثلا د چا د ګډ تلو ښکاره کولو دپاره ګډ لاړ شي يا مثلا سر ښکته کولو سره د بل په نقل کولو کښې.

[٤٨٧٦](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ، حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي حُسَيْنٍ، حَدَّثَنَا نَوْفَلُ بْنُ مُسَاحِقٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ مِنْ أَرْبَى الرِّبَا الِاسْتِطَالَةَ فِي عِرْضِ الْمُسْلِمِ بِغَيْرِ حَقٍّ".

حضرت سعيد بن زيد رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل د ټولو نه زيات سود دادې چه انسان په ناحقه سره دَ چا دَ عزت سره لوبې اوکړي.''

**قوله:** ﴿ إِنَّ مِنْ أَرْبَى الرِّبَا الِاسْتِطَالَةَ فِي عِرْضِ الْمُسْلِمِ بِغَيْرِ حَقٍّ ﴾ (٢) د سعيد بن زيد نه مرفوعا روايت دې چه د مسلمان د ناحق عزت اخستلو دپاره ژبه استعمالول د سود په ټولو قسمونو کښې بدترين قسم دې. حال دا چه د سود په باره کښې په يو روايت کښې راځی چه ﴿ ان الربا سبعون بابا اهونها ان ينكح الرجل امه ﴾ يعنی د سود خورئ اويا درجات دی چه په هغې کښې د ټولو نه سپکه د خپلې مور سره د زنا برابر ده.

ربا هغه زيادت ته وائي کومه چه په احد المتعاقدين کښې يو کس ته حاصله شي بغير د څه عوض نه، او د چا په ناحق عزت اخستلو کښې هم دا خبره مونډلې شي چه د دې په مقابله کښې هغه سړي د دهٔ عزت نه دې اخستلې او دې ئې اخلی (يعنې بې عزتی ئې کوی) نو دا د هغه عزت اخستل خالی عن البدل دی.

[٤٨٧٧](٣) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنِ الْعَلَاءِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ اسْتِطَالَةَ الْمَرْءِ فِي عِرْضِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ بِغَيْرِ حَقٍّ وَمِنَ الْكَبَائِرِ السَّبَّتَانِ بِالسَّبَّةِ".

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل بې شکه په کبيره ګناهونو کښې يو کبيره ګناه داده چه انسان دَ خپل مسلمان رور په ناحقه سره هتک او سپکاوي اوکړي، په کبيره ګناهونو کښې دا هم ده چه څوک چاته دَ يو کنځل په ځائي باندې دوه کنځلې اوکړي.''

١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٤٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٩٠) (صحيح)
٢) ويوخذ منه ان ما كان بحق فهو يجوز، قال العيني ٢٢٠/٤ ذكر الغزالي والنووي اباحة العلماء الغيبة في ستة مواضع فهل تباح للميتة ايضا ام لا؟ قلت الظاهر لا لقوله عليه السلام كفوا عن مساويهم اهـ
٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٠٢٠) (ضعيف)

[٤٨٧٨]([1]) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، وَأَبُو الْمُغِيرَةِ، قَالَا: حَدَّثَنَا صَفْوَانُ، قَالَ: حَدَّثَنِي رَاشِدُ بْنُ سَعْدٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جُبَيْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا عُرِجَ بِي مَرَرْتُ بِقَوْمٍ لَهُمْ أَظْفَارٌ مِنْ نُحَاسٍ يَخْمُشُونَ وُجُوهَهُمْ وَصُدُورَهُمْ فَقُلْتُ: مَنْ هَؤُلَاءِ يَا جِبْرِيلُ؟ قَالَ: هَؤُلَاءِ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ لُحُومَ النَّاسِ وَيَقَعُونَ فِي أَعْرَاضِهِمْ "، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدَّثَنَاه يَحْيَى بْنُ عُثْمَانَ، عَنْ بَقِيَّةَ لَيْسَ فِيهِ أَنَسٌ.

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : کله چه زما معراج اوکړې شو نو زما تيريدل په يو داسې قوم باندې اوشو چه د هغوی نوکان د تانبې وو او په هغې سره ئې خپل مخونه او سينې شُکولې - ما تپوس اوکړو اې جبريل ! دا کوم خلق دی؟ هغوی اووې دا هغه خلق دی چه دوی به د نورو خلقو غوښه خوړله او د هغوی په عزت کښې به واقع کيدل -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روايت لره يحيیٰ بن عثمان د بقيه نه روايت کړې دې مګر په دې کښې د حضرت انس رضی الله عنه ذکر نشته دې (مرسل ئې روايت کړې دې -)

**قوله:** ﴿ لَمَّا عُرِجَ بِي مَرَرْتُ بِقَوْمٍ لَهُمْ أَظْفَارٌ مِنْ نُحَاسٍ يَخْمِشُونَ وُجُوهَهُمْ وَصُدُورَهُمْ الخ ﴾

د سيدنا انس رضی الله عنه نه مرفوعا روايت دې نبی ﷺ فرمائی چه کله زه آسمانونو ته بوتلې شوم نو زه په داسې خلقو باندې راتير شوم چه د هغوی نوکونه د تانبې وو چه د هغې په ذريعه هغوی خپل مخونو او سينې شوکولې، رسول الله ﷺ فرمائی چه ما د جبرائيل علیه السلام نه تپوس اوکړو چه دا خلق څوک دی نو هغوی اوفرمائيل چه دا هغه خلق دی چه د خلقو غوښې خوری يعنی د هغوی غيبت کوی او د هغوی بې عزتی کوی.

[٤٨٧٩]([2]) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ أَبِي عِيسَى السَّيْلَحِينِيُّ، عَنْ أَبِي الْمُغِيرَةِ، كَمَا قَالَ ابْنُ الْمُصَفَّى.

عيسیٰ ابن ابی عيسیٰ السيلحينی د ابو مغيره نه هم داسې روايت کړې دې لکه څنګه چه (مذکوره بالا حديث کښې) ابن مصفی وئيلې دی -

[٤٨٨٠]([3]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا الْأَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي بَرْزَةَ الْأَسْلَمِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا مَعْشَرَ مَنْ آمَنَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يَدْخُلِ الْإِيمَانُ قَلْبَهُ لَا تَغْتَابُوا الْمُسْلِمِينَ وَلَا تَتَّبِعُوا عَوْرَاتِهِمْ، فَإِنَّهُ مَنِ اتَّبَعَ عَوْرَاتِهِمْ يَتَّبِعُ اللَّهُ عَوْرَتَهُ وَمَنْ يَتَّبِعِ اللَّهُ عَوْرَتَهُ يَفْضَحْهُ فِي بَيْتِهِ".

د حضرت ابو برزه اسلمی رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې هغه خلقو ! چه په خپلو ژبو سره ئې ايمان راوړې دې مګر ايمان د هغوی په زړونو کښې لا کوزشوې نهٔ دې ! په مسلمانانو باندې بد ګوئی مهٔ کوئ، او د هغوی په عيوبو پسې لګئ، بې شکه څوک چه د هغوی په عيوبو پسې لګيدلې وی - الله تعالیٰ به د هغوی په عيوبو پسې اولګی، او الله تعالیٰ چه د چا په عيوبو پسې شی نو هغه لره به د هغه په کور کښې دننه رسوا کړی -"

**قوله:** ﴿ يَا مَعْشَرَ مَنْ آمَنَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يَدْخُلِ الإِيمَانُ قَلْبَهُ لاَ تَغْتَابُوا الْمُسْلِمِينَ وَلاَ تَتَّبِعُوا عَوْرَاتِهِمْ ﴾

دابوبرزه الاسلمی رضی الله عنه نه مرفوعا روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه اې د هغه خلقو

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٤/٣) (صحيح)

[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٢٨)

[3]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٥٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢٠/٤، ٤٢١) (حسن صحيح)

جماعت چا چه صرف په ژبه باندې ایمان راوړې دې او ایمان د هغوی زړه ته نه دې رسیدلې د مسلمانانو غیبت مه کوئ او مه د هغوی عیب بیانوئ، ځکه چه څوک د مسلمانانو عیب بیانوی نو الله پاک خپله د هغه عیب بیانوی او د چا عیب چه الله پاک بیان کړی نو په خپل کور کښې ناست به ئې رسوا کړی حال دا چه څوک په خپل کور کښې وی هغه د ډیرو آفتونو نه محفوظ وی.

ډ﴿ من امن بلسانه ﴾ کښې اشاره ده چه د مسلمانانو غیبت کول د منافقینو شعار دې.

[۴۸۸۱](١) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنِ ابْنِ ثَوْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ وَقَّاصِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنِ الْمُسْتَوْرِدِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ أَكَلَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ أَكْلَةً فَإِنَّ اللَّهَ يُطْعِمُهُ مِثْلَهَا مِنْ جَهَنَّمَ، وَمَنْ كُسِيَ ثَوْبًا بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَكْسُوهُ مِثْلَهُ مِنْ جَهَنَّمَ، وَمَنْ قَامَ بِرَجُلٍ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَقُومُ بِهِ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

حضرت مستور د (بن شداد رضی الله عنه) بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چا چه د یو مسلمان په وجه سره یو نوړئ هم خوړلې وی (د هغه غیبت یا سپکاوې ئې کړې وی او په هغې باندې ئې دَ چا نه عوض اخستې وی) نو الله تعالیٰ به په هغه باندې دَ جهنم نه دغه شان نوړئ خوری - او چا چه دَ مسلمان په وجه سره څه کپړا اغوستې وی نو الله تعالیٰ به دَ جهنم نه دهٔ ته دغه شان جامه واغونده وی - او چا چه دَ چا تشهیر اوکړو او هغه لره ئې دَ لیدو مقام ته اورسوو (دَ هغه چرچا ئې کړې وی) نو الله تعالیٰ به ددهٔ تشهیر په ورځ دَ قیامت باندې اوکړی او دَ دکهلاوې په مقام باندې به ئې اودروی -" [ یعنی داسې عذاب به ورکړی چه دَ هغې به په تمامو خلقو کښې چرچا وی -]

قوله: ﴿ عَنِ الْمُسْتَوْرِدِ أَنَّهُ حَدَّثَهُ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « مَنْ أَكَلَ بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ أَكْلَةً فَإِنَّ اللَّهَ يُطْعِمُهُ مِثْلَهَا مِنْ جَهَنَّمَ الخ ﴾

یعنی کوم انسان چه د یو مسلمانی سړی د وجې نه یو نمړئ خوری، چه د هغې دوه صورتونه دی یا د هغه ناحق تعریف کولو سره د هغه د دوست مخکښې، یا د هغه بدی بیانولو سره د هغه د مخالف مخکښې، لکه چه د اختلافاتو په زمانه کښې داسې ډیر څه کیږی نو الله پاک به په هغه باندې د جهنم د اور نمړئ اوخوروی.

﴿ وَمَنْ كُسِيَ ثَوْبًا بِرَجُلٍ مُسْلِمٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَكْسُوهُ مِثْلَهُ مِنْ جَهَنَّمَ ﴾ د دې جملې مطلب هم هغه دې کوم چه د مخکښې دې صرف فرق دا دې چه هلته د طعام ذکر دې دلته د لباس.

﴿ وَمَنْ قَامَ بِرَجُلٍ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَقُومُ بِهِ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴾

د دې جملې مطلب کښې دوه احتماله دی ځکه چه په ﴿ برجل ﴾ کښې به باء سببیه وی یا د تعدیه دپاره که سببیه وی نو مطلب به دا وی چه کوم سړې د یو لوئې سړی د نسبت په ذریعه په یو اوچت مقام باندې ولاړ وی چه دریا او د شهرت ځائې وی نو داسې سړې به الله پاک د ذلت په ځائې باندې اودروی د قیامت په ورځ باندې، مثلاً خپل نسبت د یو اوچت سړی طرف ته بیانولو سره چه زه د فلانی عالم یا پیر ځوئې یا رشته دار یم اود خلقو نه فائده

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٢٦١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٩/٤) (صحیح)

اخستل غواړي، او احتمال ثاني يعنى د باء د تعديه په صورت كښې به ئې مطلب دا وى چه كوم سړې بل سړى لره په يو اوچت مقام باندې اودروى يعنى د هغه د تعريفونو پل تړلو سره چه دا داسې دې او داسې دې، د اول معنې خلاصه دا شوه چه د يو لوئې سړى په نسبت باندې ځان لويول غواړى او د دويمې معنى خلاصه دا شوه چه د خپلې فائدې او غرض دپاره بل لره د حد نه زيات اوچتول او د هغه تعريفونه كول، او د نن صبا د ايجاداتو په اعتبار سره د دې په مثال كښې تى وى پيش كيدلې شى چه په هغې كښې سمعة او رياء دواړه موندلې شى، پس په دې زمانه كښې خلق دا قسم حركتونه په تى وى باندې ډير زيات كوى.

[٤٨٨٢]([1]) حَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ مَالُهُ وَعِرْضُهُ وَدَمُهُ حَسْبُ امْرِئٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل د يو مسلمان دپاره د بل مسلمان مال، عزت، او خون حرام دې - د بنده د بدئ دپاره دا كافى ده چه هغه خپل مسلمان رور حقير (سپک) اوګنړى.

**قوله:** ﴿ كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ مَالُهُ وَعِرْضُهُ وَدَمُهُ حَسْبُ امْرِئٍ مِنَ الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ ﴾ د يو مسلمان هر څيز په بل مسلمان باندې حرام دې وړاندې د هغه څيز تفسير دې يعنى د هغه مال هم او نفس هم او عزت هم، يعنى د يو مسلمان دپاره د بل مسلمان مال يا د هغه نفس يا د هغه عزت كښې يو څيز ته نقصان رسول د الله پاک د طرف نه قطعا حرام او ممنوع دى، مونږ ته هيڅ حق نه دې حاصل چه مونږ د يو مسلمان په نفس يا د هغه په مال باندې لاس اوچت كړو، يا په څه طريقه باندې د هغه عزت لوټ كړو او كوم سړې چه د دې قانون الهى خلاف ورزى اوكړى هغه به د الله پاک په قبضه كښې راشى، عياذا بالله تعالى.

وړاندې په حديث كښې دى: د سړى د شر يعنى د هغه د شرى كيدو دپاره دا كافى ده چه هغه خپل مسلمان رور سپک ګنړى، الله پاک دې مونږ د دې ټولو ګناهونو نه محفوظ اوساتى امين.

## بَابُ مَنْ رَدَّ عَنْ مُسْلِمٍ غِيبَةً

**باب: ٣٦ - دَ چا مسلمان رور (په عدم موجودګۍ كښې دَهغه ) دَعزت دفاع كول**

يعنى د چا د طرف نه مدافعت كولو او د هغه د عزت حفاظت كولو كښې چه كوم اجر او ثواب دې د هغې بيان.

[٤٨٨٣]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَسْمَاءَ بْنِ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَيُّوبَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ يَحْيَى الْمُعَافِرِيِّ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ حَمَى مُؤْمِنًا مِنْ مُنَافِقٍ أُرَاهُ، قَالَ: بَعَثَ اللَّهُ مَلَكًا يَحْمِي لَحْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ،

[1]): سنن الترمذي/البر والصلة ١٨ (١٩٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٣١٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البر والصلة ١٠ (٢٥٦٤)، سنن ابن ماجه/الزهد ٢٣ (٤٢١٣) (صحيح)

[2]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٢٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤١/٣) (حسن)

وَمَنْ رَمَى مُسْلِمًا بِشَيْءٍ يُرِيدُ شَيْنَهُ بِهِ حَبَسَهُ اللَّهُ عَلَى جِسْرِ جَهَنَّمَ حَتَّى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ".

حضرت سهل بن معاذ بن انس جهنی د خپل پلار نه روایت کوی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : چا چه دَ چا مؤمن بچاؤ اوکړو دَ چا منافق نه ......راوی وائی زما خیال دې چه هغه داسې اوفرمائیل : الله تعالیٰ به دَ قیامت په ورځ باندې یوه فرشته راولیږی او هغه به ددهٔ غوښه دَ جهنم دَ اور نه بچ کوی۔ او چا چه په مسلمان باندې دَ څه څیز تهمت اولګوو چه ددې په ذریعې سره دهٔ په هغه باندې عیب لګول غوښتل نو الله تعالیٰ به دهٔ لره په پُل صراط باندې بند کړی، تردې پورې چه دې راوځی دَ هغه څه نه کوم چه دهٔ وئیلې وو۔ [ یعنی چه ددهٔ دَ وئیلو سزا پوره شی۔]

**قوله:** ﴿ مَنْ حَمَى مُؤْمِنًا مِنْ مُنَافِقٍ ﴾ کوم سړې چه حفاظت اوکړی د یو مسلمان د منافق نه د هغه د ژبې یا د لاس نه نو الله پاک د داسې انسان دپاره یو فرشته مقرر کړی کوم چه به د قیامت په ورځ باندې د هغه بدن لره د دوزخ نه بچ کوی، او کوم انسان چه منسوب کړی د یو مسلمان طرف ته داسې څیز چه په هغې سره د هغه مقصود په هغه باندې عیب لګول وی نو هغه سړې به الله پاک د قیامت په ورځ د جهنم په پل باندې اودروی تردې چه هغه د خپل قول د وبال نه خلاصې بیا مومی یعنی د دې قول د ګناه نه به خلاصې بیا مومی یعنی د هغه قول د ګناه نه بهر راشی، چه د هغې درې صورتونه لیکلې شوې دی بارضاء خصمه، یعنی د هغه خصم به راضی کړې شی، یا د چا د سفارش په ذریعه، او بتعذیبه بقدر ذنبه، یعنی هغه ته به د هغه د قصور او ګناه په اندازه عذاب ورکولو نه پس.

[۴۸۸۴](١) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، قَالَ: حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، أَنَّهُ سَمِعَ إِسْمَاعِيلَ بْنَ بَشِيرٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ وَأَبَا طَلْحَةَ بْنَ سَهْلٍ الْأَنْصَارِيَّ، يَقُولَانِ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنِ امْرِئٍ يَخْذُلُ امْرَأً مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ تُنْتَهَكُ فِيهِ حُرْمَتُهُ وَيُنْتَقَصُ فِيهِ مِنْ عِرْضِهِ إِلَّا خَذَلَهُ اللَّهُ فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ فِيهِ نُصْرَتَهُ، وَمَا مِنِ امْرِئٍ يَنْصُرُ مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ يُنْتَقَصُ فِيهِ مِنْ عِرْضِهِ وَيُنْتَهَكُ فِيهِ مِنْ حُرْمَتِهِ إِلَّا نَصَرَهُ اللَّهُ فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ نُصْرَتَهُ" قَالَ يَحْيَى: وَحَدَّثَنِيهِ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَعُقْبَةُ بْنُ شَدَّادٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ هَذَا هُوَ ابْنُ زَيْدٍ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ بَشِيرٍ مَوْلَى بَنِي مَغَالَةَ، وَقَدْ قِيلَ عُتْبَةُ بْنُ شَدَّادٍ مَوْضِعَ عُقْبَةَ.

د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه او د حضرت ابو طلحه انصاری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : چا چه یو مسلمان لره بې یار ومددګار پریخودو په هغه ځائې کښې په کوم ځائې کښې چه دَ هغه بې عزتی کیدله نو الله تعالیٰ به دهٔ لره په هغه ځائې کښې بې یار و مددګار پریږدی په کوم ځائې کښې چه به دې غواړی نصرت دَ هغه۔ او چا چه د یو مسلمان مدد اوکړو (او دَ هغه دفاع ئې اوکړه) په هغه ځائې کښې په کوم ځائې کښې چه د هغه بې عزتی کیدله نو الله تعالیٰ به ددهٔ په هغه کښې نصرت او مدد اوکړی په کوم ځائې کښې چه به دې دَ هغه نصرت غواړی۔" یحییٰ وائی چه ماته دا روایت عبید الله بن عبد الله بن عمر او عقبه بن شداد هم روایت کړې دې۔امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه یحییٰ بن سلیم، دَ

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٢١٤، ٣٧٦٩، ١٩١٠١، ١٨٩٩٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٠/٤) (ضعيف)

حضرت زید رضي الله عنه صاحبزاده دي کوم چي د نبی کریم صلى الله عليه وسلم ازاد کرده غلام وو او اسماعیل بن بشیر د بنو مغاله آزاد کرده غلام دې او د عقبه بن شداد په ځائي باندې عتبه هم وئيلي شوي دی۔

**قوله:** ﴿ مَا مِنِ امْرِئٍ يَخْذُلُ امْرَأً مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ ينتهک فِيهِ حُرْمَتُهُ وَيُنْتَقَصُ فِيهِ مِنْ عِرْضِهِ الخ ﴾ يخذل د خذلان نه دې چه د هغې معنی ترک نصرت عند الحاجة دې، یعنی کوم انسان چه د یو مسلمان د طرف نه مخ واوړی او د هغه پکار نه راځي او د هغه نصرت نه کوی په داسې مقام کښې چه په هغې کښې د هغه حرمت ضائع کولې شی او د هغه عزت خرابولې شی، نو د هغه انسان سره به الله پاک هم داسې معامله کوی چه د هغه نصرت به نه کوی په داسې مقام کښې چه په هغې کښې به هغه خپل نصرت غواړی، او د هغې بالمقال چه کوم سړې د یو مسلمان نصرت کوی په داسې مقام کښې چرته چه د هغه عزت کمولې شی نو الله پاک د هغه سړی نصرت فرمائی په داسې مقام کښې چه په هغې کښې هغه خپل نصرت غواړی.

## بَابُ مَنْ لَيْسَتْ لَهُ غِيبَةٌ

**بابه...... داسې خلق چه د هغوی بدی بیا نول غیبت نهٔ وی**

[٤٨٨٥]() حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ نَصْرٍ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ بْنُ عَبْدِ الْوَارِثِ مِنْ كِتَابِهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا الْجُرَيْرِيُّ، عَنْ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ الْجُشَمِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنَا جُنْدُبٌ، قَالَ: "جَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَأَنَاخَ رَاحِلَتَهُ ثُمَّ عَقَلَهَا ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى خَلْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا سَلَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى رَاحِلَتَهُ فَأَطْلَقَهَا ثُمَّ رَكِبَ ثُمَّ نَادَى: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا وَلَا تُشْرِكْ فِي رَحْمَتِنَا أَحَدًا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَتَقُولُونَ هُوَ أَضَلُّ أَمْ بَعِيرُهُ أَلَمْ تَسْمَعُوا إِلَى مَا قَالَ، قَالُوا: بَلَى".

د حضرت جندب بن عبد الله بجلی رضي الله عنه نه روایت دې چه یو د باندې اوسیدونکې راغې، هغه خپله سورلئ کینوله، د هغې پنډئ ئې اوتړله بیا جمات ته لاړو او نبی کریم صلى الله عليه وسلم پسې ئې مونځ ادا کړو۔ کله چه رسول الله صلى الله عليه وسلم سلام واړولو نو هغه خپلې سورلئ له راغې، هغې لره ئې کولاؤ کړه، په هغې باندې سور شو بیا ئې په اوچت آواز سره اووې: اې الله په ما باندې رحم اوکړه، او په حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم) باندې رحم اوکړه، او زمونږ په دې رحمت کښې بل چا لره مهٔ شریک کوه۔ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل: تاسو څه کنړئ؟ چه دې زیات جاهل دې او که ددهٔ دا اوښ۔ آیا تاسو وانهٔ ریدل چه دهٔ څه اووې؟ صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم اوفرمائیل ولې نهٔ۔ [ مونږ واوریدل ]

**قوله:** ﴿ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَأَنَاخَ رَاحِلَتَهُ ثُمَّ عَقَلَهَا الحديث وفى اخره: اللَّهُمَّ ارْحَمْنِي وَمُحَمَّدًا وَلاَ تُشْرِكْ فِي رَحْمَتِنَا أَحَدًا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « أَتَقُولُونَ هُوَ أَضَلُّ أَمْ بَعِيرُهُ » ﴾

دا حدیث په کتاب الصلاة کښې تیر شوې دې په دې حدیث باندې په بعض نسخو کښې باب تړلې شوې دې باب مَنْ لَيْسَتْ لَهُ غِيبَةٌ او دا ترجمه ده هم د دې حدیث مناسب، په بذل کښې د حضرت گنگوهی د تقریر نه منقول دی، قوله: هو اضل ام بعيره فيه دلالة على ان اظهار

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٢٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٢/٤) (ضعيف)

العيب لاظهار الحق ودلالة الناس على الهدى غير منهى عنه، فمن اقتدى به الناس وهو غير متاهل لذلک وجب عليهم كافة اظهار معايبه والتشنيع على مثالبه لئلا تفتن الخليقة به، يعنى كوم سړي چه د خلقو مقتدى جوړ شى او خلق هم د هغه اتباع كوى حال دا چه هغه د دې اهل نه وى نو د هغه د احوالو په خلقو باندې ظاهرول مخلوق لره د فتنې نه د بچ كولو دپاره ضرورى دى.

## باب فِي النَّهْيِ عَنِ التَّجَسُّسِ

### باب: ۳۷ - دَ جاسوسئ بيان

يعنى د نورو خلقو په عيبونو لټولو كښې د هغې په باره كښې چه كوم وعيد راغلي دې.

[۴۸۸۸](۱) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ مُحَمَّدٍ الرَّمْلِيُّ، وَابْنُ عَوْفٍ، وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ ثَوْرٍ، عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ مُعَاوِيَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّكَ إِنِ اتَّبَعْتَ عَوْرَاتِ النَّاسِ أَفْسَدْتَهُمْ أَوْ كِدْتَ أَنْ تُفْسِدَهُمْ"، فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ كَلِمَةٌ سَمِعَهَا مُعَاوِيَةُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ نَفَعَهُ اللَّهُ تَعَالَى بِهَا.

د حضرت معاويه ﷺ نه روايت دې هغه فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دى، حضور ﷺ فرمائيل: كه چرې تاسو دَخلقو په عيبوبو پسې اولګيدئ نو هغوى لره به خراب كړئ -" ... يا ... قريبه ده چه تاسو هغوى لره خراب كړئ - نو حضرت ابو درداء ﷺ فرمائى دا خبره كومه چه امير معاويه ﷺ دَ نبى كريم ﷺ نه اوريدلي ده الله تعالىٰ هغه ته ددې نه ډيره زياته فائده وركړه -

﴿ عَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « إِنَّكَ إِنِ اتَّبَعْتَ عَوْرَاتِ النَّاسِ أَفْسَدْتَهُمْ أَوْ كِدْتَ أَنْ تُفْسِدَهُمْ »..........نَفَعَهُ اللَّهُ تَعَالَى بِهَا ﴾

سيدنا معاويه ﷺ فرمائى چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه ته د خلقو پټ عيوب او د هغوى پټو رازونو پسې شې او هغه لټوئ نو د اصلاح په ځائې به هغه خراب كړې، ځكه چه هغه به په دې صورت كښې مجبور كيدو سره جراءت كولو باندې نور هم ښكاره هغه كار كوى په كوم باندې چه هغه ته تنبيه كولې شوه (۲) سيدنا ابو الدرداء فرمائى چه معاويه ﷺ د رسول الله ﷺ دا خبره اوريدلې وه هغوى په دې باندې عمل اوكړو او د هغوى ډيره په كار راغله په ورځو دخلافت كښې.

[۴۸۸۹](۳) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَمْرٍو الْحَضْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَيَّاشٍ، حَدَّثَنَا ضَمْضَمُ بْنُ زُرْعَةَ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، وَكَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ، وَعَمْرِو بْنِ الْأَسْوَدِ، وَالْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ، وَأَبِي أُمَامَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ الْأَمِيرَ إِذَا ابْتَغَى الرِّيبَةَ فِي النَّاسِ أَفْسَدَهُمْ".

حضرت جبير بن نفير، كثير بن مره، عمرو بن اسود رحمهم الله، د حضرت مقدام بن

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۱۳) (صحيح)

(۲) ځكه چه اول خو ئې دا ګنړله چه زمونږ د دې حركتونو نه څوک خبر نه دى په دې وجه به ئې دا كارونه په پټه كول او كله چه دا اوګورى چه د دې خو ټولو ته خبر شوې دې نو اوس د پټ كولو څه فائده ښكاره كول پكار دى.

(۳): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۸۸۶، ۱۸۴۷۲، ۱۹۱۵۸، ۱۹۲۳۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۶) (صحيح لغيره)

معدیکرب او د حضرت ابو امامه رضی الله عنه نه روایت کړې دي، نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: امیر (حاکم وخت) که چرې د تهمت او د شبهې په بناء باندې خلقو پسې اولګیدل نو هغوی لره به خراب کړي۔"

**قوله:** ﴿ إِنَّ الأَمِيرَ إِذَا ابْتَغَى الرِّيبَةَ فِي النَّاسِ أَفْسَدَهُمْ ﴾ دا حدیث مرفوع چه د ډیرو صحابه کرامو نه نقل دې جبیر بن نفیر، کثیر بن مره، عمرو بن الاسود، مقداد بن معدیکرب او ابو امامه رضی الله عنهم، د دې مطلب او د پورته حدیث مطلب یو دې یعنی چه کوم حاکم او امیر د خپلو لاندې کسانو سره د تهمت او بدګمانئ معامله کوی او په تصریح سره هغوی ټوکی نو دا اوکنړئ چه هغوی نور هم خرابوی علامه مناوی فرمائی چه په دې حدیث سره مقصود امام ته ترغیب ورکول دی د تغافل او د خلقو د عیوبو په ترک تتبع سره، یعنی په هره خبره او هره کوتاهئ باندې خلق رانیول نه دی پکار مصلحة ډیرې خبرې معاف کیدل او نظر انداز کول پکار دی.

[٤٨٩٠] [1] حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرِبْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُومُعَاوِيَةَ، عَنْ الأَعْمَشِ، عَنْ زَيْدِبْنِ وَهْبٍ، قَالَ: أُتِيَ ابْنُ مَسْعُودٍ، فَقِيلَ: هَذَا فُلاَنٌ تَقْطُرُ لِحْيَتُهُ خَمْرًا، فَقَالَ عَبْدُاللَّهِ: "إِنَّا قَدْ نُهِينَا عَنِ التَّجَسُّسِ وَلَكِنْ إِنْ يَظْهَرْ لَنَا شَيْءٌ نَأْخُذْ بِهِ".

حضرت زید بن وهب بیان کوی چه حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ته یو سړې راوستلې شو او ورته اووئیلې شو چه دا فلاں سړې دې او ددهٔ د ګیرې نه د شرابو څاڅکی غورځیږی۔ نو عبد الله اووې: مونږ د تجسس نه منع کړې شوې یو، البته که څه خبره ظاهره او واضحه شوې وی نو مونږ به د هغې مواخذه کوو۔

**قوله:** ﴿ أُتِيَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَقِيلَ هَذَا فُلاَنٌ تَقْطُرُ لِحْيَتُهُ خَمْرًا فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ إِنَّا قَدْ نُهِينَا عَنِ التَّجَسُّسِ وَلَكِنْ إِنْ يَظْهَرْ لَنَا شَيْءٌ نَأْخُذْ بِهِ ﴾

چا ابن مسعود رضی الله عنه ته اووې چه د فلانی سړی د ګیرې نه شراب څاڅی مطلب دا وو چه هغه راطلب کړئ او د هغه نه تحقیق اوکړئ، نو هغوی اوفرمائیل چه مونږ د تجسس نه منع کړې شوې یو که یو څیز د مسئلې په طور مونږ ته راشی نو هغه به اخلو.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يُحِلُّ الرَّجُلَ قَدِ اغْتَابَهُ

**باب:...... څوک چه خپل غیبت کوونکی لره معاف کړی**

دلته په حاشیه باندې یو باب دې باب ما جاء فی الرجل یحل الرجل قد اغتابه، او د هغې د لاندې دا حدیث ذکر شوې دې ﴿ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ أَيَعْجَزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكُونَ مِثْلَ أَبِي ضَمْضَمٍ- أَوْ ضَمْضَمٍ شَكَّ ابْنُ عُبَيْدٍ - كَانَ إِذَا أَصْبَحَ قَالَ اللَّهُمَّ إِنِّي قَدْ تَصَدَّقْتُ بِعِرْضِي عَلَى عِبَادِكَ ﴾ او د دې نه پس یو روایت مرفوعا دې

[٤٨٨٦] [2] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ ثَوْرٍ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: "أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكُونَ مِثْلَ أَبِي ضَيْغَمٍ أَوْ ضَمْضَمٍ شَكَّ ابْنُ عُبَيْدٍ كَانَ إِذَا أَصْبَحَ، قَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي قَدْ تَصَدَّقْتُ بِعِرْضِي عَلَى عِبَادِكَ".

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٢٣٠) (صحيح الإسناد)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٧) (صحيح)

دَ حضرت قتاده رضی الله عنه نه روايت دي فرمائی : آيا ستاسو نه ممکنه نهٔ ده چه دَ ابو ضيغم يا دَ ابو ضمضم په شان شئ، په نوم کښې محمد بن عبيد ته شک دې - کله چه به سبا شو نو هغه به وئيل : اې الله ! ما خپل عزت ستا دَ بندګانو دپاره صدقه کړې دې -(که چرې زما په دوی کښې چا بې عزتی کړې وی نو ما هغوی لره معاف کړې دې -)

[٤٨٨٧]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَجْلَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكُونَ مِثْلَ أَبِي ضَمْضَمٍ، قَالُوا: وَمَنْ أَبُو ضَمْضَمٍ، قَالَ: رَجُلٌ فِيمَنْ كَانَ مِنْ قَبْلِكُمْ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: عِرْضِي لِمَنْ شَتَمَنِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، قَالَ: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْعَمِّيِّ، عَنْ ثَابِتٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَنَسٌ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَحَدِيثُ حَمَّادٍ أَصَحُّ.

دَ حضرت عبد الرحمن بن عجلان نه روايت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل :"آيا په تاسو کښې څوک عاجز شته دې چه هغه دَ ابو ضمضم په شان شی؟ صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اوفرمائيل ابو ضمضم څوک دې؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل ستاسو نه وړاندې يو کس تير شوې دې - او دَ مذکوره بالا حديث هم معنیٰ ئې روايت کړو - فرمائی : چا چه ماته بد رد وئيلې وی زما عزت دَ هغوی دَ پاره (صدقه) دې -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روايت لره هاشم بن قاسم روايت کړو نو وې فرمائيل : عن محمد بن عبد الله العمی عن ثابت قال حدثنا انس عن النبی صلی الله علیه وسلم - دَ مذکوره بالا حديث هم معنیٰ ئې بيان کړو -امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ حماد روايت زيات صحيح دې -

**قوله:** ﴿ أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكُونَ مِثْلَ أَبِي ضَمْضَمٍ ».قَالُوا وَمَنْ أَبُو ضَمْضَمٍ قَالَ « رَجُلٌ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ ».بِمَعْنَاهُ قَالَ « عِرْضِي لِمَنْ شَتَمَنِي »﴾ يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل چه په تاسو کښې يو هم نه شی کولې چه د ابوضمضم په شان شی، صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو څوک ابوضمضم؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل په تيرو امتونوکښې يو سړې وو چه دهغه دامعمول وو چه روزانه به ئې دسحرپه وخت وئيل ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي قَدْ تَصَدَّقْتُ بِعِرْضِي عَلَى عِبَادِكَ﴾ او په يو روايت کښې دی ﴿ قد تصدقت عرضي على من شتمنى ﴾ چه اې الله زه خپل عزت ستا په بندګانو باندې صدقه کوم، يعنی هغوی لره د ګناهونو نه د بچ کولو دپاره چه د الله پاک څوک بنده زما د وجې نه ګناهګار نه وی.

د دې آيت کريمه د ليکلو په وخت زما په ذهن کښې دا آيت کريمه راغلو ﴿ خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ ﴾ رسول الله صلی الله علیه وسلم دا فرمائی او حکم کوی چه د خلقو په عادت کښې د عفو او بخښنې عادت خپل کړئ.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٦٧، ١٩٢١٥) (ضعيف)

# بَابٌ فِي السَّتْرِ عَنِ الْمُسْلِمِ

## باب: ۳۸ - دَ مسلمان دَ پرده پوشئ بیان

[۴۸۹۱](¹) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ نَشِيطٍ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عَلْقَمَةَ، عَنْ أَبِي الْهَيْثَمِ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ رَأَى عَوْرَةً فَسَتَرَهَا كَانَ كَمَنْ أَحْيَا مَوْءُودَةً".

د حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه نه روایت دي چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : څوک چه په چا کښې څه بدی اووینی او بیا ئې په هغه باندې پرده واچوله نو ګویا چه دۀ ژوندئ خخه کړې شوې جینئ ژوندئ کړه -

**قوله:** ﴿ مَنْ رَأَى عَوْرَةً فَسَتَرَهَا كَانَ كَمَنْ أَحْيَا مَوْءُودَةً ﴾ یعنی کوم انسان چه په یو مسلمان کښې څۀ عیب پټ اوینی او د هغې نه پس هغه دا پټ اوساتلو او په خلقو باندې ئې ښکاره نه کړو نو د دې سړی دا فعل د هغه سړی سره مشابه دي چه ژوندې ښخه کړې شوې ماشومه ژوندئ کړی (هغې لره د قبر نه راویستلو سره یا والدین لره د دفن کولو نه په منع کولو سره).

[۴۸۹۲](²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، قَالَ: حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ نَشِيطٍ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عَلْقَمَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الْهَيْثَمِ يَذْكُرُ، أَنَّهُ سَمِعَ دُخَيْنًا كَاتِبَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، قَالَ: كَانَ لَنَا جِيرَانٌ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ فَنَهَيْتُهُمْ فَلَمْ يَنْتَهُوا، فَقُلْتُ لِعُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ: إِنَّ جِيرَانَنَا هَؤُلَاءِ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ وَإِنِّي نَهَيْتُهُمْ فَلَمْ يَنْتَهُوا فَأَنَا دَاعٍ لَهُمُ الشُّرَطَ، فَقَالَ: دَعْهُمْ، ثُمَّ رَجَعْتُ إِلَى عُقْبَةَ مَرَّةً أُخْرَى، فَقُلْتُ: إِنَّ جِيرَانَنَا قَدْ أَبَوْا أَنْ يَنْتَهُوا عَنْ شُرْبِ الْخَمْرِ وَأَنَا دَاعٍ لَهُمُ الشُّرَطَ، قَالَ: وَيْحَكَ دَعْهُمْ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ مُسْلِمٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ: عَنْ لَيْثٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: لَا تَفْعَلْ وَلَكِنْ عِظْهُمْ وَتَهَدَّدْهُمْ.

حضرت دخين چه دا د حضرت عقبه بن عامر کاتب (سیکرټری) وو بیان کوی چه زمونږه څو ګاونډیان وو چه هغوی شراب څښل - ما هغوی لره منع کړو مګر هغوی منع شول - ما حضرت عقبه رضی الله عنه ته اوفرمائیل، چه زمونږ دا ګاونډیان شراب څښی، ما دوی لره منع کړې دې مګر دوی منع نۀ شو - زۀ پولیس ته اطلاع ورکووم نو هغوی اوفرمائیل پریږده هغوی لره، زۀ بیا دوبارِه حضرت عقبه رضی الله عنه ته راغلم او هغوی ته مې اوئیل چه زما دې ګاونډیانو دَ شرابو څښلو د پریخودو نه انکار کړې دې او زۀ هغوی لره پولیس ته ښایم نو هغوی اوفرمائیل افسوس په تا باندې ! هغوی لره پریږده - بې شکه ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي - او مذکوره بالا روایت ئې ذکر کړو - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه حضرت هاشم بن قاسم دَ لیث نه په دې روایت کولو کښې فرمائیلي دی : داسې مۀ کوه بلکې هغوی ته نصیحت کوه او دهمکی ورکوه -

**قوله:** ﴿ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا الْهَيْثَمِ يَذْكُرُ أَنَّهُ سَمِعَ دُخَيْنًا كَاتِبَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ كَانَ لَنَا جِيرَانٌ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ فَنَهَيْتُهُمْ الخ ﴾ ابوالهيثم وائی چه ما د دخین بن عامر الحجری نه واوریدل کوم چه د

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۹۹۵۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۴۷/۴) (ضعيف)

²): تفرد به أبو داود، (۱۵۳/۴، ۱۵۸)، (تحفة الأشراف: ۹۹۲۴) (ضعيف)

عقبه بن عامر امیر بصره میر منشي وو يعني دخين به وئيل چه زما څه ګاونډيان وو کوم چه د شرابو څکلو عادت وو ما به هغوی منع کول خو هغوی نه منع کيدل، ما عقبه بن عامر رضي الله عنه ته د هغوی شکايت اوکړو او ورته مي اوويې چه زه په هغوی پسې شرطي (پوليس) راولم، هغوی اوفرمائيل پريږده هغوی، څو ورځې پس ما بيا هغوی ته دهغه شکايت اوکړو او ورته مې هم دا اوويې چه پوليس راولم، نو هغوی دوباره هم زه منع کړم او وې فرمائيل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي او پورته ذکر شوې حديث ئې ذکر کړو، او په بل روايت کښې دي چه هغوی اوفرمائيل چه داسې مه کوه بلکه هغوی پوهه کړه او وې يروه.

## باب المؤاخاة

### باب...... په خپل مابين کښې د روروَلۍ بيان

[٤٨٩٣] [1] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يُسْلِمُهُ، مَنْ كَانَ فِي حَاجَةِ أَخِيهِ فَإِنَّ اللَّهَ فِي حَاجَتِهِ، وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً فَرَّجَ اللَّهُ عَنْهُ بِهَا كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

حضرت سالم د خپل پلار (حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما) نه روايت کوی چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: " مسلمان د مسلمان رور دې،نهٔ په دې باندې ظلم او زياتې کوی او نهٔ دهٔ لره دهٔ په حالاتو باندې پريږدی (چه دهٔ هيڅ پرواه نهٔ کوی) کوم کس چه خپل رور په څه کار کښې وی (چه د هغه څه ضرورت پورا کوی) نو الله تعالیٰ دهٔ په کار کښې وی (الله تعالیٰ به ضرور دهٔ څه کار يا حاجت پورا کوی.) او چا چه د چا مسلمان نه څه دُک درد لرې کړو نو الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ باندې دهٔ يو درد لره دفع کړی،او چاچه د يو مسلمان عيب لره پټ کړو ،نو الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ باندې دهٔ عيب لره پټوی."

﴿ الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لاَ يَظْلِمُهُ وَلاَ يُسْلِمُهُ مَنْ كَانَ فِي حَاجَةِ أَخِيهِ فَإِنَّ اللَّهَ فِي حَاجَتِهِ الخ ﴾

يو مسلمان د بل مسلمان رور دې ديني او اسلامی اخوت مراد دې نه دې په يو بل باندې ظلم کوی او نه دې هغه په څه مصيبت کښې ګيروی، او کوم سړې چه د خپل رور په کار کښې لګيا شی الله پاک د هغه حاجت پوره کوی، او کوم انسان چه د بل مسلمان نه د هغه پريشانی لرې کوی نو الله پاک ترې نه د قيامت په پريشانو کښې يو پريشانی لرې کړی، او کوم انسان چه د يو مسلمان پرده ساتی د قيامت په ورځ باندې به الله پاک د هغه پرده ساتی.﴿ ولا يسلمه ﴾ کښې همزه د سلب دپاره ده په دې وجه معنی ئې د سلب حفاظت شوه يعنی په مصيبت کښې اچول.والله اعلم.

[1]: صحيح البخاري/المظالم ٣ (٢٤٤٢)، الإكراه ٧ (٦٩٥١)، صحيح مسلم/البر والصلة ١٥ (٢٥٨٠)، سنن الترمذي/الحدود ٣ (١٤٢٦)، (تحفة الأشراف: ٦٨٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٩١) (صحيح)

# بَابُ الْمُسْتَبَّانِ

## باب: ۳۹- کنځل کوونکی

په يو نسخه کښې دی باب الاستباب او په بله نسخه کښې دی باب فی السباب.

[٤٨٩٤](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ الْعَلَاءِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُسْتَبَّانِ: مَا قَالَا فَعَلَى الْبَادِي مِنْهُمَا مَا لَمْ يَعْتَدِ الْمَظْلُومُ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل په خپل مابين کښې کنځل کوونکی چه څه هم اووائی، دَ هغې ګناه په ابتداء (شروع) کوونکی باندې ده ترڅو پورې چه مظلوم زياتي اونۀ کړی.''

**قوله:** ﴿ الْمُسْتَبَّانِ مَا قَالاَ فَعَلَى الْبَادِی مِنْهُمَا مَا لَمْ يَعْتَدِ الْمَظْلُومُ ﴾ استباب يعنی د يو بل ته کنځل کول د دواړو طرفونو نه، نو په دې صورت کښې حکم په حديث کښې دا بيان کړې شوې دې چه د دې کنځلو وبال به ټول په شروع کونکی باندې وی څوک چه په کنځلو کولو کښې مخکښې شوې دې خو په هغې کښې يو قيد دې ﴿ مَا لَمْ يَعْتَدِ الْمَظْلُومُ ﴾ د مظلوم نه مراد چاته چه کنځل کړې شوې وو په شروع کښې يعنی په دې شرط چه مظلوم اعتداء اونکړی د هغه عدم اعتداء دا ده چه څنګه هغه ته يو ځل کنځل اوکړې شو هغه هم په بدل کښې يو ځل کنځل اوکړی، نو که دغه شان د يوې کنځلې تقابل په يوې سره کيدلو نو ترڅو پورې چه دا سلسله روانه وی نو په اول کنځل کونکی به دا ټوله ګناه وی خو که مظلوم اعتداء اوکړه د يوې کنځلې په بدل کښې ئې دوه کنځلې اوکړې نو د هغې حکم به دا نه وی بلکه په دې صورت کښې به دواړه په ګناه کښې مشترک وی.

# بَابٌ فِي التَّوَاضُعِ

## باب: ٤٠- دَ تواضع او انکسارئ بيان

### د تواضع حقيقت او تعريف :

د تواضع تعريف په بذل کښې د لمعات نه داسې نقل کړې شوې دې ﴿ هو التوسط بين الكبر والضعة، والكبر هو رفع النفس الى ما هو فوق مرتبتها، والتواضع وقوفها فی مقامها ومرتبتها ﴾ يعنی تواضع د هغه درميانی حالت نوم دې کوم چه د کبر او ضعة په مينځ کښې وی. يعنی خپل ځان لره په خپله مرتبه کښې ساتل نه د هغې نه پورته ختل او نه د هغې نه ښکته کيدل.(٢)، حضرت شيخ د شمائل په شرح خصائل کښې د باب ما جاء فی تواضع رسول الله ﷺ په شروع کښې ليکلې دی چه صوفياء وائی چه حقيقت د تواضع د تجلی شهود د دوام نه بغير نه حاصليږی. اهـ

---

١): سنن الترمذي/البر والصلة ٥١ (١٩٨١)، (تحفة الأشراف: ١٤٠٥٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البر والصلة ١٨ (٢٥٨٧) (صحيح)

٢) پورته تلل کبر دې او ښکته تلل ضعة دې)

[٤٨٩٥] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَفْصٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ، أَنَّهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ أَوْحَى إِلَيَّ أَنْ تَوَاضَعُوا حَتَّى لَا يَبْغِيَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ وَلَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ".

د حضرت عياض بن حمار رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل بې شکه الله تعالىٰ ماته وحى رالیږلې ده چه توضع او انکساری اختیار کړئ تردې پورې چه څوک دې په چا باندې ظلم او زياتې نهٔ کوی او نهٔ دې څوک په چا باندې فخر اوکړی۔"

**قوله:** ﴿ إِنَّ اللَّهَ أَوْحَى إِلَيَّ أَنْ تَوَاضَعُوا حَتَّى لاَ يَبْغِيَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ وَلاَ يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائى چه الله پاک په ما باندې دا وحى رالیږلې ده چه تواضع اختيار کړئ (يعنى هر انسان دې خپل ځان په خپل مقام او مرتبه کښې اوساتی) چه هيڅوک په بل باندې ظلم او زياتې اونکړی او نه څوک په بل باندې فخر اوکړی، په حديث کښې ګويا د تواضع ثمره او د هغې نتيجه ذکر کړې شوې ده چه د تواضع په وجه باندې په انسان کښې دا صفت پيداکيږی په دې وجه مشهوره ده چه خپل مينځ کښې اتفاق په تواضع باندې موقوف دې، که د يو جماعت په ټولو افرادو کښې صفت د تواضع موندلې کيږی او هر يو په خپل مقام او مرتبه باندې اوسيږی نو خپل مينځ کښې به د چا حق هم نه ضائع کوی او په بل باندې به زياتې نه کوی هر يو ته به د هغه حق رسيږی او د يو بل د بل نه شکايت نه وی، او د تواضع مطلب دا نه دې چه انسان خپل ځان د هر چا نه سپک ګڼړی، او حقير ګڼړل هم اګر چه بعض لحاظ سره صحيح دی خو هغه په حقيقت کښې په تواضع کښې داخل نه دی هغه ځانله يو بيل حالت دې کوم چه په انجام باندې د نظر ساتلو په اعتبار سره موندلې شی، ځکه چه د خپل انجام چاته هم خبر نشته نو په دې حيثيت سره که څوک خپل ځان د نورو نه سپک اوګڼړی نو هغه امر اخر دې، په سالکين باندې بعض وختونو کښې چه کله د قبض کيفيت راخور شی هغه وخت هغوی ځانونه د ځناورو (سپو او خنزيرانو) نه هم زيات بدتر ګڼړی

## بَابٌ فِي الِانْتِصَارِ

### بابـ ٤١- دَبدل اخستو بيان

د انتصار معنى ده انتقام، کوم چه جائز دې په اندازه د ظلم، خو احسن عفو ده. (بذل)

[٤٨٩٦] (٢) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ الْمُحَرَّرِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، أَنَّهُ قَالَ: "بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ وَمَعَهُ أَصْحَابُهُ، وَقَعَ رَجُلٌ بِأَبِي بَكْرٍ فَآذَاهُ فَصَمَتَ عَنْهُ أَبُو بَكْرٍ، ثُمَّ آذَاهُ الثَّانِيَةَ، فَصَمَتَ عَنْهُ أَبُو بَكْرٍ، ثُمَّ آذَاهُ الثَّالِثَةَ، فَانْتَصَرَ مِنْهُ أَبُو بَكْرٍ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ حِينَ انْتَصَرَ أَبُو بَكْرٍ، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَوَجَدْتَ عَلَيَّ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: نَزَلَ مَلَكٌ مِنَ السَّمَاءِ يُكَذِّبُهُ بِمَا قَالَ لَكَ، فَلَمَّا انْتَصَرْتَ وَقَعَ الشَّيْطَانُ فَلَمْ أَكُنْ لِأَجْلِسَ إِذْ وَقَعَ الشَّيْطَانُ".

حضرت سعيد بن مسيب رحمه الله فرمائى چه يو ځل نبى کريم ﷺ ناست وو او د هغه سره خپل

(١): سنن ابن ماجه/الزهد ١٦ (٤١٧٩)، (تحفة الأشراف: ١١٠١٦) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشر ف: ٦٥٩٧، ١٣٠٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٦/٢) (حسن لغيره)

صحابۀ کرام رضي الله عنهم هم وو چه یو سړی حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته بد رد اووئیل او هغوی ته ئي اذیت اورسوو، نو حضرت ابو بکر رضي الله عنه خاموش وو - هغه دوی ته په دویم ځل باندې اذیت ورکړو نو حضرت ابو بکر رضي الله عنه خاموش وو بیا هغه په دریم ځل باندې حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته اذیت اورسوو نو حضرت ابو بکر رضي الله عنه هغه ته په بدله کښې څه اوفرمائیل کله چه حضرت ابو بکر بدله واخسته نو رسول الله صلی الله علیه وسلم پاسیدو، نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائیل ای دَ الله رسوله! آیا تاسوزما نه ناراضه شوئ؟ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: "دَ اسمان نه یوه فرښته نازله شوې وه چه هغې به ددې سړی په وئیلو باندې ددهٔ تکذیب کولو، کله چه تا ددهٔ نه بدله واخسته نو شیطان راغے - او کله چه شیطان راغې نو زهٔ نهٔ کینم"

قوله: ﴿ بَيْنَمَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- جَالِسٌ وَمَعَهُ أَصْحَابُهُ وَقَعَ رَجُلٌ بِأَبِى بَكْرٍ فَآذَاهُ فَصَمَتَ عنه أَبُو بَكْرٍ رضى الله تعالى عنه الخ ﴾

مضمون حدیث دا دې چه یو ځل رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلو اصحابو ترمینځه تشریف فرما وو چه په هغوی کښې صدیق اکبر هم وو نو یو سړی صدیق اکبر ته بد اووې او زیادت ئې اوکړو چه په هغې سره هغوی ته تکلیف اورسیدو خو هغوی خاموش وو، په دویم ځل هم داسې اوشو هغه بد اووې نو هغوی خاموش وو، خو په دریم ځل صدیق اکبر رضي الله عنه د دې کنځلو جواب ورکړو، په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه مجلس نه پاسیدو، صدیق اکبر رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو یا رسول الله صلی الله علیه وسلم! آیا تاسو زما نه خفه شوئ؟ نو هغوی اوفرمائیل د اسمان نه یو فرښته راکوزه شوې وه چاچه د دې بد ویونکې تردید او تکذیب کولو، خو چه کله تا د هغه د کنځلو جواب ورکړو او انتقام دې واخستلو نو هلته په مینځ کښې شیطان واقع شو، د شیطان د واقع کیدو نه پس زما هلته کیناستل مناسب نه وو.

[۴۸۹۷] ([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَسُبُّ أَبَا بَكْرٍ وَسَاقَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ صَفْوَانُ بْنُ عِيسَى، عَنْ ابْنِ عَجْلَانَ، كَمَا قَالَ سُفْيَانُ.

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې چه یو کس به حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته بد رد وئیل - او د مذکوره بالا حدیث هم معنیٰ ئې روایت بیان کړو - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه صفوان ابن ویسیٰ دَ ابن عجلان نه هم داسې روایت کړې دې لکه څنګه چه صفوان کړې دې -

د دې نه په روستو روایت کښې هم دا قسم بله واقعه ذکر ده ﴿ قَالَتْ أُمُّ الْمُؤْمِنِينَ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَعِنْدَنَا زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ الخ ﴾

[۴۸۹۸] ([2]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي ح وحَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، أخبرنا مُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، الْمَعْنَى وَاحِدٌ، أخبرنا ابْنُ عَوْنٍ، قَالَ: كُنْتُ أَسْأَلُ عَنِ الِانْتِصَارِ وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِ فَأُولَئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِنْ سَبِيلٍ سورة الشورى آية ۴۱، فَحَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ زَيْدِ بْنِ جُدْعَانَ، عَنْ أُمِّ مُحَمَّدٍ امْرَأَةِ أَبِيهِ، قَالَ ابْنُ عَوْنٍ: وَزَعَمُوا أَنَّهَا كَانَتْ تَدْخُلُ عَلَى أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ، قَالَتْ: قَالَتْ أُمُّ الْمُؤْمِنِينَ: "دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَنَا

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۱۶۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۲/۳) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۳۰/۶) (ضعيف الإسناد)

زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ، فَجَعَلَ يَصْنَعُ شَيْئًا بِيَدِهِ، فَقُلْتُ: بِيَدِهِ حَتَّى فَطَّنْتُهُ لَهَا، فَأَمْسَكَ وَأَقْبَلَتْ زَيْنَبُ تَقَحَّمُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، فَنَهَاهَا فَأَبَتْ أَنْ تَنْتَهِيَ، فَقَالَ لِعَائِشَةَ: سُبِّيهَا فَسَبَّتْهَا فَغَلَبَتْهَا، فَانْطَلَقَتْ زَيْنَبُ إِلَى عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَتْ: إِنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وَقَعَتْ بِكُمْ وَفَعَلَتْ فَجَاءَتْ فَاطِمَةُ، فَقَالَ لَهَا: إِنَّهَا حِبَّةُ أَبِيكِ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ فَانْصَرَفَتْ، فَقَالَتْ لَهُمْ: إِنِّي قُلْتُ لَهُ كَذَا وَكَذَا، فَقَالَ لِي: كَذَا وَكَذَا، قَالَ: وَجَاءَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَهُ فِي ذَلِكَ.

حضرت (عبد الله) ابن عون رحمه الله فرمائی چه ما به د قرآن په دې آیت کریمه کښې { وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِ فَأُولَٰئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِنْ سَبِيلٍ } د وارد لفظ د [ انتصار ] د معنی پوښتنه کوله چه ماته علی ابن زید بن جدعان د خپلې مور ام محمد نه روایت اوکړو او ابن عون وائی : ددغه خلقو خیال وو چه ام محمد به ام المؤمنین (حضرت عائشې رضی الله عنها) ته راتلله - ام محمد وئیلی دی : ام المؤمنین رضی الله عنها فرمائیلي دی چه رسول الله ﷺ ماته تشریف راوړو، او زینب بنت جحش رضی الله عنها هم مونږ سره وه، نو رسول الله ﷺ څه اوکړل په لاس خپل سره (یعنی ننګه چه ښځه خاوند وی) نو ما د هغه لاس اونیولو او هغه لره مي په اشارې سره پوهه کړو .چه هغه (زینب رضی الله عنها هم) زمونږ سره ده - نو حضور ﷺ منع شو - بیا حضرت زینب رضی الله عنها راغله او حضرت عائشې رضی الله عنها ته ئي خبرې کوولې نو رسول الله ﷺ حضرت زینب رضی الله عنها لره منع کړله مګر هغه منع نهٔ شوله نو حضور ﷺ حضرت عائشې رضی الله عنها ته اوفرمائیل چه دې ته جواب ورکړه، چنانچه هغې په دې انداز کښې جواب ورکړو او په (سیده زینب رضی الله عنها باندې) غالبه شوه - نو حضرت زینب رضی الله عنها حضرت علی رضی الله عنه ته لاړه اووې فرمائیل سیده عائشه رضی الله عنها ستاسو د بنو هاشمو په باره کښې داسې وائی او داسې داسې کوی، نو حضرت فاطمه رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته راغله نو حضور ﷺ هغې ته اوفرمائیل په رب د کعبې مې دې قسم وی ! دا ستا د پلار محبوبه ده - چنانچه حضرت فاطمه رضی الله عنها واپس لاړه (حضرت علی رضی الله عنه او حضرت زینب رضی الله عنها ته) ئي اووئیل چه ما هغه ته داسې داسې وئیلي دی نو حضور ﷺ ما ته داسې داسې فرمائیلي دی چنانچه حضرت علی رضی الله عنه نبی کریم ﷺ ته راغې او د هغه سره ئي په دې باره کښې خبرې اوکړې -

سیده عائشه صدیقه رضی الله عنها خپله یو واقعه بیانوي چه یو ځل داسې اوشو چه رسول الله ﷺ زما کور ته تشریف راوړلو دې وخت کښې اتفاقاً زما په کور کښې زینب بنت جحش رضی الله عنها د مخکښې نه موجود وه. (چه د هغې علم رسول الله ﷺ ته نه وو) نو رسول الله ﷺ خپل لاس مبارک زما طرف ته راوړد کړو او څه ئي کول یعنی (هغه عادت کوم چه د زوجینو ترمینځه کوی) ما په لاس سره اشاره اوکړه او د زینب رضی الله عنها هلته موجودګئ باندې مې رسول الله ﷺ ته خبر ورکړو نو هغوی منع شو، زینب رضی الله عنها زما په اشاره باندې پوهه شوه او هغه په دې باندې خفه شوه تردې چه عائشې رضی الله عنها ته ئي بدې ردې وئیل شروع کړل، رسول الله ﷺ هغه منع هم کړه خو هغه منع نه شوه او هم هغه شان ئي بدې ردې وئیلې، په دې باندې رسول الله ﷺ عائشې رضی الله عنها ته اوفرمائیل ته هم د دې جواب ورکوه، د عائشې رضی الله عنها د فصاحت او بلاغت څه شان وو چه کله هغې وینا شروع کړه نو زینب رضی الله عنها ته ئي شکست ورکړو، بیا زینب هلته ایساره

نه شوه او نيغه علي رضی الله عنه ته لاړه او هغوی ته ئې د عائشې رضی الله عنها شکايت اوکړو چه هغوی تاسو ټولو ته يعنی بنو هاشم ته بدې ردې وئيلې، عائشه رضی الله عنها هاشميه نه وه، او زينب رضی الله عنها د خپلې مور د طرف نه هاشميه وه چه هغه د صفيه بنت عبدالمطلب لور وه، په دې وجه خبره په خاندان باندې راغله، په علي او فاطمه رضی الله عنها باندې هم دا خبره بده اولګيده، پس فاطمه رضی الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضره شوه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغې ته يو مختصر شان جمله اوفرمائيله ﴿إِنَّهَا حِبَّةُ أَبِيكِ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ﴾ چه آيا تاته پته نشته چه هغه زما نيازبينه ده (بيا زه هغې ته څه اوايم) په دې باندې هغه واپس شوه، او واپس تلو سره ئې د خپل کور خلقو ته هم دا خبره نقل کړه چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض کړې وو خو هغوی دا جواب راکړو، د دې نه پس علي رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلو او هغوی سره ئې دې باره کښې خبرې اوکړې.

**په دوه متعارض قصو کښې تطبيق او توجيه:**

مصنف رحمه الله په دې باب الانتصار کښې دا دوه مختلف قصې ذکر فرمائيلې دی د اول تعلق د صديق اکبر رضی الله عنه سره وو او د دويمې قصې تعلق د هغوی د لور سيده عائشه رضی الله عنها سره، په دواړو قصو کښې ډير بعد دې، لکه چه ښکاره ده په اول قصه کښې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په انتصار باندې خفه شو او دلته ئې په دې قصه کښې خپله د دې امر اوفرمائيلو، ددې ډير توجيهات کړې شوې دی يو دا چه د صديق اکبر شان ډير اعلی او ارفع وو د عائشې رضی الله عنها هغه مقام نه وو په دې وجه د دواړو قصو حکم بيل بيل دې، يو توجيه دا کړې شوې ده چه مقصود په دواړو ځايونو کښې يو دې يعنی دفع د فتنې، په اول قصه کښې د هغې دفعية زياته غوره په سکوت کښې وه او دلته د هغې دفيعه په انتصار کښې وه، او يا داسې بيان کړه چه د صديق اکبر رضی الله عنه په واقعه جوابی کاروائی کونکې فرشته وه او د چا نه چه انتقام اخستلې کيدو هغه يو پردې سړې وو، او په دويمه قصه کښې دواړو طرفونو ته خپل عزيزات وو، په دې وجه دلته جواب د فرشتې خوښ نه کړې شو چه هغه هم خپله ده، او يا دې دا اوئيلې شی چه په بله قصه کښې د زينب رضی الله عنها ايراد د عائشې رضی الله عنها نه راستنيدو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم طرف ته واپس کيدلو، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د طرف نه مدافعت کول په هر مسلمان باندې فرض دی، او يو جواب دا هم کيدې شی چه دا دويم روايت سندا ضعيف دې محدثينو په دې باندې کلام کړې دې قال المنذری فيه علی بن زيد بن جدعان لا يحتج بحديثه، وام محمد مجهولة.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنْ سَبِّ الْمَوْتَى (۱)

**باب: مړو ته د بد رد وئيلو د ممانعت بيان**

[۴۸۹۹] (۲) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا مَاتَ صَاحِبُكُمْ فَدَعُوهُ وَلَا تَقَعُوا فِيهِ".

[1]) واستثني منه البخاري حيث ترجم باب ذكر شرار الموتي واستدل بسورة تبت (هامش البذل)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۲۸۲)، وقد أخرجه: الرقاق ۴۲ (۶۵۱۶)، سنن النسائي/الجنائز ۵۲ (۱۹۳۸)، مسند احمد (۶/۱۸۰) (صحيح)

ام المؤمنين حضرت عائشه ﷞ بيان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ستاسو نه چه څوک مړهٔ شي نو دَ هغه عيب چيني مهٔ کوئ.''

**قوله:** ﴿ إِذَا مَاتَ صَاحِبُكُمْ فَدَعُوهُ لاَ تَقَعُوا فِيهِ ﴾

يعني کله چه ستاسو څوک خپل يا ملګرې وفات شي نو هغه پرېږدئ يعني په بدئ سره مه ئې يادوئ، ﴿ لاَ تَقَعُوا فِيهِ ﴾ دا جمله ثانيه د اولى تفسير کوی او ترجمة الباب هم د مصنف ﷫ هم دا دې چه د مړ انسان په بدئ سره ذکر نه دی کول پکار، دا روايت په ترمذی کښې هم دې په کتاب المناقب کښې باب فی فضل ازواج النبیﷺ او د هغې الفاظ دا دی ﴿خيرکم خيرکم لاهله وانا خيرکم لاهلی، واذا مات صاحبکم فدعوه ﴾ او د هغې په حاشيه کښې د صاحب په مصداق کښې دوه قوله دی يو دا چه د دې نه مراد خپله رسول اللهﷺ دې او مطلب دا دې چه کله زه د دې دنيا نه لاړ شم او وفات شم نو زما په فراق کښې ډير مه غمژن کيږئ چه هر وخت ما يادوئ بلکه په خپلو کارونو کښې اولګئ، او يا مطلب دا دې چه زما د مرګ نه پس ما پرېږدئ زما عترت (اولاد) ته په تکليف ورکولو باندې ماته تکليف مه راکوئ، او دويم قول دا دې چه د صاحبکم نه مراد ﴿ احدکم ﴾ دې بيا د دې په مطلب کښې هم دواړه احتماله دی چه کله په تاسو کښې د چا وفات اوشي نو د هغه د مساوی ذکر پرېږدئ، او يا مطلب دا دې چه د هغه زيات يادول پرېږدئ، او د هغه په يادولو باندې مه ژاړئ، د باب په دويم حديث کښې دی ﴿ اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ ﴾ يعنى د خپلو مړو صرف محاسن بيانوئ کوم چه په هغوی کښې موندلې شو عيبونه ئې مه بيانوئ.

## شرح الحديث من كلام المحدث الگنگوهي :

د حضرت گنگوهی په تقرير کښې دی چه رسول اللهﷺ مطلق موتی نه دې فرمائيلې بلکه ﴿موتاکم ﴾ ئې فرمائيلې دې چه اشاره ده د ﴿ موتی المومنين ﴾ طرف ته لهذا د نهی تعلق به د هغه اموات سره وی چه د هغه مرګ علی سنة المسلمين وی يعنی د مسلمانانو په طريق باندې، او د چا طريقه چه د مسلمانانو د طريق خلاف وی مثلا اهل بدعت نو د هغوی د عيبونو نه سکوت جائز نه دې چه خلق د هغه طريقه اختيار نه کړی، خو دا ضروری ده چه د هغه د عيبونو اظهار د الله پاک دپاره وی د خپل نفس د تشفی او د مړی د سپکاوی په طور نه وی.اهـ

[۴۹۰۰](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ أَنَسٍ الْمَكِّيِّ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اذْكُرُوا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ وَكُفُّوا عَنْ مَسَاوِيهِمْ".

د حضرت عبد الله بن عمر ﷟ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل د خپلو مړو خوبئ بيانوئ او دَ هغوی دَ بدو نه منع شئ.''

¹): سنن الترمذي/الجنائز ٣٤(١٠١٩)، (تحفة الأشراف: ٧٣٢٨) (ضعيف) (عمران بن انس ضعيف راوي هي ﺳ)

# بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ الْبَغْيِ

## باب: ٤٣- دَ حد نه دَ تجاوز كولو دَ مما نعت بيان

[٤٩٠١](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، أَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ ثَابِتٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي ضَمْضَمُ بْنُ جَوْسٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "كَانَ رَجُلَانِ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ مُتَآخِيَيْنِ، فَكَانَ أَحَدُهُمَا يُذْنِبُ وَالْآخَرُ مُجْتَهِدٌ فِي الْعِبَادَةِ، فَكَانَ لَا يَزَالُ الْمُجْتَهِدُ يَرَى الْآخَرَ عَلَى الذَّنْبِ، فَيَقُولُ: أَقْصِرْ، فَوَجَدَهُ يَوْمًا عَلَى ذَنْبٍ، فَقَالَ لَهُ: أَقْصِرْ، فَقَالَ: خَلِّنِي وَرَبِّي أَبُعِثْتَ عَلَيَّ رَقِيبًا، فَقَالَ: وَاللَّهِ لَا يَغْفِرُ اللَّهُ لَكَ أَوْ لَا يُدْخِلُكَ اللَّهُ الْجَنَّةَ فَقَبَضَ أَرْوَاحَهُمَا، فَاجْتَمَعَا عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ، فَقَالَ لِهَذَا الْمُجْتَهِدِ: أَكُنْتَ بِي عَالِمًا أَوْ كُنْتَ عَلَى مَا فِي يَدِي قَادِرًا، وَقَالَ لِلْمُذْنِبِ: اذْهَبْ فَادْخُلِ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِي، وَقَالَ لِلْآخَرِ: اذْهَبُوا بِهِ إِلَى النَّارِ"، قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَوْبَقَتْ دُنْيَاهُ وَآخِرَتَهُ.

حضرت ابو هريره رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله نه نه اوريدلي دي هغه فرمائيل: '' په بني اسرائيلو كښې دوه كسان وو په خپل مابين كښې رونړه جوړ شوي وو - يو په ګناهونو كښې مبتلا وو او دويم كس به په عبادت كښې مشغول وو - په عبادت كښې مشغول كس چه به كله دويم لره په ګناه كښې اوليدو نو هغه ته به ئي وئيل چه منع شه، آخر يو ځل دهٔ دغي دويم كس لره په ګناه كښې اوليدو نو هغه ته ئي اووئيل منع شه هغه اووې مالره پريږده زما معامله زما دَ رب سره ده آيا تهٔ په ما باندې څه چوكيدار جوړ كړې شوې ئې؟ نو هغه اووې په الله قسم الله تعالىٰ به تالره معاف نهٔ كړي يا تا به جنت ته داخل نهٔ كړي - چنانچه هغه دواړه مړهٔ شو او رب العالمين ته دواړه جمع كړې شو، نو الله تعالىٰ هغه كس ته اووې كوم چه په عبادت كښې مصروف وو: آيا تهٔ زما متعلق زيات عالم وې يا څه چه زما په لاس كښې دي تاته په هغې باندې زيات قدرت حاصل وو؟ او بيا ئي ګنهګار ته اوفرمائيل: ځه زما په رحمت سره جنت ته داخل شه - او دَ دويم متعلق ئي اوفرمائيل دهٔ لره جهنم ته بوځئ - حضرت ابو هريره رضی الله عنه فرمائی زما دې قسم وی په هغه ذات باندې دَ چا په قبضه كښې چه زما روح دې! هغه داسې خبره كړې وه چه دَ هغه ئي دنيا او آخرت تباه كړو - ''

**قوله:** ﴿ كَانَ رَجُلَانِ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ مُتَآخِيَيْنِ فَكَانَ أَحَدُهُمَا يُذْنِبُ وَالْآخَرُ مُجْتَهِدٌ فِي الْعِبَادَةِ الخ ﴾

د ابوهريره رضی الله عنه نه مرفوعا روايت دې چه په بني اسرائيلو كښې دوه سړي وو د يو بل ملګرى او دوستان په هغوى كښې يو ګناه كونكې وو، او دويم مجتهد في العبادة وو، يعنى عبادت او مجاهده كونكې، نو دې عابد چه به خپل ملګرې په ګناهونو باندې ليدو نو هغه به ئي پوهولو او خبردارې به ئي وركولو، يوه ورځ داسې كار اوشو چه هغه يو ګناه كوله دې عابد هغه سړې د عادت مطابق منع كړو نو هغه اووې ﴿ خَلِّنِي وَرَبِّي ﴾ چه ته ما په خپل رب باندې پريږده زه پوهه شه او زما رب پوهه شه او دا ئي هم ورته اوئيل چه ته ما باندې رقيب او ذمه دار جوړ كړې شوې ئې، په دې باندې هغه عابد ته غصه ورغله او هغه اووې ﴿ وَاللَّهِ لَا يَغْفِرُ اللَّهُ لَكَ ﴾ يعنى قسم خوړلو سره ئي اووې چه ستا مغفرت به نه كيږي، پس چه كله دا

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٣٥١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٢٣/٢) (صحيح)

دواړه وفات شو نو په عالم برزخ کښې د دې دواړو معامله د رب العلمين مخکښې پيش کړې شوه نو په دې عابد مجاهد باندې جرح اوکړې شوه چه آيا تا ته د دې خبرې علم وو چه زه به د دې سړي مغفرت نه کوم، او يا زما مغفرت او عدم مغفرت ستا په اختيار کښې دې او بيا د دې نه پس فيصله اوشوه د دې مجرم دپاره چه ته جنت ته لاړ شه زما په رحمت باندې او د دې عابد په باره کښې اوئيلې شو چه دې جهنم ته داخل کړئ.

**قوله:** ﴿قال ابوهريره وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَوْبَقَتْ دُنْيَاهُ وَآخِرَتَهُ﴾

ابوهريره رضی الله عنه په دې باندې فرمائي چه زه قسم خوړلو سره وايم چه دې سړي د خولې نه يو خبره راويستلې وه کومې چه د هغه دنيا او آخرت تباه کړو.

او د باب په دويم حديث کښې دی چه په ټولو ګناهونو کښې داسې ګناه چه د هغې سزا د آخرت سره سره په دنيا کښې هم زر ملاويږي هغه ظلم او قطع رحمي ده، د دې دوو نه علاوه بله هيڅ ګناه داسې نه ده.

[۴۹۰۲](۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ، عَنْ عُيَيْنَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ ذَنْبٍ أَجْدَرُ أَنْ يُعَجِّلَ اللَّهُ تَعَالَى لِصَاحِبِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الدُّنْيَا مَعَ مَا يَدَّخِرُ لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِثْلُ الْبَغْيِ وَقَطِيعَةِ الرَّحِمِ".

د حضرت ابو بکره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: "هيڅ يوه ګناه دومره لائقه نۀ ده چه د هغې کوونکي ته الله تعالىٰ په دنيا کښې سزا ورکړي- او د هغې سره سره په آخرت کښې هم سزا ورکړي لکه څومره چه ظلم او زياتې او قطع رحمي ده-"

## بَابٌ فِي الْحَسَدِ

### باب: ۴۴- د حسد بيان

[۴۹۰۳](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ صَالِحٍ الْبَغْدَادِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ يَعْنِي عَبْدَ الْمَلِكِ بْنَ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ أَبِي أَسِيدٍ، عَنْ جَدِّهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ، أَوْ قَالَ: الْعُشْبَ".

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه نبي کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: د حسد نه خپل ځان لره بچ کړئ، بې شکه حسد نيکئ داسې خورې لکه څنګه چه اور خشاک خوري ... يائې اوفرمائيل ... ګيا خوري."

**قوله:** ﴿إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ أَوْ قَالَ الْعُشْبَ﴾

ځان بچ کړئ د حسد کولو نه ځکه چه حسد د انسان نيکئ داسې خوري لکه اور چه لرګي يا ګيا لره.

### (حسد او غبطه)

د حسد تعريف دا دې: دبل د نعمت زوال غوښتل، دحضرت ناظم مولانا اسعد الله صاحب رحمه الله

(۱): سنن الترمذي/صفة القيامة ۵۷ (۱۵۱۱)، سنن ابن ماجه/الزهد ۲۳ (۴۲۱۱)، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۹۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۳۸) (صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۵۴۸۸) (ضعيف)

نه مونږ هم دغه شان اوریدلي وو، او یو وی غبطة چه بل سره څه نعمت لیدو باندې د هغې د حصول تمنا کول، قطع نظر د دې نه چه هغه نعمت هغه سره پاتې شي یا نه شي، او په حسد کښې د دې برعکس مقصود دا وی چه هغه سره نه وی که ماته ملاؤ شي او که نه شي.

[٤٩٠٤]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي الْعَمْيَاءِ، أَنَّ سَهْلَ بْنَ أَبِي أُمَامَةَ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ دَخَلَ هُوَ وَأَبُوهُ عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بِالْمَدِينَةِ فِي زَمَانِ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ وَهُوَ أَمِيرُ الْمَدِينَةِ، فَإِذَا هُوَ يُصَلِّي صَلَاةً خَفِيفَةً دَقِيقَةً كَأَنَّهَا صَلَاةُ مُسَافِرٍ أَوْ قَرِيبًا مِنْهَا فَلَمَّا سَلَّمَ، قَالَ أَبِي: يَرْحَمُكَ اللَّهُ، أَرَأَيْتَ هَذِهِ الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ أَوْ شَيْءٌ تَنَفَّلْتَهُ؟، قَالَ: إِنَّهَا الْمَكْتُوبَةُ وَإِنَّهَا لَصَلَاةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَا أَخْطَأْتُ إِلَّا شَيْئًا سَهَوْتُ عَنْهُ، فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَانَ يَقُولُ: "لَا تُشَدِّدُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ فَيُشَدَّدَ عَلَيْكُمْ، فَإِنَّ قَوْمًا شَدَّدُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ فَشَدَّدَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ فَتِلْكَ بَقَايَاهُمْ فِي الصَّوَامِعِ وَالدِّيَارِ وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ، ثُمَّ غَدَا مِنَ الْغَدِ، فَقَالَ: أَلَا تَرْكَبُ لِتَنْظُرَ وَلِتَعْتَبِرَ، قَالَ: نَعَمْ، فَرَكِبُوا جَمِيعًا فَإِذَا هُمْ بِدِيَارٍ بَادَ أَهْلُهَا وَانْقَضَوْا وَفَنُوا خَاوِيَةٍ عَلَى عُرُوشِهَا، فَقَالَ: أَتَعْرِفُ هَذِهِ الدِّيَارَ، فَقُلْتُ: مَا أَعْرَفَنِي بِهَا وَبِأَهْلِهَا، هَذِهِ دِيَارُ قَوْمٍ أَهْلَكَهُمُ الْبَغْيُ وَالْحَسَدُ إِنَّ الْحَسَدَ يُطْفِئُ نُورَ الْحَسَنَاتِ وَالْبَغْيُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ أَوْ يُكَذِّبُهُ وَالْعَيْنُ تَزْنِي وَالْكَفُّ وَالْقَدَمُ وَالْجَسَدُ وَاللِّسَانُ وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ أَوْ يُكَذِّبُهُ.

حضرت سهل بن ابو امامه رحمة الله بیان کوی چه د هغه پلار صاحب په مدینه منوره کښې حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ته لاړو - دا د حضرت عمر بن عبد العزیز د دور خبره ده، او هغه د مدینې ګورنر وو، مونږ حضرت انس رضي الله عنه ته اورسیدو نو هغه ډیر زیات خفیف مونځ لوستو، ګویا چه د مسافر مونځ وی یا هغې ته نزدې - کله چه هغه سلام واړولو نو زما پلار پوښتنه اوکړه: الله تعالیٰ دې په تا باندې رحم اوکړی ! دا اوښایئ چه دا فرض مونځ وو یا تاسو څه نفل اوکړل؟ هغوی اوفرمائیل: دا فرض مونځ وو او د نبی کریم ﷺ مونځ به هم داسې وو ما د هغې نه څه څیز نۀ دې پریخودې سوا ددې نه کۀ څه څیز هیر شوې وی - (نو هغه جدا خبره ده) هغوی اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ به فرمائیل: په خپلو ځانونو باندې سختی مۀ کوئ، بې شکه څو قومونو په ځان باندې سختی اوکړه نو الله تعالیٰ هم په هغوی باندې سختی اوفرمائیله - د ځنګل په عبادت خانو کښې او په ګرجو کښې دننه ددغې خلقو باقی افراد دی - (چه د هغوی په قرآن مجید کښې ذکر دې -) دغې خلقو رهبانیت لره اختیار کړو، هغوی دا بدعت ایجاد کړو، مونږ په هغوی باندې فرض کړې نۀ وو -" [ الحدید : ٢٧] بیا مونږ په بله ورځ باندې د سحر په وخت کښې ورغلو نو هغوی اوفرمائیل آیا تاسو نۀ سوریږئ (په خپلو سورلو باندې) چه څه اووینئ او عبرت حاصل کړئ - زما پلار اووې هان مونږ څو - چنانچه مونږ ټول سوارۀ شو - نو هغوی مونږ ته څو کلی اوښودل چه د هغې خلق هلاک شوې وو او هغوی برباد کړې شوې وو او د هغوی کورونه په خپلو چتونو باندې راپریوتې وو - هغوی اوفرمائیل: آیا تاسو دا کلی پیژنئ؟ زما پلار اووې نۀ - ما ته ددې کلو او ددې خلقو څه علم نشته دې- هغوی اوفرمائیل چه دا د هغه قوم کلی دی چه هغوی

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٩٩) (حسن) ملاحظه هو: سلسلة الاحادیث الصحیحه، للالباني ٣١٢٤ وتراجع الألباني ١٣)

لره بغاوت او حسد برباد کړې دي - بې شکه حسد د نیکو نور لره مړ کوی او بغاوت د هغې تصدیق کوی یا د هغې تکذیب کوی - سترګه زنا کوی او بیا لاس، پښه، جسم، ژبه او شرم ګاه د هغې تصدیق کوی یا تکذیب -

قوله: ﴿أَنَّهُ دَخَلَ هُوَ وَأَبُوهُ عَلَى أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بِالْمَدِينَةِ﴾ زمونږ په موجوده نسخه کښې د دې نه پس د حدیث متن دا دې : ﴿لاَ تُشَدِّدُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ فَيُشَدَّدَ عَلَيْكُمْ فَإِنَّ قَوْمًا شَدَّدُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ فَشَدَّدَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ فَتِلْكَ بَقَايَاهُمْ فِي الصَّوَامِعِ وَالدِّيَارَاتِ (وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ)﴾ خو صرف د دې متن د ترجمة الباب سره مطابقت نشته دلته چا په روایت کښې اختصار کړې دې او د دې روایت کافی حصه پریخودلې شوه کومه چه په بعض نسخو کښې ده او هغه متروک حصه زمونږ د نسخې په حاشیه باندې ذکر ده هغه دې او کتلې شی هم د هغې په یو ځائې کولو سره د حدیث ترجمة الباب سره موافقت پیدا کیږی، مونږ د پوره روایت مضمون لیکو، عربی عبارت دې په حاشیه کښې او کتلې شی، سهل بن امامه فرمائی چه یو ځل زه او زما والد صاحب ابو امامه د انس ﷺ کور ته لاړو مدینې منورې ته، او دا د هغه زمانې خبره ده چه د مدینې طیبې امیر عمر بن عبد العزیز رحمه الله وو، چه کله مونږ هلته هغوی ته اورسیدو نو هغوی هغه وخت مونځ کولو ډیر مختصر او خفیف شان لکه څنګه چه مسافر مونځ کوی چه کله سیدنا انس ﷺ د مانځه نه سلام اوګرځولو نو زما والد یعنی ابو امامه هغوی ته اووې چه الله پاک دې په تاسو باندې رحم اوکړی دا چه تاسو مختصر مونځ کولو دا فرض مونځ وو یا نفل، نو هغوی اوفرمائیل چه دا فرض مونځ وو او دا ئې هم اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ به هم داسې مونځ کولو، ما بالکل هم هغه شان کړې دې، خو که څه څیز رانه سهوا پاتې شوې وی نو هغه بیله خبره ده او بیا انس ﷺ هغه اوفرمائیل څه چه پورته په متن کښې دی هغه دا چه رسول الله ﷺ به فرمائیل: پخپل ځان باندې تشدد مه کوئ یعنی په احکاماتو باندې عمل کولو کښې غلو مه کوئ، په اعتدال سره چلیږئ ګینې الله پاک به مو واقعی په شدت کښې اخته کړی، یعنی که تاسو په خپلو ځانونو شدت کوئ نو بیا به الله پاک هم تاسو د دې شدت مکلف کړی ځکه چه بعض اهل کتابو په خپلو ځانونو باندې تشدد اوکړو نو الله پاک هم په هغوی باندې تشدد اوفرمائیلو او نن صبا چه په دې صوامع او ګرجو کښې کوم خلق مقیم دی دا هم د هغوی باقی او پاتې شوې دی یعنی چا چه په خپلو ځانونو باندې تشدد کړې وو، چه د هغې ذکر الله پاک په دې آیت کریمه کښې کړې دې ﴿رَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ﴾ او په هغه دویمه نسخه کښې دا دی چه د هغې مضمون دا دی : سهل وائی چه زما والد په بله ورځ سحر بیا د انس ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او انس ﷺ ته ئې اووې چه بهر نه راوځئ چه لړ په سورلئ باندې د زمکې سیر اوکړو د عبرت او غور دپاره، نو هغوی اوفرمائیل ټهیک ده څه چه ځو، دوی سوارهٔ شو او روان شو (ممکنه ده چه نور ملګری به هم ورسره وو ځکه چه په روایت کښې د جمع صیغه ده په تلو تلو کښې په څه کورونو باندې تیر شو چه د هغې اوسیدونکی فنا شوې وو او ختم شوې وو، دا کورونه داسې وو چه د هغې دیوالونه او چهتونه راپریوتلې وو نو د

هغې په ليدو باندې ابوامامه د انس رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه تاسو دا کورونه پيژنئ، يعنی د چا وو نو هغوی جواب ورکړو ﴿ مَا أَعْرَفَنِي بِهَا وَبِأَهْلِهَا ﴾ دا صيغه د تعجب ده، چه زما نه زيات دا کورونه او د دې اهل څوک پيژني، او بيا ئې اوفرمائيل چه دا د داسې خلقو کورونه دی کوم چه هلاک او برباد کړل ظلم او حسد ﴿ إِنَّ الْحَسَدَ يُطْفِئُ نُورَ الْحَسَنَاتِ وَالْبَغْيُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ أَوْ يُكَذِّبُهُ ﴾ چه دا حسد داسې سپيرهٔ خصلت دې چه د نيکو نور ختموی او د انسان ظلم کول دا د دې حسد تصديق کوی يا تکذيب يعنی نظر حسد [1] د پاره ظلم د هغه تصديق کوی چه دا نظر نظر د حسد وو، او عدم بغی (ظلم نه کول) دا د نظر حسد تکذيب کوی، يعنی ظلم چه دې نو دا علامت د حسد دې، او ترک ظلم او عدم البغی دا علامت دې د عدم حسد، والعين تزنی والکف والقدم والجسد واللسان والفرج يصدق ذلک او يکذبه ...يعنی د سړی سترګې هم زنا کوی او لاس هم او خپې هم او ژبه هم او د دې اعضاء د زنا کولو تصديق يا تکذيب چه اصل زنا ده هغه شرمګاه کوی، يعنی د دې اندامونو نه د زنا کيدل يا نه کيدل په تصديق فرج او تکذيب فرج باندې موقوف دې د زنابالفرج نه د دې اعضاء زناکار کيدل ثابتيږی او د ترک زنا بالفرج نه ثابتيږی چه دا اندامونه زناکار نه دی.

د حديث په دې آخری ټکړه کښې اشاره ده هغه حديث مرفوع طرف ته کوم چه په کتاب النکاح کښې په باب ما يومر به من غض البصر کښې تير شوې دې: ﴿ إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا فَزِنَا الْعَيْنَيْنِ النَّظَرُ وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ وَيُكَذِّبُهُ ﴾ او د دې شرح هم هلته تيره شوې ده.

د دې پوره حديث نه پس دا حديث د ترجمة الباب موافق شو څکه چه په دې حديث کښې دی ﴿ ان الحسد يطفئ نور الحسنات ﴾.

## بَابٌ فِي اللَّعْنِ

### باب ۴۵- د لعنت بيان

[۴۹۰۵] ([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ رَبَاحٍ، قَالَ: سَمِعْتُ نِمْرَانَ يَذْكُرُ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، قَالَتْ: سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا لَعَنَ شَيْئًا صَعِدَتِ اللَّعْنَةُ إِلَى السَّمَاءِ، فَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ دُونَهَا ثُمَّ تَهْبِطُ إِلَى الْأَرْضِ فَتُغْلَقُ أَبْوَابُهَا دُونَهَا، ثُمَّ تَأْخُذُ يَمِينًا وَشِمَالًا فَإِذَا لَمْ تَجِدْ مَسَاغًا رَجَعَتْ إِلَى الَّذِي لُعِنَ فَإِنْ كَانَ لِذَلِكَ أَهْلًا وَإِلَّا رَجَعَتْ إِلَى قَائِلِهَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَرْوَانُ بْنُ مُحَمَّدٍ: هُوَ رَبَاحُ بْنُ الْوَلِيدِ سَمِعَ مِنْهُ وَذَكَرَ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ حَسَّانَ وَهِمَ فِيهِ.

حضرت ابودرداء رضي الله عنه بيان کوی چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: بنده چه کله په يو څيز باندې لعنت کوی نو دا لعنت اسمان طرف ختږی نو هغې ته وړاندې د اسمان دروازې بندولې شي

[1]) يعنی د يو صاحب النعم نعمتونو ته کتل کله خو صرف د حرص او غبطه په طور وی او کله په طور د حسد وی. د اول (يعنی د غبطه) علامت دا دې چه په دې صورت کښې هغه په دې صاحب النعم باندې ظلم او زيادت نه کوی او د ثانی علامت دا دې چه په دې صورت کښې هغه په هغه باندې ظلم او زيادت کوی).

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٠٠) (حسن)

بيا هغه زمکې طرف ته راکوزيږي - بيا هغه ښي او ګس طرف ته ځي - که څه ځائي هغه بيا اونهٔ مومي نو په کوم څيز سره چه لعنت کړې شوې وي په هغې باندې واقع کيږي خو په شرط ددې سره چه هغه څيز ددې حقدار وي - ورنه بيا ويونکي طرف ته واپس کيږي.'' امام ابو داود رحمه الله فرمائي : چه مروان بن محمد وئيلي دي (په سند کښې مذکور راوي وليد بن رباح په اصل کښې) رباح بن وليد دې - يحيیٰ بن حسان ته په دې کښې وهم شوې دې.
مضمون د حديث دا دې چه کله يو سړې په بل باندې لعنت کوي يعنې د لعنت بددعاء کوي لعنة الله عليه، نو اول هغه لعنت د آسمان طرف ته خيژي نو د اسمان دروازې بندې کړې شي د هغې د رسيدو نه مخکښې، بيا هغه د زمکې طرف ته راکوزيږي نو هم دغه شان د زمکې دروازې هم بندې کړې شي د هغې د راکوزيدو نه مخکښې، بيا هغه لعنت يو خوا بل خوا تاويږي چه کله ورته هيڅ لاره ملاؤ نه شي نو هغه سړي ته راواپس شي په چا باندې چه ليږلې شوې وو، پس که هغه سړې د هغې مستحق وي نو هم په هغه باندې واقع شي ګينې واپس کيدو سره په خپل ويونکي باندې واقع کيږي، لهذا د لعنت بددعاء کونکي لره دا کتل پکار دي په ښه طريقې سره چه په چا باندې هغه لعنت کوي هغه د هغې اهل دې هم او که نه ، ځکه چه که د لعنت اهل نه وي نو هغه لعنت به واپس هم په هغه ويونکي باندې واقع کيږي.

[۴۹۰۶](1) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَلَاعَنُوا بِلَعْنَةِ اللَّهِ وَلَا بِغَضَبِ اللَّهِ وَلَا بِالنَّارِ".

حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه بيان کوي چه نبي کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل : د الله په لعنت سره لعنت مهٔ کوئ او د الله په غضب او د دوزخ بد دعا مهٔ کوئ.''

[۴۹۰۷](2) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، وَزَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، أَنَّ أُمَّ الدَّرْدَاءِ، قَالَتْ: سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَكُونُ اللَّعَّانُونَ شُفَعَاءَ وَلَا شُهَدَاءَ".

حضرت ابو درداء رضی الله عنه بيان کوي چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي هغوی فرمائيل : څوک چه د ټولو نه زيات لعنت کوونکې شو نو هغه (د چا) سفارشي يا ګواه نهٔ شي جوړيدې.
﴿ لَا يَكُونُ اللَّعَّانُونَ شُفَعَاءَ وَلَا شُهَدَاءَ ﴾ د دې په شرح کښې درې اقوال دي يو دا چه کوم خلق په نورو باندې په کثرت سره لعنت ليږي او هغوی په دې باندې عادت دي نو د قيامت په ورځ باندې به هغوی د امت محمديه على صاحبها الصلوة والسلام والتحية، د هغه خلقو نه نهٔ وي کوم چه به د قيامت په ورځ باندې د تبليغ انبياء ګواهي ورکوي، يعنې هغوی به د دې شرف نه محروم وي، او دويم مطلب دا چه په دنيا کښې دا خلق د دې قابل نه دي چه د هغوی شهادت قبول کړې شي، لاجل فسقهم، دريم مطلب دا دې چه دې خلقو ته به د شهادت مرتبه نه نصيب کيږي، کذا في هامش البذل نقلا عن النووي ۲/۳۲۲........د دې نه په روستو

(1): سنن الترمذي/البر والصلة ۴۸ (۱۹۷۶)، (تحفة الأشراف: ۴۵۹۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۵/۵) (حسن)
(2): صحيح مسلم/البر والصلة ۲۴ (۲۵۹۸)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۴۸/۶) (صحيح)

روایت کښې دی چه یو سړي کوم چه د هوا د تیزوالی د وجې نه پریشانه وو په څادر اغوستلو کښې چه د هوا د وجې نه هغه بار بار غورځیدلو نو دې سړي هوا ته د لعنت بددعاء اوکړه نو رسول الله ﷺ د دې نه منع اوفرمائیله : ﴿ لاَ تَلْعَنْهَا فَإِنَّهَا مَأْمُورَةٌ ﴾ چه دا هوا خو هم په دې باندې مامور ده په خپله مرضئ باندې خو نه لګی.

[۴۹۰۸](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ. ح حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ بْنُ يَزِيدَ الْعَطَّارُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، قَالَ زَيْدٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: "أَنَّ رَجُلًا لَعَنَ الرِّيحَ، وَقَالَ مُسْلِمٌ: إِنَّ رَجُلًا نَازَعَتْهُ الرِّيحُ رِدَاءَهُ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَعَنَهَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَلْعَنْهَا فَإِنَّهَا مَأْمُورَةٌ وَإِنَّهُ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ رَجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ".

:- د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه یو کس په هوا باندې لعنت اوئیلو - او د مسلم (بن ابراهیم) الفاظ دی چه د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې په هوا سره د یو کس څادر والوتلو نو هغه په هوا باندې لعنت اوکړو، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل په دې باندې لعنت مه کوئ، بې شکه دا (د الله د حکم) پابند ده - او بې شکه چاچه په یو څیز باندې لعنت اوکړو او حال دادې چه هغه ددې حقدار نۀ وو نو دا په لعنت کوونکی باندې واپس کیږی -

## بَابٌ فِيمَنْ دَعَا عَلَى مَنْ ظَلَمَ

### باب: ٤٦ - څوک چه خپل ظالم ته بد دعا اوکړی

[۴۹۰۹](٢) حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَبِيبٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "سُرِقَ لَهَا شَيْءٌ فَجَعَلَتْ تَدْعُو عَلَيْهِ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُسَبِّخِي عَنْهُ".

ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها بیان کوی چه د هغې څه څیز غلا کړې شو نو هغې (غلا کوونکی) ته بد دُعا اوکړه نو رسول الله ﷺ هغې ته اوفرمائیل :" د هغه سزا په هغه باندې مۀ سپکه وه -"

په دې باب کښې چه کوم حدیث ذکر دې هغه په کتاب الصلاة کښې تیر شوې دې په باب الدعاء کښې، د ترمذی په روایت کښې دی : ﴿ من دعا علی من ظلمه فقد انتصر ﴾ یعنی ظالم ته بددعاء کول دا د هغه نه انتقام اخستل دی، لهذا هغه مظلوم دې د بددعاء نه پس دا نه ګنړی چه ما صبر اوکړو، الله پاک دې ماته په دې صبر باندې جزاء خیر راکړی، ځکه چه هغه خو بددعاء کولو سره انتقام اخستلې دې.

..........................

١): سنن الترمذي/البر والصلة ٤٨ (١٩٧٨)، (تحفة الأشراف: ٥٤٢٦، ١٨٦٤١) (صحيح)
٢): تفرد به أبوداود، مسند احمد (٦/٤٥، ١٣٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٣٧٧) (ضعيف)

## بَابٌ فِيمَنْ يَهْجُرُ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ

### باب: ٤٧- مسلمان رور سره تعلق پريخودل

[٤٩١٠]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَبَاغَضُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا وَلَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ".

د حضرت انس بن مالک ﷛ نه مروی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " غصه مهٔ کوئ. یوبل سره حسد مهٔ کوئ، یوبل ته مهٔ شا کوئ، [ چه د یو بل سره تعلق کټ کړئ ] بلکې د الله تعالیٰ بندګان رونړه رونړه جوړ شئ. د هیڅ یو مسلمان دپاره حلال نهٔ دی چه د خپل رور سره د درې ورځو نه زیات قطع تعلق اوکړی. "

**قوله:** ﴿ لا تَبَاغَضُوا وَلاَ تَحَاسَدُوا وَلاَ تَدَابَرُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه خپل مینځ کښې بغض مه ساتئ یعنی د بغض اسباب مه اختیاروئ چه په بغض کښې اخته نه شئ، او نه د یو بل سره حد کوئ او نه خپل مینځ کښې قطع تعلق کوئ. ﴿ تدابروا ﴾ دا د دبر نه اخستلې شوې دې په قطع تعلق کښې هم دا وی چه انسان د یو بل نه مخ واړوی او شا کړی، او په خپل مینځ کښې د رونړو رونړو په شان اوسیږئ د الله پاک بندګان جوړیدو سره، نه د نفس او شیطان بندګان، ﴿ وَلاَ يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلاَثِ لَيَالٍ ﴾ او د یو مسلمان دپاره حلال نه دی چه د بل مسلمان سره ترک سلام و کلام اوکړی د درې ورځو نه زیاتی، په مظاهر حق ۴/۱۵۵ کښې دی :

**فائده** : زیات د درې ورځو نه د دې قید نه فهمیږی چه د درې ورځو پورې ترک ملاقات حرام نه دې ځکه چه د انسان په طبیعت کښې غضب او بد اخلاقی او غیرت دومره ورځو پورې وی په دې وجه دومره اندازه معافی اوکړې شوه، او غالب دا دې چه په درې ورځو کښې خفګان لاړ شی یا کم شی، او د دې نه مخکښې په باب ما ینهی عنه من التهاجر والتقاطع واتباع العورات کښې د دې لاندې لیکلې شوې دی د تهاجر معنی ده پرې کول او هم دا معنی د تقاطع ده، پس تقاطع بیان او تفسیر دې د تهاجر دپاره او مراد د دې نه ترک ملاقات او سلام دې د خپل مسلمان رور سره او پرې کول دی د ناستې ولاړې هغه سره او د اخوت اسلام د درې ورځو نه زیات، او عورات جمع د عورت ده او عورت هغه دې چه شرم لری او مکروه ګڼړی د هغې ښکاره کیدل، او خوښوی چه پټ وی، یعنی عیب او نقصان کوم چه په سړی کښې دې، او اتباع عورت یعنی عیب لټول. اهـ

(): صحيح البخاري/الأدب ٥٧ (٦٠٦٥)، ٦٢ (٦٠٧٦)، صحيح مسلم/البر والصلة ٧ (٢٥٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٥٣٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البر والصلة ٢٤ (١٩٣٥)، مسند احمد (٣/١٩٩)، موطا امام مالك/ حسن الخلق ٤ (١٤) (صحيح)

[٤٩١١]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ يَلْتَقِيَانِ فَيُعْرِضُ هَذَا وَيُعْرِضُ هَذَا وَخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ".

د حضرت ابو ایوب انصاری رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل :" د هیڅ یو مسلمان دپاره جائز نهٔ دی چه دَ خپل مسلمان رور سره دَ دریو ورځو نه زیات تعلق کټ کړی ـ چه کله دواړه ملاؤ شی نو دې هم مخ واړه وی او هغه هم ـ او په دوی کښې دَ ټولو نه بهتر هغه څوک دې چه هغه په السلام علیکم وئیلو باندې شروع اوکړی ـ"

**قوله**: ﴿ قوله يَلْتَقِيَانِ فَيُعْرِضُ هَذَا وَيُعْرِضُ هَذَا وَخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ﴾ د ابوایوب انصاری رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د یو سړی دپاره حلال نه دی چه هغه ملاقات ترک کړی د خپل مسلمان سره د درې ورځو نه زیات چه دواړه خپل مینځ کښې ملاؤ شی او مخونه واړوی د یو بل نه، یعنی یو بل ته نه ګوری (مظاهر حق) او وړاندې لیکی : او مراد دا دې چه که ترک د ملاقات په د هغه د حقوقو د تقصیر په وجه باندې وی نو منع دې مثلا هغه د هغه غیبت اوکړو او د هغه خیر خواهی ئې اونکړه په دې باندې هغه خفه شو او ترک تعلق ئې اوکړو، نو دا نه دی کیدل پکار، او که تقصیر په امور دین کښې کوی لکه اهل هواء وبدعت نو هغه سره ترک ملاقات هغه همیشه واجب دې تر څو چه ظاهر نه شی توبه او رجوع د هغه د طرف نه، او سیوطی د موطاء په حاشیه باندې د ابن عبدالبر نه نقل کړی دی چه علماء کرامو په دې باندې اجماع کړې ده چه کوم انسان د چا د خبرو او ملاویدو نه د خپل دین د خرابیدو او یا په هغې کښې فساد باندې او یا په ضرر دنیا باندې ویریږی نو هغه لره ترک تعلق او ځان لرې ساتل د هغه نه جائز دی په ښه طریقه چه عیب ګوئی او غیبت په کښې واقع نه شی او کینه او عداوت وغیره. ﴿وَخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ﴾ د دې متعلق لیکی : او شروع اوکړی یعنی رومبې شی په سلام علیک باندې، او خفګان ختم کړی، په دې کښې اشاره ده چه په دې سلام کولو باندې د ترک تعلق ګناه ختمیږی، او دا مقدار کافی دې د دې نه کم نه دی کیدل پکار چه د مسلمان حق ضائع نه شی.

[٤٩١٢]([2]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ السَّرْخَسِيُّ، أَنَّ أَبَا عَامِرٍ أَخْبَرَهُمْ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ هِلَالٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَهْجُرَ مُؤْمِنًا فَوْقَ ثَلَاثٍ فَإِنْ مَرَّتْ بِهِ ثَلَاثٌ فَلْيَلْقَهُ فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ فَإِنْ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ فَقَدِ اشْتَرَكَا فِي الْأَجْرِ وَإِنْ لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِالْإِثْمِ" زَادَ أَحْمَدُ وَخَرَجَ الْمُسَلِّمُ مِنَ الْهِجْرَةِ.

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل :" د هیڅ یو مسلمان

[1]: صحیح البخاري/الأدب ٦٢ (٦٠٧٧)، الاستئذان ٩ (٦٢٣٧)، صحیح مسلم/البر والصلة ٨ (٢٥٦٠)، سنن الترمذي/البر والصلة ٢١ (١٩٣٢)، (تحفة الأشراف: ٣٤٧٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/حسن الخلق ٤ (١٣)، مسند احمد (٤١٦٥، ٤٢١، ٤٢٢) (صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٨٠٣)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/البر والصلة ٨ (٢٥٦١)، مسند احمد (٣٩٢/٢، ٤٥٦) (ضعیف)

دپاره جائز نهٔ دی چه دَ صاحب ایمان سره دَ دریو ورځو نه زیاته مقاطعه (قطع تعلق) اوکړی که چرې درې ورځې تیرې شوې نو پکار دی چه دَ هغه سره ملاؤ شی او هغه ته سلام اوکړی . که چرې هغه دَ سلام جواب ورکړو نو دواړه په ثواب کښې شریک شو، او که چرې هغه جواب ورنهٔ کړو نو ددې ګناه په دې دویم کس باندې ده ـ" احمد (بن سعید سرخسی) مزید فرمائی : سلام کوونکې دَ مقاطعې دَ ګناه نه اووتلو ـ"

[۴۹۱۳]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَثْمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُنِيبِ يَعْنِي الْمَدَنِيَّ، قَالَ: أَخْبَرَنِي هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَكُونُ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ مُسْلِمًا فَوْقَ ثَلَاثَةٍ فَإِذَا لَقِيَهُ سَلَّمَ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ كُلُّ ذَلِكَ لَا يَرُدُّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِإِثْمِهِ".

ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : " هیڅ مسلمان دپاره روا نهٔ دی چه هغه دَ مسلمان سره دَ دریو ورځو نه زیات قطع تعلق اوکړی ـ (چنانچه پکار دی) چه کله دَ هغه سره ملاؤ شی نو سلام دې ورته اوکړی، درې ځله ـ که چرې یو ځل هم جواب ورنهٔ کړی نو هم هغه ګنهګار شو ـ"

[۴۹۱۴]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل دَ هیڅ مسلمان دپاره حلال نهٔ دی چه دَ خپل رور سره دَ درې ورځو نه زیات تعلق کټ کړی ـ چا چه دَ دریو ورځو نه زیاته مقاطعه اوکړه او مړ شو نو هغه به اور ته داخلیږی ـ"

[۴۹۱۵]([3]) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ حَيْوَةَ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ الْوَلِيدِ بْنِ أَبِي الْوَلِيدِ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ أَبِي أَنَسٍ، عَنْ أَبِي خِرَاشٍ السُّلَمِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ هَجَرَ أَخَاهُ سَنَةً فَهُوَ كَسَفْكِ دَمِهِ".

حضرت ابو خراش اسلمی رضی الله عنه فرمائی چه ما دَ رسول الله ﷺ نه واوریدل چه فرمائیل ئې : ځوک چه دَ یو کاله پورې دَ خپل رور سره رابطه کټ کړی نو هغه داسې دې لکه چه ددهٔ وینه ئې توې کړې وی ـ"

﴿مَنْ هَجَرَ أَخَاهُ سَنَةً فَهُوَ كَسَفْكِ دَمِهِ﴾ یعنی کوم سړې چه د خپل رور سره ترک تعلق اوکړی د یو کال پورې نو هغه د هغه د وینې بهیولو په شان ده، په مظاهر حق کښې دی چه ګناه د ترک ملاقات قتل کولو ته نزدې نزدې ده.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٩٧٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ٦٢ (٦٠٧٧)، مسند احمد (٤/٣٢٧) (حسن)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٣٣٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٩٢، ٤٠١) (صحيح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٢٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٢٢٠) (صحيح)

[٤٩١٦]([1])حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تُفْتَحُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ كُلَّ يَوْمِ اثْنَيْنِ وَخَمِيسٍ فَيُغْفَرُ فِي ذَلِكَ الْيَوْمَيْنِ لِكُلِّ عَبْدٍ لَا يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا إِلَّا مَنْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ، فَيُقَالُ: أَنْظِرُوا هَذَيْنِ حَتَّى يَصْطَلِحَا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَجَرَ بَعْضَ نِسَائِهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا، وَابْنُ عُمَرَ هَجَرَ ابْنًا لَهُ إِلَى أَنْ مَاتَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِذَا كَانَتِ الْهِجْرَةُ لِلَّهِ فَلَيْسَ مِنْ هَذَا بِشَيْءٍ، وَإِنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ غَطَّى وَجْهَهُ عَنْ رَجُلٍ.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : د هر پیر او د جمعرات په ورځ باندې د جنت دروازې پرانستلې شي، نو هر هغه بنده چه هغه الله سره څوک شریک نۀ وی جوړ کړې هغه لره بخښلې شی، سوا ددې نه چه ددهٔ او ددهٔ د رور په مابین کښې بغض او ناراضی وی - نو وئیلې شی، دوی ته مهلت ورکړئ، تردې پورې چه صلح اوکړی -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه نبی کریم ﷺ د خپلو بیبیانو سره څلویښت ورځې تعلق کټ کړې وو او حضرت ابن عمر رضی الله عنه د خپل یو ځوی سره تر مرګه پورې مقاطعه کړې وه - امام ابوداود رحمه الله فرمائی غرض دادې که چرې دا مقاطعه د الله دپاره وی نو په دې باندې وعیدونه نشته دې - حضرت عمر بن عبد العزیز رحمه الله د یو سړی نه خپل مخ پټ کړې وو.

**قوله:** ﴿ تُفْتَحُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ كُلَّ يَوْمِ اثْنَيْنِ وَخَمِيسٍ فَيُغْفَرُ فِي ذَلِكَ الْيَوْمَيْنِ لِكُلِّ عَبْدٍ لاَ يُشْرِكُ بِاللَّهِ شَيْئًا إِلاَّ مَنْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ فَيُقَالُ أَنْظِرُوا هَذَيْنِ حَتَّى يَصْطَلِحَا ﴾

## شرح الحديث :

د ابوهریره رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د جنت دروازه پرانستلې شی د هر ګل او زیارت په ورځ باندې، پس مغفرت کولې شی په دې دواړو ورځو کښې د هر هغه بنده څوک چه شرک نه کوی مګر هغه سړې چه د هغه او د هغه د رور ترمینځه دشمنی او کینه وی پس ملائکو ته وئیلې شی چه دې دواړو ته مهلت ورکړئ تر دې چه خپل مینځ کښې صلح اوکړی په مظاهر حق کښې د دې حدیث په ترجمه کښې داسې دی : پس نه پاتې کیږی بغیر د بخښلو هیڅوک مګر هغه سړې چه ده د هغه او دیو مسلمان ترمینځه دشمنی او کینه الخ بیا د دې نه پس دی :

**فائده** : د جنت دروازې پرانستلې شی یعنی د هغې طبقات، یا بالاخانې او درجات د هغې په دې دواړو ورځو (ګل او زیارت) کښې د وجې د رحمت د کثرت د وجې نه کوم چه په دې دواړو ورځو کښې نازلیږی، او سبب دې د مغفرت، کذا قال علی، او حضرت شیخ لیکلې دی چه پرانستلې کیدل د دروازو کنایه ده د کثرت مغفرت نه او د مخلوق د ګناهونو د معاف کولو نه او د ثواب ورکولو او د درجاتو د اوچتیدلو نه او صواب دا دې چه محمول دې په ظاهر باندې ځکه چه حمل کول د نصوصو په ظاهر باندې واجب دی تر څو چه څه دلیل د واپس کولو نه وی راغلې او پرانستل د دروازو به علامت د عفو وی، او وړاندې لیکی : او تر دې چه صلح اوکړی، ظاهره دا ده چه مغفرت د هر یو موقوف دې د هغه په صفایئ باندې او

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٧٩٨)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/البر والصلة ١١ (٢٥٦٥)، سنن الترمذي/البر والصلة ٧٦ (٢٠٢٤)، مسند احمد (٤٦٥/٢) (صحيح)

په زوال د عداوت باندې برابره ده چه دویم صفا وی یا نه وی، والله اعلم ...او حضرت په بذل کښې د حضرت ګنګوهی د تقریر نه د دې حدیث په شرح کښې لیکلي دی چه مقصود په دې حدیث سره والله تعالی اعلم دا دې چه په دواړو کښې د خلقو د حسنات او سیئات تقابل وی نو د تقابل نه پس چه کوم سړې د مغفرت او عفو مستحق وی د هغه مغفرت کولې شی یعنی په دې شرط چه مانع موجود نه وی کوم چه په حدیث کښې ذکر دی یعنی هجران مسلم، او که دا مانع وی نو بیا به د هغه مغفرت د ترک هجران او خپل مینځ کښې د تعلقاتو صحیح کولو پورې موخر کړې شی، وذلک لانها لو قصد بها هذا المعنی (عموم المغفرة فی الیومین لکل مومن لزم اهمال الروایات الواردة فی عذاب القبر ووزن الاعمال وغیره ذلک الخ.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ إِذَا كَانَتِ الْهِجْرَةُ لِلَّهِ فَلَيْسَ مِنْ هَذَا بِشَيْءٍ وَإِنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ غَطَّى وَجْهَهُ عَنْ رَجُلٍ ﴾ امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی چه که هجران د مسلمان د الله پاک دپاره یعنی د امر دین دپاره وی نو هغه په دې وعید کښې داخل نه دې، حضرت عمر بن عبدالعزیز خلیفه عادل یو ځل د یو سړی په لیدو باندې په خپل مخ باندې پرده اچولې وه.

## بَابٌ فِي الظَّنِّ

### باب ۴۸- د ظن او ګمان بیان

[۴۹۱۷][1] حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل خپل ځان لره د ګمان او ظن نه بچ ساتئ، بې شکه ګمان د ټولو نه زیات دروغ دی، او تحسس او جاسوسی مه کوئ.

**قوله:** ﴿ إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ ﴾ د سیدنا ابوهریره رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ځان بچ کړئ د ګمان نه، یعنی د ظن او ګمان د اتباع کولو نه. یا بچ کړئ ځان په بل باندې د بد ګمان نه ځکه چه بدګمانی ډیر غټ دروغ دی، د حدیث نه مراد حدیث النفس دې ځکه چه بدګمانی اکثر او زیات تر د واقعې خلاف وی لهذا د دروغ خبرې په مقابله کښې زیات سخت شو (بذل) د اکذب کیدو د وجې نه چا واضح نه کړل پس ممکن ده چه داسې اوئیلې شی چه صدق او کذب عموما صفت وی د کلام او د کلام تعلق دې د لسان سره په خلاف د ظن چه د دې تعلق د قلب سره دې او د انسان د باطن سره پس کوم ظن چه خلاف واقع وی هغه به نور هم زیات قبیح وی په نسبت د هغه کلام کوم چه خلاف واقع وی، والله تعالی اعلم او په حاشیه د ترمذی کښې لیکلي دی: ای اثمه اعظم من الحدیث الکاذب.

**قوله:** ﴿ وَلاَ تَحَسَّسُوا وَلاَ تَجَسَّسُوا ﴾ رومبی لفظ په حاء مهمله سره دې او دویم په جیم سره،

---

[1]: ❋ تخريج: صحيح البخاري/النكاح ٤٥(٥١٤٣)، الأدب ٥٧ (٦٠٦٦)، الفرائض ٢ (٦٧٧٤)، صحيح مسلم/البر والصلة ٩ (٢٥٦٣)، سنن الترمذي/البر والصلة ٥٦ (١٩٨٨)، (تحفة الأشراف: ١٣٨٠٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/حسن الخلق ٤ (١٥)، مسند احمد (٢/٢٤٥، ٣١٢، ٣٤٢، ٤٦٥، ٤٧٠، ٤٨٢) (صحيح)

یعنی د خلقو عیبونه مه لټوئ، دواړه الفاظ هم معنی دی، او په عون المعبود کښې د علامه مناوی نه نقل کړې شوې دی : لا تحسسوا ای لا تطلبوا الشئ بالحاسة کاستراق السمع وابصار الشئ خفية ...یعنی د حاسه سمع یا حاسه بصر نه یو څیز تپوسل، او لا تجسسوا ای لا تتعرفوا خبر الناس بلطف کما یفعل الجاسوس، یعنی د خلقو حال په لطیفې حیلې سره (بلطائف الحیل) معلومولو کوشش مه کوئ، څنګه چه جاسوس کوی، ګویا اول د لفظ حاسه نه دې او دا دویم د جاسوسئ نه دې.

## بَابٌ فِي النَّصِيحَةِ وَالْحِيَاطَةِ

**باب: ۴۹ - دَ (مسلمان رورد) خیر خواهئ او دَ حفاظت بیان**

[۴۹۱۸] (1) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمُؤَذِّنُ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُؤْمِنُ مِرْآةُ الْمُؤْمِنِ وَالْمُؤْمِنُ أَخُو الْمُؤْمِنِ يَكُفُّ عَلَيْهِ ضَيْعَتَهُ وَيَحُوطُهُ مِنْ وَرَائِهِ".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه مروی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل :" مومن دَ مؤمن ائینه ده، او مؤمن دَ مؤمن رور دې، ددهٔ دَ مال حفاظت کوی، او دَ هغه په غیر موجودګئ کښې دَ هغه دَ عزت حفاظت کوی."

**قوله:** ﴿ الْمُؤْمِنُ مِرْآةُ الْمُؤْمِنِ وَالْمُؤْمِنُ أَخُو الْمُؤْمِنِ يَكُفُّ عَلَيْهِ ضَيْعَتَهُ وَيَحُوطُهُ مِنْ وَرَائِهِ ﴾
مومن د مومن دپاره آئینه ده، د دې څو مطالب لیکلې شوې دی:
۱ : خپل عیبونه سړی له پکار دی چه په بل کښې اوګوری یعنی د بل په ذریعه د خپل عیب معلومات اوکړی، څنګه چه د خپل مخ داغ وغیره د آئینې په ذریعه معلوموی دغه شان که د یو مومن عادت په تاسو بد لګی نو اوګوره چه هغه په ما کښې خو نشته، که وی نو د هغې د زائل کولو کوشش اوکړه، دغه شان به د ډیرو بدو عادتونو اصلاح اوشی، مشهوره ده چه د لقمان حکیم رحمه الله نه چا تپوس اوکړو: حکمت از که آموختی؟ ګفت از بے ادبان، یعنی تاسو دا حکمت د چا نه زده کړو نو جواب ئې ورکړو چه د بې ادبو نه، هغه داسې چه کوم خصلت چه ماته د هغوی بد معلوم شو نو د هغې نه ما پرهیز اوکړو. ۲: په بل کښې که څه عیب بیا مومې نو په هغې باندې خاموشي اختیار کړه، ښکاره رټلو سره ئې رسوا کوه مه څنګه چه آئینه د انسان د مخ داغونه په خاموشئ سره ښائی. ۳: د یو مومن زړه د بل دپاره د آئینې په شان صفا کیدل پکار دی، د هغه د طرف نه په زړه کښې بغض او کینه کیدل نه دی پکار.
او د حدیث د دویمې جملې مطلب دا دې ضیعه یعنی ما یحتمل الضیاع ...لکه مال او وړوکې اولاد یعنی یو مومن لره پکار دی چه د بل مومن مال او وړوکې اولاد په هغه باندې پریږدی یعنی د هغوی حفاظت کوی.

**قوله:** ﴿ وَيَحُوطُهُ مِنْ وَرَائِهِ ﴾ د هغه نه شاته یعنی چه کله هغه نه وی نو د هغه د څیزونو حفاظت کوی.

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۰۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البر والصلة ۱۸ (۱۹۲۹) (حسن)

## بَابٌ فِي إِصْلَاحِ ذَاتِ الْبَيْنِ

### باب: ۵۰- په خپل مابين کښې روابط بهتر جوړول

[۴۹۱۹](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّلَاةِ وَالصَّدَقَةِ؟، قَالُوا: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: إِصْلَاحُ ذَاتِ الْبَيْنِ وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ الْحَالِقَةُ".

د حضرت ابو درداء رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ايا زۀ تاسو ته د روژې، مونځ، او د صدقې نه د افضل درجاتو اعمال اونۀ ښايم؟ صحابۀ کرامو رضی الله عنهم اوفرمائيل ولې نۀ اې د الله رسوله! حضور ﷺ اوفرمائيل په خپل مابين کښې تعلق او روابط ښۀ جوړول - (او ددې په خلاف) په خپل مابين کښې فساد اچول (دين لره) د خرئيلو خصلت دې - [ يعنی په دې سره دين ختميږی ]

**قوله:** ﴿ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّلَاةِ وَالصَّدَقَةِ ». قَالُوا بَلَى. قَالَ « إِصْلَاحُ ذَاتِ الْبَيْنِ وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ الْحَالِقَةُ » ﴾

ذات البين يعنی خپل مينځ کښې تعلقات، د هغې د اصلاح ثواب د نفلی عباداتو روژو او مونځونو نه زيات دې، او خپل مينځ کښې د حالاتو خرابيدل يعنی د مينې او محبت په ځائې بغض او کينه دا بيخ کندی کونکې خصلت دې، يعنی دين لره ختمونکې ځنګه چه چاړۀ ويښته ختموی.

[۴۹۲۰](²) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ ح وَحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ ح وَحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ شَبُّوَيْهِ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أُمِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَمْ يَكْذِبْ مَنْ نَمَى بَيْنَ اثْنَيْنِ لِيُصْلِحَ"، وَقَالَ أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ وَمُسَدَّدٌ: لَيْسَ بِالْكَاذِبِ مَنْ أَصْلَحَ بَيْنَ النَّاسِ، فَقَالَ: خَيْرًا أَوْ نَمَى خَيْرًا.

حضرت حميد بن عبد الرحمن د خپلې مور (ام کلثوم بنت عقبه بن ابی معيط) نه روايت کوی، چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: چاچه د دوو کسانو په مابين کښې د صلح دپاره خبره جوړه کړې او وئيلې وی، دۀ دروغ نۀ دی وئيلې -" احمد بن محمد او د مسدد په روايت کښې دا الفاظ دی: دروغجن نۀ دې هغه څوک چا چه صلح اوکړه د خلقو په مابين کښې که دۀ ښۀ خبره کړې وی يا ئې رسولې وی -"

﴿ لَمْ يَكْذِبْ مَنْ نَمَى بَيْنَ اثْنَيْنِ لِيُصْلِحَ ﴾ يعنی کوم سړې چه د يو سړی د طرف نه بل ته څه خبره اورسوی د واقعې خلاف د هغوی ترمينځه د صلح کولو او موافقت کولو دپاره، مثلاً د دوه کسانو د مخکښې نه خفګان دې په څۀ وجه باندې نو يو کس په دې دواړو کښې يو ته لاړ شی او د بل د طرف نه ورته دا نقل کړی چه هغه ستاسو تعريف کولو چه د هغه د زړه نه د هغه نفرت اوځی او خپل مينځ کښې متفق شی نو دې دروغو ته به دروغ نه وئيلې

¹): سنن الترمذي/صفة القيامة ۵۶ (۲۵۰۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۴۴/۶) (صحيح)

²): صحيح البخاري/الصلح ۲ (۲۶۹۲)، صحيح مسلم/البر والصلة ۳۷ (۲۶۰۵)، سنن الترمذي/البر والصلة ۲۶ (۱۹۳۸)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۵۳، ۲۰۱۹۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۰۳/۶) (صحيح)

کیږي یعني دا به د دروغو په حکم کښې نه وی، لکه چه مشهوره ده چه دروغ مصلحت آمیز به ازراستي فتنه انگیز.

[۴۹۲۱](١) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْجِيزِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَسْوَدِ، عَنْ نَافِعٍ يَعْنِي ابْنَ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ الْهَادِي، أَنَّ عَبْدَ الْوَهَّابِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَهُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أُمِّهِ أُمِّ كُلْثُومٍ بِنْتِ عُقْبَةَ، قَالَتْ: "مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرَخِّصُ فِي شَيْءٍ مِنَ الْكَذِبِ إِلَّا فِي ثَلَاثٍ، كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: لَا أَعُدُّهُ كَاذِبًا: الرَّجُلُ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ، يَقُولُ الْقَوْلَ وَلَا يُرِيدُ بِهِ إِلَّا الْإِصْلَاحَ، وَالرَّجُلُ يَقُولُ فِي الْحَرْبِ، وَالرَّجُلُ يُحَدِّثُ امْرَأَتَهُ وَالْمَرْأَةُ تُحَدِّثُ زَوْجَهَا".

د ام کلثوم بنت عقبه رضی الله عنها نه روایت دي چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی چه فرمائیل ئي: زۀ نۀ شمیرم دروغجن هغه کس چه هغه صلح کوی په مابین دَ خلقو کښې، چه دې یوه خبره کوی او اراده نۀ کوی په دې سره مگر دَ اصلاح، او هغه سړې چه هغه په حرب (جنگ) کښې وی، او هغه سړی لره چه هغه خپلې ښځې سره خبرې کوی او هغه ښځې لره چه دَ خپل خاوند سره خبرې کوی.

**قوله:** ﴿ مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يُرَخِّصُ فِي شَيْءٍ مِنَ الْكَذِبِ إِلاَّ فِي ثَلاَثٍ﴾

سیده ام کلثوم رضی الله عنها فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه د کذب په باره کښې رخصت او اجازت نه دې اوریدلې مگر په درې موقعو باندې یو دا چه د هغه سړی مقصد اصلاح ذات البین وی، دویم هغه دروغ کوم چه د جنگ په وخت دشمن ته اوئیلې شی (هغوی لره د شکست ورکولو دپاره) دریم د ښځې خاوند ته دروغ او د خاوند ښځې ته دروغ خپل مینځ کښې د زړه د خوشحالولو دپاره څه خبره کول.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ الْغِنَاءِ

**باب: د سندرو (لوبو) وئیلو د مما نعت بیان**

[۴۹۲۲](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ، عَنْ خَالِدِ بْنِ ذَكْوَانَ، عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ ابْنِ عَفْرَاءَ، قَالَتْ: "جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ عَلَيَّ صَبِيحَةَ بُنِيَ بِي فَجَلَسَ عَلَى فِرَاشِي كَمَجْلِسِكَ مِنِّي فَجَعَلَتْ جُوَيْرِيَاتٌ يَضْرِبْنَ بِدُفٍّ لَهُنَّ وَيَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِي يَوْمَ بَدْرٍ إِلَى أَنْ قَالَتْ إِحْدَاهُنَّ: وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي الْغَدِ، فَقَالَ: دَعِي هَذِهِ وَقُولِي الَّذِي كُنْتِ تَقُولِينَ".

ترجمه: ربیع بنت معوذ بن عفراء رضی الله عنها وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته په هغه صبا باندې راغې په کومه شپه چه زما رخصتی شوې وه هغوی ﷺ زما په بستره باندې داسې کیناستل لکه څنګه چه ته (خالد بن زکوان) ناست ئې، بیا (د انصارو) څه ماشومانو خپل تنبل وهلو، اوپه غزوه بدر کښې د خپل شهید شوی پلارانو نیکونو صفات ئې ذکر کول تردې چه په هغوی کښې یوې اووئیل او په مونږ کښې داسې نبی دې چه هغه د راروان صبا خبرې هم ښائی، نو حضور ﷺ اوفرمائیل: دا پریږدئ (داسې مه وایئ) او هغه وایئ

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٨٣٥٣) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/المغازي ١٢ (٤٠٠١)، سنن الترمذي/النكاح ٦ (١٠٩٠)، سنن ابن ماجه/النكاح ٢١ (١٨٩٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٣٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٣٥٩، ٣٦٠) (صحيح)

کوم چه تا سو اوس مخکښې وئيل

**قوله:** ﴿ عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ قَالَتْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَدَخَلَ عَلَىَّ صَبِيحَةَ بُنِىَ بِى فَجَلَسَ عَلَى فِرَاشِى كَمَجْلِسِكَ مِنِّى فَجَعَلَتْ جُوَيْرِيَاتٌ يَضْرِبْنَ بِدُفٍّ لَهُنَّ وَيَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِى يَوْمَ بَدْرٍ إِلَى أَنْ قَالَتْ إِحْدَاهُنَّ وَفِينَا نَبِىٌّ يَعْلَمُ مَا فِى غَدٍ فَقَالَ « دَعِى هَذِهِ وَقُولِى الَّذِى كُنْتِ تَقُولِينَ » ﴾

خالد بن ذكوان د ربيع بنت معوذ نه روايت كوى (د ربيع د وادهٔ د موقعې يو واقعه كومه چه هغوى خالد ته واوروله) په داسې حال كښې چه خالد هغوى سره ناست وو هغه فرمائى (خالد ته خطاب كولو سره) په كومه شپه چه زما رخصتى اوشوه نو د هغې په سحر رسول اللهﷺ زمونږ كور ته راغلو او راتلو سره زما په بستره باندې داسې تشريف فرما شو څنګه چه ته ماسره ناست ئې (چونكه د وادهٔ ورځ وه په دې وجه) ورو ماشومانو تنبل وهلو او كوم زما پلاران چه په جنګ بدر كښې شهيدان شوي وو د هغوى ندبه يعنى مرثيه ئې وئيل شروع كړل [1] په اشعارو كښې ئې د هغوى ذكر كولو، په دې ماشومانو جينكو كښې يوې دا شعر هم اووئيلو، ﴿ وَفِينَا نَبِىٌّ يَعْلَمُ مَا فِى غَدٍ ﴾ چه په مونږ كښې يو نبى موجود دې څوك چه د صبا په خبرو پوهيږى، نو رسول اللهﷺ د دې مصرع په اوريدو باندې اوفرمائيل: دا پريږدئ دا مه وايئ، او هغه مخكښې اشعار چه دې كوم وئيل هغه وايه څكه چه په دې كښې د علم غيب نسبت رسول اللهﷺ ته كړې شوې وو سره د دې چه لا يعلم الغيب الا الله، په دې وجه رسول اللهﷺ د دې نه منع اوفرمائيله.

**(يو اشكال او دهغې جوابات)**

دلته دا سوال وارديږى چه د رسول اللهﷺ او د ربيع ترمينځه تعلق د محرميت خو شته دې نه نو بيا رسول اللهﷺ هغې سره څنګه كيناستلو،

**(جوابات):** د دې څو جوابونه وركړې شوې دى، يو دا چه د رسول اللهﷺ ناسته په حجاب سره وه، د دواړو ترمينځه پرده حائل وه يا دا چه دا د نزول حجاب نه مخكښې واقعه ده، او كه د نزول حجاب نه روستو واقعه اومنلې شى نو دا وئيلې كيدې شى چه په اصل مذهب كښې مخ او لاسونه د حكم حجاب نه مستثنى دى، د فتنې په وخت د هغې هم د پټولو حكم كولې شى، او رسول اللهﷺ ښكاره خبره ده چه د دې نه محفوظ دې، كذا قال الكرمانى،او په كوكب كښې دى چه د رسول اللهﷺ دپاره د حجاب حكم بالكل نه وو هغوى د يوې زنانه دپاره هم نامحرم نه وو فى الواقع، خو رسول اللهﷺ به په دې امورو كښې د پردو په شان معامله فرمائيله تعليما.

دغه شان سوال او جواب په كتاب الجهاد باب فى ركوب البحر فى الغزو كښې ...كان يدخل على ام حرام بنت ملحان د حديث د لاندې تير شوې دى په جلد رابع صفحه ۳۰۲ كښې.

---

[1] من قتل من ابائي ...كښې د اباء مصداق د هغې والد معوذ او معاذ او عوف دواړه د ربيع ترونه مراد دى تغليبا ورته اباء اوئيلې شو)

مولانا محمد تقي عثماني ليکي : د دې حديث نه استدلال کولو سره علماء کرامو ليکلې دی چه د نکاح اعلان په تنبل وهلو او غناء سره کيدلې شی په دې شرط چه په خپلو حدودو کښې دننه وی، او په هغې کښې د لوبو وئيلو نور الات او د سازو سامان استعمال نه وی اهـ او په عرف الشذی کښې دی : الدف ما يکون مجلدا من جانب واحد، وصرح الفقهاء بعدم جواز الدف ذی جلاجل، يعنی دف هغه دې کوم چه د يو طرف نه غړيږی چه هغې ته تنبل وائی او کوم تنبل چه په جلاجل يعنی ګونګرو ګانو سره وی د هغې د حرمت فقهاء کرامو تصريح کړې ده.

[۴۹۲۳](۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِينَةَ لَعِبَتِ الْحَبَشَةُ لِقُدُومِهِ فَرَحًا بِذَلِكَ لَعِبُوا بِحِرَابِهِمْ".

ترجمه: انس رضی الله وائی چه کله رسول الله صلی الله عليه وسلم مدينې ته راغې نو حبش دهغوی ﷺ په راتلو باندې خوشحاله شو، لوبې ئې اوکړې، او په خپلو نيزو (جنګی آلاتو) ئې لوبې اوکړې.

**قوله: ﴿لَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- الْمَدِينَةَ لَعِبَتِ الْحَبَشَةُ لِقُدُومِهِ فَرَحًا بِذَلِكَ﴾**
د انس رضی الله عنه نه روايت دې هغوی فرمائی چه کله رسول الله ﷺ تشريف راوړلو مدينې ته (د يو سفر نه په واپسئ) نو د رسول الله ﷺ په خير او عافيت سره د واپس کيدو په خوشحالئ باندې بعض حبشيانو په نيزو وغيره سره لوبې اوکړې.حراب جمع د حربة ده يعنی وړه نيزه.

## بَابُ كَرَاهِيَةِ الْغِنَاءِ وَالزَّمْرِ

### باب د ګانو او باجو غږولو د کراهت بيان

غناء يعنی سندرې او زمر يعنی د ټنګ ټکور سامان استعمالول، په بذل کښې دی : الزمر هو الغناء بحسن الصوت، او په حاشيه کښې دی : اصل الزمر الغناء بنفخ الصوت فی القصب ففی الصراح، زمر نائے زدن يعنی شپيلئ وهل (۲) وقال العينی : مشتقة من الزمير وهو الصور الذی له صفير، يعنی زمر مشتق دې د زمير نه، او زمير وائی د شپيلی په شان آواز ته، وفی الحديث عند مسلم وغيره : الجرس مزامير الشيطان، اما المعازف ففی الصراح (تهالی) وهو جمع معرف يعنی چغانه، وفی غياث اللغات : چغانه چوبے باشد که آن راشګافته جلاجل دران تعبه کنند، وقال الحافظ فی الفتح ۴۴/۱۰ المعازف آلات اللهو وقيل اصوات الملاهی وقيل الدفوف، ويطلق علی الغناء الخ، وفی الدر المختار ۱۴۸/۵ : المغزف آلة اللهو، وتعقبه ابن عابدين بانه نوع منه والعام العزف کفلس اهـ ويجوز بيع آلات اللهو عند الامام خلاف لهما کما فی کتاب الغصب من الشامی، وفی کتاب البيوع من بحر الرائق ۱۷۱/۶ الصحيح قوله.آهـ

---

[۱]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۷۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۶۱/۳) (صحيح الإسناد)

[۲]) د مولانا روی د مثنوی شريف ابتداء هم په دې لفظ سره ده : بشنواز نے چون حکايت می کند : وزجدائيها شکايت می کند ....د دې شرح دې د حضرت تهانوی په کليد مثنوی کښې اوکتلې شی)

[۴۹۲۴]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عُبَيْدِ اللهِ الْغُدَانِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: "سَمِعَ ابْنُ عُمَرَ مِزْمَارًا، قَالَ: فَوَضَعَ إِصْبَعَيْهِ عَلَى أُذُنَيْهِ وَنَأَى عَنِ الطَّرِيقِ، وَقَالَ لِي: يَا نَافِعُ هَلْ تَسْمَعُ شَيْئًا، قَالَ: فَقُلْتُ: لَا، قَالَ: فَرَفَعَ إِصْبَعَيْهِ مِنْ أُذُنَيْهِ، وَقَالَ: كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَ مِثْلَ هَذَا فَصَنَعَ مِثْلَ هَذَا"، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ اللُّؤْلُؤِيُّ: سَمِعْتُ أَبَا دَاوُد، يَقُولُ: هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ.

حضرت نافع بیان فرمائی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه د موسیقئ اواز واوریدو نو هغه خپلې ګوتې په غوږونو باندې کیخودې او د لارې نه لرې لاړو او بیا ئې زما نه تپوس اوکړو اې نافع ! آیا څه اورې؟ ما اووې نه نو هغه خپلې ګوتې د غوږونو نه اوچتې کړې او وې فرمائیل چه زهٔ د رسول الله ﷺ سره وم نو هغه داسې آواز واوریدو نو حضور ﷺ هم داسې کړې وو - امام ابو داود رحمه الله فرمائی چه دا حدیث منکر (ضعیف) دې -

**قوله**: ﴿عَنْ نَافِعٍ قَالَ سَمِعَ ابْنُ عُمَرَ مِزْمَارًا – قَالَ – فَوَضَعَ أُصْبُعَيْهِ عَلَى أُذُنَيْهِ وَنَأَى .......الخ﴾

د ابن عمر رضی الله عنهما شاګرد او خادم نافع رحمه الله فرمائی چه یوه ورځ ابن عمر رضی الله عنهما د شپیلئ آواز واوریدلو نو خپلې دواړه ګوتې ئې په خپلو غوږونو کښې کیخودلې او د لارې نه یو طرف ته شو او د لارې نه لرې اوتلو، او تپوس ئې اوکړو چه اوس خو نه اوریدلې کیږی، ما اووې نه په دې باندې هغوی د خپلو غوږونو نه لاس رالرې کړو، او وې فرمائیل چه یو ځل زه د رسول الله ﷺ سره اوم نو هغوی هم داسې کړې وو.

**قوله**:﴿ قال ابوداؤد : هَذَا حَدِيثٌ مُنْكَرٌ ﴾

د حاشیه په نسخه کښې چه کوم روایت دې په هغې کښې داسې دی ﴿ فسمع صوت مزمار راع ﴾ یعنی د شپونکې د شپیلئ وهلو آواز وو.

[۴۹۲۵]() حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُطْعِمُ بْنُ الْمِقْدَامِ، قَالَ: حَدَّثَنَا نَافِعٌ، قَالَ: كُنْتُ رِدْفَ ابْنِ عُمَرَ إِذْ مَرَّ بِرَاعٍ يَزْمُرُ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: أُدْخِلَ بَيْنَ مُطْعِمٍ وَنَافِعٍ سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى.

(د مذکوره بالا روایت په سلسله کښې) حضرت نافع رحمه الله فرمائی چه زهٔ د حضرت ابن عمر رضی الله عنه سره په سورلئ باندې د هغه نه شاته سور وم د هغه تیریدل په یو راعی (شپونکی) باندې اوشو چه هغه باجه غږوله - او د مذکوره بالا حدیث په مثل باندې ئې بیان اوکړو -امام ابو داود رحمه الله فرمائی چه د مطعم (بن مقدام) او د نافع په مابین کښې د سلیمان بن موسیٰ واسطه داخله کړې شوې ده -

[۴۹۲۶]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ جَعْفَرٍ الرَّقِّيُّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو الْمَلِيحِ، عَنْ مَيْمُونٍ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ ابْنِ عُمَرَ فَسَمِعَ صَوْتَ زَامِرٍ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد وَهَذَا أَنْكَرُهَا.

حضرت میمون بن مهران، د نافع نه روایت کوی چه مونږه د حضرت ابن عمر رضی الله عنه سره وو چه هغه د یو باجې والا آواز واریدو - او د مذکوره بالا روایت په مثل باندې ئې بیان کړو - امام ابو داود رحمه الله فرمائی چه دا روایت د ټولو نه زیات منکر (ضعیف) دې -

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۶۷۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۸ ۳۸) (صحیح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸٤٤۸) (حسن صحيح الإسناد)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۵۱۰) (صحيح الإسناد)

[٤٩٢٧]([1]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: حَدَّثَنَا سَلَّامُ بْنُ مِسْكِينٍ، عَنْ شَيْخٍ شَهِدَ أَبَا وَائِلٍ فِي وَلِيمَةٍ فَجَعَلُوا يَلْعَبُونَ يَتَلَعَّبُونَ يُغَنُّونَ، فَحَلَّ أَبُو وَائِلٍ حَبْوَتَهُ، وَقَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الْغِنَاءُ يُنْبِتُ النِّفَاقَ فِي الْقَلْبِ".

سلام بن مسکین د یو شیخ نه روایت کوی کوم چه د ابو الوائل رحمه الله سره په یوه ولیمه کښې حاضر وو ـ پس هغه خلقو په خپل مابین کښې لوبې او ګاني وئیلې حضرت ابو وائل رحمه الله د خپلې ملا نه کپړا پرانسته او وې فرمائیل : ما د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه اوریدلي دی هغه فرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی هغه فرمائیل چه موسیقی په زړهٔ کښې نفاق پیدا کوی ـ

## بَابٌ فِي الْحُكْمِ فِي الْمُخَنَّثِينَ

### باب: دَ هیجړاګانو متعلق احکام او مسائل

[٤٩٢٨]([2]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّ أَبَا أُسَامَةَ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ مُفَضَّلِ بْنِ يُونُسَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ أَبِي يَسَارٍ الْقُرَشِيِّ، عَنْ أَبِي هَاشِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أُتِيَ بِمُخَنَّثٍ قَدْ خَضَبَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ بِالْحِنَّاءِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا بَالُ هَذَا؟ فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، يَتَشَبَّهُ بِالنِّسَاءِ، فَأَمَرَ بِهِ فَنُفِيَ إِلَى النَّقِيعِ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَا نَقْتُلُهُ؟ فَقَالَ: إِنِّي نُهِيتُ عَنْ قَتْلِ الْمُصَلِّينَ" قَالَ أَبُو أُسَامَةَ: وَالنَّقِيعُ نَاحِيَةٌ عَنِ الْمَدِينَةِ وَلَيْسَ بِالْبَقِيعِ.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ ته یو هیجړا راوستې شو چه هغه خپل لاسونه او پښې په نکریزو سره رنګ کړې وو نبی کریم ﷺ د هغه متعلق پوښتنه اوکړه چه دهٔ لره څه شوې دی؟ اوښودلې شوه چه اې د الله رسوله ﷺ دې د ښځو سره مشابهت کوی ـ نو حضور ﷺ حکم اوکړو او هغه لره ئې د مقام نقیع په طرف باندې اویستو او د علاقې نه ئې بهر کړو ـ صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه آیا دهٔ لره قتل نهٔ کړو؟ حضور ﷺ اوفرمائیل چه زهٔ منع کړې شوې یم د مونځ کوونکو د قتل نه ـ ابو اسامه وائی چه نقیع (د نون سره) د مدینې جانب ته د یو ځائې نوم دې او دا د بقیع نه علاوه دې ـ

**قوله:** ﴿ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– أُتِيَ بِمُخَنَّثٍ قَدْ خَضَبَ يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ بِالْحِنَّاءِ فَقَالَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– « مَا بَالُ هَذَا ». فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ يَتَشَبَّهُ بِالنِّسَاءِ. فَأَمَرَ بِهِ فَنُفِيَ إِلَى النَّقِيعِ ﴾

رسول الله ﷺ ته یو مخنث راوستلې شو چا چه په خپلو خپو او لاسونو باندې نکریزې لګولې وې، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه په ده باندې څهٔ چل شوې دی؟ اوئیلې شو یا رسول الله ﷺ دې د زنانو مشابهت اختیاروی، رسول الله ﷺ د هغه په حق کښې د ښهر نه د بهر ویستلو حکم اوکړو نقیع علاقې ته، دا نقیع په نون سره په مدینه کښې یو ځائې دې، د بقیع نه علاوه. د مخنث متعلق روایات په کتاب اللباس باب ما جاء فی قوله تعالی غیر اولی الاربة کښې تیر شوې دی او هلته د خنث قسمونه او د هغې حکم او د رسول الله ﷺ په زمانه کښې چه کوم مخنث موندلې شو د هغوی نومونه وغیره ټول تیر شوې دی.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٣١٥) (ضعيف)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٤٦٤) (صحيح)

[۴۹۲۹](۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ هِشَامٍ يَعْنِي ابْنَ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا مُخَنَّثٌ، وَهُوَ يَقُولُ لِعَبْدِ اللَّهِ أَخِيهَا: إِنْ يَفْتَحِ اللَّهُ الطَّائِفَ غَدًا دَلَلْتُكَ عَلَى امْرَأَةٍ تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الْمَرْأَةُ كَانَ لَهَا أَرْبَعُ عُكَنٍ فِي بَطْنِهَا.

د ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي چه نبي ﷺ ددې خواته تشريف راوړو او وې ليدل چه د هغې په خوا کښې يو هيجړا دې او د هغې (ام سلمه) وررور عبد الله ته وائي که چرې سبا ته الله تعالىٰ طائف لره فتح کړې نو زۀ به تاته يوه ښځه ښايم چه هغه په څلورو باندې راځي او په اتو (۸) باندې واپس کيږي - نو نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چه دۀ لره دَخپل کور نه اوباسئ - امام ابوداود رحمه الله فرمائي: د هغه مطلب دا وو چه د ښځې په خيټه باندې (د چاق والې په وجه سره) څلور پټې جوړيږي - (د ښځې په خيټه باندې د مخې نه څلور پټې او کله چه شا کړې نو ترخونو طرف ته دا څلور څلور پټې يعنې څلور يو جانب ته او څلور بل جانب ته ښکارې نو په عربو کښې د ښځې په دې صورت کښې فربه اندام کيدل به احسن ګڼړلې شو.)

**قوله:** ﴿ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا مُخَنَّثٌ وَهُوَ يَقُولُ لِعَبْدِ اللَّهِ أَخِيهَا إِنْ يَفْتَحِ اللَّهُ الطَّائِفَ غَدًا دَلَلْتُكَ عَلَى امْرَأَةٍ تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ. فَقَالَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– « أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ »﴾ دا روايت هم په كتاب اللباس کښې تير شو.

[۴۹۳۰](۲) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَعَنَ الْمُخَنَّثِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَاءِ، وَقَالَ: أَخْرِجُوهُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ" وَأَخْرِجُوا فُلَانًا وَفُلَانًا يَعْنِي الْمُخَنَّثِينَ.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه نبي کريم ﷺ په هيجړا جوړونکي سړي باندې او په مردانه انداز اختيارولو والا ښځې باندې لعنت کړې دې - او فرمائيلي ئې دي چه دوى لره د خپل کور نه بهر کړئ او فلان فلان هيجړا لره د کورونو نه اوباسئ -

## بَابٌ فِي اللَّعِبِ بِالْبَنَاتِ

### باب: ۵۴ - د ګډوسره د لوبو کولو بيان

يعنې د ګډيانو جوړول او د هغې سره لوبې کول.

[۴۹۳۱](۳) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أَلْعَبُ بِالْبَنَاتِ فَرُبَّمَا دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدِي الْجَوَارِي، فَإِذَا دَخَلَ خَرَجْنَ وَإِذَا خَرَجَ دَخَلْنَ".

---

[1]: صحيح البخاري/المغازي ٥٦ (٤٣٢٤)، اللباس ٦٢ (٥٨٧)، النكاح ١١٣ (٥٢٣٥)، صحيح مسلم/السلام ١٣ (٢١٨٠)، سنن ابن ماجه/النكاح ٢٢ (١٩٠٢)، الحدود ٣٨ (٢٦١٤)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٩٠، ٣١٨) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/ اللباس ٦١ (٥٨٨٦)، الحدود ٣٣ (٦٨٣٤)، سنن الترمذي/ الأدب ٣٤ (٢٧٨٥)، (تحفة الأشراف: ٦٢٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٦٥) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٧٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ٨١ (٦١٣٠)، صحيح مسلم/فضائل الصحابة ١٣ (٢٤٤٠)، سنن ابن ماجه/النكاح ٥٠ (١٩٨٢) (صحيح)

ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها بیان فرمائی چه ما د ګډیانو سره لوبې کوولې، نو ډیر وختونه به رسول الله ﷺ تشریف راوړو او زما سره به (د محلې) ماشومانې جینکۍ وې. کله چه به حضور ﷺ تشریف راوړو نو هغوی به لاړې او کله چه به حضور ﷺ لاړو نو هغوی به راتللې.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَلْعَبُ بِالْبَنَاتِ فَرُبَّمَا دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَعِنْدِى الْجَوَارِى فَإِذَا دَخَلَ خَرَجْنَ وَإِذَا خَرَجَ دَخَلْنَ ﴾

سیده عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما به ګډیانې جوړولې او د جینکو سره یو ځائې به مې لوبې کولې بعض وخت به رسول الله ﷺ کور ته داخل شو هم په دې حال کښې چه ما سره به نور جینکو لوبې کولې، د هغوی په راتلو باندې به هغوی بهر ته لاړې او کله چه به رسول الله ﷺ بهر لاړو نو هغوی به ما ته واپس راغلې.

د بنات نه مراد واړهٔ واړهٔ مجسم تصویران د جینکو په شکل کښې او مصنوعی کپړې وغیره چه د هغوی دپاره هم د هغوی د بدن مطابق ګنډلې شی هغوی ته د اغوستولو دپاره، د کور زنانه په خپلو ماشومانو جینکو باندې دا ځیزونه جوړوی د مشق دپاره، چه هغوی ګنډل زده کړی او هم د دې مصلحت تدریب د وجې نه د صور منهیه نه د دې تخصیص کړې شوې دې، فقهاء کرامو د دې بیع او شراء هم جائز کړې ده لکونها غیر بالغة حینئذ کذا قال فی البذل عن فتح الودود، او په حاشیه د بذل کښې دی چه علامه عینی ٥/٥٨٩د دې په نسخ او عدم نسخ کښې په تفصیل سره اختلاف بیان کړې دې، والی النسخ مال جماعة من السلف كما فی رسالة تصویر ۱۰۳، هم دغه شان په حاشیه د بذل کښې په دغه وخت کښې د عائشې رضي الله عنها عمر څه وو، بالغه یا نابالغه، دې باره کښې ئې د علماء کرامو رائې لیکلې ده چه څوک تفصیل کتل غواړی د حاشیه طرف ته دې رجوع اوکړی په هغې کښې د کتابونو حوالې ذکر دی.

او د دې نه د روستو روایت مضمون دا دې:

[٤٩٣٢](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عُمَارَةُ بْنُ غَزِيَّةَ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةِ تَبُوكَ أَوْ خَيْبَرَ وَفِي سَهْوَتِهَا سِتْرٌ فَهَبَّتْ رِيحٌ فَكَشَفَتْ نَاحِيَةَ السِّتْرِ عَنْ بَنَاتٍ لِعَائِشَةَ لُعَبٍ، فَقَالَ: مَا هَذَا يَا عَائِشَةُ؟ قَالَتْ: بَنَاتِي وَرَأَى بَيْنَهُنَّ فَرَسًا لَهُ جَنَاحَانِ مِنْ رِقَاعٍ، فَقَالَ: مَا هَذَا الَّذِي أَرَى وَسْطَهُنَّ؟ قَالَتْ: فَرَسٌ، قَالَ: وَمَا هَذَا الَّذِي عَلَيْهِ؟ قَالَتْ: جَنَاحَانِ، قَالَ: فَرَسٌ لَهُ جَنَاحَانِ؟ قَالَتْ: أَمَا سَمِعْتَ أَنَّ لِسُلَيْمَانَ خَيْلًا لَهَا أَجْنِحَةٌ؟ قَالَتْ: فَضَحِكَ حَتَّى رَأَيْتُ نَوَاجِذَهُ".

د ام المؤمنین حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د غزوهٔ تبوک یا د خیبر نه تشریف راوړو نو زما د طاقچې مخې ته پرده وه - هوا راغله نو هغې د پردې یو جانب اوچت کړو نو په دې سره زما ګډیانې ئې په نظر باندې راغلې - حضور ﷺ تپوس اوکړو "عائشه دا څه دی؟ ما اووې چه دا زما ګوډیانې دی - حضور ﷺ په دې کښې د کپړې یو آس هم اولیدو

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٧٤٢) (صحيح)

چه د هغې دوه وزرونه وو - حضور ﷺ پوښتنه اوکړه چه دا څه وینم؟ ما اووې دا اس دې - هغه تپوس اوکړو او ددې د پاسه څه دی ما اووې ددې دوه وزرې دی - حضور ﷺ اوفرمائیل آیا د اس هم وزرې وی؟ حضرت عائشې رضی الله عنها اوفرمائیل تا دا اوریدلې نۀ دی چه د سلیمان علیه السلام د اس وزرې وې؟ فرمائی چنانچه رسول الله ﷺ دومره قدرې اوخندل تردې پورې چه ما د حضور ﷺ نواجذ (غاښونه مبارک) اولیدل -

سیده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه کله رسول الله ﷺ د غزوه تبوک یا خیبر نه واپس تشریف راوړلو نو د هغې د لوبو چه کومه طاقچه وه چه په هغې باندې یو وړه شان پرده اویزاند وه د هوا په وجه باندې هغه پرده لرې شوه د هغې په لرې کیدو باندې په هغه طاقچه کښې چه د لوبو کومې ګډیانې وغیره پرتې وې هغه ښکاره شوې رسول الله ﷺ هغه طاقچې طرف ته اشاره فرمائیلو سره د عائشې رضی الله عنها نه تپوس اوکړو چه په دې کښې دې څه ایخودلې دی؟ هغې اووې دا زما ګډیانې دی، چه د هغې په مینځ کښې د کپړې نه جوړ یو اس هم وو چه د هغې دوه وزرې وې، رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه دا په مینځ کښې ئې څه دی نو هغې اووې چه دا اس دې، رسول الله ﷺ ترې نه تپوس اوکړو دا دپاسه پرې څه دی نو هغې اووې دا ئې دوه وزرې دی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿فَرَسٌ لَهُ جَنَاحَانِ﴾ چه د اس دوه وزرې هم دی، نو هغې اووې چه آیا تاسو نه دی اوریدلی چه د سلیمان علیه السلام چه کوم آسونه وو د هغې وزرې وې، هغه فرمائی چه په دې باندې رسول الله ﷺ اوخندل.

## بَابٌ فِي الْأُرْجُوحَةِ

### باب: ۵۵ - د ټال بیان

ارجوحه یعنی ټال، یعنی د هغې جواز او د ثبوت، په دې کښې مصنف رحمه الله د عائشې رضی الله عنها دا حدیث ذکر کړې دې چه کله مونږ هجرت کولو سره مدینې ته راغلو نو د یوې ورځې واقعه ده چه ما په ټال باندې ځنګل وانا مجممة او زما د سر ویښته د جمه په شان وو، یعنی واړهٔ ځنګه چه د سرو د غوږونو پورې وی، نو زه د کور ښځو د ټال نه کوزه کړم او بوئې تلم، څه ئې سنګار کړم او د هغې نه پس ئې رسول الله ﷺ ته اورسولم، یعنی زما رخصتی ئې اوکړه او ما سره رسول الله ﷺ خلوت اوفرمائیلو او زه د نهو کالو اوم، او په بل روایت کښې دی چه دغه وخت ما ته بعض انصاری زنانه دادعا اوکړه: ﴿على الخير والبركة﴾

[۴۹۳۳](¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ ح وحَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَنِي وَأَنَا بِنْتُ سَبْعٍ أَوْ سِتٍّ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ أَتَيْنَ نِسْوَةٌ، وَقَالَ بِشْرٌ: فَأَتَتْنِي أُمُّ رُومَانَ وَأَنَا عَلَى أُرْجُوحَةٍ فَذَهَبْنَ بِي وَهَيَّأْنَنِي وَصَنَعْنَنِي، فَأُتِيَ بِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَنَى بِي وَأَنَا ابْنَةُ تِسْعٍ فَوَقَفَتْ بِي عَلَى الْبَابِ، فَقُلْتُ: هِيهْ هِيهْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَيْ تَنَفَّسَتْ فَأُدْخِلْتُ بَيْتًا فَإِذَا فِيهِ نِسْوَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقُلْنَ عَلَى الْخَيْرِ وَالْبَرَكَةِ، دَخَلَ حَدِيثُ أَحَدِهِمَا فِي الْآخَرِ.

(¹): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (۲۱۲۱)، (تحفة الأشراف: ۱۶۸۵۵، ۱۶۸۸۱) (صحيح)

ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها بيان کوي چه رسول الله ﷺ ماسره واده اوکړو نو زما عمر اووۀ کاله يا شپږ کاله وو - کله چه مونږه مديني منورې ته راغلو نو ښځې راغللي ... دَ بشر بن خالد الفاظ دي : (زما مور) ام رومان راغله ... او زۀ په يو ټال باندې ومه او هغې ماله بوتلو ،ماله ئې تيار کړو ،جوړه ئې کړمه او رسول الله ﷺ ته ئې زۀ بوتلم - زما رخصتي اوشوه نو زما عمر نهۀ کاله وو - (زما مور) ماله په دروازه کښې اودرولمه نو ما اووې : (هيه،هيه) يعنې دَ انکار کولو آواز - امام ابوداود رحمه الله دې په وضاحت کښې فرمائي يعني ما اوږده ساه واخسته او يو کور ته داخله کړې شوم نو هلته کښې دَ انصارو ښځې وې هغوی په دعائي خير او برکت سره زما استقبال اوکړو - دَ حماد او دَ ابو اسامه روايت په يو بل کښې ميلاو شوې دی -

[٤٩٣٤] [1] حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ مِثْلَهُ، قَالَ: عَلَى خَيْرِ طَائِرٍ، فَسَلَّمَتْنِي إِلَيْهِنَّ، فَغَسَلْنَ رَأْسِي وَأَصْلَحْنَنِي فَلَمْ يَرُعْنِي إِلَّا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضُحًى، فَأَسْلَمْنَنِي إِلَيْهِ.

حضرت ابو اسامه دَ مذکوره بالا حديث هم مثل روايت کړو او وې فرمائيل : الله دې اوکړي چه ستا قسمت ښۀ وی - او ماله ئې هغه ښځو ته حواله کړو - هغوی زما سر اووينځلو او ماله ئې جوړه کړه او تياره کړه،او زۀ په دغه وخت کښې اوويريدم شان،کله چه ورځ تيره شوه رسول الله ﷺ زما مخې ته شو نو هغوی ماله هغه ته حواله کړو -

[٤٩٣٥] [2] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ جَاءَنِي نِسْوَةٌ وَأَنَا أَلْعَبُ عَلَى أُرْجُوحَةٍ وَأَنَا مُجَمَّمَةٌ، فَذَهَبْنَ بِي فَهَيَّأْنَنِي وَصَنَعْنَنِي، ثُمَّ أَتَيْنَ بِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَنَى بِي وَأَنَا ابْنَةُ تِسْعِ سِنِينَ".

ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها بيان کوي چه کله مونږه مديني ته راغلو نو ماته څو ښځې راغلې او ما چونکه په يو ټال باندې لوبې کولې - او زما ويښتان دَ غوږونو نه لاندې زنړيدل - نو هغوی ماله بوتلو او زۀ ئې تياره کړمه،او جوړه ئې کړمه،بيا هغوی زۀ دَ حضور ﷺ په خدمت کښې راوستلم - زما (دَ رسول الله ﷺ په کور) کښې رخصتي اوشوه نو زما عمر نهۀ کاله وو-

[٤٩٣٦] [3] حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ بِإِسْنَادِهِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَتْ: وَأَنَا عَلَى الْأُرْجُوحَةِ وَمَعِي صَوَاحِبَاتِي فَأَدْخَلْنَنِي بَيْتًا فَإِذَا نِسْوَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقُلْنَ عَلَى الْخَيْرِ وَالْبَرَكَةِ.

حضرت هشام بن عروه په خپل دې سند کښې په دې روايت کښې فرمائي چه سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه زۀ دَ خپلو ملګرو سره په يو ټال باندې وم ،-نو هغوی ماله يو کور ته داخل کړو،هلته کښې دَ انصارو څو ښځې وې نو هغوی دَ خير او برکت په دعاګانو سره زما استقبال اوکړو -

[1]: انظر حديث رقم: (٢١٢١)، (تحفة الأشراف: ١٦٨٥٥) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٢١٢١)، (تحفة الأشراف: ١٦٨٨١) (صحيح الإسناد)
[3]: انظر حديث رقم: (٢١٢١)، (تحفة الأشراف: ١٦٨٥٥) (صحيح)

[۴۹۳۷]([1]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، عَنْ يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَاطِبٍ، قَالَ: قَالَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَقَدِمْنَا الْمَدِينَةَ فَنَزَلْنَا فِي بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ، قَالَتْ: فَوَاللَّهِ إِنِّي لَعَلَى أُرْجُوحَةٍ بَيْنَ عِذْقَيْنِ، فَجَاءَتْنِي أُمِّي فَأَنْزَلَتْنِي وَلِي جُمَيْمَةٌ وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

یحیی بن عبد الرحمن بن حاطب بیان کوی چه ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها بیان کوی: چه مونږه راغلو مدینې ته او د بنو حارث بن خزرج سره زمونږه قیام اوشو فرمائی، په الله قسم! زۀ د کجورو په دوو لختو کښې په لګیدلې یو ټال باندې وم چه زما مور راغله، نو هغې ماله د هغې نه راکوز کړو، او زما ویښتان وارۀ وارۀ وو - او پوره حدیث ئې بیان کړو -

**قوله:** ﴿ فَوَاللَّهِ إِنِّي لَعَلَى أُرْجُوحَةٍ بَيْنَ عَذْقَيْنِ فَجَاءَتْنِي أُمِّي فَأَنْزَلَتْنِي وَلِي جُمَيْمَةٌ ﴾ په دې حدیث کښې د هغه ټال شکل ذکر شوې دې هغه د یو مضبوطې رسئ نه وو چه یو سر ئې په یو اونه کښې اوتړلې شی او دویم سر ئې په بله اونه کښې او د هغې رسئ په مینځنئ حصه باندې اوځانګلې شی کومه چه د زمکې طرف ته زوړنده ده، یعنی زما مور راغله او زه ئې د هغه ټال نه بوتلم په داسې حال کښې چه زما ویښته واره وارۀ وو یعنی د جمه په شکل.

## بَابٌ فِي النَّهْيِ عَنِ اللَّعِبِ بِالنَّرْدِ

### باب: ۵۶ - د نرد لوبه جائز نۀ ده

[۴۹۳۸]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ مَيْسَرَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدِ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ".

د حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: کوم کس چه د نرد لوبه اوکړه نو هغه د الله او د هغه د رسول نافرمانی اوکړه -

**قوله:** ﴿ مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدِ فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَرَسُولَهُ ﴾ او په بل روایت کښې دی ﴿ مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ فَكَأَنَّمَا غَمَسَ يَدَهُ فِي لَحْمِ خِنْزِيرٍ وَدَمِهِ ﴾

[۴۹۳۹]([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ مَرْثَدٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ لَعِبَ بِالنَّرْدَشِيرِ فَكَأَنَّمَا غَمَسَ يَدَهُ فِي لَحْمِ خِنْزِيرٍ وَدَمِهِ".

حضرت سلیمان بن بریده د خپل پلار نه روایت کوی، نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: چه کوم کس نرد شیر لوبه اوکړه نو ګویا چه هغه خپل لاس لره د خنزیر په غوښه او په وینې سره آلوده کړو - په دې حدیث کښې د نرد شیر لوبې کولو نه ممانعت دې چه که چا داسې اوکړل نو هغه د الله پاک او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم نافرمانی اوکړه، او په بل روایت کښې دی چه چا خپل لاسونه په دې لوبه کښې استعمال کړل نو ګویا هغه خپل لاسونه د خنزیر په غوښه او وینه کښې غوپه کړل ......دا لوبه ارد شیر بن بابک د فارس بادشاه وضع کړې ده او هغه چلولې وه هم

[1]): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (۲۱۲۱)، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۱۰/۶) (حسن صحيح)

[2]): سنن ابن ماجه/الأدب ۴۳ (۳۷۶۲)، موطا امام مالك/الرؤيا ۲ (۶)، (تحفة الأشراف: ۸۹۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۹۴/۴، ۳۹۷، ۴۰۰) (حسن)

[3]): صحيح مسلم/الشعر ۱ (۲۲۶۰)، سنن ابن ماجه/الأدب ۴۳ (۳۷۶۳)، (تحفة الأشراف: ۱۹۳۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۲/۵، ۳۵۷، ۳۶۱) (صحيح)

په دې وجه ورته نرد شیر وائی، په لغت کښې لیکلې دی چه نرد یو قسم لوبه ده کومه چه اردشیر بن بابک شاه ایران ایجاد کړې وه، په حاشیه د بذل کښې دی د مغنی نه نقل کولو سره چه دا لوبه حرام ده، چه د هغې د وجې نه سړې عند الائمة الاربعة مردود الشهادة جوړیږی، او هم دا حکم د شطرنج دې د ائمه ثلاث په نزد، په خلاف د امام شافعی چه هغوی دې ته مباح وئیلې دی. (المغنی ۳۵/۱۳) (التعلیق الممجد ۳۸۱)

## بَابٌ فِي اللَّعِبِ بِالْحَمَامِ

### بابـ ۵۷ - دَ کوترو دَ الوزولو بیان

یعنی کوترې ساتل او په هغې لوبې کول، په حدیث الباب کښې دی چه رسول الله ﷺ یو سړې اولیدو چه د یو کوترې طرف ته ئې منډې وهلې نو هغوی اوفرمائیل: شیطان په شیطانې پسې روان دې.

[۴۹۴۰] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَتْبَعُ حَمَامَةً، فَقَالَ: شَيْطَانٌ يَتْبَعُ شَيْطَانَةً".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ یو کس لره اولیدو چه په کونترو پسې لګیدلې وو حضور ﷺ اوفرمائیل شیطان، شیطانې پسې دې -
حمامة ته ئې شیطانه په دې وجه اووې چه هغه د هغه غفلت او حماقت ذریعه جوړه شوه.

## بَابٌ فِي الرَّحْمَةِ

### بابـ ۵۸ - دَ رحمت او شفقت بیان

[۴۹۴۱] (۲) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُسَدَّدٌ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي قَابُوسَ مَوْلَى لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، "يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّاحِمُونَ يَرْحَمُهُمُ الرَّحْمَنُ، ارْحَمُوا أَهْلَ الْأَرْضِ يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ"، لَمْ يَقُلْ مُسَدَّدٌ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، وَقَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه نقل کوی " په رحم کوونکو باندې به رحمن رحم کوی - تاسو دَ زمکې په اهل باندې رحم کوئ آسمان والا به په تاسو باندې رحم کوی -"

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- « الرَّاحِمُونَ يَرْحَمُهُمُ الرَّحْمَنُ ارْحَمُوا أَهْلَ الأَرْضِ يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ » ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم خلق رحم والا وی په نورو باندې رحم کوی نو الله پاک هم په هغه باندې رحم فرمائی، لهذا په زمکې والو باندې رحم اوکړئ، نو هغه به په تاسو باندې رحم اوکړی چه په آسمان کښې دې.

---

(۱): سنن ابن ماجه/الأدب ٤٤ (٣٧٦٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٠١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٥/٢) (حسن صحيح)
(۲): سنن الترمذي/البر والصلة ١٦ (١٩٢٤)، (تحفة الأشراف: ٨٩٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٠/٢) (صحيح)

## الحديث المسلسل بالاولية :

هم دا هغه حديث دي کوم چه په المسلسل بالاولية سره مشهور دي او صحيح دا ده چه د دې حديث د اوليت سلسله په سفيان بن عيينه باندې راتلو سره ختميږي، د هغې نه پورته يعنى د صحابى طرف ته نه شي موندلې، او چاچه دا مسلسل ګڼړې دې تر آخره پورې هغه په غلطئ باندې دي.

د دې حديث د تسلسل د باقى ساتلو صورت دا دې چه کوم استاد حديث هر يو کتاب خپل شاګرد ته لوستل شروع کړى نو اول دې دا حديث هغه ته واوروى يا دې په هغه باندې اولولى.

[۴۹۴۲]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، قَالَ حَدَّثَنَا ح وحَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: كَتَبَ إِلَيَّ مَنْصُورٌ، قَالَ ابْنُ كَثِيرٍ فِي حَدِيثِهِ، وَقَرَأْتُهُ عَلَيْهِ وَقُلْتُ: أَقُولُ حَدَّثَنِي مَنْصُورٌ، فَقَالَ: إِذَا قَرَأْتَهُ عَلَيَّ فَقَدْ حَدَّثْتُكَ بِهِ، ثُمَّ اتَّفَقَا، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ مَوْلَى الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاحِبَ هَذِهِ الْحُجْرَةِ، يَقُولُ: "لَا تُنْزَعُ الرَّحْمَةُ إِلَّا مِنْ شَقِيٍّ".

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمائى چه ما ددې حجرې والا نه يعنى د حضرت ابو القاسم صادق مصدوق ﷺ نه اوريدلې دى، هغه فرمائيل " رحمت نهٔ شى لرې کولې مګر دَ شقى (بدبخت) نه.

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ قَالَ حَدَّثَنَا ح وَحَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ كَتَبَ إِلَيَّ مَنْصُورٌ - قَالَ ابْنُ كَثِيرٍ فِي حَدِيثِهِ وَقَرَأْتُهُ عَلَيْهِ ......عَلَيَّ فَقَدْ حَدَّثْتُكَ بِهِ ﴾

### شرح السند او په تحديث او اخبار کښې عدم فرق :

په دې حديث کښې د مصنف رحمه الله دوه استاذان دى حفص بن عمر، او ابن کثير، او د هغوى دواړو استاد شعبه دې، او د شعبه استاد منصور دې، د منصور د روايت په باره کښې خو حفص د شعبه نه دا نقل کړى دى : کتب الى منصور او ابن کثير د شعبه نه داسې نقل کړى دى کتب الى منصور وقراته عليه، يعنى د حفص په روايت کښې خو دا دى : شعبه وائى چه ما ته منصور حديث اوليکلو، او ابن کثير وائى چه شعبه وائى چه منصور زما طرف ته ليکلو سره راوليږلو او ما هغه حديث په هغوى باندې لوستلې هم دې، او بيا د ابن کثير په روايت کښې دا زيادت دې چه شعبه وائى چه ما خپل استاد منصور ته اووې چه اوس د دې نه پس چه کله ما تاسو ته حديث واورولو نو په وخت د روايت حديث دا وئيلې شم چه ﴿ حدثنى منصور ﴾ نو هغوى د دې اجازت راکړو چه کله تا دا حديث په ما باندې اولوستلو نو داسې شوه لکه چه دا حديث ما تاته بيان کړو، دا ټول سوال او جواب د ابن کثير په روايت کښې دى د حفص بن عمر په روايت کښې نشته.

**قوله:** ﴿ ثُمَّ اتَّفَقَا عَنْ أَبِي عُثْمَانَ ﴾ يعنى د دې نه پس چه کوم سند راروان دې په هغې کښې حفص او ابن کثير متفق دى، د دواړو په روايت کښې چه کوم فرق وو هغه په شروع کښې وو.

[1]: سنن الترمذي/البر والصلة ١٦ (١٩٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٣٣٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٠١، ٤٤٢، ٤٦١، ٥٣٩) (حسن)

د دې سوال او جواب نه معلومه شوه چه د منصور په نزد د قراءت علی الشیخ په صورت کښې هم حدثنا وئیلې شې، او په دې کښې دویم قول کوم چه مشهور دې هغه دا دې لکه د کتاب په شروع کښې چه تیر شو چه د قراءت علی الشیخ په صورت کښې اخبرنا او د سماع من لفظ الشیخ په صورت کښې حدثنا استعمالولې شی.

[٤٩٤٣] (١) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَابْنُ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنِ ابْنِ عَامِرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو يَرْوِيهِ، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ لَمْ يَرْحَمْ صَغِيرَنَا، وَيَعْرِفْ حَقَّ كَبِيرِنَا، فَلَيْسَ مِنَّا".

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه بیان کوی، نبی کریم ﷺ فرمائیلي دی: څوک چه زمونږ په وړو باندې شفقت نهٔ کوی او زمونږه دَ مشرانو حق اونهٔ پیژنی نو هغه زمونږ نه نهٔ دې۔

## بَابٌ فِي النَّصِيحَةِ

### باب: ۵۹ - دَ خیر خواهئ بیان

دا ترجمة الباب مکرر دې اوس نزدې تیر شوې دې.

[٤٩٤٤] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الدِّينَ النَّصِيحَةُ إِنَّ الدِّينَ النَّصِيحَةُ إِنَّ الدِّينَ النَّصِيحَةُ، قَالُوا: لِمَنْ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: لِلَّهِ وَكِتَابِهِ وَرَسُولِهِ وَأَئِمَّةِ الْمُؤْمِنِينَ وَعَامَّتِهِمْ، أَوْ أَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ وَعَامَّتِهِمْ".

حضرت تمیم داری رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: " دین د نصیحت (د خلوص او خیر خواهئ) نوم دې - دین دَ نصیحت نوم دې - دین د نصیحت نوم دې - صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اوفرمائیل اې دَ الله رسوله! دَ چا دپاره؟ حضور ﷺ اوفرمائیل: " دَ الله دپاره، دَ هغه دَ کتاب دپاره، دَ هغه دَ رسول دپاره، دَ اهل ایمان دَ ائمهٔ وحکام او دَ عامو مسلمانانو دپاره - یا ئې اوفرمائیل چه دَ مسلمانانو دَ ائمواو حکامو او دَ عامو مسلمانانو دپاره -

﴿ عَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّ الدِّينَ النَّصِيحَةُ إِنَّ الدِّينَ النَّصِيحَةُ إِنَّ الدِّينَ النَّصِيحَةُ ». قَالُوا لِمَنْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ « لِلَّهِ وَكِتَابِهِ وَرَسُولِهِ وَأَئِمَّةِ الْمُؤْمِنِينَ وَعَامَّتِهِمْ » ﴾

د نصیحت معنی ارادة الخیر ده چاسره د خیر اراده کول، او چا سره چه دا د خیر اراده کولې شی هغه ته منصوح له وائی او دا معنی ډیره جامع ده هره نیکی او خیر په دې کښې راځی حال دا چه لفظ د نصیحت ډیره وړه شان کلمه ده خو معنی د دې ډیره لویه ده او زه وایم چه په کوم لفظ سره د دې ترجمه کولې شی یعنی خیر خواهی هغه هم دغه شان جامع لفظ دې.

### هغه خصلت کوم چه د ټول دین خلاصه ده:

په دې حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ ډیر په تاکید او تحقیق او ډیر په قوت سره اوفرمائیل چه دین نوم دې د خیرخواهئ یعنی د دین خلاصه دا ده، په دې باندې صحابه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٨٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٢٢) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٨٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٢٢) (صحيح)

کرامو ﷺ تپوس اوکړو چه د چا دپاره خیر خواهي ده؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د ټولو دپاره، تر دې چه د الله پاک دپاره هم او د کتاب الله دپاره هم او د رسول الله ﷺ دپاره او د مسلمانانو خلفاء او بادشاهانو او عامة الناس دپاره، خو د هر یو سره خیرخواهي د هغه د حال مناسب وي، لهذا د نصیحت معنی شوه د هر یو څیز او هر شخص سره د هغه شایان شان معامله کول، پس د الله پاک خیرخواهي به د هغه د شان مناسب وي او د کتاب الله سره به د هغه د شان مناسب او هم دغه شان باقي ټول هم، په الله پاک باندې ایمان د هغه عبادت او په هر حال کښې د هغه د حکم اطاعت او پوره کول دا نصحیت لله دې، او هم دغه شان د کتاب الله تعظیم ظاهره او باطنا، د هغه تلاوت کول او د هغې په معانی باندې ځان پوهه کولو سره د هغې احکامات باندې عمل کول دا نصیحة لکتاب الله دې.هم په دې باندې دې قیاس کړې شي باقي ټول څیزونه هم، نو د هر څیز سره شایان شان معامله کول چه د هغې دویم تعبیر دا هم کیدې شي ﴿ اعطاء کل ذی حق حقه ﴾ هر ذی حق ته د هغه حق ورکول، دا د ټول دین خلاصه ده او لب لباب دې، د دې حدیث په باره کښې امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم صفحه ۵۴ کښې فرمائي : هَذَا حَدِيث عَظِيم الشَّأْن وَعَلَيْهِ مَدَار الْإِسْلَام كَمَا سَنَذْكُرُهُ مِنْ شَرْحه (یعنی د دې حدیث د شرح نه به معلومه شي چه واقعي دا حدیث مدار الاسلام دې) وَأَمَّا مَا قَالَهُ جَمَاعَات مِنْ الْعُلَمَاء أَنَّهُ أَحَد أَرْبَاع الْإِسْلَام أَيْ أَحَد الْأَحَادِيث الْأَرْبَعَة الَّتِي تَجْمَع أُمُورَ الْإِسْلَام فَلَيْسَ كَمَا قَالُوهُ،بَلْ الْمَدَارُ عَلَى هَذَا وَحْدَهُ، یعنی بعض علماء کرامو چه دا خبره فرمائیلې ده چه دا حدیث د هغه څلور احادیثو نه دې چه د هغې په مجموعه کښې د اسلام ټول امور مضمر دی لهذا په دې حدیث کښې څلورمه حصه دامور اسلام راغلی دی، دا خبره صحیح نه ده بلکه یواځې هم په دې یو حدیث باندې د ټول امور اسلام مدار دې وَهَذَا الْحَدِيث مِنْ أَفْرَاد مُسْلِم،وَلَيْسَ لِتَمِيمٍ الدَّارِيّ فِي صَحِيح الْبُخَارِيّ عَنْ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْءٌ،وَلَا لَهُ فِي مُسْلِم عَنْهُ غَيْر هَذَا الْحَدِيث.بیا امام نووی رحمه الله د دې حدیث شرح په تفصیل سره لیکلې ده.

[٤٩٤٥]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي زُرْعَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ جَرِيرٍ، عَنْ جَرِيرٍ، قَالَ: "بَايَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، وَأَنْ أَنْصَحَ لِكُلِّ مُسْلِمٍ"، قَالَ: وَكَانَ إِذَا بَاعَ الشَّيْءَ أَوِ اشْتَرَاهُ، قَالَ: أَمَا إِنَّ الَّذِي أَخَذْنَا مِنْكَ أَحَبُّ إِلَيْنَا مِمَّا أَعْطَيْنَاكَ فَاخْتَرْ.

حضرت جریر (بن عبد الله بجلی) رضی الله عنه فرمائي چه ما د نبی کریم ﷺ سره د اوریدو او د اطاعت کولو او د هر مسلمان سره په خیر خواهي کولو باندې بیعت کړې دې.- راوی وائی: چنانچه هغه (جریر) چه به کله څه څیز اخستو یا خرڅوو نو فرائیل به ئې : په تحقیق سره کوم څیز چه مونږه ستاسو نه اخستې دې هغهٔ مونږ ته د خپل هغه څیز نه کوم چه مونږه تاسو ته درکړې دې،زیات محبوب دې، چنانچه تاسو ته اختیار دې - (که خپل څیز واپس اخستل غواړئ نو اخستې شئ)

[1]: سنن النسائي/ البيعة ٦ (٤١٦٢)، (تحفة الأشراف: ٣٢٣٩)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الإيمان ٤٢ (٥٧)، مواقيت الصلاة ٣ (٥٢٤)، الزكاة ٢ (١٤٠١)، البيوع ٦٨ (٢١٥٧)، الشروط ١ (٢٧٠٥)، الأحكام ٤٣ (٧٢٠٤)، صحيح مسلم/الإيمان ٤٣ (٥٦)، سنن الترمذي/البر ١٧ (١٩٢٥)، مسند احمد (٤/٣٥٨، ٣٦١، ٣٦٤، ٣٦٥) (صحيح الإسناد)

**قوله:** ﴿ عَنْ جَرِيرٍ قَالَ بَايَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ وَأَنْ أَنْصَحَ لِكُلِّ مُسْلِمٍ - قَالَ - وَكَانَ إِذَا بَاعَ الشَّىْءَ أَوِ اشْتَرَاهُ قَالَ « أَمَا إِنَّ الَّذِى أَخَذْنَا مِنْكَ أَحَبُّ إِلَيْنَا مِمَّا أَعْطَيْنَاكَ فَاخْتَرْ »﴾

سيدنا جرير رضي الله عنه فرمائی چه ما رسول الله ﷺ سره د هغه په خبره منلو او د هغوی په اطاعت او د هر مسلمان په نصيحت او خيرخواهئ باندې بيعت اوکړو اوس په دې باندې راوی وائی چه د دې بيعت نه پس د جرير رضي الله عنه دا حال وو چه که خپل يو څيز به ئې په چا باندې خرخولو يا به ئې د چا نه يو څيز په پيسو ورکولو سره اخستلو نو د بيع او شراء د تام کيدو نه پس به ئې هم هغه ته دا فرمائيل چه کوم څيز مونږ ستاسو نه اخستلې دې هغه زمونږ په نزد زيات خوښ دې د هغه څيز نه کوم چه مونږ تاله درکړې دې لهذا مونږ خو دا واپس کول نه غواړو د زيات خوښيدو د وجې نه خو زه تاته وايم که تاته په خپل څيز کښې کوم چه تا مونږ ته راکړې دې هغه زيات خوښ وی او ته ئې زما نه واپس اخستل غواړې نو اخستلې ئې شې (ځکه چه د نصيحت او خيرخواهئ تقاضه هم دا ده).

دا د جرير رضي الله عنه کمال احتياط دې چه د بل د شک د ضرر نه هم د بچ کولو کوشش کوی، ځکه چه بعض وخت بائع د بيع نه پس، هم دغه شان مشتری ته د شراء نه پس د هغه په رائې کښې بدلون راځی، د بائع خيال پيدا کيږی چه که ما دا بيع نه وې کړې نو غوره به وه، او مشتری ته د شراء نه پس دا خيال او وسوسه راځی چه که ما دا څيز نه وې اخستلې نو غوره به وه، په دې وجه به جرير رضي الله عنه داسې کول، او د عام خلقو حال دا دې چه مشتری د شراء نه پس دا سوچ کوی چه ما په بائع باندې احسان اوکړو چه د هغه څيز مې واخستلو او هم دغه شان بائع خپل څيز خرخولو سره په مشتری باندې احسان کول غواړی چه ما دومره ښه څيز تاته څومره ارزان درکړو.

## بَابٌ فِي الْمَعُونَةِ لِلْمُسْلِمِ

### بابـ ٦٠ - دَ مسلمان سره دَ مدد کولو بيان

[٤٩٤٦](١) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ، وَعُثْمَانُ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، قَالَ عُثْمَانُ، وَجَرِيرٌ الرَّازِيُّ. ح وحَدَّثَنَا وَاصِلُ بْنُ عَبْدِ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، وَقَالَ وَاصِلٌ قَالَ: حُدِّثْتُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ ثُمَّ اتَّفَقُوا، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللَّهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ، وَمَنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، وَمَنْ سَتَرَ عَلَى مُسْلِمٍ سَتَرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، وَاللَّهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَذْكُرْ عُثْمَانُ عَنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ: وَمَنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ.

حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان کوی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل : چه چا د يو مسلمان نه د دنيا يو درد او تکليف لرې کړو الله جل شانه به دَ قيامت دَ ورځې يو درد دَ دهٔ نه لرې کړی او چا

(١): سنن الترمذي/الحدود ٣ (١٤٢٥)، البر والصلة ١٩ (١٩٣٠)، القراءات ١٢ (٢٩٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٢٣٥٩، ١٢٥١٠، ١٢٨٨٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١١ (٢٦٩٩)، سنن ابن ماجه/المقدمة ١٧ (٢٢٥)، مسند احمد (٢/٢٥٢، ٣٢٥، ٥٠٠، ٥٢٢)، سنن الدارمي/المقدمة ٣٢ (٣٦٠) (صحيح)

چه آسانتیا راوسته په یو معسر (په مشکل کښې پریوتی کس) باندې آسانتیا به راولی په دهٔ باندې الله تعالی په دنیا او آخرت کښې - او الله جل شانه د خپل بنده مدد کوی ترڅو چه دې د خپل (مسلمان) رور په مدد کښې وی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه عثمان (بن ابی شیبه) د ابو معاویه نه دا جمله نهٔ ده روایت کړې: " چه څوک په مصیبت زده کس باندې آسانتیا راولی ..."

د حدیث مضمون دا دې رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړې د یو مسلمان نه د هغه څهٔ پریشانی لرې کړی، نو الله پاک به د هغې په بدل د قیامت په ورځ د هغه پریشانی لرې کړی، حال دا چه د دنیا پریشانی د آخرت د پریشانئ په مقابله کښې هیڅ هم نه ده، او څوک چه یو غریب ته سهولت ورکړی د قرض وغیره په معامله کښې، نو الله پاک هغه سره د سهولت معامله فرمائی په دنیا او آخرت کښې، او هم دغه شان څوک چه د یو مسلمان عیب پټ کړی او د هغه پرده ساتی نو الله پاک به د هغه عیبونه پټ کړی په دنیا او آخرت کښې
او الله پاک د خپل بنده په امداد کښې وی ترڅو چه هغه بنده د خپل رور اعانت کوی.

[۴۹۴۷]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: قَالَ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ".

د حضرت حذیفه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ستاسو نبی فرمائیلې دی: " هره نیکی صدقه ده۔"

## بَابٌ فِي تَغْيِيرِ الْأَسْمَاءِ

### باب: ۶۱ - د (غلط) نوم د بدلولو بیان

[۴۹۴۸]([2]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالَ: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي زَكَرِيَّا، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّكُمْ تُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَسْمَائِكُمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِكُمْ، فَأَحْسِنُوا أَسْمَاءَكُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: ابْنُ أَبِي زَكَرِيَّا لَمْ يُدْرِكْ أَبَا الدَّرْدَاءِ.

د حضرت ابودرداء رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی چه تاسو ته به د قیامت په ورځ باندې په خپلو او د خپلو پلارانو په نومونو سره آواز کولې شی - چنانچه خپل نومونه ښهٔ ردئ - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه حضرت ابن ابوزکریا، حضرت ابو درداء رضی الله عنه لره نه موندلې -

**قوله:** ﴿إِنَّكُمْ تُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَسْمَائِكُمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِكُمْ فَأَحْسِنُوا أَسْمَاءَكُمْ﴾

د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه تاسو به د قیامت په ورځ باندې په خپلو او د خپلو پلارانو په نومونو باندې رابللې شئ، لهذا خپل نومونه ښه ردئ، چه په ښه نوم سره درته آواز اوشی، په دې روایت کښې خو هم دا دی چه انسان ته به د هغه او د هغه د پلار په نوم باندې آواز کولې شی، خو په بعض روایاتو کښې دی چه د قیامت په ورځ به خلقو ته آواز کولې شی د

[1]: صحیح مسلم/الزکاة ۱۶ (۱۰۰۵)، (تحفة الأشراف: ۳۳۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۸۳/۳، ۳۹۷، ۳۹۸، ۴۰۵) (صحیح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۴۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۹۴/۵)، سنن الدارمي/الاستئذان ۵۹ (۲۷۳۶) (ضعیف)

میاندو په نوم باندې چه د هغې حکمت بعضو دا بیان کړې دې چه د ولد الزنا حال ښکاره نه شی، او بعضو وئیلې دی چه د عیسی علیه السلام د حال په رعایت ساتلو کښې ځکه چه د هغوی نسبت خو د مور طرف ته متعین دې.لهذا په دې دواړو روایتونو کښې تعارض شو، د دې یو جواب خو دا کیدې شی چه حدیث الباب د صحاح روایت دې او هغه بل روایت د دې درجې نه دې، او یا دا چه دواړه روایتونه دې په تغلیب باندې حمل کړې شی، یعنی نه خو په ټول د پلار په نوم باندې رابللې شی او نه ټول د میاندو په نومونو باندې بلکه بعض به یو شان او بعضې بل شان، کذا فی البذل عن اللمعات،او یا دې داسې اوئیلې شی چه په حدیث الباب باندې خپله کلام دې لکه چه په بعض نسخو کښې دی : قَالَ أَبُو دَاوُدَ ابْنُ أَبِي زَكَرِيَّاءَ لَمْ يُدْرِكْ أَبَا الدَّرْدَاءِ.

[٤٩٤٩](١) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ زِيَادٍ سَبَلَانَ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ عَبَّادٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَحَبُّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى: عَبْدُ اللَّهِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلې دی : په تمامو نومو کښې عبد الله او عبد الرحمن الله عز وجل ته زیات خوښ دی۔

**قوله:** ﴿ أَحَبُّ الأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى عَبْدُ اللَّهِ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ ﴾ د ټولو نه زیات غوره نوم د الله پاک په نزد دا دوه نومونه دی عبدالله او عبدالرحمن، او هم دغه شان هغه نومونه چه په هغې کښې د عبدیت نسبت اسماء حسنی کښې د یو نوم طرف ته وی، او په حاشیه د بذل کښې دا دی چه د دې دوه نومونو احبیت علی الاطلاق نه دې لکه چه د شامی د ظاهر نه معلومیږی بلکه په اعتبار د عبودیت دې (یعنی کوم نوم چه په عبد سره وی) ځکه چه مخکښې خلقو به نومونه کیخودل عبدالشمس وغیره، ګینې د ټولو نه زیات غوره نوم محمد او احمد دې.

[٤٩٥٠](٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعِيدٍ الطَّالْقَانِيُّ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُهَاجِرِ الْأَنْصَارِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَقِيلُ بْنُ شَبِيبٍ، عَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَسَمَّوْا بِأَسْمَاءِ الْأَنْبِيَاءِ، وَأَحَبُّ الْأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ: عَبْدُ اللَّهِ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ، وَأَصْدَقُهَا: حَارِثٌ، وَهَمَّامٌ، وَأَقْبَحُهَا: حَرْبٌ، وَمُرَّةُ".

د حضرت ابو وهب جشمی رضی الله عنه نه روایت دې ... او دهٔ ته د صحابی کیدو شرف حاصل دې ... هغه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلې دی چه دَ انبیاؤ علیهم السلام نومونه ږدئ او الله تعالیٰ ته په تمامو نومونو کښې زیاد محبوب عبد الله او عبد الرحمن دی - دَ ټولو نه زیات واقعیت ته قریب دا نومونه دی،حارث او همام او دا دَ ټولو نه زیات قبیح او ناخوښه،حرب،او مره دی -

(١): صحيح مسلم/الأداب ١ (٢١٣٢)، (تحفة الأشراف: ٧٩٢٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأدب ٦٤ (٢٨٣٦)، سنن الدارمي/الاستئذان ٦٠ (٢٧٣٧) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/الخيل ٢ (٣٥٩٥)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٤٥/٤) (صحيح) (الصحيحة ١٠٤٠،٩٠٤، والأرواء ١١٧٨ وتراجع الالباني ٤٦)

**قوله:** ﴿ تَسَمَّوْا بِأَسْمَاءِ الأَنْبِيَاءِ وَأَحَبُّ الأَسْمَاءِ إِلَى اللَّهِ عَبْدُ اللَّهِ وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ وَأَصْدَقُهَا حَارِثٌ وَهَمَّامٌ وَأَقْبَحُهَا حَرْبٌ وَمُرَّةُ ﴾

په دې حديث کښې د انبياء ﷺ په نومونو باندې د نوم کيخودلو ترغيب دې لهذا د دې نه د دې تائيد کيږي کوم چه پورته د شامی نه تير شو، او حارث او همام ته چه اصدق يعنی زيات رشتيني وئيلې شوې دی نو هغه ښکاره ده ځکه چه هر سړې حارث يعنی د ګټې فکر کونکې دې، او هم دغه شان په هر سړی کښې هم او فکر موندلې شی، لهذا دا دواړه نومونه د هر سړی په اعتبار سره د مسمی موافق دی.

[٤٩٥١]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "ذَهَبْتُ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ وُلِدَ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي عَبَاءَةٍ يَهْنَأُ بَعِيرًا لَهُ، قَالَ: هَلْ مَعَكَ تَمْرٌ، قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: فَنَاوَلْتُهُ تَمَرَاتٍ، فَأَلْقَاهُنَّ فِي فِيهِ فَلَاكَهُنَّ، ثُمَّ فَغَرَ فَاهُ فَأَوْجَرَهُنَّ إِيَّاهُ، فَجَعَلَ الصَّبِيُّ يَتَلَمَّظُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: حُبُّ الأَنْصَارِ التَّمْرَ، وَسَمَّاهُ عَبْدَ اللَّهِ".

حضرت انس فرمائی چه کله د عبد الله بن طلحه ولادت اوشو نو ما هغه لره د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو، او نبی کريم علیه السلام ﷺ يوه عباء اغوستې وه او خپل اوښ لره ئې تياره وو، حضور ﷺ تپوس اوکړو: "آيا تسو سره کجورې شته؟ ما عرض اوکړو او! او ما د هغه په خدمت کښې څو کجورې پيش کړې - هغې لره پيغمبر ﷺ په خپله خلهٔ مبارکه کښې اوچيچلې بيائې دبچی خلهٔ کولاؤ کړه او دهغه په خلهٔ کښې ئې واچوله. نو هغه خپله خلهٔ اوچلوله نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: "د انصارو د کجورو سره محبت! (يعنی اوګورئ! چه نومولود بچې ئې څنګه په مينې سره خوری) او حضور ﷺ د هغه نوم عبد الله کيخودو.

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ ذَهَبْتُ بِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- حِينَ وُلِدَ وَالنَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- فِي عَبَاءَةٍ يَهْنَأُ بَعِيرًا لَهُ الخ ﴾

د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د صحابه کرامو ﷺ دا معمول وو چه کله به د چا کره اولاد پيدا شو نو هغه نوې پيدا شوې به ئې د رسول الله ﷺ خدمت ته راوستلو او په رسول الله ﷺ باندې به ئې د هغه تحنيک کولو (۲) په دې حديث کښې هم د دې ذکر دې، انس ﷺ فرمائی چه ما خپل اخيافی رور عبدالله د پيدائش نه پس د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر کړو د تحنيک دپاره، چه کله زه هلته اورسيدم نو هغه وخت رسول الله ﷺ غباء يعنی چوغه اغوستلې وه او په خپلو اوښانو باندې ئې په خپلو لاسونو مبارکو هناء يعنی مخصوص تيل قطران مړل (زما په غيږ کښې ماشوم ليدو سره هغوی پوهه شو چه ما هغه د تحنيک دپاره راوستلې دې) رسول الله ﷺ تپوس اوکړو تاسره کهجوره شته، ما هغوی ته څو کهجورې پيش کړې، هغه رسول الله ﷺ په خپله خوله مبارکه کښې واچولې ﴿ فَغَرَ فَاهُ ﴾ فغر بمعنی فتح،

---

[1]: صحيح مسلم/الآداب ٥ (٢١٤٤)، انظر حديث رقم: (٢٥٦٣)، (تحفة الأشراف: ٣٢٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٥/٣، ٢١٢، ٢٨٧، ٢٨٨) (صحيح)

[2]: دا د حنک نه دې په معنی د تالو، چه د هغې مفهوم دا دې چه کهجوره يو داسې انسان په خوله کښې پسته کړی چا سره چه محبت وی او بيا هغه د هغه ماشوم په تالو پورې رانښکلې شی،

یعنی بیا رسول الله ﷺ د دې ماشوم خوله پرانستله او هغه چوپلې شوې کهجورې ئې د دې ماشوم په خوله کښې واچولې هغه ماشوم فورا خوله خوزولو سره دا کهجورې رودل شروع کړل چه په هغې باندې رسول الله ﷺ حیران شو او وې فرمائیل: ﴿حب الانصار التمر﴾ اوګوره د انصارو کهجورې څومره خوښې دی او بیا ئې پرې عبدالله نوم کیخودلو.

## بَابٌ فِي تَغْيِيرِ الِاسْمِ الْقَبِيحِ

### بابـ ۶۱ - دَغلط او دَبدو نوموِ دَبدلولو بیان

[۴۹۵۲](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيَّرَ اسْمَ عَاصِيَةَ، وَقَالَ: أَنْتِ جَمِيلَةُ".

د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د عاصیه نوم بدل کړو او وې فرمائیل: " ته خو جمیله (یعنی خوبصورته) ئې -

**قوله:** ﴿ غَيَّرَ اسْمَ عَاصِيَةَ وَقَالَ أَنْتِ جَمِيلَةُ ﴾ یعنی یو زنانه چه د هغې نوم عاصیه وو، رسول الله ﷺ د هغې نوم بدل کړو او جمیله نوم ئې پرې کیخودلو، عرب خلقو به دا قسم نومونه کیخودل، عاصی ظالم وغیره د تکبر او تعلی په طور چه مونږ څوک هم نه منو، او نه د چا نه ویرېږو، چه اسلام راغلو نو د داسې نومونو نه ئې منع اوکړه. (بذل)

[۴۹۵۳](۲) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ، أَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ سَأَلَتْهُ مَا سَمَّيْتَ ابْنَتَكَ؟ قَالَ: سَمَّيْتُهَا مُرَّةَ، فَقَالَتْ: "إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ هَذَا الِاسْمِ، سُمِّيتُ بَرَّةَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ، اللَّهُ أَعْلَمُ بِأَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ، فَقَالَ: مَا نُسَمِّيهَا؟ قَالَ: سَمُّوهَا زَيْنَبَ".

حضرت محمد بن عمرو بن عطاء رحمه الله فرمائی چه حضرت زینب بنت ابو سلمه زما نه پوښتنه اوکړه چه تا دَ خپل بچی څه نوم ایخې دې؟ ما ورته اوښودل چه " بره " (نیک صالحه) نو هغې اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ ددې نوم نه منع فرمائیلې ده - زما نوم بره ایخودې شوې وو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل خپل ځان ته پخپله باندې نیک او صالح مهٔ وائې، الله پاک په تاسو کښې نیک او صالح ښهٔ پېژنی -" تپوس اوکړې شو مونږه دَ هغې څه نوم کیږدو؟ حضور ﷺ اوفرمائیل: " زینب " نوم ئې کیږدئ -

**قوله:** ﴿ مَا سَمَّيْتَ ابْنَتَكَ قَالَ سَمَّيْتُهَا بَرَّةَ ﴾ محمد بن عمرو بن عطاء فرمائی چه زینب بنت ابی سلمه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ ربیبه (پرکټئ یعنی د زوجې محترمې ام سلمه رضی الله عنها لور) زما نه تپوس اوکړو چه تا د خپلې لور څه نوم کیخودلې دې، ما اووې ما د هغې نوم بره کیخودلې دې، نو هغوی اووې چه زما نوم هم په شروع کښې بره وو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ لَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمُ اللَّهُ أَعْلَمُ بِأَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ ﴾ چه خپله نیکی او صلاح مه ثابتوئ، الله پاک ته

---

(۱): صحيح مسلم/الآداب ۳ (۲۱۳۹)، سنن الترمذي/الأدب ۶۶ (۲۸۳۸)، (تحفة الأشراف: ۸۱۵۵، ۷۸۷۶)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الأدب ۳۲ (۳۷۳۳)، مسند احمد (۱۸/۲)، سنن الدارمي/الاستئذان ۶۲ (۲۷۳۹) (صحيح)

(۲): صحيح مسلم/الآداب ۳ (۲۱۴۲)، (تحفة الأشراف: ۱۵۸۸۴) (حسن صحيح)

معلومه ده چه په تاسو کښې نیکی کونکې ثوک دې، بیا زما د کور خلقو د رسول الله ﷺ په فرمان باندې زما نوم بدلولو سره زینب کړلو.

د دې حدیث نه معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ د ربیبه زینب بنت ابی سلمه رضی الله عنها نوم بره وو رسول الله ﷺ پرې بدلولو سره زینب کیخودلو، په دې باندې په حاشیه د بذل کښې دی چه په تاریخ خمیس ۱/۴۷۴ کښې د جویریه رضی الله عنها په ذکر کښې دی چه د هغې نوم بره وو نو رسول الله ﷺ پرې بدل کړو او جویریه ئې پرې کیخودلو. ﴿کره ان یقال خرج من عند برة کذا فی المشکاة وقد ذکر مثله فی میمونة وزینب بنت جحش وزینب بنت ابی سلمة، وکان اسم کل واحدة منهن برة الی اخر ما فیه .... یعنی د څو زنانو په باره کښې هم دا رآئی چه د هغوی نوم بره وو او رسول الله ﷺ پرې نور نومونه کیخودل.

[۴۹۵۴](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِي ابْنَ الْمُفَضَّلِ، قَالَ: حَدَّثَنِي بَشِيرُ بْنُ مَيْمُونٍ، عَنْ عَمِّهِ أُسَامَةَ بْنِ أَخْدَرِيٍّ: "أَنَّ رَجُلًا يُقَالُ لَهُ: أَصْرَمُ كَانَ فِي النَّفَرِ الَّذِينَ أَتَوُا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا اسْمُكَ، قَالَ: أَنَا أَصْرَمُ، قَالَ: بَلْ أَنْتَ زُرْعَةُ".

د حضرت اسامه بن اخدری رضی الله عنه نه روایت دې چه اصرم نومې یو سړې په هغه وفد کښې شامل وو کوم چه نبی کریم ﷺ ته راغلې وو - حضور ﷺ د هغه نه پوښتنه اوکړه ستا نوم څه دې؟ هغه اووې اصرم (کټ کوونکې) حضور ﷺ اوفرمائیل بلکې ته زرعه ئې" (بمعنی زمیداری کوونکې)

**قوله**: ﴿ أَنَّ رَجُلاً يُقَالُ لَهُ أَصْرَمُ كَانَ فِي النَّفَرِ الَّذِينَ أَتَوْا رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَا اسْمُكَ »..........قَالَ « بَلْ أَنْتَ زُرْعَةُ »﴾

یعنی یو سړې چه د هغه نوم اصرم وو هغه په هغه خلقو کښې وو کوم چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلې وو، یعنی په ظاهر کښې د وفد په شکل، نو رسول الله ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو چه ستا څه نوم دې هغه اووې أَصْرَمُ. قَالَ « بَلْ أَنْتَ زُرْعَةُ » اصرم څو چونکه د صرم نه ماخوذ دې چه د هغې معنی د قطع ده چه په هغې کښې ایهام دې د قطع د خیر او برکت نو په دې وجه رسول الله ﷺ د هغه نوم زرعة کیخودلو، زرعة په لغت کښې وئیلې شی د فصل تخم ته او د فصل زمکې ته هم.

[۴۹۵۵](۲) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ، عَنْ يَزِيدَ يَعْنِي ابْنَ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ هَانِئٍ، "أَنَّهُ لَمَّا وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ قَوْمِهِ سَمِعَهُمْ يَكْنُونَهُ بِأَبِي الْحَكَمِ، فَدَعَاهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَكَمُ وَإِلَيْهِ الْحُكْمُ، فَلِمَ تُكْنَى أَبَا الْحَكَمِ، فَقَالَ: إِنَّ قَوْمِي إِذَا اخْتَلَفُوا فِي شَيْءٍ أَتَوْنِي فَحَكَمْتُ بَيْنَهُمْ، فَرَضِيَ كِلَا الْفَرِيقَيْنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَحْسَنَ هَذَا، فَمَا لَكَ مِنَ الْوَلَدِ؟ قَالَ: لِي شُرَيْحٌ، وَمُسْلِمٌ، وَعَبْدُ اللَّهِ، قَالَ: فَمَنْ أَكْبَرُهُمْ؟ قُلْتُ: شُرَيْحٌ، قَالَ: فَأَنْتَ أَبُو شُرَيْحٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: شُرَيْحٌ هَذَا: هُوَ الَّذِي كَسَرَ السِّلْسِلَةَ، وَهُوَ مِمَّنْ دَخَلَ تُسْتَرَ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَبَلَغَنِي أَنَّ شُرَيْحًا كَسَرَ بَابَ تُسْتَرَ، وَذَلِكَ أَنَّهُ دَخَلَ مِنْ سِرْبٍ.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۳) (صحيح)
(۲): سنن النسائي/آداب القضاة ۷ (۵۳۸۹)، (تحفة الأشراف: ۱۱۷۲۵) (صحيح)

دَ حضرت هانی بن یزید نه روایت دې چه کله هغه دَ خپل قوم دَ وفد سره رسول الله ﷺ ته راغې نو نبی کریم دَ هغوی نه واوریدل چه هغه ته ئې دَ ابو الحکم په کنیت سره آواز کولو نو رسول الله ﷺ هغه لره راوبللو اووې فرمائیل: ' حکم (فیصله کوولو والا) صرف الله دې (او دا هم دَ هغه نوم دې) او تمامې فیصلې هم دَ هغه طرف ته دی، تاته دا کنیت دَ '' ابو الحکم '' ولې درکړې شوې دې؟ هغه عرض اوکړو: بې شکه زما قوم چه کله په څه څیز کښې اختلاف کوی نو ماته راځی زهٔ دَدوی په مابین کښې فیصله کووم او بیا دواړه راضی کیږی - نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل دا خو ډیره ښهٔ خبره ده - ستا څوې څوک دې، ما اووې: شریح، مسلم، او عبد الله - حضور ﷺ پوښتنه اوکړه په دوی کښې مشر څوک دې ما اووې شریح - حضور ﷺ اوفرمائیل پس تهٔ ابو شریح ئې - امام ابوداود رحمه الله فرمائی دا شریح هم هغه دې کوم چه دَ قلعهٔ تُستر زنځیر مات کړو او په هغې کښې داخل شوې وو، او ماته دا خبره رارسیدلې ده چه هغه دَ تُستر دروازه ماته کړې وه او په سرنګ کښې هغې ته داخل شوې وو -

**قوله:**﴿أَنَّهُ لَمَّا وَفَدَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم- مَعَ قَوْمِهِ سَمِعَهُمْ يَكْنُونَهُ بِأَبِى الْحَكَمِ الخ﴾

شریح بن هانی د خپل پلار هانی بن یزید نه روایت کوی چه کله هغه د خپل قوم سره وفد جوړیدو باندې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلل نو رسول الله ﷺ اوکتل چه خلقو هغه ته ابوالحکم وئیلو نو هغه ئې راطلب کړو او وې فرمائیل: إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَكَمُ وَإِلَيْهِ الْحُكْمُ چه حکم خو د الله پاک نوم دې او حکم په اصل کښې د هغه صفت دې، ستا کنیت ابوالحکم ولې دې؟ نو هغوی عرض اوکړو چه خبره دا ده چه کله زما قوم په څه خبره کښې اختلاف کوی نو هغوی ماته راځی نو کومه فیصله چه زه د هغوی مینځ کښې اوکړم نو په هغې باندې دواړه ډلې راضی شی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دا کار خو ډیر ښه دې (خو کنیت بیا هم دا نه دی کیدل پکار) بیا رسول الله ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو چه ستا څومره ځامن دی نو هغه اووې شریح، مسلم او عبدالله (درې ځامن دی) رسول الله ﷺ تپوس اوکړو په هغوی کښې مشر کوم یو دې؟ ما عرض اوکړو چه شریح، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: فَأَنْتَ أَبُو شُرَيْحٍ، یعنی د مشر څوی په نوم باندې هغوی زما کنیت کیخودلو.

## (د شریح نه څوک مراد دې؟)

د شریح په نوم باندې ډیر سړی دی په رجال حدیث کښې او دا چه د چا ذکر شروع دې دا خو شریح بن هانی دې د هغوی په باره کښې لیکلې دی په تقریب کښې محضرم ثقة، قتل مع ابن ابی بکرة بسجستان ....یو شریح بن النعمان الکوفی دې، یو قاضی شریح دې هغه شریح بن الحارث الکوفی دې محضرم ثقة وقیل له صحبة.

[٤٩٥٦](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: "مَا اسْمُكَ، قَالَ: حَزْنٌ، قَالَ: أَنْتَ سَهْلٌ، قَالَ: لَا، السَّهْلُ يُوطَأُ وَيُمْتَهَنُ"، قَالَ سَعِيدٌ: فَظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُصِيبُنَا بَعْدَهُ حُزُونَةٌ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَغَيَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

(١): صحيح البخاري/الأداب ١٠٧ (٦١٩٠)، ١٠٨ (٦١٩٣)، (تحفة الأشراف: ٣٤٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٣٣) (صحيح)

وَسَلَّمَ اسْمَ الْعَاصِ، وَعَزِيزٍ، وَعَتَلَةَ، وَشَيْطَانٍ، وَالْحَكَمِ، وَغُرَابٍ، وَحُبَابٍ، وَشِهَابٍ، فَسَمَّاهُ: هِشَامًا، وَسَمَّى حَرْبًا: سَلْمًا، وَسَمَّى الْمُضْطَجِعَ: الْمُنْبَعِثَ، وَأَرْضًا تُسَمَّى عَفِرَةَ سَمَّاهَا: خَضِرَةَ، وَشَعْبَ الضَّلَالَةِ سَمَّاهُ: شَعْبَ الْهُدَى، وَبَنُو الزِّنْيَةِ سَمَّاهُمْ: بَنِي الرِّشْدَةِ، وَسَمَّى بَنِي مُغْوِيَةَ: بَنِي رِشْدَةَ، قَالَ أبوداود: تَرَكْتُ أَسَانِيدَهَا لِلِاخْتِصَارِ.

حضرت سعيد بن المسيب د خپل پلار او هغه د خپل نيکۀ (حزن) نه روايت کوی چه نبی کريم ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو ستا څه نوم دې؟ هغه اووې زما نوم حزن دې (بمعنی سخت او دشوار ګزار زمکه) حضور ﷺ اوفرمائيل ته سهل ئې - (بمعنیٰ نرم او آسان) هغه اووې نه، سهل خو پائمال کولې او حقير کولې شی - سعيد وائی ماته يقين راغې چه مونږه ته ددې نه پس څه سختی او غم لاحق کيدونکې ده - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه نبی کريم ﷺ عاص، عزيز، عَتَله، شيطان، حَکَم، غراب، حُباب او شهاب نومونه بدل کړې دی - او د شهاب نوم ئې هشام ايخودې دې او د حرب ئې سلم، د مضطجع ئې منبعث - د يو علاقې نوم عفره ئې بدل کړو او خضره ئې کړو - د شعب الضلاله ئې شعب الهدیٰ د بنو الزنيه ئې بنو الرشده، او د بنو مغويه ئې بنو رشده کړو - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه ما ددې سندونه د اختصار په عرض سره پريخودې دی.

**قوله:** ﴿ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ لَهُ « مَا اسْمُكَ ». قَالَ حَزْنٌ. قَالَ « أَنْتَ سَهْلٌ » قَالَ لاَ السَّهْلُ يُوطَأُ وَيُمْتَهَنُ ﴾

د سعيد بن المسيب پلار د خپل پلار نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ د هغه نه تپوس اوکړو چه ستا څه نوم دې نو هغوی اووې حزن، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل ته سهل ئې، يعنی نوم دې بدل کړه، د حزن په ځائې باندې سهل کيږده، هغوی اووې دا نوم زما خوښ نه دې، سهل ځيز خو د خپو لاندې کولې شی، خلق په هغې باندې ګرځی او ذليله کوی ئې، د هغوی نمسی سعيد فرمائی، چه کله ما دا واقعه واوريده نو هم هغه وخت ماته اندازه اوشوه چه چونکه زما نيکه د رسول الله ﷺ تجويز کړې نوم اختيار نه کړو بلکه هغه ئې ناخوښه کړو نو دهغې د وجې نه دهغه په نسل کښې حزونت او تشدد اوسختی راروانه ده.

﴿قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَغَيَّرَ النَّبِيُّ –صلى الله عليه وسلم– اسْمَ الْعَاصِ وَعَزِيزٍ وَعَتَلَةَ وَشَيْطَانٍ وَالْحَكَمِ وَغُرَابٍ وَحُبَابٍ وَشِهَابٍ فَسَمَّاهُ هِشَامًا وَسَمَّى حَرْبًا سَلْمًا وَسَمَّى الْمُضْطَجِعَ الْمُنْبَعِثَ وَأَرْضًا تُسَمَّى عَفِرَةَ سَمَّاهَا خَضِرَةَ وَشَعْبَ الضَّلاَلَةِ سَمَّاهُ شِعْبَ الْهُدَى وَبَنُو الزِّنْيَةِ سَمَّاهُمْ بَنِي الرِّشْدَةِ وَسَمَّى بَنِي مُغْوِيَةَ بَنِي رِشْدَةَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ تَرَكْتُ أَسَانِيدَهَا لِلاِخْتِصَارِ﴾

دا ټول هغه نومونه دی چه په هغې کښې رسول الله ﷺ تغير فرمائيلو سره دويم نوم تجويز فرمائيلې دې او د هر يو سند مصنف رحمه الله سره موجود وو، مصنف رحمه الله خپله فرمائی چه ما د هغې اسانيد اختصارا ترک کړل چونکه دا د کتاب آخره ده کوم چه په مدرسه کښې د کال په آخره کښې لوستلې شی په دې وجه زه طالبانو ته وايم چه څنګه زمونږ د کتاب په ختمولو کښې تندی وی هم دغه شان مصنف رحمه الله هم تندی کوی د هغوی هم تصنيف پوره کيږی.

په کتاب النکاح کښې تير شوې دی چه ولد الزنا ته به ولد زنيه وئيلې ، او د دې بالمقابل ثابت النسب ته ولد رشده وئيلې شی.

[٤٩٥٧]() حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ، حَدَّثَنَا أَبُو عَقِيلٍ، حَدَّثَنَا مُجَالِدُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ الشَّعْبِيِّ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: "لَقِيتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَ: مَنْ أَنْتَ؟، قُلْتُ: مَسْرُوقُ بْنُ الْأَجْدَعِ، فَقَالَ عُمَرُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: الْأَجْدَعُ شَيْطَانٌ".

د حضرت مسروق نه روایت دې چه زهٔ د حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه سره میلاؤ شوم نو هغه تپوس اوکړو : ته څوک ئې؟ ما ورته اووې چه مسروق بن اجدع ـ نو عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ اوریدلي دی هغه فرمائیل اجدع شیطان دې ـ"

**قوله:** ﴿عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ لَقِيتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَقَالَ مَنْ أَنْتَ قُلْتُ مَسْرُوقُ بْنُ الأَجْدَعِ فَقَالَ عُمَرُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَقُولُ « الأَجْدَعُ شَيْطَانٌ »﴾

دمسروق رحمه الله نه روایت دې چه یوه ورځ عمر بن الخطاب رضی الله عنه زه اولیدم او ما نه ئې تپوس اوکړو چه ته څوک ئې؟ ما اووې مسروق بن الاجدع نو په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه اجدع د شیطان نوم دې ........حافظ په اصابة کښې د مسروق د پلار اجدع په ترجمه کښې لیکلي دی : انه شاعر جاهلی اسلامی او بیا پکښې وړاندې دی چه یو ځل د عمر رضی الله عنه په خدمت کښې راغلي وو، او دا د مسروق بن الاجدع پلار دې، نو عمر رضی الله عنه د هغه نوم بدلولو سره عبدالرحمن کیخودلو، د مسروق په باره کښې په تقریب کښې لیکی : ثقة فقیه عابد مخضرم، د مسروق په نوم نور هم رجال دی : مسروق بن اوس، مسروق ابن المرزبان، او په معارف السنن ج۱/ص۱۰۸ کښې دی : مسروق هو ابن عبدالرحمن الاجدع، سمی مسروق لانه سرق فی صغره، توفی ۶۳ھ یعنی هغوی ته مسروق په دې وجه وائی چه هغه لره په وړوکوالی کښې یو غل غلا کړې وو.

[٤٩٥٨]() حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا مَنْصُورُ بْنُ الْمُعْتَمِرِ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ رَبِيعِ بْنِ عُمَيْلَةَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُسَمِّيَنَّ غُلَامَكَ يَسَارًا، وَلَا رَبَاحًا، وَلَا نَجِيحًا، وَلَا أَفْلَحَ فَإِنَّكَ تَقُولُ: أَثَمَّ هُوَ؟، فَيَقُولُ: لَا، إِنَّمَا هُنَّ أَرْبَعٌ فَلَا تَزِيدَنَّ عَلَيَّ".

حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : چه د خپل بچي یا د غلام نوم [ یسار ] " مبارک " " آسان " [ رباح ] " نفع آور " [نجیح ] " کامیاب " [ افلح] " کامیاب " هرګز مهٔ ږدئ ـ ځکه چه تاسو به پوښتنه کوئ چه هغه دلته کښې شته؟ نو جواب به میلاویږی نهٔ ـ"

**قوله:** ﴿ لاَ تُسَمِّيَنَّ غُلاَمَكَ يَسَارًا وَلاَ رَبَاحًا وَلاَ نَجِيحًا وَلاَ أَفْلَحَ ﴾ څنګه چه د بدو نومونو نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلي ده هم دغه شان د بعض ښه قسم نومونو نه هم د یو بل مصلحت د وجې نه منع فرمائیلي ده لکه رباح، یسار وغیره پورته ذکر کړې شوې نومونه، او د دې مصلحت خپله رسول الله ﷺ بیان اوفرمائیلو چه په دې نومونو کښې د نیک فالئ په بعض صورتونو کښې نفی کیږی، مثلا چا تپوس اوکړو چه په کور کښې رباح شته یا یسار شته، نو که هغه

[1]: سنن ابن ماجه/الأدب ۳۱ (۳۷۳۱)، (تحفة الأشراف: ۱۰٦٤۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۱/۱) (ضعيف)
[2]: صحيح مسلم/الأداب ۲ (۲۱۳٦)، سنن الترمذي/الأدب ٦٥ (۲۸۳٦)، سنن ابن ماجه/الأدب ۳۱ (۳۷۳۰)، (تحفة الأشراف: ٤٦۱۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷/٥، ۱۰، ۱۲، ۲۱)، سنن الدارمي/الاستئذان ٦۱ (۲۷۳۸) (صحيح)

په کور کښې نه وو نو هم دا جواب به ورته ملاویږی چه نشته چه په هغې کښې د صورة یسر او ربح نفی ګنړلي شي.

**قوله:** ﴿ إِنَّمَا هُنَّ أَرْبَعٌ فَلَا تَزِيدَنَّ عَلَيَّ ﴾ سمره رضي الله عنه راوی د حدیث خپل شاګرد ته فرمائی چه ګوره په دې روایت کښې ما تاته صرف څلور نومونه ذکر کړی دی د خپل طرف نه په دې کښې د بل نوم اضافه اونکړې.

[٤٩٥٩]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ الرُّكَيْنَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَمُرَةَ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُسَمِّيَ رَقِيقَنَا أَرْبَعَةَ أَسْمَاءٍ: أَفْلَحَ، وَيَسَارًا، وَنَافِعًا، وَرَبَاحًا".

حضرت سمره رضي الله عنه بیان کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلي ده ددې خبرې نه چه مونږه د خپلو غلامانو دا نومونه کیږدو - افلح، یسار، نافع، او رباح (نفع والا -)

[٤٩٦٠]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ عِشْتُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ أَنْهَى أُمَّتِي أَنْ يُسَمُّوا نَافِعًا، وَأَفْلَحَ، وَبَرَكَةَ"، قَالَ الْأَعْمَشُ: وَلَا أَدْرِي ذَكَرَ نَافِعًا أَمْ لَا، فَإِنَّ الرَّجُلَ يَقُولُ: إِذَا جَاءَ أَثَمَّ بَرَكَةُ؟، فَيَقُولُونَ: لَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ لَمْ يَذْكُرْ بَرَكَةَ.

د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: که الله اغوستنه او زۀ ژوندې پاتې شوم نو زۀ به خپل امت لره منع کووم ددې نه چه هغوی نافع، افلح او برکت نوم کیږدی -" اعمش فرمائی ماته معلومه نۀ ده چه شیخ (ابوسفیان) دَ نافع ذکر کړې دې یا نۀ دې کړې - په اصل کښې سړې چه کله راځی او تپوس کوی چه آیا برکت شته دې؟ نو جواب به میلاویږی نۀ -امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه ابو زبیر په واسطه دَ حضرت جابر رضي الله عنه سره دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه ددې حدیث په مثل روایت کړې دې مګرپه دې کښې دَ برکت نوم نشته دې-

[٤٩٦١]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَخْنَعُ: اسْمٍ عِنْدَ اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ تَسَمَّى مَلِكَ الْأَمْلَاكِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: أَخْنَى اسْمٍ.

حضرت ابو هریره رضي الله عنه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل کوی، چه حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: چه دَ قیامت په ورځ باندې به دَ ټولو نه زیات بد نوم دَ هغه چا وی چه هغه خپل نوم ملک الاملاک (شهنشاه، مهاراج) ایخودې وی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه شعیب بن ابو همزه په واسطه دَ ابو الزناد دَ هغه په سند سره دا روایت بیان کړې دې نو په هغې کښې دَ (اخنع اسم په ځائې) أخنى اسم (مبغوض ترین نوم) وئیلي دی-

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « أَخْنَعُ اسْمٍ عِنْدَ اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ تَسَمَّى بِمَلِكِ الْأَمْلَاكِ ﴾

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤٦١٢) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٣٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٨/٣) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الأدب ١١٤ (٦٢٠٦)، صحيح مسلم/الآداب ٤ (٢١٤٣)، سنن الترمذي/الأدب ٦٥ (٢٨٣٧)، (تحفة الأشراف: ١٣٦٧٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٤/٢) (صحيح)

رسول اللهﷺ فرمائی چه د قیامت په ورځ باندې به د الله پاک په نزد د ټولو نه زیات غلط نوم د هغه سړی وی چه د هغه نوم ملک املاک وی.دا روایت په صحیح بخاری کښې په صفحه ۹۱۶ باندې هم شته او په هغې کښې دا اضافه ده : قال سفیان یقول غیره تفسیره : شاهان شاه.(شهنشاه)

## بَابٌ فِي الأَلْقَابِ

### باب: ٦٣ - په بدو القابو سره د رابللو بیان

[٤٩٦٢](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ دَاوُدَ، عَنْ عَامِرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو جَبِيرَةَ بْنُ الضَّحَّاكِ، قَالَ: "فِينَا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ فِي بَنِي سَلِمَةَ: وَلا تَنَابَزُوا بِالأَلْقَابِ بِئْسَ الاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الإِيمَانِ سورة الحجرات آية ‏"، قَالَ: قَدِمَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَيْسَ مِنَّا رَجُلٌ إِلَّا وَلَهُ اسْمَانِ أَوْ ثَلاثَةٌ، فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: يَا فُلانُ، فَيَقُولُونَ مَهْ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ إِنَّهُ يَغْضَبُ مِنْ هَذَا الِاسْمِ، فَأُنْزِلَتْ هَذِهِ الآيَةَ: وَلا تَنَابَزُوا بِالأَلْقَابِ سورة الحجرات آية ‏".

حضرت ابو جبیره بن ضحاک بیان کوی چه دا آیت کریمه :{ وَ لَا تَنَابَزُوْا بِالْأَلْقَابِ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوْقُ بَعْدَ الْإِيمَانِ : [ الحجرات : ۱۱ ] } په بدو بدو نومونو او القابو سره آواز مۀ کوئ،د ایمان راوړلو نه ورستو د فسق نوم ډیر بد څیز دې.'' دا زمونږه د بنو سلمه په باره کښې نازل شوې دې - هغوی بیان کوی چه رسول الله په مونږ کښې تشریف راوړو نو په مونږه کښې یو کس داسې نۀ وو چه د هغه به دوه یا درې نومونه نۀ وو - نو رسول اللهﷺ چه به یو کس لره رابللو چه اې فلان ! نو خلقو به وئیل اې د الله رسول مۀ بې شکه دا سړې په دې نوم سره غصه کیږی پس چنانچه آیت { ولا تنابزوا بالالقاب ... } نازل شو -

**﴿ حَدَّثَنِي أَبُو جُبَيْرَةَ بْنُ الضَّحَّاكِ قَالَ فِينَا نَزَلَتْ هَذِهِ الآيَةُ فِي بَنِي سَلِمَةَ (وَلاَ تَنَابَزُوا بِالأَلْقَابِ بِئْسَ الاِسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ الإِيمَانِ)﴾**

ابوجبیره رحمه الله فرمائی چه زمونږ یعنی د بنو سلمه په باره کښې دا آیت نازل شوې دې چه د هغې شان نزول دا دې چه کله رسول اللهﷺ هجرت فرمائیلو سره مدینې طیبې ته تشریف راوړلو نو زمونږ په قبیله کښې د هر سړی دوه دوه او درې درې نومونه وو نو بعض وخت به داسې اوشوه چه په هغوی کښې یعنی بنو سلمه کښې به چا په هغه نومونو سره آواز ورکړو چه اې فلانیه! نو بعض خلقو رسول اللهﷺ ته عرض اوکړو یا رسول اللهﷺ صبر اوکړئ هغه په دې نوم باندې مه رابلئ ځکه چه هغه خفه کیږی په دې نوم سره، نو په دې باندې دا آیت کریمه نازل شو چه د خپل ځان دپاره بد بد لقبونه مه تجویز کوئ.

تنابز د نبز نه ماخوذ دې، نبز په وزن د لقب، د لقب په معنی دې، خو د نبز استعمال په بد لقب کښې کیږی لقب هغه نوم ته وائی کوم چه په معنی وصفی باندې دال وی که هغه وصف حسن وی او که قبیح.

(١): سنن الترمذي/ تفسير القرآن ٤٩ (٣٢٦٨)، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٥ (٣٧٤١)، (تحفة الأشراف: ١١٨٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٩/٤، ٢٦٠، ٣٨٠/٥) (صحيح)

## بَاب فِيمَنْ يَتَكَنَّى بِأَبِي عِيسَى

### بابـ: ٦٤ - ابو عيسى كنيت ايخودل څنګه دى؟

[٤٩٦٣]([1]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ: "أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ضَرَبَ ابْنًا لَهُ تَكَنَّى: أَبَا عِيسَى، وَأَنَّ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ تَكَنَّى بِأَبِي عِيسَى، فَقَالَ لَهُ عُمَرُ" أَمَا يَكْفِيكَ أَنْ تُكَنَّى بِأَبِي عَبْدِ اللَّهِ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَنَّانِي، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ، وَمَا تَأَخَّرَ، وَإِنَّا فِي جَلْجَتِنَا، فَلَمْ يَزَلْ يُكْنَى بِأَبِي عَبْدِ اللَّهِ حَتَّى هَلَكَ".

حضرت زيد بن اسلم د خپل پلار نه روايت کوي چه حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه خپل هغه ځوی ته کوم چه خپل کنيت ابو عيسىٰ ايخودې وو سزا ورکړه، حضرت مغيره بن شعبه خپل کنيت ابو عيسىٰ کيخودو پس حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته اوفرمائيل آيا تاسو لره دا کافي نۀ دی چه خپل کنيت ابو عبد الله کيږدئ - هغوی اوښودله چه رسول الله ﷺ زما دا کنيت ايخودې وو نو حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل : دَ رسول الله ﷺ مخکينی او وروستونی ګناهونه الله پاک معاف کړې دی او مونږه خو دَ نورو خلقو په شان يو - (په مونږ کښې هيڅ يو کس دَ بل نه اعلیٰ نۀ دې) چنانچه حضرت مغيره ته به تر دَ وفاته پورې ابو عبد الله وئيلې شو -.

**قوله:** ﴿ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضى الله عنه ضَرَبَ ابْنًا لَهُ تَكَنَّى أَبَا عِيسَى وَأَنَّ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ تَكَنَّى بِأَبِي عِيسَى فَقَالَ لَهُ عُمَرُ أَمَا يَكْفِيكَ أَنْ تُكَنَّى بِأَبِي عَبْدِ اللَّهِ الخ ﴾

سيدنا عمر رضي الله عنه خپل يو ځوی ته وهل ورکړل چه هغه خپل کنيت ابوعيسى تجويز کړې وو، او هم دغه شان د مغيره بن شعبه رضي الله عنه کنيت هم ابو عيسى وو نو هغوی ته عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه آيا ستاسو دپاره دا کافي نه ده چه خپل کنيت ابوعبدالله کيږدئ نو هغوی په دې باندې عرض اوکړو چه دا کنيت خو ماته رسول الله ﷺ کيخودلې وو، په دې باندې عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه د رسول الله ﷺ خبره څۀ له کوې د هغوی خو مخکښې روستو ټول ګناهونه بخښلې شوې دی، ﴿ وَإِنَّا فِي جَلْجَلَتِنَا ﴾ او وې فرمائيل چه مونږ خو په حباب الماء کښې يو يعنى د اوبو په بوربوړکئ کښې (هغه ډيره نازکه او تنګه وی) يعنى مونږ له احتياط کول پکار دی او د مشرانو سره تلل نه دی پکار، په دې باندې هغوی خپل کنيت بدل کړو، پس هميشه هغوی ته تر مرګه پورې ابوعبدالله اوئيلې شو، دلته دوه نسخې دی په يو کښې هم دغه شان دی او په يو کښې دی : ﴿ فى جلجلتنا ﴾ د جلجه معنى خو پورته راغله، او جلجله وائی تحرک او اضطراب ته، يعنى او زمونږ خلقو معامله خو په حرکت او اضطراب کښې ده يعنى خوزيدل.د حضرت ګنګوهی په تقرير کښې دی چه د عمر رضي الله عنه مراد دا دې چه رسول الله ﷺ خو به بعض وخت داسې امور کوم چه به فى نفسه مکروه وو خو کله کله به ئې د جواز د بيان دپاره کول مصلحة چه څوک حرام اونه ګنړی، خو په هغه مکروه کار کښې صورت د اثم موندلې شی هغه د رسول الله ﷺ په حق کښې خو معاف دې بلکه رسول الله ﷺ ته خو په هغې باندې ثواب ملاويږی، خو د بل په حق کښې هغه فعل مکروه دې.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٤٨٧) (صحيح)

او وړاندې په دې کښې دا هم دی چه د ابوعیسی کنیت د کیخودلو کراهت په دې وجه هم دې چه په دې کښې ایهام دې د دې خبرې چه د عیسی علیه السلام پلار وو حال دا چه داسې نه ده.
او بیا وړاندې فرمائی : او کیدې شی چه امام ترمذی رحمه الله چه کوم خپل کنیت ابوعیسی کیخودلې دې نو هغه وخته پورې به هغه ته د دې د کراهت روایتونه نه وی رسیدلی او یا دا چه دا تکنی به د هغوی د طرف نه وه بلکه د هغوی د مشرانو د طرف نه به وه، او دا هم ممکنه ده چه د هغوی په ذهن کښې دا خبره وی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا کنیت د مغیره بن شعبه رضی الله عنه دپاره کیخودلې وو اګر چه عمر رضی الله عنه هغه په بیان د جواز باندې محمول کړې دې.
په دې باندې نور کلام د الکوکب الدری په مقدمه کښې ذکر شوې دې هغه دې اوکتلې شی په هغې کښې دا هم ذکر دی : ومال ابن عابدين الى الكراهة اذا قال في الخطر والاباحة ولا يسمى حكيما ولا اباالحاكم ولا اباعيسى الى اخر ما قال اهـ

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ لِابْنِ غَيْرِهِ يَا بُنَيَّ

### باب ٦٥- دَ چا بل چا بچی ته وئیل چه "اې زما ځویه"

یعنی د بل چا ځوی ته ﴿ یا بنی ﴾ وئیلې شی لکه عام طور چه د خلقو په محاوراتو کښې داسې وئیلې کیدې شی، مصنف رحمه الله د حدیث الباب نه د دې جواز ثابت کړې دې.

[٤٩٦٤](١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوبٍ، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي عُثْمَانَ وَسَمَّاهُ ابْنُ مَحْبُوبٍ الْجَعْدَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: يَا بُنَيَّ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ مَعِينٍ يُثْنِي عَلَى مُحَمَّدِ بْنِ مَحْبُوبٍ، وَيَقُولُ: كَثِيرُ الْحَدِيثِ.

دَ حضرت انس بن مالک نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دهٔ (انس رضی الله عنه) ته آواز اوکړو اې زما ځویا ! -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه ما دَ یحیی بن معین واوریدل او هغه دَ محمد بن محبوب مدح کوله او دا ئې ښودله چه دا دَ ډیرو نه زیات صاحب حدیث وو.
سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته اوفرمائیل ﴿ یا بنی ﴾ په حاشیه د بذل کښې دی چه آیت کریمه ﴿ ادعوهم لابائهم ﴾ خو په ظاهر کښې تقاضه کوی چه ځوئې دې خپل پلار ته منسوب کړې شی نو د دې نه شبهه کیدله ابن غیر ته د ﴿ یا بنی ﴾ وئیلو په عدم جواز باندې، او هم په دې وجه باندې حافظ ابن کثیر د دې آیت کریمه په تفسیر کښې حدیث الباب ذکر کړې دې.

........

١): صحيح مسلم/الأدب ٦ (٢١٥١)، سنن الترمذي/الأدب ٦٢ (٢٨٣١)، (تحفة الأشراف: ٥١٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٣/٣) (صحيح)

# بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَتَكَنَّى بِأَبِي الْقَاسِمِ

## باب: ٦٦ - ابو القاسم كنيت ايخودل څنګه دى؟

[٤٩٦٥]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَيُّوبَ السَّخْتِيَانِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَسَمَّوْا بِاسْمِي، وَلَا تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي"، قَالَ أبو داود: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ أَبُو صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَكَذَلِكَ رِوَايَةُ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ جَابِرٍ، وَسَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ جَابِرٍ، وَسُلَيْمَانَ الْيَشْكُرِيِّ، عَنْ جَابِرٍ، وَابْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، نَحْوَهُمْ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دى: زما نوم ايخودې شئ ليكن زما په كنيت سره خپل كنيت مهٔ ږدئ، امام ابوداود رحمه الله فرمائي: چه ابوصالح د ابو هريره رضي الله عنه نه هم داسې روايت كړې دې - او ددې نه علاوه ابوسفيان، سالم بن ابوجعد، سليمان يشكرى، او ابن منكدر د حضرت جابر رضي الله عنه نه هم داسې روايت كوى او حضرت انس بن مالك رضي الله عنه نه هم مروى دې -

﴿ تَسَمَّوْا بِاسْمِي وَلاَ تَكْتَنُوا بِكُنْيَتِي ﴾ رسول الله ﷺ فرمائي چه زما په نوم باندې نوم ږدئ خو زما په كنيت باندې كنيت مه ږدئ په دې سلسله كښې مصنف رحمه الله درې ابواب قائم كړى دى، دويم باب دا دې: باب فيمن راى ان لا يجمع بينهما چه په هغې كښې مصنف رحمه الله دا حديث مرفوع ذكر كړې دې: مَنْ تَسَمَّى بِاسْمِي فَلاَ يَكْتَنِي بِكُنْيَتِي وَمَنْ تَكَنَّى بِكُنْيَتِي فَلاَ يَتَسَمَّى بِاسْمِي، يعنى ممانعت د جمع بين الاسم والكنية نه دې، كه د چا نوم محمد وى نو د هغه كنيت ابوالقاسم نه دى كيدل پكار او كه د مخكښې نه ئې نوم ابوالقاسم دې نو كنيت ورله محمد كيخودل نه دى پكار، او دريم باب دې: باب فى الرخصة فى الجمع بينهما، او په دې دريم باب كښې مصنف رحمه الله د على رضي الله عنه د ځوى محمد بن الحنفية دا حديث ذكر كړې دې چه زما والد على رضي الله عنه به فرمائيل چه ما رسول الله ﷺ ته عرض كړې وو چه كه د ستاسو نه روستو زما ځوئې پيدا شى نو آيا زه د هغه نوم ستاسو په نوم او د هغه كنيت ستاسو په كنيت كيخودلې شم؟ نو رسول الله ﷺ ماته د دې اجازت راكړې وو، او بل روايت په دې كښې دا دې چه يو زنانه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې حاضره شوه او عرض ئې اوكړو چه يا رسول الله ﷺ زما ځوئې شوې دې نو ما د هغه نوم محمد كيخودلې دې او كنيت ئې ابوالقاسم دې، خو ماته بعض خلقو اووې چا دا خبره د هغوى نه ده خوښه، نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: مَا الَّذِى أَحَلَّ اسْمِي وَحَرَّمَ كُنْيَتِي أَوْ مَا الَّذِى حَرَّمَ كُنْيَتِي وَأَحَلَّ اسْمِي ... يعنى څوک دې چه زما په نوم باندې نوم كيخودل ئې جائز كړو او كنيت ئې ناجائز كړو، مطلب دا چه دواړه جائز دى.

(): صحيح البخاري/العلم ٣٨ (١١٠)، المناقب ٢٠ (٣٥٣٩)، الأدب ١٠٦ (٦١٨٨)، صحيح مسلم/الأداب ١ (٢١٣٤)، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٣ (٣٧٣٥)، (تحفة الأشراف: ١٤٤٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٨، ٢٦٠، ٢٧٠)، سنن الدارمي/الاستئذان ٥٨ (٢٧٣٥) (صحيح)

### په مسئلة الابواب کښې مذاهب علماء :

په دې مسئله کښې اختلاف روایات چونکه وو هم په دې وجه مصنف رحمه الله په دې کښې ډیر ابواب قائم کړل، په دې کښې مذاهب علماء هم مختلف دی، پس په دې کښې د علماء کرامو پنځه اقوال مشهور دی. ۱: یجوز التسمیة مطلقا ولا یجوز التکنی، وهو مذهب الشافعی والظاهریة، یعنی محمد نوم کیخودل جائز او ابو القاسم کنیت کیخودل جائز نه دی. ۲: لا یجوز التکنی لمن اسمه محمد ای النهی عن الجمع لا عن نفس التکنی، یعنی نوم او کنیت جمع کول منع دی که هر یو جدا جدا وی نو جائز ده. ۳: کلاهما ممنوعان مطلقا یعنی دواړه ناجائز دی. ٤: النهی مطلق فی حیاته وبعد مماته النهی لمن اسمه محمد واحمد یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې خو منع مطلقا ده او د وفات نه پس ممانعت د جمع کولو نه دې. : یجوز الکل الان ای بعد وفاته صلی الله علیه وسلم وهو مذهب الجمهور، یعنی د منع د روایاتو تعلق د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حیات سره وو، د وفات نه پس پکښې ګناه نشته، او په حاشیه د بذل کښې دی وبسط الطحاوی ۲۹۵/۲ الکلام علی المسئلة ورجح منع التکنی مطلقا سوآء اسمه محمد او لا وفی الشامی ۲۹٦/٥ جوازهما معا والنهی منسوخ.

## بَابُ مَنْ رَأَى أَنْ لَا يُجْمَعَ بَيْنَهُمَا

### باب: ٦٧ - دَ هغه حضراتو دلیل کوم چه (دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم) دَ نوم او دَ کنیت په مابین کښې جمع کول جائز نهٔ ګڼړی

[٤٩٦٦](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ تَسَمَّى بِاسْمِي، فَلَا يَتَكَنَّى بِكُنْيَتِي، وَمَنْ تَكَنَّى بِكُنْيَتِي، فَلَا يَتَسَمَّى بِاسْمِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَى بِهَذَا الْمَعْنَى ابْنُ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَرُوِيَ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ مُخْتَلِفًا عَلَى الرِّوَايَتَيْنِ، وَكَذَلِكَ رِوَايَةُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عَمْرَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، اخْتُلِفَ فِيهِ رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، وَابْنُ جُرَيْجٍ عَلَى مَا قَالَ أَبُو الزُّبَيْرِ، وَرَوَاهُ مَعْقِلُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَلَى مَا قَالَ ابْنُ سِيرِينَ، وَاخْتُلِفَ فِيهِ عَلَى مُوسَى بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَيْضًا عَلَى الْقَوْلَيْنِ اخْتَلَفَ فِيهِ حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ.

حضرت ابو زبیر د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : کوم کس چه زما نوم کیږدی هغه دې زما کنیت نهٔ اختیاره وی او چا چه زما کنیت ایخودې وی هغه دې زما نوم نهٔ اختیاره وی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی : چه ابن عجلان په واسطه دَ خپل پلار دَ حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه هم ددې روایت هم معنیٰ روایت کړې دې - (دَ نوم یا دَ کنیت نه یو اختیارول جائز دی دَ دواړو جمع کول ناجائز دی -) او دَ ابوزرعه نه په واسطه دَ حضرت ابو هریره رضی الله عنه سره دواړه روایتونه مروی دی - (جمع کول درست نهٔ دی، او دَ تیر شوی روایت په مثل هم چه صرف کنیت جائز نهٔ دې)، دَ عبد الرحمن بن ابو عمره روایت کوم چه دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه دې په هغې کښې هم اختلاف دې، ثوری او ابو جریج دَ ابو زبیر په مثل روایت کړې دې (چه جمع کول درست نهٔ دی)، او معقل بن عبید الله د ابن سیرین په شان

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٩٨٣، ١٣٦١٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٣/٣) (منكر)

روایت کړې دي (چه نوم ایخودل جائز او کنیت جائز نۀ دې)، دَ موسی بن یسار روایت کوم چه په واسطه دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه سره دې په هغې کښې هم دواړه قوله دی - په دې کښې حماد بن خالد او ابن ابوفدیک اختلاف کړې دې - تقدم الکلام علیه انفا.

## بَابٌ فِي الرُّخْصَةِ فِي الْجَمْعِ بَيْنَهُمَا

### بابـ ٦٨ - (دَ نبی کریم ﷺ) دَ نوم او کنیت دَ جمع کولو دَ رخصت بیان

[٤٩٦٧] (١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ، وَأَبُو بَكْرٍ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ فِطْرٍ، عَنْ مُنْذِرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ رَحِمَهُ اللَّهُ "قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنْ وُلِدَ لِي مِنْ بَعْدِكَ وَلَدٌ أُسَمِّيهِ بِاسْمِكَ، وَأُكَنِّيهِ بِكُنْيَتِكَ، قَالَ: نَعَمْ"، وَلَمْ يَقُلْ أَبُو بَكْرٍ، قُلْتُ: قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ عليه السلام لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

حضرت محمد ابن حنفیه بیان کوی چه حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه ما دَ رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوکړه اې دَ الله رسوله ! که ستاسو نه وروستو زما بچې پیدا شو، نو آیا زۀ دَ هغه نوم او کنیت ستاسو په نوم او کنیت باندې ایخودې شم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل او -" (دَ حدیث دَ راوی) ابو بکر بن شیبه په الفاظو کښې دَ [ قُلْتُ ] لفظ نشته دې - بلکې داسې دې [ قال علیٌ للنبی ﷺ ] حضرت علی رضی الله عنه دَ نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو -

[٤٩٦٨] (٢) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِمْرَانَ الْحَجَبِيُّ، عَنْ جَدَّتِهِ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي قَدْ وَلَدْتُ غُلَامًا، فَسَمَّيْتُهُ مُحَمَّدًا، وَكَنَّيْتُهُ: أَبَا الْقَاسِمِ، فَذُكِرَ لِي أَنَّكَ تَكْرَهُ ذَلِكَ، فَقَالَ: مَا الَّذِي أَحَلَّ اسْمِي، وَحَرَّمَ كُنْيَتِي، أَوْ مَا الَّذِي حَرَّمَ كُنْيَتِي، وَأَحَلَّ اسْمِي".

دَ ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه یوه ښځه نبی کریم ﷺ ته راغله اووې وئیل اې دَ الله رسوله ! زما بچې شوې دې او ما دَ هغه نوم محمد او کنیت ابو القاسم ایخودې دې او ماته ښودلې شوې ده چه تاسو دا ناخوښه ګڼئ - حضور ﷺ اوفرمائیل څه وجه ده چه زما نوم حلال دې او کنیت حرام - یائې اوفرمائیل څه څیز زما کنیت حرام ګرځولې دې او نوم ئې جائز کړې دې؟ -" تقدم الکلام علیه ایضا.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الرَّجُلِ يَتَكَنَّى وَلَيْسَ لَهُ وَلَدٌ

### بابـ ٦٩ - دَ اولاد نۀ کیدو باوجود کنیت ایخودل

کنیت چونکه عموما په لفظ د ابو سره وی چه د هغې ظاهر تقاضه دا ده چه کنیت د هم هغه لوئې عمر والا کیدل پکار دی چه د چا اولاد وی لهذا د دې په رد کښې مصنف رحمه الله دا باب قائم کړې دې د حدیث الباب په ذریعه،

(١): سنن الترمذي/الأدب ٦٨ (٢٨٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩٥/١) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٨٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٥/٦، ٢٠٩) (ضعيف)

[٤٩٦٩]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ عَلَيْنَا، وَلِي أَخٌ صَغِيرٌ يُكْنَى: أَبَا عُمَيْرٍ، وَكَانَ لَهُ نُغَرٌ يَلْعَبُ بِهِ فَمَاتَ، فَدَخَلَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ، فَرَآهُ حَزِينًا، فَقَالَ: مَا شَأْنُهُ؟ قَالُوا: مَاتَ نُغَرُهُ، فَقَالَ: يَا أَبَا عُمَيْرٍ، مَا فَعَلَ النُّغَيْرُ".

دَ حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به مونږ ته تشریف راوړلو او زما وړوکې رور چه دَ هغه کنیت ابو عمیر وو دَ هغه یوه مرغۍ وه چه دَ هغې سره به ئې لوبې کوولې -(دَغې مرغۍ ته به ئې په عربۍ کښې نُغیر وئیلو) نو هغه مړه شوه - یو ځل نبی کریم ﷺ هغه ته ورغې او هغه لره ئې غمجن بیا موندو نو تپوس ئې اوکړو دۀ لره څه شوې دی؟ مونږه ورته اوښودله چه ددۀ مرغۍ نُغیر مړه شوې ده نو حضور ﷺ هغه ته اوفرمائیل اې ابو عمیر ! څه اوکړل ستا نُغیر؟''

چه د هغې مضمون دادې : سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ به زمونږ کور ته تشریف راوړلو او زما یو وړوکې رور وو چه د هغه کنیت ابوعمیر وو چه هغه سره یو مرغۍ وه چه هغې سره به ئې لوبې کولې، یو ورځ هغه مرغۍ مړه شوه، رسول الله ﷺ د عادت مطابق مونږ کره تشریف راوړلو نو زما دا رور ئې خفه اولیدو نو رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه دې ولې خفه دې نو عرض اوکړې شو چه د دۀ هغه مرغۍ مړه شوه نو په دې باندې رسول الله ﷺ هغه ماشوم ته متوجه کیدو سره د تفریح په طور خطاب اوکړو ﴿ابا عمیر ما فعل النعیر﴾ د مصنف رحمه الله غرض حاصل شو چه کنیت د وړوکی ماشوم هم کیدې شی.

ددې حدیث نه علماء کرامو ډیرمسائل مستنبط کړی دی،حضرت په بذل کښې پنځه شپږ فوائد د خطابی نه د دې په شرح کښې نقل کړی دی او په حاشیه د بذل کښې دی وذکر الحافظ فی الحدیث فوائد اکثر من ستین (فتح ۱۰/۳۳۲) د دې حدیث شرح او د هغې د فوائدو په تفصیل کښې مستقل یو جزء هم تصنیف کړې شوې دې چه د هغې مصنف په ابن القاص سره معروف دې فقیه ابوالعباس احمد ابن ابی محمد الطبری الشافعی المعروف بابن القاص المتوفی ۳۳۵ هجری، حافظ هم په فتح الباری کښې د ابن القاص ذکر کړې فوائد اخستلې دی او بیا ئې د هغې نه زیاتی هم ذکر کړې دی، د هغې نه یو بحث دا هم دې چه د دې ماشوم نوم څه وو قیل اسمه حفص وقیل اسمه عبدالله، او دا هم چه د دې مرغۍ نوم کوم چه په دې حدیث الباب کښې نغر ذکر دې د دې مرغۍ تعریف د دې صورت او شکل او دا چه عوام د دې نه په نغری سره تعبیر کوی، د مدینې طیبې یو مشهوره مرغۍ ده کومه چه هلته ساتلې شی، او صاحب قاموس د دې ترجمه په بلبل سره کړې ده.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۷۸)، وقد أخرجه: خ /الأدب ۸۱ (۶۱۲۹)، صحیح مسلم/الأداب ۵ (۲۱۵۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۱۳۱ (۳۳۳)، سنن ابن ماجه/الأدب ۲٤ (۳۷۲۰)، ۳٤، مسند احمد (۳/۱۱۵، ۱۱۹، ۱۷۱، ۱۹۰، ۲۰۱، ۲۲۳، ۲۷۸) (صحیح)

# بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تُكْنَى

## باب: ۷۰ - ښځه که کنیت اختیار کړی نو جائز دی

[۴۹۷۰](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، كُلُّ صَوَاحِبِي لَهُنَّ كُنًى، قَالَ: فَاكْتَنِي بِابْنِكِ عَبْدِ اللَّهِ"، يَعْنِي ابْنَ أُخْتِهَا، قَالَ مُسَدَّدٌ: عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، قَالَ: فَكَانَتْ تُكَنَّى بِأُمِّ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَكَذَا قَالَ قُرَّانُ بْنُ تَمَّامٍ، وَمَعْمَرٌ جَمِيعًا، عَنْ هِشَامٍ نَحْوَهُ، وَرَوَاهُ أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ حَمْزَةَ، وَكَذَلِكَ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، وَمَسْلَمَةُ بْنُ قَعْنَبٍ، عَنْ هِشَامٍ، كَمَا قَالَ أَبُو أُسَامَةَ.

ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما اووې اې د الله رسوله! زما د ټولو ملګرو کنیتونه دی - حضور ﷺ اوفرمائیل: "ته د خپل ځوی عبد الله په نوم باندې خپل کنیت کیږده -" مقصد دا وو چه د خپل خوریی په نسبت سره - مسدد وضاحت کړې دې چه ددې نه مراد عبد الله بن زبیر دې - چنانچه هغې ام عبد الله کنیت اختیار کړو - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه قران بن تمام او ابو معمر دواړو د هشام نه هم ددې په مثل روایت کړې دې او ابو اسامه د هشام نه، هغه د عباد بن حمزه نه روایت کړې دې - او هم داسې حماد بن سلمه او مسلمه بن قعنب د هشام نه هم داسې روایت کړې دې لکه څنګه چه اسامه وئیلې دی -

په حدیث الباب کښې دی چه یو ځل عائشې رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زما څومره هم چه بنې دی د هغوی یو نه یو کنیت شته رسول الله ﷺ اوفرمائیل ته هم خپل کنیت د خپل ځوی عبدالله ابن الزبیر په نوم باندې کیږده، د ځوی نه مراد خورئې دې د هغوی د خور اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنه ځوئې، پس د هغې کنیت ام عبدالله شو.

# بَابٌ فِي الْمَعَارِيضِ

## بابـ ۷۱ - په اشارې سره (ذومعنی) خبره کول

[۴۹۷۱](۲) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ الْحَضْرَمِيُّ إِمَامُ مَسْجِدِ حِمْصَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ ضُبَارَةَ بْنِ مَالِكٍ الْحَضْرَمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ أَسِيدٍ الْحَضْرَمِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "كَبُرَتْ خِيَانَةً أَنْ تُحَدِّثَ أَخَاكَ حَدِيثًا هُوَ لَكَ بِهِ مُصَدِّقٌ، وَأَنْتَ لَهُ بِهِ كَاذِبٌ".

حضرت سفیان بن اسید حضرمی رضي الله عنه بیان کوی چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی چه هغه فرمائیل: ډیر لوې خیانت دې چه ته خپل رور (مسلمان) ته یوه خبره اوکړې چه هغه تالره ریښتونې ګڼړی او ته هغه ته دروغ وائې -

**قوله:** ﴿ كَبُرَتْ خِيَانَةً أَنْ تُحَدِّثَ أَخَاكَ حَدِيثًا هُوَ لَكَ بِهِ مُصَدِّقٌ وَأَنْتَ لَهُ بِهِ كَاذِبٌ ﴾

په کبرت خیانة کښې خیانت منصوب دې بناء بر تمیز کما فی قوله تعالی ﴿ کبرت کلمة تخرج من افواههم ﴾ یعنی څومره د لوئې خیانت خبره ده چه ته خپل رور ته داسې خبره اوکړې چه

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۶۸۷۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۷/۶، ۱۵۱، ۱۸۶، ۲۶۰) (صحیح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۴۷۵) (ضعیف)

هغه پکښې تا رښتينې ګڼړي حال دا چه ته هغه ته دروغ وائې.
دا حديث مصنف رحمه الله په معاريض باندې محمول کړې دې يعنى توريه، کلام لره د هغې د معنى نه لرې کولو سره بله معنى مراد کول چه هغې لره مخاطب او اوريدونکې محمول کوى په ظاهرى معنى باندې او متکلم خپل نيت پټ ساتى بلې معنى (د کلام نزدې معنى پريخودلو سره بعيد معنى مراد اخستل) مخاطب ته د دهوکې دپاره، هم په دې وجه په حديث کښې دې ته خيانت وئيلې شوې دې.د توريه او تعريض اجازت په بعض مواقع کښې د بل د ضرر نه د بچ کيدو دپاره شريعت ورکړې دې، او بل لره په مغالطه کښې د اچولو دپاره ممنوع دې چه هغې ته په حديث کښې لوئې خيانت وئيلې شوې دې.

## بَابُ قَوْلِ الرَّجُلِ زَعَمُوا

**باب: ۷۲ - "دَ خلقو خيال دې، ګڼړلې شي او وئيلې شي" وغيره انداز سره خبرې کول**

[۴۹۷۲](۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، قَالَ: قَالَ أَبُو مَسْعُودٍ لِأَبِي عَبْدِ اللَّهِ أَوْ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ لِأَبِي مَسْعُودٍ: "مَا سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: فِي زَعَمُوا، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "بِئْسَ مَطِيَّةُ الرَّجُلِ زَعَمُوا"، قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو عَبْدِ اللَّهِ: هَذَا حُذَيْفَةُ.

د حضرت ابو قلابه رضي الله عنه نه روايت دې چه حضرت ابو مسعود رضي الله عنه د ابو عبد الله (حضرت حذيفه رضي الله عنه) نه يا ابو عبد الله (حضرت حذيفه رضي الله عنه) دَ حضرت ابو مسعود رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه تا ددې په باره کښې څه اوريدلې دى کوم خلق چه دَ " زعموا " په انداز کښې خبرې کوى؟ (دَ خلقو خيال دې، باور کولې شى، وئيلې شى وغيره) هغوى اوفرمائيل ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دى چه هغوى فرمائيل : " زعموا " دَ سړى ډيره زياته بده سورلى ده." امام ابوداود رحمه الله فرمائى چه دَابو عبد الله نه مراد حضرت حذيفه رضي الله عنه دې.
﴿ بِئْسَ مَطِيَّةُ الرَّجُلِ زَعَمُوا ﴾ مطية چه د هغې جمع مطايا راځى په معنى د سورلئ، د زعم استعمال په قول حق او باطل و کذب دواړو کښې کيږى، او زيات تر د دې استعمال په شک او غير يقينى خبره کښ کيږى، د حديث ترجمه خو دا ده چه لفظ زعموا دا د سړى ډيره بده سورلئ ده، د بعض خلقو عادت وى د هرې اوريدلې خبرې د نقل کولو که د هغې په حقيقت کښې څه سند وى او که نه وى، او ظاهره ده چه کله يو سړې دا قسم خبره نقل کړى کومه چه داسې اوريدلې شوې وى نو هغه به دې لره هم دغه شان نقل کوى، داسې مې اوريدلې دى او خلق داسې وائى، نو ګويا دې ذکر کړې شوې سړى زعموا لره د خپل کلام سلسله او د هغې د ګاډى چلولو ذريعه او د هغې سورلئ جوړه کړې ده رسول الله ﷺ په دې باندې تنبيه فرمائى چه داسې بې سنده خبرې نه دى نقل کول پکار، پس په يو بل حديث کښې دى ﴿ كفى بالمرء كذبا ان يحدث بكل ما سمع ﴾

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۳۶٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۱۹/٤، ٤٠١/٥) (صحيح)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ فِي خُطْبَةِ "أَمَّا بَعْدُ"

### باب ۷۳ - په خطبه کښې د اما بعد استعمال

[۴۹۷۳] (¹) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ حَيَّانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَهُمْ، فَقَالَ: أَمَّا بَعْدُ".

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ مونږ ته خطبه اولوسته اووي فرمائيل: "اما بعد ! (د حمد و صلوت نه پس-")

**قوله:** ﴿ عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- خَطَبَهُمْ فَقَالَ « أَمَّا بَعْدُ » ﴾

د رسول الله ﷺ نه د لفظ "اما بعد" استعمال په خپلو خطاباتو کښې په کثرت سره په احاديثو کښې وارد دي، لهذا په خطبه کښې ددې کلمې استعمال د خطباء دپاره مسنون دی. په امابعد باندې مستقل ترجمه امام بخاری رحمه الله هم قائم کړې دې دوه ځايه په کتاب الجمعه او صلاة الکسوف کښې، شراح خو د امام بخاری غرض په ترجمة الباب سره هم هغه ذکر کړې دې کوم چه مونږ دلته پورته ليکلې دې يعنی د دې لفظ د استعمال سنيت په خطبه کښې، او حضرت شيخ په تراجم بخاری دريم جلد کښې په دې کښې يو بله نکته بيان کړې ده يعنی د لفظ امابعد د استعمال جواز د دې د عدم جواز په يو لحاظ سره شبه پيدا کيدې شی ځکه چه د تقدير د عبارت نه پس دا ليکلې شی اما بعد الحمد والصلوة او لفظ بعد د اختتام او انتهاء طرف ته مشعر دې چه د هغې نه شبه پيدا کيدې شی د حمد و صلاة د انتهاء او د انقطاع حالانکه حمد وصلوة، خو هميشه او على الدوام د اختيارولو څيز دې بلکه خپله په بعض رواياتو کښې د حمد سره دوام ذکر دې په بعض دعاګانو کښې لک ﴿لک الحمد حمدا دائما مع دوامک، ولک الحمد حمدا خالدا مع خلودک، ولک الحمد حمدا لا منتهى له ﴾ وغير ذلک من الادعية، او بيا د دې نه روستو هلته په الابواب والتراجم کښې دا هم ذکر دی، وکلمة اما بعد، يقال لها فصل الخطاب واول من تكلم بها قيل داود عليه السلام وقيل يعقوب عليه السلام وقيل يعرب بن محطان، وقيل كعب بن لوى، وقيل السحبان بن وائل، وقيل قس بن ساعدة.اه

## بَابٌ فِي الْكَرْمِ وَحِفْظِ الْمَنْطِقِ

### باب ۷۴ - د انګورو دپاره لفظ د "کرم" استعمالول او په خپلو خبرو اترو کښې د محتاط اوسيدو بيان

[۴۹۷۴] (²) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: الْكَرْمَ، فَإِنَّ الْكَرْمَ: الرَّجُلُ الْمُسْلِمُ، وَلَكِنْ قُولُوا: حَدَائِقَ الْأَعْنَابِ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه مروی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل په تاسو کښې دې څوک د انګورو دپاره لفظ د "کرم" استعمال نه کړی - بې شک کرم (د سخاوت منطوق) مسلمان

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٦٨٩)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/فضائل علي ٤ (٢٤٠٨) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٦٣٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ١٠١ (٦١٨٢)، صحيح مسلم/الألفاظ من الأدب ٢ (٢٢٤٩)، مسند احمد (٢/٢٧٢، ٤٦٤، ٤٧٦) (صحيح)

سړې دې - بلکې داسې وائې : [حدائق الاعناب ] د انګورو باغونه -

**قوله**: ﴿ لاَ يَقُولَنَّ أَحَدُكُمُ الْكَرْمَ فَإِنَّ الْكَرْمَ الرَّجُلُ الْمُسْلِمُ وَلَكِنْ قُولُوا حَدَائِقَ الأَعْنَابِ ﴾

په لفظ الكرم كښې د راء په سكون او فتحې دواړو سره منقول دې دا مصدر دې د كرم يكرم، او مبالغة صفت هم واقع كيږي د رجل عدل په شان وئيلې شى رجل كرم، وامرأة كرم، ورجلان كرم، ورجال كرم، مذكر مونث، تثنيه جمع په دې كښې ټول برابر دى، او د دې اطلاق په انګور او د هغې په اونه هم كيږي.ابن القيم فرمائى د كرم معنى ده كثرت الخير والمنافع،او عرب خلق د انګور ځيلې نه هم په كرم سره تعبير كوى د هغې د كثرت فوائد د وجې نه، او بيا هغه فوائد هغوى بيان كړې دى، امام خطابى رحمه الله فرمائى چه كرم چونكه ډير ښه نوم او ښه صفت دې عرب خلق وائى رجل كرم وقوم كرم، رجل كرم بمعنى كريم او قوم كرم اى اكرام، او د انګور د خوبيانو د وجې نه عرب په دې باندې د كرم اطلاق كوى نو رسول الله ﷺ د انګور نوم كرم كيخودلو نه منع فرمائيلې ده د دې ويرې نه چه د دې د نوم د خوبيانو او غوره والى دوجې نه خلق د دې د ښكلو رغبت اونكړى.(١) او وې فرمائيل چه د دې لفظ د استعمال زيات لائق خو مومن سړې دې اهـ او بعض شراح د دې هم تصريح كړې ده چه د عربو خلقو په ذهنونو كښې دا خبره هم د مخكښې نه ده چه د انګورى شرابو خاصيت دا دې چه په دې سره انسان كښې د كرم او سخاوت صفت پيدا كيږي، رسول الله ﷺ هم د دې د ازالې دپاره دا اوفرمائيل، زه وايم مفسرينو هم د آيت كريمه ﴿ قل فيهما اثم كبير ومنافع للناس ﴾ د لاندې د منافع خمر په بيان كښې ليكلې دى : ومن منافعها تصفية اللون وحمل البخيل على الكرم وزوال الهم وهضم الطعام الخ (الجمل) ﴿ ولكن قولوا حدائق الاعناب ﴾ يعنى د انګور باغ ته كرم مه وايئ بلكه حديقة العنب ورته وايئ.

## بَابٌ لَا يَقُولُ الْمَمْلُوكُ "رَبِّي وَرَبَّتِي"

**بابـ ٧٥ - وينځه او غلام دې خپل آقا ته داسې نۀ وائى چه " زما رب "**

[٤٩٧٥](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، وَحَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، وَهِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: عَبْدِي وَأَمَتِي، وَلَا يَقُولَنَّ الْمَمْلُوكُ: رَبِّي وَرَبَّتِي، وَلْيَقُلِ الْمَالِكُ: فَتَايَ وَفَتَاتِي، وَلْيَقُلِ الْمَمْلُوكُ: سَيِّدِي وَسَيِّدَتِي، فَإِنَّكُمُ الْمَمْلُوكُونَ، وَالرَّبُّ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ".

د حضرت ابو هريره رضى الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په تاسو كښې دې هيڅوك خپل غلام او وينځې ته په [ يا عبدى ] " اې زما بنده " يا [ يا امتى ] " اې زما بندې " الفاظو سره اواز نۀ كوى،او نۀ دې يو غلام خپل آقا ته [ ربى ] او [ ربتى ] " يعنى زما رب " وائى - مالک لره پكار دى چه په دې سره بلل كوى [ فتاى ] اې زما ځوانه -

(١) يعنى د انګورو نه جوړ شوى شراب)

(٢) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٤٢٩، ١٤٤٥٩، ١٤٥٢٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العتق ١٧ (٢٥٥٢)، صحيح مسلم/الألفاظ من الأدب ٣(٢٢٤٩)، مسند احمد (٤٢٣/٢، ٤٦٣، ٤٨٤، ٤٩١، ٥٠٨) (صحيح)

[فتاتی] اي زما پيغلې - او مملوک لره پکار دی چه اووائی [سيدی، سيدتی] اي زما سردار! بې شکه تاسو ټول مملوک يئ او "رب" هم الله عز وجل دی -

[۴۹۷۶] (¹) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، أَنَّ أَبَا يُونُسَ حَدَّثَهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي هَذَا الْخَبَرِ وَلَمْ يَذْكُرِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: وَلْيَقُلْ: سَيِّدِي وَمَوْلَايَ.

ابو يونس (سليمان بن جبير) د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه نقل کوی او په دې روايت کښې ئې د نبی کريم صلی الله علیه وسلم ذکر نۀ دې کړې - (موقوفا ئې روايت کړې دې، او د سيدی او سيدتی په ځائې باندې ئې وئيلې دی :) او پکار دی چه [سيدی] او [مولای] " اي زما سردار! اووائی -

[۴۹۷۷] (²) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَقُولُوا لِلْمُنَافِقِ: سَيِّدٌ، فَإِنَّهُ إِنْ يَكُ سَيِّدًا فَقَدْ أَسْخَطْتُمْ رَبَّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ".

حضرت عبد الله بن بريده د خپل پلار نه روايت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلې دی : چه منافق ته سيد [سردار، آقا] مۀ وائئ - ځکه که چرې هغه سردار شو نو تاسو خپل رب عز وجل ناراضه کړو -

**قوله:** ﴿ لَا تَقُولُوا لِلْمُنَافِقِ سَيِّدٌ فَإِنَّهُ إِنْ يَكُ سَيِّدًا فَقَدْ أَسْخَطْتُمْ رَبَّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ ﴾
يعنی منافق سړی ته سيد مه وايئ، ځکه چه سيد خو واجب الاطاعت وی او منافق د اطاعت لائق نه دې، بلکه د هغه اطاعت د الله پاک د ناراضګئ سبب دې.

## باب لَا يُقَالُ خَبُثَتْ نَفْسِي

### بابـ ۷۶ - څوک دې داسې نۀ وائی چه زما نفس خبيث شوې دې

[۴۹۷۸] (³) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: خَبُثَتْ نَفْسِي، وَلْيَقُلْ: لَقِسَتْ نَفْسِي".

حضرت ابوامامه د خپل پلار (سهل بن حنيف رضی الله عنه) نه روايت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل په تاسو کښې دې يو کس هرګز داسې نۀ وائی چه زما نفس خبيث شوې دې -" او کۀ وئيل هم وی نو داسې دې وائی :" زما طبيعت پريشان دې - طبيعت خراب دې -"
﴿ لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ خَبُثَتْ نَفْسِي وَلْيَقُلْ لَقِسَتْ نَفْسِي ﴾ يعنی کله چه د انسان زړه دننه خرابيږی، يعنی قئ وغيره ورځی او دغه کيفيت پيدا کيږی نو داسې وخت کښې دغه مه وايه ﴿ خبثت نفسی ﴾ بلکه داسې وايه ﴿ لقست نفسی ﴾ ځکه چه د خبيث لفظ زيات سخت او شنيع دې، لهذا بغير د ضرورت نه شنيع او قبيح لفظ استعمالول نه دی پکار.

¹): تفرد به أبو داود، انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۵۴۸۲) (صحيح)
²): سنن النسائي/اليوم والليلة (۲۴۴)، (تحفة الأشراف: ۱۵۴۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۴۶/۵، ۳۴۷) (صحيح)
³): صحيح البخاري/الأدب ۱۰۰ (۶۱۸۰)، صحيح مسلم/الألفاظ من الأدب ۴ (۲۲۵۱)، (تحفة الأشراف: ۴۶۵۶) (صحيح)

[٤٩٧٩]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَقُولَنَّ أَحَدُكُمْ: جَاشَتْ نَفْسِي وَلَكِنْ لِيَقُلْ: لَقِسَتْ نَفْسِي".

دَ ام المؤمنين حضرت عائشې رضی الله عنها نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل په تاسو کښې دې هر ګز څوک داسې نۀ وائی چه زما نفس جوش وهی بلکې داسې دې وائی زما نفس پريشان دې-

[٤٩٨٠]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ حُذَيْفَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَقُولُوا: مَا شَاءَ اللَّهُ وَشَاءَ فُلَانٌ، وَلَكِنْ قُولُوا: مَا شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ شَاءَ فُلَانٌ".

د حضرت حذيفه رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل داسې مۀ وائئ چه الله اوغواړی او فلاں اوغواړی، بلکې داسې وائئ څه چه الله اوغواړی، بيا فلاں اوغواړی-

**قوله:** ﴿ لَا تَقُولُوا مَا شَاءَ اللَّهُ وَشَاءَ فُلَانٌ وَلَكِنْ قُولُوا مَا شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ شَاءَ فُلَانٌ ﴾

يعنی کله چه يو انسان هغه سره په څه کار کښې امداد کړې وی او د هغه بنه امداد ئې کړې وی او بيا د الله پاک په فضل سره هغه کار اوشو نو اوس هغه سړې د دواړو شکريه ادا کول غواړی د الله پاک هم او د هغه سړی هم کوم چه ذريعه جوړ شو نو د هغه ذکر دې داسې نه کوی چه ماشاء الله وشاء فلان په واؤ عاطفه سره ځکه چه په دې سره د شرکت او د مساوات وهم راځی حال دا چه اصل مشيئت خو د الله پاک دې په دې وجه په ځائې د ﴿ وشاء فلان ﴾ ﴿ثم شاء فلان ﴾ وئيل پکار دی.

## بابٌ

### باب [بلا عنوان، بلا ترجمه]

[٤٩٨١]([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ سَعِيدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ رُفَيْعٍ، عَنْ تَمِيمٍ الطَّائِيِّ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ، "أَنَّ خَطِيبًا خَطَبَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: مَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ رَشِدَ، وَمَنْ يَعْصِهِمَا، فَقَالَ: "قُمْ أَوْ قَالَ: اذْهَبْ، فَبِئْسَ الْخَطِيبُ أَنْتَ".

د حضرت عدی ابن خاتم نه روايت دې چه يو خطيب د نبی کريم ﷺ په وړاندې باندې خطبه اولوسته نو هغه اووې { مَنْ يُطِعِ اللهَ ورسوله فَقَدْ رَشَدَ وَ مَنْ يَعْصِهِمَا} چا چه دَ الله او دَ هغه دَ رسول اطاعت اوکړو بې شکه هغه هدايت يافته شو او چا چه ددې دواړو نافرمانی اوکړه - حضور ﷺ اوفرمائيل اودريږه ! يائې اوفرمائيل ځه ته ډير بد خطيب ئې-

**قوله:** ﴿ فَبِئْسَ الْخَطِيبُ أَنْتَ ﴾ دا حديث بسنده ومتنه مکرر دې په ابواب الجمعه کښې په باب الرجل يخطب على قوس کښې تير شوې دې او د هغې شرح هم تيره شوې ده.

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٨٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ١٠٠ (٦١٨٠)، صحيح مسلم/الألفاظ من الأدب ٤ (٢٢٥٠)، مسند احمد (٥١/٦، ٢٠٩، ٢٨١) (صحيح)

[2]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٣٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٤/٥، ٣٩٤، ٣٩٨) (صحيح)

[3]): انظر حديث رقم: (١٠٩٩)، (تحفة الأشراف: ٩٨٥٠) (صحيح)

[٤٩٨٢](١) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللهِ، عَنْ خَالِدٍ يَعْنِي الْحَذَّاءَ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ، عَنْ أَبِي الْمَلِيحِ، عَنْ رَجُلٍ، قَالَ: "كُنْتُ رَدِيفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَعَثَرَتْ دَابَّةٌ، فَقُلْتُ: تَعِسَ الشَّيْطَانُ، فَقَالَ: لَا تَقُلْ تَعِسَ الشَّيْطَانُ، فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ ذَلِكَ تَعَاظَمَ حَتَّى يَكُونَ مِثْلَ الْبَيْتِ، وَيَقُولُ: بِقُوَّتِي، وَلَكِنْ قُلْ: بِسْمِ اللهِ، فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ ذَلِكَ تَصَاغَرَ حَتَّى يَكُونَ مِثْلَ الذُّبَابِ".

حضرت ابو ملیح د یو کس نه روایت کوی هغه فرمائی چه زهٔ د نبی کریم ﷺ پسې ورستو په سورلۍ باندې ناست وم نو د نبی کریم ﷺ سورلۍ تیندق غوندې اوخوړو پس زما د خُلې نه اووتل چه '' شیطان دې هلاک شی '' نو حضور ﷺ اوفرمائیل داسې مهٔ وایه، ته چه کله داسې وائې نو هغه پړسیږی تردې پورې چه هغه د یو کور برابر شی او هغه پوهیږی چه زما په قوت سره داسې اوشو، لیکن وایه '' د الله په نوم سره '' پس ته چه کله داسې وائې نو هغه ورکوټې کیږی تردې پرې چه هغه د مچ برابر شی۔

**قوله:** ﴿عَنْ رَجُلٍ قَالَ كُنْتُ رَدِيفَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فَعَثَرَتْ دَابَّتُهُ فَقُلْتُ تَعِسَ الشَّيْطَانُ﴾

یو صحابی خپله واقعه بیانوی چه یو ځل زه په رسول الله ﷺ پسې شاته ناست اوم، اتفاقًا دې سورلۍ په تلو تلو کښې تیندک اوخوړلو نو په دې باندې ما اووې ﴿تعس الشیطان﴾ چه الله دې شیطان تباه کړی، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: داسې مه وایه که ته داسې وائې نو په دې سره به شیطان په تکبر او غرور کښې راتلو سره دومره غټ شی لکه یو کوټه، ﴿ویقول بقوتی﴾ یعنی شیطان به هغه وخت خوشحالیدو سره په خپل زړه کښې وائی یا خپلو ملګرو ته چه اوګوره دهٔ صحیح اوګڼله چه هم زما په طاقت سره داسې اوشو یعنی سورلۍ تیندک خوړلې دې، ځکه چه شیطان ته هغه وخت خیرې کولو سره هم دا په ذهن کښې راځی چه د خیرې کونکی په زړه کښې هم دا ده چه دا نقصان شیطان کړې دې، شیطان په دې باندې خوشحالیږی چه اوګوره کتونکی اعتراف کړې دې زما د طاقت، ﴿ولکن قل بسم الله﴾ یعنی د اول جملې په ځائې بسم الله وایه (چه دا په فهم کښې راشی چه دا کار د الله پاک په حکم باندې شوې دې) ﴿فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ ذَلِكَ تَصَاغَرَ﴾ ځکه چه کله ته بسم الله اووائې نو د هغې په وجه به شیطان د غټیدو په ځائې دومره وړوکې شی چه په وړوکوالی کښې به د مچ برابر شی.

[٤٩٨٣](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، ح، وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا سَمِعْتَ، وَقَالَ مُوسَى: إِذَا قَالَ الرَّجُلُ هَلَكَ النَّاسُ فَهُوَ أَهْلَكُهُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مَالِكٌ: إِذَا قَالَ ذَلِكَ تَحَزُّنًا لِمَا يَرَى فِي النَّاسِ: يَعْنِي فِي أَمْرِ دِينِهِمْ، فَلَا أَرَى بِهِ بَأْسًا، وَإِذَا قَالَ ذَلِكَ عُجْبًا بِنَفْسِهِ وَتَصَاغُرًا لِلنَّاسِ، فَهُوَ الْمَكْرُوهُ الَّذِي نُهِيَ عَنْهُ.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کله چه تاسو واورئ ...
او په الفاظو د موسی (بن اسماعیل) ... کله چه اووائی بنده چه خلق هلاک شول نو ویونکې

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٥٩، ٧١) (صحيح)
(٢): صحيح مسلم/البر والصلة ٤١ (٢٦٢٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٢٣، ١٢٧٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٧، ٣٤٢) (صحيح)

د ټولو نه زيات هلاک دي - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه امام مالک رحمه الله فرمائيلي دی: کله چه څوک په ديني حالت کښې د کمي او خرابۍ په وجه سره داسې اووائي نو په دې کښې څه حرج نشته دې ليکن کله چه څوک خپل ځان لوې او نورو خلقو لره حقير ګنړي نو بيا داسې وئيل ناجائز دی او هم ددې نه ممانعت راغلې دې -

**قوله:** ﴿ إِذَا قَالَ الرَّجُلُ هَلَكَ النَّاسُ فَهُوَ أَهْلَكُهُمْ ﴾ ﴿ اهلک ﴾ د اسم تفضيل صيغه هم کيدې شي او د باب افعال نه د فعل ماضی هم، ډير کرته انسان په متکبرانه شان کښې خپل ځان د معائب نه برې ګنړلو سره په نورو کښې نکتې راوباسی او وائي چه خلق تباه شو هغوی غرق شو يعنی د بدو کارونو د وجې نه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د داسې سړي په باره کښې فرمائي چه کوم سړې د نورو په باره کښې داسې وائي او دا ګنړي نو هغه پخپله په هغوی ټولو کښې زيات هلاکيدونکې او بربادیدونکې دې، دا په هغه صورت کښې دې چه کله اهلاک د اسم تفضيل صيغه اومنلې شی، او که دا فعل ماضی اومنلې شی نو په دې صورت کښې به ئې مطلب دا وی چه کوم سړی داسې اووې يعنی هلک الناس نو هغه د ګناه په اعتبار سره داسې دې لکه چه واقعی هغه دا خلق هلاک کړې وی.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ قَالَ مَالِكٌ إِذَا قَالَ ذَلِكَ تَحَزُّنًا لِمَا يَرَى فِي النَّاسِ - يَعْنِي فِي أَمْرِ دِينِهِمْ - فَلاَ أَرَى بِهِ بَأْسًا وَإِذَا قَالَ ذَلِكَ عُجْبًا بِنَفْسِهِ وَتَصَاغُرًا لِلنَّاسِ فَهُوَ الْمَكْرُوهُ الَّذِي نُهِيَ عَنْهُ ﴾

امام مالک رحمه الله د دې حديث په شرح کښې فرمائي چه يو سړې د خلقو په باره کښې داسې اوائي چه ﴿ هلک الناس ﴾ نو د دې دوه صورتونه دی که د هغه دا وينا د خلقو په ديني نقصان سره د خفګان او غم د وجې نه ده نو بيا په داسې وينا کښې باک نشته، او که د خود پسندئ په طور نور خلق سپک او ذليل ګنړي نو په دې صورت کښې ممنوع دې.

## بَابٌ فِي صَلاَةِ الْعَتَمَةِ

### باب: ۷۸ - د نماز عتمه (يعنی په تيارۀ کښې د مونځ) بيان

[۴۹۸۴] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَبِيدٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لاَ تَغْلِبَنَّكُمُ الأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلاَتِكُمْ أَلاَ وَإِنَّهَا الْعِشَاءُ، وَلَكِنَّهُمْ يُعْتِمُونَ بِالإِبِلِ".

حضرت ابن عمر رضی الله عنه بيان کوی چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل داسې دې هرګز نۀ وی چه دا د بانډې خلق ستاسو د مونځ په نوم بانډې غالب راشی - خبردار ! بې شکه ددې نوم عشاء دې - ليکن دغه خلق د اوښانو د پيو په لوشلو کښې تيارۀ کوی -(نو ددې په مناسبت سره دې ته عتمه يعنی د تيرې مونځ وئيلې شی)-

**قوله:** ﴿ لاَ تَغْلِبَنَّكُمُ الأَعْرَابُ عَلَى اسْمِ صَلاَتِكُمْ أَلاَ وَإِنَّهَا الْعِشَاءُ وَلَكِنَّهُمْ يُعْتِمُونَ بِالإِبِلِ ﴾

---

¹): صحيح مسلم/المساجد ۳۹ (۶۴۴)، سنن النسائي/المواقيت ۲۲ (۵۴۲)، سنن ابن ماجه/الصلاة ۱۳ (۷۰۴)، (تحفة الأشراف: ۸۵۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰/۲، ۱۸، ۴۹، ۱۴۴) (صحيح)

**(د عتمه معنی)**

بعض اعرابو به په مغرب باندې د عشاء او په عشاء باندې به ئې د عتمه اطلاق کولو د اعتمام معنی د تاخیر ده، په اصل کښې د عتمه معنی د ظلمت ده او د اعتم معنی ده دخل فی العتمة یعنی په تیارهٔ کښې داخل شو، دې اعرابو به د خپلو څاروو پئ ماښام کښې ناوخته لوشل[1] چه کله به تیارهٔ شوه یعنی په وخت د عتمه به ئې پئ لوشل.

**(وجه د ممانعت)**

او چونکه هم دا وخت د ماسخوتن د مانځه هم وو نو په دې وجه به هغوی په عشاء باندې په ځائې د عشاء د عتمه اطلاق کولو حال دا چه په قرآن کریم کښې د عشاء لفظ راغلې دې نه عتمه نو ګویا هغوی به په عشاء باندې لغة د قرآن کریم لره پریخودلو سره د خپل یو دنیوی کار د وجې نه دا لفظ استعمالولو، رسول الله ﷺ خلق د اعرابو د اتباع کولو نه منع فرمائی یعنی د عشاء په نوم بدلولو کښې چه دا اعراب په تاسو باندې غالب رانشی چه څنګه هغوی دې ته عتمه وائی تاسو هم ورته عتمه وئیل شروع کړئ، خو د دې باوجود هم په بعض احادیثو کښې په عشاء باندې د عتمه اطلاق کړې شوې دې، د دې جواب دا دې چه د کثرت اطلاق نه منع کړې شوې ده لکه چه د لفظ غلبه نه فهمیږی د نفس آطلاق نه منع نه ده کړې شوې کله کله دې ته د عتمه وئیلو نه منع نه ده کړې شوې.

[۴۹۸۵] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مِسْعَرُ بْنُ كِدَامٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ، قَالَ مِسْعَرٌ: أُرَاهُ مِنْ خُزَاعَةَ: "لَيْتَنِي صَلَّيْتُ فَاسْتَرَحْتُ، فَكَأَنَّهُمْ عَابُوا عَلَيْهِ ذَلِكَ، فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "يَا بِلَالُ، أَقِمِ الصَّلَاةَ أَرِحْنَا بِهَا".

د حضرت سالم بن ابو جعد نه روایت دې چه یو سړی اووې ... د مسعر خیال دې چه هغه د قبیلهٔ خزاعه نه وو ... کاش چه ما مونځ کولې او سکون مې بیا موندلې، پس نورو خلقو ګویا چه ددهٔ په دې قول باندې عیب لګولو - نو هغه اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغه فرمائیل: بلال! د مونځ اقامت اووایه، مونږ ته په دې سره راحت راورسوه.

**قوله: ﴿ قَالَ رَجُلٌ – مِنْ خُزَاعَةَ – لَيْتَنِي صَلَّيْتُ فَاسْتَرَحْتُ فَكَأَنَّهُمْ عَابُوا عَلَيْهِ ذَلِكَ فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « يَا بِلَالُ أَقِمِ الصَّلَاةَ أَرِحْنَا بِهَا »﴾**

د قبیله خزاعه یو سړی په خپل مجلس کښې دا خبره اوکړه چه ما مخکښې مونځ کولې نو غوره وو ماته به آرام ملاؤ شو یعنی د مانځه د فراغت نه پس به راته آرام ملاویدې، د خلقو د هغه په دې لفظ باندې اشکال پیدا شو څکه چه د هغه د کلام نه دا شبه پیدا کیده چه مونځ یو بوجهـ دې او په هغه باندې دا ګران دې په دې وجه د مونځ کولو سره دا بوجهـ د ځان نه کوزول غواړی، چه کله هغه اوکتل چه د خلقو اشکال پیدا کیږی نو هغه په دې باندې

---

[1] ما په یو کتاب کښې کتلې وو چه دې اعرابو د خپلو څاروو پئ ناوخته په تیارهٔ کښې په دې وجه لشل چه پئ فقیرانو ته ورنکړی چه د پیو د راویستلو په وخت اکثر فقیران راشی نو د هغوی نه د بچ کیدو دپاره به ئې اکثر په تیارهٔ کښې راویستل، چه فقیرانو ته پته او نه لګی.

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٤/٥) (صحيح)

رسول الله ﷺ کلام پیش کړو چه داسې وئیل خو خپله د رسول الله ﷺ نه ثابت دی چه هغوی یو څل سیدنا بلال رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه پاسه او مونځ ته مونځ راکولو سره آرام راکړه.

د دې سړي په کلام کښې چه کوم فاسترحت ذکر دې د دې فی نفسه دوه مطلبه کیدې شی یو خو هغه مطلب کوم چه دې خلقو فهم کړې دې او بیا ئې په دې باندې دا اشکال اوکړو او دویم مطلب دا کیدې شی چه اول زه مونځ اوکړم چه په مونځ کښې مشغول کیدو سره سکون او راحت حاصل کړم ځکه چه مونځ په اصل کښې د الله پاک سره مناجات دې کوم چه واقعی د راحت اولذت څیزدې دمومن دپاره خودې خلقو ترې نه دامطلب وانخستلو.

[٤٩٨٦](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدٍ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ، قَالَ: انْطَلَقْتُ أَنَا وَأَبِي إِلَى صِهْرٍ لَنَا مِنَ الْأَنْصَارِ نَعُودُهُ، فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ، فَقَالَ لِبَعْضِ أَهْلِهِ: يَا جَارِيَةُ، ائْتُونِي بِوَضُوءٍ لَعَلِّي أُصَلِّي فَأَسْتَرِيحَ، قَالَ: فَأَنْكَرْنَا ذَلِكَ عَلَيْهِ، فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "قُمْ يَا بِلَالُ، فَأَرِحْنَا بِالصَّلَاةِ".

د حضرت عبد الله بن محمد بن حنفیه رحمه الله نه روایت دې بیان فرمائی چه زهٔ او زما پلار صاحب په انصارو کښې زما سخر ګنئ والو ته دَ عیادت دپاره لاړو نو دَ مونځ وخت شو نوهغه دَ کور والو نه یو کس ته اووې اې جینئ ! دَ اودس دپاره اوبهٔ راوړئ، شائد چه څه مونځ اوکړم نو راحت به بیا مومم - نو مونږه ددهٔ دا جمله خوښه نهٔ کړه نو هغوی اووې ما دَ رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغه به فرمائیل اې بلال! پاسه مونږ ته په مونځ سره راحت راکړه.

[٤٩٨٧](٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْسِبُ أَحَدًا إِلَّا إِلَى الدِّينِ".

د ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه، نهٔ دی اوریدلې چه نسبت به ئې کولو یو کس ته مګر دین طرف ته.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها قَالَتْ مَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَنْسُبُ أَحَدًا إِلاَّ إِلَى الدِّينِ ﴾

یعنی رسول الله ﷺ به د یو سړي په تعریف او تعارف کولو کښې د هغه سړی په نوم او کار کښې او په ټولو احوالو کښې د دین د نسبت خیال ساتلو او د هغوی نقطه نظر به په هر څیز کښې دین وو لهذا سړی له پکار دی چه په خپل نوم او کار او هر څیز کښې د دین نسبت ملحوظ اوساتی، علامه سندی فرمائی چه په ظاهر کښې مراد دا دې چه رسول الله ﷺ به د نسبت الی الاجداد اعتبار نه فرمائیلو او هغې ته به ئې زیات اهمیت نه ورکولو بلکه د دینې نسبتونو اعتبار به ئې کولو لکه هجرت او نصرت وغیره.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٧١/٥) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٠٨٨) (ضعيف الإسناد)

# بَابُ مَا رُوِيَ فِي التَّرْخِيصِ فِي ذَلِكَ

## باب: ۷۹- په بعضې وختونو کښې د استعارې او د کنائې استعمال جائز دې

د ﴿فی ذلک﴾ اشاره صرف پورته باب طرف ته نه ده کوم چه متصلا تیر شو بلکه په مجموعه ابواب کوم چه تیر شوي دی چه په هغې کښې د کلام ادب او طریقه ذکر کړې شوې ده یعنی اصل خو دا ده چه هر کلام او خبره دې پوره په احتیاط سره وی په هغې کښې دې څه سخت او فحش لفظ نه وی نه د فخر او تکبر بوئی او نه د دروغو شبه وغیره، خو داسې قسم مبالغه چه په هغې سره مخاطب په دهوکه کښې واقع نه شی او معنی مرادی واضح شی، د دومره بې احتیاطئ گنجائش شته، د دې ترجمې د لاندې مصنف رحمه الله دا حدیث ذکر کړې دی.

[۴۹۸۸](۱) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِينَةِ، فَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ، فَقَالَ: مَا رَأَيْنَا شَيْئًا أَوْ مَا رَأَيْنَا مِنْ فَزَعٍ وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا".

د حضرت انس رضی الله عنه بیان دې چه په مدینه کښې څه افواه خوره شوه (شائد چه څه دشمن حمله کوونکي دې) نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم د حضرت ابو طلحه رضی الله عنه په اس باندې سور شو (او اخوا دیخوا ئې وکتل او راغې) اووې فرمائیل مونږه هیڅ نۀ دی لیدلي - یائې اوفرمائیل چه مونږه څه د خوف او یرې خبره اونۀ لیده - او دا اس خو گویا چه سمندر دې.

**قوله:** ﴿عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِينَةِ فَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَرَسًا لِأَبِي طَلْحَةَ فَقَالَ « مَا رَأَيْنَا شَيْئًا ». أَوْ « مَا رَأَيْنَا مِنْ فَزَعٍ وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا »﴾

سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه یو ځل په مدینه طیبه کښې (د شپې په وخت کما فی روایة) څه ویره اومونده شوه، دا روایت په بخاری کښې دولس ځایونو کښې دې یو ځائې کښې دی: فَانطَلَقَ النَّاسُ قِبَلَ الصَّوْتِ فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم قَدْ سَبَقَ النَّاسَ إِلَى الصَّوْتِ وَهُوَ يَقُولُ لم تُرَاعُوا لم تُرَاعُوا وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ مَا عَلَيْهِ سَرْجٌ فِي عُنُقِهِ سَيْفٌ او په یو روایت کښې دی: فَرَسًا لَنَا يُقَالُ لَهُ مَنْدُوبٌ، چه د هغې نه معلومیږی چه په مدینه طیبه کښې د بهر نه څه شور شان واوریدلې شو چه په هغې باندې اهل مدینه هغې طرف ته منډې کړې خو رسول الله صلی الله علیه وسلم د ټولو نه مخکښې وتلو سره بهر اورسیدلو او په واپسئ کښې ئې اوفرمائیل چه ویریږئ مه ویریږئ مه هیڅ نشته دې او دا ئې هم اوفرمائیل رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه اس په باره کښې چه مونږ هغه د دریاب په شان تیز رفتار بیا موندلو، او په یو روایت کښې دی د هغه اس په باره کښې ﴿کان یقطف﴾ یعنی هغه بطئ السیر وو او په یو روایت کښې دی: ﴿وکان بعد ذلک لا یجاری﴾ یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه باندې د سوریدو په برکت هغه د همیشه دپاره سریع السیر شو چه په مسابقت کښې بیا د هغه برابر هیڅ څه هم نه وو.

د مصنف رحمه الله غرض خو په آخری لفظ سره دې: ﴿وان وجدناه لبحرا﴾ دا ان مخففه من المثقلة دې رسول الله صلی الله علیه وسلم په فرس باندې دمبالغه فی التشبیه دپاره دبحر اطلاق اوفرمائیلو.

---

(۱): صحیح البخاري/الهبة ۳۳ (۲۶۲۷)، صحیح مسلم/الفضائل ۱۱ (۲۳۰۷)، سنن الترمذي/الجهاد ۱۴ (۱۶۸۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۸)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الجهاد ۹ (۲۷۷۲)، مسند احمد (۳، ۱۷۰، ۱۸۰، ۲۷۴، ۲۹۱) (صحيح)

# بَابٌ فِي التَّشْدِيدِ فِي الْكَذِبِ

## باب: دَ دروغ وئيلو مذمت

[۴۹۸۹] (۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، أَخْبَرَنَا الْأَعْمَشُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِيَّاكُمْ وَالْكَذِبَ، فَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِي إِلَى الْفُجُورِ، وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَكْذِبُ وَيَتَحَرَّى الْكَذِبَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللَّهِ كَذَّابًا، وَعَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ، فَإِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِي إِلَى الْبِرِّ، وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ، وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيَصْدُقُ وَيَتَحَرَّى الصِّدْقَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللَّهِ صِدِّيقًا".

د حضرت عبد الله (بن مسعود) رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د دروغو نه ځان ساتئ - بې شکه دروغ دَ ګناه طرف ته رهنمائي کوی او ګناه جهنم طرف ته، بې شکه کوم انسان چه دروغ وائی او هم دَ دروغو په کوشش کښې اوسيږی نو آخر دَ الله په نزد باندې هغه کذاب (انتهائی دروغجن) اوليکلې شی - (هميشه) رېښتيا وائئ، رېښتونوالي دَ نيکئ طرف ته رهنمائي کوی او نيکی جنت ته رسول کوی - او کوم کس چه رېښتيا وائی او په رښتيو کښې کوشش کوی نو آخر دَ الله په نزد باندې صديق (انتهائی رښتونې) اوليکلې شی -

**قوله:** ﴿ إِيَّاكُمْ وَالْكَذِبَ فَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِي إِلَى الْفُجُورِ وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِي إِلَى النَّارِ ﴾

ځان بچ کړئ د دروغ وئيلو نه ځکه چه کذب رهنمائی کوی د فجور طرف ته، د فجور نه مراد يا خو معصيت دې يا تړې نه خپله کذب دې، ځکه چه اصل معنی د فجور الميل عن الصدق والانحراف الی الکذب (۲) يعنی د درغو د سپيرۀ والی د وجې نه انسان په ډيرو ګناهونو کښې اخته کيږی او په دويم صورت کښې به ئې معنی دا وی چه يو دروغ انسان نورو دروغو ته تياروی، دغه شان بيا د هغې عادت جوړ شی، او وړاندې رسول الله ﷺ فرمائی: او فجور انسان جهنم ته رسوی، او بيشکه انسان دروغ وائی او ډير زيات دروغ وائی تردې چه د الله پاک په نزد هغه دروغژن اوليکلې شی، يا خو په عمل نامه کښې مراد دې او يا مطلب دا دې چه د هغه د دروغژن کيدو په خلقو کښې شهرت اوکړې شی.

﴿ وَعَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ ﴾ يعنی رشتيا لازم اونيسئ، ځکه چه صدق رهنمائی کوی د نيکو اعمالو طرف ته، او يا د بر نه مراد خپله صدق دې چه يو صدق د بل صدق طرف ته رهنمائی کوی چه کله يو انسان همت کولو سره رشتيا وائی او د خپل ظاهری نقصان پرواه نه کوی نو بيا د الله پاک د طرف نه هغه ته توفيق ملاويږی په راروانه زمانه کښې هم د صدق د اختيارولو ځکه چه مشهوره ده چه يو نيکی بله نيکی راکاږی او بدی بدئ لره. او نيکی انسان جنت ته رسوی او بيشکه انسان رشتيا اختياروی او د هغې قصد او کوشش کوی ترديې چه د الله

(۱): صحيح مسلم/البر والصلة ۲۹ (۲۶۰۷)، القدر ۱ (۲۶۴۳)، سنن الترمذي/البر ۴۶ (۱۹۷۱)، (تحفة الأشراف: ۹۲۶۱)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ۶۹ (۶۰۹۴)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۷ (۴۶)، موطا امام مالك/الكلام ۷ (۱۶)، مسند احمد ۱(۳۸۴، ۴۰۵)، سنن الدارمي/الرقاق ۷ (۲۷۵۷) (صحيح)

(۲) ومنه قول الاعرابي في عمر بن الخطاب رضی الله عنه اقسم بالله ابوحفص عمر:
ما مسها من نقب ولا دبر :: اغفر له اللهم ان كان فجر)

پاک په نزد د هغه نوم په صدقین کښې اولیکلې شي.

[۴۹۹۰] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "وَيْلٌ لِلَّذِي يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ وَيْلٌ لَهُ وَيْلٌ لَهُ".

حضرت بهز بن حکیم فرمائی چه ماته مې خپل پلار د خپل والد صاحب نه روایت کړې دې فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغه فرمائیل: هلاکت دې د هغه چا دپاره چه هغه په دې غرض سره دروغ اووائی چه په هغې پورې خلق اوخاندی - هلاکت دې د هغه دپاره، هلاکت دې د هغه دپاره -

(او په حاشیه د بذل کښې دی: بسط ابن عابدين ۵/۳۰۳ انواع الكذب واحكامها، وفي العينى ۶/۲۰۶ اباح الكذب للاصلاح وقال ۷/۳۵۳ بل واجب في مواضع، وبسط السيوطى الروايات في قوله تعالى: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ ۳/۲۹۰ وانما يتفرى الكذب ۳/۱۳۱ وعد ابن حجر المكى في الزواجر ۲/۱۵۳ من الكبائر الكذب الذى فيه حد او ضرر، وبسط الكلام على غيره، وتقدم في البذل ۳/۲۸۶ الكلام على قصة سيدنا ابراهيم عليه السلام)

﴿ وَيْلٌ لِلَّذِى يُحَدِّثُ فَيَكْذِبُ لِيُضْحِكَ بِهِ الْقَوْمَ وَيْلٌ لَهُ وَيْلٌ لَهُ ﴾

رسول الله ﷺ فرمائی چه خساره او تباهی ده د هغه سړي دپاره چه خبره کوی او دروغ وائی د خلقو د خندولو دپاره، او د مجلس د ګرمولو دپاره. بیا مکرر فرمائی رسول الله ﷺ چه د هغه دپاره هلاکت دې د هغه دپاره هلاکت دې.

د ﴿ ليضحك به القوم ﴾ په شرح کښې په بذل کښې لیکلې دی چه که کذب د څه مصلحت او ضرورت په بناء وی نو بیا امر اخر دې د هغې ګنجائش شته او صرف د تفریح دپاره دروغ وئیل قطعا حرام دی.

[۴۹۹۱] (۲) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، أَنَّ رَجُلًا مِنْ مَوَالِي عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ الْعَدَوِيِّ حَدَّثَهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّهُ قَالَ: "دَعَتْنِي أُمِّي يَوْمًا وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدٌ فِي بَيْتِنَا، فَقَالَتْ: هَا تَعَالَ أُعْطِيكَ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَمَا أَرَدْتِ أَنْ تُعْطِيهِ، قَالَتْ: أُعْطِيهِ تَمْرًا، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا إِنَّكِ لَوْ لَمْ تُعْطِهِ شَيْئًا كُتِبَتْ عَلَيْكِ كِذْبَةٌ".

حضرت عبد الله بن عامر فرمائی چه یو ځل زما مور ماله راوبللو، چه دلته راشه او رسول الله ﷺ مونږ کره تشریف فرما وو حضور ﷺ زما د مور نه پوښتنه اوکړه تاسو دهٔ ته څه ورکول غواړئ؟ هغې اووې چه مونږه دهٔ ته کجورې ورکول غواړو بیا رسول الله ﷺ هغې ته اووې که چرې دهٔ ته تاسو څه خیز نهٔ وې ورکړې نو په تا باندې به دروغ لیکلې شوې وو -

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرٍ أَنَّهُ قَالَ دَعَتْنِي أُمِّي يَوْمًا وَرَسُولُ اللَّهِ -صلّى الله عليه وسلم- قَاعِدٌ فِي بَيْتِنَا فَقَالَتْ هَا تَعَالَ أُعْطِيكَ الخ ﴾

---

[1]: سنن الترمذي/الزهد ۱۰ (۲۳۱۵)، (تحفة الأشراف: ۱۱۳۸۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۲، ۵، ۷)، سنن الدارمي/الاستئذان ۶۶ (۲۷۴۴) (حسن)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۵۳۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۴۴۷) (حسن)

د عامر بن ربیعه عدوی ځوئي عبدالله ﷺ خپله واقعه بیانوی چه زه یوه ورځ زما مور راطلب کړم او لاس راوړدلو سره ئې راته اووې راشه چه درکړم ....هغه وخت رسول الله ﷺ زمونږ په کور کښې تشریف فرما وو، رسول الله ﷺ په دې لیدو باندې زما مور ته اوفرمائیل تا هغه ته څۀ ورکول غوښتل؟ نو هغې اووې چه ما ورته کهجوره ورکوله، نو په دې رسول الله ﷺ اوفرمائیل (بس بیا خیر دې) او که تا هغه ته څۀ نه ورکولې او هسې دې ورته په دروغه موټې پټ ساتلې وې نو دا به دروغ وې او په تا باندې به لیکلې کیدل (یعنی عمل نامه کښې).

د دې نه معلومه شوه چه د ماشومانو د ژړا په وخت یا د هغوی د قلارولو په وخت چه کوم کلمات د ژبې نه ویستلې شی هغه هم دروغ او غلط نه دی کیدل پکار ګینې په کذب کښې به داخل شی. (بذل عن اللمعات)

[۴۹۹۲](۱) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حَفْصٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ حَفْصِ بْنِ عَاصِمٍ، قَالَ ابْنُ حُسَيْنٍ فِي حَدِيثِهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَفَى بِالْمَرْءِ إِثْمًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ"، قَالَ أبو داود: وَلَمْ يَذْكُرْ حَفْصٌ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ أبوداود: وَلَمْ يُسْنِدْهُ إِلَّا هَذَا الشَّيْخُ يَعْنِي عَلِيَّ بْنَ حَفْصٍ الْمَدَائِنِيَّ.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دی چه د یو کس د ګنهګار کیدو دپاره دا کافی دی چه هغه هره اوریدلې شوې خبره کوی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه د حفص بن عمر په روایت کښې دَ ابوهریره رضی الله عنه ذکر نشته دې (روایت مرسل دې) امام ابوداود رحمه الله فرمائی : او دې لره صرف علی بن حفص مدائنی مسند روایت کړې دې-

﴿عن ابی هریره رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال فی بِالْمَرْءِ إِثْمًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ﴾

رسول الله ﷺ ارشاد فرمائی چه د سړی د ګناه دپاره دا کافی ده چه هر اوریدلې شوې خبره په خلقو کښې نقل کوی، ځکه چه د هرې اوریدلې شوې خبرې دپاره رشتیا کیدل ضروری خو نه دی لهذا بغیر د تحقیق نه نه دی نقل کول پکار.

## بَابٌ فِي حُسْنِ الظَّنِّ

### بابه ۸۱- د ښۀ ګمان کولو بیان

[۴۹۹۳](۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، عَنْ مُهَنَّا أَبِي شِبْلٍ، قَالَ أبوداود: وَلَمْ أَفْهَمْهُ مِنْهُ جَيِّدًا، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ وَاسِعٍ، عَنْ شُتَيْرٍ، قَالَ نَصْرٌ: ابْنِ نَهَّارٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ نَصْرٌ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "حُسْنُ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ الْعِبَادَةِ"، قَالَ أبو داود: مُهَنَّا ثِقَةٌ بَصْرِيٌّ.

دحضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې او په قول د نصر بن علی رسول الله ﷺ اوفرمائیل : ښۀ ګمان کول دَ حسن عبادت نه دې - امام ابوداود رحمه الله فرمائی : په سند کښې مذکور مُهنّا (بن ابو شبل) ثقه دې او بصری دې -

---

(۱): صحيح مسلم/المقدمة ۳ (۵)، (تحفة الأشراف: ۱۲۲۶۸، ۱۸۵۸۰) (صحيح)

(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۳۴۹۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۰۴، ۴۰۷، ۴۹۱) (ضعيف)

**قوله:** ﴿ حُسْنُ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ الْعِبَادَةِ ﴾ ښه ګمان ساتل بهترين عبادت دی، د الله پاک سره حسن ظن دا دی چه د اعمال صالحه کوشش کوی او د الله پاک د رحم او کرم نه دا امید ساتی او دا ګمان ساتی چه الله پاک به دا قبلوی او کومه کوتاهی چه په دې کښې اوشوه هغه به معاف کوی، او خلقو سره په حسن ظن کښې تفصیل دې، پس که هغه د خپل مال او څیز د حفاظت په معامله کښې دې نو دا خو عبادت نه دې بلکه د حذر او د احتیاط خلاف دې او که په نورو امورو کښې وی کوم چه احتیاط طلب نه دی نو کیدې شی چه هغه حسن ظن په عبادت کښې داخل شی ځکه چه سوء ظن (بدګمانی) چه کله په هغې کښې څهٔ فائده نه وی نو هغه خالص ګناه ده. (بذل)

[٤٩٩٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ صَفِيَّةَ، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعْتَكِفًا فَأَتَيْتُهُ أَزُورُهُ لَيْلًا، فَحَدَّثْتُهُ وَقُمْتُ فَانْقَلَبْتُ، فَقَامَ مَعِي لِيَقْلِبَنِي، وَكَانَ مَسْكَنُهَا فِي دَارِ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، فَمَرَّ رَجُلَانِ مِنَ الْأَنْصَارِ فَلَمَّا رَأَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْرَعَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَلَى رِسْلِكُمَا إِنَّهَا صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ، قَالَا: سُبْحَانَ اللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنَ الْإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ، فَخَشِيتُ أَنْ يَقْذِفَ فِي قُلُوبِكُمَا شَيْئًا أَوْ قَالَ: شَرًّا".

د ام المؤمنين حضرت صفيه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ په اعتکاف کښې وو او زهٔ د شپې په وخت کښې د هغه د زيارت دپاره حاضره شوم، ما د حضور ﷺ سره خبرې کوولې، بيا پاسيدم او واپس تلمه نو حضور عليه السلام ﷺ زما سره پاسيدو ددې دپاره چه ما واپس بوځی او زما مسکن د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه په احاطه کښې وو، نو د انصارو دوه سړی تير شو هغوی چه کله رسول الله ﷺ اوليدو نو ډير تيز غوندې لاړل، نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل اودريږئ! دا (زما سره) صفيه بنت حيی ده - هغوی دواړو اووې سبحان الله (الله پاک دې) اې د الله رسوله! حضور ﷺ اوفرمائيل بې شکه شيطان د انسان په جسم کښې داسې ګردش کوی لکه څنګه چه وينه ګردش کوی، ماته دا يره شوه چه چرته کښې هغه ستاسو په زړونو کښې څه وانهٔ چوی.“ يائې اوفرمائيل څه بده خبره وانهٔ چوی.“

**قوله:** ﴿عَنْ صَفِيَّةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– مُعْتَكِفًا فَأَتَيْتُهُ أَزُورُهُ لَيْلاً الخ ﴾

دا حديث په کتاب الصوم المعتکف يدخل البيت لحاجة کښې تيرشوې دې.

## بَابٌ فِي الْعِدَةِ

### بابـ ٨٢ - د وعدې او د وفا تاکيد

[٤٩٩٥](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ الْأَعْلَى، عَنْ أَبِي النُّعْمَانِ، عَنْ أَبِي وَقَّاصٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا وَعَدَ الرَّجُلُ أَخَاهُ وَمِنْ نِيَّتِهِ أَنْ يَفِيَ لَهُ فَلَمْ يَفِ وَلَمْ يَجِئْ لِلْمِيعَادِ، فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ".

د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: کله چه بنده د خپل

(١): انظر حديث رقم: (٢٤٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٠١) (صحيح)
(٢): سنن الترمذي/الإيمان ١٤ (٢٦٣٣)، (تحفة الأشراف: ٣٦٩٣) (ضعيف)

رور سره څه وعده اوکړي او ددهٔ نیت دا وي چه زهٔ به خپله وعده پوره کووم مګر اونهٔ کړې شي او وعدې ته اونهٔ رسیدو نو په دهٔ باندې هیڅ ګناه نشته دې۔

**قوله:** ﴿ إِذَا وَعَدَ الرَّجُلُ أَخَاهُ الخ ﴾ چه کله یو سړې چا سره د یو څیز وعده اوکړي او د وعدې په وخت ئې اراده د هغې د پوره کولو وي او بیا ئې روستو د څهٔ عذر د وجې نه پوره نه کړې شي نو په هغه باندې هیڅ ګناه نشته.

د دې نه معلومه شوه چه ایفاء وعد د مکارم اخلاق نه دې (او واجب شرعی نه دې) په دې شرط چه نیت ئې د هغې د پوره کولو وي، او کومې وعده خلافئ ته چه په حدیث کښې علامت د نفاق وئیلې شوې دې د هغې نه مراد هغه وعده ده کومه چه د پوره کولو په نیت باندې وي، او د بعضو رائې دا ده چه بغیر د څه مانع نه وعده نه پوره کول حرام دی، او په شرائع سابقه کښې ایفاء وعد مامور به او واجب وو. (بذل عن اللمعات)

[٤٩٩٦] ([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ بُدَيْلٍ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي الْحَمْسَاءِ، قَالَ: "بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَيْعٍ قَبْلَ أَنْ يُبْعَثَ، وَبَقِيَتْ لَهُ بَقِيَّةٌ فَوَعَدْتُهُ أَنْ آتِيَهُ بِهَا فِي مَكَانِهِ، فَنَسِيتُ ثُمَّ ذَكَرْتُ بَعْدَ ثَلَاثٍ، فَجِئْتُ فَإِذَا هُوَ فِي مَكَانِهِ، فَقَالَ: يَا فَتَى، لَقَدْ شَقَقْتَ عَلَيَّ أَنَا هَاهُنَا مُنْذُ ثَلَاثٍ أَنْتَظِرُكَ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى: هَذَا عِنْدَنَا عَبْدُ الْكَرِيمِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هَكَذَا بَلَغَنِي، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: بَلَغَنِي أَنَّ بِشْرَ بْنَ السَّرِيِّ رَوَاهُ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَقِيقٍ.

د حضرت عبد الله بن ابو حمسا ؓ نه روایت دې هغه فرمائی چه د نبی کریم ﷺ د مبعوث کیدو نه وړاندې خبره ده چه ما د هغه نه یو سودا کړې وه او څه قیمت باقی پاتې شو، نو ما د هغه سره وعده اوکړه چه زهٔ به دا په هم دې مکان کښې تاته راوړم، مګر ماته دا خبره درې ورځې ورستو یاده شوه، بیا زهٔ راغلم نو حضور علیه السلام ﷺ هم هلته کښې موجود وو حضور ﷺ اوفرمائیل: " اې جوان ! تا ماته ډیر تکلیف راکړو - زهٔ ددرې ورځو نه دلته کښې انتظار کووم - امام ابوداود ؒ فرمائی چه محمد بن یحییٰ فرمائیلې دی چه (په سند کښې مذکور) عبد الکریم، دا ابن عبد الله بن شقیق دې - امام ابوداود ؒ فرمائی چه په واسطه د علی بن عبد الله ماته دا روایت هم دغه شان رارسیدلې دې - امام ابوداود ؒ فرمائی چه بشر بن سری دې لره د "عن عبد الکریم بن عبد الله بن شقیق " په سند سره روایت کړې دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي الْحَمْسَاءِ قَالَ بَايَعْتُ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– بِبَيْعٍ قَبْلَ أَنْ يُبْعَثَ وَبَقِيَتْ لَهُ بَقِيَّةٌ فَوَعَدْتُهُ أَنْ آتِيَهُ بِهَا فِي مَكَانِهِ فَنَسِيتُ ثُمَّ ذَكَرْتُ بَعْدَ ثَلاَثٍ فَجِئْتُ فَإِذَا هُوَ فِي مَكَانِهِ فَقَالَ « يَا فَتَى لَقَدْ شَقَقْتَ عَلَيَّ أَنَا هَا هُنَا مُنْذُ ثَلاَثٍ أَنْتَظِرُكَ »﴾

عبدالله بن ابی الحمساء ؓ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه یو څیز اخستلې وو د هغوی د بعثت او نبوت نه مخکښې چه په هغې کښې د هغوی د ثمن څه حصه باقی پاتې شوې وه، ما هغوی سره دا وعده اوکړه او لاړم چه زه تاسو ته هغه ثمن هم دې ځائې ته راوړم، خو د هغه ځائې نه د راتلو نه پس مانه هیر شو، د درې ورځو تیریدو نه پس ماته رایاد شو، زه زر

([1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٢٤٥) (ضعيف الإسناد)

راغلم هغوی لره د کتلو د پاره چه او مې کتل نو رسول الله ﷺ هم هلته موجود وو، رسول الله ﷺ زما په لیدو باندې اوفرمائیل اې هلکه تا زه ډیر په مشقت کښې واچولم، زه د درې ورځو نه هم دلته یم. (صلی الله علی سیدنا محمد صادق الوعد الامین).

## بَابٌ فِي الْمُتَشَبِّعِ بِمَا لَمْ يُعْطَ

**بابـ ۸۳ - دَ دهوکې دَ ورکولو دپاره داسې ظاهر کول چه دا څیز زما دې، حالانکه دَهغه نۀ وی**

[۴۹۹۷]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ الْمُنْذِرِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، "أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لِي جَارَةً تَعْنِي ضَرَّةً هَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ إِنْ تَشَبَّعْتُ لَهَا بِمَا لَمْ يُعْطِ زَوْجِي؟ قَالَ: الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ".

د حضرت اسماء بنت سیدنا ابوبکر رضی الله عنه نه روایت دې چه یوې ښځې اووې اې د الله رسوله ! زما یوه ګاونډئ ده، که چرې زۀ هغې ته داسې ظاهره کړم چه دا څیز زما خاوند ماته راکړې دې، حالانکه راکړې ئې نۀ وی نو آیا په ما باندې به ګناه وی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل څوک چه داسې ظاهره کړی چه دا څیز زما دې، حالانکه هغه ته نۀ وی ورکړې شوې نو دَدۀ مثال دَ هغه سړی په شان دې چه هغه دَ مکر دوه کپړې اغوستې وی۔

**قوله:** ﴿ عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ لِي جَارَةً - تَعْنِي ضَرَّةً - هَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ إِنْ تَشَبَّعْتُ لَهَا بِمَا لَمْ يُعْطِ زَوْجِي قَالَ « الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلاَبِسِ ثَوْبَىْ زُورٍ »﴾

یوې زنانه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو چه زما یو بن ده نو که زه د یو داسې څیز په باره کښې چه ماته خاوند نه وی راکړې په هغې باندې ښکاره کړم چه ماته زما خاوند راکړې دې نو په دې کښې څۀ باک خو نشته د دې په جواب کښې رسول الله ﷺ دا اوفرمائیل چه : ﴿ الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلاَبِسِ ثَوْبَىْ زُورٍ ﴾ رسول الله ﷺ د هغې عدم جواز لره یو مثال سره تشبیه ورکولو باندې بیان اوفرمائیلو.

دې زنانه د رسول الله ﷺ نه د ﴿ تشبع بما لم يعط الزوج ﴾ اجازت غوښتلې وو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه داسې کونکې خو د هغه سړی مشابه دې چا چه دواړه جامې د دروغو اچولې وی چه د هغه پوره جامه د دروغو وی، څکه چه عرب خلق د دوه کپړو اغوستلو عادت وو هم دا د هغوی پوره جامه وه (ازار او رداء) د تشبع معنی په لغت کښې دا ده چه سړې د لوږې باوجود په تکلف موړ جوړشی او خپل موړ والې ښکاره کوی.

**(د ثوبی زور نه څه مراد دی؟)**

د دروغو د جامې نه څه مراد دې د دې په شرح کښې لیکلې شوې دی چه لکه څوک د زاهدانو او صوفیانو په شان جامې واچوی او په حقیقت کښې هغه زاهد نه وی د جواب حاصل دا شو چه تشبع بما لم يعط جائز نه دې، دا ټول په ټوله دروغ دی، او بعض شارحینو ﴿ ثوبی زور ﴾ د دروغو د کپړې شرح دا لیکلې ده چه بعض خلق په طور د فخر او د خپل

[1] ): صحيح البخاري/النكاح ۱۰۷ (۵۲۱۹)، صحيح مسلم/اللباس ۳۵ (۲۱۳۰)، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۴۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۳۴۵،۳۴۶،۳۵۳) (صحيح)

رياست د ښکاره کولو دپاره داسې کوي چه د خپل قميص په لستونړي کښې دننه يو بله کپړه زورنده کړي کومه چه د بهر نه ښکاري چه خلق دا اوګنړي چه هغه ماشاء الله دوه کپړې اچولې دي او دا د بل قميص لستونړې دې، او يو تفسير د ﴿ لابس ثوبي زور ﴾ دا کړې شوې دې چه څنګه يو سړې د بل جامې په سوال واخلي او هغه اغوستلو سره په هغې باندې فخر کوي دا ښکاره کولو سره چه دا جامې زما دي.

## باب مَا جَاءَ فِي الْمِزَاحِ

### باب: ۸۴ - دَ مزاح او خوش طبعئ بيان

[۴۹۹۸]([1]) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ أَنَسٍ، "أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، احْمِلْنِي، قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّا حَامِلُوكَ عَلَى وَلَدِ نَاقَةٍ، قَالَ: وَمَا أَصْنَعُ بِوَلَدِ النَّاقَةِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلَ إِلَّا النُّوقُ".

د حضرت انس رضي الله عنه نه مروي دي چه يو سړې نبی کرم صلی الله علیه وسلم ته راغې اووې وئيل اې د الله رسوله ! ماته څه سورلي عنايت اوفرمائې نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل مونږه تاته د اوښې بچي درکوو -" نو هغه اووې زۀ به د اوښې په بچی باندې څه کووم؟ نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل اوښ لره خو هم اوښه زيږه وي -

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلاً أَتَى النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ احْمِلْنِي. قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « إِنَّا حَامِلُوكَ عَلَى وَلَدِ نَاقَةٍ »﴾

يو سړې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راغلو او عرض ئې اوکړو چه زما سورلئ پکار ده راکړئ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل مونږ به تا سور کړو د اوښې په بچی باندې، (رسول الله صلی الله علیه وسلم دا په مزاح کښې اوفرمائيل) هغه عرض اوکړو چه زه د اوښې په بچی څه کوم هغه خو د سورلئ د کار نه وي، رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل : وَهَلْ تَلِدُ الإِبِلَ إِلاَّ النُّوقُ ...چه لوئې اوښ هم خپلې مور راوړې وي او هغه هم د خپلې مور بچې وي.

[۴۹۹۹]([2]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا يُونُسُ بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ الْعَيْزَارِ بْنِ حُرَيْثٍ، عَنْ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: "اسْتَأْذَنَ أَبُو بَكْرٍ رَحْمَةُ اللَّهِ عَلَيْهِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعَ صَوْتَ عَائِشَةَ عَالِيًا، فَلَمَّا دَخَلَ تَنَاوَلَهَا لِيَلْطِمَهَا، وَقَالَ: أَلَا أَرَاكِ تَرْفَعِينَ صَوْتَكِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْجِزُهُ، وَخَرَجَ أَبُو بَكْرٍ مُغْضَبًا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ خَرَجَ أَبُو بَكْرٍ: كَيْفَ رَأَيْتِنِي أَنْقَذْتُكِ مِنَ الرَّجُلِ، قَالَ: فَمَكَثَ أَبُو بَكْرٍ أَيَّامًا، ثُمَّ اسْتَأْذَنَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَوَجَدَهُمَا قَدِ اصْطَلَحَا، فَقَالَ: لَهُمَا أَدْخِلَانِي فِي سِلْمِكُمَا كَمَا أَدْخَلْتُمَانِي فِي حَرْبِكُمَا، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَدْ فَعَلْنَا قَدْ فَعَلْنَا".

د حضرت نعمان بن بشير نه روايت دې چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه د دننه داخليدو اجازت اوغوستو نو هغوی د حضرت عائشې رضي الله عنها آواز واوريدو چه څه قدرې

[1]: سنن الترمذي/البر والصلة ۵۷ (۱۹۹۱)، (تحفة الأشراف: ۶۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۶۷/۳) (صحيح)
[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۱۶۳۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۷۲/۴، ۲۷۵) (ضعيف الإسناد)

اوچت وو - کله چه هغه دننه راغي نو هغوی حضرت عائشي ﷺ لره د وهلو دپاره اونیوه - اووې فرمائیل زهٔ تالره وینمه چه تهٔ د نبی کریم ﷺ په وړاندې خپل آواز اوچتوې - نو نبی کریم ﷺ هغې لره خلاصه کړه او حضرت ابوبکر ﷺ غصه بهر اووتلو، کله چه حضرت ابوبکر ﷺ لاړو نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: اوګوره! تالره ما ددې سړی نه څنګه خلاص کړو؟ حضرت ابوبکر ﷺ څو ورځې توقف اوکړو او بیا ئې د رسول الله ﷺ نه د دننه داخلیدو دپاره اجازت اوغوستو او هغوی لره ئې بیا موندو چه د هغوی صلح شوې ده، نو هغوی ته ئې اوفرمائیلو چه مالره هم په خپله صلح کښې شامل کړئ لکه څنګه چه تاسو په خپله جګړه کښې شامل کړې ووم-

**قوله:** ﴿ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ اسْتَأْذَنَ أَبُو بَكْرٍ رضى الله عنه عَلَى النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– فَسَمِعَ صَوْتَ عَائِشَةَ عَالِيًا الخ ﴾

یعنی یو ځل صدیق اکبر ﷺ د رسول الله ﷺ د حجرې شریفې دروازې ته رارسیدلو سره اجازت طلب کړو د دننه داخلیدو، هم په دې وخت کښې د دننه نه هغوی باندې د عائشې ﷺ په زوره د خبرو کولو اواز راغلو، چه کله هغوی دننه داخل شو نو عائشه ﷺ ئې وهله په دې وینا سره چه ته د رسول الله ﷺ مخکښې خپل اواز اوچتوې، رسول الله ﷺ زر رامخکښې شو او هغه ئې ترې نه بچ کړه، ابوبکرصدیق ﷺ خفه کیدو سره د کور نه اوتلو، کله چه هغه لاړو نو رسول الله ﷺ عائشې ﷺ ته اوفرمائیل: ﴿ كَيْفَ رَأَيْتِنِى أَنْقَذْتُكِ مِنَ الرَّجُلِ ﴾ چه اوګوره ما ته د دې سړی نه څنګه بچ کړې په دې قصه کښې د مزاح خبره هم دا ده چه رسول الله ﷺ د عائشې ﷺ د پلار نه په رجل سره تعبیر اوفرمائیلو، وړاندې په روایت کښې دی چه څو ورځې تیریدلو نه پس ابوبکر ﷺ بیا هم هلته حاضر شو او د دننه راتلو اجازت ئې طلب کړو چه دننه داخلیدو سره ئې دواړه خوشحاله او راضی اولیدل نو وې فرمائیل: ﴿ أَدْخِلاَنِى فِى سِلْمِكُمَا كَمَا أَدْخَلْتُمَانِى فِى حَرْبِكُمَا ﴾ چه ما د دوستئ او سلامتئ په وخت کښې هم خپل ځان ته راوبلئ څنګه مو چه د جنګ په وخت رابللې اوم، دا د صدیق اکبر ﷺ د طرف نه مزاح دې، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: قَدْ فَعَلْنَا قَدْ فَعَلْنَا ..بالکل بالکل راځئ راځئ.[1]

[۵۰۰۰] (۲) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْعَلاَءِ، عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِى إِدْرِيسَ الْخَوْلاَنِىِّ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الأَشْجَعِىِّ، قَالَ: "أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِى غَزْوَةِ

[1] حضرت شیخ په بذل کښې د رسول الله ﷺ د مزاح د روایاتو طرف ته اشاره کړې ده، پس په هغې کښې دی قال المناوي ۳٤/۲ قیل لسفیان بن عیینة المزاح محنة؟ قال بل سنة، لکن الشان في من یحسنه ویضعه مواضعه ودخل الشعبي ولیمة فراي اهلها سکوتا فقال ما لي اراکم کانکم في جنازة، این القناء این الدف الخ قلت وقد ثبت عن النبي ﷺ فعلا وتقریرا الانواع العدیدة من المزاح، منها ما في الشمائل في اختضانه ﷺ زاهرامن خلفه وهو لا یبصره ومنها ما في المرقاة (مناقب عمر في اخر الفصل ج۵ص ۵٤۱) من لطخ عائشة وجه سودة بحریرة لابائها عن اکلها وضحکه ﷺ فیا للاسف ان النصاري اخذوا حسناتنا واخذنا سیاتهم وتقدم قریبا حدیث النغیر اهـ)

[2]: صحیح البخاري/الجزیة ۱۵ (۳۱۷۶)، سنن ابن ماجه/الفتن ٤۲ (٤۰٤۲)، (تحفة الأشراف: ۱۹۰۰۳، ۱۰۹۱۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۲/٦) (صحیح)

تَبُوكَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ، فَسَلَّمْتُ، فَرَدَّ وَقَالَ: ادْخُلْ، فَقُلْتُ: أَكُلِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: كُلُّكَ فَدَخَلْتُ".

د حضرت عوف بن مالک اشجعي رضي الله عنه نه روايت دي چه د عزوة تبوک په سفر کښي زۀ د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کښي حاضر شوم هغه د چمړي په يوه خيمه کښي ناست وو - ما سلام اوکړو نو حضور صلی الله عليه وسلم جواب راکړو اووي فرمائيل دننه راشه، ما عرض اوکړو آيا زۀ ټول درشم اي دَ الله رسوله ! حضور صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ټول راشه - او زۀ دننه داخل شوم.

**قوله**: ﴿ عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الأَشْجَعِيِّ قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فِى غَزْوَةِ تَبُوكَ وَهُوَ فِى قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ ﴾

عوف اشجعي رضي الله عنه فرمائی چه زه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلم په غزوه تبوک کښې او هغوی د يو څرمنې په خيمه کښې ناست وو ما سلام عرض کړو، رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغې جواب راکړو او وې فرمائيل داخل شه، هغه وائی چه ما عرض اوکړو : ﴿ أَكُلِّى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ « كُلُّكَ » ﴾ آيا پوره داخل شم، يعنی پوره بدن سره رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل او پوره راشه، په بل روايت کښې دی ﴿ من صغر القبة ﴾ يعنی دا خبره ئې د قبې د وړوکوالی د وجې نه کړې وه.

[۵۰۰۱]([۱]) حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي الْعَاتِكَةِ، قَالَ: إِنَّمَا قَالَ: أَدْخُلُ كُلِّي مِنْ صِغَرِ الْقُبَّةِ.

د عثمان بن ابو عاتکه نه روايت دي (په مذکوره بالا قصه کښې) عوف بن مالک چه کوم اوفرمائيل چه زۀ ټول دننه درشم -" دا په دې وجه سره وو چه هغه خيمه وړه غوندې وه.

[۵۰۰۲]([۲]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا ذَا الأُذُنَيْنِ".

حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه (يو ځل) نبی کريم صلی الله عليه وسلم ماته داسې اواز اوکړو اې د دوو غوږونو والا -

﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ لِى النَّبِىُّ –صلى الله عليه وسلم– « يَا ذَا الأُذُنَيْنِ » ﴾

سيدنا انس رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله عليه وسلم ماته په دې وينا سره آواز اوفرمائيلو يا ذا الاذنين اې د دوه غوږنو والا! يعنی د مزاح د وجې نه رسول الله صلی الله عليه وسلم داسې اوفرمائيل. او د مزاح سره سره په دې کښې د انس رضي الله عنه مدح ته هم اشاره ده چه ماشاء الله د هغه دوه غوږونه دی او په دواړو باندې اوريدل کوی، يعنی بيدار او ويخ دې.

## بَابُ مَنْ يَأْخُذُ الشَّيْءَ عَلَى الْمِزَاحِ

### باب: په خنده خنده کښې يو څيز راخستل

[۵۰۰۳]([۳]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ. ح وحَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ،

[۱]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۱۸، ۱۹۰۰۳) (ضعيف الإسناد)
[۲]: سنن الترمذي/المناقب ٤٦ (۱۹۹۲)، (تحفة الأشراف: ۹۳٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۱۱۷، ۱۲۷، ۲٤۲، ۲٦۰) (صحيح)
[۳]: سنن الترمذي/الفتن ۳ (۲۱٦۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۸۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/۲۲۱) (حسن)

أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَأْخُذَنَّ أَحَدُكُمْ مَتَاعَ أَخِيهِ لَاعِبًا وَلَا جَادًّا، وَقَالَ سُلَيْمَانُ: لَعِبًا وَلَا جِدًّا، وَمَنْ أَخَذَ عَصَا أَخِيهِ فَلْيَرُدَّهَا" لَمْ يَقُلِ ابْنُ بَشَّارٍ: ابْنِ يَزِيدَ، وَقَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

حضرت عبد الله بن سائب بن یزید د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکهٔ نه روایت کوی چه هغه دَ نبی کریم ﷺ نه اوریدلي دی چه هغه فرمائیل : په تاسو کښې دې څوک دَ خپل رور څه څیز هر گز نهٔ اخلی، په خندا او مزاح کښې او نهٔ په حقیقت کښې په رښتنی طور باندې ـ" دَ سلیمان (بن عبد الرحمن) الفاظ وو [ لعبا ولا جدا ] او چا چه دَ خپل رور نه څه همسا هم اخستې وی نو هغه دې واپس کړی ـ" محمد بن بشار دَ (عبد الله بن سائب په نسب کښې) ابن یزید نهٔ دی وئیلې ـ اودَ [سمع النبی یقول په ځائې باندې ئې) قال رسول الله ﷺ وئیلې دی ـ

**قوله**: ﴿ لَا يَأْخُذَنَّ أَحَدُكُمْ مَتَاعَ أَخِيهِ لَاعِبًا جَادًّا ﴾ د دې جملې په شرح کښې څو احتمالات دی. ۱: په تاسو کښې دې څوک د خپل ملگری سامان نه اوچتوی، په شروع کښې خو په ټوقو کښې او روستو حقیقتاً ، یعنی د اوچتولو په وخت خو ئې مزاح ښکاره کړې وو د ملگری سره او بیا ئې روستو حقیقتاً هغه څیز ځان سره کیخودلو ، نو په دې صورت کښې به تقدیر د عبارت داسې وی: ﴿ لا عبا ابتداء جادا انتهاء ﴾ ۲: په ظاهر کښې خو په مزاح او ټوقو کښې او بباطن حقیقةً، یعنی د اخستلو په وخت خو دا ښکاره کوی چه په ټوقو کښې ئې اخلی او په زړه کښې ئې دا دی چه حقیقتاً به ئې اونیسم، یعنی لا عبا ظاهرا وجادا باطنا، ۳: د دویم معنې عکس چه ښکاره خو کړی چه په حقیقت کښې ئې اخلم د هغه د خفه کولو دپاره او په حقیقت کښې ئې د اخستلو اراده نه وی، یعنی لا عبا فی الواقع وجادا فی الظاهر. ۴: لا لا عبا ولا جادا، یعنی د بل څیز دې نه په ټوقو کښې اخلی او نه حقیقت کښې.

[۵۰۰۴](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ: حَدَّثَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّهُمْ كَانُوا يَسِيرُونَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَنَامَ رَجُلٌ مِنْهُمْ، فَانْطَلَقَ بَعْضُهُمْ إِلَى حَبْلٍ مَعَهُ، فَأَخَذَهُ فَفَزِعَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُرَوِّعَ مُسْلِمًا".

د حضرت عبد الرحمن بن ابو لیلی نه روایت دې چه د حضرت محمد ﷺ صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم فرمائیلې دی چه دغه خلق دَ نبی کریم ﷺ سره په سفر کښې تلل نو په دوی کښې یو کس اودهٔ شو او دویم کس دَ هغه نه رسئ واخسته کومه چه دَ هغه سره وه، نو هغه اویریدهٔ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دَ هیڅ مسلمان دپاره جائز نهٔ دی چه هغه دویم مسلمان لره اویره وی ـ

﴿ لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُرَوِّعَ مُسْلِمًا ﴾ د پوره حدیث مضمون دا دی عبدالرحمن بن ابی لیلی د بعض صحابه کرامو رضی الله عنهم نه نقل کوی چه هغوی یو ځل د رسول الله ﷺ سره په یو سفر کښې روان وو چه د هغوی یو ملگرې اودهٔ شو چه د هغه سره د هغه رسئ هم وه، د هغه یو ملگری هغه رسئ اوچته کړه هسې د هغه د ویرولو دپاره په ټوقو کښې، چه کله هغه پاسیدو او وې کتل چه زما رسئ غائب ده نو اویریدو ، رسول الله ﷺ ته هم د دې خبرې خبر ملاؤ شو نو

¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۶۲۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۲/۵) (صحيح)

هغوی پورته ذکر شوې جمله ارشاد اوفرمائیله چه د یو مسلمان دپاره جائز نه دی چه بل مسلمان اویروی.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمُتَشَدِّقِ فِي الْكَلَامِ

### باب ۸۶- په تکلف سره خبرې کول

تشدق د شدق نه اخستلې شوې دې په معنی د ژامنې، د هر انسان دوه ژامنې وی چه په هغې کښې لاندې د خوراک څکاک او خبرو په وخت کښې متحرک وی، د تشدق فی الکلام نه مراد تکلف دې یعنی په تکلف سره خبره کول، یا بغیر د غور او فکر نه خبره کول بغیر د احتیاط نه، او یو تفسیر د دې دا هم دې چه د خبرو کولو په وخت خوله ورانول، بل ته د اذیت ورکولو دپاره.

[۵۰۰۵](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ الْبَاهِلِيُّ، وَكَانَ يَنْزِلُ الْعَوَقَةَ، حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ بِشْرِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ ابْنُ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُبْغِضُ الْبَلِيغَ مِنَ الرِّجَالِ الَّذِي يَتَخَلَّلُ بِلِسَانِهِ تَخَلُّلَ الْبَاقِرَةِ بِلِسَانِهَا".

د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي: په تحقیق سره الله جل شانه هغه سړی باندې غصه کیږی کوم چه (په ناحقه باندې) زبان آور وی (یعنی چه بلیغې خبرې کوی او ډیرې خبرې جوړه وی) او خپله ژبه داسې چلوی لکه څنګه چه غوا چلوی - (یعنی لکه څنګه چه څناور ګیا خوری او رطب او یابس هر قسم ګیا ته خلۀ اچوی دغه شان دې هم په هر قسم خبره باندې خپله خلۀ چلوی)

**قوله:** ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ يُبْغِضُ الْبَلِيغَ مِنَ الرِّجَالِ الَّذِي يَتَخَلَّلُ بِلِسَانِهِ تَخَلُّلَ الْبَاقِرَةِ بِلِسَانِهَا ﴾ الله پاک په خلقو کښې د داسې فصیح او بلیغ سره بغض ساتی کوم چه خپله ژبه چلوی په خوله کښې دننه څنګه چه غوا د ګیا خوړلو په وخت ژبه تاوهی او کومه ګیا ئې چه هم خولې ته اورسی په هغې شخوند وهی مراد د دې نه هغه سړې دې کوم چه په تکلف او تصنع سره مبالغه فی الکلام کوی چه د هغه ژبه مسلسل ګرځی او په تکلف سره خبرې کوی باقی نفس بلاغت او طبعی فصاحت مذموم نه دې بلکه تکلف فی البلاغة.

[۵۰۰۶](²) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَعَلَّمَ صَرْفَ الْكَلَامِ لِيَسْبِيَ بِهِ قُلُوبَ الرِّجَالِ أَوِ النَّاسِ، لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا وَلَا عَدْلًا".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: چا چه د خبرو صرف (یعنی د خبرو جوړولو طریقه او انداز) ددې دپاره زده کړو چه هغه په دې ذریعه سره د خلقو زړونه واخلی، نو الله جل شانه به د قیامت په ورځ باندې ددۀ هیڅ فرض او نفل نۀ قبلوی.

**قوله:** ﴿ مَنْ تَعَلَّمَ صَرْفَ الْكَلَامِ لِيَسْبِيَ بِهِ قُلُوبَ الرِّجَالِ أَوِ النَّاسِ لَمْ يَقْبَلِ اللَّهُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَرْفًا

¹): سنن الترمذي/الأدب ۷۲ (۲۸۵۳)، (تحفة الأشراف: ۸۸۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۶۵، ۱۸۷) (صحيح)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۱۰) (ضعيف)

وَلاَ عَدْلاً ﴾ کوم سړي چه جذباتي تقريرونه زده کړي د خلقو زړونه په هغې باندې د مقيد کولو دپاره يعنی خپل طرف ته د مائل کولو دپاره نو د قيامت په ورځ باندې به الله پاک نه د هغه فرض عبادت قبول کړي او نه نفل، او يو قول دا دې چه د صرف نه مراد توبه او د عدل نه مراد فديه ده.

په بذل کښې ليکلې دی چه: كتب مولانا محمد يحيى المرحوم فى التقرير قوله ليسبى به القلوب، فاما لو نوى فيه ان يوثر كلامه ووعظه فى سبيل الله خالصا فلا ضير، يعنی حضرت ګنګوهي رحمه الله فرمائی چه که يو مقرر جذباتي تقرير په دې نيت کوی چه د هغه د کلام او وعظ اثر په قلوب باندې اوشی او هغوی د دې نه متاثر شی په اخلاص سره، د الله پاک دپاره نو په دې کښې هيڅ باک نشته.اه

[۵۰۰۷]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: "قَدِمَ رَجُلَانِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَعَجِبَ النَّاسُ يَعْنِي لِبَيَانِهِمَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا، أَوْ إِنَّ بَعْضَ الْبَيَانِ لَسِحْرٌ".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه د مشرق د جانب نه دوه سړی راغلل او هغوی خطاب اوکړو نو خلقو ته دَ هغوی په اسلوب خطاب او بيان باندې ډير تعجب اوشو نو رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل: "بې شکه بعضې دَ بيان نه (سحر) جادو دې.

**قوله:** ﴿ قَدِمَ رَجُلاَنِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَخَطَبَا فَعَجِبَ النَّاسُ – يَعْنِي لِبَيَانِهِمَا – فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا ».أَوْ « إِنَّ بَعْضَ الْبَيَانِ لَسِحْرٌ » ﴾

سيدنا عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه يو ځل مدينې طيبې ته دوه کسان د بلاد مشرق نه راغلل هغوی بيل بيل تقريرونه اوکړل، چه په هغې باندې خلق حيران شو نو په دې موقع باندې رسول الله صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه واقعی بعض بيان د جادو په شان اثر لری، يعنی د جادو په شان موثر، زړونو لره مائل کونکې، پس که مائل کول د زړونو وی د حق طرف ته نو هغه بيان ممدوح دې، او که مقصود مائل کول وی د باطل طرف ته نو داسې بيان مذموم دې، وقد اطال الكلام فى معنى هذا الحديث الشيخ الامام ابوهلال العسكرى فى كتابه "جمهرة الامثال" والامام ابوالفضل الميدانى فى كتابه "مجمع الامثال"، او په حاشيه د بذل کښې ليکلې دی چه د دې حديث په باره کښې د علماء کرامو دواړه اقوال دی بعض وائی چه په دې کښې مقصود مدح ده د کلام بليغ او ونيلې شوې دی چه مقصود مذمت دې.

### (دا دوه سړی څوک وو؟)

او دا دوه سړی راتلونکی په دوی کښې د يو نوم زبرقان بن بدر ليکلې دې او دويم عمرو بن الاهتم او دواړه صحابه رضی الله عنهما دی.او د هغوی دا راتلل په ۹ هجری کښې شوې وو (عون) په بذل کښې د دې دواړو د تقرير قصه هم ليکلې شوې ده فارجع اليه لوشئت،

(): صحيح البخاري/النكاح ٤٧ (٥١٤٦)، الطب ٥١ (٥٧٦٧)، سنن الترمذي/البر والصلة ٨١ (٢٠٢٩)، (تحفة الأشراف: ٦٧٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٧٢، ٥٩، ٦٢، ٩٤، ٢٦٣/٤) (صحيح)

د هغې په اخر کښې دا هم دي چه په ظاهر کښې د دې قصې نه معلومیږي چه رسول الله ﷺ د دې مذمت فرمائیلې دې د هغوی د طرز کلام په تلون باندې چه هغه یوه ورځ د زبرقان مدح اوکړه او په بله ورځ باندې ئې مذمت اوکړو نو چه کله رسول الله ﷺ تپوس اوکړو چه دا څۀ دي، نو هغه جواب ورکړو چه اوله ورځ باندې چه څه وئیلې وو هغه هم صحیح وو او کوم چه مو روستو اووې هغه دروغ نه دي، د هغه جواب اوریدلو نه پس رسول الله ﷺ دا جمله ارشاد اوفرمائیله.

[۵۰۰۸](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ الْبَهْرَانِيُّ، أَنَّهُ قَرَأَ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَيَّاشٍ، وَحَدَّثَهُ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ ابْنُهُ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: حَدَّثَنِي ضَمْضَمٌ، عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو ظَبْيَةَ، أَنَّ عَمْرَو ابْنَ الْعَاصِ، قَالَ يَوْمًا وَقَامَ رَجُلٌ فَأَكْثَرَ الْقَوْلَ، فَقَالَ عَمْرٌو: "لَوْ قَصَدَ فِي قَوْلِهِ لَكَانَ خَيْرًا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: لَقَدْ رَأَيْتُ أَوْ أُمِرْتُ أَنْ أَتَجَوَّزَ فِي الْقَوْلِ، فَإِنَّ الْجَوَازَ هُوَ خَيْرٌ".

د حضرت ابو ظبیه (کلاعی حمصی) نه روایت دې چه یوه ورځ یو سړی خطاب اوکړو او ډیرې خبرې ئې اوکړې : نو حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه اوفرمائیل که چرې دۀ په خپلو خبرو کښې میانه روی (اعتدال) اختیار کړې وې نو ددۀ دپاره به ډیره بهتره وې، ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغه فرمائیل : تحقیق ما لیدلې دی یا ئې اوفرمائیل ماته حکم کړې شوې دې چه په خبرو کښې میانه روی (اعتدال) اختیار کړم - بې شکه میانه روی سراسر خیر دې -

**قوله**: ﴿ أَنَّ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ قَالَ يَوْمًا وَقَامَ رَجُلٌ فَأَكْثَرَ الْقَوْلَ فَقَالَ عَمْرٌو لَوْ قَصَدَ فِي قَوْلِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « لَقَدْ رَأَيْتُ أَوْ أُمِرْتُ أَنْ أَتَجَوَّزَ فِي الْقَوْلِ فَإِنَّ الْجَوَازَ هُوَ خَيْرٌ » ﴾

یعنی سړې یو ورځ اودریدلو او ډیر اوږد تقریر ئې اوکړو په دې باندې عمرو بن العاص رضي الله عنه اوفرمائیل چه که دې سړي په خپل کلام او تقریر کښې میانه روی اختیار کړې وې او دومره اوږد تقریر ئې نه وې کړې نو د هغه په حق کښې به غوره وې، ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغوی به فرمائیل چه زه مناسب گنړم، یا دا چه ماته حکم کړې شوې دې د دې خبرې چه په خبره کښې اختصار اوکړم ځکه چه په ایجاز او اختصار کښې خیر دې.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الشِّعْرِ

### باب ۸۷ - دَ شعر او شاعرئ بیان

[۵۰۰۹](۲) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ أَحَدِكُمْ قَيْحًا خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا"، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: بَلَغَنِي عَنْ أَبِي عُبَيْدٍ، أَنَّهُ قَالَ وَجْهُهُ: أَنْ يَمْتَلِئَ قَلْبُهُ حَتَّى يَشْغَلَهُ عَنِ الْقُرْآنِ وَذِكْرِ اللَّهِ، فَإِذَا كَانَ الْقُرْآنُ وَالْعِلْمُ الْغَالِبَ، فَلَيْسَ جَوْفُ هَذَا عِنْدَنَا مُمْتَلِئًا مِنَ الشِّعْرِ، وَإِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا، قَالَ: كَأَنَّ الْمَعْنَى: أَنْ يَبْلُغَ مِنْ بَيَانِهِ: أَنْ يَمْدَحَ

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۴۷) (حسن الإسناد)

(۲): صحيح البخاري/الأدب ۹۲ (۶۱۵۵)،صحيح مسلم/الشعر ۷ (۲۲۵۷)، سنن الترمذي/الأدب ۷۱ (۲۸۵۱)، سنن ابن ماجه/الأدب ۱ (۳۷۵۹)، (تحفة الأشراف: ۱۲۴۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۸۸، ۳۳۱، ۳۵۵، ۳۹۱، ۴۸۰) (صحيح)

الْإِنْسَانَ فَيَصْدُقَ فِيهِ حَتَّى يَصْرِفَ الْقُلُوبَ إِلَى قَوْلِهِ، ثُمَّ يَذُمَّهُ فَيَصْدُقَ فِيهِ حَتَّى يَصْرِفَ الْقُلُوبَ إِلَى قَوْلِهِ الْآخَرِ، فَكَأَنَّهُ سَحَرَ السَّامِعِينَ بِذَلِكَ.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي، په تاسو کښې چه د چا خيټه د پيپ نه ډکه شي دا د هغه دپاره ددې نه بهتره ده چه د شعرونو نه ډکه شي - حضرت ابو علي (لؤلؤي) رحمه الله فرمائي: چه ددې ارشاد په توضيح کښې د حضرت ابو عبيده قول مونږه ته رارسيدلي دي چه ددې نه مراد دادې چه څوک په شعر او شاعرئ کښې دومره منهمک او مشغول شي چه د قرآن مجيد او د الله د ذکر نه پرې غافل شي، (نو دا انتهائي مذموم دي) ليکن که قرآن مجيد او د علم مشغله غالبه وي نو داسې سړې زمونږ په خيال کښې ددې مصداق نۀ جوړيږي چه ددهٔ خيټه د شعرونه ډکه ده - (او دا حديث چه) بې شکه بعضې بيان جادو وي ددې مفهوم دادې چه څوک د چا مدح کوي او په داسې عمدګئ سره ئې اوکړي چه د خلقو زړونه ددهٔ طرف ته مائل شي او بيا چه کله د هغه مذمت کوي نو په داسې انداز کښې ئې کوي چه خلق دَدهٔ دې بلې خبرې طرف ته واوړي - ګويا چه دهٔ دې سامعينو لره په دې خبرې سره مسحور کړل -

**قوله:** ﴿ لَأَنْ يَمْتَلِئَ جَوْفُ أَحَدِكُمْ قَيْحًا خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَمْتَلِئَ شِعْرًا ﴾ د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه د سړي خيټه او د هغه باطن که د پيپ نه ډک شي دا غوره ده د دې په نسبت چه د هغه باطن ډک وي د اشعارو نه.

د مصنف رحمه الله شاګرد ابوعلي د دې حديث شرح د ابوعبيد قاسم بن سلام نه نقل کوي چه دا په هغه صورت کښې ده چه کله هغه اشعار هغه لره د قران کريم د تلاوت او ذکر الله نه غافل کړي، خو که د دې باوجود پرې قرآن او علم غالب وي نو دا مذموم نه دی، او د هغه سړي په باره کښې دا نه صادقيږي چه د هغه خيټه د اشعارو نه ډکه ده، او د دې نه پس بيا د تير حديث ﴿ ان من البيان لسحرا ﴾ تفسير نقل کوي چه د سحر کيدو مطلب دا دې چه په خپل کلام او بيان کښې دومره ماهر شي چه د يو سړي په مدح باندې راشي او د هغه ښه مدح اوکړي چه په هغې کښې صرف رشتيا استعمال کړي او هم د هغې نه کار واخلی چه په هغې سره خلق د هغه ممدوح معتقد شي او بيا هم د هغه مذمت شروع کړي او په هغې هم د حقيقت خلاف څه خبره اونکړي تر دې چه خلق دا سړې مذموم اوګڼړي يعنی څنګه چه د کوم سړي د خپل تقرير په زور سره قابل مدح کيدل ثابت کړې وو، بيا هم دغه شان په خپل کلام او بيان سره د هغه د قابل مذمت کيدلو خلقو له باور ورکړي، لکه چه هغه په سامعينو باندې سحر کړې وي

[۵۰۱۰] (١) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ يَغُوثَ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً".

[1]: صحيح البخاري/الأدب ٩٠ (٦١٤٥)، سنن ابن ماجه/الأدب ٤١ (٣٧٥٥)، (تحفة الأشراف: ٥٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٥/٥، ١٢٦)، سنن الدارمي/الاستئذان ٦٨ (٢٧٤٦) (صحيح)

دَ حضرت ابی ابن کعب رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل بې شکه بعضې دَ شعر نه حکمت دې، (یعنی بعضې شعرونه دَ حکمت نه ډک وی) -

**قوله:** ﴿ ان من الشعر حکمة ﴾ او په بل روایت کښې دی ﴿ حکما ﴾ د حکم معنی د حکمت ده کما فی قوله تعالی : واتیناه الحکم صبیا ...یعنی واقعی بعض اشعار په ډیر حکمت باندې مشتمل وی.

[۵۰۱۱]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَتَكَلَّمُ بِكَلَامٍ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا، وَإِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا".

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی چه یو د باندې اوسیدونکې نبی کریم ﷺ ته راغې او په خپل مخصوص انداز کښې ئې خبرې اوکړې نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل " بې شکه بعض بیان جادو وی او بې شکه بعضې شعر حکمت وی -

[۵۰۱۲]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو تُمَيْلَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو جَعْفَرٍ النَّحْوِيُّ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ ثَابِتٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي صَخْرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا، وَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلًا، وَإِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا، وَإِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عِيَالًا"، فَقَالَ صَعْصَعَةُ بْنُ صُوحَانَ: صَدَقَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَمَّا قَوْلُهُ: إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا، فَالرَّجُلُ يَكُونُ عَلَيْهِ الْحَقُّ وَهُوَ أَلْحَنُ بِالْحُجَجِ مِنْ صَاحِبِ الْحَقِّ، فَيَسْحَرُ الْقَوْمَ بِبَيَانِهِ فَيَذْهَبُ بِالْحَقِّ، وَأَمَّا قَوْلُهُ: إِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلًا، فَيَتَكَلَّفُ الْعَالِمُ إِلَى عِلْمِهِ مَا لَا يَعْلَمُ فَيُجَهِّلُهُ ذَلِكَ، وَأَمَّا قَوْلُهُ: إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا، فَهِيَ هَذِهِ الْمَوَاعِظُ وَالْأَمْثَالُ الَّتِي يَتَّعِظُ بِهَا النَّاسُ، وَأَمَّا قَوْلُهُ: إِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عِيَالًا، فَعَرْضُكَ كَلَامَكَ وَحَدِيثَكَ عَلَى مَنْ لَيْسَ مِنْ شَأْنِهِ وَلَا يُرِيدُهُ.

حضرت صخر بن عبد الله بن بریده د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکۀ نه روایت کوی فرمائی چه ما دَ رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغه فرمائیل : بې شکه بعض بیان جادو وی او بعضې علم جهالت، بې شکه بعض شعر حکمت وی او بعضې اقوال عیال(بوج) وی - په دې باندې صعصعه بن صوحان اوفرمائیل رښتیا فرمائیلې دی دَ الله نبی ﷺ - د هغه دا فرمان چه بعض بیان جادو وی ددې وضاحت دادې چه په بعضو اوقاتو کښې دَ سړی په ذمه باندې څه حق وی (چه هغه حقدار ته ادا کړی) مګر هغه دَ حقدار په مقابله کښې الحن الحجج وی نو خلقو لره په خپل بیان سره مسحور کوی او حق وهی - او دَ حضور ﷺ دا فرمان : بعض علم جهالت وی -" ددې مفهوم دادې چه په بعضې وختونو کښې صاحب علم په هغه امورو کښې چه دۀ ته دَ هغې خبر نۀ وی په تکلف سره خبره کوی نو د جهالت ارتکاب کوی، او دَ حضور ﷺ دا قول : بعض شعر حکمت وی -" نو ددې نه مراد هغه اشعار دی چه په هغې کښې وعظ او نصیحت او عمده مثالونه ذکر کوی چه ددې نه خلق نصیحت بیا مومی، او د حضور ﷺ دا فرمان " بعض اقوال محض بوج وی -" ددې مفهوم دادې چه تۀ خپله خبره

[1]): سنن الترمذي/الأدب ٦٩ (٢٨٤٥)، سنن ابن ماجه/الأدب ٤١ (٣٧٥٦)، (تحفة الأشراف: ٦١٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٦٩، ٣٠٩، ٣١٣، ٣٢٧، ٣٣٢) (صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٧٩، ١٨٨١٧) (ضعيف)

داسي کس ته پيش کړي چه دا دهغه د ذوق او مزاج مطابق نه وی او نه هغه ددي اراده کوی.
﴿عن بريدة بن الحصيب سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ « إِنَّ مِنَ الْبَيَانِ سِحْرًا وَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلاً وَإِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حُكْمًا وَإِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عِيَالاً »﴾ وړاندي په متن کښي د دي حديث شرح ذکر شوي ده او په دي شرح کښي ﴿ ان من البيان سحرا ﴾ په مذمت باندي محمول کړي شوي دي چه يو سړي دي ډير د تيزي ژبي والا چه د هغه په ذمه د بل چا حق دي خو هغه د خپل بيان په زور باندي خلق مسحور او مغلوب کوی او د صاحب حق، حق هغه خپله په قبضه کښي واخلی، او د ﴿ ان من العلم جهلا ﴾ مطلب ئي دا بيان کړي دي چه يو عالم په څۀ مسئله کښي د هغي نه خبر نه وی په تکلف سره رائي ورکوی، نو د هغي دا رائي ورکول کوم چه صورة علم دي د صاحب بصيرة په نزد د هغه نه جاهل جوړوی، او د ﴿ ان من الشعر حكما ﴾ په باره کښي وائی چه واقعی ډير اشعار داسي وی چه په هغي کښي د حکمت او موعظت خبري وی او خلق د هغي نه نصيحت حاصلوی لکه چه مشاهده ده.
او ﴿ ان من القول عيالا ﴾ چه بعض کلام د خلقو په نزد وبال او سخت وی، فرمائی د دي نه مراد دا دي چه څوک ستاسو خبره اوريدل نه غواړی او نه د هغي اهل دي او خپل کلام په هغه باندي پيش کوي نو ظاهره ده چه هغه خوبه دهغي په اوريدو باندي تنگ شي.

[٥٠١٣]([1]) حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي خَلَفٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدٍ، قَالَ: "مَرَّ عُمَرُ بِحَسَّانَ وَهُوَ يُنْشِدُ فِي الْمَسْجِدِ فَلَحَظَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: قَدْ كُنْتُ أُنْشِدُ وَفِيهِ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِنْكَ".

د حضرت سعيد بن المسيب نه روايت دي چه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه په حضرت حسان رضی الله عنه باندي تير شو، او هغه په مسجد نبوی کښي شعرونه وئيل، نو حضرت عمر رضی الله عنه هغه ته په تيز نظر سره اوکتل نو هغه جواب ورکړو - بي شکه ما به په دي جمات کښي شعرونه وئيل او په دي کښي به هغه عظيمه هستی موجوده وه کوم چه ستانه ډير زيات افضل ترين وو -

**قوله:** ﴿ مَرَّ عُمَرُ بِحَسَّانَ وَهُوَ يُنْشِدُ فِي الْمَسْجِدِ ﴾ يعنی يو ځل سيدنا عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مشهور شاعر حسان بن ثابت رضی الله عنه باندي تير شو او هغه په مسجد کښي اشعار وئيل نو عمر رضی الله عنه د هغوی طرف ته اوکتل يعنی تنبيها، په دي باندي حسان رضی الله عنه اوفرمائيل چه ما خو به په مسجد کښي د هغه چا په موجودگۍ کښي اشعار وئيل کوم چه ستاسو نه غوره وو، يعنی رسول الله صلی الله علیه وسلم.

[٥٠١٤]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ بِمَعْنَاهُ زَادَ فَخَشِيَ أَنْ يَرْمِيَهُ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَجَازَهُ.

حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه د مذکوره بالا حديث هم معنی

[1]): صحيح البخاري/بدء الخلق ٦ (٣٢١٢)، صحيح مسلم/فضائل الصحابه ٣٤ (٢٤٨٥)، سنن النسائي/المساجد ٢٤ (٧١٧)، (تحفة الأشراف: ٣٤٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٢/٥) (صحيح)
[2]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٤٠٢) (صحيح)

روايت کړي دي- په دې کښې مزيد دادي : بيا حضرت عمر رضي الله عنه ته خيال راغي چه دې خو د رسول الله ﷺ اجازت پيش کوی - چنانچه هغه ته ئي اجازت اوکړو - (چه په جمات کښې شعر لوستې شي)

[۵۰۱۵]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمِصِّيصِيُّ لُوَيْنٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُرْوَةَ، وَهِشَامٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ لِحَسَّانَ مِنْبَرًا فِي الْمَسْجِدِ، فَيَقُومُ عَلَيْهِ يَهْجُو مَنْ قَالَ فِي رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ مَعَ حَسَّانَ مَا نَافَحَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به د حضرت حسان دپاره په مسجد نبوی کښې منبر ايخودلو - پس هغه به په دې منبر باندې اودريدو او د رسول الله ﷺ د مذمت کوونکو هجوه به ئي کووله - چنانچه رسول الله ﷺ اوفرمائيل حسان چه ترڅو پورې د رسول الله ﷺ د طرف نه دفاع کوی، روح القدس (جبريل امين) هغه سره دې"

**قوله**: ﴿ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يَضَعُ لِحَسَّانَ مِنْبَرًا فِي الْمَسْجِدِ فَيَقُومُ عَلَيْهِ ﴾ يعنى رسول الله ﷺ به د حسان رضي الله عنه دپاره په مسجد کښې منبر کيخودلو چه په هغې باندې به هغوی اودريدلو سره د رسول الله ﷺ د طرف نه د کفارو هجو کوله، يعنى په اشعارو کښې او رسول الله ﷺ دا هم فرمائيلى چه جبرائيل عليه السلام د حسان په تائيد کښې دې چه ترڅو پورې هغه د رسول الله ﷺ د طرف نه مدافعت کوی.

[۵۰۱۶]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ سورة الشعراء آية ۲۲۴، فَنَسَخَ مِنْ ذَلِكَ وَاسْتَثْنَى، فَقَالَ: إِلا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا سورة الشعراء آية ۲۲۷".

حضرت ابن عباس رضي الله عنه ددې آيت کريمه { وَالشَّعَرَاءُ يَتبِعُهُمُ الْغُوْوُنَ } په باره کښې فرمائى : چه ددې عموم منسوخ شوې دې او اصحاب ايمان ددې نه مستثنیٰ کړې شوې دی او فرمائيلې ئې دی : { إِلَّا الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَ ذَكَرُوا اللهَ كَثِيْرًا } مګر هغه کسان چه ايمان ئې راوړو او نيک عمل ئې اوکړو او د الله ئې ډير ذکر اوکړو.

**قوله**: ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ (وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ) فَنَسَخَ مِنْ ذَلِكَ وَاسْتَثْنَى فَقَالَ (إِلاَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا) ﴾

مطلب ښکاره دې چه د آيت کريمه په شروع کښې چه کوم راغلى دی چه د شعراء اتباع هم هغه خلق کوی کوم چه ګمراه وی. د دې نه په ظاهره عموم معلوميږي چه د ټولو شعراء دا حال دې چه د هغوی اتباع کونکی ګمراهان دی په دې وجه د دې آيت کريمه په آخر کښې د بعض شاعرانو استثناء اوکړې شوه کوم چه د هغوی شعر د الله پاک ذکر سره په غفلت کښې نه اچوی.

[۱]: سنن الترمذي/الأدب ٦٩ (٢٨٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٠٢٠، ١٦٣٥١)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/فضائل الصحابه ٣٤ (٢٤٨٥)، مسند احمد (٦/٧٢) (حسن)

[۲]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٦٨) (حسن الإسناد)

# باب فِي الرُّؤْيَا[1]

## باب ۸۸ - دَ خوبونو بیان

[۵۰۱۷]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ زُفَرَ بْنِ صَعْصَعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ: "أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا انْصَرَفَ مِنْ صَلَاةِ الْغَدَاةِ، يَقُولُ: هَلْ رَأَى أَحَدٌ مِنْكُمُ اللَّيْلَةَ رُؤْيَا، وَيَقُولُ: إِنَّهُ لَيْسَ يَبْقَى بَعْدِي مِنَ النُّبُوَّةِ إِلَّا الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چه نبی کریم ﷺ به کله د سحر د مانځه نه فارغ شو نو پوښتنه به ئي کووله آیا نن شپا په تاسو کښي چا څه خوب لیدلي دي؟ او فرمائیل به ئي بي شکه زما نه ورستو دَ نبوت څه حصه باقي نشته سوا ددي نه چه چا ته څه نیک خوب راشي.

**قوله:** ﴿ لَيْسَ يَبْقَى بَعْدِي مِنَ النُّبُوَّةِ إِلاَّ الرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ ﴾ د دي حدیث شرح په کتاب الصلاة باب في الدعاء في الركوع والسجود کښي تیره شوي ده هلته د حدیث الفاظ داسي دی: ﴿ لم يبق من مبشرات النبوة الا الرؤيا الصالحة يراها المسلم او ترى له ﴾

[۵۰۱۸]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ".

د سیدنا عباده بن صامت رضی الله عنه نه روایت دي چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل دَ مؤمن خوب د نبوت شپږ څلویښتمه حصه ده.

**قوله:** ﴿ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ جُزْءٌ مِنْ سِتَّةٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی د مومن د خوب په باره کښي چه هغه د نبوت په اجزاء کښي دي یعنی د علم نبوت په اجزاء کښي او د هغي د آثارو نه دي چه د هغي نه بعض د راروان پیښیدونکی امورو څه پته لګی او په بعض امور کښي مومن ته د هغي نه رهنمائی ملاویږی، اګر چه خوب حجة شرعیه نه دي خو د انسان په بعض نجی او ذاتی امورو کښي (بلکه په اجتماعی امورو کښي هم) د رهنمایئ ذریعه ضرور ده په دي شرط چه خوب د مومن سړی وی، قال الخطابی: معنى هذا الكلام تحقيق امر الرؤيا وتاكيده ....او بیا هغوی د حدیث شرح اوفرمائیله، خطابی هم داسي فرمائی چه د دي حدیث نه رؤیا صالحه او د رشتیني خوبونو اهمیت بیانول مقصود دی اهـ لهذا هغه چه وئیلي شی چه دا خو د خوب خبره ده، او د خوب څه اعتبار، مطلقا داسي وئیل

[1]) د حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښي دی واختلف في حقيقة الرؤيا علي اقوال ذكرها الحافظ في الفتح ۲۸٤/۱۲ اشد البسط، ويقال الرؤيا تختص بالمنام والرؤية باليقظة، وقيل الرؤيا عام كما بسطه القسطلاني في المواهب والزرقاني في شرحه في بحث المعراج، وفي الفتاوي الحديثية لابن حجر صفحه ۳ انه تخليق من الله سبحانه وتعالي وابطل غير ذلك من الاقاويل، وبسط الاختلاف فيها في شروح الشمائل ۲۸۹/۲، والكوكب ٦۹/۲ ومقدمة تعطير الانام وغيرها من كتب التعبير، وذكر في اعلام الموقعين ٦۹/۱ اصول التعبير)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۹۰۰، ۱۳۵۰۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الرؤيا ۱ (۲)، مسند احمد (۳۲۵/۲) (صحيح الإسناد)

[3]): صحيح البخاري/ التعبير ۲ (٦۹۸۷)، صحيح مسلم/ الرؤيا ۲ (۲۲٦٤)، سنن الترمذي/ الرؤيا ۱ (۲۲۷۱)، (تحفة الأشراف: ۵۰٦۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۸۵/۳، ۳۱٦/۵، ۳۱۹)، دي/الرؤيا ۱ (۲۱۸۲) (صحيح)

صحيح نه دى.

په دې حديث کښې دا دى چه د مومن سړى خوب د نبوت په شپږ څلويښتو اجزاء کښې يو جزء دې، د دې عدد په باره کښې روايات مختلف دى، د هغه ټولو رواياتو خلاصه په حاشيه د بذل کښې د فتح البارى ۱۲/۲۹۳نه نقل کړى ده قال الحافظ : وجملة ما ورد من العدد فى ذلک عشرة ۲۶، ۴۰، ۴۴، ۴۵، ۴۶، ۴۷ وهى اصحها، وقيل ۲۴، ۷۲، ۲۷،۴۲، ۲۵ د دې شپږ څلويښت عدد والا حديث تشريح داسې کړې شوې ده چه د رسول الله ﷺ د وحى ابتداء په خوبونو سره اوشوه او دا موده د خوبونو شپږ مياشتې ده کومه چه د نبوت د مودې شپږ څلويښتمه حصه ده ځکه چه د رسول الله ﷺ د نبوت موده درويشت کلونه ده، درويشت کاله که په شپږ شپږ مياشتو باندې تقسيم کړې شى نو هغه شپږ څلويښت جوړيږى لهذا خوبونه د نبوت شپږ څلويښتمه حصه شوه اکثر شارحين دا ليکى چه د رسول الله ﷺ مقصود په دې حديث سره دا بيانول دى چه خوب د نبوت د اجزاء نه دې فى الجلمة يعنى په بعض اعتبارات سره يعنى من وجه د بعض غيب په خبرو باندې د خبريدو په اعتبار سره، باقى دا چه د نبوت د دې جزء د اجزاء نبوت سره څه مناسبت دې، تفصيلا، مثلا شلم جز يا څلويښتم جزء وغيره وغيره کوم چه په رواياتو کښې راځى، د دې نسبت علم مونږ ته نشته، قاضى ابوبکر بن العربى فرمائى د اجزاء نبوت د تعداد په باره کښې :

اجزاء النبوة لا يعلم حقيقتها الا ملک او نبى وانما القدر الذى اراده النبى ان يبين ان الرويا جزء من اجزاء النبوة فى الجملة، لان فيها اطلاعا على الغيب من وجه ما، واما تفصيل النسبة فيختص بمعرفته درجة النبوة، وقال المازرى لا يلزم العالم ان يعرف کل شئ جملة وتفصيلا، فقد جعل الله للعالم حدا يقف فمنه ما يعلم المراد به جملة وتفصيلا، ومنه ما يعلمه جملة لا تفصيلا، وهذا من هذا القبيل.اه

يعنى مونږ ته مجملاً دومره خو د دې احاديثو نه معلومه شوه چه خوب د نبوت د اجزاء نه يو جزء دې اوس دا چه کوم جزء دې او ددې د نبوت دکل اجزاؤ سره څه نسبت دې (لسم جزء دې يا شلم مثلاً) په دې باندې پوهيدل زمونږ د وس خبره نه ده، په دې نسبت باندې نبى ښه پوهيږى او د عالم دپاره دا ضرورى نه ده چه هره خبره هغوى مجملا هم اوپيژنى او تفصيلا هم، بلکه د هر عالم د علم يو حد وى کوم ځائې ته راتلو سره چه هغه اودريږى د هغې نه وړاندې نه شى تلې، پس بعض امور داسې وى چه د هغې په مراد باندې عالم مجملا او تفصيلا پوهيدلې شى او بعض امور داسې وى چه د هغې علم اجمالا وى تفصيلا نه وى، او دا خبره يعنى د خوبونو جزء نبوت کيدل هم د دې قبيل نه دى، او دلته چه دا د شپږ څلويښتم جزء چه کومه شرح تيره شوې ده د بعض علماء کرامو نه په دې باندې هم د شراح اشکال دې چه په فتح البارى کښې ذکر دې (۱)

---

(۱) نقل بن بطال عن أبي سعيد السفاقسي أن بعض أهل العلم ذكر أن الله أوحي إلي نبيه في المنام ستة أشهر ثم أوحي إليه بعد ذلك في اليقظة بقية مدة حياته ونسبتها من الوحي في المنام جزء من ستة وأربعين جزءا لأنه عاش بعد النبوة ثلاثا وعشرين سنة علي الصحيح...دا خو هم هغه توجيه ده کومه چه مونږ پورته نقل کړه او هغوى په دې باندې اعتراض کوى : قال بن بطال هذا التأويل يفسد من وجهين أحدهما أنه قد اختلف في قدر المدة التي .........له

[۵۰۱۹]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ لَمْ تَكَدْ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ أَنْ تَكْذِبَ، وَأَصْدَقُهُمْ رُؤْيَا أَصْدَقُهُمْ حَدِيثًا، وَالرُّؤْيَا ثَلَاثٌ: فَالرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ بُشْرَى مِنَ اللَّهِ، وَرُؤْيَا تَحْزِينٌ مِنَ الشَّيْطَانِ، وَرُؤْيَا مِمَّا يُحَدِّثُ بِهِ الْمَرْءُ نَفْسَهُ، فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يَكْرَهُ، فَلْيَقُمْ فَلْيُصَلِّ وَلَا يُحَدِّثْ بِهَا النَّاسَ، قَالَ: وَأُحِبُّ الْقَيْدَ وَأَكْرَهُ الْغُلَّ، وَالْقَيْدُ ثَبَاتٌ فِي الدِّينِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ: يَعْنِي إِذَا اقْتَرَبَ اللَّيْلُ وَالنَّهَارُ: يَعْنِي يَسْتَوِيَانِ.

د سیدنا ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي چه نبي کریم ﷺ اوفرمائیل کله چه زمانه قریبه شي، نو د مسلمان خوب به غالبا دروغ نهٔ وي او د ټولو نه رښتوني خوب به د هغه چا وي څوک چه په خبرو کښي د ټولو نه زیات رښتوني وي۔ خوب په درې قسمه باندې وي، ښهٔ خوب د الله تعالیٰ د جانب نه بشارت وي، او یو خوب د شیطان د طرف نه د غمګین کولو والا وي او یو قسم خوب د بنده اوهام او خیالات وي۔ نو کله چه په تاسو کښي څوک ناخوښه خوب اووینی نو هغه لره پکار دی چه پاسی مونځ اوکړی او خلقو ته ئي بیان نهٔ کړی۔" او حضرت ابوهریره رضي الله عنه اوفرمائیل چه زهٔ په خوب کښي په پښو کښي بیړو لیدلو لره خوښه وم او په غاړه کښي طوق لره بد ګنړم، په پښو کښي بیړئ لیدل په دین کښي د ثابت قدمئ علامت دې۔ امام ابوداود رحمه الله فرمائي۔" زمانه قریب راشي۔" ددې مفهوم دادې چه کله ورځ او شپه دواړه برابر برابر شي (یعني د سپرلی موسم وی)۔

**قوله:** ﴿ إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ لَمْ تَكَدْ رُؤْيَا الْمُؤْمِنِ أَنْ تَكْذِبَ وَأَصْدَقُهُمْ رُؤْيَا أَصْدَقُهُمْ حَدِيثًا الخ ﴾

چه کله زمانه نزدې شي نو نزدې نه ده چه د یو مسلمان خوب دروغ شي (بلکه رشتینې به وي) د اقتراب زمان نه څه مراد دې په دې کښي درې اقوال دی:

۱: د دې نه مراد قرب قیامت دې چه په اخر زمانه کښي به قیامت ته نزدې د مسلمانانو اکثر بلکه ټول خوبونه رشتیا وي.[2]

۲: د ورځو او شپو برابر کیدل لکه چه ایام ربیع یعني موسم بهار کښي وي، دا تفسیر وړاندې په کتاب کښي هم راروان دې چه دا زمانه د اعتدال زمانه وي نه زیاته د ګرمئ او نه زیاته د یخنئ، د دې نه معلومه شوه چه د خوب په صحیح او رشتینې کیدو کښي د موسم هم ډیر دخل وي.

---

۶......بعد بعثة النبي صلي الله عليه و سلم إلي موته والثاني أنه يبقي حديث السبعين جزءا بغير معني قلت ويضاف إليه بقية الأعداد الواقعه اهـ یعني دا خبره کول چه د وحی د بیدارئ زمانه صرف درېوشت کلونه ده دا خبره اتفاقي نه ده بلکه مختلف فیه ده، دویمه وجه دا چه د شپږ څلویښتم جزء کیدو توجیه که اومنلې شي نو د دې نه علاوه چه کوم روایاتو کښي نور اعداد راغلی دی چرته پنځویشت او چرته څلویښت چرته اویا، د دې توجیه به څه وي لهذا دا تشریح ډیره غوره نه ده)

[1]): صحيح مسلم/الرؤيا (٢٢٦٣)، سنن الترمذي/الرؤيا ١ (٢٢٧٠)، سنن الدارمي/الرؤيا ٦ (٢١٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٤٤٤٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/التعبير ٢٦ (٧٠٧١) (صحيح)

[2]) په ظاهر کښي په دې وجه والله تعالي اعلم ....چه دا زمانه به د فتنو او اختلافاتو زمانه وی چه په هغې کښي به مرد مومن د رهنمایئ زیات محتاج وی او د خوبونو فائده رهنمائی ده تنبیه یا تبشیر، هذا ما بخطر ببالي)

۳: د دې نه مراد قرب اجل دې يعنی په ډير عمر کښې يعنی بوډاتوب کښې چه کوم خوبونه اوليدلې شی (بذل) وړاندې فرمائی چه کوم سړې څومره رشتينې وی هغه هومره به ئې خوب رشتنې وی.(د دروغژن سړی خوب به هم اکثر دروغ وی).

**قوله:** ﴿ الرّؤيا ثلاث: فَالرُّؤْيَا الصَّالِحَةُ بُشْرَى مِنَ اللَّهِ وَالرُّؤْيَا تَحْزِينٌ مِنَ الشَّيْطَانِ وَرُؤْيَا مِمَّا يُحَدِّثُ بِهِ الْمَرْءُ نَفْسَهُ ﴾

**(د خوبونو اقسام)**

رسول اللهﷺ فرمائی چه د خوبونو درې قسمونه دی. ۱: رؤياء صالحة يعنی رشتينی خوبونه دا خو د الله پاک د طرف نه د مومن دپاره بشارت وی. ۲: بعض خوبونه د شيطان د طرف نه وی د تحزين دپاره يعنی په غم او خفگان کښې د اخته کولو دپاره د شيطان د طرف. ۳: هغه خوب د سړی چه کومې خبرې هغه په زړه کښې راولی نو دا خوب هم دهغې آئينه دار وی يعنی څنګه خبرې چه د انسان په ذهن کښې په بيدارئ کښې تاويږی بعض وخت هم هغه په خوب کښې هم وينی، لهذا دا آخری دواړه قسمونه قابل اعتبار نه دی.

**قوله:** ﴿ فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ مَا يَكْرَهُ فَلْيَقُمْ فَلْيُصَلِّ وَلاَ يُحَدِّثْ بِهَا النَّاسَ ﴾ چه کله په تاسو کښې يو تن مکروه او ناخوښه خوب وينی او په ليدو ليدو کښې ئې سترګې اوغړيږی نو هغه له پکار دی چه پاسيدو سره دې اودس اوکړی او دوه رکعته دې اوکړی او د ورځې دې دا خوب چاته هم نه ذکر کوی.

**د روياء صالحه او غير صالحه اداب:**

د ناخوښه خوب متعلق په دې حديث کښې دا دوه آداب بيان کړې شوې دی، علماء کرامو د دې شپږ آداب ليکلې دی. ۱: د الله پاک نه پناه غوښتل د هغه خوب د شر نه، ۲: او د شيطان د شر نه، ۳: که د هغه د خوب په ليدو باندې سترګې کولاؤ شی نو ګس طرف ته دې درې کرته لاړې اوتوکی، ۴: او د هغه خوب ذکر دې نه کوی، ۵: پاسيدو سره دوه رکعته کول، ۶: اول چه په کوم اړخ باندې ملاست وی هغه بدلول، د هغې نه اکثر آداب په روستو رواياتو کښې راځی.

او هم دغه شان د روياء صالحه هم څه اداب دی، شارحينو د هغې درې آداب ليکلې دی. ۱: د الله پاک حمد په ځائې راوړل او د هغه شکر ادا کول. ۲: په زړه کښې په هغې باندې خوشحاليدل. ۳: خپل محبوب او مخلص انسان ته د هغې تذکره کول.

**قوله:** ﴿ وَأُحِبُّ الْقَيْدَ وَأَكْرَهُ الْغُلَّ ﴾ يعنی سړې دا خوب وينی چه د هغه په خپو کښې رسئ پرته ده.[١] رسول اللهﷺ فرمائی چه زما دا خوښه ده چه يو سړې خوب وينی چه د هغه په مرئ کښې طوق دې د دې په باره کښې رسول اللهﷺ فرمائی چه زما دا ناخوښه ده چه د قيد تعبير ډير ښه دې ثبات فی الدين، په دين کښې کلکيدل، او د غل په باره کښې رسول اللهﷺ هيڅ او نه فرمائيل ځکه چه هغه د اهل نار صفت دې.

---

[١] په بذل کښې ئې دا د حديث مرفوع د ټکړې په حيثيت سره ليکلې دې خو منذری وغيره شارحين وائی چه دا جمله د ابوهريرهؓ د طرف نه مدرج ده مرفوع نه ده.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ « إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ » الخ ﴾ دا معنى په معانى ثلاثه كښې تيرې شوې.

[۵۰۲۰](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يَعْلَى بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ وَكِيعِ بْنِ عُدُسٍ، عَنْ عَمِّهِ أَبِي رَزِينٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الرُّؤْيَا عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ مَا لَمْ تُعَبَّرْ فَإِذَا عُبِّرَتْ وَقَعَتْ، قَالَ: وَأَحْسِبُهُ قَالَ: وَلَا تَقُصَّهَا إِلَّا عَلَى وَادٍّ أَوْ ذِي رَأْيٍ".

دَ حضرت ابو رزين (لقيط بن صبره عقيلي ﷺ) نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل خوب دَ مارغهٔ په پښه باندې دې ترڅو پورې چه دَ هغې تعبير بيان نهٔ شي - چنانچه کله چه دَ هغې تعبير بيان کړې شي نو (هم هغه شان) کيږي -" او زما خيال دې چه حضور ﷺ اوفرمائيل چه دې لره دَ چا محبت کوونکي (مخلص) يا دَ صاحبِ علم نه علاوه چاته هرګز بيان نهٔ کړې -

**قوله:** ﴿ لرُّؤْيَا عَلَى رِجْلِ طَائِرٍ مَا لَمْ تُعَبَّرْ فَإِذَا عُبِّرَتْ وَقَعَتْ ﴾ يو قول د دې حديث په شرح کښې دا دې چه د خوب چه ترڅو پورې تعبير ورنکړې شي د هغې وقوع نه کيږي، يعنې څه مصداق د هغه خوب نه شي موندلې کيدې د تعبير نه پس د هغې وقوع او استقرار کيږي، او تر څو چه تعبير وانخستلې شي نو د هغې مثال د هغه څيز دې کوم چه د يو مرغئ په پنجه باندې کيخودلې شوې وي، او کوم څيز چه د مرغئ په پنجه باندې وي نو د هغې استقرار نه وي، چه کله هغه مرغئ لږ شان حرکت اوکړي فورا به ترې نه هغه څيز اوغورځيږي، لهذا د دې نه معلومه شوه چه خوب ليدونکی که ښه خوب ليدلې دې نو د يو صحيح تعبير ورکونکي نه د هغې تعبير زر اخستل پکار دی چه د هغه خوب او د هغې د مصداق وقوع اوشي او انسان د هغې نه منتفع شي، هم په دې وجه په حديث کښې فرمائيلې شوې دی : ﴿ وَلاَ تَقُصُّهَا إِلاَّ عَلَى وَادٍّ أَوْ ذِي رَأْيٍ ﴾ چه خوب داسې انسان ته بيانول پکار دی او د داسې سړی نه د هغې تعبير اخستل پکار دی کوم چه د هغه همدرد وی او پوهه وی ځکه چه تعبير ورکونکې که همدرد وی نو که په دې خوب کښې دوه اړخونه دی يو د خير او بل د شر نو هغه به هغه اړخ اختيار کړی چه په هغې کښې خير دې او بيا د الله پاک په اذن باندې د هغې وقوع هم کيږي، او که معبر د خوب ليدونکی مخالف وی نو د هغه د خوب بل اړخ يعنی د شر تعبير به بيان کړی په دې وجه د هغه نه د تعبير اخستلو نه منع اوکړې شوه خو کم از کم دومره ضرور ده چه هغه واد او ذی رائې د خوب چه کوم تعبير ورکوی په هغه خوب کښې د دې تعبير ګنجائش ضرور وی يعنی يو اړخ پکښې هغه هم وی ګينې که د هغې پکښې هيڅ اړخ هم نه وی او څوک همدرد په همدردئ کښې راتلو سره بې تکه تعبير د هغې ورکړی نو د هغې هيڅ اعتبار نشته، غالبا هم دې طرف ته اشاره کولو دپاره امام بخاری رحمه الله دا ترجمه قائم کړې ده من لم ير الرؤيا لاول عابر اذا لم يصب، غالبا دا وئيل غواړی چه هغه چه راځی الرؤيا لاول عابر هغه هم وخت دې چه کله تعبير ورکونکی په قاعده کښې تعبير ورکړې وی او که يو ناخبره غلط تعبير ورکړی نو اګر که هغه اول عابر

(1): سنن الترمذي/الرؤيا ٦ (٢٢٧٨)، سنن ابن ماجه/الرؤيا ٦ (٣٩١٤)، (تحفة الأشراف: ١١١٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠/٤، ١١، ١٢، ١٣) سنن الدارمي/الرؤيا ١١ (٢١٩٤) (صحيح)

وی خو واقع کیږی به نه. او د حضرت گنګوهي په تقریر الکوکب الدری کښې د دې نورې معنې اختیار کړې دی چه هغه دا چه خوب لیدونکې چه ترڅو پورې د خپل خوب تعبیر وانخلی په تذبذب او تردد کښې اوسیږی، کله ئې د دې خوب مفهوم په ذهن کښې څۀ راځی، او کله څۀ، په یو معنی باندې د هغه د رائې استقرار نه راځی لکه چه د مرغۍ په خپو کښې څۀ څیز وی د هغې استقرار نه وی، او کله چه خوب بیانونکې خپل خوب داسې چاته بیانولو سره د هغې تعبیر حاصل کړی نو د هغه تردد ختم شی او یو معنی د خوب متعین شی، د دې حدیث د فهم دپاره شروح ته د نورې رجوع ضرورت دی.

[٥٠٢١](١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ زُهَيْرًا، يَقُولُ: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَبَا قَتَادَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الرُّؤْيَا مِنَ اللَّهِ، وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَإِذَا رَأَى أَحَدُكُمْ شَيْئًا يَكْرَهُهُ، فَلْيَنْفُثْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ لِيَتَعَوَّذْ مِنْ شَرِّهَا، فَإِنَّهَا لَا تَضُرُّهُ".

د حضرت ابوقتاده رضي الله عنه نه روایت دې چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دی چه ښۀ خوب د الله جل شانه دَ طرف نه دې او بد خوب دَ شیطان دَ طرف نه وی - چنانچه کله چه په تاسو کښې څوک څۀ ناپسندیده خبره اووینی نو پکار دی چه خپل گس طرف ته درې ځله توکانړې اوتوکی بیا دَ هغې دَ شر نه په الله سره پناه اوغواړی - بې شکه دغه خوب به دۀ ته ضرر نۀ رسوی -

[٥٠٢٢](٢) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الْهَمْدَانِيُّ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، قَالَا: أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "إِذَا رَأَى أَحَدُكُمُ الرُّؤْيَا يَكْرَهُهَا فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ، وَلْيَتَعَوَّذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ ثَلَاثًا، وَيَتَحَوَّلْ عَنْ جَنْبِهِ الَّذِي كَانَ عَلَيْهِ".

د حضرت جابر رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل کله چه په تاسو کښې څوک داسې خوب اووینی چه دۀ ته بد معلومیږی نو دۀ لره پکار دی چه خپل گس طرف ته لاړې اوتوکی، او درې ځله دَ شیطان دَ شر نه په الله پاک سره پناه اوغواړی او خپل طرف دې بدل کړی - [ یعنی په کوم جانب چه اودۀ وو هغه جانب دې بدل کړی او په بل طرف دې اودۀ شی ]

[٥٠٢٣](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ رَآنِي فِي الْمَنَامِ فَسَيَرَانِي فِي الْيَقَظَةِ، أَوْ لَكَأَنَّمَا رَآنِي فِي الْيَقَظَةِ، وَلَا يَتَمَثَّلُ الشَّيْطَانُ بِي".

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دی چه

[1]: صحيح البخاري/الطب ٣٩ (٥٧٤٧)، التعبير ٣ (٦٩٨٤)، ١٠ (٦٩٩٥)، ١٤ (٧٠٠٥)، ٤٦ (٧٠٤٤)، صحيح مسلم/الرؤيا ح ١ (٢٦٦١)، سنن الترمذي/الرؤيا ٥ (٢٢٧٧)، سنن ابن ماجه/الرؤيا ٣ (٣٩٠٩)، موطا امام مالك/الرؤيا ١ (٤)، مسند احمد (٥/٢٩٦، ٣٠٣، ٣٠٤، ٣٠٥، ٣٠٩)، سنن الدارمي/الرؤيا ٥ (٢١٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٢١٣٥) (صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الرؤيا ح ٢ (٢٢٦٢)، سنن ابن ماجه/تعبير الرؤيا ٤ (٣٩٠٨)، (تحفة الأشراف: ٢٩٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٥٠) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/العلم ٣٨ (١١٠)، الأدب ١٠٩ (٦١٩٧)، التعبير ١٠ (٦٩٩٣)، صحيح مسلم/الرؤيا ١ (٢٢٦٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٣١٠)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/تعبير الرؤيا ٢ (٣٩٠١)، مسند احمد (١/ ٢٣١، ٣٤٢، ٤١٠، ٤١١، ٤٢٥، ٤٦٣) (صحيح)

فرمائیل ئي : چاچه زهٔ په خوب کښې اولیدم هغه به عنقریب مالره په ویښه اووینی، یا ئي اوفرمائیل هغه مالره ګویا چه په ویښه اولدهٔ - او شیطان زما صورت نهٔ شي اختیارولې -

**قوله:** ﴿ مَنْ رَآنِى فِى الْمَنَامِ فَسَيَرَانِى فِى الْيَقَظَةِ ﴾ رسول اللهﷺ فرمائی چه چا زه په خوب کښې اولیدم نو ما به په بیدارئ کښې هم وینی یعنی د قیامت په ورځ، پس په دې حدیث کښې ګویا اشاره د هغه انسان حسن خاتمه ته رزقنا الله تعالی ذلک مع جمیع الاحبة، لهذا دا اشکال پاتې نه شو چه د قیامت په ورځ باندې خو د رسول اللهﷺ ټول امت هغوی لره وینی، او دویم قول په دې کښې دا دې چه په دنیا کښې په حالت د بیدارئ کښې د رسول اللهﷺ زیارت مراد دې بعض علماء کرامو وئیلې دې : او داسې زیات تر د انسان وفات ته نزدې وی د احتضار په وخت، په داسې وخت کښې الله پاک داسې سړی ته یعنی په خوب کښې د رسول اللهﷺ زیارت کونکی ته د رسول اللهﷺ د زیارت سعادت نصیب کوی او په چا باندې چه الله پاک کرم اوکړی د دې حالت نه مخکښې هم هغه د رسول اللهﷺ زیارت کوی.(بذل)او یومطلب د دې دا هم دې چه دا کلام مبنی دې په تشبیه باندې چه کوم سړی زه په خوب کښې لیدلې اوم نو ګویا هغه زه په ویخه باندې اولیدم لکه چه په بعض روایاتو کښې دی بلکه په حدیث الباب کښې دی : ﴿ لَكَأَنَّمَا رَآنِى فِى الْيَقَظَةِ ﴾.

**قوله:** ﴿ وَلاَ يَتَمَثَّلُ الشَّيْطَانُ بِى ﴾ د دې جملې نه د دې نزدې جملې تائید کیږی ﴿ لَكَأَنَّمَا رَآنِى فِى الْيَقَظَةِ ﴾ یعنی چاچه زه په خوب کښې اولیدم نو واقعة هغه هم زه اولیدم ځکه چه شیطان د چا په خوب کښې زما په صورت کښې نه شی راتلې، یعنی دا نه شی کیدې چه یو سړې په خوب کښې د رسول اللهﷺ نه علاوه بل څوک سړې وینی او په خوب کښې دا اوګڼړی چه زه هغوی وینم، پس د شمائل ترمذی په روایت کښې دی : ﴿من رآنی فی المنام فقد رای الحق﴾.

د دې نه پس پیژندل پکار دی چه دا چه په حدیث کښې ذکر دی چه چا زه په خوب کښې اولیدم هغه فی الواقع هم زه اولیدم دا علی العموم ده یا مقید؟ په دې کښې دواړه اقوال دی، وئیلې شوې دی چه دا هله ده چه لیدونکی رسول اللهﷺ لره د هغوی په صورت معهوده کښې لیدلې وی کوم صورت او شکل چه د رسول اللهﷺ په کتابونو کښې منقول دې، دویم قول په دې کښې دا دې چه دا مطلق دې اګر که په هر صورت کښې ئې لیدلې وی، او اکثر علماء کرامو هم دې ته ترجیح ورکړې ده، او دا چه که په صورت کښې اختلاف اوموندلې شی چه په کوم شکل کښې هغه لیدلې دې هغه د منقول مطابق نه وی نو د هغې په باره کښې دا دی چه دا اختلاف د کتونکی د حال د وجې نه دې.(بذل)په حاشیه د بذل کښې دې باره کښې د «ارواح ثلاثه» نه زمونږ د مشائخ دهلویه درې مسلکونه نقل کړې شوې دی یو د شاه رفیع الدین قدس سره چه دا په هغه صورت کښې دې، یعنی د حدیث محمل چه هر کله کتونکې رسول اللهﷺ لره خاص هم په هغه هیئت معروفه کښې اوګوری کوم چه په کتب حدیث کښې منقول دې تردې چه د رسول اللهﷺ په ګیره مبارکه کښې د شلو ویښتو سپین والې نقل دې او هغه د رسول اللهﷺ یوویشت ویښته سپین اووینی نو بیا هغه رسول

الله ﷺ او نه ليدو، ځکه چه صحابه کرام رضي الله عنهم به هم د هغه چا نه چه رسول الله ﷺ به ئي په خوب کښې اوليدو نو د هغه د صفت او حليه سوال کولو چه په هغې کښې خوب ليدونکي رسول الله ﷺ ليدلې دې، نو که د هغه بيان کړې صفت به د هغه صفت مطابق وو په کوم باندې چه هغه رسول الله ﷺ ليدلې دې نو بيا به ئې تصديق کولو ګينې نه به ئې کولو، او دويم قول د شيخ المشائخ شاه عبدالعزيز صاحب رحمه الله دې او هغه هم هغه دې کوم چه مونږ پورته د جمهورو نقل کړې دې چه په کوم صفت ئې هم رسول الله ﷺ اوليدو نو هغه في الواقع رسول الله ﷺ اوليدو په دې شرط چه خوب ليدونکې په خوب کښې په دې پوهيږي چه دا رسول الله ﷺ دې، د هغه زړه په دې باندې ګواهي ورکوي، دريم قول د شاه محمد اسحق صاحب رحمه الله دې چه که کتونکې هغوی لره د خپلې زمانې د اتقياء په هيئت باندې ويني نو د هغه دا خوب حق دې ګينې نه دې اه (ارواح ثلاثه ۴۴)

[۵۰۲٤]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ صَوَّرَ صُورَةً عَذَّبَهُ اللَّهُ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يَنْفُخَ فِيهَا وَلَيْسَ بِنَافِخٍ، وَمَنْ تَحَلَّمَ كُلِّفَ أَنْ يَعْقِدَ شَعِيرَةً، وَمَنِ اسْتَمَعَ إِلَى حَدِيثِ قَوْمٍ يَفِرُّونَ بِهِ مِنْهُ صُبَّ فِي أُذُنِهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل چاچه څه تصوير جوړ کړو نو الله پاک به دۀ ته په هغې سره عذاب ورکوي، تردې پورې چه په هغې کښې روح واچوي مګر دې به په کښې روح نۀ شي اچولې او چا چه په دروغه دا دعوىٰ اوکړه چه دۀ دا خوب ليدې دې نو دۀ لره به دَ دې خبرې مکلف کولې شي چه دې په دانه (يعنی دَ اوربشو په دانه) کښې غوټه واچوي (چه دا خبره ناممکنه ده) او چا چه دَ يو قوم دَ خبرې اوريدو کوشش اوکړو او هغوی دَ خپلې خبرې دَ کولو دپاره دده نه لرې کيدل نو دَ قيامت په ورځ باندې به ددۀ په غوږونو کښې سيکه اچولې شي۔

**قوله:** ﴿مَنْ صَوَّرَ صُورَةً عَذَّبَهُ اللَّهُ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يَنْفُخَ فِيهَا وَلَيْسَ بِنَافِخٍ الخ﴾ کوم سړې چه يو صورت جوړ کړی يعنی د ذی روح نو الله پاک به هغه د هغې د وجې نه په عذاب کښې اچوي تردې چه هغه په دې کښې روح واچوي، او حال دا چه هغه به په دې باندې قادر نه وي، لهذا په عذاب کښې به اخته وي، تر څو چه الله پاک غواړي.او وړاندې په حديث کښې دی ﴿ ومن تحلم ﴾ يعنی يو سړې خپل دروغژن خوب بيان کړی چه ما دا خوب ليدلې دې نو هغه به په دې خبره مکلف کړې شي چه د اوربشې دانې ته دې غوټه ورکړي او ظاهره ده چه هغه به ئې نه شي ورکولې، او د دې نه په وړاندې حديث کښې دی : کوم انسان چه د بل چا خبرو ته غوږ ږدی د اوريدو دپاره او هغوی ئې هغه ته اورول نه غواړي نو د قيامت په ورځ باندې به د هغه په غوږونو کښې ويلې کړې تانبه واچولې شي.

[1]): صحيح البخاري/التعبير ٤٥ (٧٠٤٢)، سنن الترمذي/اللباس ١٩ (١٧٥١)، الرؤيا ٨ (٢٢٨٣)، سنن النسائي/الزينة من المجتبى ٥٩ (٥٣٦١)، سنن ابن ماجه/الرؤيا ٨ (٣٩١٦)، (تحفة الأشراف: ٥٥٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢١٦، ٢٤١، ٢٤٦، ٣٥٠، ٣٥٩، ٣٦٠) (صحيح)

[۵۰۲۵]() حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ كَأَنَّا فِي دَارِ عُقْبَةَ بْنِ رَافِعٍ، وَأُتِينَا بِرُطَبٍ مِنْ رُطَبِ ابْنِ طَابٍ، فَأَوَّلْتُ أَنَّ الرِّفْعَةَ لَنَا فِي الدُّنْيَا وَالْعَاقِبَةَ فِي الْآخِرَةِ، وَأَنَّ دِينَنَا قَدْ طَابَ".

د حضرت انس رضي الله عنه بن مالک نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل ما نن شپا اولیدل ګویا چه مونږه د عقبه بن رافع رضي الله عنه په کور کښې یو او مونږه ته (د مدینې معروفې او عمده) تازه کجورې د کجورو د ابن طاب نه پیش کړې شوې -نو ما ددې دا تعبیر کړې دې چه مونږ ته به په دنیا کښې رفعت او سر بلندی حاصلیږی او په آخرت کښې به مو انجام عمده وی او زمونږه دین هم ښهٔ دې -

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ الخ ﴾ یعنی یوه ورځ رسول الله ﷺ خپل خوب بیان اوفرمائیلو چه ما د شپې خوب اولیدو چه مونږ یعنی رسول الله ﷺ او د هغوی د مجلس ملګری، د عقبه بن رافع په کور کښې ناست دی او مونږ ته رطب ابن طاب راوړلې شوې، ابن طاب د تمر یو قسم دې هم دا د هغې نوم دې، نو رسول الله ﷺ د هغې تعبیر دا راویستلو چه زمونږ دپاره یعنی خپله د هغوی دپاره او کوم چه د هغوی په طریق باندې وی په دنیا کښې سربلندی ده او په آخرت کښې حسن عاقبت یعنی حسن انجام او دریمه خبره دا چه زمونږ دین اسلام ډیر زیات پاک او مزیدار دې.

د تعبیر په درې اجزاء کښې رفعت چه واخستلې شو د «رافع» نه او حسن عاقبت چه ماخوذ کړې شو نو هغه د «عقبه» نه او پاکیزګی د ابن طاب نه. د دې نه دا هم معلومه شوه چه په خوب کښې همیشه په نوم سره د هغې مخصوص مسمی مراد نه وی مراد بلکه کله ئې معنی مراد وی.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّثَاؤُبِ

### باب ۸۹ - د اسویلی بیان

[۵۰۲۶]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيُمْسِكْ عَلَى فِيهِ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ".

د حضرت ابو سعید خدری نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل کله چه په تاسو کښې چاتې اسویلې راشی نو هغه لره پکار دی چه خپله خلهٔ بنده کړی، بې شکه (په دې کښې) شیطان داخلیږی -

**قوله:** ﴿ إِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيُمْسِكْ عَلَى فِيهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ ﴾

تثاؤب تفاعل من الثوباء وهى فترة من ثقل النعاس، والهمزة بعد الالف هو الصواب والواو غلط، كذا فى المغرب ذكره القارى (عون) یعنی تثاؤب د ثوباء نه اخستلې شوې دې هغه سستی او

[1]: صحيح مسلم/الرؤيا ٤ (٢٢٧٠)، (تحفة الأشراف: ٣١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٦/٣) (صحيح)
[2]: صحيح مسلم/الزهد ٩ (٢٩٩٥)، (تحفة الأشراف: ٤١١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١/٣، ٣٧، ٩٣، ٩٦)، سنن الدارمي/الصلاة ١٠٦ (١٤٢٢) (صحيح)

ستومانی چه د خوب د راتلو په وخت وی.
رسول الله ﷺ فرمائی چه کله په تاسو کښې یو تن ته اسویلی راشی نو خپله خوله دې بنده کړی یعنی یا خو دې خوله نه پرانیزی هغه دې کلکه کړی او که دا نه شی کولې نو په لاس یا رومال کیخودلو سره دې خوله بنده کړی، ځکه چه په خولې پرانستلو سره شیطان دننه داخلیږی، او د دې نه په روستو روایت کښې د فی الصلاة قید دې او په هغې کښې دی ﴿ فلیکظم مااستطاع ﴾،

[۵۰۲۷] (١) حَدَّثَنَا ابْنُ الْعَلَاءِ، عَنْ وَكِيعٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سُهَيْلٍ نَحْوَهُ، قَالَ: فِي الصَّلَاةِ فَلْيَكْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ.

د حضرت سهل رحمة الله نه د مذکوره بالا روایت هم معنیٰ روایت مروی دې - (مګر په دې کښې دی) اسویلې که چرې په مانځه کښې راشی نو ترڅو پورې چه کیدې شی نو د خلې د بندیدو کوشش دې اوکړی -
حافظ عراقی فرمائی چه په اکثرو روایاتو کښې خو مطلق راغلې دې، لهذا مطلق به په مقید باندې محمول کولې شی، اصل کښې شیطان د انسان د مونځ په خرابولو پسې لګیدلې وی لهذا د دې کراهت به په مانځهٔ کښې اشد وی او د دې نه دا نه لازمیږی چه بغیر د مانځهٔ نه دې مکروه نه وی بلکه کراهت مطلقا دې.

[۵۰۲۸] (٢) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ، فَإِذَا تَثَاءَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ، وَلَا يَقُلْ هَاهْ هَاهْ، فَإِنَّمَا ذَلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ يَضْحَكُ مِنْهُ".

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل بې شکه الله تعالی پرنجی لره خوښه وی او اسویلی لره ناخوښه وی، چنانچه کله چه په تاسو کښې چاته اسویلې راشی نو ترڅو پورې چه کیدې شی هغې لره دې بند کړی او د ها ها آواز دې نهٔ اوباسی - بې شکه دا د شیطان د طرف نه وی او هغه (یعنی شیطان) په دې پورې خندا کوی -
**قوله**: ﴿ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْعُطَاسَ وَيَكْرَهُ التَّثَاؤُبَ الخ ﴾
رسول الله ﷺ فرمائی چه الله پاک عطاس یعنی اینګې خوښوی او تثاؤب یعنی اسویلې بد ګڼړی، علماء کرامو لیکلې دی چه اینګې سبب وی د حفظ دماغ په هغې سره دماغ سپکیږی او سبب دې د دماغو نه د استفراغ فضله دپاره، یعنی د دماغو نه د خیرې وغیره لرې کولو دپاره، او د حواسو د تقویت دپاره د دې سره بیداری او تازه والې حاصلیږی، چستی راځی هم په دې وجه الحمد لله وئیل مستحب دی (٣) په خلاف د تثاؤب چه په دې

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٤١١٩) (صحيح)
(٢): صحيح البخاري/بدء الخلق ١١ (٣٢٨٩)، الأدب ١٢٥ (٦٢٢٣)، ١٢٦ (٦٢٢٦)، سنن الترمذي/الصلاة ٦ ١٥ (٣٧٠)، الأدب ٧ (٢٧٤٧)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٢٢)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الزهد والرقاق ٩ (٢٩٩٥)، مسند احمد (٢/٢٦٥، ٤٢٨، ٥١٧) (صحيح)
(٣) وفي هامش البذل ووجه في السيرة الحلبية ١/٨٨ في سبب الحمد وجوها منها ان العطاس سبب لالتواء العنق فحمد لله علي معافاته من ذلك اهـ)

سره سستي او ناراستي پيدا کيږي او د دې سبب د خيټې ډک والې او د نفس درون والې دې او د حواسو خراب والې دې.

**قوله:** ﴿ وَلاَ يَقُلْ هَاهْ هَاهْ فَإِنَّمَا ذَلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ يَضْحَكُ مِنْهُ ﴾ د اسويلي په وخت خاص طور د هاه هاه چه کوم آواز پيدا کيږي هغه خو بالکل نه دی راويستل پکار چه په دې سره شيطان په انسان پورې ټوقې کوی او خاندې ورپورې يعنی حقيقة، يا مراد د ضحک نه خوشحاليدل دی.

په بذل کښې د خطابی نه حب عطاس او د کراهت تثاؤب شرح کولو سره په اخره کښې ليکی : فصار العطاس محمودالانه يعين على الطاعات، والتثاؤب مذموما لانه يثبطه عن الخيرات وقضاء الحاجات اهـ

## بَاب فِي الْعُطَاسِ

### باب: د پرنجی بیان

[۵۰۲۹](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَجْلاَنَ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا عَطَسَ وَضَعَ يَدَهُ، أَوْ ثَوْبَهُ عَلَى فِيهِ، وَخَفَضَ أَوْ غَضَّ بِهَا صَوْتَهُ"، شَكَّ يَحْيَى.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته به کله پرنجې راغې نو هغه به په خپله خُلهٔ باندې خپل لاس يا څه کپړا ايخوده او خپل آواز به ئې کمولو - يحيیٰ ته شک دې چه په روايت کښې لفظ دَ [خَفَض] وو يا لفظ دَ [غض] : (معنی ئې يوه ده-)

په حديث الباب کښې دی چه رسول الله ﷺ به چه کله اينګې کولو نو خپل لاس مبارک يا کپړه مبارکه به ئې په خپله خوله مبارکه باندې کيخودله او خپل آواز به ئې ښکته کولو يعنی د اينګی په وخت کښې چه کوم آواز پخپله پيدا کيږی هغه به قصدا رسول الله ﷺ ښکته کولو او رو کولو.

[۵۰۳۰](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، وَخُشَيْشُ بْنُ أَصْرَمَ، قَالاَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "خَمْسٌ تَجِبُ لِلْمُسْلِمِ عَلَى أَخِيهِ: رَدُّ السَّلاَمِ، وَتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ، وَإِجَابَةُ الدَّعْوَةِ، وَعِيَادَةُ الْمَرِيضِ، وَاتِّبَاعُ الْجَنَازَةِ".

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل په يو مسلمان باندې د بل مسلمان پنځه خبرې واجب دی - دَ سلام جواب ورکول، په پرنجې راتلو باندې دعا کول، دعوت قبلول، بيمار پرسی کول او په جنازه کښې شريک کيدل.

**قوله:** ﴿ خَمْسٌ تَجِبُ لِلْمُسْلِمِ عَلَى أَخِيهِ رَدُّ السَّلاَمِ وَتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ وَإِجَابَةُ الدَّعْوَةِ وَعِيَادَةُ الْمَرِيضِ وَاتِّبَاعُ الْجَنَازَةِ ﴾ د دې پنځو په باره کښې د ړومبو دوو په باره کښې په بذل کښې ليکلي دی چه د دې وجوب على الكفايه دې وجوب لعينه نه دې، لهذا چه کله يو جماعت ته سلام

(۱): سنن الترمذي/الأدب ٦ (٢٧٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٨١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٣٩) (حسن صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الجنائز ٢ (١٢٤٠ تعليقًا)، صحيح مسلم/السلام ٣ (٢١٦٢)، (تحفة الأشراف: ١٣٢٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٢١، ٣٧٢، ٤١٢، ٥٤٠) (صحيح)

اوکړې شي نو په هغوی کښې د یو جواب ورکول کافی دی، هم دغه شان که څوک اینګې اوکړي او الحمد لله اوائی نو د هغه تشمیت یعنی یرحمک الله وئیل هم واجب علی الکفایه دی، او حافظ د اهل ظواهر مسلک د وجوب نقل کړې دې یعنی لعینه، او ابن ابی حمزه فرمائی: ﴿ ذهب جماعة من علمائنا انه فرض عین الی اخر ما ذکر من الاختلاف فیه ﴾ او د تشمیت عاطس په باره کښې په حاشیه د بذل کښې لیکلې دی، قال ابن عابدین: ۲۹۳/۵ تشمیت العاطس فرض کفایة عند الاکثر، وعند الشافعي سنة وعند الظاهرية فرض عين.

## بَابُ كَيْفَ تَشْمِيتُ الْعَاطِسِ[1]

### باب ۹۱ - د پرنجی جواب څنګه ورکړې شی؟

[۵۰۳۱] ([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ سَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ، فَعَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَقَالَ سَالِمٌ: وَعَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ، ثُمَّ قَالَ بَعْدُ: لَعَلَّكَ وَجَدْتَ مِمَّا قُلْتُ لَكَ، قَالَ: لَوَدِدْتُ أَنَّكَ لَمْ تَذْكُرْ أُمِّي بِخَيْرٍ وَلَا بِشَرٍّ، قَالَ: إِنَّمَا قُلْتُ لَكَ كَمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّا بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "إِذْ عَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَعَلَيْكَ وَعَلَى أُمِّكَ، ثُمَّ قَالَ: إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَحْمَدِ اللَّهَ، قَالَ: فَذَكَرَ بَعْضَ الْمَحَامِدِ، وَلْيَقُلْ لَهُ مَنْ عِنْدَهُ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ، وَلْيَرُدَّ يَعْنِي عَلَيْهِمْ: يَغْفِرُ اللَّهُ لَنَا وَلَكُمْ".

د حضرت هلال بن یساف نه روایت دې فرمائی چه مونږه د سالم بن عبید رضی الله عنه سره وو چه په مجلس کښې یو کس ته پرنجې راغې نو هغه اووې" اسلام علیکم " (په تا باندې دې سلامتی وی) نو حضرت سالم رضی الله عنه اوفرمائیل په تا باندې او ستا په مور دې هم (سلامتیا وی) بیا ئې ددې نه پس اوفرمائیل شاید چه تا ته زما دا خبره بنۀ نۀ وی لګیدلې؟ هغه اووې زۀ دا خوښومه چه تۀ ذکر نۀ کړې زما مور لره نۀ په خیر سره او نۀ په شر سره - هغوی اوفرمائیل ما تاته هم هغه خبره وئیلې ده کومه چه رسول الله ﷺ فرمائیلې وه - مونږه د رسول الله ﷺ سره ناست وو چه په قوم کښې چاته پرنجې راغې نو هغه السلام علیکم اووې نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل په تا او ستا په مور باندې هم (دې سلامتیا وی) بیا حضور ﷺ اوفرمائیل کله چه په تاسو کښې چاته پرنجې راشی نو پکار دی چه [الحمد لله] اووائی - [ یعنی تمام تعریفونه الله لره دی ] راوی فرمائی چه هغه د څه بل یوحمد ذکر هم

---

[1] ) تشمیت په شین معجمه، او تسمیت سین مهمله په دواړو سره منقول دې او اخستلې شوې دې د شماتت نه او مراد دا دې چه الله پاک دې تا د شماتت اعداء نه محفوظ اوساتی، او دویم ماخوذ دی د سمت نه او مقصود په دې سمت سره د حسن دعا کول دی او د جواب د عاطس دپاره دا دواړه الفاظ مناسب دی تشمیت او تسمیت ځکه چه اینګی په وخت د عاطس د مخ هیئت خراب شي په دې وجه هغه ته د حسن سمت دعاء کولې شي یعنی د ښه هینت دعا ورته کولې شي او د اینګی په وخت چونکه دماغ او سټ جهتکه خوری چه د هغې نه د ضرر رسیدو ویره هم ده په دې وجه اینګی والاته د حمد هدایت په عافیت باندې او د جواب ورکونکی جواب ته تشمیت یعنی د شماتت اعداء نه د بچ کیدو د دعا حکم اوکړې شو)

[2] ): سنن الترمذي/الأدب ۳ (۲۷٤۰)، النسائي في الكبرى ۱۰۰۵۳، وعمل اليوم والليلة ۸٦ (۲۲۵)، (تحفة الأشراف: ۳۷۸٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷/٦) (ضعيف)

اوکړو، او کوم کس چه ددهٔ سره په خوا کښې وی نو هغه لره پکار دی چه دا اووائی [ یرحمک الله ] الله تعالیٰ دې په تا باندې رحم اوکړی او بیا دې پرنجی والا هغه خلقو ته جواب ورکړی [ یغفر الله لنا ولکم] الله تعالی دې مونږ او تاسو لره معاف کړی.

**قوله**: ﴿ عَنْ هِلاَلِ بْنِ يِسَافٍ قَالَ كُنَّا مَعَ سَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ فَعَطَسَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَقَالَ السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ الخ﴾ هلال بن یساف فرمائی چه یو ځل مونږ د سالم بن عبید رضی الله عنه سره ناست وو یو سړی اینګې اوکړو چه په هغې باندې هغه السلام علیکم اووې نو په دې باندې سالم رضی الله عنه اوفرمائیل ﴿ وعلیک وعلی امک ﴾ (۱)یعنی په تا دې هم سلام وی او ستا په مور هم، بیا هغوی خپله اوفرمائیل چه کیدې شی تا ته زما په داسې وئیلو باندې غصه درغلې وی، هغه سړی اووې نور خو هیڅ هم نه خو که تاسو زما د مور ذکر نه وې کړې نو ښه به وه، هغوی اوفرمائیل چه ما تاته په جواب کښې دې وخت کښې هم هغه خبره اوکړه کومه چه رسول الله ﷺ فرمائیلې وه هم په داسې موقع باندې، او بیا هغوی د رسول الله ﷺ نه هم داسې واقعه نقل کړه، او بیا د دې نه روستو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله په تاسو کښې چاته اینګې راشی نو هغه لره الحمد لله وئیل پکار دی، او د هغه خوا کښې چه څوک وی هغه له یرحمک الله وئیل پکار دی او بیا اینګی کونکی له پکار دی چه هغه یغفرالله لنا ولکم اووائی،

[۵۰۳۲](۲) حَدَّثَنَا تَمِيمُ بْنُ الْمُنْتَصِرِ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ يَعْنِي ابْنَ يُوسُفَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ وَرْقَاءَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ عَرْفَجَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عُبَيْدٍ الْأَشْجَعِيِّ بِهَذَا الْحَدِيثِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خالد بن عرفطه د حضرت سالم بن عبید اشجعی رضی الله عنه نه او هغوی د رسول الله ﷺ نه دا مذکوره بالا روایت نقل کړې دې.

اوددې نه په روستو روایت کښې دی چه هغه دې الحمد لله علی کل حال اووائی او د هغه خوا کښې خلق دې یرحمک الله وائی، اوبیا دې هغه اینګې کونکې يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ وائی.

[۵۰۳۳](۳) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا عَطَسَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ: الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ، وَلْيَقُلْ أَخُوهُ أَوْ صَاحِبُهُ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ، وَيَقُولُ هُوَ: يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : کله چه په تاسو کښې چاته پرنجې راشی نو هغه لره پکار دې چه دا اووائی {الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ} په هر حال کښې الله لره تعریف دې، او د هغه رور یا ملګری لره پکار دی چه اووائی [ یرحمک الله ] الله دې

(۱) د حضرت ګنګوهی په تقریر کښې دی قوله وعلي امك او ستا په مور دې هم سلام وی چا چه تاته دا تعلیم ورکړو ګینې د پلار تعلیم خو داسې نه وی هغه خو صحیح تعلیم درکوی، وړاندې فرمائی چه د دې نه معلومه شوه چه د یو ذکر په ځائې بل ذکر کیخودل د خپل طرف نه غلط او بدعت مذمومه دې)

(۲): انظر ما قبله،(تحفة الأشراف: ۳۷۸۶) (ضعيف)

(۳): صحيح البخاري/الأدب ۱۲۶ (۶۲۲۴)، سنن النسائي/اليوم والليلة (۲۳۲)، (تحفة الأشراف: ۱۲۸۱۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۵۳) (صحيح)

په تا باندې رحم اوکړي او بیا دې پرنجې والا دا اووائی { يَهْدِيْكُمُ اللهُ وَ يُصْلِحُ بَالَكُمْ }الله تعالیٰ دې تاته هدایت اوکړي او الله دې ستا احوال درست کړي-

او د ترمذی په یو روایت کښې دی چه عاطس له پکار دی چه هغه الحمد لله رب العلمين اوائی په حاشیه د بذل کښې دی ویقول هو يَهْدِيْكُمُ اللهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ باندې لیکلې دی قال ابن بطال وبذلک قال الجمهور وقال الكوفيون يقول يغفر الله لنا ولكم، وذهب مالک والشافعی الی التخيير بين اللفظين، كذا فی العينی ۲۷۰/۱۰،قلت وحكى التخيير فی تكملة البحر ۲۰۸/۸وفتاوی قاضی خان ۳۰۶/۴

## باب كَمْ مَرَّةٍ يُشَمَّتُ الْعَاطِسُ

### باب ۹۲- څو کرته دې د پرنجې جواب ورکړي

[۵۰۳۴](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ابْنِ عَجْلَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "شَمِّتْ أَخَاكَ ثَلَاثًا، فَمَا زَادَ فَهُوَ زُكَامٌ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې هغه فرمائی خپل رور ته په پرنجې باندې درې ځله جواب ورکوئ او کوم چه ددې نه زیات وی،نو بیا هغه زکام وهلې دې-

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ شَمِّتْ أَخَاكَ ثَلَاثًا فَمَا زَادَ فَهُوَ زُكَامٌ ﴾

یعنی جواب د عاطس درې کرته واجب دې د هغې نه پس نه، ځکه چه زیات اینګی راتلل د زکام او د مرض علامت دې بلکه په ځائې د یرحمک الله دې داسې اوائی الرجل مزکوم، لکه چه د باب په آخری حدیث کښې راځی، خو په دې کښې روایات مختلف دی چه تشمیت یعنی جواب د عاطس دې څو کرته ورکړې شی، او الرجل مزکوم دې په کومه مرتبه کښې اوئیلې شی په دې کښې مختلف اقوال دی، قيل فی الثانية وقيل فی الثالثة وقيل فی الرابعة، والصحيح فی الثالثة، كذا فی البذل عن النووی،او په حاشیه د بذل کښې دی چه د ملا علی قاری میلان دې طرف ته دې چه تر درې کرتو پورې تشمیت موکد دې د دې نه پس استحباب او هم دغه شان په شامی او عالمګیری وغیره کښې هم دی او په فتاوی سراجیه کښې دی چه تشمیت صرف درې کرتو پورې واجب دې (په دې شرط چه اینګې کونکې حمد اوکړي) او د دې نه پس اختیار دې او په فتاوی قاضی خان ص۴۰۶ کښې دی ان فعل حسن وان لم يفعل فحسن ايضا.

[۵۰۳۵](۲) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ الْمِصْرِيُّ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا أَنَّهُ رَفَعَ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَبُو نُعَيْمٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ قَيْسٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

حضرت سعید بن ابو سعید د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت کړې دې او فرمائیلې ئې دی چه ماته هم دا معلومه ده چه هغوی ددې حدیث نسبت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته کولو او د مذکوره

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۰۵۱) (حسن)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۰۵۱) (حسن)

روايت په شان روايت ئې بيان کړو -امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه دې روايت لره ابو نعيم په واسطه د موسى بن قيس د محمد بن عجلان نه،هغوى د سعيد نه هغوى د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه او هغوى د نبى كريم ﷺ نه روايت كړې دې -

[۵۰۳۶](١) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أُمِّهِ حُمَيْدَةَ أَوْ عُبَيْدَةَ بِنْتِ عُبَيْدِ بْنِ رِفَاعَةَ الزُّرَقِيِّ، عَنْ أَبِيهَا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تُشَمِّتُ الْعَاطِسَ ثَلَاثًا، فَإِنْ شِئْتَ أَنْ تُشَمِّتَهُ فَشَمِّتْهُ، وَإِنْ شِئْتَ فَكُفَّ".

حميده يا عبيده بنت عبيد بن رفاعه زرقى د خپل پلار نه روايت كوى،او هغوى د نبى كريم ﷺ نه روايت كړې دې هغوى فرمائيلي دى : پرنجى كوونكى ته درې ځله جواب كوئ،بيا كه چرې جواب وركول غواړئ نو دوه ځله نور او كه غواړئ نو پريږدئ -

[۵۰۳۷](٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ عَمَّارٍ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ رَجُلًا عَطَسَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: يَرْحَمُكَ اللَّهُ، ثُمَّ عَطَسَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الرَّجُلُ مَزْكُومٌ".

د حضرت اياس بن سلمه بن اكوع نه روايت دې هه د خپل والد صاحب نه نقل كوى چه يو كس د نبى كريم ﷺ په مجلس كښې پرنجي اوكړو نو حضور ﷺ هغه ته دعا اوكړه اووې فرمائيل [ يرحمک الله ] الله دې په تا باندې رحم اوكړى -" هغه بيا پرنجي اوكړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل چه دۀ ته زكام دې -

# بَابُ كَيْفَ يُشَمَّتُ الذِّمِّيُّ

## باب ۹۳- كه څوک غير مسلم پرنجي اوكړى نو څنګه جواب به وركوې؟

[۵۰۳۸](٣) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ الدَّيْلَمِ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَتِ الْيَهُودُ تَعَاطَسُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَاءَ أَنْ يَقُولَ لَهَا: يَرْحَمُكُمُ اللَّهُ، فَكَانَ يَقُولُ: يَهْدِيكُمُ اللَّهُ، وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ".

حضرت ابوهريره رضي الله عنه د خپل پلار نه روايت كوى چه يهوديانو به د نبى كريم ﷺ په مجلس كښې عمدا پرنجي كوو او توقع به ئې كوله چه حضور ﷺ دوى ته په [ يرحمک الله ] سره دعا اوكړى مګر حضور ﷺ به دا جواب وركولو : [ يهديكم الله ويصلح بالكم] الله تعالىٰ دې تاسو ته هدايت اوكړى او ستاسو د احوالو اصلاح دې اوكړى -

مضمون د حديث دا دې چه د بعض يهودو دا حال وو چه كله به هغوى رسول الله ﷺ سره وو نو په تكلف به ئې اينكى كول په دې توقع او اميد باندې چه رسول الله ﷺ هغوى ته په (يرحمک الله ) سره دعا وركړى (رسول الله ﷺ د هغوى په چال باندې پوهيدلو) په دې وجه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٧٤٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأدب ٥ (٢٧٤٤) (ضعيف)

(٢): صحيح مسلم/الزهد ٩ (٢٩٩٣)، سنن الترمذي/الأدب ٥ (٢٧٤٣)، سنن ابن ماجه/الأدب ٢٠ (٣٧١٤)، (تحفة الأشراف: ٤٥١٣)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الاستئذان ٣٢ (٢٧٠٣) (صحيح)

(٣): سنن الترمذي/الأدب ٣ (٢٧٣٩)، (تحفة الأشراف: ٩٠٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٠٠، ٤١١) (صحيح)

به رسول الله ﷺ هغوی ته په ځائې د یرحمک الله (صرف) يَهْدِيكُمُ اللَّهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُم فرمائیل

# بَابٌ فِيمَنْ يَعْطِسُ وَلَا يَحْمَدُ اللَّهَ

**باب ۹۴- کوم کس چه د پرنجی په راتلو با ندې الحمد الله او نهٔ وائی . . .**

[۵۰۳۹]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ التَّيْمِيُّ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "عَطَسَ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا وَتَرَكَ الْآخَرَ، قَالَ: فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، رَجُلَانِ عَطَسَا فَشَمَّتَّ أَحَدَهُمَا، قَالَ أَحْمَدُ: أَوْ فَسَمَّتَّ أَحَدَهُمَا وَتَرَكْتَ الْآخَرَ، فَقَالَ: إِنَّ هَذَا حَمِدَ اللَّهَ، وَإِنَّ هَذَا لَمْ يَحْمَدِ اللَّهَ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه د نبی کریم ﷺ په مجلس کښې دوو کسانو ته پرنجې راغې نو حضور ﷺ یو ته جواب ورکړو او دویم ته ئې جواب ورنهٔ کړو- نوحضور ﷺ ته اووئیلې شو اې د الله رسوله ! دوو کسانو پرنجې اوکړو مګر تاسو یو ته جواب ورکړو ... احمد (یونس) وضاحت کړې دې چه دلته کښې لفظ د [ فشمّت احدهما ] وو یا [فسمّت احدهما ] ... او دویم کس لره مو پریخودو نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه دهٔ (کوم ته چه ما جواب ورکړو) د الله حمد کړې دې او دهٔ د الله حمد نهٔ دې کړې -" [نو دې دویم کس ته مې څکه جواب ورنهٔ کړو ]

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسٍ قَالَ عَطَسَ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَشَمَّتَ أَحَدَهُمَا ....الخ ﴾ د رسول الله ﷺ مخکښې دوه کسانو اینګې اوکړو نو رسول الله ﷺ یو عاطس ته تشمیت اوفرمائیلو او بل ته نه، په دې باندې د هغوی نه تپوس اوکړې شو نو وې فرمائیل چه په دې دواړو کښې یو حمد اوکړو او بل نه.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَحْمَدُ أَوْ فَسَمَّتَّ أَحَدَهُمَا - وَتَرَكْتَ الآخَرَ ﴾ زمونږ په نسخه کښې په دواړو ځایونو کښې شمت په شین معجمه سره دې او په بذل کښې لیکلې دی چه په اکثر نسخو کښې هم دغه شان دی او صرف په یو نسخه مدنیه کښې اول په سین مهمله سره دې او دویم په شین معجمه سره، او کیدل هم دغه شان پکار دی یعنی یو په شین سره او بله په سین سره حاصل دا چه د مصنف رحمه الله په دې حدیث کښې دوه استاذان دی یو احمد بن یونس او بل محمد بن کثیر، د محمد بن کثیر روایت خو بغیر د شک نه دې او د احمد بن یونس په روایت کښې دا لفظ په شک سره دې فشمت او سمت وهذا ماخوذ من البذل، او دې وخت کښې زمونږ مخې ته دوه نسخې دی یو هغه چه په هغې باندې د شیخ محمد عوامه تعلیق دې په هغې کښې داسې دی : فشمت احدهما قال احمد فسمت احدهما، یعنی د محمد بن کثیر په روایت کښ، په شین معجمه سره دې او د احمد بن یونس په روایت کښې په سین مهمله سره.

او دویمه نسخه زمونږ مخې ته هغه ده چه په هغې باندې شرح د منذری ده په دې کښې عبارت داسې دې : فشمت أحدهما.قال احمد وهو ابن یونس....فشمت احدهما وترکت الاخر،

[1]): صحيح البخاري/الأدب ۱۲۳(۶۲۲۱)، صحيح مسلم/الزهد ۹ (۲۹۹۱)، سنن الترمذي/الأدب ٤ (۲۷۴۲)، سنن ابن ماجه/الأدب ۲۰ (۳۷۱۳)، (تحفة الأشراف: ۸۷۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۰۰/۳، ۱۱۷، ۱۷۶) (صحيح)

چه د هغې مطلب دا دې چه د محمد بن کثير او احمد دواړو په روايت کښې شمت په شين معجمه سره دې (نه په سين مهمله سره) او فرق دا دې چه د احمد بن يونس په روايت کښې د ﴿ وترکت الاخر ﴾ زيادت دې، او د محمد بن کثير په روايت کښې د دې جملې معطوفې زيادت نشته، او د دې تحقيق نه دا هم معلومه شوه چه په دې نوې دواړو نسخو کښې د قال احمد نه پس د لفظ ﴿ او ﴾ زيادت نشته.

# أَبْوَابُ النَّوْمِ

## دَاودهٔ کيدو سره متعلق احکام او مسائل

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَنْبَطِحُ عَلَى بَطْنِهِ

### باب... په خيټه باندې (اولته) سملاستل (مکروه دی)

او په بعض نسخو کښې د دې نه مخکښې يو غټه سرخی ده ابواب النوم چه مناسب معلوميږی راتلونکو ابوابو ته کتلو سره.

[۵۰۴۰] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا مُعَاذُ بْنُ هِشَامٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ يَعِيشَ بْنِ طَخْفَةَ بْنِ قَيْسٍ الْغِفَارِيِّ، قَالَ: كَانَ أَبِي مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "انْطَلِقُوا بِنَا إِلَى بَيْتِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، فَانْطَلَقْنَا، فَقَالَ: يَا عَائِشَةُ، أَطْعِمِينَا فَجَاءَتْ بِحَشِيشَةٍ فَأَكَلْنَا، ثُمَّ قَالَ: يَا عَائِشَةُ، أَطْعِمِينَا، فَجَاءَتْ بِحَيْسَةٍ مِثْلِ الْقَطَاةِ فَأَكَلْنَا، ثُمَّ قَالَ: يَا عَائِشَةُ، اسْقِينَا، فَجَاءَتْ بِعُسٍّ مِنْ لَبَنٍ فَشَرِبْنَا، ثُمَّ قَالَ: يَا عَائِشَةُ، اسْقِينَا، فَجَاءَتْ بِقَدَحٍ صَغِيرٍ فَشَرِبْنَا، ثُمَّ قَالَ: إِنْ شِئْتُمْ بِتُّمْ، وَإِنْ شِئْتُمُ انْطَلَقْتُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ، قَالَ: فَبَيْنَمَا أَنَا مُضْطَجِعٌ فِي الْمَسْجِدِ مِنَ السَّحَرِ عَلَى بَطْنِي، إِذَا رَجُلٌ يُحَرِّكُنِي بِرِجْلِهِ، فَقَالَ: إِنَّ هَذِهِ ضِجْعَةٌ يُبْغِضُهَا اللَّهُ، قَالَ: فَنَظَرْتُ فَإِذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د حضرت يعيش بن طخفه بن قيس غفاری بيان دې چه زما پلار (طخفه) د اصحاب صفه نه وو رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائيل زمونږه سره د حضرت عائشې رضي الله عنها کورته لاړشه - " پس مونږ لاړو (هلته کښې چه اورسيدو) حضور ﷺ اوفرمائيل عائشه ! په مونږ باندې څه اوخوروه -" پس هغې جشيشه راوړه او مونږه اوخوړه - [ جشيشه دې ته وائی چه غنم اوړهٔ کړی او اوړهٔ په اندړو باندې واچوی بيا په هغې کښې غوښه يا کجورې واچوه او پاخهٔ ئې کړی، دې ته يو قسم حليم هم وائی ] بيا حضور ﷺ اوفرمائيل : عائشه رضي الله عنها په مونږه باندې څه اوخوروه نو هغې حيس (دکجورو، غوړو، او د پنير مرکب خوراک) راوړو - چه دا لږ غوندې وو لکه چه يو چنړچنړه وی (يا ممکنه ده چه حضرت سيده عائشه رضي الله عنها مراد وی چه هغه په صدق او وفا شعارئ کښې د قطاة مارغهٔ په شان وه -)مونږه هغه حيس اوخوړو - بيا حضور ﷺ اوفرمائيل عائشې ! په مونږ باندې څه اوڅکوه - پس هغې د پيو يوه غټه پياله راوړه مونږ هغه اوڅښل، حضور ﷺ بيا اوفرمائيل : عائشې ! په مونږ باندې څه اوڅکوه - نو هغې يوه وړه پياله راوړه نو مونږه هغه هم اوڅښله - بيا حضور ﷺ اوفرمائيل که غواړئ

(١): سنن ابن ماجه/المساجد ٦ (٧٥٢)، الأدب ٢٧ (٣٧٢٣)، (تحفة الأشراف: ٤٩٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٢٩) (ضعيف)

نو اوده شئ او که غواړئ نو جمات ته لاړ شئ، طخفه فرمائی چه زهٔ په جمات کښې په خيټه باندې اولټه اوده وُم څکه چه زما د پهيپهړو تکليف وو. پس اچانک ما بيا مونده چه څوک ماته د خپلو پښو نه حرکت راکوی او وائی چه داسې اوده کيدل الله تعالیٰ ته ناخوښه دی. فرمائی چه ما اوکتل هغه رسول الله ﷺ وو.

**قوله**: ﴿ عَنْ يَعِيشَ بْنِ طِخْفَةَ قَالَ كَانَ أَبِى مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « انْطَلِقُوا بِنَا إِلَى بَيْتِ عَائِشَةَ رضى الله تعالى عنها » الخ ﴾

يعيش بن طخفه فرمائی چه زما پلار يعنی طخفه بن قيس د اصحاب صفه رضی الله عنهم نه وو (کوم چه به اکثر اوږی وو لکه چه وړاندې هم په دې قصه کښې دی) رسول الله ﷺ اوفرمائيل يعنی مونږ اصحاب صفه ته چه راځئ ماسره د عائشې رضی الله عنها د کور طرف ته، مونږ ټول هغوی سره روان شو، رسول الله ﷺ کور ته رسيدو سره عائشې رضی الله عنها ته اوفرمائيل په مونږ باندې څه خوروه هغې لږه شان دليا راوړه، مونږ ټولو اوخوړه بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه عائشې! نور څه راباندې خوروه نو دې څل ئې ماليده راوړه، د کهجورو، ستوانو، پنير او غوړو مجموعه، خو هغه هم لږ شان وه د قطاة مرغئ برابر، کوم چه مونږ اوخوړله، بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه اې عائشه اوس راباندې څه اوڅکوه نو هغې د پيو يو لويه پياله راوړله کومه چه مونږ ټولو اوڅکله، رسول الله ﷺ اوفرمائيل عائشې! نور هم راباندې اوڅکوه، دې څل هغې يو وړه پياله کښې راوړل کوم چه مونږ ټولو اوڅکل، په اخير کښې رسول الله ﷺ اوفرمائيل که ستاسو زړه غواړی نو اوده شئ او که غواړئ نو مسجد ته لاړ شئ، وړاندې هغوی فرمائی چه زه د شپې په آخر کښې اولټه ملاست اوم ناڅاپه زه چا په خپه باندې اوخوزولم په دې وينا چه د ملاستې دا طريقه د الله پاک ناخوښه ده ما چه کله پورته اوکتل نو هغه رسول الله ﷺ وو.

په بذل کښې ﴿ من السحر ﴾ باندې ليکلې دی : ای من اخر الليل، او د دې نه پس ئې د ملا علی قاری رحمه الله نه نقل کړی دی : السحر الرئة ای من اجل وجع الرئة .....يعنی د کولمو د درد د وجې نه، دا ګويا هغوی د خپل اولټه سملاستو وجه بيان کړه چه چونکه په خيټه کښې ئې درد وو په دې وجه اولټه ملاست وو، د دې نه معلومه شوه چه د خيټې په درد کښې په اولټه ملاستې سره آرام ملاويږی، په درد کښې تخفيف راځی د دې په وجه باندې حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې ليکلې دی چه لفظ سحر مشترک دی په دوه معنو کښې او ظاهر دلته دويمه معنی ده اهـ يعنی کومه چه ملا علی قاری رحمه الله ليکلې ده، څان پوهه کړئ چه سَحَر کوم چه په معنی د اخر الليل دې هغه په فتحتين سره دې او کوم چه په معنی د الرئة دې نو هغه دوه طريقو سره ضبط کړې شوې دې سَحَر، سَحْر .....پس په مرقاة کښې دی : من السحر بفتحين وفی نسخة بسكون الثانی، وهو الرئة اهـ او په مصباح المنير کښې دی چه سحر بمعنی الرئة کښې درې لغات دی علی وزن فلس، وسبب وقفل (عون)او هم دا درې لغات ئې په دې کښ په قاموس کښې ليکلی دی.

او سحر چه په معنی د قبيل صبح دې يعنی آخر الليل دا صرف په فتحت سره ين

ضبط کړې شوې دي.

ددې حديث نه معلومه شوه چه اولتيه ملاسته مکروه ده، لکه چه په ترجمة الباب کښې دي.

## بَابٌ فِي النَّوْمِ عَلَى سَطْحٍ غَيْرِ مُحَجَّرٍ

**بابـ ٩٥ - په داسې چت باندې اوده کيدل چه په هغې باندې کانړې [پرده وغيره] نۀ وي.**

او په بعض نسخو کښې على سطح غير محجر دي.

[٥٠٤١]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا سَالِمٌ يَعْنِي ابْنَ نُوحٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ جَابِرٍ الْحَنَفِيِّ، عَنْ وَعْلَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ وَثَّابٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَلِيٍّ يَعْنِي ابْنَ شَيْبَانَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ بَاتَ عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَيْسَ لَهُ حِجَارٌ، فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ".

حضرت عبد الرحمن د خپل پلار علي بن شيبان نه روايت کوي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه څوک په داسې چت باندې اوده شي چه په هغې باندې کانړې [پرده وغيره] نۀ وي نو د هغه نه ذمه اوچته شوه.

**قوله:** ﴿ مَنْ بَاتَ عَلَى ظَهْرِ بَيْتٍ لَيْسَ لَهُ حِجَارٌ فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ ﴾ يعنى کوم سړې چه په يو داسې چهت باندې اوده شي چه د هغې په غاړو باندې پرده نه وي، وړوکې شان ديوال، نو زه د هغه خلقو نه برى الذمه يم، که د هغه چهت نه هغه سړې راپريوځي او مړ شي نو د هغې به څوک ذمه دار وي هغه راغورځيدونکې به خپله مستحق د ملامتې وي، لهذا د يو کور په داسې چهت باندې اوده کيدل نه دي پکار چه ناڅاپې انسان راپاسي او د بې خيالئ نه د پورته نه اوغورځيږي، په فتح الودود کښې د دې شرح هم دا ليکلې ده چه د هغه خون بها به د چا نه هم نه شي اخستلې او په لمعات کښې د براءت ذمه معنى دا ليکلې ده چه د الله پاک د طرف نه چه کوم د بندګانو حفاظت وي هغه به د هغه سره نه وي، او د هغه د دې بې احتياطئ او د خوب د آدابو د خلاف ورزئ په وجه باندې.

## بَابٌ فِي النَّوْمِ عَلَى طَهَارَةٍ

**باب ٩٦، ٩٧ - په اودسهٔ کښې د اوده کيدو فضيلت**

[٥٠٤٢]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَاصِمُ بْنُ بَهْدَلَةَ، عَنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، عَنْ أَبِي ظَبْيَةَ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَبِيتُ عَلَى ذِكْرٍ طَاهِرًا، فَيَتَعَارُّ مِنَ اللَّيْلِ، فَيَسْأَلُ اللَّهَ خَيْرًا مِنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ"، قَالَ ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ: قَدِمَ عَلَيْنَا أَبُو ظَبْيَةَ فَحَدَّثَنَا بِهَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ ثَابِتٌ: قَالَ فُلَانٌ: لَقَدْ جَهَدْتُ أَنْ أَقُولَهَا حِينَ أَنْبَعِثُ، فَمَا قَدَرْتُ عَلَيْهَا.

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه نه روايت دې چه نبى کريم ﷺ اوفرمائيل: څوک چه په اودس کښې او د الله په ذکر سره اوده شي او بيا چه کله د شپې په څه وخت کښې دده سترګې کولاؤ شي (او په بستره باندې خپل اړخ وغيره بدل کړي)، او د الله تعالى نه د دنيا او د آخرت

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٠٢٠) (صحيح)

[2]: سنن ابن ماجه/الدعاء ١٦ (٣٨٨١)، (تحفة الأشراف: ١١٣٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٣٥، ٢٤٤) (صحيح)

څه خير اوغواړي، نو دهٔ ته به ورکړي هغې لره - ثابت بناني فرمائي چه ددې حديث راوي ابو ظبيه ماته راغې او هغوي مونږ ته دا حديث په واسطه دَ حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ... دَ نبي كريم ﷺ نه روايت كړو، ثابت رحمه الله فرمائي چه يو صاحب اووې ما ډير كوشش كړې دې چه دَ شپې پاسم او داسې څه دُعا اوكړم مګر زهٔ په دې كښې كامياب نهٔ شُم.

مضمون د حديث دا دى چه كوم انسان د اودهٔ كيدو دعا لوستلو سره په اودس كښې اودهٔ شى او د شپې ئې څه وخت سترګې كهلاؤ شى نو هغه وخت چه هغه څهٔ دعا هم غواړى د دنيا او د آخرت خيګره نو هغه به هغه ته ضرور ملاويږى، ثابت بنانى رحمه الله فرمائى چه يو ځل ابوظبيه مونږ ته راغلو او هغوى مونږ ته د معاذ رضي الله عنه دا حديث مرفوع واورولو.

ثابت بنانى رحمه الله فرمائى چه يو سړى اووې چه ما خو ډير كوشش اوكړو او ډير مې اوغوښتل چه هغه وخت دعا اوغواړم خو كله هم راته توفيق ملاؤ نه شو، كيدې شى چه دَ نسيان د وجې نه او عين وخت باندې د نه يادېدلو د وجې نه.

په ﴿ قال ثابت ﴾ سره د مصنف رحمه الله غرض غالبا د شهر بن خوشب متابعت بيانول دى ځكه چه شهر راوى متكلم فيه دې لكه چه په مقدمه د مسلم كښې دى ﴿ ان شهرا نزكوه ﴾

د اودهٔ كيدو ترمينځه په ويخيدو باندې د دعاء متعلق وړاندې يو مستقل باب راروان دې، ما يقول الرجل اذا تعار من الليل، چه په هغې كښې مصنف رحمه الله د حضرت عباده رضي الله عنه دا حديث مرفوع ذكر كړې دې : ﴿ مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ حِينَ يَسْتَيْقِظُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ سُبْحَانَ اللَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ وَلاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ ثُمَّ دَعَا رَبِّ اغْفِرْ لِي ».قَالَ الْوَلِيدُ أَوْ قَالَ « دَعَا اسْتُجِيبَ لَهُ فَإِنْ قَامَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ صَلَّى قُبِلَتْ صَلاَتُهُ » او د امام بخارى رحمه الله ترجمه ده په ابواب التهجد كښې باب فضل من تعار من الليل فصلى ...او بيا په دې كښې هغوى هم دا حديث د عباده ذكر كړو، د تعار معنى په لغت كښې دا ليكلې ده چه په اودو اودو د انسان سترګې چه اوغړيږى، په ډېره اوړى او څه لفظ ئې هم د ژبې نه اوځى په كچه شان خوب كښې نو په دې حديث كښې دا اوفرمائيلې شو چه انسان له پكار دى چه په شپه كښې دې د سترګو د غړيدو نه فائده واخلى يعنى د آخرت او بې اختياره دې د دې سترګو غړيدل كيدل غنيمت اوګنړى، د الله پاک ذكر دې اوكړى او څه دعاء دې اوكړى د هغه وخت دعاء به انشاء الله ضرور قبليږى، او دې وخت كښې كوم ذكر كول پكار دى د دې هم رسول الله ﷺ په امت باندې مهربانى كولو سره تعيين اوفرمائيلو لكه چه پورته ذكر شوې دى، او دا ضرورى نه ده چه كوم ذكر كول پكار دى د دې هم رسول الله ﷺ په امت باندې شفقت كولو سره تعين فرمائيلې دې لكه چه پورته ذكر دى، او دا ضرورى نه ده چه دې وخت كښې دې انسان مونځ هم اوكړى خو كه پاسى او اودس اوكړى او دوه ركعته اوكړى نو بيا خو ډيره ښه ده لكه چه رسول الله ﷺ فرمائى چه انشاء الله دا مونځ به هم قبول شى.

د دې نه مُعلومه شوه چه د انسان په ژوند سره مقصود ذكر الهى دې اودهٔ ويخ په ناسته ولاړه هر حال كښې انسان لره د دې خيال ساتل پكار دى او خيال دې كوى چه كله

اودهٔ کيږي نو په ذکر دې اودهٔ کيږي، د حضرت گنگوهي په تقرير کښې يو ځائې کښې داسې ليکلې دی او په حاشيه د ترمذی ۲/۱۷۷ کښې د مجمع البحار نه نقل کړې دی. ﴿من تعار من الليل﴾ يعنی کوم سړې چه د خوب نه بيداريدلو سره په دې دعا بيدار شی (کومه دعا چه په حديث کښې ذکر ده) او دا هم هغه وخت کيدې شی چه کوم انسان د ذکر عادت وی تر دې چه بې ارادې او بې اختياره هم د هغه نه ذکر صادريږی اهـ

د باب په دويم حديث کښې دی:

[٥٠٤٣](1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "قَامَ مِنَ اللَّيْلِ، فَقَضَى حَاجَتَهُ، فَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ، ثُمَّ نَامَ"، قال أبو داود: يَعْنِي بَالَ.

۱د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د شپې د قضائې حاجت دپاره پاسيدو بيا ئې خپل مخ او لاسونه وينځل او بيا اودهٔ شو - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه [قضی حاجته] ددې نه مراد بول کول دی -

**قوله:** ﴿ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَامَ مِنَ اللَّيْلِ فَقَضَى حَاجَتَهُ فَغَسَلَ وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ ثُمَّ نَامَ، يعنی بال ﴾ سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه يو ځل رسول الله ﷺ د شپې پاسيدو پس قضاء حاجت ئې اوکړو يعنی متيازې ئې اوکړې د دې نه پس ئې مخ او لاس وينځلو او اودهٔ شو، د دې نه معلومه شوه چه د اودهٔ کيدو نه مخکښې اودس کول پکار دی که په مينځ کښې هم سترګې اوغړيږی هغه وخت هم اودس کولو سره اودهٔ کيدل پکار دی اګر چه هغه اودس ناتمام ولې نه وی لکه چه د دې حديث د ابن عباس رضي الله عنهما نه معلومه شوه، ځکه چه د دې اودس نه پس د رسول الله ﷺ د مونځ کولو ذکر خو شته دې نه، د مانځه د اودس خو کامليدل ضروری دی.

## باب كَيْفَ يَتَوَجَّهُ

**باب: ... (په اودهٔ کيدو کښې) خپل مخ به کوم طرفته کوی**

[٥٠٤٤](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ بَعْضِ آلِ أُمِّ سَلَمَةَ "كَانَ فِرَاشُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوًا مِمَّا يُوضَعُ الْإِنْسَانُ فِي قَبْرِهِ، وَكَانَ الْمَسْجِدُ عِنْدَ رَأْسِهِ".

حضرت ابو قلابه د سيدنا ام سلمه رضي الله عنها د خاندان د يو کس نه روايت کوی چه د نبی کريم ﷺ بستره به داسې خورولې شوه لکه څنګه چه انسان په قبر کښې کيخودې شی اوجمات به د هغه سر طرف ته وو -

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ بَعْضِ آلِ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَ كَانَ فِرَاشُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- نَحْوًا مِمَّا يُوضَعُ الإِنْسَانُ فِي قَبْرِهِ وَكَانَ الْمَسْجِدُ عِنْدَ رَأْسِهِ ﴾

(1): صحيح البخاري/الدعوات ١٠ (٦٣١٦)، صحيح مسلم/الحيض ٥ (٧٦٣)، سنن النسائي/التطبيق ٦٣ (١١٢٢)، سنن ابن ماجه/الطهارة ٧١ (٥٠٨)، (تحفة الأشراف: ٦٣٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٤، ٢٨٣، ٢٨٤، ٣٤٣) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود (ضعيف)

## شرح الحديث او د اداب نوم تحقيق:

د ترجمة الباب غرض دا دي چه د اودهٔ کيدو په وخت د انسان مخ کوم طرف ته کيدل پکار دی آيا په دې وخت کښې هم قبلې ته مخ کول سنت يا مستحب دی، د حديث الباب په ظاهر کښې مطلب دا دې چه په حجره شريفه کښې چه په کوم بستره باندې رسول الله ﷺ آرام فرمائيلو د هغې حالت داسې وو لکه څنګه چه انسان په قبر کښې کيخودلې شی او دا خبره ټولو ته معلومه ده چه مړی لره په قبر کښې په ښی طرف باندې د قبلې په طرف باندې سملولې شی، معلومه شوه چه رسول الله ﷺ به د اودهٔ کيدو په وخت هم دا صورت اختيارولو، لهذا د دې حديث نه د قبلې په طرف باندې خوب کول ثابت شو، او د مصنف رحمه الله غرض هم د خوب جهت لره بيانول دی، او امام بخاری رحمه الله په کتاب الدعوات کښې د آداب نوم په سلسله کښې درې څلور ابواب قائم کړی دی، باب الضجع على الشق الايمن .....باب اذا بات طاهرا ....باب ما يقول اذا نام ....باب وضع اليد تحت الخد اليمنى ......دا څلور آداب شو، په ښی طرف باندې سملاستل، په اودس کښې اودهٔ کيدل، دعاء لوستلو سره اودهٔ کيدل، او د ښی لاس په تلی باندې مخ کيخودل او دا څلور واړه آداب هغوی د احاديثو نه ثابت فرمائيلې دې، خو هيڅ باب امام بخاری رحمه الله په مستقبل القبلة باندې نه دې قائم کړې، په ظاهر کښې هم په دې وجه باندې چه هغوی سره د دې ادب متعلق څه حديث د هغوی د شرط مطابق نه وو، خو د امام ابوداؤد رحمه الله سره په دې باب کښې يو حديث وو په دې وجه هغوی په دې ادب باندې باقاعده ترجمه قائمولو سره د دې متعلق حديث بيان اوفرمائيلو، لهذا حديث الباب د نوم مستقبل القبلة دليل شو او د منذری د کتلو نه پس معلوميږی چه حديث الباب په صحاح سته کښې سوا د ابوداؤد نه په يو کتاب کښې هم نشته، په حديث الباب کښې دا هم دی ﴿ وكان المسجد عند راسه ﴾ چه د هغې نه ثابته شوه چه د رسول الله ﷺ د سر مبارک طرف ته مسجد نبوی وو، مسجد نبوی د رسول الله ﷺ د حجرې شريفې نه غربی طرف کښې دې لهذا معلومه شوه چه د استراحت په وخت د رسول الله ﷺ سر په غربی طرف کښې او اقدام عاليه په شرقی طرف کښې کيدل او په ښی طرف باندې د ملاستې ثبوت په احاديث شهيره کښې دې او د دې ملاستې نه پس په ښی طرف کښې د جنوب طرف دې د جنوب په طرف کښې د اهل مدينه قبله ده، او هم دا هيئت د ملاستې د انسان په قبر کښې وی فاغتنم وتشکر ...

## بَابُ مَا يُقَالُ عِنْدَ النَّوْمِ

**باب: ۹۷، ۹۸- د اودهٔ کيدو په وخت کښې به کومه دعا وائی؟**

په دې باب کښې مصنف رحمه الله د اودهٔ کيدو په وخت څو دعاګانې ذکر کړی دی.

[۵۰۴۵](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ، عَنْ مَعْبَدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ سَوَاءٍ، عَنْ حَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْقُدَ، وَضَعَ

(1): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۸۷/۶) (صحيح)

يَدَهُ الْيُمْنَى تَحْتَ خَدِّهِ، ثُمَّ يَقُولُ: اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ ثَلَاثَ مِرَارٍ".

د ام المؤمنين حضرت حفصه رضي الله عنها نه روايت دي چه نبي كريم ﷺ به كله اوده كيدل غوښتل نو خپل ښي لاس به ئي د خپل رخسار لاندي كيخودلو او بيا به ئي دا دعا فرمائيله: {اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ} اې الله! په كومه ورځ چه به ته خپل بندګان راپاسه وې مالره د خپل عذاب نه محفوظ كړه. دا كلمات به ئي درې واره لوستل.

۱: اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ، ثَلَاثَ مِرَارٍ

[۵۰۴۶] (1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، قَالَ: سَمِعْتُ مَنْصُورًا يُحَدِّثُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَتَيْتَ مَضْجَعَكَ، فَتَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ، ثُمَّ اضْطَجِعْ عَلَى شِقِّكَ الْأَيْمَنِ، وَقُلْ: اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ، وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ، وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ، رَهْبَةً وَرَغْبَةً إِلَيْكَ، لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَى مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ، آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ، قَالَ: فَإِنْ مِتَّ مِتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ، وَاجْعَلْهُنَّ آخِرَ مَا تَقُولُ، قَالَ الْبَرَاءُ: فَقُلْتُ: أَسْتَذْكِرُهُنَّ، فَقُلْتُ: وَبِرَسُولِكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ، قَالَ: لَا، وَنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ".

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل كله چه خپلي بسترې ته راځې نو داسي اودس كوه لكه څنګه د مونځ دپاره كوې بيا په خپل ښي اړخ باندي سمله او اووايه، {اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ وَجْهِيْ إِلَيْكَ، وَ فَوَّضْتُ أَمْرِيْ إِلَيْكَ، وَ أَلْجَأْتُ ظَهْرِيْ إِلَيْكَ، رَهْبَةً وَ رَغْبَةً إِلَيْكَ، لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَأَ مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ، آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ، وَ نَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ} اې الله! ما خپل مخ ستا تابع كړو او خپله معامله مي تاته اوسپارله خپله ملا مي ستا طرف ته اولګوله (يعني هم تۀ مي خپله سهارا جوړه كړې) زۀ هم ستا نه يريږم او زما شوق هم ستا طرف ته دې ستا نه سوا زما څه د پناهګ ځائي شته او نۀ د نجات - ما ستا په هغه كتاب باندي ايمان راوړو كوم چه تا نازل كړې دې او هغه نبي مي تسليم كړو كوم چه تا رسول جوړ كړو او راليږلې دې دې." حضور ﷺ اوفرمائيل كه چرې ته (په دغه شپه) كښي مړ شوې نو په فطرت باندې به مړ ئې - او پكار دي چه دا ستا آخره خبره وي (ددې نه ورستو څه بله خبره نۀ وي) حضرت براء رضي الله عنه فرمائي چه ما دا دعا د يادولو دپاره دوباره اولوسته نو دا لفظ مي اووې [وبرسولك الذي ارسلت] ما ستا په هغه رسول باندې ايمان راوړو كوم چه تا راليږلې دې." نو حضور ﷺ اوفرمائيل نۀ (بلكې ما چه كوم الفاظ تاته لوستلي دي هم هغه الفاظ ياد كړه او هغه الفاظ دادي: [ونبيك الذي ارسلت] ما ستا په هغه نبي باندې ايمان راوړو كوم چه تا راليږلې دې -

۲: اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ رَهْبَةً وَرَغْبَةً إِلَيْكَ ..... لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَى مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ ...الخ.

[1]: صحيح البخاري/الوضوء ۷۵ (۲۴۷)، صحيح مسلم/الذكر والدعاء ۱۷ (۲۷۱۰)، سنن الترمذي/الدعوات ۱۱۷ (۳۵۷۴)، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۳)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الدعاء ۱۵ (۳۸۷۶)، مسند احمد (۴/۲۹۰، ۲۹۲، ۲۹۳، ۲۹۶، ۳۰۰)، سنن الدارمي/الاستئذان ۵۱ (۲۷۲۵) (صحيح)

د دې دعاء په باره کښې دا دی چه کوم انسان د دې دعاء کولو سره اودهٔ شی نو که هغه هم په دې حالت باندې مړ شو یعنی د اودهٔ کیدو په حالت کښ، نو په فطرت یعنی اسلام باندې به مری، او د دې دعاء په باره کښې دا هم دی چه دا دې بالکل په اخر کښې اولولی یعنی د اودهٔ کیدو نه لږ مخکښې چه د دې نه پس دخبرو کولو حاجت رانشی، او په دې حدیث کښې دا هم دی راوی د حدیث براء بن عازب رضی الله عنه فرمائی چه کله ماته رسول الله ﷺ د دې دعاء تعلیم اوفرمائیلو نو ما د هغې د یادولو دپاره هغه د رسول الله ﷺ سره په ناسته ناسته لوستل شروع کړل او د لوستلو په وخت مې په ځائې د ﴿ ونبیک الذی ارسلت ﴾ ﴿ ورسولک الذی ارسلت ﴾ اووې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ لا ونبیک الذی ارسلت ﴾ یعنی ماته رسول الله ﷺ د دعاء د الفاظو په بدلولو باندې تنبیه اوفرمائیله چه داسې نه بلکه هم هغه شان لوله څنګه چه درته مونږ ښودلې وه، په دې باندې شارحینو لیکلې دی چه د ادعیه ماثوره او مسنونه الفاظ توقیفی دی په دې کښې تغیر او تبدل نه دی کول پکار، د رسول الله ﷺ د بیان کړې الفاظو خاصیت بیل دی.

[٥٠٤٧]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ فِطْرِ بْنِ خَلِيفَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ عُبَيْدَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ وَأَنْتَ طَاهِرٌ، فَتَوَسَّدْ يَمِينَكَ، ثُمَّ ذَكَرَ نَحْوَهُ.

حضرت براء بن عازب رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل: کله چه تهٔ خپلې بسترې ته راځې او په اودس کښې ئې نو په خپل ښی اړخ باندې اودهٔ شه ... بیا ئې مذکوره بالا حدیث روایت کړو.

[٥٠٤٨]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ الْغَزَّالُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، وَمَنْصُورٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ، عَنِ الْبَرَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا، قَالَ سُفْيَانُ: قَالَ أَحَدُهُمَا: إِذَا أَتَيْتَ فِرَاشَكَ طَاهِرًا، وَقَالَ الْآخَرُ: تَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ، وَسَاقَ مَعْنَى مُعْتَمِرٍ.

حضرت براء رضی الله عنه (بن عازب) د نبی کریم ﷺ نه هم دغه روایت بیان کړې دې- سفیان (د خپلو استاذانو د اعمش او د منصور متعلق) فرمائیلې دی چه په دوی کښې د یو الفاظ دا وو: کله چه تاسو په اودس کښې ئې او خپلې بسترې ته راشئ -" او دویم وئیلې دی کله چه تاسو خپلې بسترې ته د راتللو اراده اوکړئ نو اودس اوکړئ لکه څنګه چه د مونځ دپاره اودس کوئ-" او د معتمر هم معنیٰ روایت (٥٠٤٦) ئې بیان کړو.

[٥٠٤٩]([3]) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ رِبْعِيٍّ، عَنْ حُذَيْفَةَ، قَالَ: "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَامَ، قَالَ: اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَحْيَا وَأَمُوتُ، وَإِذَا اسْتَيْقَظَ، قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا، وَإِلَيْهِ النُّشُورُ".

[1]): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٧٦٣) (صحيح)
[2]): انظر حديث رقم: (٥٠٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٦٣) (صحيح)
[3]): صحيح البخاري/الدعوات ٧ (٦٣١٢)، التوحيد ١٣ (٧٣٩٤)، سنن الترمذي/الدعوات ٢٨ (٣٤١٧)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٦ (٣٨٨٠)، (تحفة الأشراف: ٣٣٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٥/٥، ٣٨٧، ٣٩٧، ٣٩٩، ٤٠٧)، سنن الدارمي/الاستئذان ٥٣ (٢٧٢٨) (صحيح)

د سيدنا حذيفه رضي الله عنه نه روايت دي چه نبي کريم ﷺ به کله اوده کيدو نو دا دعا به ئي لوستله: {اللّٰهُمَّ بِاسْمِکَ أَمُوْتُ وَ أَحْيا} اې الله! هم ستا په نوم سره ژوندي او مړ کيږم - يعني اوده کيږم او پاسم - او کله چه به پاسيدو نو دا دعا به ئي وئيله: {اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِی أَحْيانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَ إِلَيْهِ النُّشُوْرُ} تمام تعريفونه هغي الله لره دی کوم چه مالره د مړ کولو نه ورستو ژوندي کړو، (د خوب نه ورستو ئي راويښ کړم) او د هم هغه طرف ته واپس کيدل دي.

**قوله**: ﴿ اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَحْيَا وَأَمُوتُ ﴾ او د بيداريدو په وخت ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ ﴾،

[٥٠٥٠]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَوَى أَحَدُكُمْ إِلَى فِرَاشِهِ، فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهُ بِدَاخِلَةِ إِزَارِهِ، فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي مَا خَلَفَهُ عَلَيْهِ، ثُمَّ لِيَضْطَجِعْ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ، ثُمَّ لِيَقُلْ: بِاسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي، وَبِكَ أَرْفَعُهُ، إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا، وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل کله چه په تاسو کښې څوک بسترې ته راشي نو هغه لره پکار دی چه خپلي بسترې لره د څادر په پلو سره اوڅنډي، څه معلومه ده چرته کښې دده ورستو په دې باندې څه څيز راغلي وی، بيا دې په خپل ښى اړخ باندې اوده شي او دا دعا دې اولولي: {بِاسْمِکَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي وَ بِکَ أَرْفَعُهٗ، إِنْ أَمْسَکْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا وَ إِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهٖ عِبَادَکَ الصَّالِحِيْنَ مِنْ عِبَادِکَ} هم ستا په نوم سره اې زما ربه! ما خپل اړخ لګولي دي او ستا په نوم سره به هغي لره اوچتووم - که چرې ته زما روح بند کړې (مرګ راکړې) نو په هغي باندې رحم اوکړې او که چرې واپس ئي کړې نو د هغې حفاظت اوکړې لکه څنګه چه ته د خپلو نيکو بندګانو حفاظت کوې.

٤: ﴿ بِاسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرْفَعُهُ إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ ﴾ او په دې حديث کښې دا هم دی ﴿ فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهُ بِدَاخِلَةِ ﴾ چه کله انسان داوده کيدو په نيت باندې بسترې ته راشي نو د خپل لنګ په دننه حصه دې بستره اوڅنډي، ځکه چه هغه ته پته نه لګی چه دهغه په بستره باندې د پاسيدو نه پس (يعني سحر چه د هغې نه پاسيدلې وو) چه څه څيز په هغې باندې ناست وی، يعني څه ضرر ځناور.

## په ښى طرف به سملی که په کس طرف؟ او د هغې تحقيق:

**قوله**: ﴿ قوله ثم لِيَضْطَجِعْ عَلَى شِقِّهِ الأَيْمَنِ ﴾ بيا دې په ښى اړخ باندې سملی، دا اوس نزدې تيره شوه چه دا د خوب په آدابو کښې ده او دا هم تير شوې دی چه امام بخاری رحمه الله مستقل ترجمه قائم کړې ده، باب النوم على الشق الايمن ....شراح په شق ايمن باندې د اوده کيدو فوائد ليکلي دی: ١: منها انه اسرع الى الانتباه چه په سره بيداری زر کيږی، ابن الجوزی رحمه الله

[1]): صحيح البخاري/الدعوات ١٣ (٦٣٢٠)، والتوحيد١٣ (٧٣٩٣)، صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٧ (٢٧١٤)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٠٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ٢٠ (٣٤٠١)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٥ (٣٨٧٤)، مسند احمد (٢/٤٢٢، ٤٣٢)، سنن الدارمي/الاستئذان ٥١ (٢٧٢٦) (صحيح)

فرمائی چه د دې هيئت په باره کښې اطباء تصريح کړې ده چه دا اصلح للبدن دې، بيا هغوی فرمائی چه شروع دې اوکړی په ښی طرف باندې د ملاستې نه بيا دې په ګسه ډډه واوړی، ځکه چه په ښی طرف باندې ملاسته سبب دې د انحدار طعام يعنی د هغې د تحليل او په ګس طرف باندې اودهٔ کيدل سبب دې د هضم لاشتمال الكبد على المعدة صاحب د فيض الباری فرمائی چه په ښی طرف باندې سملاستل د انبياء علیهم السلام طريقه ده ځکه چه زړه ګس طرف ته وی نو په دې صورت کښې به معلق وی سړې په خوب کښې د نه غرقيدو او اطباء اختيار کړې دې خوب على الشق الأيسر فانه انفع للصحة او چونکه د انبياء علیهم السلام نظر د آخرت په طرف وی په دې وجه هغوی دا څيز اختيار فرمائيلې دې چه په هغې کښې د آخرت نفع زياته ده او د اطباء نظر د بدن په صحت باندې دې، او ملا علی قاری رحمه الله ليکلې دی چه په هيئاتو د نوم کښې د ټولو نه انفع دا ده چه شروع اوکړی په ايمن باندې بيا دې لږ ساعت پس ګسې ډډې باندې سملی، او بيا دې ښئ ډډه اختيار کړی، ځکه چه دا اسرع على انتباه ده د عدم استقرار قلب د وجې نه ځکه چه قلب په جانب ايسر کښې دې په ښی طرف باندې اودهٔ کيدو کښې به معلق وی پس د عدم استقرار د وجې نه به مستغرق فی النوم نه وی، په خلاف د نوم على الايسر، ځکه چه قلب ته به په دې صورت کښې استقرار حاصل شی، چه په کوم کښې استراحت وی کوم چه به په انتباه کښې د تاخير سبب وی. (ملخصاً من الابواب والتراجم)

[٥٠٥١]([1])حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ. ح وحَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ نَحْوَهُ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ "إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ: اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ وَرَبَّ الْأَرْضِ وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ، فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوَى، مُنْزِلَ التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِي شَرٍّ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ، أَنْتَ الْأَوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الْآخِرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الظَّاهِرُ فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُونَكَ شَيْءٌ" زَادَ وَهْبٌ فِي حَدِيثِهِ: اقْضِ عَنِّي الدَّيْنَ، وَأَغْنِنِي مِنَ الْفَقْرِ.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه کله به حضور صلی الله علیه وسلم خپلې بسترې ته تشريف راوړو نو دا دعا به ئې کوله: { اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمٰوٰتِ وَ رَبَّ الْأَرْضِ وَ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوَى، مُنْزِلَ التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِي شَرٍّ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ، أَنْتَ الْأَوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ، وَ أَنْتَ الْآخِرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيْءٌ، وَ أَنْتَ الظَّاهِرُ فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيْءٌ، وَ أَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُونَكَ شَيْءٌ،} دَ وهب بن بقيه په روايت کښې مزيد دا الفاظ دی: { اقْضِ عَنِّي الدَّيْنَ وَ أَغْنِنِي مِنَ الْفَقْرِ} اې الله اې دَ اسمانونو ربه ! اې دَ زمکې ربه ! اې دَ فرشتو ربه ! اې دَ دانې چوونکې او راټوکوونکيه ! اې دَ تورات، انجيل او دَ قرآن نازلوونکيه ! زهٔ دَ هر شر والا څيز نه، دَ کومو چه تندی تا نيولې دی، په تا سره پناه غواړم، تهٔ دَ ټولو نه اول ئې ستا نه وړاندې هيڅ نهٔ وو تهٔ دَ ټولو نه آخری ئې ستا نه پس به هيڅ نهٔ وی، هم تهٔ ظاهر ئې ستا نه زيات ظاهر هيڅ څوک نشته هم ته پوشيده ئې ستا نه پوشيده تر او پټ هيڅ څوک نشته.

[1]): صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٧ (٢٧١٣)، سنن الترمذي/الدعوات ١٩ (٣٤٠٠)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٥ (٣٨٧٣)، مسند احمد (٤٠٤/٢)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٣١) (صحيح)

زما قرض ادا کړي او مالره د (خلقو) د محتاجئ نه بې پرواه کړي.“

٥: ﴿ اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمَوَاتِ وَرَبَّ الأَرْضِ وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوَى مُنَزِّلَ التَّوْرَاةِ وَالإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِى شَرٍّ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ أَنْتَ الأَوَّلُ ..... فَوْقَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُونَكَ شَيْءٌ ». « اقْضِ عَنِّى الدَّيْنَ وَأَغْنِنِى مِنَ الْفَقْرِ ﴾

انت الاول الخ يعنى د الله پاک نه ابتداء شته او نه انتهاء، هغه د هميشه نه دې او هميشه به وى، انت الظاهر الخ د دلائلو په اعتبار سره ستا وجود دومره ښکاره دې چه هغې نه زيات هيڅ څيز نه شي کيدې، او د حواس ظاهره په اعتبار سره ته دومره پټ ئې چه ستا نه زيات پټ هيڅ نه شي کيدې.

[٥٠٥٢]([1]) حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا الأَحْوَصُ يَعْنِي ابْنَ جَوَّابٍ، حَدَّثَنَا عَمَّارُ بْنُ رُزَيْقٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ رَحِمَهُ اللَّهُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ عِنْدَ مَضْجَعِهِ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِوَجْهِكَ الْكَرِيمِ وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ مِنْ شَرِّ مَا أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ، اللَّهُمَّ أَنْتَ تَكْشِفُ الْمَغْرَمَ وَالْمَأْثَمَ، اللَّهُمَّ لَا يُهْزَمُ جُنْدُكَ وَلَا يُخْلَفُ وَعْدُكَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ، سُبْحَانَكَ وَبِحَمْدِكَ".

د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به د اودۀ کيدو په وخت کښې دا کلمات فرمائيل: {اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِوَجْهِكَ الْكَرِيمِ وَ كَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ مِنْ شَرِّ مَا أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِه، اللَّهُمَّ أَنْتَ تَكْشِفُ الْمَغْرَمَ وَالْمَأْثَمَ، اللَّهُمَّ لَا يُهْزَمُ جُنْدُكَ وَلَا يُخْلَفُ وَعْدُكَ، وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ، سُبْحَانَكَ وَبِحَمْدِكَ}“اې الله زۀ ستا په بزرګئ والا مخ باندې پناه غواړم، او ستا په کامل کلماتو باندې غواړم د هغه څيز د شرنه دکوم تندى چه تا نيولې دى، يا الله! هم تۀ قرض او ګناه لرې کوونکې ئې يا الله! ستا لښکر نۀ شي واپس کولې - ستا وعده خلاف نۀ وى او ستا په نزد باندې چا مالدار ته د هغه مال (يا خاندانى شرف والا ته د هغه شرف) هيڅ فائده نۀ شى ورکولې، ته د هر عيب نه پاک او د تمامو تعريفونو والا ئې -

﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِوَجْهِكَ الْكَرِيمِ وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ مِنْ شَرِّ مَا أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ اللَّهُمَّ أَنْتَ تَكْشِفُ الْمَغْرَمَ وَالْمَأْثَمَ اللَّهُمَّ لاَ يُهْزَمُ جُنْدُكَ وَلاَ يُخْلَفُ وَعْدُكَ وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ سُبْحَانَكَ وَبِحَمْدِكَ ﴾

[٥٠٥٣]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ، قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَكَفَانَا وَآوَانَا، فَكَمْ مِمَّنْ لَا كَافِيَ لَهُ وَلَا مُؤْوِيَ".

د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چه کله به نبى کريم ﷺ خپلې بسترې ته راتلو نو دا دعا به ئې فرمائيله: { الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِى أَطْعَمَنَا وَ سَقَانَا، وَ كَفَانَا وَ آوَانَا، فَكَمْ مِمَّنْ لَا كَافِيَ لَه وَلَا مُؤْوِيَ } تمام تعريفونه هغې الله لره دى چا مونږ ته خوراک راکړو او مونږه ئې سيرابه کړو، د تکليفونو نه ئې مونږه ته حفاظت راکړو او مونږه ته ئې د اوسيدو ځائې عنايت کړو، څومره

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٠٣٨) (ضعيف)

[2]): صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٧ (٢٧١٥)، سنن الترمذي/الدعوات ١٦ (٣٣٩٦)، (تحفة الأشراف: ٣١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٣/٣، ١٦٧، ٢٣٥) (صحيح)

مخلوق چه دي دَ هغې هيڅ څوک دَ هغې نهٔ کفايت کوونکې شته او نهٔ هغوی ته ځائې ورکوونکې څوک شته۔

٧: ﴿ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِی أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَكَفَانَا وَآوَانَا فَكَمْ مِمَّنْ لاَ كَافِيَ لَهُ وَلاَ مُؤوِى ﴾

ټول تعريفونه د هغه الله پاک دپاره دی چا چه مونږ له خوراک راکړو او زمونږ د ټولو حاجتونو کفايت ئې اوفرمائيلو او مونږ ته ئې د اوسيدو دپاره استوګنه راکړه پس څومره خلق داسې دی چه د هغوی دپاره هيڅ کفايت کونکې نشته او نه ورله استوګنه ورکونکې شته، پس مونږ ګورو چه ډير خلق د سړکونو په غاړو باندې او په پليټ فارمو باندې پراته وی په ګرمئ او يخنئ کښ، ما خپل والد صاحب ليدلې دې چه هغوی به هميشه د سملاستو په وخت دا دعا په لږ اوچت آواز باندې لوستله

[٥٠٥٤]([1]) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ التِّنِّيسِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ، عَنْ ثَوْرٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنْ أَبِي الْأَزْهَرِ الْأَنْمَارِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ، قَالَ: بِسْمِ اللَّهِ وَضَعْتُ جَنْبِي، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي وَأَخْسِئْ شَيْطَانِي وَفُكَّ رِهَانِي وَاجْعَلْنِي فِي النَّدِيِّ الْأَعْلَى"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَبُو هَمَّامٍ الْأَهْوَازِيُّ، عَنْ ثَوْرٍ، قَالَ أَبُو زُهَيْرٍ الْأَنْمَارِيُّ.

د حضرت ابو ازهر انماری رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم به کله د شپې اودهٔ کيدو نودا دُعا به ئې وئيله: {بِسْمِ اللّٰه وَضَعْتُ جَنْبِي،اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ ذَنْبِي وَاخْسَأْ شَيْطَانِي وَ فُكَّ رِهَانِي وَاجْعَلْنِي فِي النَّدِيِّ الْأَعْلَى} دَ الله په نوم سره ما خپل اړخ کيخودو، اې الله! زما ګناه اوبخښې زما شيطان لره دفع (لرې) کړې، زما نفس (دَ دوزخ نه) آزاد کړې او ما لره دَ اعلیٰ او افضل مجلس والو نه اوګرځوې۔" [2] يعنی ما دَ ملائکو او انبياؤ او رسولانو هم نشين جوړ کړې -]امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روايت لره ابو همام اهوازی (محمد بن زبر قان) دَ ثوری نه نقل کړې دې نو دَ (ابو ازهر په ځائې باندې ئې) ابو زهير انماری وئيلې دی۔

٨: ﴿ بِسْمِ اللَّهِ وَضَعْتُ جَنْبِي اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي وَأَخْسِئْ شَيْطَانِي وَفُكَّ رِهَانِي وَاجْعَلْنِي فِي النَّدِيِّ الأَعْلَى ﴾ ([2])

[٥٠٥٥]([3]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ فَرْوَةَ بْنِ نَوْفَلٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِنَوْفَلٍ: "اقْرَأْ: قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ، ثُمَّ نَمْ عَلَى خَاتِمَتِهَا، فَإِنَّهَا بَرَاءَةٌ مِنَ الشِّرْكِ".

حضرت فروه بن نوفل د خپل پلار نه روايت کوی چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم نوفل رضي الله عنه ته فرمائيلي وو {قُلْ يا أَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ} وايه او هم په دې باندې خپلې خبرې ختمه وه او اودهٔ کيږه بې شکه په دې کښې دَ شرک نه دَ براءت اظهار دې۔

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٨٥٩) (صحيح)

[2]) يعنی زما شيطان زما نه لرې اوساته او زما نفس راخلاص کړه يعنی ما راخلاص کړه د ټولو حقوقو نه. رهان په معنی د مرهون کوم چه د نفس صفت دې کما في قوله تعالي كل نفس بما كسبت رهينة، او کړه ما د مجلس اعلی يعنی ملاء اعلی او ملائکو نه.

[3]): سنن الترمذي/الدعوات ٢٢ (٣٤٠٣)، (تحفة الأشراف: ١١٧١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٥٦)، سنن الدارمي/فضائل القرآن ٢٢ (٣٤٧٠) (صحيح)

۹: ﴿ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ ﴾ تول سورت، نوفل بن فروه ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل چه د اوده کيدو په وخت کښې دا سورت لوله، ځکه چه د دې سورة لوستل د شرک نه براءت دې.

[٥٠٥٦]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْمُفَضَّلُ يَعْنِيَانِ ابْنَ فَضَالَةَ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ كُلَّ لَيْلَةٍ جَمَعَ كَفَّيْهِ، ثُمَّ نَفَثَ فِيهِمَا، وَقَرَأَ فِيهِمَا قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ، وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ، وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ، ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا مَا اسْتَطَاعَ مِنْ جَسَدِهِ: يَبْدَأُ بِهِمَا عَلَى رَأْسِهِ وَوَجْهِهِ، وَمَا أَقْبَلَ مِنْ جَسَدِهِ يَفْعَلُ ذَلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ".

د ام المؤمنين حضرت عائشي ﷺ نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ به هره شپه خپلې بسترې ته تشريف راوړو نو خپل دواړه لاسونه به ئې يوځائې کول او په هغې کښې به ئې {قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ، قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ} او{ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ} سورتونه لوستل او چُپ کول به ئې بيا ترکومه ځائې پورې چه به کيدې شوه په جسم باندې به ئې راښکل - اول به ئې دَ خپل سر، مخ او دَ مخې طرف د حصې نه به ئې ابتداء کوله او درې ځله به ئې داسې کول "

۱۰: ﴿ سورة قل هو الله احد ﴾ او معوذتين، د رسول الله ﷺ عادت مبارک وو چه د اوده کيدو نه مخکښې به ئې دا درې سورتونه لوستل او په خپلو دواړو تلو مبارکو باندې به ئې دم کول او په خپل پوره بدن باندې به ئې راښکل تر کوم ځائې پورې چه به لاسو رسيدل، شروع به ئې فرمائيله د سر مبارک او مخ مبارک نه، او داسې به ئې درې کرته کول.

[٥٠٥٧]() حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ بَحِيرٍ، عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ، عَنِ ابْنِ أَبِي بِلَالٍ، عَنْ عِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ: الْمُسَبِّحَاتِ قَبْلَ أَنْ يَرْقُدَ، وَقَالَ: إِنَّ فِيهِنَّ آيَةً أَفْضَلُ مِنْ أَلْفِ آيَةٍ".

د حضرت عرباض بن ساريه ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به د اوده کيدو نه وړاندې دَ [المسبحات] تلاوت فرمائيلو او حضور ﷺ اوفرمائيل: په دې کښې يو آيت دې چه د زرو آيتونو نه افضل دې -"

۱۱: مسبحات سبعه: د رسول الله ﷺ معمول وو چه د اوده کيدو نه مخکښې به ئې مسبحات لوستل او رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائيل چه په دې سورتونو کښې يو آيت داسې دې کوم چه د زرو آيتونو نه افضل دې او هغه سورتونه دا دی: سورة بنی اسرائيل، سورة الحديد، الحشر، الصف، الجمعة، التغابن، الاعلى.

[٥٠٥٨]() حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَفَانِي

[1]): صحيح البخاري/الدعوات ١٢ (٦٣١٩)، سنن الترمذي/الدعوات ٢١ (٣٤٠٢)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٥ (٣٨٧٥)، (تحفة الأشراف: ١٦٥٣٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٦/٦، ١٥٤) (صحيح)

[2]): سنن الترمذي/الدعوات ٢٢ (٣٤٠٩)، (تحفة الأشراف: ٩٨٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٨/٤) (ضعيف)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧١١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٧/٢) (صحيح الإسناد)

وَآوَانِي وَأَطْعَمَنِي وَسَقَانِي، وَالَّذِي مَنَّ عَلَيَّ فَأَفْضَلَ، وَالَّذِي أَعْطَانِي فَأَجْزَلَ، الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ، اللّٰهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ وَإِلٰهَ كُلِّ شَيْءٍ أَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ".

سیدنا ابن عمر رضی الله عنه ابن بریده ته اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ به کله خپلي بستري ته راتلو نو دا دعا به ئې فرمائیله: {الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَفَانِي وَ آوَانِي وَ أَطْعَمَنِي وَ سَقَانِي، وَالَّذِي مَنَّ عَلَيَّ فَأَفْضَلَ، وَالَّذِي أَعْطَانِي فَأَجْزَلَ، الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ - اللّٰهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَ مَلِيكَه وَ إِلٰه كُلِّ شَيْءٍ، أَعُوذُ بِک مِنَ النَّارِ } تمام تعریفونه هغه الله لره دی چه زما ئې (هر قسم) کفایت اوفرمایئ، او ماته ئې د اسیدو دپاره ځائې راکړو، ما ته ئې خوراک څښاک راکړو، او کوم ذات چه په ما باندې احسان اوکړو او ډیر زیات ئې اوکړو کوم ذات چه ماته راکړو او ډیر زیات ئې راکړو، په هر حال کښې الله تعالیٰ لره تعریف دې اې الله! د هر څیز پروردګار! او د هغې مالکه! اې د هر څیز معبوده! زۀ د اور نه په تاسره پناه غواړم۔

١٢: الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي كَفَانِي وَآوَانِي وَأَطْعَمَنِي وَسَقَانِي وَالَّذِي مَنَّ عَلَيَّ فَأَفْضَلَ وَالَّذِي أَعْطَانِي فَأَجْزَلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ اللّٰهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ وَإِلٰهَ كُلِّ شَيْءٍ أَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ ﴾ دا ټولې دولس دعاګانې شوې چه په دې کښې بعض (درې څلور) خو ضرور یادول پکار دی او په اهتمام سره دې اولوستلې شي.

[٥٠٥٩] (١) حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اضْطَجَعَ مَضْجَعًا لَمْ يَذْكُرِ اللّٰهَ تَعَالَى فِيهِ إِلَّا كَانَ عَلَيْهِ تِرَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ، وَمَنْ قَعَدَ مَقْعَدًا لَمْ يَذْكُرِ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ فِيهِ إِلَّا كَانَ عَلَيْهِ تِرَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل کوم سړې چه چرته کښې اودۀ وی او په هغې کښې ئې د الله تعالیٰ ذکر نۀ وی کړې نو د قیامت په ورځ باندې هغه ته حسرت او افسوس وی۔ او کوم کس چه چرته کښې ناست وی او هلته کښې ئې د الله تعالیٰ ذکر نۀ وی کړې نو د قیامت په ورځ باندې به دۀ ته حسرت او افسوس وی".

## بَابُ مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ

### باب: ٩٨، ٩٩- په شپه کښې چه کله سترګې کولاؤشي نوکومه دُعا به وائي

د دې باب ذکر او د هغې تشریح په باب النوم علی الطهارة کښې تیر شوې دې، او د دې باب اول حدیث هم هلته تیر شو،

[٥٠٦٠] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، قَالَ: قَالَ الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي عُمَيْرُ بْنُ هَانِئٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي جُنَادَةُ بْنُ أَبِي أُمَيَّةَ، عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَعَارَّ مِنَ اللَّيْلِ، فَقَالَ حِينَ يَسْتَيْقِظُ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، سُبْحَانَ اللّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، ثُمَّ دَعَا: رَبِّ اغْفِرْ لِي، قَالَ الْوَلِيدُ أَوْ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٠٤٤) (حسن)

(٢): صحيح البخاري/التهجد ٢١ (١١٥٤)، سنن الترمذي/الدعوات ٣٦ (٣٤١٤)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٦ (٣٨٧٨)، (تحفة الأشراف: ٥٠٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٣/٥)، سنن الدارمي/الاستئذان ٥٣ (٢٧٢٩) (صحيح)

قَالَ: دُعَا اسْتُجِيبَ لَهُ، فَإِنْ قَامَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ صَلَّى قُبِلَتْ صَلَاتُهُ".

د حضرت عباده بن صامت رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په شپه کښې چه دَ چا سترګې کولاؤ شي او هغه دَ پاسيدو په وخت کښې دا کلمات اووائي: { لَاإِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ،لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلَى كُلِّ شَيْئٍ قَدِيْرٌ ـ سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ،وَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ،وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ ـ }او بيا دُعا اوکړي[ رَبِّ اغْفِرْلِي ]امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه دَ وليد الفاظ دی: بيا څه دُعا اوکړي،نو قبوله به کړې شي ددۀ دپاره -

او د دي باب په دويم حديث کښې دا دعاء ذکر ده:

﴿ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ أَسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي وَأَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ اللَّهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا وَلاَ تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي وَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ ﴾

[٥٠٦١](١) حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي أَيُّوبَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ" إِذَا اسْتَيْقَظَ مِنَ اللَّيْلِ، قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ أَسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي وَأَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ، اللَّهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا، وَلَا تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي، وَهَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً، إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ".

د ام المؤمنين حضرت عائشي رضی الله عنها نه روايت دي چه رسول الله ﷺ به کله د شپې پاسيدو نو دا دُعا به ئې فرمائيله: { لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ،سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ أَسْتَغْفِرُكَ لِذَنْبِي وَ أَسْأَلُكَ رَحْمَتَكَ ـ اللّٰهُمَّ زِدْنِي عِلْمًا وَلَا تُزِغْ قَلْبِي بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنِي،وَ هَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ } ستا نه سوا څوک معبود نشته،تۀ پاک ئې،اې الله! زۀ ستا نه دَ ګناهونو معافي غوارم او ستا دَ رحمت سوالي يم،اې الله! زما په علم کښې اضافه اوفرمايه! او دَ هدايت نه پس زما زړۀ لره ګمراه نۀ کړې - (اې زما ربه!) په ما باندې دَ خپل طرف نه رحمت عنايت اوفرمايه،بې شکه هم تۀ عنايت کوونکې ئې -"

دا دعاء د بيداريدو په وخت د لوستلو ده لکه چه په ترجمة الباب کښې دی.

**د سنن ابوداوٗد اخری يعنی دوه ديرشمه پاره:**

د دي باب په باره کښې د کتاب په حاشيه کښې ليکلې دی: ﴿ اخر الجزء الحادی والثلاثين، واول الجزء الثانی والثلاثين ﴾ د دي کتاب په دوه ديرشو پارو کښې يو ديرش پارې پوره شوې، اوس وراندې دوه ديرشمه پاره شروع کيږي، يعنی آخری پاره.

## بَابٌ فِي التَّسْبِيحِ عِنْدَ النَّوْمِ

**باب: دَاودۀ کيدو په وخت کښې دَ تسبيحاتو ورد**

[٥٠٦٢](٢) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ ح حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ الْمَعْنَى،

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦١١٨) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/فرض الخمس ٦ (٣١١٣)، المناقب ٩ (٣٧٠٥)، النفقات ٦ (٥٣٦١)، صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٩ (٢٧٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٢١٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ٢٤ (٣٤٠٨)، مسند احمد (١٤٦٧١)، سنن الدارمي/الاستئذان ٥٢ (٢٧٢٧) (صحيح)

عَنْ الْحَكَمِ، عَنْ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، قَالَ مُسَدَّدٌ: قَالَ: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ، قَالَ: "شَكَتْ فَاطِمَةُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَلْقَى فِي يَدِهَا مِنَ الرَّحَى، فَأُتِيَ بِسَبْيٍ فَأَتَتْهُ تَسْأَلُهُ، فَلَمْ تَرَهُ فَأَخْبَرَتْ بِذَلِكَ عَائِشَةَ، فَلَمَّا جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهُ، فَأَتَانَا وَقَدْ أَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْنَا لِنَقُومَ، فَقَالَ: عَلَى مَكَانِكُمَا، فَجَاءَ فَقَعَدَ بَيْنَنَا، حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلَى صَدْرِي، فَقَالَ: أَلَا أَدُلُّكُمَا عَلَى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَا إِذَا أَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا، فَسَبِّحَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَاحْمَدَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَكَبِّرَا أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ، فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمَا مِنْ خَادِمٍ".

د حضرت علی نه روایت دې چه سیده فاطمې رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته په میچنه باندې د اوړه کولو په سبب سره د لاسونو د تکلیف اظهار اوکړو - بیا نبی کریم ﷺ ته څو غلامان راوستې شو نو سیده فاطمه رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته راغله چه یو غلام طلب کړی مګر حضور ﷺ میلاؤ نهٔ شو نو هغې دا خبره حضرت عائشې رضی الله عنها ته اوښودله - کله چه نبی کریم ﷺ تشریف راوړو نو هغې حضور ﷺ ته د هغې ذکر اوکړو (چه سیده فاطمه رضی الله عنها راغلې وه) نو نبی کریم ﷺ مونږ ته تشریف راوړو په داسې حال کښې چه مونږه بسترو ته تلې وو هغهٔ تشریف راوړو نو مونږ پاسیدو حضور ﷺ اوفرمائیل په خپل خپل ځائې باندې کینئ - هغه راغې او زمونږ په مابین کښې کیناستو تر دې پورې چه د حضور ﷺ د پښو یخوالې ما په خپله سینه کښې محسوس کړو، حضور ﷺ اوفرمائیل آیا زهٔ تاسو ته داسې خبره اونهٔ ښایم چه هغه ستاسو دپاره بهتره وی د هغه څیز نه د کوم چه تاسو مطالبه کړې ده؟ کله چه تاسو په بستره باندې اودهٔ کیږئ نو درې دیرش کرته " سبحان الله " درې دیرش کرته " الحمد لله " او څلور دیرش کرته " الله اکبر " وائئ دا ستاسو دپاره د خادم نه څو چنده بهتر دی.

[٥٠٦٣] (١) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ هِشَامٍ الْيَشْكُرِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ الْجُرَيْرِيِّ، عَنْ أَبِي الْوَرْدِ بْنِ ثُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ عَلِيٌّ لِابْنِ أَعْبُدَ: أَلَا أُحَدِّثُكَ عَنِّي وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَانَتْ أَحَبَّ أَهْلِهِ إِلَيْهِ، وَكَانَتْ عِنْدِي فَجَرَّتْ بِالرَّحَى حَتَّى أَثَّرَتْ بِيَدِهَا، وَاسْتَقَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتَّى أَثَّرَتْ فِي نَحْرِهَا، وَقَمَّتِ الْبَيْتَ حَتَّى اغْبَرَّتْ ثِيَابُهَا، وَأَوْقَدَتِ الْقِدْرَ حَتَّى دَكِنَتْ ثِيَابُهَا وَأَصَابَهَا مِنْ ذَلِكَ ضُرٌّ، فَسَمِعْنَا أَنَّ رَقِيقًا أُتِيَ بِهِمْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: لَوْ أَتَيْتِ أَبَاكِ فَسَأَلْتِيهِ خَادِمًا يَكْفِيكِ، فَأَتَتْهُ فَوَجَدَتْ عِنْدَهُ حُدَّاثًا فَاسْتَحْيَتْ فَرَجَعَتْ، فَغَدَا عَلَيْنَا وَنَحْنُ فِي لِفَاعِنَا، فَجَلَسَ عِنْدَ رَأْسِهَا فَأَدْخَلَتْ رَأْسَهَا فِي اللِّفَاعِ حَيَاءً مِنْ أَبِيهَا، فَقَالَ: مَا كَانَ حَاجَتُكِ أَمْسِ إِلَى آلِ مُحَمَّدٍ؟، فَسَكَتَتْ مَرَّتَيْنِ، فَقُلْتُ: أَنَا وَاللَّهِ أُحَدِّثُكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ هَذِهِ جَرَّتْ عِنْدِي بِالرَّحَى حَتَّى أَثَّرَتْ فِي يَدِهَا، وَاسْتَقَتْ بِالْقِرْبَةِ حَتَّى أَثَّرَتْ فِي نَحْرِهَا، وَكَسَحَتِ الْبَيْتَ حَتَّى اغْبَرَّتْ ثِيَابُهَا، وَأَوْقَدَتِ الْقِدْرَ حَتَّى دَكِنَتْ ثِيَابُهَا، وَبَلَغَنَا أَنَّهُ قَدْ أَتَاكَ رَقِيقٌ أَوْ خَدَمٌ، فَقُلْتُ لَهَا: سَلِيهِ خَادِمًا، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ الْحَكَمِ وَأَتَمَّ.

امیر المؤمنین حضرت علی رضی الله عنه ابن اعبد ته اوفرمائیل: زهٔ تاسو ته خپله او د فاطمه رضی الله عنها بنت رسول ﷺ خبره اونهٔ ښایم؟ سیده فاطمه رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته په خپل اهل کښې د ټولو نه زیاته محبوبه وه - میچنه به ئې چلوله تردې پورې چه د هغې په لاسونو کښې (ددې په وجه سره) نخښې جوړې شوې، په مشکیزه کښې به ئې اوبهٔ راوړې په هغې سره ئې په سینه کښې نشانې جوړې شوې په کور کښې به ئې جارو وهله په هغې سره به ئې کپړې خرابې وې او د کټوئ پسې به ئې اور بلولو نو په هغې سره به ئې جامې ګنده کیدې او په دې سره به

(١): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٢٩٨٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٤٥) (ضعيف)

هغي ته اذيئت هم رسيدو - بيا مونږه واوريدل چه نبی کريم ﷺ ته څو غلامان راوستي شوي دی نو ما اووې : که چرې ته خپل پلار ته لاړه شي او هغه ته دَ يو خادم اووائي چه هغه ستا دپاره کار کوی (نو دا به ستا دپاره بهتره وی) چنانچه هغه حضور ﷺ ته راغله مگر هغي بيا مونده چه پيغمبر ﷺ سره څو کسان خبرې کوونکی ناست دی نو هغي ته په خبرو کولو کښې حيا راغله،لهذا هغه واپس راغله - په سبا باندې حضور ﷺ مونږه ته تشريف راوړو په داسې حال کښې چه مونږه لحاف اغوستي وو

چنانچه حضور ﷺ دَ حضرت فاطمې رضي الله عنها سر طرف ته کيناستو پس هغې دَ خپل پلار نه دَ حياء په سبب سره خپل سر لره په لحاف کښې پټ کړو حضور ﷺ پوښتنه اوکړه :" پرون ستا دَ ال محمد سره څه کار وو؟ نو هغه خاموشه شوه - حضور ﷺ دوباره پوښتنه اوکړه : نو ما عرض اوکړو چه اې دَ الله رسوله ! زۀ ئې عرض کووم - بې شکه دا زما (په کور کښې) په ميچنې سره اوړه کوی تردې پورې چه په لاسونو کښې ئې نخښې جوړې شوې دی،په مشک کښې اوبۀ راوړی تردې پورې چه په سينه کښې ئې نشانې جوړې شوې دی،په کور کښې جارو وهی او کپړې ئې گنده کيږی،په کټوی پسې اور بله وی تردې پورې چه کپړې ئې تورې شوې دی او مونږ ته معلومه شوې ده چه تاسو ته څو غلامان راوستې شوې دی نو ما دې ته اووې چه تاسو ته دَ څه غلام اووائی ... او مذکوره بالا روايت ئې دَ حکم هم معنیٰ ذکر کړو او هغه زيات کامل دې -

د دې باب په اول دوه احاديثو کښې خو تسبيح فاطمه مذکور دې او دا حديث په کتاب الجهاد باب تقسيم الخمس، کښې تير شوې دې، چه په هغې کښې رسول الله ﷺ خپلې لور فاطمې رضي الله عنها او د هغې خاوند سيدنا علی رضي الله عنه دواړو ته د اودۀ کيدو په وخت د دې تسبيح لوستلو حکم فرمائيلې دې، درې ديرش کرته سبحان الله، او درې ديرش کرته الحمد لله او څلور ديرش کرته الله اکبر.

[۵۰۶۴]([1]) حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْهَادِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ، عَنْ شَبَثِ بْنِ رِبْعِيٍّ، عَنْ عَلِيٍّ عليه السلام، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ فِيهِ: قَالَ عَلِيٌّ: فَمَا تَرَكْتُهُنَّ مُنْذُ سَمِعْتُهُنَّ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِلَّا لَيْلَةَ صِفِّينَ فَإِنِّي ذَكَرْتُهَا مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ فَقُلْتُهَا.

حضرت علی رضي الله عنه دَ نبی کريم ﷺ نه دا خبر بيان کړې دې - په دې کښې دی چه حضرت علی رضي الله عنه اوفرمائيل : دَ کله نه چه ما دَ رسول الله ﷺ نه (دا دَ تسبيحاتو والا عمل) اوريدلې دې - دې لره ما کله هم نۀ دی پريخودې - صرف دَ صفين په شپه کښې دا ماته دَ شپې په اخره کښې ياد شو ،نو دا ما په هغه وخت کښې اولوستل -

او د دې نه پس د عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما حديث مرفوع کښې دی

[1]: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (۲۹۸۸)، (تحفة الأشراف: ۱۰۱۲۲) (ضعيف)

[۵۰۶۵]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَصْلَتَانِ أَوْ خَلَّتَانِ لَا يُحَافِظُ عَلَيْهِمَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ هُمَا يَسِيرٌ وَمَنْ يَعْمَلُ بِهِمَا قَلِيلٌ: يُسَبِّحُ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ عَشْرًا، وَيَحْمَدُ عَشْرًا، وَيُكَبِّرُ عَشْرًا فَذَلِكَ خَمْسُونَ وَمِائَةٌ بِاللِّسَانِ وَأَلْفٌ وَخَمْسُ مِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ، وَيُكَبِّرُ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ، وَيَحْمَدُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، وَيُسَبِّحُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ فَذَلِكَ مِائَةٌ بِاللِّسَانِ وَأَلْفٌ فِي الْمِيزَانِ، فَلَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْقِدُهَا بِيَدِهِ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ هُمَا يَسِيرٌ وَمَنْ يَعْمَلُ بِهِمَا قَلِيلٌ؟، قَالَ: يَأْتِي أَحَدَكُمْ يَعْنِي الشَّيْطَانَ فِي مَنَامِهِ فَيُنَوِّمُهُ قَبْلَ أَنْ يَقُولَهُ، وَيَأْتِيهِ فِي صَلَاتِهِ فَيُذَكِّرُهُ حَاجَةً قَبْلَ أَنْ يَقُولَهَا".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي چه نبي کريم ﷺ اوفرمائيل : دوه عملونه داسې دي که يو مسلمان بنده دَ هغې پابندي اوکړي نو په جنت کښې به داخل شي او هغه ډېر آسان دي مګر په هغې باندې عمل کوونکی ډېر کم دي - (يو داچه) دَ هر مونځ نه پس لس ځله "سبحان الله" لس ځله "الحمد لله" او لس ځله "الله اکبر" اووائي نو د ژبې دَ ادائيګئ په اعتبار سره يونيم سل [۱۵۰] ځله دي (په مجموعي طور باندې دَ پنځو مونځونو نه پس) او په تله کښې به يو نيم زر (۱۵۰۰) وي او کله چه اودهٔ کيږي نو څلور ديرش ځله الله اکبر او درې ديرش ځله الحمد لله او درې ديرش ځله سبحان الله دې وائي - دَ ژبې په اعتبار سره خو دا سل ځله دي مګر په ميزان کښې دا تسبيحات به زر ځله وي -" يقينا ما رسول الله ﷺ لره ليدلي دي چه هغه به دې تسبيحاتو لره په لاس سره شمير کول - صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم تپوس اوکړو : اې دَ الله رسوله ! دا څنګه دي، چه دا عمل آسان دي مګر کوونکي ئې ډېر کم دي؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چه دَ اودهٔ کيدو په وخت کښې بنده ته شيطان راشي او وراندې ددې نه چه دا تسبيحات اولولي هغه ده لره اودهٔ کوي او (دغه شان) په مونځ کښې شيطان راشي او دهٔ ته څه کار وریاده وي نو هغه ددې دَ لوستلو نه بغير پاسی -"

چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه دوه عادتونه داسې دي چه کوم مسلمان بنده هم د هغې اهتمام کوي نو هغه به جنت ته داخليږي، او دا ئې هم اوفرمائيل چه هغه دواړه کارونه ډېر آسان دي خو په هغې باندې عمل کونکی ډېر کم دي ، او هغه دوه کارونه دي ۱: په پنځو مونځونو کښې د هر مانځه نه پس تسبيح (سبحان الله) تحميد (الحمد لله) تکبير (الله اکبر) هر يو لس لس کرته د دې ټولو مجموعه يو سل ديرش شوه د لوستلو په اعتبار سره او په آخرت کښې د ميزان په وخت پنځلس سوه.۲: د اودهٔ کيدو په وخت څلور ديرش کرته تکبير، او تحميد او تسبيح هر يو درې ديرش کرته، کوم چه د لوستلو په اعتبار سره صرف سل دي او په آخرت کښې د ميزان په اعتبار سره زر، په حاشيه د بذل کښې د درمنثور نه په دې کښې دا زيادت نقل کړې دې : وايکم يعمل فی اليوم والليلة الفين وخمس مائة سيئة، رسول الله ﷺ فرمائي چه د دې نيکيانو مجموعه پنځويشت سوه شوه نو په تاسو کښې به څوک داسې وي چه په شپه او ورځ کښې پنځويشت سوه ګناهونه کوي، مطلب دا شو چه کوم

(): سنن الترمذي/الدعوات ۲۵ (۳۴۱۰)، سنن النسائي/السهو ۹۱ (۱۳۴۹)، سنن ابن ماجه/الإقامة ۳۲ (۹۲۶)، (تحفة الأشراف: ۸۶۳۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۶۰، ۲۰۵) (صحيح)

انسان د دې تسبيحاتو اهتمام کوی د هغه حسنات به يقينا د سيئاتو نه زيات وی، زه وايم چه دا زيادت د ترمذی په روايت کښې هم شته، دا د غور مقام دې چه په دې مختصر شان عمل کښې دومره لوئې ثواب دې چه د هغې په وجه باندې سړې د ﴿ فاما من ثقلت موازينه فهو فی عيشة راضية ﴾ مرتبه حاصلولی شی.

د دې باب آخری حديث کوم چه ام الحکم يا ضباعه په دواړو کښې د يو نه روايت دې دا هم په أبواب الخمس کښې تير شوې دې، خو په هغې کښې د دې تسبيح ذکر صرف د هر فرض مانځه نه پس دې د اودهٔ کيدو د وخت ذکر نشته، د دې حديث سند هم گران او مغلق دې د دې وضاحت هم هلته تير شوې دې، پورته ذکر شوی تسبيحات اگر چه زمونږ په ژبه باندې د تسبيح فاطمه په نوم باندې مشهور شوې دی خو په رواياتو کښې د دې په باره کښې راغلی دی ﴿ معقبات لا يخيب قائلهن ﴾ نو د دې وجې نه د دې تسبيحاتو نه په معقبات سره تعبير کول زيات مناسب معلوميږی.

[٥٠٦٦]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَيَّاشُ بْنُ عُقْبَةَ الْحَضْرَمِيُّ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ حَسَنٍ الضَّمْرِيِّ، أَنَّ ابْنَ أُمِّ الْحَكَمِ أَوْ ضُبَاعَةَ ابْنَتَيِ الزُّبَيْرِ حَدَّثَهُ، عَنْ إِحْدَاهُمَا، أَنَّهَا قَالَتْ: أَصَابَ رَسُولُ اللَّهِ سَبْيًا، فَذَهَبْتُ أَنَا وَأُخْتِي فَاطِمَةُ بِنْتُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ مَا نَحْنُ فِيهِ، وَسَأَلْنَاهُ أَنْ يَأْمُرَ لَنَا بِشَيْءٍ مِنَ السَّبْيِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: سَبَقَكُنَّ يَتَامَى بَدْرٍ"، ثُمَّ ذَكَرَ قِصَّةَ التَّسْبِيحِ، قَالَ: عَلَى أَثَرِ كُلِّ صَلَاةٍ لَمْ يَذْكُرِ النَّوْمَ.

د ام الحکم د خوی يا د ضباعه بنت زبير نه روايت دې (ام الحکم، او ضباعه دواړه د زبير بن عبد المطلب لوريانې دی) فرمائی چه رسول الله ﷺ ته څو قيديان رواستې شو نو ما او زما خور او د نبی کريم ﷺ لور بی بی حضرت سيده فاطمه ﷟ د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو - مونږه حضور ﷺ ته هغه مشکلات پيش کړل په کومو کښې چه مونږه وو، او مونږه عرض اوکړو چه ددې قيديانو نه د يو خادم زمونږ دپاره حکم اوکړئ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه د بدر يتيمان په تاسو باندې سبقت کړې دې (يعنې هغوی ستاسو نه وړاندې دی.) بيا ئې د تسبيح والا قصه ذکر کړه او په دې روايت کښې د هر مونځ نه د بعد بيان دې او د اودهٔ کيدو د وخت ذکر په کښې نشته دی.

## بَابُ مَا يَقُولُ إِذَا أَصْبَحَ

### باب ١٠٠، ١٠١- د سحر په وخت کښې دعاګانې

د سحر په وخت دعاګانې.

[٥٠٦٧]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ أَبَا بَكْرٍ الصِّدِّيقَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، مُرْنِي بِكَلِمَاتٍ أَقُولُهُنَّ إِذَا أَصْبَحْتُ وَإِذَا أَمْسَيْتُ، قَالَ: قُلْ: اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ، عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ

---

[1]: انظر حديث رقم: (٢٩٨٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٩١٢، ١٨٣١٤) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الدعوات ١٤ (٣٣٩٢)، (تحفة الأشراف: ١٤٢٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٩، ١٠، ٢٩٧)، سنن الدارمي/الاستئذان ٥٤ (٢٧٣١) (صحيح)

نَفْسِي، وَشَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ، قَالَ: قُلْهَا: إِذَا أَصْبَحْتَ، وَإِذَا أَمْسَيْتَ، وَإِذَا أَخَذْتَ مَضْجَعَكَ".

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي چه حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه اوفرمائيل اي د الله رسوله! ما ته څه داسي کلمات اوښائئ چه زۀ سحر او ماښام هغې لره وايم، حضور ﷺ ورته اوفرمائيل چه دا وايه : {اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ، عَالِمَ الْغَيبِ وَالشَّهَادَةِ، رَبَّ كُلِّ شَيْئٍ وَ مَلَكَه، أَشْهَدُ أَنْ لَاإِلٰه إِلَّا أَنْتَ أَعُوْذُ بِک مِنْ شَرِّ نَفْسِيْ وَ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَ شِرْكِه ﷺ } اي الله ! د اسمانونو او د زمکې پيدا کوونکيه ! د باطن او د ظاهر پېژندونکيه ! او د هغې مالکه ! زه دا ګواهي کووم چه ستا نه سوا څوک معبود نشته دي، زۀ د خپل نفس د شرارت او د هغې د شرک نه په تاسره پناه غواړم دا دُعا سحر او ماښام او د اودۀ کېدو په وخت کښې وايه-

١ : ﴿ اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي وَشَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ ﴾

دا دعاء د صديق اکبر رضی الله عنه په طلب باندې رسول الله ﷺ هغوی ته تعليم کړې وه چه سحر او ماښام دا وايه، او د اودۀ کېدو په وخت هم.

[٥٠٦٨](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ إِذَا أَصْبَحَ: اللَّهُمَّ بِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ أَمْسَيْنَا، وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ، وَإِلَيْكَ النُّشُورُ، وَإِذَا أَمْسَى قَالَ: اللَّهُمَّ بِكَ أَمْسَيْنَا، وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ، وَإِلَيْكَ النُّشُورُ".

د سيدنا ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي چه کله به سبا شو نو نبی کريم ﷺ به دا دُعا کوله : { اللَّهُمَّ بِک أَصْبَحْنَا وَ بِک أَمْسَيْنَا، وَ بِک نَحْيَا وَ بِک نَمُوْتُ، وَ إِلَيْک النُّشُوْرُ } اي الله مونږه ستا په فضل سره سبا کړو او ستا په فضل سره شپه کوو - هم ستا په فضل سره ژوندی يو او هم ستا په نوم سره به مرو او هم ستا طرف ته واپسی ده (د هر يو څيز) او د ماښام په وخت کښې به ئي دا دُعا کوله : { اللَّهُمَّ بِک أَمْسَيْنَا، وَ بِک نَحْيا، وَ بِک نَمُوْتُ وَ إِلَيْک النُّشُورُ } اي الله مونږه هم ستا په فضل سره ماښام کړو او هم ستا په فضل سره ژوندی يو او هم ستا په نوم سره به مرو او هم ستا طرف ته واپسی ده -

٢ : اللَّهُمَّ بِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ وَإِلَيْكَ النُّشُورُ د سحر په وخت او که د ماښام وخت وی نو داسې: اللَّهُمَّ بِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ وَإِلَيْكَ النُّشُورُ.

[٥٠٦٩](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيدِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ الْغَازِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ مَكْحُولٍ الدِّمَشْقِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ أَوْ يُمْسِي: اللَّهُمَّ إِنِّي أَصْبَحْتُ أُشْهِدُكَ، وَأُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَمَلَائِكَتَكَ وَجَمِيعَ خَلْقِكَ أَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ، أَعْتَقَ اللَّهُ رُبُعَهُ مِنَ النَّارِ، فَمَنْ قَالَهَا مَرَّتَيْنِ: أَعْتَقَ اللَّهُ نِصْفَهُ، وَمَنْ قَالَهَا ثَلَاثًا: أَعْتَقَ اللَّهُ ثَلَاثَةَ أَرْبَاعِهِ، فَإِنْ قَالَهَا أَرْبَعًا: أَعْتَقَهُ اللَّهُ مِنَ النَّارِ".

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٧٥٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الدعوات ١٣ (٣٣٩١)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٤ (٣٨٦٨)، مسند احمد (٢/٣٥٤، ٥٢٢) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٠٣) (ضعيف)

دَ حضرت انس بن مالک رضی اللہ عنہ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم کس دَ سحر او دَ ماښام په وخت کښې دا مذکوره دعا اولولي نو الله تعالیٰ به دَ هغه څلورمه حصه دَ اور نه آزاده کړي او کوم کس چه دا دوه ځله اولولي نو الله تعالیٰ به ددهٔ نیمه حصه دَ جهنم نه آزاده کړي ـ او کوم کس چه دا درې ځله اولولي نو الله تعالیٰ به دَ هغه درې حصې دَ اور نه آزادې کړي او کوم کس چه ئې څلور ځله اولولي نو هغه لره به (په کامل طور باندې) دَ اور نه آزاد کړي ـ" [ دَ دعا کلمات دادی :] { اللّٰهُمَّ إِنِّي أَصْبَحْتُ أُشْهِدُكَ، وَ أُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَ مَلَائِكَتَكَ، وَ جَمِيعَ خَلْقِكَ أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ وَ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَ رَسُولُكَ} اې الله ! ما سبا کړې دې او تالره ګواه جوړوم او ستا دَ عرش اوچتوونکو او نورو فرشتو لره او ستا تمام مخلوق لره ګواه جوړوم چه هم ته الله ئې ستا نه سوا څوک بل معبود نشته دې او محمد ستا بنده او رسول دې ـ"

۳: ﴿ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَصْبَحْتُ أُشْهِدُكَ وَأُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَمَلَائِكَتَكَ وَجَمِيعَ خَلْقِكَ أَنَّكَ أَنْتَ اللّٰهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ ﴾

کوم انسان چه دا دعاء سحر او ماښام یو ځل لولي نو د هغه څلورمه حصه بدن به د جهنم نه آزاد شي، او کوم انسان ئې چه دوه کرته اولولي نو د هغه نیم بدن به آزاد شي، او څوک ئې چه درې کرته اولولي نو د هغه بدن به په څلورو کښې درې حصې آزاد شي، او که څلور کرته ئې اولولي نو د هغه پوره بدن به آزاد شي.

[۵۰۷۰]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ ثَعْلَبَةَ الطَّائِيُّ، عَنِ ابْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ أَوْ حِينَ يُمْسِي: اللَّهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ، وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ، أَبُوءُ بِنِعْمَتِكَ، وَأَبُوءُ بِذَنْبِي، فَاغْفِرْ لِي إِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ، فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ أَوْ مِنْ لَيْلَتِهِ دَخَلَ الْجَنَّةَ".

حضرت عبد الله دَ خپل پلار بریده رضی اللہ عنہ نه روایت کوی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه کوم کس سحر یا ماښام دا دعا اولولي او دې په دغه ورځ یا شپه کښې مړ شو نو په جنت کښې به داخلیږي ـ" (هغه دعا داده) {اللّٰهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، خَلَقْتَنِي وَ أَنَا عَبْدُكَ وَ أَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَ وَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ وَ أَبُوءُ بِذَنْبِي، فَاغْفِرْلِي إِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ} اې الله ته زما رب ئې، ستا نه سوا څوک معبود نشته دې او زهٔ ستا بنده یم زه ستا په عهد او وعدې باندې، تر کومې پورې چه زما همت دې قائم یم، زه په تا سره پناه غواړم دَ هغه شر کوم چه ما کړې دې، ستا کوم نعمتونه چه په ما باندې دی ماته دَ هغې اقرار دې او ماته په خپلو ګناهونو باندې هم اعتراف دې پس مالره اوبخښې، بې شکه ستانه سوا څوک ګناهونه نهٔ معاف کوی ـ"

۴: ﴿ اللّٰهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوءُ بِنِعْمَتِكَ وَأَبُوءُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي إِنَّهُ لاَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلاَّ أَنْتَ ﴾

(): سنن ابن ماجه/الدعاء ۱۴ (۳۸۷۲)، (تحفة الأشراف: ۲۰۰۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۶/۵) (صحیح)

د دي دعاء په باره کښې رسول الله ﷺ فرمائی چه څوک دا دعاء یو ځل سحر او یو ځل ماښام لولي او بیا مړ شی سحر یا ماښام نو جنت ته به داخل شی.

[٥٠٧١]([1]) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ: "إِذَا أَمْسَى أَمْسَيْنَا، وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلَّهِ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ"، زَادَ فِي حَدِيثِ جَرِيرٍ، وَأَمَّا زُبَيْدٌ كَانَ يَقُولُ: كَانَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ سُوَيْدٍ، يَقُولُ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، رَبِّ أَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرَ مَا بَعْدَهَا، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِي هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهَا، رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَمِنْ سُوءِ الْكِبَرِ أَوِ الْكُفْرِ، رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ، وَإِذَا أَصْبَحَ قَالَ ذَلِكَ أَيْضًا: أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلَّهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سُوَيْدٍ، قَالَ: مِنْ سُوءِ الْكِبَرِ، وَلَمْ يَذْكُرْ: سُوءَ الْكُفْرِ.

د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دي چه نبی کریم ﷺ به د شپې دا کلمات لوستل: {أَمْسَيْنَا وَ أَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ، والْحَمْدُ لِلّٰهِ، لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَ حْدَه لَا شَرِيْكَ لَه)} د جریر په روایت کښې اضافه ده لیکن زبید وئیلي دی چه ابراهیم بن سوید به فرمائیل: {لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَه لَا شَرِيْكَ لَه، لَه الْمُلْكُ وَلَه الْحَمْدُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، رَبِّ أَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هٰذِه اللَّيْلَةِ وَ خَيْرَ مَا بَعْدَهَا، وَ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِي هٰذِه اللَّيْلَةِ وَ شَرِّ مَا بَعْدَهَا - رَبِّ ا أَعُوْذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَ مِنْ سُوْءِ الْكِبَرِ أَوِ الْكُفْرِ - رَبِّ ا أَعُوْذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَ عَذَابِ الْقَبْرِ } او کله چه به سبا شو نو بیا به ئې هم داسې فرمائیل: {أَصْبَحْنَا وَ أَصْبَحَ الْمُلْكُ لله —} امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روایت لره شعبه په واسطه د سلمه بن کهیل، د ابراهیم بن سوید نه نقل کړي دي نو په دې کښې ئې [من سوء الکبر] وئیلي دی او [سوء الکفر] ئې ذکر کړي نه دي.

[٥٠٧٢]([2]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي عَقِيلٍ، عَنْ سَابِقِ بْنِ نَاجِيَةَ، عَنْ أَبِي سَلَّامٍ، أَنَّهُ كَانَ فِي مَسْجِدِ حِمْصَ فَمَرَّ بِهِ رَجُلٌ، فَقَالُوا: هَذَا خَدَمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ إِلَيْهِ، فَقَالَ: حَدِّثْنِي بِحَدِيثٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَتَدَاوَلْهُ بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ الرِّجَالُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ قَالَ إِذَا أَصْبَحَ وَإِذَا أَمْسَى: رَضِينَا بِاللَّهِ رَبًّا، وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا، وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولًا، إِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ يُرْضِيَهُ".

حضرت ابوسلام (ممطور الحبشی) د حمس په جمات کښې ناست وو چه په هغې باندې یو کس تیر شو - خلقو اووې چه دا سړې د نبی کریم ﷺ صحابی پاتې شوې دې نو ابوسلام د هغه طرف ته پاسیدو او ورغې اووې فرمائیل: ماته داسې حدیث بیان کړه چه هغه تا د رسول الله ﷺ نه اوریدلې وی نو هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی هغه فرمائیل: څوک چه د سحر یا ماښام دا لولی {رَضِيْنَا بِاللّٰهِ رَبًّا وَ بِالْإِسْلَامِ دِيْنًا وَ بِمُحَمَّدٍ

[1]): صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٨ (٢٧٢٣)، سنن الترمذي/الدعوات ١٣ (٣٣٩٠)، (تحفة الأشراف: ٩٣٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٤٤٠ مرفوعًا) (صحيح)

[2]): سنن ابن ماجه/الدعاء ١٧ (٣٨٧٠)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٥٠، ١٥٦٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٣٧، ٥/٣٦٧) (ضعيف)

رَسُوْلًا }نو په الله پاک باندې به حق وی چه دهٔ لره به راضی کوی۔
هم د دې دعاء نوم دې سيد الاستغفار، د دې نه پس په دې باب کښې نورې هم ډير دعاء گانې ذکر شوې دی چه د هغې نه موثر اکثر دلته نقل کوو.

**بله دعاء** : ﴿ رَضِينَا بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ رَسُولاً ﴾ چه کوم انسان دا دعاء لولی سحر یا ماښام نو الله پاک په خپله ذمه دا خبره اخستلې ده چه هغه راضی کړی.

[۵۰۷۳]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، وَإِسْمَاعِيلُ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَنْبَسَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ غَنَّامٍ الْبَيَاضِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ اللَّهُمَّ مَا أَصْبَحَ بِي مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ فَقَدْ أَدَّى شُكْرَ يَوْمِهِ وَمَنْ قَالَ مِثْلَ ذَلِكَ حِينَ يُمْسِي فَقَدْ أَدَّى شُكْرَ لَيْلَتِهِ".

د حضرت عبد الله بن غنام البياضی نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه چا د سحر په وخت کښې دا اوئيل : { اللَّهُمَّ مَا أَصْبَحَ بِي مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ،فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ }پس هغه د دغه ورځې شکر ادا کړو او چا چه د ماښام داسې اووې پس هغه د دغه شپې شکر ادا کړو۔

**بله دعاء** : ﴿ اللَّهُمَّ مَا أَصْبَحَ بِي مِنْ نِعْمَةٍ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لاَ شَرِيكَ لَكَ فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ ﴾ کوم انسان چه دا دعاء د سحر په وخت اولوستله هغه د پوره ورځې شکريه ادا کړه او چا چه دا دعاء د ماښام په وخت اولوستله هغه د پوره شپې شکريه ادا کړه، يقينا دا د دې دعا ډير لوئې فضيلت دې او دا خو ضروری لوستل پکار دی او د دعاء په مضمون باندې د پوهيدو سره لوستل پکار دی دعاگانې خو دا ټولې قابل اهتمام دی د يو بل نه زياتې.

[۵۰۷۴]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوسَى الْبَلْخِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عُبَادَةُ بْنُ مُسْلِمٍ الْفَزَارِيُّ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: "لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَعُ هَؤُلَاءِ الدَّعَوَاتِ حِينَ يُمْسِي وَحِينَ يُصْبِحُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَدُنْيَايَ وَأَهْلِي وَمَالِي، اللَّهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَتِي، وَقَالَ عُثْمَانُ: عَوْرَاتِي وَآمِنْ رَوْعَاتِي، اللَّهُمَّ احْفَظْنِي مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ، وَمِنْ خَلْفِي، وَعَنْ يَمِينِي، وَعَنْ شِمَالِي، وَمِنْ فَوْقِي، وَأَعُوذُ بِعَظَمَتِكَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِي"، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ وَكِيعٌ: يَعْنِي الْخَسْفَ.

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به سحر او ماښام دا دعا نهٔ پريخوده : { اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُکَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَ دُنْيَایَ وَ أَهْلِي وَ مَالِيْ ۔ اللَّهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَتِي ــــ} دَ عثمان بن شيبه الفاظ دی : {عَوْرَاتِي وَ آمِنْ رَوْعَاتِي،اللَّهُمَّ احْفَظْنِي مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَ مِنْ خَلْفِي،وَ عَنْ يَمِينِي وَ عَنْ شِمَالِي وَ مِنْ فَوْقِي،وَأَعُوذُ بِعَظَمَتِکَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِي }۔امام ابوداود رحمه الله فرمائی : حضرت وکيع وئيلې دی چه د [ اغتال من تحتی ] نه مراد دا دې : چه په زمکه کښې ننستلې شم ۔" [ددې نه پناه غوارم ۔]

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۹۷٦) (ضعيف)
(): سنن النسائي/الاستعاذة ۵۹ (۵۵۳۱)، عمل اليوم والليلة ۱۸۱ (۵٦٦)، سنن ابن ماجه/الدعاء ۱۴ (۳۸۷۱)، (تحفة الأشراف: ۶۶۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۲۵) (صحيح)

**دعاء اخر** : سیدنا ابن عمر رضی الله عنهما فرمائي چه رسول الله ﷺ به دا دعاء سحر او ماښام لوستله کله به ئې هم نه پرېخودله. ﴿ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَدُنْيَايَ وَأَهْلِي وَمَالِي اللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِي وَآمِنْ رَوْعَاتِي اللّٰهُمَّ احْفَظْنِي مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِي وَعَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي وَمِنْ فَوْقِي وَأَعُوذُ بِعَظَمَتِكَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِي ﴾

[٥٠٧٥] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، أَنَّ سَالِمًا الْفَرَّاءَ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَبْدَ الْحَمِيدِ مَوْلَى بَنِي هَاشِمٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ أُمَّهُ حَدَّثَتْهُ، وَكَانَتْ تَخْدُمُ بَعْضَ بَنَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ ابْنَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَتْهَا، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُعَلِّمُهَا، فَيَقُولُ: قُولِي حِينَ تُصْبِحِينَ: سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ، لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، مَا شَاءَ اللَّهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ يَكُنْ، فَإِنَّهُ مَنْ قَالَهُنَّ حِينَ يُصْبِحُ: حُفِظَ حَتَّى يُمْسِيَ، وَمَنْ قَالَهُنَّ حِينَ يُمْسِي: حُفِظَ حَتَّى يُصْبِحَ".

د عبد الحمید (چه دا ازاد کرده غلام د بنو هاشم دې) چه ددې مور بی بی د نبی کریم ﷺ د يوې صاحبزادې خدمت کړې وو، هغه صاحبزادې هغې ته بیان کړې وو چه نبی کریم ﷺ به هغوی ته ښودلو او فرمائیل به ئې کله چه تاسو سبا کوی نو دا وائئ: {سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ، لا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ، ما شَاءَ اللهُ كَانَ، وَمَا لم يَشَأْ لَمْ يَكُنْ، أَعْلَمُ أَنَّ اللهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، وَ أَنَّ اللهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا} الله پاک دې دَ خپلو حمدونو سره، نیکی او خیر دَ الله دَ توفیق نه بغیر ممکن نهٔ دی څه چه الله اوغواړی هغه کیږی او څه چه نهٔ غواړی هغه نهٔ کیږی زما یقین دې چه الله تعالیٰ په هر څیز باندې پورا قدرت لری او دَ هغه علم هر څیز لره په خپله ګیره کښې اخستې دې -'' بې شکه څوک چه دَ سبا په وخت کښې دا کلمات اووائی نو تر دَ ماښامه پورې به ددهٔ حفاظت کولې شی او چا چه دَ ماښام دا کلمات اولوستل نو تر دَ سبا پورې به دَ هغه حفاظت کولې شی -

**دعاء اخر** : د رسول الله ﷺ يوې لور خپلې خادمې ته اوفرمائيل چه رسول الله ﷺ به ماته دا دعاء ښودله چه دا لوله سحر او ماښام: ﴿ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ لاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ مَا شَاءَ اللَّهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ يَكُنْ أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ وَأَنَّ اللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴾ چه کوم سړې سحر دا دعاء اولولی هغه به تر ماښامه پورې محفوظ وی او څوک چه ئې د ماښام اولولی هغه به تر سحره پورې محفوظ وی.

[٥٠٧٦] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنَا. ح وحَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ بَشِيرٍ النَّجَّارِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْبَيْلَمَانِيِّ، قَالَ: الرَّبِيعُ ابْنُ الْبَيْلَمَانِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ: فَسُبْحَانَ اللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ، وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ، وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ إِلَى وَكَذَلِكَ تُخْرَجُونَ، أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي يَوْمِهِ ذَلِكَ، وَمَنْ قَالَهُنَّ حِينَ يُمْسِي، أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي لَيْلَتِهِ"، قَالَ: الرَّبِيعُ، عَنِ اللَّيْثِ.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم کس د (سورهٔ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨٣٨٨) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٨١٣) (ضعيف جداً)

روم دا مذکوره آیات، اولولی نو هغه ددغه ورځې فوت کړې شوې نیکئ حاصله وی او چا چه د دا د ماښام په وخت کښې اولوستل نو دې د دغه شپې فوت کړې شوې نیکئ حاصله وی ـ" (هغه آیات دادی) {فَسُبْحَانَ اللّٰهِ حِیْنَ تُمْسُوْنَ وَ حِیْنَ تُصْبِحُوْنَ وَلَه الْحَمْدُ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَ عَشِیًا وَحِیْنَ تُظْهِرُوْنَ} إِلَی {وَکَذٰلِکَ تُخْرَجُوْنَ}: د ربیع بن سلیمان په روایت کښې د [ اخبرنی اللیث ] په ځائې باندې د [ عن اللیث ] الفاظ دی ـ"

**دعاء اخر** : ﴿ فَسُبْحَانَ اللّٰهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَكَذٰلِكَ تُخْرَجُونَ ﴾

سیدنا ابن عباس رضی الله عنهما د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی چه کوم سړې دا دعاء د سحر په وخت اولولی نو د ورځې چه کوم خیر د هغه نه فوت شوې دې هغه به بیا مومی، او کوم سړې چه دا د ماښام اولولی نو کوم خیر چه ترې نه د شپې فوت شوې دې هغه بیا مومی.

[۵۰۷۷]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، وَوُهَيْبٌ نحوه، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ أَبِي عَائِشٍ، وَقَالَ حَمَّادٌ، عَنْ أَبِي عَيَّاشٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: مَنْ قَالَ إِذَا أَصْبَحَ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، كَانَ لَهُ عِدْلَ رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ، وَكُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ، وَحُطَّ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ، وَرُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ، وَكَانَ فِي حِرْزٍ مِنَ الشَّيْطَانِ حَتَّى يُمْسِيَ، وَإِنْ قَالَهَا إِذَا أَمْسَى، كَانَ لَهُ مِثْلُ ذَلِكَ حَتَّى يُصْبِحَ، قَالَ فِي حَدِيثِ حَمَّادٍ: فَرَأَى رَجُلٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا يَرَى النَّائِمُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أَبَا عَيَّاشٍ يُحَدِّثُ عَنْكَ بِكَذَا وَكَذَا، قَالَ: صَدَقَ أَبُو عَيَّاشٍ" قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ جَعْفَرٍ، وَمُوسَى الزَّمْعِيُّ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَائِشٍ.

د ابن ابو عائش نه روایت دې او د حماد په روایت کښې دی چه ابو عیاش رضی الله عنه بیان کړې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه کوم کس د سبا په وخت کښې دا اووائی { لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَه، لَاشَرِیْکَ لَه، لَه الْمُلْکُ وَلَه الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْئٍ قَدِیْرٌ }" د یو الله نه ما سوا څوک معبود نشته دې د هغه سره څوک شریک نشته دې، ملک هم د هغه دې، تعریف هم هغه لره دې او هغه په هر څیز باندې ښۀ قادر دې ـ" نو د هغه ثواب دومره دې لکه چه د اولاد اسماعیل نه یو غلام آزاد کړی، او د هغه دپاره لس نیکئ لیکلې شی او لس غلطئ ترې نه ورانولې شی، او دې لس درجې بلندولې شی او تر د ماښام پورې به د شیطان نه محفوظ وی او کۀ د ماښام دا کلمات اووائی نو تر د سحره پورې دا هر څه دی ـ" د حماد په روایت کښې دی چه یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم لره په خوب کښې اولیدو اووې فرمائیل اې د الله رسوله ! ابوعیاش ستاسو نه داسې قسم روایت کوی حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ابوعیاش رښتیا وئیلې دی ـ" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روایت لره اسماعیل بن جعفر، د موسیٰ زمعي او د عبد الله بن جعفر نه په واسطه د سهیل د هغه د پلار نه او هغه د ابوعیاش نه روایت کړې دې ـ

[1]: سنن ابن ماجه/الدعاء ۱۴ (۳۸۶۷)، (تحفة الأشراف: ۱۲۰۷۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶۰/۴) (صحیح)

**دعاء اخر** : ﴿ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ د ابوعياش زرقی نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړې دا دعا سحر اولولی نو هغه ته به د يو عربی غلام (فی حاشية الترمذی ١٩٣ عن اللمعات فيه دليل لمن قال باسترقاق العرب وهو مختلف فيه، وقيل مبالغة اهـ) آزادولو ثواب ملاويږی او لس نيکئ ئې ليکلې کيږی او لس ګناهونه به ئې معاف شی او لس درجې ئې اوچتيږی، او تر ماښام پورې به د شيطان نه محفوظ وی او که داپه شپه کښې اولولی نو بيا به هم ورته دا څيزونه حاصليږی تردې چه صبا کړی. وړاندې په روايت کښې دا هم دی چه يو سړی د رسول الله ﷺ زيارت په خوب کښې اوکړو نو هغه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه يا رسول الله ﷺ! ابوعياش ستاسو د طرف نه دا حديث نقل کوی نو رسول الله ﷺ د دې په جواب کښې اوفرمائيل : ﴿ صدق ابو عياش ﴾ .....

[٥٠٧٨] (١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ مُسْلِمٍ يَعْنِي ابْنَ زِيَادٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَصْبَحْتُ أُشْهِدُكَ، وَأُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَمَلَائِكَتَكَ وَجَمِيعَ خَلْقِكَ، أَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ، إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا أَصَابَ فِي يَوْمِهِ ذَلِكَ مِنْ ذَنْبٍ، وَإِنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي، غُفِرَ لَهُ مَا أَصَابَ تِلْكَ اللَّيْلَةَ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی چه څوک چا د سبا په وخت کښې دا کلمات اووې : { إِنِّي أَصْبَحْتُ أُشْهِدُكَ وَ أُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَ مَلَائِكَتَكَ وَ جَمِيعَ خَلْقِكَ أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ، وَ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ} اې الله ما سبا کړو، تالره ګواه جوړوم او ستا حاملينو فرشتو او نورو فرشتو لره او ستا تمام مخلوق لره ګواه کووم چه بې شکه هم ته الله ئې ستا نه سوا هيڅوک دَ عبادت لائق نشته دې تاسره څوک شريک نشته دې، او بې شکه محمد ﷺ ستا بنده او رسول دې -" نو دې چه په دغه ورځ کښې کومه ګناه هم کوی الله تعالیٰ به هغې لره معاف کوی او که دَ ماسخوتن دې کلماتو لره اووائی نو په دغه شپه کښې چه ددۀ نه کومه ګناه کيږی نو هغه به معاف کولې شی -"

[٥٠٧٩] (٢) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَبُو النَّضْرِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو سَعِيدٍ الْفِلَسْطِينِيُّ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حَسَّانَ، عَنْ الْحَارِثِ بْنِ مُسْلِمٍ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ، عَنْ أَبِيهِ مُسْلِمِ بْنِ الْحَارِثِ التَّمِيمِيِّ، "عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ أَسَرَّ إِلَيْهِ، فَقَالَ: إِذَا انْصَرَفْتَ مِنْ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ، فَقُلْ: اللَّهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ سَبْعَ مَرَّاتٍ، فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ ذَلِكَ، ثُمَّ مِتَّ فِي لَيْلَتِكَ كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا، وَإِذَا صَلَّيْتَ الصُّبْحَ، فَقُلْ كَذَلِكَ، فَإِنَّكَ إِنْ مِتَّ فِي يَوْمِكَ كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا"، أَخْبَرَنِي أَبُو سَعِيدٍ، عَنْ الْحَارِثِ، أَنَّهُ قَالَ: أَسَرَّهَا إِلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَحْنُ نَخُصُّ بِهَا إِخْوَانَنَا.

د مسلم بن حارث تميمی رضی الله عنه نه روايت دې، چه رسول الله ﷺ هغه ته د راز دارئ په صورت کښې اوفرمائيل : کله چه تۀ دَ ماښام دَ مونځ نه سلام واړه وې نو اووۀ ځله { اللَّهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ

---

(١): سنن الترمذي/الدعوات ٧٩ (٣٥٠١)، وانظر رقم: ٥٠٦٩، (تحفة الأشراف: ١٥٨٧) (ضعيف)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٢٨١) (ضعيف)

النَّارِ}وايه -" اي الله ما لره دَ جهنم دَ اور نه محفوظ اوساته - كه تهٔ دا اووائي او ته په دغه شپه كښې مړ شوې نو ستا دپاره به دَ جهنم نه حفاظت اوليكلې شي -"ابو سعيد دَ حارث نه روايت كړې دې چه رسول الله ﷺ ماته (بالخصوص) دَ راز دارئ په انداز كښې فرمائيلي وو ،نو مونږه هم دې لره خپلو رونړو ته بالخصوص ښايو -

**دعاء اخر** : ﴿ اللَّهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ ﴾ د دې په باره كښې مسلم بن الحارث تميمي رضي الله عنه فرمائي چه يو ځل رسول الله ﷺ ماته پټ شان د دې دعاء تعليم راكړو او وې فرمائيل چه كله ته د ماښام د مانځه نه فارغ شې نو اووهٔ كرته دا لوله او د دې نه په روستو روايت كښې دا اضافه ده چه د مانځه نه پس چاسره د خبرو نه مخكښ، كه ستا په دې شپه كښې وفات اوشو نو ستا دپاره به د جهنم نه پناه اوليكلې شي او د سحر د مانځه نه پس هم دغه شان لوله بيا كه په دغه ورځ باندې ستا وفات اوشو نو ستا دپاره به د جهنم نه خلاصې اوليكلې شي.

د دې روايت په اخر كښې دى چه د صحابى راوى حديث خوئې حارث بن مسلم وائى چه دا حديث چونكه خاص طور رسول الله ﷺ مونږ ته بيان فرمائيلي وو هم په دې وجه مونږ دا حديث صرف خپلو رونړو ته بيانوو.(ټولو خلقو ته ئې نه بيانوو) په دې باندې حضرت په بذل كښ د حضرت گنگوهى د تقرير نه دا نقل كړې دى چه د رسول الله ﷺ هغوى ته په پټه باندې بيانول په دې وجه وو چه هغوى دا ډير لوئې نعمت او غنيمت اوگڼړى، په خصوصيت سره چه كوم اهميت پيدا كيږى هغه په عموم كښې نشته په دې وجه د دې صحابى رضي الله عنه خوى هم دې دعاء سره د خصوصيت معامله كوله چه د دې اهميت باقى وى اهٔ دا ټولې د دې حضراتو د قدردانئ خبرې دى.رضى الله تعالى عنهم ورزقنا اتباعهم.

[٥٠٨٠](١) حَدَّثَنَا، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى الْحِمْصِيُّ، وَعَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ، وَمُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ، قَالُوا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ حَسَّانَ الْكِنَانِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُسْلِمُ بْنُ الْحَارِثِ بْنِ مُسْلِمٍ التَّمِيمِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ نَحْوَهُ: إِلَى قَوْلِهِ: جِوَارٌ مِنْهَا إِلَّا أَنَّهُ قَالَ فِيهِمَا قَبْلَ أَنْ يُكَلِّمَ أَحَدًا، قَالَ عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ فِيهِ: إِنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ، وَقَالَ عَلِيٌّ وَابْنُ الْمُصَفَّى: بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ، فَلَمَّا بَلَغْنَا الْمُغَارَ اسْتَحْثَثْتُ فَرَسِي فَسَبَقْتُ أَصْحَابِي، وَتَلَقَّانِي الْحَيُّ بِالرَّنِينِ، فَقُلْتُ لَهُمْ: قُولُوا: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ تُحْرَزُوا، فَقَالُوهَا، فَلَامَنِي أَصْحَابِي، وَقَالُوا: حَرَمْتَنَا الْغَنِيمَةَ، فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرُوهُ بِالَّذِي صَنَعْتُ، فَدَعَانِي فَحَسَّنَ لِي مَا صَنَعْتُ، وَقَالَ: أَمَا إِنَّ اللَّهَ قَدْ كَتَبَ لَكَ مِنْ كُلِّ إِنْسَانٍ مِنْهُمْ كَذَا وَكَذَا"، قَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ: فَأَنَا نَسِيتُ الثَّوَابَ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَمَا إِنِّي سَأَكْتُبُ لَكَ بِالْوَصَاةِ بَعْدِي، قَالَ: فَفَعَلَ، وَخَتَمَ عَلَيْهِ، فَدَفَعَهُ إِلَيَّ وَقَالَ لِي، ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَاهُمْ، وَقَالَ ابْنُ الْمُصَفَّى قَالَ: سَمِعْتُ الْحَارِثَ بْنَ مُسْلِمِ بْنِ الْحَارِثِ التَّمِيمِيَّ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِيهِ.

د عبد الرحمن بن حسان كنانى نه روايت دې چه ماته روايت كړې دې مسلم بن حارث بن مسلم تميمي دَ خپل پلار نه،چه نبى كريم ﷺ اوفرمائيل ...... او دَ مذكوره بالا حديث په مثل باندې ئې روايت اوكړو - او دَ [ جِوار منها ]پورې ئې روايت اوكړو - مگر په دې كښې دى چه دا كلمه { اللَّهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ}(دَ سلام نه ورستو) دَ چا سره دَ خبرو كولو نه وړاندې

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٢٨١) (ضعيف)

به وائي علی بن سهل فرمائيلي دی چه دَ مسلم بن حارث پلار خپل ځوی ته دا حديث بيان کړو ،او علی بن سهل او محمد بن مصفیٰ روايت کړي دي چه رسول الله ﷺ مونږه لره په يو مهم کښې اوليږلو - کله چه مونږه دَ جنګ مقام ته اورسيدو نو ما خپل اس لره تيز کړو او دَ خپلو ملګرو نه وړاندې تير شوم نو ماته دَ دشمن دَ قبيلې آوازونه واوريدې شو ما هغوی ته اووې : [ لا اله الا الله] اووائې نو تاسو به بچ شئ چنانچه هغه خلقو دا کلمه اووئيله -نو زما ملګرو مالره ملامته کړو اووې وئيل چه تا خو مونږ لره دَ غنيمت نه محرومه کړو بيا چه هر کله مونږه رسول الله ﷺ ته راورسيدو او ملګرو دا واقعه بيان کړه کوم څه چه ما کړې وو نو حضور ﷺ مالره راوبللو او زما دَ عمل تحسين ئې اوکړو اووې فرمائيل چه الله تعالیٰ ستا دپاره دَ هغوی نه دَ هر هر بنده په بدله کښې دومره دومره ثواب ليکلې دې - ......"
عبد الرحمن (بن حسان) وائی چه زما نه ددغه ثواب حساب هير شوې دې ...... بيا رسول الله ﷺ اوفرمائيل آګاه اوسئ بې شکه زۀ ستاسو دپاره دَ خپل ځان نه ورستو وصيت ليکم -" چنانچه حضور ﷺ هم داسې اوکړل او په دغه تحرير باندې ئې مهر اولګوو او ماته ئې حواله کړو او ماته ئې اوفرمائيل ...... بيا ئې دَ مذکوره روايت هم معنیٰ روايت اوکړو ،ابن مصفیٰ اوفرمائيل : چه ما دَ حارث بن مسلم بن حارث تميمی نه اوريدلې دی،هغه دَ خپل پلار نه حديث روايت کولو -

﴿ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْحِمْصِيُّ وَمُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ وَعَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ الرَّمْلِيُّ وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى......أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ نَحْوَهُ إِلَى قَوْلِهِ « جِوَارٌ مِنْهَا ».إِلاَّ أَنَّهُ قَالَ فِيهِمَا « قَبْلَ أَنْ تُكَلِّمَ أَحَدًا ».قَالَ عَلِيُّ بْنُ سَهْلٍ فِيهِ إِنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ ﴾

دا هم دا پورته حديث دې د سند د شروع حصه ئې مختلف ده، وړاندې تلو سره په عبدالرحمن بن حسان کښې دواړه سندونه ملاؤ شو، په اول سند کښې د مصنف رحمه الله استاد صرف اسحق بن ابراهيم وو او په دې دويم سند کښې ډير دی يعنی څلور دی، په اول سند کښې د عبدالرحمن شاګرد ابوسعيد فلسطينی دې، او په دويم سند کښې وليد، په دواړو روايتونو کښې څو فرقونه دی، په اول سند کښې عن الحارث بن مسلم عن ابيه دې او په دويم سند کښې حدثنی مسلم بن الحارث عن ابيه دې دا دوه فرقونه شو، په اول سند کښې عن وو او دلته حدثنی دې، او په اول سند کښې الحارث بن مسلم وو او په دې کښې مسلم بن الحارث په تهذيب کښې ليکلې دی چه په دې کښې دواړه اقوال دی بعض داسې وائی او بعض داسې، لهذا د دې حديث چه کوم صحابی راوی دې د هغه نوم کښې دوه اقوال شو حارث بن مسلم، او مسلم بن الحارث. دريم فرق دا دې چه دا دويم سند چه د هغې راوی وليد دې په دې کښې دا زيادت دې، قبل ان تکلم احدا.

څلورم فرق دا دې چه په دې دويم حديث کښې د مصنف رحمه الله اکثر استاذانو د مسلم بن الحارث نه پس ﴿عن ابيه ﴾ اوئيلو او صرف يو استاد يعنی علی بن سهل په ځائې د ﴿ عن ابيه ﴾ ﴿ ان اباه حدثه ﴾ وئيلې دې، د عنعنه او تحديث فرق دې، خو دا آخری فرق صرف د علی بن سهل د روايت په اعتبار سره دې ګڼې د مصنف رحمه الله باقی استاذانو هم دغه شان

وئيلي دی ځنګه چه په اول سند کښې وو يعنی ﴿ عن ابيه ﴾.

د دې نه پس مصنف رحمه الله فرمائی : ﴿ وَقَالَ عَلِيٌّ وَابْنُ الْمُصَفَّى قال بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صلی الله عليه وسلم- فِي سَرِيَّةٍ الخ ﴾ د مصنف رحمه الله په څلورو استاذانو کښې علی بن سهل او محمد بن المصفی په اصل حديث کښې چه کوم پورته تير شوې دې چه په هغې کښې ﴿اللهم اجرنی من النار ﴾ دعاء ذکر شوې ده د دې نه مخکښې يو واقعه بله هم ذکر کړې ده او بيا د هغه واقعې نه پس دا دی چه تاسو دا دعاء لولئ کومه چه پورته تير ده، هغه واقعه دا ده چه حارث بن مسلم فرمائی چه مونږ رسول الله صلی الله عليه وسلم په يو سريه کښې اوليږلو : ﴿فَلَمَّا بَلَغْنَا الْمُغَارَ اسْتَحْثَثْتُ فَرَسِي فَسَبَقْتُ أَصْحَابِي وَتَلَقَّانِي الْحَيُّ بِالرَّنِينِ فَقُلْتُ لَهُمْ قُولُوا لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ تُحْرَزُوا الخ ﴾ فرمائی چه کله مونږ محل اغاره و قتال ته نزدې اورسيدلو نو ما خپل اس د خپلو ملګرو نه وړاندې اوزغلولو او هغوی ته اورسيدم چا سره چه قتال کول وو، هغوی زما په ليدو باندې په ژړا شو د جنګ نه په ويريدو باندې، ما هغوی ته اووې چه ځان بچ کول غواړئ نو لا اله الا الله اوايئ او په اسلام کښې داخل شئ. ﴿ فَقَالُوهَا ﴾ پس هغه خلقو کلمه اولوستله، چه کله زما ملګرو دا واقعه اوليده نو زه ئې ملامته کړم چه تا مونږ د غنيمت نه محروم کړو، خو څه چه کيدل هغه خو اوشو اوس د قتال مسئله خو پاتې نه شوه پس دا ټول مدينې ته واپس راغلل او زما ملګرو زما د کارروايئ خبر رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ورکړو په ظاهر کښې د شکايت په طور، خو رسول الله صلی الله عليه وسلم زه راطلب کړم او زما د دې فعل تحسين ئې اوفرمائيلو او شاباشې ئې راکړو او دا ئې هم اوفرمائيل چه په هغه اسلام راوړونکو کښې د هر يو په بدل کښې تاته دومره ثواب ملاؤ شو، او ما ته ئې دا هم اوفرمائيل چه زه ستا دپاره يو ليک تاته درکوم د سند په طور، پس هغوی دا ليک اوليکلو، او په هغې باندې ئې مهر اولګولو او ماته ئې حواله کړو لکه چه په روايت کښې دی ﴿ قَالَ فَفَعَلَ وَخَتَمَ عَلَيْهِ فَدَفَعَهُ إِلَيَّ ﴾ د دې نه پس دی ﴿ وَقَالَ لِي ثُمَّ ذَكَرَ مَعْنَاهُمْ ﴾ يعنی د دې نه پس ئې ماته د هغه دعاء تلقين اوفرمائيلو نو ځنګه چه رسول الله صلی الله عليه وسلم هغوی ته خاص دا وثيقه ورکړه دغه شان ئې دا دعا هم هغوی ته په خصوصيت سره ورکړه.

﴿ سَأَكْتُبُ لَكَ بِالْوَصَاةِ بَعْدِي ﴾ [١] د دې مطلب په ظاهر کښې دا دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم د روستو راتلونکی خليفه په نوم باندې څه ليکل اوکړل د هغه صحابی دپاره څۀ عطيه مستقل يا هغه وخت سره، چه هغوی ته دې دومره ورکړې شی.

[٥٠٨١] (٢) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ بْنُ مُسْلِمٍ الدِّمَشْقِيُّ وَكَانَ مِنْ ثِقَاتِ الْمُسْلِمِينَ مِنَ الْمُتَعَبِّدِينَ، قَالَ: حَدَّثَنَا مُدْرِكُ بْنُ سَعْدٍ، قَالَ يَزِيدُ: شَيْخٌ ثِقَةٌ، عَنْ يُونُسَ بْنِ مَيْسَرَةَ بْنِ حَلْبَسٍ، عَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "مَنْ قَالَ إِذَا أَصْبَحَ وَإِذَا أَمْسَى: حَسْبِيَ اللَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ، وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ سَبْعَ مَرَّاتٍ، كَفَاهُ اللَّهُ مَا أَهَمَّهُ صَادِقًا كَانَ بِهَا أَوْ كَاذِبًا".

[١] زه ستا دپاره وصيت ليکم د خپل ځان نه روستو يعنی د بيا دپاره.
[٢]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٠٤) (موضوع)

دَ حضرت ابودرداء ﷛ نه روايت دي هغه فرمائی : چه چا دَ سحر او ماښام په وخت کښې اووۀ ځله دا کلمات اوئيل : {حَسْبِيَ اللهُ لَآإِلٰهَ إِلَّا هُوَ}نو الله تعالیٰ دَ هغه په پريشانو کښې دَهغه کفايت فرمائی خواه هغه په رښتونی زړۀ سره داکلمات وئيلي وی يا په دروغه سره۔

[٥٠٨٢]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ أَبِي أَسِيدٍ الْبَرَّادِ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ خُبَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ: "خَرَجْنَا فِي لَيْلَةِ مَطَرٍ وَظُلْمَةٍ شَدِيدَةٍ نَطْلُبُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُصَلِّيَ لَنَا فَأَدْرَكْنَاهُ، فَقَالَ: أَصَلَّيْتُمْ؟ فَلَمْ أَقُلْ شَيْئًا، فَقَالَ: قُلْ فَلَمْ أَقُلْ شَيْئًا، ثُمَّ قَالَ: قُلْ، فَلَمْ أَقُلْ شَيْئًا، ثُمَّ قَالَ: قُلْ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا أَقُولُ؟ قَالَ: قُلْ: قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ، حِينَ تُمْسِي وَحِينَ تُصْبِحُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ تَكْفِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ".

حضرت عبد الله بن خبيب دَ خپل پلار نه روايت کوی هغوی فرمائی چه يو ځل مونږه دَ باران والا په تکه توره شپه کښې اووتلو ،او مونږه رسول الله ﷺ لره طلب کوو ددې دپاره چه مونږ ته مونځ راکړی - چنانچه مونږه هغه لره بيا موندو ،نو حضور ﷺ اوفرمائيل اووايه." نو ما څه اونۀ وئيل بيا ئي اوفرمائيل اووايه ما بيا څه اونۀ وئيل حضور ﷺ اوفرمائيل اووايه ما عرض اوکړو څه اي دَ الله رسوله ! زۀ څه اووايم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل اووايه : { قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ }او معوذتين،يعني {قل اعوذ برب الفلق،او قل اعوذ برب الناس }دَ سحر او ماښام دا درې درې ځله وايه نو دَ هر څيز نه به ستا کفايت کيږی -

**دعاء اخر** : ﴿ قل هو الله احد ومعوذتين ﴾ هر يو درې درې کرته سحر او ماښام، عبدالله بن حبيب ﷛ صحابی فرمائی چه مونږ دَ رسول الله ﷺ سره په سفر کښې وتلې وو دَ يوې شپې واقعه ده چه په هغې کښې سخته تيارۀ او باران وو (دَ يو مونځ دَ راتلو په وخت چونکه تول منتشر وو دَ تيرې دَ وجې نه يو بل ته په نظر نه راتلل) نو مونږ رسول الله ﷺ لټولو چه مونځ ورکړی، په لټولو لټولو مونږ رسول الله ﷺ بيا موندلو نو رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل (دوی به په سفر کښې دَ باران او دَ شپې دَ تيرې نه ويريدل) اولوله (خو لا دا ئې نه وو فرمائيلي چه څه اولولی) هغوی فرمائی چه ما هيڅ او نه لوستل، بيا په دويم ځل هم داسې اوشو بيا ئې چه کله په دريم ځل اوفرمائيل نو ما اووې څۀ اولولم يا رسول الله ﷺ! نو په دې باندې رسول الله ﷺ دا درې واړه سورتونه تلاوت کړل کوم چه پورته ذکر شو، دا روايت په نسائی کښې هم دي چه دَ هغې په يو طريق کښې دا دی : كنت مع رسول الله صلى الله عليه و سلم في طريق مكة فاصبت خلوة من رسول الله صلى الله عليه و سلم فدنوت منه فقال قل فقلت ما أقول قال قل قلت ما أقول الخ .......په دې کښې قل هو الله احد نه دې ذکر شوې صرف دَ معوذتين ذکر دې، او دَ دې په يو طريق کښې هم دغه شان دی څنګه چه دلته په ابوداؤد کښې دی، او په يو طريق کښې داسې دی:﴿ عبد الله بن خبيب عن أبيه عن عقبة بن عامر الجهني قال : بينا أنا أقود برسول الله صلى الله عليه و سلم راحلته في غزوة إذ قال يا عقبة قل الحديث ﴾ چه په هغې کښې هم دا درې سورتونه ذکر دی، او بيا دَ دې نه پس امام نسائی ﷫ دا حديث

(): سنن الترمذي/الدعوات ١١٧ (٣٥٧٥)، سنن النسائي/الاستعاذة (٥٤٣٠)، (تحفة الأشراف: ٥٢٥٠) (حسن)

د عقبه په ډيرو طرقو سره ذکر کړې دي چه په هغې کښې د عبد الله بن حبيب هيڅ ذکر نشته، او مونږ سره دلته د ابوداؤد د کتاب الصلوة په آخر کښې باب المعوذتين کښې صرف د عقبه بن عامر رضي الله عنه حديث په دوه طرقو سره روايت کړې شوې دې، او دلته مصنف رحمه الله صرف د عبد الله بن خبيب حديث ذکر فرمائيلې دې، او امام نسائي رحمه الله دواړه يو ځائې ذکر فرمائيلې دی لهذا دا دواړه احاديث مستقل شو رسول الله ﷺ عبد الله بن خبيب او عقبه بن عامر رضي الله عنهما دواړو ته د دې سورتونو د لوستلو تعليم ورکړې وو.

[٥٠٨٣]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ ابْنُ عَوْفٍ وَرَأَيْتُهُ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ضَمْضَمٌ، عَنْ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ، قَالَ: قَالُوا: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، حَدِّثْنَا بِكَلِمَةٍ نَقُولُهَا إِذَا أَصْبَحْنَا وَأَمْسَيْنَا وَاضْطَجَعْنَا فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَقُولُوا: اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، أَنْتَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ، وَالْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُونَ أَنَّكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، فَإِنَّا نَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ أَنْفُسِنَا، وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ وَشِرْكِهِ، وَأَنْ نَقْتَرِفَ سُوءًا عَلَى أَنْفُسِنَا أَوْ نَجُرَّهُ إِلَى مُسْلِمٍ".

د حضرت ابومالک اشعری رضي الله عنه نه روايت دې چه صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم اوفرمائيل اې د الله رسوله! مونږ ته يوه کلمه ارشاد اوفرمائئ چه هغې لره مونږ سحر او ماښام او د اودهٔ کيدو په وخت کښې وايو نو حضور ﷺ اوفرمائيل، تاسو دا وائئ: {اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، أَنْتَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ، وَالْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُوْنَ أَنَّكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، فَإِنَّكَ نَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ أَنْفُسِنَا، وَ مِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ وَ شِرْكِهِ، وَ أَنْ نَقْتَرِفَ سُوْءًا عَلٰى أَنْفُسِنَا، أَوْ نَجُرَّهُ إِلَى مُسْلِمٍ} اې الله! اې د زمکې او اسمانونو پيدا کوونکيه! د غيب او د ظاهر پېژندونکيه! هم تهٔ د هر څيز مالک ئې او فرشتې ګواه دی چه ستا نه سوا څوک معبود نشته دې - مونږه د خپل نفس د شرارتونو او د شيطان مردود د شرارتونو نه په تاسره پناه غواړو او ددې خبرې نه هم پناه غواړو چه مونږه په خپلو ځانونو باندې د بدئ ارتکاب اوکړو يا د چا مسلمان دپاره بدی اوکړو -

[٥٠٨٤]([2]) قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَبِهَذَا الْإِسْنَادِ: أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَصْبَحَ أَحَدُكُمْ، فَلْيَقُلْ: أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هَذَا الْيَوْمِ فَتْحَهُ وَنَصْرَهُ وَنُورَهُ وَبَرَكَتَهُ وَهُدَاهُ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيهِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهُ، ثُمَّ إِذَا أَمْسَى فَلْيَقُلْ مِثْلَ ذَلِكَ".

امام ابوداود رحمه الله هم په دې اسناد سره روايت کوی چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دی: کله چه په تاسو کښې څوک سبا کړي نو هغه لره پکاردی چه دا کلمات وائی: {أَصْبَحْنَا وَ أَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ خَيْرَ هٰذَا الْيَوْمِ فَتْحَه وَ نَصْرَه وَ نُوْرَه وَ بَرَكَتَه وَ هُدَاه، وَ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيْهِ وَ شَرِّ مَا بَعْدَه} او کله چه ماښام وی نو هم داسې دې وائی -"

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٥٦) (ضعيف)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٥٧) (ضعيف)

[٥٠٨٥]([1]) حَدَّثَنَا كَثِيرُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ عُمَرَ بْنِ جُعْثُمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي الْأَزْهَرُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْحَرَازِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي شَرِيقٌ الْهَوْزَنِيُّ، قَالَ: "دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، فَسَأَلْتُهَا بِمَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْتَتِحُ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ؟ فَقَالَتْ: لَقَدْ سَأَلْتَنِي عَنْ شَيْءٍ مَا سَأَلَنِي عَنْهُ أَحَدٌ قَبْلَكَ، كَانَ إِذَا هَبَّ مِنَ اللَّيْلِ كَبَّرَ عَشْرًا وَحَمِدَ عَشْرًا، وَقَالَ: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ عَشْرًا، وَقَالَ: سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ عَشْرًا، وَاسْتَغْفَرَ عَشْرًا، وَهَلَّلَ عَشْرًا، ثُمَّ قَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ ضِيقِ الدُّنْيَا، وَضِيقِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ عَشْرًا، ثُمَّ يَفْتَتِحُ الصَّلَاةَ".

حضرت شریق هوزنی فرمائی چه زهٔ ام المؤمنین حضرت عائشي ﷺ ته راغلم او د هغي نه مي پوښتنه اوکړه چه رسول الله ﷺ به کله د شپې پاسیدو نو د کوم څيز نه به ئي ابتداء کوله؟ هغي اوفرمائیل په تحقیق سره تا زما نه داسې تپوس کړې دې چه ددې متعلق مخکښې زما نه چا تپوس نهٔ دې کړې - حضور ﷺ چه کله د شپې پاسیدو نو لس ځله به ئي [ الله اکبر ]لس ځله[ الحمد لله ]او لس ځله به ئي[سُبْحَانَ اللهِ وَ بِحَمْدِهِ ]لس ځله به ئي[ سُبْحَانَ الْمَلِکِ الْقُدُّوْس]لس ځله به ئي[ استغفر الله ]لس ځله به ئي[ لا اله الا الله ]او بیا به ئي لس ځله فرمائیل :{(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوْذُ بِکَ مِنْ ضِيْقِ الدُّنْيا وَ ضِيْقِ يَوْمِ الْقِيامَةِ)}اي الله زهٔ د دُنیا او د ورځې د قیامت د تنګئ نه په تا سره پناه غواړم -

**دعاء آخر** : رسول الله ﷺ چه به کله د شپې رابیدار شو نو د مانځه د شروع کولو نه مخکښې به ئي دا اذکار لوستل، تکبیر ((الله اکبر)) لس کرته، تحمید ((الحمد لله)) لس کرته، سبحان الله وبحمده لس کرته، سبحان الملک القدوس لس کرته، استغفار لس کرته، تهلیل ((لا اله الا الله)) لس کرته، او د دې نه پس به ئي دا لوستل : ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ ضِيقِ الدُّنْيَا وَضِيقِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ﴾ لس کرته.

[٥٠٨٦]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ فَأَسْحَرَ، يَقُولُ: سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللهِ وَنِعْمَتِهِ وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنَا، اللَّهُمَّ صَاحِبْنَا فَأَفْضِلْ عَلَيْنَا، عَائِذًا بِاللهِ مِنَ النَّارِ".

د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله په سفر کښې وو او سحر به شو نو دا به ئي فرمائیل :{ سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللهِ وَ نِعْمَتِه وَ حُسْنِ بَلَائِه عَلَيْنَا - اللَّهُمَّ ا صَاحِبْنَا فَأَفْضِلْ عَلَيْنَا،عَائِذًا بِاللهِ مِنَ النَّارِ }اوری اوریدونکې،حمد دې الله لره او څه ښهٔ نعمتونه او احسان دې د هغه په مونږ باندې- اي الله زمونږه ملګرې جوړ شه او په مونږ باندې خپل فضل اوکړې په داسې حال کښې چه مونږه د جهنم د اور نه په الله پاک سره پناه غواړو -

**دعاء آخر** : ﴿ سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللهِ وَنِعْمَتِهِ وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنَا اللَّهُمَّ صَاحِبْنَا فَأَفْضِلْ عَلَيْنَا عَائِذًا بِاللهِ مِنَ النَّارِ ﴾».

حضرت ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم ﷺ به کله په سفر کښې وو نود سحر

[1]: تفرد به أبو داود، انظر ما تقدم عند المؤلف برقم : ٧٦٦، (تحفة الأشراف: ١٦١٥٣)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الاقامة ١٨٠ (١٣٥٦)، سنن النسائي/قيام الليل ٩ (١٦١٦)، عمل اليوم والليلة ٢٥٤ (٥٥٠)، مسند احمد (١٤٣/٦) (حسن صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٨ (٢٧١٨)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٦٩) (صحيح)

په وخت به ئې دا دعا وئيله، ددې ترجمه دا ده چه:
اوريدونکی د الله تعالی حمد لره او دهغه د نعمتونو شکر کول او په خپل امتحان کښې زمونږه ښه کارکردګی (اوليده او) واوريدله، اې الله زمونږه ملګرې جوړ شه او په مونږ باندې خپل فضل اوکړې، مونږه د جهنم د اور نه په الله پاک سره پناه غواړو.
مطلب دادې چه مونږ دهغه نعمتونو اقرار کوو اوپه هغې باندې دالله تعالی حمد اوثنا وايو او ټول آوريدونکی په هغې باندې ګواه جوړوو اې الله زمونږ ملګرې شې (په اعتبار د مدد او نصرت سره) او په مونږ باندې فضل اوکړې دجهنم نه مو بچ کړې.

[٥٠٨٧](١) حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا الْمَسْعُودِيُّ، حَدَّثَنَا الْقَاسِمُ، قَالَ: كَانَ أَبُو ذَرٍّ يَقُولُ: "مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ: اللَّهُمَّ مَا حَلَفْتُ مِنْ حَلِفٍ، أَوْ قُلْتُ مِنْ قَوْلٍ، أَوْ نَذَرْتُ مِنْ نَذْرٍ، فَمَشِيئَتُكَ بَيْنَ يَدَيْ ذَلِكَ كُلِّهِ، مَا شِئْتَ كَانَ وَمَا لَمْ تَشَأْ لَمْ يَكُنْ، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَتَجَاوَزْ لِي عَنْهُ، اللَّهُمَّ فَمَنْ صَلَّيْتَ عَلَيْهِ فَعَلَيْهِ صَلَاتِي، وَمَنْ لَعَنْتَ فَعَلَيْهِ لَعْنَتِي، كَانَ فِي اسْتِثْنَاءٍ يَوْمَهُ ذَلِكَ، أَوْ قَالَ: ذَلِكَ الْيَوْمَ".

د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دې چه چا د سحر په وخت کښې دا دعا اولوسته: {اللَّهُمَّ مَا حَلَفْتُ مِنْ حَلِفٍ أَوْ قُلْتُ مِنْ قَوْلٍ أَوْ نَذَرْتُ مِنْ نَذْرٍ فَمَشِيئَتُكَ بَيْنَ يدیْ ذٰلِک کُلّه: مَا شِئْتَ كَانَ وَمَا لَمْ تَشَأْ لَمْ يَكُنْ - اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَ تَجَاوَزْ لِي عَنْه، اللَّهُمَّ فَمَن صَلَّيت عَلَيْه فَعَلَيْه صَلَاتِي، وَ مَنْ لَعَنْتَ فَعَلَيْه لَعْنَتِي} نو ددې کلماتو لوستونکې به ددغه ورځې د غلطو نه مستثنیٰ وی. [يعنی محفوظ به وی].

[٥٠٨٨](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو مَوْدُودٍ، عَمَّنْ سَمِعَ أَبَانَ بْنَ عُثْمَانَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ عُثْمَانَ يَعْنِي ابْنَ عَفَّانَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ قَالَ: بِسْمِ اللَّهِ الَّذِي لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، لَمْ تُصِبْهُ فَجْأَةُ بَلَاءٍ حَتَّى يُصْبِحَ، وَمَنْ قَالَهَا حِينَ يُصْبِحُ ثَلَاثُ مَرَّاتٍ، لَمْ تُصِبْهُ فَجْأَةُ بَلَاءٍ حَتَّى يُمْسِيَ" وَقَالَ: فَأَصَابَ أَبَانَ بْنَ عُثْمَانَ الْفَالِجُ، فَجَعَلَ الرَّجُلُ الَّذِي سَمِعَ مِنْهُ الْحَدِيثَ يَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَقَالَ لَهُ: مَا لَكَ تَنْظُرُ إِلَيَّ؟ فَوَاللَّهِ مَا كَذَبْتُ عَلَى عُثْمَانَ، وَلَا كَذَبَ عُثْمَانُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَكِنَّ الْيَوْمَ الَّذِي أَصَابَنِي فِيهِ مَا أَصَابَنِي غَضِبْتُ فَنَسِيتُ أَنْ أَقُولَهَا.

د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه نه روايت دې چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم اوريدلي دی: چه چا د ماښام په وخت کښې دا دعا درې ځله اولوسته نو دهٔ ته به تر د سبا پورې اچانک مصيبت نهٔ راځی - {بِسْمِ اللهِ الَّذِیْ لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِه شَيْئٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ}: او چا چه د سبا په وخت کښې درې ځله دا کلمات اووې نو هغه ته به تر ماښامه پورې اچانک مصيبت نهٔ راځی -" راوی بيان کوی چه ددې حديث روايت کونکې ابان بن عثمان فالج وهلې وو نو د هغه نه حديث اوريدو والا هغه ته په تعجب سره کتل (چه بيا دا فالج څنګه په تا باندې راغې) نو هغه اوفرمائيل: څه شوې دی ما ته ولې ګورې؟ په الله قسم ما په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې دروغ نهٔ دی وئيلې او نهٔ حضرت عثمان رضي الله عنه په حضور صلى الله عليه وسلم باندې دروغ

---
(١): تفرد به أبو داود (ضعيف الإسناد)
(٢): سنن الترمذي/الدعوات ١٣ (٣٣٨٨)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٤ (٣٨٦٩)، (تحفة الأشراف: ٩٧٧٨)، وقد أخرجه: مسند أحمد (١/٦٢، ٧٢) (صحيح)

وئیلي دي لیکن په کومه ورځ باندې چه ما ته فالج راغې زۀ په هغه ورځ باندې په غصه کښې وم او زما نه دا کلمات هیر شوې وو -

بله دعاء: {بِسْمِ اللّٰهِ الَّذِيْ لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْئٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ } درې کرته د سحرې او درې کرته ماښام، رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه څوک داسې کوی نو هیڅ ناګهانی مصیبت به هغه ته نه رسیږی دې حدیث لره د رسول اللهﷺ نه نقل کونکی سیدنا عثمانؓ دې، او د هغوی نه نقل کونکې د هغوی ځوئې ابانؒ دې.او د ابان نه روایت کونکې راوی نامعلوم الاسم دې یو ځل ابانؒ فالج اوهلو نو هغه نامعلوم الاسم سړی د هغه طرف ته کتل شروع کړل (یعنی په دې لحاظ که هغه حدیث صحیح وو کوم چه تا بیان کړې وو نو ته فالج ولې اوهلې) ابانؒ د هغه په اعتراض باندې پوهه شو نو هغوی په جواب کښې اووې چه څۀ خبره ده ولې ماته ګورې په الله پاک قسم چه ما دا حدیث د خپل والد عثمانؓ نه غلط نه دې نقل کړې او نه عثمانؓ د رسول اللهﷺ نه حدیث غلط نقل کړې دې، اصل کښې خبره دا ده چه په کومه ورځ باندې زه فالج اوهلم نو هغه ورځ ماته په څه خبره باندې غصه راتله چه د هغې په وجه باندې د دې لوستل مانه هیر شو.اوګورئ څومره د یقین خبره ده.

[٥٠٨٩] (¹) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو مَوْدُودٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ، عَنْ أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ عُثْمَانَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ لَمْ يَذْكُرْ قِصَّةَ الْفَالِجِ.

محمد بن کعب د ابان بن عثمان نه،او هغوی د حضرت عثمان ؓ نه مذکوره بالا حدیث روایت کړې دې-

[٥٠٩٠] (²) حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ الْجَلِيلِ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مَيْمُونٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرَةَ، أَنَّهُ قَالَ لِأَبِيهِ: "يَا أَبَتِ إِنِّي أَسْمَعُكَ تَدْعُو كُلَّ غَدَاةٍ: اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَدَنِي، اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي سَمْعِي، اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَصَرِي، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ تُعِيدُهَا ثَلَاثًا حِينَ تُصْبِحُ وَثَلَاثًا حِينَ تُمْسِي، فَقَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو بِهِنَّ، فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَسْتَنَّ بِسُنَّتِهِ، قَالَ عَبَّاسٌ فِيهِ: وَتَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ تُعِيدُهَا ثَلَاثًا حِينَ تُصْبِحُ وَثَلَاثًا حِينَ تُمْسِي فَتَدْعُو بِهِنَّ، فَأُحِبُّ أَنْ أَسْتَنَّ بِسُنَّتِهِ، قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: دَعَوَاتُ الْمَكْرُوبِ: اللَّهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو، فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ، وَأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ"، وَبَعْضُهُمْ يَزِيدُ عَلَى صَاحِبِهِ.

د حضرت عبد الرحمن بن ابوبکره ؓ نه روایت دې هغه خپل پلار ته اووې : ابا جان ! زۀ ستا نه اورمه چه ته هر سحر دا کلمات وائې : {اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي سَمْعِي، اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَصَرِي، لَا إِلَهَ أَنْتَ }تاسو دا دُعا درې ځله لولئ نو هغه اوفرمائیل بې شکه ما دَ رسول اللهﷺ نه دا دعا اوریدلې ده چه هغه به لوستله - نو زۀ خوښوم چه دَ هغه په سنتو باندې عمل اوکړم - [ بل راوی ] عباس (بن عبد العظیم) په خپل روایت کښې وئیلې دی او هغه به دا دُعا هم وئیله :

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٧٧٨) (صحيح)

²): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٦٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢/٥) (حسن الإسناد)

{اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ} دي لره به ئي د سحر په وخت کښي درې ځله لوستله او د ماښام به ئي هم لوستله - - (نو هغه اوفرمائيل) زۀ خوښه وم چه د حضور ﷺ په سنتونو باندې عمل اوکړم - اووې فرمائيل: چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: د پريشان حال دپاره دا دُعا ده: {اللَّهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو، فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ، وَأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ، لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ} اې الله زۀ ستا د رحم اميدوار يم، ته د سترګي د رف برابر هم مالره خپل نفس ته مۀ حواله کوه او زما تمام معاملات درست کړې، ستا نه علاوه د عبادت څوک لائق نشته دې -" په دې روايت کښي عباس بن عبد العظيم او محمد بن مثنى بعضې کلمات د يو بل زيات وئيلي دی-

**دعاء اخر** : ﴿ اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَدَنِي اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي سَمْعِي اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَصَرِي لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ ﴾ رسول الله ﷺ به دا دعاء سحر او ماښام درې درې کرته لوستله.

**دعاء اخر** : ﴿ اللَّهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو فَلاَ تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ وَأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ أَنْتَ ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم انسان ته څه مصيبت او پريشاني اورسيږي نو هغه له پکار دی، چه دا دعاء اولولي، دې دعاء ته رسول الله ﷺ دعوات المكروب فرمائيلي ده.

[٥٠٩١]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ سُمَيٍّ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ: سُبْحَانَ اللَّهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ مِائَةَ مَرَّةٍ، وَإِذَا أَمْسَى كَذَلِكَ، لَمْ يُوَافِ أَحَدٌ مِنَ الْخَلَائِقِ بِمِثْلِ مَا وَافَى".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی: کوم سړې چه د سبا په وخت کښي سل ځله {سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ} اووائي او هم دغه شان ماښام هم اووائی، نو په مخلوقاتو کښي به څوک داسې نۀ وی چه هغه به دومره ثواب بيا موندلي وی"

**دعاء اخر** : ﴿ سُبْحَانَ اللَّهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ ﴾ سحر او ماښام سل سل کرته، ددې په باره کښي رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم انسان داسې کوی نو په مخلوق کښي به يو سړې هم د هغه مرتبې ته او نه رسيږی، يعنی په هغه خلقو کښي کوم چه دا نه لولي.

## بَاب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ

### باب: ١٠١، ١٠٢- د نوی مياشتي د ليدو دُعا

[٥٠٩٢]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، أَنَّهُ بَلَغَهُ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ، قَالَ: "هِلَالُ خَيْرٍ، وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ، وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ، وَرُشْدٍ آمَنْتُ بِالَّذِي خَلَقَكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ يَقُولُ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ كَذَا، وَجَاءَ بِشَهْرِ كَذَا".

حضرت قتاده رضي الله عنه ته دا روايت رسيدلې دې چه کله به نبی کريم ﷺ نوې مياشت اوليده نو فرمائيل به ئي: {هِلَالُ خَيْرٍ وَ رُشْدٍ، هِلَالُ خَيْرٍ وَ رُشْدٍ، آمَنْتُ بِالَّذِي خَلَقَكَ} د

[1]): صحيح مسلم/الذكر والدعاء ١٠ (٢٦٩٢)، سنن الترمذي/الدعوات ٥٩ (٣٤٦٩)، (تحفة الأشراف: ١٢٥٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٧١) (صحيح)

[2]): تفرد به ابو داود (ضعيف الإسناد)

خير او د هدايت مياشت، د خير او هدايت مياشت، د خير او هدايت مياشت ما ايمان راوړې دې په هغه ذات باندې چه تا ئې پيدا كړې ئې - حضور ﷺ به دا درې ځله فرمائيل - ددې ورستو به ئې فرمائيل : ((الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ كَذَا وَ جَاءَ بِشَهْرِ كَذَا)) حمد هغې الله لره دې چه فلانۍ مياشتې لره ئې بوتله او فلانۍ مياشت ئې راوستله -

د رسول الله ﷺ معمول وو چه كله به ئې د اولې شپې مياشت اوليده نو دا دعاء به ئې لوستله : ﴿ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ آمَنْتُ بِالَّذِي خَلَقَكَ ﴾ دا هم درې كرته، د دې نه پس به ئې دا لوستل : ﴿ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ كَذَا وَجَاءَ بِشَهْرِ كَذَا ﴾ دواړو ځايونو كښې به د كذا په ځائې د هغه مياشت نوم اخستلې شي، يعنى هغه مياشت چه تير شوه او بل ځائې كښې هغه مياشت كومه چه شروع شوه، مثلا : الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ ذى القعدة وَجَاءَ بِشَهْرِ ذى الحجة.

او د دې نه په روستو روايت كښې دى : ﴿ كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ صَرَفَ وَجْهَهُ عَنْهُ ﴾

[۵۰۹۳]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ حُبَابٍ أَخْبَرَهُمْ، عَنْ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ قَتَادَةَ، "أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ صَرَفَ وَجْهَهُ عَنْهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: لَيْسَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْبَابِ حَدِيثٌ مُسْنَدٌ صَحِيحٌ.

د حضرت قتاده رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به كله مياشت اوليده نو خپل مخ به ئې د هغې نه اړولو - (بيا به ئې دعا كوله) امام ابوداود رحمه الله فرمائى چه په دې مسئله كښې څه مرفوع حديث وارد نۀ دې -

چه كله به رسول الله ﷺ سپوږمۍ اوليده نو خپل مخ مبارك به ئې د هغې نه واړولو، د دې حديث راوى قتاده دې او پورته چه كومه دعاء تيره شوې ده، د هغې راوى هم قتاده دې د دې نه په ظاهر كښې دا په فهم كښې راځى چه مراد دا دې چه د مذكوره دعاء لوستلو په وخت به رسول الله ﷺ داسې كول چه د چا دا وهم او شبه پيدا نه شى چه د سپوږمۍ نه دعاء غوښتلې كيږى. والعياذ بالله تعالى، كذا فى البذل نقلا عن تقرير الكنكوهى.

## باب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ

### بابـ-۱۰۲، ۱۰۳ - دَ كور نه دَ وتلو په وخت كښې دُعا

يعنى كورته د داخليدو دعاء، په دې باب كښې مصنف رحمه الله زمونږ د نسخې موافق درې احاديث ذكر كړې دى خو په اولنو دوه احاديثو كښې چه كومه دعا ذكر ده هغه د كور نه د بهر راوتلو ده، خو په دريم حديث كښې چه كومه دعاء ذكر ده هغه د دخول بيت ده : ﴿اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلِجِ وَخَيْرَ الْمَخْرَجِ بِسْمِ اللّٰهِ وَلَجْنَا وَبِسْمِ اللّٰهِ خَرَجْنَا وَعَلَى اللّٰهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا ثُمَّ لِيُسَلِّمْ عَلَى أَهْلِهِ ﴾ ([2]) رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه كله انسان په خپل كور كښې داخليږى نو

[1]): تفرد به أبو داود (ضعيف الإسناد)

[2]) في هامش الحصن: قوله المولج بكسر اللام فقط في اصل الجلال، ويفتحها في اصل الاصيل والاول هو المعول فانه نظير الموعد وشبيه الموعد، ولعل وجه الفتح هو المشاكلة لقوله وخير المخرج مع انه من لزوم ما لايلزم الي اخر ما فيه)

هغه له پکار دی چه اول دا دعاء اوکړي او بیا دې د خپل کور خلقو ته سلام اوکړي.

[٥٠٩٤]()حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: "مَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْتِي قَطُّ إِلَّا رَفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ، فَقَالَ: اللَّهُمَّ أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ، أَوْ أَزِلَّ أَوْ أُزَلَّ، أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ، أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ".

د ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله زما د کور نه وتلو نو خپل نظر به ئې اسمان طرف ته اوچت کړو او دا دُعا به ئې لوستله: {(اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِکَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ أَوْ أَزِلَّ أَوْ أُزَلَّ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ)} اې الله زهٔ په تاسره پناه غواړم ددې خبرې نه چه زهٔ ګمراه شم یا ګمراه کړې شم، یا اوخویږم یا اوخوه یولې شم یا ظلم اوکړم یا زما سره ظلم اوکړې شی، یا د څه جهالت کار اوکړم یا زما سره څه د جهالت برتاؤ اوکړې شی.

او د وتلو دعاء کومه چه په دې حدیث کښې ذکر ده: ﴿اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ أَوْ أَزِلَّ أَوْ أُزَلَّ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ﴾ او په حدیث کښې دا هم دی ام سلمه رضي الله عنها فرمائی چه کله به هم رسول الله ﷺ زما د کور نه وتلو نو د آسمان طرف ته به ئې سترګې مبارکې اوچتولو سره دا دعاء لوستله.

او د دې باب په دویم حدیث کښې دا دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم انسان د کور نه د وتلو په وخت دا دعاء لولی: ﴿بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ لاَ حَوْلَ وَلاَ قُوَّةَ إِلاَّ بِاللَّهِ﴾ نو ورته وئیلې شی یعنی من جانب الله تعالی هُدِيتَ وَكُفِيتَ وَوُقِيتَ. چه ته په هدایت باندې ئې او د هر شر نه ستا کفایت او حفاظت اوکړې شو.

[٥٠٩٥]()حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَسَنِ الْخَثْعَمِيُّ، حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا خَرَجَ الرَّجُلُ مِنْ بَيْتِهِ، فَقَالَ: بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ، لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، قَالَ: يُقَالُ حِينَئِذٍ: هُدِيتَ وَكُفِيتَ وَوُقِيتَ، فَتَتَنَحَّى لَهُ الشَّيَاطِينُ، فَيَقُولُ لَهُ شَيْطَانٌ آخَرُ: كَيْفَ لَكَ بِرَجُلٍ قَدْ هُدِيَ وَكُفِيَ وَوُقِيَ".

د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله اوفرمائیل: چه کله بنده د کور نه اوځی او دا کلمات اووائی {بِسْمِ اللہ تَوَکَّلْتُ عَلَی اللہ، لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللہ} د الله عز وجل په نوم سره، زهٔ توکل کووم په الله پاک باندې، د څه شر او د بدئ نه حفاظت او د څه نیکئ او د خیر حاصلول د الله پاک د مدد نه بغیر ممکن نهٔ دی." نو په دغه وخت کښې دهٔ ته وئیلې شی، تاته هدایت میلاؤ شو ستا کفایت اوکړې شو او تهٔ محفوظ کړې شوې (د هر مصبت نه) چنانچه شیاطین دهٔ نه لرې کیږی او دویم شیطان دوئ ته وائی چه ستا داؤ به په داسې سړی باندې څنګه اوچلیږی چه هغه ته هدایت کړې شوې دې، د هغه کفایت کړې شوې دې، او هغه محفوظ کړې شوې دې.

[1]): سنن الترمذي/الدعوات ٣٥ (٣٤٢٧)، سنن النسائي/الاستعاذة ٢٩ (٥٤٨٨)، ٦٤ (٥٥٤١)، سنن ابن ماجه/الدعاء ١٨ (٣٨٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٨١٦٨)، وقد أخرجه: مسند أحمد (٦/٣٠٦، ٣١٨، ٣٢٢) (صحيح)

[2]): سنن الترمذي/الدعوات ٣٤ (٣٤٢٦)، سنن النسائي/في اليوم والليلة (٨٩)، (تحفة الأشراف: ٨٩) (صحيح)

او د حضرت گنگوهی په تقریر کښې دی د دې دعاء په مناسبت کښې چه سړې ترڅو په خپل کور کښې وی نو د فتنو او مصیبتونو نه په امن وی پس کله چه هغه د کور نه اوځی نو شیطان ورپسې اولګی او هغه سره اوسیږی او هغه باندې جهګړې وغیره کوی پس کله چه د کور نه وتونکې د الله پاک پناه اوغواړی د هغه څیز نه د کوم نه چه رسول الله ﷺ پناه غوښتلې ده او د رسول الله ﷺ دا بیان کړې دعا لولی نو شیطان د هغه نه بیل شی.

## باب مَا يَقُولُ الرَّجُلُ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ

**باب: ...... کورته چه داخلیږي نوڅه به وائي:**

[٥٠٩٦]([1]) حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ ابْنُ عَوْفٍ وَرَأَيْتُ فِي أَصْلِ إِسْمَاعِيلَ، قَالَ: حَدَّثَنِي ضَمْضَمٌ، عَنْ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا وَلَجَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ، فَلْيَقُلْ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلَجِ وَخَيْرَ الْمَخْرَجِ، بِسْمِ اللَّهِ وَلَجْنَا وَبِسْمِ اللَّهِ خَرَجْنَا وَعَلَى اللَّهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا، ثُمَّ لِيُسَلِّمْ عَلَى أَهْلِهِ".

د حضرت ابو مالک اشعری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه کله یو سړې خپل کور ته داخلیږی نو هغه لره پکار دی چه دا دُعا اووائی: { اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلَجِ، وَ خَيْرَ الْمَخْرَجِ، بِسْمِ اللّٰهِ وَلَجْنَا وَ بِسْمِ اللّٰهِ خَرَجْنَا، وَ عَلَى اللّٰهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا ،} او بیا دې خپل کور والو ته سلام اوکړی۔

## باب مَا يَقُولُ إِذَا هَاجَتِ الرِّيحُ

**باب: ١٠٣، ١٠٤- تیزه هوا چه چلیږی نوکومه دعا به وائی**

[٥٠٩٧]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، وَسَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ شَبِيبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "الرِّيحُ مِنْ رَوْحِ اللَّهِ، قَالَ سَلَمَةُ: فَرَوْحُ اللَّهِ تَأْتِي بِالرَّحْمَةِ، وَتَأْتِي بِالْعَذَابِ، فَإِذَا رَأَيْتُمُوهَا، فَلَا تَسُبُّوهَا وَسَلُوا اللَّهَ خَيْرَهَا، وَاسْتَعِيذُوا بِاللَّهِ مِنْ شَرِّهَا".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی هغه فرمائیل هوا دَ الله دَ رحمت نه ده ۔" سلمه بن شبیب فرمائی دَ الله دا روح کله رحمت راولی او کله عذاب هم راولی کله چه تاسو دا اووینئ او دې ته بد رد مه وائئ، بلکې دَ الله نه ددې دَ خیر سوال کوئ او ددې دَ شر نه په الله سره پناه غواړئ ۔"

[٥٠٩٨]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنَا عَمْرٌو، أَنَّ أَبَا النَّضْرِ حَدَّثَهُ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطُّ

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٥٨) (ضعيف) (تراجع الألباني ١٤٤)

[2]): سنن ابن ماجه/الأدب ٢٩ (٣٧٢٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٣١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٥٠، ٢٦٧، ٤٠٩، ٤٣٦، ٥١٨) (صحيح)

[3]): صحيح البخاري/بدء الخلق ٥ (٣٢٠٦)، تفسير سورة الأحقاف (٤٨٢٩)، الأدب ٦٨ (٦٠٩٣)، صحيح مسلم/الاستسقاء ٣ (٨٩٩)، (تحفة الأشراف: ١٦١٣٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/تفسير القرآن ٤٦ (٤٨٢٨)، سنن ابن ماجه/الدعاء ٢١ (٦٠٩٢)، مسند احمد (٦/١٩٠) (صحيح)

مُسْتَجْمِعًا ضَاحِكًا حَتَّى أَرَى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ، إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ وَكَانَ إِذَا رَأَى غَيْمًا أَوْ رِيحًا عُرِفَ ذَلِكَ فِي وَجْهِهِ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، النَّاسُ إِذَا رَأَوُا الْغَيْمَ فَرِحُوا رَجَاءَ أَنْ يَكُونَ فِيهِ الْمَطَرُ، وَأَرَاكَ إِذَا رَأَيْتَهُ عُرِفَتْ فِي وَجْهِكَ الْكَرَاهِيَةُ، فَقَالَ: يَا عَائِشَةُ، مَا يُؤَمِّنُنِي أَنْ يَكُونَ فِيهِ عَذَابٌ قَدْ عُذِّبَ قَوْمٌ بِالرِّيحِ، وَقَدْ رَأَى قَوْمٌ الْعَذَابَ، فَقَالُوا: هَذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا".

د حضرت عائشي ﷞ نه روايت دي چه ما چرته کښې نۀ دی ليدلي چه رسول الله ﷺ به دومره په زوره سره خندلي وی چه زۀ دَ هغه ژبئ لره اووينم، حضور ﷺ به مسکي کيدو - کله چه به وريځ يا تيزه هوا چليده نو دَ پريشانئ غونډې يو کيفيت به د هغه په مخ باندې ظاهريدو - ما عرض اوکړو اې دَ الله رسوله ! خلق چه کله وريځ وينی نو خوشاليږی په دې اميد باندې چه ددې نه به باران کيږی او زۀ وينم چه کله تاسو دا اووينئ نو ستاسو په مخ باندې پريشانی غونډې راځی حضور ﷺ اوفرمائيل اې عائشې ! مالره دا يره بې آرامه کوی چه چرته کښې په دې کښې عذاب نۀ وی، بې شکه يو قوم ته دَ هوا په ذريعې سره عذاب ورکړې شوې وو - او يو قوم عذاب اوليدو نو خلقو اووې : { هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا} دا وريځ ده ددې نه به په مونږ باندې باران کيږی.

سيده عائشه ﷞ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ کله هم په تيزه خند نه دې ليدلي (چه په هغې سره تالو ښکاره شی) رسول الله ﷺ به بس تبسم فرمائيلو او د هغوی دا حال وو چه کله به ئې په آسمان باندې وريځ اوليده يا به تيزه هوا چليده نو د هغې اثر به د رسول الله ﷺ د مخ مبارک نه پيژندلې کيدو، يعنی ويره، هغه فرمائی چه ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ خلق خو چه کله وريځ وينی نو خوشحاليږی د باران په توقع باندې او زه تاسو وينم چه کله تاسو وريځ وينئ نو ستاسو په مخ باندې غم محسوسيږی. په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه څۀ څيز ما مطمئن کولې شی په وريځ کښې د عذاب کيدو نه، په تحقيق سره بعض قومونو ته عذاب ورکړې شوې دې د هوا په ذريعه، يعنی قوم عاد، د هود ﷤ قوم، او په تحقيق سره بعض قومونو د عذاب يعنی وريځ چه په هغې کښې عذاب وو يعنی ثمود د صالح ﷤ قوم هغوی د دې وريځې په ليدو باندې اووې چه دا په مونږ باندې اوبه راوورنکې ده، د دې آيت کريمه طرف ته اشاره ده : ﴿ فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا الخ ﴾

[٥٠٩٩](١) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ شُرَيْحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا رَأَى نَاشِئًا فِي أُفُقِ السَّمَاءِ تَرَكَ الْعَمَلَ وَإِنْ كَانَ فِي صَلَاةٍ، ثُمَّ يَقُولُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا، فَإِنْ مُطِرَ، قَالَ: اللَّهُمَّ صَيِّبًا هَنِيئًا".

د حضرت عائشي ﷞ نه روايت دې چه کله به نبی کريم ﷺ د اسمان په کناره باندې د وريځې څه ټکړا اوليده نو کار وغيره به ئې پريخودو اګر چه په مونځ کښې به وو او بيا به ئې دا دُعا کووله - {اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِکَ مِنْ شَرِّهَا} اې الله زۀ ددې دَ شر نه په تاسره پناه

(١): سنن ابن ماجه/الدعاء ٢١ (٣٨٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٦١٤٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الاستسقاء ١٥ (١٥٢٢) (صحيح)

غواړم، او که باران به شو نو دا به ئې فرمائیل : { اللَّهُمَّ صَيبا هَنِيئًا } اې الله دې لره ښۀ وریدونکې نفع آوړ او مبارک اوګرځوې .''

﴿ إِذَا رَأَى نَاشِئًا فِي أُفُقِ السَّمَاءِ تَرَكَ الْعَمَلَ الخ ﴾ یعنی کله به چه رسول الله ﷺ وریځ اوچته اولیده په اسمان کښې نو اول به چه په کوم کار کښې مشغول وو هغه به ئې پریخودلو اګر چه په مانځۀ کښې به وو یعنی نفل مونځ، او که مطلق مونځ مراد کړې شی نو بیا به د دې ترک نه مراد تاخیر وی، او رسول الله ﷺ به دا دعاء لوستله : ﴿ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا ﴾ پس که د دې نه پس به باران وریدلو نو بیا به ئې دا دعاء کوله : ﴿ اللَّهُمَّ صَيِّبًا هَنِيئًا ﴾

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَطَرِ

### باب ۱۰٤، ۱۰۵- د باران بیان

[۵۱۰۰]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَمُسَدَّدٌ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "أَصَابَنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَطَرٌ، فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَسَرَ ثَوْبَهُ عَنْهُ حَتَّى أَصَابَهُ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لِمَ صَنَعْتَ هَذَا؟ قَالَ: لِأَنَّهُ حَدِيثُ عَهْدٍ بِرَبِّهِ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې هغوی فرمائی چه مونږه د نبی کریم ﷺ سره وو او باران شروع شو نو رسول الله ﷺ اووتلو او د خپل جسم نه ئې کپړا لرې کړه تردې پورې چه باران د هغه په جسم باندې اولګیدو مونږ عرض اوکړو اې د الله رسوله ! تاسو داسې ولې اوکړل؟ حضور ﷺ اوفرمائیل ځکه چه دا د خپل رب د طرف نه اوس اوس راغلې دې.

د حدیث الباب مضمون دا دې : سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه د یو ځل واقعه ده مونږ رسول الله ﷺ سره وو (ظاهره دا ده چه په سفر کښ) پس باران شروع شو نو هغوی د دننه نه بهر راغلل (په ظاهره دخیمې نه) او د خپل بدن نه ئې کپړه لرې کړه څادر وغیره کومه ئې چه اچولې وه، تر دې چه د باران اوبه د رسول الله ﷺ په بدن باندې اولګیدې، مونږ عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ تاسو داسې ولې اوکړل نو هغوی اوفرمائیل ځکه چه دا تازه په تازه د الله پاک د طرف نه راروانې دی یعنی د پورته نه راځی الله پاک هم بره دې ﴿الرحمن على العرش استوى ﴾ امام نووی رحمه الله فرمائی چه باران د الله پاک رحمت دې کوم چه تازه تازه د پورته نه راروانې دی نو رسول الله ﷺ به د هغې نه برکت حاصلولو.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الدِّيكِ وَالْبَهَائِمِ

### باب ۱۰۵، ۱۰٦- د چرګ او د نورو ځناورو بیان

[۵۱۰۱]([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَسُبُّوا الدِّيكَ، فَإِنَّهُ يُوقِظُ لِلصَّلَاةِ".

[1]: صحيح مسلم/صلاة الأستسقاء ٢ (٨٩٨)، سنن النسائي/الكبري (١٨٣٧)، (تحفة الأشراف: ٢٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٣/٣، ٢٦٧) (صحيح)

[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٣٧٥٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١١٥/٤، ١٩٣/٥) (صحيح)

د حضرت زید بن خالد رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه چرګ ته کنځل مۀ کوئ ځکه چه دا د مونځ دپاره رابیدارول کوی۔

﴿ لَا تَسُبُّوا الدِّيكَ فَإِنَّهُ يُوقِظُ لِلصَّلَاةِ ﴾ چرګ ته بدې ردې مه وایئ ځکه چه هغه مانځه دپاره پاسوی، د تهجد او د سحر، د دې نه پس په بل روایت کښې دی

[٥١٠٢](1) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا سَمِعْتُمْ صِيَاحَ الدِّيَكَةِ، فَسَلُوا اللَّهَ تَعَالَى مِنْ فَضْلِهِ، فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا، وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الْحِمَارِ، فَتَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ، فَإِنَّهَا رَأَتْ شَيْطَانًا".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل کله چه تاسو د چرګ اواز واورئ نو د الله تعالیٰ نه د هغه د فضل سوال کوئ بې شکه هغه به فرښتې لیدې وی او کله چه تاسو د خر آواز واورئ نو د شیطان نه په الله پاک سره پناه غواړئ، بې شکه هغه شیطان لیدلی دې۔"

چه کله د چرګانو آوازونه واورئ (کوم ته چه مونږ بانګ وایو) نو د الله پاک نه د هغه د فضل سوال اوکړئ ځکه چه دا چرګ د ملائکو په لیدو بانګ وائی، او کله چه تاسو د خرو آواز واورئ (یعنی د هغه رمبارې) نو د الله پاک پناه غواړئ د شیطان نه په دې وجه ځکه چه خر د شیطان په لیدو چغه وهی.

**(ایا چرګ همیشه د فرښتې په لیدو اواز کوی؟)**

د حضرت ګنګوهی په تقریر کښې دی چه دا مطلب نه دې چه چرګ کله هم آواز کوی نو د فرښتو په لیدو ئې کوی، هم دغه شان چه خر کله هم آواز کوی نو د شیطان په لیدو باندې بلکه د هغوی د آوازونو اسباب نور هم دی، خو چونکه دا معلومه نه ده چه دا آواز د څۀ وجې نه دې، کیدې شی چه په دې وجه باندې وی چه هغه فرښته اولیده او هغه شیطان اولیدو لهٰذا دا دعاء هر وخت کول پکار دی، او مستحب ده، او د فرښتو د لیدو په وخت کښې د دعاء استحباب په دې وجه وی چه دعاء د اولیاء او مقربین په ګاونډ کښې قبلیږی او کوم ځائې کښې چه د صالحینو وجود وی هلته برکت نازلیږی.

او د دې نه په روستو روایت کښې دی

## بَابُ نَهِيقِ الْحَمِيرِ وَنُبَاحِ الْكِلَابِ

**بابه ...... د خر او د سپی آواز**

[٥١٠٣](2) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا سَمِعْتُمْ نُبَاحَ الْكِلَابِ وَنَهِيقَ الْحُمُرِ بِاللَّيْلِ، فَتَعَوَّذُوا بِاللَّهِ، فَإِنَّهُنَّ يَرَيْنَ مَا لَا تَرَوْنَ".

د حضرت جابر بن عبد الله بیان دي رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کله چه تاسو د شپې د خر او د

(1): صحيح البخاري/بدء الخلق ١٥ (٣٣٠٣)، صحيح مسلم/الذكر والدعاء ٢٠ (٢٧٢٩)، سنن الترمذي/الدعوات ٥٧ (٣٤٥٩)، (تحفة الأشراف: ١٣٦٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٠٦، ٣٢١، ٣٦٤) (صحيح)

(2): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٢٤٩٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٠٦) (صحيح)

سپی آواز واورئ نو دَ الله نه پناه طلب کړئ - بې شکه دا هغه څه وینی چه هغه تاسو نهٔ وینئ.
چه کله تاسو خلق د شپې د سپو د غپاری آواز واورئ یا د خرو نو په دغه وخت کښې د
الله پاک نه پناه غواړئ ﴿ فَإِنَّهُنَّ يَرَيْنَ مَا لاَ تَرَوْنَ ﴾ ځکه چه بیشکه دا ځناور هغه څیزونه وینی
کوم چه تاسو ته نه ښکاره کیږی شیاطین او آفتونه د اسمان نه نازلیدونکی.

[٥١٠٤](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ خَالِدِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِلَالٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ. ح وحَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَرْوَانَ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْهَادِ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ عُمَرَ بْنِ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ وَغَيْرِهِ، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَقِلُّوا الْخُرُوجَ بَعْدَ هَدْأَةِ الرِّجْلِ، فَإِنَّ لِلَّهِ تَعَالَى دَوَابَّ يَبُثُّهُنَّ فِي الْأَرْضِ"، قَالَ ابْنُ مَرْوَانَ: فِي تِلْكَ السَّاعَةِ، وَقَالَ: فَإِنَّ لِلَّهِ خَلْقًا، ثُمَّ ذَكَرَ نُبَاحَ الْكَلْبِ وَالْحَمِيرِ نَحْوَهُ، وَزَادَ فِي حَدِيثِهِ، قَالَ ابْنُ الْهَادِ: وَحَدَّثَنِي شُرَحْبِيلُ الْحَاجِبُ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

د حضرت جابر بن عبد الله او د حضرت علی بن عمر بن حسین بن علی رضی الله عنه نه روایت دې
هغوی فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل کله چه دَ قدمونو دَ آواز بندیدل اوشی نو ډیر
کم بهر ته اوځئ - بې شکه دَ الله تعالیٰ په مخلوق کښې څه ځناور دی چه هغې لره الله پاک
خوره وی - ابراهیم بن مروان فرمائی چه په دغه وخت کښې مهٔ اوځئ او دَ [ فان لله دواب ] په
ځائې باندې ئې دا الفاظ وئیلې دی [ فان لله خلقا ] بیا ئې دَ خر او دَ سپی دَ آواز ذکر کړې
دې، لکه څنګه چه په مذکوره روایت کښې دی -

﴿ أَقِلُّوا الْخُرُوجَ بَعْدَ هَدْأَةِ الرِّجْلِ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه د قدمونو د سکون نه پس
(یعنی کله چه خلق ګرځیدل د شپې په وخت کښې بند کړی) نو د کورونو نه بهر وتل کم
کړئ، ځکه چه د الله پاک مخلوق ډیر داسې دې کوم چه په دې وخت کښې یعنی د شپې په
وخت کښې په زمکه باندې خوارهٔ کړی، یعنی ضرری ځناور او جنات وغیره. لهذا د شپې
په سړکونو باندې د ګرځیدلو نه احتیاط کول پکار دی.

# بَابٌ فِي الصَّبِيِّ يُولَدُ فَيُؤَذَّنُ فِي أُذُنِهِ (٢)

**باب: ١٠٦، ١٠٧ - دَ ماشوم په غوږ کښې دَ آذان کولو بیان:**

[٥١٠٥](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَاصِمُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَذَّنَ فِي أُذُنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ حِينَ وَلَدَتْهُ فَاطِمَةُ بِالصَّلَاةِ".

حضرت عبید الله بن رافع د خپل پلار نه روایت کوی هغه فرمائی چه کله سیده فاطمې رضی الله عنها
حضرت حسن بن علی رضی الله عنه لره اوزیږولو نو ما اولیدل چه رسول الله ﷺ دَ هغه په غوږ کښې
دَ مونځ والا آذان کړې وو -

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩١٣٨، ٢٢٥٥، ٢٢٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٥٥) (صحيح)

(٢) في هامش البذل نقلا عن حاشية شرح الاقناع ٤/٢٧٢ يسن ايضا ان يقراء في اذن المولود قل هو الله احد قال بعضهم خاصيتها ان من فعل به ذلك لم يزن مدة عمره اهـ

(٣): سنن الترمذي الأضاحي ١٧ (١٥١٤)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٢٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٩، ٣٩١، ٣٩٢) (ضعيف)

سيدنا ابورافع رضي الله عنه د رسول الله ﷺ آزاد کړي شوي غلام او خادم فرمائي چه کله د فاطمي رضي الله عنها ځوئي سيدنا حسن رضي الله عنه پيدا شو نو ما اوليدل چه رسول الله ﷺ د هغه په غوږ کښې آذان ورکړو، د دي حديث نه د نوی پيدا شوی ماشوم په غوږ کښې د اذان سنيت ثابتيږي. او په شرح السنة کښې روايت دي چه عمر بن عبدالعزيز رحمه الله به د ماشوم په ښي غوږ کښې اذان او په ګس غوږ کښې اقامت کولو. (عون عن المرقاة) وهكذا فى حاشية الترمذى، د اقامت په باره کښې حافظ په تلخيص کښې ليکلي دی چه يو مرفوع حديث هم دي: اخرجه ابن السنى من حديث الحسين بلفظ من ولد له مولود فاذن فى اذنه اليمنى واقام فى اليسرى لم تضره ام الصبيان، وام الصبيان هى التابعة من الجن (عون).

په بل روايت کښې دی سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي چه رسول الله ﷺ ته به ماشومان راوستلي شو، رسول الله ﷺ به د هغوی دپاره د برکت دعاء فرمائيله او د هغوی تحنيک به ئي هم فرمائيلو،

[٥١٠٦]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ. ح وحَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُؤْتَى بِالصِّبْيَانِ، فَيَدْعُو لَهُمْ بِالْبَرَكَةِ"، زَادَ يُوسُفُ: وَيُحَنِّكُهُمْ، وَلَمْ يَذْكُرْ بِالْبَرَكَةِ.

د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چه نبی کريم ﷺ ته به واړهٔ بچي راوستي شو نو حضور ﷺ به دَ هغوی دپاره دَ برکت دعاګاني کولي - يوسف بن موسیٰ مزيد فرمائيلي دی ... چه حضور ﷺ به دَ هغوی تحنيک هم کولو ... او دَ برکت ذکر ئي نهٔ دي کړي -

د تحنيک ذکر اوس څو بابونه مخکښې شوې دې، او د باب په دريم روايت کښې دی سيده عائشه رضي الله عنها فرمائي:

[٥١٠٧]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ أَبِي الْوَزِيرِ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَطَّارُ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أُمِّ حُمَيْدٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ رُئِيَ، أَوْ كَلِمَةً غَيْرَهَا فِيكُمُ الْمُغَرِّبُونَ؟ قُلْتُ: وَمَا الْمُغَرِّبُونَ؟ قَالَ: الَّذِينَ يَشْتَرِكُ فِيهِمُ الْجِنُّ".

د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل چه ايا په تاسو کښې څوک مغرّب هم موندلي شوي دي؟ ما عرض اوکړو دَ مغرّب نه څه مراد دی حضور ﷺ اوفرمائيل هغه ماشوم چه په هغه کښې جن [ پيري ] شريک شوي وی -

**قوله:** ﴿قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « هَلْ رُئِيَ - أَوْ كَلِمَةً غَيْرَهَا - فِيكُمُ الْمُغَرِّبُونَ ». قُلْتُ وَمَا الْمُغَرِّبُونَ قَالَ « الَّذِينَ يَشْتَرِكُ فِيهِمُ الْجِنُّ »﴾

چه يوه ورځ رسول الله ﷺ زما نه تپوس اوکړو چه آيا په تاسو کښې مغربين ([3]) هم په کتلو

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٨٥٤، ١٧٢٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٦٧٦) (صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٩٧٨) (ضعيف الإسناد)

[3]) دا د اسم فاعل صيغه ده د باب تفعيل نه هم مستعمل دي او د باب افعال نه هم وفي البذل قيل المغرب من الانسان من خلق من ماء ماء الانسان والجن وكتب عليه الشيخ في هامشه فيكون الحديث حجة لمن قال انهم يتناكحون والمسئلة خلافته مبسوطة في الفتح ٢١٧/٦ وفي الشامي ٢٨١/٢ ولا يجوز نكاح الانس مع الجن واجازه الحسن البصري)

کښې راځي، يعنې موندلې شي، هغه فرمائي ما تپوس اوکړو چه مغربين څوک دی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه په چا کښې د جناتو شرکت وی، يعنې د چا په پيدائش او وجود کښې چه د هغوی شرکت وی، چه د هغې نه مراد شيطان دې، او د شرکت نه مراد شرکت فی الجماع دې شارحينو ليکلي دی چه د کومې جماع په وخت بسم الله او نه لوستلې شی په هغې کښې د شيطان شرکت پيدا شی يعنې بې بسم الله اولاد او داسې ماشوم ته مغرب اووئيلې شو چه هغه کښې يو عرق غريب داخل شوې دې يعنې د غير جنس نسب په هغه کښې شامل شوې دې، او دويم قول د مغربين په باره کښې دا دې چه د دې نه مراد اولاد زنا دې او د مشارکة نه مراد د شيطان انسان لره په زنا باندې تيارول او د هغې ترغيب ورکول دی.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَسْتَعِيذُ مِنَ الرَّجُلِ

**باب: ۱۰۷، ۱۰۸ - که چرې څوک د چا نه امان او پناه طلب کړی**

[٥١٠٨]([1]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ الْجُشَمِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، قَالَ نَصْرٌ ابْنُ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي نَهِيكٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنِ اسْتَعَاذَ بِاللَّهِ فَأَعِيذُوهُ، وَمَنْ سَأَلَكُمْ بِوَجْهِ اللَّهِ فَأَعْطُوهُ"، قَالَ عُبَيْدُ اللَّهِ: مَنْ سَأَلَكُمْ بِاللَّهِ.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی څوک چه له تاسو نه دَ الله په نوم باندې پناه طلب کړی نو هغه ته پناه ورکړئ، او څوک چه له تاسو نه دَ الله په مخ باندې سوال اوکړی نو هغه ته ورکوئ -" دَ عبيد الله الفاظ دی : [ من سألکم بالله ]

[٥١٠٩]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ الْمَعْنَى، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اسْتَعَاذَكُمْ بِاللَّهِ فَأَعِيذُوهُ، وَمَنْ سَأَلَكُمْ بِاللَّهِ فَأَعْطُوهُ"، وَقَالَ سَهْلٌ وَعُثْمَانُ: وَمَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ، ثُمَّ اتَّفَقُوا: وَمَنْ آتَى إِلَيْكُمْ مَعْرُوفًا فَكَافِئُوهُ، قَالَ مُسَدَّدٌ وَعُثْمَانُ: فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا، فَادْعُوا اللَّهَ لَهُ حَتَّى تَعْلَمُوا أَنْ قَدْ كَافَأْتُمُوهُ.

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څوک چه ستاسو نه دَ الله په واسطه سره امان طلب کړی نو هغه ته امان ورکړئ او څوک چه ستاسو نه دَ الله په واسطه سره سوال اوکړی نو هغه ته ورکړئ، سهل او عثمان وئيلي دی او څوک چه تاسو ته دعوت درکړی هغه قبول کړئ -" او بيا دا ټول راويان متفق دی : او څوک چه تاسو سره نيکی اوکړی نو د هغې بدله ورکړئ، مسدد او عثمان وئيلي دی که چرې بدله نهٔ مومئ نو دَ هغه دپاره دَ الله نه دُعا غواړئ ترڅو پورې چه ستاسو يقين راشی چه تاسو دَ هغه بدله پوره کړه.

په حديث الباب کښې دی چه ﴿ مَنِ اسْتَعَاذَ بِاللَّهِ فَأَعِيذُوهُ وَمَنْ سَأَلَكُمْ بِوَجْهِ اللَّهِ فَأَعْطُوهُ ﴾ چه کوم سړې د الله پاک واسطه درکولو سره ستاسو نه پناه اوغواړی يعنې د خپل دشمن نه نو هغه ته پناه ورکړه او د هغه درخواست پوره کړه او هم دغه شان هغه سړې کوم چه د الله پاک واسطه درکولو سره ستا نه سوال کوی نو هغه ته ورکړه او څوک چه تاسو ته دعوت درکړی

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٥٧٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٤٩/١، ٢٥٠) (حسن صحيح)
[2]: انظر حديث رقم: (١٦٧٢)، (تحفة الأشراف: ٧٣٩١) (صحيح)

هغه قبول کړئ او خوک چه تاسو سره ښه سلوک کوی ﴿ فَكَافِئُوهُ ﴾ نو د هغه مکافات کوئ یعنی د هغه د احسان بدله ورکوئ، ﴿ فان لم تجدوا فادعوا له ﴾ پس که د بدلې ورکولو پاره تاسو څۀ بیا نه مومئ نو د هغه دپاره په دویمه درجه کښې صرف دعاء کوئ تردې چه پوهه شئ چه تاسو د هغه مکافات او پوره والې اوکړو.

## بَابٌ فِي رَدِّ الْوَسْوَسَةِ

### باب-۱۰۸، ۱۰۹-وسوسه او دَ هغې علاج

[۵۱۱۰]() حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا النَّضْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ يَعْنِي ابْنَ عَمَّارٍ، قَالَ: وحَدَّثَنَا أَبُو زُمَيْلٍ، قَالَ: سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، فَقُلْتُ: "مَا شَيْءٌ أَجِدُهُ فِي صَدْرِي؟ قَالَ: قُلْتُ؟ وَاللَّهِ مَا أَتَكَلَّمُ بِهِ، قَالَ: فَقَالَ لِي: أَشَيْءٌ مِنْ شَكٍّ؟، قَالَ: وَضَحِكَ، قَالَ: مَا نَجَا مِنْ ذَلِكَ أَحَدٌ، قَالَ: حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: فَإِنْ كُنْتَ فِي شَكٍّ مِمَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ فَاسْأَلِ الَّذِينَ يَقْرَءُونَ الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكَ سورة يونس آية ٩٤، قال: فَقَالَ لِي: إِذَا وَجَدْتَ فِي نَفْسِكَ شَيْئًا، فَقُلْ: هُوَ الْأَوَّلُ، وَالْآخِرُ، وَالظَّاهِرُ، وَالْبَاطِنُ، وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ".

حضرت ابو زمیل (سماک بن ولید حنفی) فرمائی چه ما د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه سوال اوکړو دَ هغه کیفیت به څه وی کوم چه زۀ په خپله سینه کښې مومم؟ هغه پوښتنه اوکړه هغه څه دی؟ ما اووې په الله قسم زۀ هغې لره په ژبه باندې نۀ شم راوستې - هغوی اووې آیا دا دَ شک شبهې خبره ده؟ وې خندل او اوئې فرمائیل : ددې نه چاته هم نجات نشته دې - تردې پورې چه الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو -{ فَإِنْ كُنْتَ فِي شَكٍّ مِمَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ فَسْئَلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ الْكِتَابَ }که چرې تاسو ته په هغه څیز کښې شک وی کوم چه مونږ نازل کړی دی نو دهغه کسانو نه تپوس اوکړئ کوم چه هغه کتاب لره لولی چه ستاسو نه مخکښې نازل شوې دی، بیا هغه ماته اوفرمائیل : کله چه تۀ په خپل نفس کښې څه محسوس کړې نو دا وائۀ، { هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ، وَ هُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ }دغه الله دَ ټولو نه اول او دَ ټولو نه آخر دې، هم دغه الله ظاهر او باطن دې او هغه په هر څیز باندې ښۀ خبر دار دې -

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا أَبُو زُمَيْلٍ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ مَا شَيْءٌ أَجِدُهُ فِي صَدْرِي قَالَ مَا هُوَ قُلْتُ وَاللَّهِ مَا أَتَكَلَّمُ بِهِ ﴾

ابوزمیل وائی چه ما ابن عباس رضی الله عنهما ته عرض اوکړو چه معلومه نه ده زما په سینه کښې خیالات راځی هغوی تپوس اوکړو څه دې هغه خیال؟ ما اووې والله چه زه خو هغه په ژبه نه راوباسم، په دې باندې هغوی اوفرمائیل چه د څه شک شبهې خبره ده؟ په دې باندې هغوی په خندا شو نو ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمائیل د شک او شبهې نه خو تر نن پورې خوک هم نه دی خلاص شوی تردې چه په قرآن کریم کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په باره کښې دا آیت راغلو، ﴿ فان كنت في شك مما انزلنا اليك الاية ﴾ او بیا ابن عباس رضی الله عنهما ماته اوفرمائیل چه کله ستا دا قسم څه شک وی نو دا کلمات لوله ﴿ هُوَ الْأَوَّلُ وَالآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴾.

د دې نه پس په دویم روایت کښې دی سیدنا ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٦٧٧) (حسن الإسناد)

خدمت کښې څو صحابه کرام رضي الله عنهم راغلل او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ مونږ په خپلو زړونو کښې داسې وسوسې او خيالات بيا مومو چه د هغې په ژبه باندې راوستل ډيره لويه ګناه ګنړو ، که مونږ ته ټوله دنيا هم ملاؤ شي نو بيا هم مونږ هغه په خپله ژبه باندې ادا کول نه غواړو ، نو هم په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه آيا تاسو په خپل ځان کښې دا څيز بيا مومئ، يعنی د دې وسوسې بد ګنړل چه که ټوله دنيا درته هم ملاؤ شو نو بيان به ئې نه کړئ، هغوی عرض اوکړو او هم دغه شان ده، رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ ذَاكَ صَرِيحُ الإِيمَانِ ﴾ دا خو خالص ايمان دې يعنی د ايمان د وجې نه تاسو دا خيال بد ګنړئ بيا د فکر څۀ خبره ده.

[٥١١١](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلٌ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: جَاءَهُ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِهِ، فَقَالُوا: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، نَجِدُ فِي أَنْفُسِنَا الشَّيْءَ نُعْظِمُ أَنْ نَتَكَلَّمَ بِهِ أَوِ الْكَلَامَ بِهِ، مَا نُحِبُّ أَنَّ لَنَا وَأَنَّا تَكَلَّمْنَا بِهِ، قَالَ: أَوَقَدْ وَجَدْتُمُوهُ؟ قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: ذَاكَ صَرِيحُ الْإِيمَانِ".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه څو صحابهٔ کرام رضي الله عنهم حضور ﷺ ته راغلل اووې وئيل اې دَ الله رسوله ! مونږه په خپلو زړونو کښې څه داسې خيالات محسوسه وو چه مونږ داهم ډير لوې ګنړو چه هغه په خپلو خلو باندې راولو - مونږ دا هم نۀ خوښه وو چه مونږ ته دې د دنيا مال ملاو شي او هغې لره مونږ په خپلو خلو باندې راولو - حضور ﷺ اوفرمائيل ايا تاسو دا کيفيت بيا مومئ؟ هغوی اووې او حضور ﷺ اوفرمائيل دا صريح ايمان دې.

﴿ ٥قَدْ وَجَدْتُمُوهُ ﴾ کښې ضمير راجع دې د استعظام طرف ته چه په هغې باندې لفظ د ﴿ نُعْظِمُ أَنْ نَتَكَلَّمَ بِهِ ﴾ دلالت کوی او دا ضمير د وسوسې طرف ته راجع نه دې ځکه چه وسوسه خو د شيطان د طرف نه وی، صاحب وسوسه داسې هم پوهولې شی لکه چه د بعض علماء کرامو نه منقول دی چه شيطان ستا په زړه کښې وسوسې خو ددې دپاره اچوی چه تاسره د ايمان دولت دې هغه هغې لره اخستل غواړی، غل خو هم په هغه کورکښې داخليږی چرته چه دولت او مال وی په خالی او وران کور باندې به غل څه اوکړی، بعض صوفياء د وسوسې علاج هم دا ليکلې دې چه د وساوس په وخت کښې داسې سوچ کول پکار دی چه اطمينان پيدا شی او شيطان په خپل مقصد کښې ناکام شی ځکه چه د هغه مقصود انسان لره په شک او پريشانئ کښې اچولو سره د هغه اطمينان ختمول وی.

د دې نه په روستو روايت کښې دی چه يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راتلو سره د وسوسو شکايت اوکړو او دا ئې هم اوئيل چه زه اوسوزم او سکارهٔ شم نو دا زما ډيره خوښه ده د دې نه چه په خپله ژبه باندې هغه وسوسه ښکاره کړم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : ﴿ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي رَدَّ كَيْدَهُ إِلَى الْوَسْوَسَةِ ﴾ چه ټول تعريفونه د هغه الله پاک دپاره دی چه چا د شيطان چال او تدبير د وسوسې طرف ته واپس کړو،

[٥١١٢](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَابْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ ذَرٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٦٥٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم الإيمان ٦٠ (١٣٢)، مسند احمد (٤٤١/٢) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٧٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٣٢/١، ٣٤٠) (صحيح)

أَحَدُنَا يَجِدُ فِي نَفْسِهِ يُعَرِّضُ بِالشَّيْءِ لَأَنْ يَكُونَ حُمَمَةً أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ أَنْ يَتَكَلَّمَ بِهِ، فَقَالَ: اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ، الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي رَدَّ كَيْدَهُ إِلَى الْوَسْوَسَةِ". قَالَ ابْنُ قُدَامَةَ: رَدَّ أَمْرَهُ مَكَانَ رَدَّ كَيْدَهُ.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي چه يو کس د نبي کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اووې وئيل اې د الله رسوله ! زمونږ په زړهٔ کښې څه خيالات راځي او هغه په خپلې اشارې او کنائې سره داسې وئيل چه دې خيالاتو لره په ژبه باندې د راوستلو په ځائې کوئله کيدل مونږ ته زيات خوښ دی - نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر - حمد دې هغې الله لره چه هغه د شيطان مکر او فريب لره رد کړو وسوسې طرف ته -" ابن قدامه د [رد کيده] په ځائې باندې [ردّ امره] وئيلې دی -

يعنی د شيطان اصل مقصد خو د ايمان نه وتل دی چه انسان د ايمان نه خارج شي خو په دې کښې خو کامياب نه شو نو هغه سوچ اوکړو چه کم از کم چه دا سړې د کفر په وسوسه کفر کښې اخته کړي، په حقيقت د کفر کښې خو ئې اخته نه کړې شو، لهذا په دې باندې انسان لره پکار دی چه په ځائې د پريشانه کيدو د الله پاک شکر ادا کړي.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَنْتَمِي إِلَى غَيْرِ مَوَالِيهِ

**باب: ۱۰۹، ۱۱۰ - غلام چه چا بل چا لره خپل مالک اوښائی يا څوې چا بل لره خپل پلار اوښائی**

[٥١١٣](١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَاصِمٌ الْأَحْوَلُ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو عُثْمَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ، قَالَ: سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ، وَوَعَاهُ قَلْبِي مِنْ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ، وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ غَيْرُ أَبِيهِ، فَالْجَنَّةُ عَلَيْهِ حَرَامٌ"، قَالَ: فَلَقِيتُ أَبَا بَكْرَةَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ: سَمِعَتْهُ أُذُنَايَ وَوَعَاهُ قَلْبِي مِنْ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ عَاصِمٌ: فَقُلْتُ: يَا أَبَا عُثْمَانَ، لَقَدْ شَهِدَ عِنْدَكَ رَجُلَانِ أَيُّمَا رَجُلَيْنِ؟ فَقَالَ: أَمَّا أَحَدُهُمَا: فَأَوَّلُ مَنْ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ فِي الْإِسْلَامِ يَعْنِي سَعْدَ بْنَ مَالِكٍ، وَالْآخَرُ: قَدِمَ مِنَ الطَّائِفِ فِي بِضْعَةٍ وَعِشْرِينَ رَجُلًا عَلَى أَقْدَامِهِمْ، فَذَكَرَ فَضْلًا، قَالَ النُّفَيْلِيُّ: حَيْثُ حَدَّثَ بِهَذَا الْحَدِيثِ: وَاللَّهِ إِنَّهُ عِنْدِي أَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ، يَعْنِي قَوْلَهُ: حَدَّثَنَا، وَحَدَّثَنِي، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ: وَسَمِعْتُ أَبَا دَاوُدَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ أَحْمَدَ، يَقُولُ: لَيْسَ لِحَدِيثِ أَهْلِ الْكُوفَةِ نُورٌ، قَالَ: وَمَا رَأَيْتُ مِثْلَ أَهْلِ الْبَصْرَةِ كَانُوا تَعَلَّمُوهُ مِنْ شُعْبَةَ.

د حضرت سعد بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي چه زما غوږونو د نبي کريم ﷺ نه اوريدلي دی او زړهٔ مې ياد کړې دی حضور فرمائيلي دی : چا چه د خپل پلار نه سوا په بل چا دعویٰ اوکړه او دهٔ ته علم وو چه زما پلار بل څوک دې نو په دهٔ باندې جنت حرام دې - ابوعثمان نهدی وائی بيا زهٔ د حضرت ابوبکره سره ملاؤ شوم نو ما ورته دا حديث بيان کړو نو هغه (تصديق اوکړو او) اوفرمائيل دې لره د محمد ﷺ نه زما غوږونو اوريدلي دی او زما زړهٔ ياد کړې دی - عاصم (احول) بيان کړې دې فرمائی چه ما (خپل شيخ) ابوعثمان ته اووې چه ستاسو په وړاندې دوو کسانو ګواهی کړيده دا څنګه کسان دی؟ هغوی اوفرمائيل يو په دوی کښې هغه دې چه د الله په لار کښې ...... يائې اوفرمائيل ...... په اسلام کښې د

(١): صحيح البخاري/المغازي ٥٦ (٤٣٢٦)، صحيح مسلم/الإيمان ٢٧ (٦٣)، سنن ابن ماجه/الحدود ٣٦ (٢٦١٠)، (تحفة الأشراف: ٣٩٠٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٦٩، ١٧٤، ١٧٩، ٥/٣٨، ٤٦)، سنن الدارمي/السير ٨٣ (٢٥٧٢)، الفرائض ٢ (٢٩٠٢) (صحيح)

ټولو نه مخکښې غشې ويشتلې دې،يعنې حضرت سعد بن مالک ﷛،او دويم (حضرت ابوبکره ﷛) هغه دې چه هغه د طائف نه پيدل راغلې وو او د هغه خلقو تعداد د شلو نه زيات وو او د هغوی فضيلت ئې بيان کړوامام ابوداود فرمائی چه نفيلي وئيلي دي : چونکه شيخ دا حديث د [ حدثنا ] او د [ حدثنی ] په الفاظو سره بيان کړې دې نو دا ماته د شهتو نه هم زيات خوږ دې -امام ابوداود ﷫ فرمائی چه ما د امام احمد بن حنبل ﷫ نه اوريدلي دي هغه فرمائيل : د کوفيانو په حديث کښې نور دې،او فرمائی چه ما د اهل بصره په شان نۀ دی ليدې - هغوی د شعبه نه علم حاصل کړې وو -

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنِي أَبُو عُثْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ سَمِعَتْهُ أُذُنَایَ وَوَعَاهُ قَلْبِي مِنْ مُحَمَّدٍ صلى الله عليه وسلم أَنَّهُ قَالَ « مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ غَيْرُ أَبِيهِ فَالْجَنَّةُ عَلَيْهِ حَرَامٌ ».قَالَ فَلَقِيتُ أَبَا بَكْرَةَ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ.....مِنْ مُحَمَّدٍ -صلى الله عليه وسلم ﴾

## شرح الحديث :

د متن حديث ترجمه ده چه کوم سړې خپل ځان لره د خپل حقيقي پلار نه علاوه بل طرف ته منسوب کولو سره اوائی سره د دې چه هغه ته پته ده چه هغه زما پلار نه دې نو جنت په هغه باندې حرام دې، په اسلام کښې د ولد الزنا نسب د زانی نه نۀ ثابتيږی او زانی د ولد الزنا شرعی پلار نه دې لهذا که يو ولد الزنا سره د علم نه خپل ځان د زانی طرف ته منسوب کړي نو هغه به په دې وعيد کښې داخل وی، ابوعثمان دا حديث د سعد بن ابی وقاص ﷛ نه اوريدلي وو هغوی فرمائی چه د دې حديث د اوريدلو نه پس ما د ابوبکره ﷛ سره ملاقات اوکړو او هغه ته مې دا حديث واورولو هغوی اوفرمائيل چه دا حديث خو ما خپله هم د رسول الله ﷺ نه براه راست اوريدلي دي او محفوظ کړې مې دي نو ګويا اوس دا حديث ابوعثمان ته د دوه صحابو نه اورسيدلو اولا د سعد بن ابی وقاص ﷛ او ثانيا د ابوبکره ﷛ نه هم په دې وجه وړاندې په روايت کښې دی ﴿ قَالَ عَاصِمٌ فَقُلْتُ يَا أَبَا عُثْمَانَ الخ﴾ عاصم د ابوعثمان شاګرد دې هغوی خپل استاد ابوعثمان ته اووې چه د دې حديث تصديق اوس تاسو ته د دوه صحابه کرامو ﷡ نه شوې دې کوم چه دواړه د ډيرې اوچتې مرتبې دی، ﴿ فَقَالَ أَمَّا أَحَدُهُمَا الخ ﴾ نو په دې باندې ابوعثمان اوفرمائيل چه او بالکل صحيح دې اووې چه اوس دا حديث ماته د دوه لويو درجو والا صحابه کرامو ﷡ نه حاصل شو، او بيا ئې وړاندې د هغوی اوصاف بيان کړل چه په هغوی کښې يو خو هغه دې چا چه په جهاد کښې د ټولو نه اول غشې چلولې دې يعنی سعد بن ابی وقاص، او دويم يعنی ابوبکره ﷛ کوم چه ثقفی دې هغه د حصن طائف نه راکوزيدو سره د شلو نه زياتو ملګرو سره د رسول الله ﷺ په لښکر کښې شامل شو.

## د زياد بن عبيد ثقفی تذکره :

دا ابوعثمان د دې حديث په اوريدلو باندې د ابوبکره ﷛ سره ولې ملاؤ شو، د دې مقصد دا دې چه دا حضرت ابوبکره ﷛ د زياد اخيافی رور وو او دې زياد به ځان منسوب کولو د غير اَب طرف ته يعنی د زانی طرف ته او ځان ته به ئې زياد بن ابی سفيان وئيلو حال

دا چه ابوسفیان د هغه پلار نه وو بلکه هغه په زمانه جاهلیت کښې د اسلام نه مخکښې د هغه د مور سره زنا کړې وه او د هغه د مور خاوند عبید دې نو اصولا د هغه د هغه نسبت الولد للفراش د قاعدې د لاندې د عبید طرف ته کیدل پکار دی زیاد ابن عبید، نه زیاد ابن ابی سفیان، نو د هغه مقصد د ابوبکره رضی الله عنه سره په ملاویدو کښې دا وو چه هغه زیاد د دې نه منع کړی یعنی د نسبت الی غیرالاب نه او دا حدیث هغوی هغه ته واورولو نو هغوی اووې چه دا حدیث خو ماته د مخکښې نه معلوم دې، خو په ابوداؤد کښې روایت مختصر دې، هغوی په جواب کښې دا هم فرمائیلې وو چه ما خو په دې سلسله کښې د زیاد سره خبره کړې ده خو هغه او نه منله، دا روایت چه په هغې دا ذکر دې په صحیح بخاری کښې دې، او د دې زیاد او عبیدالله بن زیاد ذکر هم اوس نژدې په باب الحوض کښې تیر شوې دې، په صحیح مسلم صفحه ۵۷ کتاب الایمان کښې دی : عن ابی عثمان لما ادعی زیاد لقیت ابابکرة الخ ........امام نووی د دې په شرح کښې لیکی : وَذَلِكَ أَنَّ زِيَادًا هَذَا الْمَذْكُورُ هُوَ الْمَعْرُوف بِزِيَادِ بْن أَبِي سُفْيَان،وَيُقَال فِيهِ : زِيَادُ ابْن أَبِيهِ،وَيُقَال : زِيَاد بْن أُمِّهِ،وَهُوَ أَخُو أَبِي بَكْرَة لِأُمِّهِ،وَكَانَ يُعْرَف بِزِيَادِ بْن عُبَيْد الثَّقَفِيِّ،ثُمَّ اِدَّعَاهُ مُعَاوِيَة بْن أَبِي سُفْيَان وَأَلْحَقَهُ بِأَبِيهِ أَبِي سُفْيَان الی آخر ما ذکر وفیه: كَانَ أَبُو بَكْرَة رَضِيَ اللَّه عَنْهُ مِمَّنْ أَنْكَرَ ذَلِكَ،وَهَجَرَ بِسَبَبِهِ زِيَادًا،وَحَلَفَ أَنْ لَا يُكَلِّمَهُ أَبَدًا .وَلَعَلَّ أَبَا عُثْمَان لَمْ يَبْلُغهُ إِنْكَار أَبِي بَكْرَة الخ.

**قوله:** ﴿ قَالَ أَبُو عَلِيٍّ سَمِعْتُ أَبَا دَاوُدَ قَالَ قَالَ النُّفَيْلِيُّ حَيْثُ حَدَّثَ بِهَذَا الْحَدِيثِ وَاللَّهِ إِنَّهُ عِنْدِی أَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ یعنی قوله حدثنا وحدثنی﴾، نفیلی د ابوداؤد استاد دې او هغوی دا حدیث په صیغه د تحدیث بیان کړې دې حدثنا زهیر، نو هم د دې په باره کښې مصنف رحمه الله د نفیلی قول نقل فرمائی چه صیغه د حدثنا او حدثنی یعنی په دې لفظ سره حدیث روایت کول زما په نزد د شهدو نه هم زیات خوږ دې ځکه چه دا لفظ په سماع من غیر واسطة کښې صریح الدلالة دې، په خلاف د عنعنه یعنی روایت په عن سره چه په دې کښې د تدلیس او د واسطې امکان باقی پاتې وی، د دې نه پس امام ابوداؤد رحمه الله د خپل دویم استاد امام احمد بن حنبل قول نقل فرمائی : سَمِعْتُ أَحْمَدَ يَقُولُ لَيْسَ لِحَدِيثِ أَهْلِ الْكُوفَةِ نُورٌ .....د حدیث نه مراد روایت حدیث دې نه نفس حدیث، او مطلب دا دې چه د اهل کوفه د روایت چه کوم طرز او طریقه ده په هغې کښې رڼرا او وضاحت نه وی یعنی هغه خلق په خپلو سندونو کښې د تحدیث او عنعنې فرق نه ښکاره کوی چه د هغې په وجه د روایت حال واضح او منکشف کیږی نه او وړاندې فرمائی ﴿ وَمَا رَأَيْتُ مِثْلَ أَهْلِ الْبَصْرَةِ كَانُوا تَعَلَّمُوهُ مِنْ شُعْبَةَ ﴾ چه اهل بصره د دې څیزونو ډیر اهتمام کوی، په اصل کښې هغوی دا څیز د شعبه نه حاصل کړې دې یعنی د اسانید بیانولو طریقه د عنعنه او تحدیث وغیره د فرقونو خیال ساتل، په بذل کښې د حضرت گنگوهی د تقریر نه دی چه د اهل کوفه نه مراد ټول اهل کوفه نه دی بلکه د دې نه غیر اصحاب ابی حنیفه مراد دی ځکه چه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه اصحاب او د علی رضی الله عنه اصحاب د چا نه چه زیات تر فقه حنفی اخستلې شوې ده او د هغوی شاگردان ټول په ټول د اسانید علی وجهها روایت کوی بلکه د هغوی په حدیث باندې خو د اهل بصره نه زیات نور دې.

[٥١١٤]([1]) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ أَبِي يَعْقُوبَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ يَعْنِي ابْنَ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا زَائِدَةُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ تَوَلَّى قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ، فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ، لَا يُقْبَلُ مِنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَدْلٌ وَلَا صَرْفٌ".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبي كريم ﷺ اوفرمائيل چه كوم غلام د خپل مالكانو نه بغير د چا بل قوم سره تعلق جوړ كړو نو په هغه باندې د الله د فرشتو او د تمامو خلقو لعنت دې - ددهٔ نه به د قيامت په ورځ باندې هيڅ نفل يا فرض عمل قبول نهٔ كړې شي -

## (د ولاء نه كوم ولاء مراد دی؟)

**قوله:** ﴿ مَنْ تَوَلَّى قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴾

په دې حديث كښې د ولاء نه ولاء الموالاة او ولاء العتق دواړه مراد كيدې شي، كه ولاء الموالاة مراد وی نو بيا خو به د ﴿ بغير اذن مواليه ﴾ دا قيد احترازی وی ځكه چه كه د سابق موالی نه اجازت اخستلو سره د نورو خلقو سره عقد مولاة اوكړې شی نو دا جائز ده په دې كښې هيڅ اشكال نشته، او كه بغير د اجازت او بغير د خبر نه د نورو سره عقد موالاة اوكړې شی نو دا به نقض عهد او غدر وی، او كه د مولاة نه مراد ولاء العتق وی، يعنی سړې آزاد كړې شوې غلام دې د يو سړی او بيا هغه نمک حرامی كولو سره خپل عتق منسوب كړی د بل طرف ته او هغه ته خپل مولی العتاقة اوائی نو بيا به په دې صورت كښې بغير اذن قيد احترازی نه وی بلكه د بيان واقع دپاره به وی، ځكه چه د اجازت خو دلته سوال هم نه پيدا كيږی كوم مولی او آقا اجازت وركولې شی خپل آزاد كړې شوې غلام ته چه ته خپل نسبت زما په ځائې د بل طرف ته اوكړی.

مصنف رحمه الله په دې باب كښې درې احاديث ذكر كړی دی په اول حديث كښې ﴿ من ادعى الى غير ابيه ﴾ مذكور دې او په دويم كښې ﴿ من تولى بغير اذن مواليه ﴾ او دريم حديث كوم چه وړاندې راروان دې په هغې كښې دا دواړه احاديث راجمع دی پس د هغې الفاظ دا دی ﴿ من ادعى الى غير ابيه، او انتمى الى غير مواليه ﴾ ....

[٥١١٥]([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ بْنِ جَابِرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ وَنَحْنُ بِبَيْرُوتَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنِ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ أَوِ انْتَمَى إِلَى غَيْرِ مَوَالِيهِ، فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ الْمُتَتَابِعَةُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ".

د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې هغه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی چا چه د خپل پلار نه سوا د چا بل چا سره خپل نسب جوړ كړو يا كوم غلام چه د خپلو مالكانو نه سوا د بل چا سره خپل نسبت جوړ كړو نو په هغه باندې ترقيامته پورې مسلسل د الله لعنت دې.

[1]: صحيح مسلم/العتق ٤ (١٥٠٨)، الحج ٨٥ (١٣٧١)، (تحفة الأشراف: ١٢٣٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٩٨، ٤١٧) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٦١) (صحيح)

# باب فِي التَّفَاخُرِ بِالْأَحْسَابِ

## بابونه ۱۱۰، ۱۱۱ - په حسب، نسب باندې د فخر کولو بیان

[٥١١٦] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مَرْوَانَ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعَافَى. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ وَهَذَا حَدِيثُهُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ أَذْهَبَ عَنْكُمْ عُبِّيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَفَخْرَهَا بِالْآبَاءِ: مُؤْمِنٌ تَقِيٌّ، وَفَاجِرٌ شَقِيٌّ: أَنْتُمْ بَنُو آدَمَ وَآدَمُ مِنْ تُرَابٍ لَيَدَعَنَّ رِجَالٌ فَخْرَهُمْ بِأَقْوَامٍ، إِنَّمَا هُمْ فَحْمٌ مِنْ فَحْمِ جَهَنَّمَ، أَوْ لَيَكُونُنَّ أَهْوَنَ عَلَى اللَّهِ مِنَ الْجِعْلَانِ الَّتِي تَدْفَعُ بِأَنْفِهَا النَّتِنَ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: بې شکه الله تعالی ستاسو نه د جاهلیت نحوست، او په پلار نیکهٔ باندې فخر کول لرې کړې دی - (تاسو لره ئې په ایمان او اسلام باندې معزز کړې ئی) (سړې په دوه قسمه باندې دې) صاحب ایمان، متقی یا فاجر او بدبخت - تاسو ټول د آدم علیه السلام اولاد یې او آدم علیه السلام د خاور نه پیدا وو، ضرور به سړې پرېږدی فخر په اقوامو باندې، هغوی خو (د کفر او شرک په سبب سره) د جهنم کوئیلې جوړ شوې دی، ورنه دا (په قوم باندې فخر کولو والا) د الله تعالیٰ په نزد باندې د تور ګونګټ نه هم زیات ذلیله وی کوم چه د خپلې پوزې په ذریعه سره ګندګئ لره دیکه کوی.

**قوله:** ﴿ إِنَّ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ قَدْ أَذْهَبَ عَنْكُمْ عُبِّيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَفَخْرَهَا بِالْآبَاءِ مُؤْمِنٌ تَقِيٌّ وَفَاجِرٌ شَقِيٌّ ﴾

احساب جمع د حسب ده یعنی خاندانی شرافت چه په هغې باندې خلق فخر کوی. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه د الله پاک انعام او احسان دې چه په دې باندې د هغه شکر فرض دې چه هغه تاسو ته اسلام درکړو او د جاهلیت د زمانې بد عادتونه یعنی په پلارانو او نیکونو باندې فخر کول هغه ئې ستاسو نه زائل کړل، پس اوس په اسلام کښې دا ده چه د عزت (او ذلت) مدار په ایمان او تقوی او فسق او فجور باندې دې، که مومن متقی وی خو باعزت دې، او که فاسق او فاجر وی نو بدبخت او ذلیل دې، یعنی د خپلو اعمالو اعتبار دې، نسبت الی الاباء اصالة معتبر نه دې نه په ښه والی کښې او نه په بدئ کښې، وړاندې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی چه تاسو ټول د ادم علیه السلام اولاد یئ او ستاسو د ټولو پلار ادم علیه السلام د خاورې نه پیدا شوې دې نو د چا چه اصل خاوره وی هغه فخر ولې کوی، وړاندې فرمائی چه کوم خلق په خپلو پلارانو نیکونو باندې فخر کوی او پلاران هم داسې کوم چه د دوزخ خشاک دې یا خو دې دوی په هغوی باندې فخر کول پرېږدی، ګینې د الله پاک په نزد به د سوتې د هغه ګونګټ نه زیات ذلیل وی کوم چه ګندګئ لره په خپله پوزه باندې زغروی او وړاندې ځی، دا حدیث د سنن ترمذی آخری حدیث دې، د دې نه مخکښې امام ترمذی رحمه الله د بعض قبائلو په مناقب باندې څو ابواب قائم کړې وو او بیا د هغوی په فضائلو کښې چه کوم احادیث راغلی دی هغه ئې په هغه ابوابو کښې راوړی وو، بیا ئې د دې ټولو په آخر کښې دا باب راوړې دې.

(١): سنن الترمذي/المناقب ٧٥ (٣٩٥٦)، (تحفة الأشراف: ١٤٣٣٣) (حسن)

# بَابٌ فِي الْعَصَبِيَّةِ

## باب: ١١١، ١١٢ - دَ تعصب او عصبیت بیان

[٥١١٧](١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا سِمَاكُ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "مَنْ نَصَرَ قَوْمَهُ عَلَى غَيْرِ الْحَقِّ، فَهُوَ كَالْبَعِيرِ الَّذِي رُدِّيَ فَهُوَ يُنْزَعُ بِذَنَبِهِ".

حضرت عبد الرحمن دَ خپل پلار حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت کوی هغوی فرمائی چا چه دَ خپل قوم بغیر دَ حق نه مدد اوکړو نو هغه دداسې اوښ په شان دې چه په کوهی کښې پریوتې وی او بیا هغه دَ لکئ نه نیولې شی او بهر راویستې شی.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ مَنْ نَصَرَ قَوْمَهُ عَلَى غَيْرِ الْحَقِّ فَهُوَ كَالْبَعِيرِ الَّذِي رُدِّيَ فَهُوَ يُنْزَعُ بِذَنَبِهِ ﴾

د عصبیت نه مراد حمیة جاهلیت یعنی هغه حمایت او طرفداری کومه چه د جاهلیت په زمانه کښې معروف وه یعنی د خپل قوم حمایت کول په هر حال کښ، که هغوی په حق وی یا په غیر حق، ندا د عصبه نه ماخوذ دې، چه د هغې اطلاق د پلار د طرف والا اقارب او رشته دارانو باندې کیږی، عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه کوم سړې د خپل قوم حمایت او نصرت کوی ناحق نو داسې اوګڼړه چه هغه په ګناه او تباهئ کښې داسې اخته شو چه د هغې نه خلاصې ګران دې ځکه چه هغه دې باره کښې فرمائی چه دا سړې د هغه اوښ په شان دې کوم چه د زمکې نه په کوهی کښې پریوځی او هغه ئې د لکئ نه راکاږی نو ښکاره خبره ده چه دا اوښ داسې بهر نه شی راتلې، خو دا هغه وخت ده چه کله انسان دَ خپل قوم په حمایت کښې بې ځایه او ناحق ولاړ وی. ګینې د خپل قوم حمایت کول د هغوی په حق باندې د کیدو په صورت کښې ډیر ښه خصلت او د فضیلت څیز دې لکه چه وړاندې په حدیث کښې راځی ﴿ خَيْرُكُمُ الْمُدَافِعُ عَنْ عَشِيرَتِهِ مَا لَمْ يَأْثَمْ.... لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ ﴾:

[٥١١٨](٢) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: انْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ.

حضرت عبد الرحمن د خپل پلار عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت کوی هغوی فرمائی چه زهٔ دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم او هغه دَ څرمنې په یوه خیمه کښې ناست وو او دَ مذکوره بالا حدیث په مثل ئې روایت اوکړو.

[٥١١٩](٣) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ بِشْرٍ الدِّمَشْقِيُّ، عَنْ بِنْتِ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ، أَنَّهَا سَمِعَتْ أَبَاهَا، يَقُولُ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، "مَا الْعَصَبِيَّةُ؟ قَالَ: أَنْ تُعِينَ قَوْمَكَ عَلَى الظُّلْمِ".

حضرت واثله بن اسقع رضی الله عنه بیان کوی چه ما عرض اوکړو اې دَ الله رسوله! عصبیت څه څیز دې؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، عصبیت دادې چه تهٔ دَ خپل قوم مدد اوکړې حالانکه هغوی په

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩٣٦٣) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٣٦٣) (صحيح)

(٣): سنن ابن ماجه/الفتن ٧ (٣٩٤٩)، (تحفة الأشراف: ١١٧٥٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٠٧/٤) (ضعيف)

ظلم باندې وي-

[٥١٢٠]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ سُوَيْدٍ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يُحَدِّثُ، عَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ الْمُدْلِجِيِّ، قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "خَيْرُكُمُ الْمُدَافِعُ عَنْ عَشِيرَتِهِ مَا لَمْ يَأْثَمْ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: أَيُّوبُ بْنُ سُوَيْدٍ ضَعِيفٌ.

حضرت سراقه بن مالک بن جعشم مدلجي رضي الله عنه نه روايت دې هغه فرمائي چه رسول الله ﷺ مونږ ته خطبه اوئيله اووې فرمائيل : په تاسو کښې بهتر هغه څوک دې چه هغه دَ خپلې قبيلې والا دفاع کوی خو په دې شرط چه دَ ګناه خبره نهٔ وی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه ايوب بن سويد ضعيف دې -

يعنی کوم سړې چه خپل قوم ته اواز اوکړی د خپل ناحق اعانت دپاره هغه زمونږ نه نهٔ دې او هم دغه شان هغه سړې هم کوم چه د عصبيت په بنياد باندې قتال کوی، او هم دغه شان هغه سړې کوم چه په عصبيت باندې مړ شی يعنی د مرګ د وخته پورې په هغه کښې د عصبيت صفت باقی وی او هغه د دې نه توبه نه وی کړې.

[٥١٢١]([2]) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي أَيُّوبَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْمَكِّيِّ يَعْنِي ابْنَ أَبِي لَبِيبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ، وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ، وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ".

د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله عليه السلام ﷺ اوفرمائيل چاچه د عصبيت دعوت ورکړو هغه زمونږ نه نهٔ دې، چا چه په عصبيت سره جګړا اوکړه هغه زمونږ نه نهٔ دې او څوک چه په عصبيت باندې مړ شو هغه زمونږ نه نهٔ دې."

﴿عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– ابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ﴾

[٥١٢٢]([3]) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عَوْفٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ مِخْرَاقٍ، عَنْ أَبِي كِنَانَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ".

د حضرت ابو موسى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل د قوم د خور ځوې (خوريى) دَ قوم نه (فرد) دې -

**تشريح**: د دې حديث شرح مونږ سره په کتاب الفرائض الخال وارث من لا وارث له د لاندې تير شوې دې.

[٥١٢٣]([4]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ، حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عُقْبَةَ، عَنْ أَبِي عُقْبَةَ وَكَانَ مَوْلًى مِنْ أَهْلِ فَارِسَ، قَالَ: "شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُحُدًا، فَضَرَبْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، فَقُلْتُ: خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْفَارِسِيُّ، فَالْتَفَتَ إِلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: فَهَلَّا قُلْتَ خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْأَنْصَارِيُّ".

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٨١٧) (ضعيف)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣١٨٨) (ضعيف)
[3]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٩١٥١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٦/٤) (صحيح)
[4]: سنن ابن ماجه/الجهاد ١٣ (٢٧٨٤)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٧٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٥/٥) (ضعيف)

دَ حضرت ابوعقبه رضی الله عنه نه روایت دې او دا دَ اهل فارس غلام وو فرمائی چه زهٔ دَرسول الله ﷺ سره په غزوهٔ احد کښې شریک وُم. ما دَ مشرکینو یو کس لره اووهۀ او اومې وئیل واخله زهٔ یو فارسی ځوان یم! نو رسول الله ﷺ ماته متوجه شو اووې فرمائیل تا داسې ولې اونۀ وئیل دا واخله او زهٔ یو انصاری غلام یم!"

**قوله:** ﴿ شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أُحُدًا فَضَرَبْتُ رَجُلاً مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَقُلْتُ خُذْهَا مِنِّى وَأَنَا الْغُلاَمُ الْفَارِسِىُّ فَالْتَفَتَ إِلَىَّ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَ « فَهَلاَّ قُلْتَ خُذْهَا مِنِّى وَأَنَا الْغُلاَمُ الأَنْصَارِىُّ » ﴾

دا حدیث د ابوعقبه رضی الله عنه دې کوم چه اصلا فارسی وو او د انصارو مولی هم دې، اوس ښکاره خبره ده چه په دې دواړو نسبتونو کښې د مولی الانصار نسبت دینی نسبت دې او د فارسی کیدو نسبت قومی نسبت دې، او دا مقام، مقام د فخر وو کوم چه د جهاد په موقع باندې جائز دې او په عصبیت کښې داخل نه دې، نو رسول الله ﷺ خبردارې اوفرمائیلو چه فخر که اوکړې شی نو د دینی نسبت په لحاظ دې اوکړې شی، انصاری کیدل دا یو دینی نسبت دې، د دې په شان یو بل حدیث په کتاب الصلاة کښې تیر شوې دې، باب ما جاء فی اسبال الازار کښې د ابن الحنظلیه کوم لره چه د هغوی نه روایت کونکې ابوالدرداء رضی الله عنه دې چه په هغې کښې دا تیر شوې دی ﴿ خذها منی وانا الغلام الغفاری الحدیث ﴾ دا دواړه احادیث بیل بیل دی.

## بَاب إِخْبَارِ الرَّجُلِ الرَّجُلَ بِمَحَبَّتِهِ إِيَّاهُ

### بابـ ١١٢، ١١٣ - څوک چه دَ چا نیکی اووینی او دَهغه سره محبت کوی

[٥١٢٤](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ثَوْرٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي حَبِيبُ بْنُ عُبَيْدٍ، عَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ وَقَدْ كَانَ أَدْرَكَهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَحَبَّ الرَّجُلُ أَخَاهُ، فَلْيُخْبِرْهُ أَنَّهُ يُحِبُّهُ".

حضرت حبیب بن عبید دَ حضرت مقدام بن معدی کرب رضی الله عنه نه روایت کوی او حضرت بن حبیب ته دَ مقدام ملاقات حاصل وو، هغه دَ نبی کریم ﷺ نه رایت کوی هغه فرمائی چه کله سړې دَ خپل یو رور سره محبت کوی نو پکاردی چه هغه ته دا خبر ورکړی چه هغه له تاسره محبت کوی.

**قوله:** ﴿ إِذَا أَحَبَّ الرَّجُلُ أَخَاهُ فَلْيُخْبِرْهُ أَنَّهُ يُحِبُّهُ ﴾ یعنی که د چا د چا سره خصوصی تعلق او مینه وی نو هغه دې د هغې نه خبر کړی چه هغه د هغه طرف ته متوجه شی او په مینه کښې ئې اضافه اوشی، او د دې نه په روستو حدیث کښې معلومیږی چه کله هغه هغه ته د خپل محبت خبر ورکړی او اوائی چه ﴿ انی احبک فی الله ﴾ نو هغه لره پکار دی چه په جواب کښې ورته داسې اوائی ﴿ احبک الذی احببتنی له ﴾.

د باب په آخری حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ ته عرض اوکړې شو چه که د یو سړی خپل رور سره محبت وی د هغه د عمل خیر د وجې نه خو هغه محبت کونکې خپله

(١): سنن الترمذي/الزهد ٥٣ (٢٣٩٢)، (تحفة الأشراف: ١١٥٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٣٠/٤) (صحيح)

داسي عمل نه کوی نو په دې صورت کښې به څه وی، نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ ﴾ یعنی د انسان حشر به د هغه چا سره وی د چا سره چه د هغه محبت وی، سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه صحابه کرام رضی الله عنهم چه څومره د دې حدیث په اوریدلو باندې خوشحاله شوې دی دومره په یو څیز باندې هم نه دی خوشحاله شوی چه د هغې وجه ښکاره ده چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ټولو نه زیات محبت د رسول الله ﷺ سره وو.

[٥١٢٥](١) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا الْمُبَارَكُ بْنُ فَضَالَةَ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ رَجُلًا كَانَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَرَّ بِهِ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي لَأُحِبُّ هَذَا، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعْلَمْتَهُ؟ قَالَ: لَا، قَالَ: أَعْلِمْهُ، قَالَ: فَلَحِقَهُ، فَقَالَ: إِنِّي أُحِبُّكَ فِي اللَّهِ، فَقَالَ: أَحَبَّكَ الَّذِي أَحْبَبْتَنِي لَهُ".

د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه د نبی کریم ﷺ سره یو کس ناست وو یو سړې په هغه باندې تیر شو نو هغه اووې اې د الله رسوله! بې شکه زما دده سره محبت دې. نبی کریم ﷺ هغه ته اوفرمائیل آیا تا ده ته ښودلې دی؟ هغه اووې نه، حضور ﷺ اوفرمائیل هغه ته خبر ورکړه - چنانچه هغه لاړو او د هغه سره ملاؤ شو او ورته ئې اووې چه زما تاسره د الله دپاره محبت دې نو هغه جواب ورکړو الله دې هم له تاسره محبت اوکړی چه د هغه په خاطر ته له ماسره محبت کوې -

[٥١٢٦](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الصَّامِتِ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، "الرَّجُلُ يُحِبُّ الْقَوْمَ وَلَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَعْمَلَ كَعَمَلِهِمْ، قَالَ: أَنْتَ يَا أَبَا ذَرٍّ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ، قَالَ: فَإِنِّي أُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ، قَالَ: فَإِنَّكَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ، قَالَ: فَأَعَادَهَا أَبُو ذَرٍّ، فَأَعَادَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه روایت دې چه هغوی عرض اوکړو اې د الله رسوله! انسان د بعضې خلقو سره محبت کوی لیکن دا طاقت نۀ لرې چه د هغه په شان عمل اوکړی حضور ﷺ اوفرمائیل ابوذر! ته به د هغه چا سره ئې د چا سره چه تۀ محبت کوې حضرت ابو ذر رضی الله عنه اوفرمائیل: بې شکه زۀ د الله او د هغه د رسول ﷺ سره محبت کووم حضور ﷺ اوفرمائیل بې شکه ته به د هغه چا سره ئې د چا سره چه تۀ محبت کوې -" حضرت ابوذر رضی الله عنه خپله خبره دوباره اوکړه نو رسول الله ﷺ هم دغه شان خپل جواب دوباره ورکولو -

[٥١٢٧](٣) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرِحُوا بِشَيْءٍ لَمْ أَرَهُمْ فَرِحُوا بِشَيْءٍ أَشَدَّ مِنْهُ، قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، الرَّجُلُ يُحِبُّ الرَّجُلَ عَلَى الْعَمَلِ مِنَ الْخَيْرِ يَعْمَلُ بِهِ وَلَا يَعْمَلُ بِمِثْلِهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

---

١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٤٦٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/١٤١) (حسن)

٢): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٩٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/١٥٦، ١٦٦، ١٧٤، ١٧٥)، دي/ الرقاق ٧١ (٢٨٢٩) (صحيح الإسناد)

٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٩٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/فضائل الصحابة ٦ (٣٦٨٨)، الأدب ٩٥ (٦١٦٧)، ٩٦ (٦١٧١)، صحيح مسلم/البر والصلة ٥٠ (٢٦٣٩)، سنن الترمذي/الزهد ٥٠ (٢٣٨٦)، مسند احمد (٣/١٠٤، ١١٠، ١٦٥، ١٦٨، ١٧٢، ١٧٣، ١٧٨، ٢٠٠، ٢٢١، ٢٢٨، ٢٦٨) (صحيح)

اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ".

د حضرت انس رضي الله عنه بن مالک نه روايت دې چه ما اوليدل صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم (چه کله دا مذکوره) فرمان واوريدو : تاسو به هم د هغه چا سره يې د چا سره چه تاسو محبت کوئ نو (هغوی دومره) قدرې خوشاله شو چه هغوی ته دومره خوشالي په يو څيز سره هم نۀ وه رسيدلې - يو کس اووې اې د الله رسوله ! انسان د يو کس سره د هغه د ښۀ اعمالو په وجه سره محبت کوی ليکن خپله هغه عمل نۀ شي کولې - نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل انسان به د هغه چا سره وی د چا سره چه دې محبت ساتی -

## بَابٌ فِي الْمَشُورَةِ

**باب: ١١٣، ١١٤- دَ مشورې بيان:**

[٥١٢٨] (١) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا شَيْبَانُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمُسْتَشَارُ مُؤْتَمَنٌ".

ترجمه: حضرت ابوهريره رضي الله عنه وائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: دچا نه چه مشوره اوغوښتلې شی هغه له امانت دار کيدل پکار دی.

﴿ الْمُسْتَشَارُ مُؤْتَمَنٌ ﴾ د چا نه چه مشوره طلب کړې شي نو هغه مستشار سړې امين دې دې باره کښې، لهذا هغه ته صحيح صحيح مشوره ورکول پکار دی د خير خواهۍ سره او د مستشير راز هم نه دی فاش کول پکار، کوم چه د امين کيدو مقتضی دی.

## بَابٌ فِي الدَّالِّ عَلَى الْخَيْرِ

**باب: ١١٤، ١١٥- دَ نيکئ او دَ خير دَ خبرې دَ ښودو نکی فضيلت**

[٥١٢٩] (٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أُبْدِعَ بِي فَاحْمِلْنِي، قَالَ: لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكَ عَلَيْهِ، وَلَكِنِ ائْتِ فُلَانًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَحْمِلَكَ، فَأَتَاهُ فَحَمَلَهُ، فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ".

د حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه نه روايت دې چه يو کس د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اووې وئيل : اې د الله رسوله ! زما سورلی نشته دې ما ته يوه سورلی عنايت اوفرمائی - حضور ﷺ اوفرمائيل زما سره خو څه داسې سورلی نشته دې چه زۀ ئې تاته درکړم، ليکن فلاں کس ته لاړ شه شائد چه هغه تاته څه سورلی درکړی -" چنانچه دې هغه سړی ته ورغې او دۀ ته ئې هغه سورلی ورکړه بيا هغه رسول الله ﷺ ته راغې او حضور ﷺ ته ئې اوښودل (چه هغه سورلی راکړه) نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څوک چه چا ته د خير

(١): سنن الترمذي/الأدب ٥٧ (٢٨٢٢)، سنن ابن ماجه/الأدب ٣٧ (٣٧٤٥)، (تحفة الأشراف: ١٤٩٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٨٩) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الإمارة ٣٨ (١٨٩٣)، سنن الترمذي/العلم ١٤ (٢٦٧١)، (تحفة الأشراف: ٩٩٨٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/١٢٠، ٥/٢٧٢، ٢٧٣، ٢٧٤) (صحيح)

طرف ته رهنمائی اوکړی هغه ته هم د کوونکی په شان اجر میلاویږی.

یو سړي د رسول اللهﷺ په خدمت کښې راغلو او عرض ئې اوکړو یا رسول اللهﷺ! زما اوښه سترې کیدو سره بیکاره شوې ده (اوښ چه کله سترې شی نو کینې او بیا د انتفاع قابل نه وی) تردې چه د هغه مالک هغه پریږدی داسې اوښ ته حسیر وائی، په کتاب الاجاره کښې په دې باندې مستقل باب تیر شوې دې، باب فیمن احیی حسیرا ...لهذا ماته څه سورلی راکړئ نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه ما سره خو دې وخت کښې سورلی نشته، او رسول اللهﷺ هغه ته د یو صحابی نوم واخستلو چه ته هغه ته لاړ شه کیدې شی چه هغه تاته سورلی درکړی، هغه سړې هغه صحابی ته لاړو نو هغه ورله سورلی ورکړه، هغه سړې راغلو او رسول اللهﷺ ته ئې د دې خبر ورکړو په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل ﴿مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ﴾ چه کوم سړې د خیر کار خپله اونکړې شی خو هغه چاته د بل داسې سړی خبر ورکړی کوم چه هغه کار خیر کولې شی نو هغه ته د وینا اجر د کارخیر کونکی د اجر برابر دې.

## باب فی الهوی

### باب: ۱۱۵، ۱۱۶- دَ نفس دَ خواهش بیان

[۵۱۳۰] (¹) حَدَّثَنَا حَيْوَةُ بْنُ شُرَيْحٍ، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ عَنْ خَالِدِ بْنِ مُحَمَّدٍ الثَّقَفِيِّ، عَنْ بِلَالِ بْنِ أَبِي الدَّرْدَاءِ، عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "حُبُّكَ الشَّيْءَ يُعْمِي وَيُصِمُّ".

د حضرت ابو درداء رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل: چه د یو څیز محبت تاسو لره ړنده وی او کڼه وی.

﴿حُبُّكَ الشَّيْءَ يُعْمِي وَيُصِمُّ﴾ ستا د یو څیز سره محبت کول تا ړندوی او کڼروی. یعنی تاته به د خپل محبوب یو عیب هم نه معلومیږی، او د محبوب په باره کښې به ته د نورو خلقو د تنقید نه هم کوڼ شې، د رسول اللهﷺ مقصود په دې ارشاد کښې خبرداری ورکول دی چه د یو څیز په محبت کښې انسان لره ړندیدل او کڼیدل نه دی پکار، هم دا مصنف رحمه الله هم بیانوی، باب فی الهوی، یعنی د خپل محبوب څیز په باره کښې د نفسانی خواهشاتو اتباع نه دی کول پکار، خپله هم هغه کتل پکار دی او که بل څوک نصیحت اوکړی یا تنقید اوکړی نو هغه هم اوریدل پکار دی.

په دې حدیث باندې محدثینو کلام کړې دې کوم چه په بذل کښې ذکر دې، په بذل کښې دی: قال صلاح الدین العلائی الحدیث ضعیف لا ینتهی لدرجة الحسن اصلا، ولا یقال انه موضوع، سراج الدین قزوینی دې ته موضوع وئیلې دې.

(¹): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۱۹۴، ۶/۴۵۰) (ضعیف)

# بَابٌ فِي الشَّفَاعَةِ

## بابونه ۱۱۶، ۱۱۷ - دَ سفارش بيان

[٥١٣١](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اشْفَعُوا إِلَيَّ لِتُؤْجَرُوا وَلْيَقْضِ اللَّهُ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ مَا شَاءَ".

دَ حضرت ابو موسىٰ ﷛ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل ما ته دَ (خپلو ملګرو) په باره کښې سفارش کوئ چه ثواب بيا مومئ او فيصله خو به هغه وی کومه چه الله غواړی او دَ خپل نبی په ژبه باندي ئي کوی -

**قوله**: ﴿ اشْفَعُوا إِلَيَّ لِتُؤْجَرُوا وَلْيَقْضِ اللَّهُ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ مَا شَاءَ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائي چه تاسو ماته شفاعت کوئ يعنی د چا په حق خبره کښ، ثواب حاصلوئ، بيا چه الله پاک څه غواړی په خپل نبی ﷺ باندي به فيصله اوکړی، يعنی فيصله چه هر څه وی تاسو ته به د نيک نيت د وجې نه د سفارش ثواب ملاؤ شی.

اوس نژدې د شفاعت سره متعلق يو حديث د کتاب شرح السنة بالکل په اخر کښې تير شو.

[٥١٣٢](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَخِيهِ، عَنْ مُعَاوِيَةَ: "اشْفَعُوا تُؤْجَرُوا، فَإِنِّي لَأُرِيدُ الْأَمْرَ فَأُؤَخِّرُهُ كَيْمَا تَشْفَعُوا فَتُؤْجَرُوا، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: اشْفَعُوا تُؤْجَرُوا".

دَ حضرت امير معاويه ﷛ نه منقول دی (هغوی خپلو احبابو ته اوئيل) چه سفارش کوئ اجر به بيا مومئ : رسول الله ﷺ فرمائيلي دی سفارش کوئ ثواب به ملاويږی، بې شکه (بعضې وختونه) زهٔ يو کار کول غواړم مګر هغې لره (څه قدرې) مؤخر کووم ددې دپاره چه تاسو سفارش اوکړئ او ثواب بيا مومئ - يقينا رسول الله ﷺ فرمائيلي دی سفارش کوئ او اجر به بيا مومئ -

[٥١٣٣](٣) حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ بُرَيْدٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

حضرت ابوبرده ﷛ دَ حضرت ابو موسىٰ اشعری ﷛ نه او هغوی دَ رسول الله ﷺ نه مذکوره بالا حديث روايت کړې دې -

.........

(١): صحيح البخاري/الزكاة ٢١ (١٤٣٢)، الأدب ٣٦ (٦٠٢٧)، ٣٧ (٦٠٢٨)، التوحيد ٣١ (٧٤٧٦)، صحيح مسلم/البر ٤٤ (٢٦٢٧)، سنن الترمذي/العلم ١٤ (٢٦٧٢)، سنن النسائي/الزكاة ٦٥ (٢٥٥٧)، (تحفة الأشراف: ٩٠٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٤٠٠، ٤٠٩، ٤١٣) (صحيح)

(٢): سنن النسائي/الزكاة ٦٥ (٢٥٥٨)، (تحفة الأشراف: ١١٤٤٧) (صحيح)

(٣): انظر رقم: (٥١٣١)، (تحفة الأشراف: ٩٠٣٦)

# بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَبْدَأُ بِنَفْسِهِ فِي الْكِتَابِ

## باب: ۱۱۷، ۱۱۸ - دَ خط ليکلو ادب، دَ ټولو نه اول به خپل نوم ليکی

[٥١٣٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، قَالَ أَحْمَدُ قَالَ مَرَّةً يَعْنِي هُشَيْمًا، عَنْ بَعْضِ وَلَدِ الْعَلَاءِ "أَنَّ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ كَانَ عَامِلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْبَحْرَيْنِ، فَكَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَيْهِ بَدَأَ بِنَفْسِهِ".

د حضرت عطاء حضرمی په باره کښې راځی چه هغه د نبی کريم ﷺ د طرف نه د بحرين ګورنرووچنانچه هغه چه به کله نبی کريم ﷺ ته خط ليکلو نودخپل نوم نه به ئې شروع کووله۔

**قوله**: ﴿ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ بَعْضِ وَلَدِ الْعَلَاءِ أَنَّ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ كَانَ عَامِلَ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– عَلَى الْبَحْرَيْنِ فَكَانَ إِذَا كَتَبَ إِلَيْهِ بَدَأَ بِنَفْسِهِ ﴾

په ترجمة الباب سره مصنف رحمه الله دا بيانول غواړی چه کله يو سړې چاته خط ليکی نو کاتب دې اول خپل نوم اوليکی په شروع کښې يا که د مکتوب اليه؟ او اشاره ئې کړې ده هم دې طرف ته چه کاتب لره اول خپل نوم ليکل پکار دی، او د دې په ثبوت کښې ئې د حضرت علاء بن الحضرمی د فعل نه کوم چه د رسول الله ﷺ عامل وو د بحرين، استدلال کړې دې چه کله به هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې څۀ مکتوب ليکلو نو په شروع کښې به ئې خپل نوم ليکلو، خو حضرت په بذل کښې دا ليکلې دی په طور د قاعدې چه د دې بنياد په مرتبه باندې دې که کاتب په مرتبه کښې د مکتوب اليه نه لوئې وی نو بيا کاتب لره د خپل نوم نه شروع کول پکار دی لکه چه د دويم باب په حديث کښې راځی چه کله رسول الله ﷺ د روم د بادشاه هرقل په نوم خط اوليکلو نو په هغې کښې ئې اول خپل نوم اوليکلو : من محمد رسول الله الی هرقل عظيم الروم ....او که د هغه مکتوب اليه مرتبه اوچته وی د کاتب نه لکه چه يو سړې خپل استاد ته خط ليکی نو هلته د مکتوب اليه نوم اول کيدل پکار دی، پاتې شوه خبره د علاء بن الحضرمی چه هغوی به اول خپل نوم ليکلو نو په ظاهر کښې به هغوی د رسول الله ﷺ په اتباع کښې داسې کول (خو رسول الله ﷺ خو د ټولو مشر وو په دې وجه به هغوی خپل نوم په اول کښې ليکلو) واما تقرير ﷺ فلاجل بيان الجواز، يعنی د رسول الله ﷺ د هغه په طرز باندې سکوت فرمائيل او خبردارې نه کول دا د بيان جواز دپاره وو چه داسې کول هم جائز دی اګر چه خلاف اولی دی.

[٥١٣٥](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ، حَدَّثَنَا الْمُعَلَّى بْنُ مَنْصُورٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنِ ابْنِ الْعَلَاءِ، عَنِ الْعَلَاءِ يَعْنِي ابْنَ الْحَضْرَمِيِّ "أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَدَأَ بِاسْمِهِ".

حضرت ابن سيرين د حضرت علاء د ځوی نه روايت کړې دې، هغوی د (خپل پلار) حضرت علاء بن حضرمی رضی الله عنه په باره کښې ښودلی دی چه هغه نبی کريم ﷺ ته خط اوليکلو نو دَ خپل نوم نه ئې شروع اوکړه۔

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٣٩/٤) (ضعيف الإسناد)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٠٩) (ضعيف)

# بَابٌ كَيْفَ يُكْتَبُ إِلَى الذِّمِّيِّ

**باب: ۱۱۸، ۱۱۹ - کافر ته د خط لیکلو طریقه:**

[٥١٣٦](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى هِرَقْلَ: مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ: إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ: سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى"، قَالَ ابْنُ يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ أَخْبَرَهُ، قَالَ: فَدَخَلْنَا عَلَى هِرَقْلَ، فَأَجْلَسَنَا بَيْنَ يَدَيْهِ، ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِذَا فِيهِ: بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ: مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ: إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ: سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى: أَمَّا بَعْدُ.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ هرقل ته خط اولیکلو نو دا ئې اولیکل : د محمد رسول الله د طرف نه د رومیانو رئیس هرقل طرف ته - سلامتی دې وی د هغه چاچه هغه په لار د هدایت باندې چلیږی- ابن یحییٰ بیان کوی چه حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چه ابو سفیان ما ته خبر راکړو چه مونږه هرقل ته ورغلو نو هغه مونږ لره خپلې مخې ته کینول- بیا هغه د رسول الله ﷺ خط را اوغښتو ،نو په هغې کښې وو :

﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَتَبَ إِلَى هِرَقْلَ « مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَى »﴾

د رسول الله ﷺ د دې خط ذکر پورته راغلې دې، د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت کښې اشکال دې، په ترجمة الباب کښې کتابت الی الذمی ذکر شوې دې، او هرقل خو ذمی نه وو، بلکه د خپل ملک بادشاه وو، اللهم الا ان یقال چه استدلال د مصنف رحمه الله په طریقه د اولویت دې چه کله غیر ذمی ته په خط لیکلو کښې کاتب د خپل نوم نه شروع اوکړه نو د ذمی طرف ته په خط لیکلو کښ د خپل نوم نه ابتداء کول په طریق اولی پکار دی ځکه چه ذمی خو د مسلمانانو د لاندې او د هغوی تابع وی.

امام بخاری رحمه الله په کتاب الاستیذان کښې باب کیف یکتب الی اهل الکتاب .....ترجمه قائم فرمائیلو سره د هغې په ضمن کښ د حدیث هم دا ټکړه ذکر فرمائیلې ده کومه چه دلته په ابوداؤد کښې ده، د بخاری ترجمه محتاج توجیه نه ده، د دې نه پس امام بخاری رحمه الله دویمه ترجمه قائم کړه باب بمن یبداء فی الکتاب په «الابواب والتراجم» کښې په دې سلسله کښې د شراح حدیث کلام نقل کړې شوې دې چه شروع د چا د نوم نه کول پکار دی د کاتب یا که د مکتوب الیه، عام طور شراحو هم دا لیکلې دی چه طریقه هم دا ده چه کاتب دې د خپل نوم نه شروع کوی او په استدلال کښې ئې هم دا د علاء بن الحضرمی واقعه لیکلې ده، او د نافع روایت ئې هم نقل کړې دې : کان عمال عمر اذا کتبوا الیه بداؤا بانفسهم، قال المهلب السنة ان یبداء الکاتب بنفسه اهـ او د امام نووی رحمه الله نه ئې نقل کړې دی : وَاخْتَلَفَ الْعُلَمَاء فِي الِابْتِدَاء فِي عِنْوَان الْكِتَاب،فَالصَّحِيح الَّذِي قَالَهُ كَثِيرُ مِنَ السَّلَف وَجَاءَ بِهِ الصَّحِيح أَنَّهُ يَبْدَأ بِنَفْسِهِ،فَيُقَدِّمُهَا

١): صحيح البخاري/بدء الوحي ١ (٧)، الجهاد ١٠٢ (٢٩٧٨)، تفسير سورة آل عمران ٤ (٤٥٥٣)، صحيح مسلم/الجهاد ٢٧ (١٧٧٣)، سنن الترمذي/الاستئذان ٢٤ (٢٧١٧)، (تحفة الأشراف: ٤٨٥٠، ٥٨٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٦٢، ٢٦٣) (صحيح)

عَلَى الْمَكْتُوبِ إِلَيْهِ،فيقول : مِنْ فُلَان إِلَى فُلَان، واستدل عليه من حديث هرقل، ثم قال: وَقَالَ طَائِفَة : يَبْدَأُ بِالْمَكْتُوبِ إِلَيْهِ،فَيَقُول : إِلَى فُلَان مِنْ فُلَان قَالُوا : إِلَّا أَنْ يَكْتُبَ الْأَمِيرُ إِلَى مَنْ دُونه،أَوْ السَّيِّد إِلَى عَبْده،أَوْ الْوَالِد إِلَى وَلَده اهـ حضرت شيخ په الابواب والتراجم کښې د سهارنپوری صاحب رائې هم د بذل المجهود نه په دې مسئله کښې نقل کړې ده.

او د حضرت شيخ رائې د مصنف رحمه الله د دې ترجمې ثانيې په باره کښې دا ده چه زما په نزد د مصنف رحمه الله غرض په دې ترجمه الباب سره ابتداء بالاسم لره بيانول نه دی بلکه هغه غرض خو د اول باب نه حاصل شو او په دې دويم باب سره مقصود کيفيت د سلام بيانول دی چه ذمی ته که خط اوليکلې شی نو سلام به څنګه ليکلې شی، د حديث نه معلومه شوه چه په ځائې د السلام عليک، السلام على من اتبع الهدى ليکل پکار دې، ما د حضرت رائپوری شاه عبد القادر صاحب رحمه الله د بعض مکاتيبو زيارت اوکړو په نوم د حضرت شيخ نو په هغې کښې ما اوکتل چه حضرت به د خپل نوم نه شروع کوله، از احقر عبدالقادر ...

## بَابٌ فِي بِرِّ الْوَالِدَيْنِ

**بابـ ۱۱۹، ۱۲۰ - دَ مور او پلار سره دَ حسن سلوک بيان**

[٥١٣٧]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ،أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ،قَالَ: حَدَّثَنِي سُهَيْلُ بْنُ أَبِي صَالِحٍ،عَنْ أَبِيهِ،عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَجْزِي وَلَدٌ وَالِدَهُ إِلَّا أَنْ يَجِدَهُ مَمْلُوكًا فَيَشْتَرِيَهُ، فَيُعْتِقَهُ".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : هيڅ يو بچې د خپل پلار دَ احسان بدله نهٔ شی ورکولې - سوا ددې نه چه هغه (پلار) لره غلام بيا مومی نودې ئې واخلی او آزاد ئې کړی -

**قوله:** ﴿ لاَ يَجْزِي وَلَدٌ وَالِدَهُ إِلاَّ أَنْ يَجِدَهُ مَمْلُوكًا فَيَشْتَرِيَهُ فَيُعْتِقَهُ ﴾ يعنی يو ځوئې هم د خپل پلار پوره حق نه شی ادا کولې خو په هغه صورت کښې چه يو سړې خپل پلار د چا غلام بيا مومی پس د هغه نه ئې واخلی او آزاد ئې کړی.

د باب په دويم حديث کښې دی :

[٥١٣٨]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي خَالِي الْحَارِثُ، عَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كَانَتْ تَحْتِي امْرَأَةٌ، وَكُنْتُ أُحِبُّهَا، وَكَانَ عُمَرُ يَكْرَهُهَا، فَقَالَ لِي: طَلِّقْهَا، فَأَبَيْتُ، فَأَتَى عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: طَلِّقْهَا".

حضرت حمزه د خپل پلار عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کوی هغه فرمائی : چه زما په زوجيت کښې يوه ښځه وه او زما دَ هغې سره محبت وو مګر حضرت عمر رضي الله عنه به هغې لره ناخوښه ګڼرله نو هغه ماته اوفرمائيل چه دې ته طلاق ورکړه ما انکار اوکړو نو حضرت عمر رضي الله عنه دَ حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او خپله خبره ئې ورته اوکړه - نو نبی کريم صلى الله عليه وسلم

[1]): صحيح مسلم/العتق ٦ (١٥١٠)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٦٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البر والصلة ٨ (١٩٠٧)، سنن ابن ماجه/الأدب ١ (٣٦٥٩)، مسند احمد (٢/٢٣٠، ٣٧٦، ٤٤٥) (صحيح)

[2]): سنن الترمذي/الطلاق ١٣ (١١٨٩)، سنن ابن ماجه/الطلاق ٣٦ (٢٠٨٨)، (تحفة الأشراف: ٦٧٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٠، ٤٢، ٥٣، ١٧٥) (صحيح)

ماته اوفرمائیل دغه ښځې ته طلاق ورکړه -

**قوله:** ﴿ عن ابْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَتْ تَحْتِي امْرَأَةٌ وَكُنْتُ أُحِبُّهَا وَكَانَ عُمَرُ يَكْرَهُهَا ﴾ سیدنا ابن عمر ﷺ فرمائی چه زما یوه ښځه وه چه زما خوښه وه خو زما د والد صاحب عمر ﷺ نه وه خوښه، هغوی ماته یوکرت اوفرمائیل چه دې ته طلاق ورکړه نو زه دې ته تیار نه شوم، هغوی رسول الله ﷺ ته د دې شکایت اوکړو، په دې باندې رسول الله ﷺ ماته د طلاق حکم اوفرمائیلو.

[٥١٣٩]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَنْ أَبَرُّ؟ قَالَ: أُمَّكَ، ثُمَّ أُمَّكَ، ثُمَّ أُمَّكَ، ثُمَّ أَبَاكَ، ثُمَّ الْأَقْرَبَ فَالْأَقْرَبَ، وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَسْأَلُ رَجُلٌ مَوْلَاهُ مِنْ فَضْلٍ هُوَ عِنْدَهُ، فَيَمْنَعُهُ إِيَّاهُ إِلَّا دُعِيَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَضْلُهُ الَّذِي مَنَعَهُ شُجَاعًا أَقْرَعَ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: الْأَقْرَعُ: الَّذِي ذَهَبَ شَعْرُ رَأْسِهِ مِنَ السُّمِّ.

حضرت بهز بن حکیم د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکهٔ نه روایت کوی هغه فرمائی چه ما اووې اې دَ الله رسوله! زهٔ دَ چا سره حسن سلوک اوکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل دَ خپلې مور سره بیا دَ خپلې مور سره، بیا دَ خپلې مور سره بیا دَ خپل پلار سره - بیا دَ قریبی رشته دار سره -" او بیان کوی چه بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل ثوک چه دَ خپل مولیٰ (آزاد کړې شوې غلام) نه دَ هغه زیاتې مال اوغواړی کوم چه دَ هغه سره وو او سره ددې نه چه دَ هغه سره وی او ورئې نهٔ کړی نو دَ قیامت په ورځ باندې به دغه زیاتی مال دَ ګنجی مار په شکل ګښې ددهٔ مخې ته راځې - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ [ اقرع ] نه مراد داسې مار دې چه دَ زهرو په وجه سره ددهٔ د سر ویښتهٔ ختم شوې وی، [ او هغه ګنجې شوې وی ]

**قوله:** ﴿ عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَبَرُّ قَالَ « أُمَّكَ ثُمَّ أُمَّكَ ثُمَّ أُمَّكَ ثُمَّ أَبَاكَ ثُمَّ الأَقْرَبَ فَالأَقْرَبَ » ﴾

سیدنا معاویه بن حیده ﷺ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زه چا سره د نیکئ او احسان سلوک اوکړم؟ هغوی اوفرمائیل د خپلې مور سره.او دا ئې درې کرته اوفرمائیل، او د دې نه پس ئې اوفرمائیل چه د خپل پلار سره، او د پلار نه پس بیا د چا سره چه په رشته دارو کښې زیات نزدې وی، په حاشیه د بذل کښې دی : قال العینی ۱۰/۲۲۲ فیه حجة علی ان طاعة الام مقدمة، وفی الکوکب ان الاب مقدم فی الطاعة اهـ قلت وبه صرح فی کراهیة العالمگیریة ۴/۲۳۶ الی اخر ما فی الحاشیة، په کوکب ۲/۲۸ کښې دادی : په احسان او حسن سلوک کښې د مور درجه مقدم ده په پلار باندې او په تظیم او اطاعت کښې د پلار، او د هغې په حاشیه کښې دی : قال مشائخنا الاب یقدم علی الام فی الاحترام والام فی الخدمة.

**قوله:** ﴿ لاَ يَسْأَلُ رَجُلٌ مَوْلاَهُ مِنْ فَضْلٍ هُوَ عِنْدَهُ فَيَمْنَعُهُ إِيَّاهُ إِلاَّ دُعِيَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَضْلُهُ الَّذِى مَنَعَهُ شُجَاعًا أَقْرَعَ ﴾ په دې حدیث کښې د مولی نه مراد مولی الاعلی او مولی الاسفل دواړه کیدې شی یعنی که یو سړې د خپل آزاد کړې شوی غلام نه د یو داسې مال سوال اوکړی

[1]: سنن الترمذي/البر والصلة ١ (١٨٩٧)، (تحفة الأشراف: ١١٣٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥،٣/٥) (حسن صحيح)

کوم چه د هغه د ضرورت نه زائد دي او د هغې باوجود هغه د ورکړې نه انکار اوکړی نو د قیامت په ورځ باندې به د هغه مال راطلب کړې شی کوم چه به ګنجې یعنی سخت زهریله مار جوړیدو سره مخامخ راشی، او په دویم صورت کښې به ئې ترجمه دا وی چه د چا آزاد کړې شوې غلام د خپل مولی نه د داسې مال سوال اوکړئ کوم چه د هغه نه زائد دي الخ.

[٥١٤٠](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا الْحَارِثُ بْنُ مُرَّةَ، حَدَّثَنَا كُلَيْبُ بْنُ مَنْفَعَةَ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَنْ أَبَرُّ؟ قَالَ: أُمَّكَ، وَأَبَاكَ، وَأُخْتَكَ، وَأَخَاكَ، وَمَوْلَاكَ الَّذِي يَلِي، ذَاكَ حَقٌّ وَاجِبٌ، وَرَحِمٌ مَوْصُولَةٌ".

حضرت کلیب بن منفعه د خپل نیکۀ نه روایت کوی چه هغه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اووې فرمائیل اې دَ الله رسوله ! زۀ دَ چا سره حسن سلوک اوکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل دَ خپل مور، پلار، خور، رور او دَ هغه آزاد غلام سره کوم چه دې ته قریب وی ـ دَ دوی حق واجب دې او دَ دوی سره رشته قائمول لازم دی ـ

[٥١٤١](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ زِيَادٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا. ح وحَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ: أَنْ يَلْعَنَ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ، قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ يَلْعَنُ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ؟ قَالَ: يَلْعَنُ أَبَا الرَّجُلِ، فَيَلْعَنُ أَبَاهُ، وَيَلْعَنُ أُمَّهُ، فَيَلْعَنُ أُمَّهُ".

د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : دا خبره ډیره غټه ګناه ده چه څوک په خپل مور او پلار باندې لعنت اوکړی اووئیلې شو اې دَ الله رسوله ! دا څنګه کیدې شی چه څوک په مور او پلار باندې لعنت اوکړی؟ نو حضور ﷺ اوفرمائیل چه څوک دَ بل چا په پلار باندې لعنت اوکړی او هغهٔ ددهٔ پلار باندې لعنت اوکړی، او که چرې دې دَ بل چا په مور باندې لعنت اوکړی نو هغه به ددهٔ په مور باندې لعنت اوکړی ـ"

**قوله:** ﴿ إِنَّ مِنَ الْكَبَائِرِ أَنْ يَلْعَنَ الرَّجُلُ وَالِدَيْهِ ﴾ رسول الله ﷺ فرمائی چه په کبیره ګناهونو کښې دا خبره هم ده چه څوک په خپل مور پلار باندې لعنت اوکړی او د هغوی دپاره بددعاء اوکړی، صحابه کرامو رضی الله عنهم تپوس اوکړو یا رسول الله ﷺ دا څنګه کیدې شی چه سړې په خپل مور پلار باندې لعنت اوکړی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه په داسې طریقه چه هغه سړې د چا په پلار باندې لعنت اوکړی یا د چا په مور باندې، او بیا هغه د دې په جواب کښې د هغه په مور پلار باندې لعنت اوکړی

[٥١٤٢](٣) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَهْدِيٍّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ الْمَعْنَى، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَسِيدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ عُبَيْدٍ مَوْلَى بَنِي سَاعِدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي أُسَيْدٍ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٦٥) (ضعيف)

(٢): صحيح البخاري/الأدب ٤ (٥٩٧٣)، صحيح مسلم/الإيمان ٣٨ (٩٠)، سنن الترمذي/البر والصلة ٤ (١٩٠٢)، (تحفة الأشراف: ٨٦١٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/١٦٤، ١٩٥، ٢١٤، ٢١٦) (صحيح)

(٣): سنن ابن ماجه/الأدب ٢ (٣٦٦٤)، (تحفة الأشراف: ١١١٩٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤٩٧) (ضعيف)

مَالِكِ بْنِ رَبِيعَةَ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَلَمَةَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلْ بَقِيَ مِنْ بِرِّ أَبَوَيَّ شَيْءٌ أَبَرُّهُمَا بِهِ بَعْدَ مَوْتِهِمَا؟ قَالَ: نَعَمْ، الصَّلَاةُ عَلَيْهِمَا، وَالِاسْتِغْفَارُ لَهُمَا، وَإِنْفَاذُ عَهْدِهِمَا مِنْ بَعْدِهِمَا، وَصِلَةُ الرَّحِمِ الَّتِي لَا تُوصَلُ إِلَّا بِهِمَا، وَإِكْرَامُ صَدِيقِهِمَا".

د حضرت ابو اسيد مالک بن ربيعه ساعدي رضی الله عنه نه روايت دې چه يو ځل اتفاقا مونږه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ناست وو چه د قبيلۀ بنو سلمه يو سړې د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضرشو او تپوس ئې اوکړو اې د الله رسوله! آيا زما د مور او پلار د وفات کيدو نه پس هم په ما باندې څه حق شته چه د هغوی سره څه حسن سلوک اوکړم؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل او - د هغوی دپاره دعا کول د هغوی دپاره بخشش غوښتل،د هغوی نه ورستو د هغوی عهد پوره کول،دداسې رشته دارانو سره تعلق ساتل چه د هغوی (د مور او پلار) نه بغير دهغوی سره رشته داري نۀ شوه کيدې- او د هغوی د دوستانو عزت کول-

**قوله:** ﴿ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ بَقِيَ مِنْ بِرِّ أَبَوَيَّ شَيْءٌ أَبَرُّهُمَا بِهِ بَعْدَ مَوْتِهِمَا ﴾ يو سړی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه زما د مور پلار د وفات نه پس هغوی سره د حسن سلوک کولو څه صورت باقي وی نو هغوی اوفرمائيل او باقي وی د هغوی دپاره د رحمت دعاء او استغفار کول، او د هغوی وصيت پوره کول، او هغه خپلولي پالل کومه چه نه پاللې کيږی مګر د مور پلار د وجې نه يعنی صرف د مور پلار د وجې نه او دا هله کيدې شی چه په دې رشته دارو کښې هغه سره صله رحمي کونکې څوک براه راست رشته دار نه وی لکه د نسبي مور پلار رضاعي مور پلار چه د هغوی دوی سره براه راست خو رشته نشته دوی د هغوی په اصولو کښې نه دی بلکه هغوی سره څه رشته ده د هغوی د مور پلار خو دا سړې هغوی سره حسن سلوک د خپل مور پلار د وجې نه کوی، د دې مضمون د ادا کولو دپاره د بيهقي د روايت الفاظ زيات واضح دی : وصلة رحمهما التي لا رحم لک الا من قبلهما ...وړاندې په حديث کښې دی.د مور پلار د دوستانو او ملګرو اکرام کول.

[٥١٤٣](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَبُو النَّضْرِ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أُسَامَةَ بْنِ الْهَادِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَبَرَّ الْبِرِّ صِلَةُ الْمَرْءِ أَهْلَ وُدِّ أَبِيهِ بَعْدَ أَنْ يُوَلِّيَ".

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل د ټولو نه لوی حسن سلوک دادې چه د پلار د وفات نه ورستو انسان د هغه چا سره صله رحمي اوکړی چه ددۀ پلار سره محبت کوونکې وو -

**قوله:** ﴿ إِنَّ أَبَرَّ الْبِرِّ صِلَةُ الْمَرْءِ أَهْلَ وُدِّ أَبِيهِ بَعْدَ أَنْ يُوَلِّيَ ﴾ دا حديث او د پورته ذکر شوی حديث آخری جمله ﴿ واکرام صديقهما ﴾ دواړه يو شان معنی لری، صرف دومره فرق دې چه په اول حديث کښې د والدينو د دوستانو سره اکرام ته برالوالدين وئيلې شوې دې او دلته دې ته علی وجه المبالغة ابر البر وئيلې شوې دې، يعنی ډير لوئې حسن سلوک.

(1): صحيح مسلم/البر والصلة ٤ (٢٥٥٢)، (تحفة الأشراف: ٧٢٦٢)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البر والصلة ٥ (١٩٠٣) (صحيح)

[٥١٤٤] (¹) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ يَحْيَى بْنِ عُمَارَةَ بْنِ ثَوْبَانَ، أَخْبَرَنَا عُمَارَةُ بْنُ ثَوْبَانَ، أَنَّ أَبَا الطُّفَيْلِ أَخْبَرَهُ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ لَحْمًا بِالْجِعِرَّانَةِ، قَالَ أَبُو الطُّفَيْلِ: وَأَنَا يَوْمَئِذٍ غُلَامٌ أَحْمِلُ عَظْمَ الْجَزُورِ، إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ حَتَّى دَنَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَبَسَطَ لَهَا رِدَاءَهُ فَجَلَسَتْ عَلَيْهِ، فَقُلْتُ: مَنْ هِيَ؟ فَقَالُوا: هَذِهِ أُمُّهُ الَّتِي أَرْضَعَتْهُ".

حضرت ابو طفیل (عامر بن واثله لیثی رضی الله عنه) بیان کوی چه ما رسول الله ﷺ لره اولیدو چه په جعرّانه مقام کښې ئې غوښه تقسیموله، زۀ په دغه ورځو کښې نوجوان وم ما د اوښ هډوکې اوچتولو چه اچانک یوه ښځه راغله تردې پورې چه هغه نبی کریم ﷺ ته قریب راغله نو حضور ﷺ هغې ته خپل څادر خور کړو او هغه په هغه څادر باندې کیناسته ما تپوس اوکړو چه دا څوک وو؟ نو صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم راته اوښودله چه دا د حضور ﷺ هغه مور وه کومې چه ورته پی ورکړې وو۔

﴿ رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- يَقْسِمُ لَحْمًا بِالْجِعِرَّانَةِ الخ ﴾ ابو الطفیل صحابی رضی الله عنه فرمائی چه دا واقعه زما د سترګو مخې ته ده چه کله ما اولیدو رسول الله ﷺ په جعرانه کښې په غوښه تقسیمولو باندې او زۀ دغه وخت کښې ورکې هلک اوم ما هم د اوښ هډوکې اوچتولو چه ناڅاپه یو زنانه راغله چه رسول الله ﷺ ته راغله د چا د پاره چه هغوی خپل څادر خور کړو او هغه په هغې باندې کیناستله، ما د خلقو نه تپوس اوکړو چه دا څوک ده؟ نو هغوی اووې چه دا د رسول الله ﷺ رضاعی مور ده یعنی حلیمه سعدیه رضی الله عنها.

او د دې نه په روستو روایت کښې دی چه یوه ورځ رسول الله ﷺ ناست وو چه ناڅاپه د هغوی رضاعی پلار حارث بن عبدالعزی راغلو نو هغوی د خپلې جامې څه حصه دهغوی دپاره اوغوړوله اوهغوی په هغې کیناستل، لږساعت پس د هغوی رضاعی مور راغله نو رسول الله ﷺ د هغې دپاره هم د خپلې کپړې څۀ حصه په دویم طرف کښې اوغوړوله او په هغې باندې هغه کیناستله، لږ ساعت پس د هغوی رضاعی رور عبدالله راغلو نو رسول الله ﷺ د هغوی د وجې نه پاسیدل او هغه ئې خپلې مخې ته کینولو.

[٥١٤٥] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ الْحَارِثِ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ السَّائِبِ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ بَلَغَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ جَالِسًا، فَأَقْبَلَ أَبُوهُ مِنَ الرَّضَاعَةِ فَوَضَعَ لَهُ بَعْضَ ثَوْبِهِ فَقَعَدَ عَلَيْهِ، ثُمَّ أَقْبَلَتْ أُمُّهُ مِنَ الرَّضَاعَةِ، فَوَضَعَ لَهَا شِقَّ ثَوْبِهِ مِنْ جَانِبِهِ الْآخَرِ فَجَلَسَتْ عَلَيْهِ، ثُمَّ أَقْبَلَ أَخُوهُ مِنَ الرَّضَاعَةِ، فَقَامَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَجْلَسَهُ بَيْنَ يَدَيْهِ".

د حضرت عمرو بن سائب رضی الله عنه نه روایت دې چه ماته دا خبر رارسیدلې دې چه حضور ﷺ یو ځل ناست وو چه د هغه رضاعی پلار راغې نو حضور ﷺ د خپل څادر یو طرف هغه ته خور کړو نو هغه پرې کیناستو ،بیا د حضور ﷺ رضاعی مور راغله نو حضور ﷺ د هغه څادر دویم طرف خور کړو او هغه پرې کیناسته، د حضور ﷺ رضاعی رور راغې نو رسول الله ﷺ د هغه دپاره پاسیدو او هغه لره ئې خپلې مخې ته کینولو ـ

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٠٥٣) (ضعيف الإسناد)
(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩١٤١) (ضعيف الإسناد)

# بَابٌ فِي فَضْلِ مَنْ عَالَ يَتَامَى

## بابد ۱۲۰، ۱۲۱ دَ يتيمانانو دَ پرورش فضيلت

[٥١٤٦]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ، وَأَبُو بَكْرٍ ابْنَا أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، عَنِ ابْنِ حُدَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَتْ لَهُ أُنْثَى فَلَمْ يَئِدْهَا وَلَمْ يُهِنْهَا وَلَمْ يُؤْثِرْ وَلَدَهُ عَلَيْهَا، قَالَ يَعْنِي الذُّكُورَ أَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ"، وَلَمْ يَذْكُرْ عُثْمَانُ يَعْنِي الذُّكُورَ.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه د چا جينئ وي او دي هغې لره ژوندئ دفن نۀ کړي (لکه څنګه چه به کفارو کول) او نۀ دَ هغې اهانت اوکړي او نۀ هلک ته په هغې باندې برترې ورکړي، نو الله تعالیٰ به دۀ لره جنت ته داخل کړي۔" او ددې حديث راوی عثمان لفظ دَ " الذکور " نۀ دې ذکر کړې۔

﴿ مَنْ كَانَتْ لَهُ أُنْثَى فَلَمْ يَئِدْهَا وَلَمْ يُهِنْهَا وَلَمْ يُؤْثِرْ وَلَدَهُ عَلَيْهَا أَدْخَلَهُ اللَّهُ الْجَنَّةَ ﴾ د کوم سړي چه يوه لور وي داسې چه نه ئې هغه ژوندئ ښخه کړې وي او نه ئې د هغې بې حرمتي کړې وي او نه ئې پرې نارينه اولاد ته ترجيح ورکړې وي نو داسې سړې به الله پاک جنت ته داخل کړي.

[٥١٤٧]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، حَدَّثَنَا سُهَيْلٌ يَعْنِي ابْنَ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْأَعْشَى، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَهُوَ سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُكْمِلٍ الزُّهْرِيُّ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ بَشِيرٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ عَالَ ثَلَاثَ بَنَاتٍ فَأَدَّبَهُنَّ وَزَوَّجَهُنَّ وَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ، فَلَهُ الْجَنَّةُ".

د حضرت ابوسعيد خدری رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی چه کوم کس د دريو لونړو پرورش اوکړو، هغوی ته ئې ادب اوښودلو، دَ هغوی وادۀ ئې اوکړو او دَ هغوی سره ئې دَ احسان معامله کووله، نو دَ هغه دپاره جنت دې۔"

[٥١٤٨]([3]) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ سُهَيْلٍ بِهَذَا الْإِسْنَادِ، قَالَ: ثَلَاثُ أَخَوَاتٍ أَوْ ثَلَاثُ بَنَاتٍ، أَوْ بِنْتَانِ، أَوْ أُخْتَانِ.

سهيل هم په دې اسناد سره دَ مذکوره بالا حديث هم معنیٰ روايت کړې دې او وئيلي ئې دی: چه چا دَ دريو خويندو يا دَ دريو لونړو يا دَ دوو لونړو يا دَ دوو خويندو پرورش اوکړو "

[٥١٤٩]([4]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، حَدَّثَنَا النَّهَّاسُ بْنُ قَهْمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي شَدَّادٌ أَبُو عَمَّارٍ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَا وَامْرَأَةٌ سَفْعَاءُ الْخَدَّيْنِ كَهَاتَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ"، وَأَوْمَأَ يَزِيدُ بِالْوُسْطَى وَالسَّبَّابَةِ، "امْرَأَةٌ آمَتْ مِنْ زَوْجِهَا ذَاتُ مَنْصِبٍ وَجَمَالٍ حَبَسَتْ نَفْسَهَا عَلَى يَتَامَاهَا حَتَّى بَانُوا أَوْ مَاتُوا".

د حضرت عوف بن مالک اشجعی رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه زۀ او دَ تور رخسار والا ښځه به دَ قيامت په ورځ باندې داسې (قريب قريب) يو۔" يزيد (بن زريع)

---

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٥٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٢٣/١) (ضعيف)
[2]: سنن الترمذي/البر والصلة ١٣ (١٩١٦)، (تحفة الأشراف: ٣٩٦٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٢/٣، ٩٧) (ضعيف)
[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٩٦٩) (ضعيف)
[4]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٠٩١١)، وقد أخرجه: حم (٢٦/٦، ٢٩) (ضعيف)

خپله مینځمئ او د شهادت والا ګوتې یوځائې کړې او اشاره ئې اوکړه. (یعنی) هغه معززه اوحسینه ښځه چه خاوند ئې مړشوې وی او (عزت او د خوبصورتئ باوجود) د خپل یتیمانانو بچو په خاطر (د نکاح کولو نه) پاتې شوې ده تردې پورې چه هغه لوی شو یا مړۀ شو.

**قوله:** ﴿ أَنَا وَامْرَأَةٌ سَفْعَاءُ الْخَدَّيْنِ كَهَاتَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ».وَأَوْمَأَ يَزِيدُ بِالْوُسْطَى وَالسَّبَّابَةِ « امْرَأَةٌ آمَتْ مِنْ زَوْجِهَا ذَاتُ مَنْصِبٍ وَجَمَالٍ حَبَسَتْ نَفْسَهَا عَلَى يَتَامَاهَا حَتَّى بَانُوا أَوْ مَاتُوا ﴾

یو ځل رسول الله ﷺ خپلې دواړه ګوتې اوچتولو سره د هغوی طرف ته اشاره کولو سره اوفرمائیل چه زه او هغه کونډه زنانه د غمژن مخ والا (یعنی د خاوند د مرګ د وجې نه خفه شوې) به د قیامت په ورځ داسې یو ځائې یو. بیا وړاندې رسول الله ﷺ د هغه کونډې صفت بیان کړو چه هغه د خاوند والا ښځه کومه چه بې خاونده شوې وی. ښکلې او باحیثیته، چا چه خپل ځان منع کړو د خپلو یتیمانو بچو د خیال ساتلو دپاره او د پالنې دپاره، تردې چه هغه د دې نه جدا شی په غټیدو سره یا مړۀ شی.

د دې حدیث نه د یتیم ماشومانو د خدمت فضیلت صفا معلومیږی لکه چه په ترجمة الباب کښې دی.

## باب فِي مَنْ ضَمَّ يَتِيمًا

### باب ۱۲۱، ۱۲۲ - د دې خبرې د فضیلت بیان چه یتیم لره د خپل اهل او عیال سره ملاؤ کړی او پرورش ئې کوی

[۵۱۵۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ أَبِي حَازِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ سَهْلٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ كَهَاتَيْنِ فِي الْجَنَّةِ، وَقَرَنَ بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ الْوُسْطَى وَالَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ".

د حضرت سهل (بن سعد انصاری) نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه زۀ او د یتیم کفالت کوونکې به په جنت کښې داسې یو - او حضور ﷺ خپلې درمیانه او د شهادت والا ګوتې یوځائې کړې او اشاره ئې اوفرمائیله."

﴿ أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ كَهَاتَيْنِ فِي الْجَنَّةِ ﴾ کوم سړې چه د یو یتیم کفالت کوی رسول الله ﷺ خپلې دواړه ګوتې اوچتولو سره د هغوی طرف ته اشاره اوفرمائیله چه زه او هغوی به په جنت کښې داسې یو، د دې نه مراد د جنت د درجاتو قرب نه دې بلکه د دخول جنت قرب مراد دې. کذا قالوا.

.............

(۱): صحيح البخاري/الطلاق ٢٥ (٥٣٠٣)، الأدب ٢٤ (٦٠٠٥)، سنن الترمذي/ البر والصلة ١٤ (١٩١٨)، تحفة الأشراف: ٤٧١٠)، مسند احمد (٣٣٣/٥) (صحيح)

# بَابٌ فِي حَقِّ الْجِوَارِ

## باب: ١٢٢، ١٢٣ - د ګاونډيانو د حقوقو بيان

[٥١٥١]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا زَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ، حَتَّى قُلْتُ لَيُوَرِّثَنَّهُ".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه جبريل امين عليه السلام ما ته د ګاونډی متعلق مسلسل وصيت کولو تردې چه ماته دا خيال شو چه هغه به دۀ لره وارث جوړ کړی.“

**قوله:** ﴿ مَا زَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ حَتَّى قُلْتُ لَيُوَرِّثَنَّهُ ﴾

جبرائيل عليه السلام به ماته د ګاونډی د حقوقو په باره کښې وصيت فرمائيلو دومره زيات چه ما دا اوګڼړله چه د ګاونډی نه به وارث جوړ کړي.

او د دې نه په روستو روايت کښې دی چه عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما يو بيزه ذبح کړه نو د هغې په باره کښې ئې د خپل کور د خلقو نه تپوس اوکړو چه د خپل يهودی ګاونډی دپاره مو هم د هغې نه څه غوښه هديه کړې ده که نه، او د هغې نه پس ئې بيا دا پورته حديث مضمون بيان کړو.

[٥١٥٢]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ بَشِيرٍ أَبِي إِسْمَاعِيلَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو "أَنَّهُ ذَبَحَ شَاةً، فَقَالَ: أَهْدَيْتُمْ لِجَارِي الْيَهُودِيِّ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: مَا زَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ، حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ".

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه متعلق دا مروی دی چه هغوی يوه چيلۍ ذبح کړه او بيا ئې تپوس اوکړو آيا تاسو زما يهودی ګاونډی ته هم څه ليږلي دي؟ بې شکه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دی هغه فرمائيل: جبريل امين عليه السلام به ماته د ګاونډی په باره کښې مسلسل وصيت کولو تردې پورې چه ما ته دا خيال راغې چه هغه به دۀ لره وارث جوړه وی.

[٥١٥٣]([3]) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ نَافِعٍ أَبُو تَوْبَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَيَّانَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَشْكُو جَارَهُ، فَقَالَ: اذْهَبْ فَاصْبِرْ، فَأَتَاهُ مَرَّتَيْنِ، أَوْ ثَلَاثًا، فَقَالَ: اذْهَبْ فَاطْرَحْ مَتَاعَكَ فِي الطَّرِيقِ، فَطَرَحَ مَتَاعَهُ فِي الطَّرِيقِ، فَجَعَلَ النَّاسُ يَسْأَلُونَهُ فَيُخْبِرُهُمْ خَبَرَهُ، فَجَعَلَ النَّاسُ يَلْعَنُونَهُ فَعَلَ اللَّهُ بِهِ وَفَعَلَ وَفَعَلَ، فَجَاءَ إِلَيْهِ جَارُهُ، فَقَالَ لَهُ: ارْجِعْ لَا تَرَى مِنِّي شَيْئًا تَكْرَهُهُ".

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته يو کس راغې او د خپل ګاونډی شکايت ئې اوکړو، حضور ﷺ اوفرمائيل لاړ شه او صبر کوه.“ هغه بيا حضور ﷺ ته دوه يا درې کرته راغې نو حضور ﷺ اوفرمائيل لاړشه او خپل سامان په لاره باندې واچوه.“

---

[1]: صحيح البخاري/الأدب ٢٨ (٦٠١٤)، صحيح مسلم/البر والصلة ٤٢ (٢٦٢٤)، سنن الترمذي/البر والصلة ٢٨ (١٩٤٢)، سنن ابن ماجه/الأدب ٤ (٣٦٧٣)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٩١/٦، ١٢٥، ٢٣٨) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/البر والصلة ٢٩ (١٩٤٣)، (تحفة الأشراف: ٨٩١٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٠/٢) (صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤١٤١) (حسن صحيح)

چنانچه هغه خپل سامان په لاره باندې واچولو - خلقو د هغه نه پوښتنه اوکړه (چه دا څه شوې دی؟) نو هغه خلقو ته دَ خپل ګاونډی سلوک اوښودلو نو خلقو هغه لره ملامته کړو - الله تعالیٰ دې هغه داسې کړی، داسې کړی - هغه ګاونډی دهٔ ته راغې او هغه ته ئې اووې تهٔ خپل کور ته واپس لاړشه - (بیا به) زما نه څه ناپسندیده کار نهٔ وینې -

**قوله:** ﴿ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- يَشْكُو جَارَهُ الخ ﴾

یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو د خپل ګاونډی شکایت کولو سره چا چه به هغه ته تکلیف ورکولو، رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل لاړ شه او صبر کوه، د دې نه پس هم هغه په دویم ځل یا په دریم ځل راغلو نو هغه وخت رسول الله ﷺ هغه ته اوفرمائیل چه داسې اوکړه چه د خپل کور ټول سامان د کور نه راوباسه او په لاره کښې ئې کیږده، هغه لاړو او خپل سامان ئې د کور نه بهر راویستلو او بهر ئې په کوڅه کښې کیخودل شروع کړل اوس په لاره باندې تلونکو د هغه نه تپوس کول شروع کړل چه څهٔ خبره ده ته داسې ولې کوئ هغه ورته اووې چه د ګاونډی د تکلیف ورکولو د وجې نه، خلقو به په دې اوریدلو سره هغه ګاونډی ته خیرې کولې او بدې ردې به ئې وئیلې، لږ ساعت تیر شوې وو چه د هغه ګاونډی هغه ته راغلو او ورته ئې اووې چه کور ته لاړ شه بیا به داسې ناخوښه خبره نه پیښیږی.

**(د یو اخستونکی عجیبه واقعه)**

په دې باندې ماته یو قصه رایاده شوه کومه چه مې په ورو کوالی د خپل والد صاحب رحمه الله نه اوریدلې وه چه یو مولوی صاحب د یو سړی نه خربوزې واخستلې چه د هغې په باره کښې هغوی ډیر په اعتماد سره اووې چه ډیرې خوږې دی هغه کور ته راوړلې چه کله ئې هغه کور کښې اوکتلې نو هغه پیکه اوختلې هغوی هغه واپس راوړلې دې دکاندار ته، هغه د واپس اخستلو نه انکار اوکړو چه زه د دې ذمه دار نه یم، هغه مولوی صاحب هغه خربوزې د هغه په خوا کښې خپلې مخې ته کیخودلې او ورته کیناستلو او کله چه به یو ګاهک هغه ته د اخستلو د پاره راتلو نو هغه مولوی صاحب به هغه ګاهک ته وئیل چه که نمونه کتل غواړې نو دا ده، هغه به د خوړلو نه پس واپس شو او نه به ئې اخستله دوه درې اخستونکې هم دغه شان واپس شو چه کله خربوزو والا دا اوکتل نو هغه عاجز راتلو سره اووې چه مولوی صاحب خپلې پیسې واخله ، هغه مولوی صاحب پیسې واخستلې او لاړو.

[٥١٥٤](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، فَلَا يُؤْذِ جَارَهُ، وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْ لِيَصْمُتْ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل کوم کس چه په الله او په ورځ دَ آخرت ایمان لری نو هغه لره پکار دی چه دَ پل میلمه عزت کوی - کوم کس چه په الله او په ورځ دَ آخرت باندې ایمان لری هغه لره پکار دی چه خپل ګاونډی ته تکلیف نهٔ رسوی -

(١): صحيح البخاري/الأدب ٨٥ (٦١٣٨)، صحيح مسلم/الإيمان ١٩ (٤٧)، سنن الترمذي/صفة القيامة ٥٠ (٢٥٠٠)، (تحفة الأشراف: ١٥٢٧٢)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الفتن ١٢ (٣٩٧١)، مسند احمد (٢/٢٦٧، ٢٦٩، ٤٣٣، ٤٦٣) (صحيح)

او کوم کس چه په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان لری هغه لره پکار دی چه د خیر خبره کوی یا دې خاموش شی۔"

[٥١٥٥](¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، وَسَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، أَنَّ الْحَارِثَ بْنَ عُبَيْدٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ أَبِي عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ، عَنْ طَلْحَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قُلْتُ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لِي جَارَيْنِ بِأَيِّهِمَا أَبْدَأُ؟ قَالَ: بِأَدْنَاهُمَا بَابًا"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ شُعْبَةُ فِي هَذَا الْحَدِيثِ: طَلْحَةُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ.

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دې هغه فرمائی چه ما عرض اوکړو اې د الله رسوله! زما دوه ګاونډیان دی، زهٔ (په احسان کولو کښې) د کوم نه ابتداء اوکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل د چا چه دروازه زیاته قریبه وی۔" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه شعبه ددې حدیث په سند کښې د طلحه په تعارف کښې وئیلې دی: هغه یو قریشی سړې وو۔

## بَابٌ فِي حَقِّ الْمَمْلُوكِ

### باب: ١٢٣، ١٢٤ - د غلامانو د خاص خیال ساتلو بیان

[٥١٥٦](²) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفُضَيْلِ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ أُمِّ مُوسَى، عَنْ عَلِيٍّ عليه السلام، قَالَ: "كَانَ آخِرُ كَلَامِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ الصَّلَاةَ اتَّقُوا اللَّهَ فِيمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ".

د حضرت علی رضي الله عنه نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ اخری خبره دا وه: "مونځ، مونځ" او د خپل غلام په باره کښې د الله نه یریږئ۔"

[٥١٥٧](³) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنِ الْمَعْرُورِ بْنِ سُوَيْدٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ أَبَا ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ وَعَلَيْهِ بُرْدٌ غَلِيظٌ وَعَلَى غُلَامِهِ مِثْلُهُ، قَالَ: فَقَالَ الْقَوْمُ: يَا أَبَا ذَرٍّ، لَوْ كُنْتَ أَخَذْتَ الَّذِي عَلَى غُلَامِكَ فَجَعَلْتَهُ مَعَ هَذَا فَكَانَتْ حُلَّةً وَكَسَوْتَ غُلَامَكَ ثَوْبًا غَيْرَهُ، قَالَ: فَقَالَ أَبُو ذَرٍّ: إِنِّي كُنْتُ سَابَبْتُ رَجُلًا وَكَانَتْ أُمُّهُ أَعْجَمِيَّةً، فَعَيَّرْتُهُ بِأُمِّهِ فَشَكَانِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ، فَقَالَ: يَا أَبَا ذَرٍّ، إِنَّكَ امْرُؤٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ، قَالَ: إِنَّهُمْ إِخْوَانُكُمْ فَضَّلَكُمُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ، فَمَنْ لَمْ يُلَائِمْكُمْ فَبِيعُوهُ وَلَا تُعَذِّبُوا خَلْقَ اللَّهِ".

حضرت معرور بن سوید بیان کوی چه ما حضرت ابو ذر رضي الله عنه لره په ربذه مقام کښې اولیدو، هغه یو پیړ اونی څادر په سر کړې وو او د هغه په غلام باندې هم هغسې څادر وو زمونږ ملګرو اووې اې ابوذر! که چرې تا د غلام والا څادر خپله اخستې وې نو داسې به ستا حله (پورا کپړا) جوړه شوې وې۔ غلام ته به دې څه بل کپړا ورکړې وې۔ نو حضرت ابوذر رضي الله عنه اوفرمائیل چه ما یو سړی ته کنځل کړې وو چه د هغه مور عجمی وه، ما هغه ته د هغه د مور پیغور ورکړو نو هغه رسول الله ﷺ ته زما شکایت اوکړو۔ نو حضور ﷺ

---

¹): صحيح البخاري/الشفعة ٣ (٢٢٥٩)، الهبة ١٦ (٢٥٩٥)، الأدب ٣٢ (٦٠٢٠)، (تحفة الأشراف: ١٦١٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٥/٦، ١٩٣، ٢٣٩) (صحيح)

²): سنن ابن ماجه/الوصايا ١ (٢٦٩٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٣٤٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٧٨/١) (صحيح)

³): صحيح البخاري/الإيمان ٢٢ (٣٠)، العتق ١٥ (٢٥٤٥)، الأدب ٤٤ (٦٠٥٠)، صحيح مسلم/الأيمان ١٠ (١٦٦١)، سنن الترمذي/البر والصلة ٢٩ (١٩٤٥)، سنن ابن ماجه/الأدب ١٠ (٣٦٩٠)، (تحفة الأشراف: ١١٩٨٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥٨/٥، ١٦١، ١٧٣) (صحيح)

اوفرمائيل: اې ابوذر رضی الله عنه! ته داسې سړې ئې چه په تا کښې د جاهليت اثر دې." هغه ﷺ مزيد اوفرمائيل: بې شکه دا (غلام) ستا رور دې الله تعالیٰ تاله په دهٔ باندې فضيلت درکړې دې. پس د چا سره چه ستا طبيعت نهٔ لګی، نو هغه لره خرڅ کړه ليکن د الله مخلوق ته تکليف مهٔ ورکوه."

**قوله:** ﴿ كَانَ آخِرُ كَلَامِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « الصَّلَاةَ الصَّلَاةَ اتَّقُوا اللَّهَ فِيمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ » ﴾ سيدنا علی رضی الله عنه فرمائی چه د دنيا نه د رخصت کيدو په وخت د رسول الله ﷺ آخری کلام دا وو چه د مانځه اهتمام کوئ، او د خادمانو او غلامانو په باره کښې د الله پاک نه اويرېږئ.

**قوله:** ﴿ رَأَيْتُ أَبَا ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ وَعَلَيْهِ بُرْدٌ غَلِيظٌ وَعَلَى غُلَامِهِ مِثْلُهُ ﴾ معرور بن سويد فرمائی چه ما ابوذرغفاری رضی الله عنه په مقام ربذه کښې چرته چه هغوی استوګنه اختيار کړې وه، داسې اوليدو چه په هغوی باندې يو پيړ شان څادر وو (او لنګ ئې بل قسم وو) او څنګه څادر چه ئې خپله اغوستلې وو هم دغه شان ئې په غلام باندې هم وو.نو دې خلقو هغوی ته عرض اوکړو چه تاسو ډيره بې جوړه جامه اچولې ده دا څادر چه تاسو د اچولو دپاره غلام ته ورکړې دې د دې نه خپل لنګ جوړ کړئ چه ستاسو دواړه کپړې يو شان شی، څادر او لنګ، يو شان دوه کپړو ته حلة وائی.او دې خپل غلام ته د اغوستلو دپاره بل څادر ورکړئ، نو په دې باندې هغوی خپله واقعه واوروله، چه ما يو ځل يو سړی ته کنځل کړې وو چه د چا مور عجمی وه، ما هغه ته د هغه د مور پيغور ورکړو، ليکلې دی چه د دې سړی نه مراد سيدنا بلال رضی الله عنه دې هغوی يو ځل هغوی ته داسې وئيلې وو، يا ابن السوداء ...ای د تورې ښځې! هغه لاړو او زما شکايت ئې رسول الله ﷺ ته اوکړو، په دې باندې هغوی ماته اوفرمائيل: ﴿ يَا أَبَا ذَرٍّ إِنَّكَ امْرُؤٌ فِيكَ جَاهِلِيَّةٌ الخ ﴾ اې ابوذر! په تاکښې اوس هم د جاهليت بعض خصلتونه باقی دی يعنې ځان لوئې ګڼړل او بل ته پيغور ورکول.او بيا ئې اوفرمائيل چه دا تاسو سره چه کوم ستاسو غلامان دی دا ستاسو رونړه دی يعنې د يو پلار آدم عليه السلام ټول اولاد دې، وقتی طور الله پاک تاسو ته په دوی باندې فضيلت درکړې دې، په تاسو کښې چه د چا غلام د هغه موافقت (تابعداری) نه کوی هغه خرڅ کړئ ځان سره ئې مه ساتئ. او هغه لره ځان سره ساتلو باندې خپل ځان په عذاب کښې مه اچوئ.

[٥١٥٨](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنِ الْمَعْرُورِ بْنِ سُوَيْدٍ، قَالَ: دَخَلْنَا عَلَى أَبِي ذَرٍّ بِالرَّبَذَةِ فَإِذَا عَلَيْهِ بُرْدٌ وَعَلَى غُلَامِهِ مِثْلُهُ، فَقُلْنَا: يَا أَبَا ذَرٍّ، لَوْ أَخَذْتَ بُرْدَ غُلَامِكَ إِلَى بُرْدِكَ فَكَانَتْ حُلَّةً وَكَسَوْتَهُ ثَوْبًا غَيْرَهُ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "إِخْوَانُكُمْ جَعَلَهُمُ اللَّهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ، فَمَنْ كَانَ أَخُوهُ تَحْتَ يَدَيْهِ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا يَأْكُلُ وَلْيَكْسُهُ مِمَّا يَلْبَسُ وَلَا يُكَلِّفُهُ مَا يَغْلِبُهُ، فَإِنْ كَلَّفَهُ مَا يَغْلِبُهُ فَلْيُعِنْهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ ابْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ نَحْوَهُ.

حضرت معرور بن سويد رحمه الله فرمائی چه مونږه په ربذه مقام کښې حضرت ابوذر رضی الله عنه سره

---

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١١٩٨٠) (صحيح)

ملاؤ شو او مونږ اوليدل چه په هغه باندې يو اونی پيړ څادر وو او د هغه د غلام هم هغسې څادر وو - نو مونږه اووې اې ابو ذر ! که چرې تا دخپل غلام والا څادر د خپل څادر سره ملاؤ کړې وې نو دا به يوه جوړه جوړه شوې وې - نو هغه اوفرمائيل چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دی هغه فرمائيل : دا ستاسو رونړه دی چه دوی لره الله پاک ستاسو د لاسونو لاندې کړې دی - چنانچه دچا رور چه د هغه ماتحت وی نو هغه لره پکار دی چه په هغه باندې هغه څه اوخوری کوم چه په خپله باندې خوری او هغه ته دې هم هغه څه اغونده وی کوم چه په خپله باندې اغوندی، او د هغه نه دې د هغه د همت نه زيات کار نۀ اخلی، او که چرې دۀ لره مکلف کړی، نو د هغه مدد دې هم اوکړی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روايت لره ابن نميرد اعمش نه د مذکوره بالا روايت هم معنیٰ بيان کړې دې-

[٥١٥٩](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: "كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِي، فَسَمِعْتُ مِنْ خَلْفِي صَوْتًا اعْلَمْ أَبَا مَسْعُودٍ، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى مَرَّتَيْنِ: لَلَّهُ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلَيْهِ، فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللَّهِ تَعَالَى، قَالَ: أَمَا إِنَّكَ لَوْ لَمْ تَفْعَلْ لَلَفَعَتْكَ النَّارُ أَوْ لَمَسَّتْكَ النَّارُ".

د حضرت ابو مسعود انصاری رضی الله عنه نه روايت دې چه يو ځل ما خپل غلام لره وهلو نو ما د ورستو نه آواز واوريدو : " ابو مسعود خيال کوه ...... " د ابن مثنیٰ الفاظ دی : ما دا آواز دوه کرتې واوريدو ...... " الله تعالیٰ ته په دۀ باندې ددې نه زيات قدرت دې څومره چه پرې تۀ قدرت لرې -" ما شاته اوکتل نو هغه رسول الله ﷺ وو - نو ما (فورا) اووې اې د الله رسوله ! دا د الله دپاره آزاد دې - حضور ﷺ اوفرمائيل : که چرې تا دا نۀ وې کړې نو اور به تالره په خپله گرفت کښې راوستې وو -

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ « لَلَّهُ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلَيْهِ » الخ ﴾

ابومسعود انصاری رضی الله عنه فرمائی چه ما خپل يو غلام وهلو نو ما د شاته نه يو آواز واوريدلو چه اې ابو مسعود ځان پوهه کړه او دوه کرته مې دا آواز واوريدلو چه بيشکه الله پاک په تا باندې زيات قادر دې په نسبت ستا په دې غلام باندې، دقادريدو په دويم روايت کښې دی چه ما هغه په کوړه باندې وهلو، چه ما شاته اوکتل نو هغه رسول الله ﷺ وو، ما د هغوی په ليدو باندې عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ دا غلام د الله پاک دپاره آزاد دې، رسول الله ﷺ اوفرمائيل که تا داسې نه وې کړې نو د جهنم اور به تا ته رسيدلې وې.

[٥١٦٠](2) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ، عَنْ الْأَعْمَشِ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ نَحْوَهُ، قَالَ: كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِي أَسْوَدَ بِالسَّوْطِ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَمْرَ الْعِتْقِ.

اعمش په خپل سند سره د مذکوره بالا حديث په مثل باندې روايت کړې دې - په دې کښې دی چه ما يو خپل غلام لره په کوړا باندې وهلو - مگر په دې کښې د آزادولو بيان نشته دې-

(1): صحيح مسلم/الأيمان ٨ (١٦٥٩)، سنن الترمذي/البر والصلة ٣٠ (١٩٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٠٠٠٩)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٢٠/٤، ٢٧٣/٥، ٢٧٤) (صحيح)

(2): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٠٠٩) (صحيح)

[۵۱۶۱] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ مُوَرِّقٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ لَاءَمَكُمْ مِنْ مَمْلُوكِيكُمْ، فَأَطْعِمُوهُ مِمَّا تَأْكُلُونَ وَاكْسُوهُ مِمَّا تَلْبَسُونَ، وَمَنْ لَمْ يُلَائِمْكُمْ مِنْهُمْ فَبِيعُوهُ، وَلَا تُعَذِّبُوا خَلْقَ اللَّهِ".

د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو د وینځو، غلامانو نه چه کوم تاسو سره موافق دی (ستاسو د خوښې مطابق ستاسو خدمت کوی) نو په هغوی باندې هغه څه خوره وئ کوم چه تاسو خورئ او دوی ته هغه واغونده وئ کوم چه په خپله باندې اغوندئ او کوم چه ستاسو موافق نهٔ وی، نو هغه لره خرڅ کړئ او د الله مخلوق ته عذاب مهٔ ورکوئ."

**قوله:** ﴿ مَنْ لَاءَمَكُمْ مِنْ مَمْلُوكِيكُمْ فَأَطْعِمُوهُ مِمَّا تَأْكُلُونَ وَاكْسُوهُ مِمَّا تَكْتَسُونَ الخ ﴾ د ابوذر رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه ستاسو په غلامانو کښې چه کوم غلام ستاسو موافق وی، د هغه سره مناسبت وی نو په هغه باندې هم هغه شان خورئ او اغوندئ څنګه چه تاسو خپله خورئ او اغوندئ، او کوم چه ستاسو موافق نه شی نو هغه د بل چا په لاس باندې خرڅ کړئ، خپل ځان سره ئې مه ساتئ، ځکه چه خپل ځان سره د ساتلو په صورت کښې به هغه ته د بار بار تنبیه او د وهلو حاجت راځی لکه چه وړاندې فرمائی: وَلَا تُعَذِّبُوا خَلْقَ اللَّهِ.

[۵۱۶۲] (۲) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ زُفَرَ، عَنْ بَعْضِ بَنِي رَافِعِ بْنِ مَكِيثٍ، عَنْ رَافِعِ بْنِ مَكِيثٍ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ الْحُدَيْبِيَةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "حُسْنُ الْمَلَكَةِ يُمْنٌ، وَسُوءُ الْخُلُقِ شُؤْمٌ".

د حضرت رافع بن مکیث رضی الله عنه نه روایت دې او دې په غزوهٔ حدیبیه کښې د نبی کریم ﷺ سره شریک وو، هغوی بیان کوی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه (د خپل ماتحت او د زیر ملکیت والا سره) عمده برتاؤ کول برکت دې او بد خلقی نحوست دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ رَافِعِ بْنِ مَكِيثٍ وَكَانَ مِمَّنْ شَهِدَ الْحُدَيْبِيَةَ مَعَ النَّبِيِّ –صلى الله عليه وسلم– أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « حُسْنُ الْمَلَكَةِ يمن وَسُوءُ الْخُلُقِ شُؤْمٌ » ﴾ چه د خپلو ماتحتو سره ښه سلوک کول سبب دې د خیر او برکت، او بدخلقی سپیرهٔ والې دې.

[۵۱۶۳] (۳) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُصَفَّى، حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ زُفَرَ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ رَافِعِ بْنِ مَكِيثٍ، عَنْ عَمِّهِ الْحَارِثِ بْنِ رَافِعِ بْنِ مَكِيثٍ وَكَانَ رَافِعٌ مِنْ جُهَيْنَةَ قَدْ شَهِدَ الْحُدَيْبِيَةَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "حُسْنُ الْمَلَكَةِ يُمْنٌ، وَسُوءُ الْخُلُقِ شُؤْمٌ".

د حضرت حارث بن مکیث رضی الله عنه نه روایت دې - او حضرت رافع رضی الله عنه د قبیلهٔ جهینه نه وو او په غزوهٔ حدیبیه کښې د نبی کریم ﷺ سره وو - د رسول الله ﷺ نه روایت کوی چه هغه اوفرمائیل: (د زیر ملکیت او د ماتحت سره) عمده برتاؤ کول د برکت باعث دې او بد خلقی

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۸۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۱۶۸، ۱۷۳) (صحیح)
(۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳۵۹۹، ۱۸۴۸۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۵۰۲) (ضعیف)
(۳): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۵۹۹، ۱۸۴۸۰) (ضعیف)

نحوست (سپیرۀ والي) دي."

[٥١٦٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، وَأَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، وَهَذَا حَدِيثُ الْهَمْدَانِيِّ وَهُوَ أَتَمُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو هَانِئٍ الْخَوْلَانِيُّ، عَنْ الْعَبَّاسِ بْنِ جُلَيْدٍ الْحَجْرِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، يَقُولُ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَمْ نَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ؟ فَصَمَتَ، ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ الْكَلَامَ، فَصَمَتَ فَلَمَّا كَانَ فِي الثَّالِثَةِ، قَالَ: اعْفُوا عَنْهُ فِي كُلِّ يَوْمٍ سَبْعِينَ مَرَّةً".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه رایت دي چه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې یو کس حاضر شو او تپوس ئي اوکړو اې دَ الله رسوله ! مونږ غلام څومره قدرې معاف کوو؟ حضور ﷺ خاموش وو هغه بیا پوښتنه اوکړه حضور ﷺ خاموش وو هغه بیا سوال اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل: هغه لره هره ورځ اویا (٧٠) کرتې معاف کوئ."

**قوله:** ﴿ كَمْ نَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ فَصَمَتَ ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ الْكَلَامَ ﴾ سیدنا عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه یو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو او عرض ئي اوکړو یا رسول الله ﷺ ! مونږ خپلو خادمانو ته څومره معافي اوکړو یعنی د هغوی په غلطو باندې، رسول الله ﷺ خاموش پاتې شو، هغه بیا هم هغه عرض اوکړو، په دې باندې هم هغوی خاموش پاتې شو، بیا په دریم کرت د هغوی په تپوسلو باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه هره ورځ اویا کرته بخښنه کوه.

[٥١٦٥](٢) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنَا. ح وحَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، قَالَ: أَخْبَرَنَا عِيسَى، حَدَّثَنَا فُضَيْلٌ يَعْنِي ابْنَ غَزْوَانَ، عَنِ ابْنِ أَبِي نُعْمٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبُو الْقَاسِمِ نَبِيُّ التَّوْبَةِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ قَذَفَ مَمْلُوكَهُ وَهُوَ بَرِيءٌ مِمَّا قَالَ، جُلِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَدًّا"، قال مُؤَمَّلٌ: حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنِ الْفُضَيْلِ يَعْنِي ابْنَ غَزْوَانَ.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دي هغه فرمائی چه ماته حضرت ابو القاسم نبی التوبه ﷺ اوفرمائیل : چاچه په خپل غلام باندې تهمت اولګوو او حالانکه هغه ددې نه بری وو کوم چه دې د هغه په باره کښې وائی نو دهٔ (مالک) ته به دَ قیامت په ورځ باندې حد لګولې شی "موسل (بن فضل) سند داسې بیان کړې دې [ حدثنا عیسی عن فضیل یعنی ابن عزوان]

**قوله:** ﴿ مَنْ قَذَفَ مَمْلُوكَهُ وَهُوَ بَرِيءٌ مِمَّا قَالَ جُلِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَدًّا ﴾ یعنی کوم مولی چه په خپل غلام باندې تهمت اولګوی د زنا وغیره او حال دا دې چه هغه غلام د دې نه بری دې نو په دې مولی باندې به د قیامت په ورځ باندې حد قذف جاری کیږی.

[٥١٦٦](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ عِيَاضٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ هِلَالِ بْنِ يَسَافٍ، قَالَ: "كُنَّا نُزُولًا فِي دَارِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ وَفِينَا شَيْخٌ فِيهِ حِدَّةٌ وَمَعَهُ جَارِيَةٌ لَهُ، فَلَطَمَ وَجْهَهَا، فَمَا رَأَيْتُ سُوَيْدًا أَشَدَّ غَضَبًا مِنْهُ ذَاكَ الْيَوْمَ،

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٨٨٣٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/البر والصلة ٣١ (١٩٤٩) (صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الحدود ٤٥ (٦٨٥٨)، صحيح مسلم/الأيمان ٩ (١٦٦٠)، سنن الترمذي/البر والصلة ٣٠ (١٩٤٧)، (تحفة الأشراف: ١٣٦٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣١/٢، ٤٩٩) (صحيح)

(٣): صحيح مسلم/الأيمان ٨ (١٦٥٨)، سنن الترمذي/النذور ١٤ (١٥٤٢)، (تحفة الأشراف: ٤٨١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٤٨/٣، ٤٤٨/٥) (صحيح)

قَالَ: عَجَزَ عَلَيْكَ إِلَّا حُرُّ وَجْهِهَا، لَقَدْ رَأَيْتُنَا سَابِعَ سَبْعَةٍ مِنْ وَلَدِ مُقَرِّنٍ، وَمَا لَنَا إِلَّا خَادِمٌ، فَلَطَمَ أَصْغَرُنَا وَجْهَهَا، فَأَمَرَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعِتْقِهَا".

د حضرت هلال بن ایساف رضی الله عنه نه روایت دې چه مونږه د حضرت سوید بن مقرن رضی الله عنه په کور کښې وو زمونږه سره د ډیر عمر یو شیخ هم وو چه د هغه په طبیعت کښې تیزی وه او د هغه سره خپله وینځه هم وه نو هغه هغه خپله وینځه په مخ باندې اووهله - په دغه ورځ باندې حضرت سوید رضی الله عنه دومره قدرې غصه وو چه ددینه وړاندې ما هغه لره په دومره غصه کښې نه وو لیدلې - هغوی اووې آیا ته دومره عاجز (او مغلوب الغضب) شوې وې چه ددې د وهلو دپاره تاته صرف ددې د عزت والا مخ ملاؤ شوې وو - ماته هغه منظر یاد دې چه زه په اولاد مقرن کښې اووم فرد وم او زمونږ هم یوه خادمه وه زمونږه یو وړوکی (کم عمره) هغې لره په مخ باندې اووهله نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته حکم اوکړو چه دې لره آزاده کړئ -"

معلومه شوه چه په دنیا کښې خو به پرې نه جاری کیږی پس مسئله هم دغه شان ده خو په آخرت کښې به پرې جاری کیږی.

**قوله:** ﴿ عَنْ هِلَالِ بْنِ يِسَافٍ قَالَ كُنَّا نُزُولاً فِي دَارِ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ وَفِينَا شَيْخٌ فِيهِ حِدَّةٌ الخ ﴾

هلال بن یساف وائی چه مونږ سوید بن مقرن رضی الله عنه سره دیره وو او مونږ سره یو مشر سړې وو چه هغه غصه ناک وو او هغه سره یو وینځه وه، یوه ورځ هغه شیخ دې وینځې ته سپیړه ورکړه، نو هلال وائی چه د هغه ورځې نه زیات ما کله هم سوید رضی الله عنه په غصه نه وو لیدلې، او وې فرمائیل هغه سړې ته چه تاته د دې دا نازک مخ د وهلو دپاره پاتې شوې وو، یعنی د بدن په بله حصه دې نه شوه وهلې (ځکه چه په مخ باندې د وهلو نه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع فرمائیلې ده) او بیا هغوی خپله یو واقعه واوروله چه مونږ د مقرن سره ناست وو چه په یو ځائې کښې اوسیدو او مونږ ټولو سره مشترک یو خادم وو نو زمونږ د ټولو نه وړوکې رور یو ځل هغه خادم په مخ باندې اوهلو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته حکم اوفرمائیلو د هغه د آزادولو.

په دې حدیث کښې لفظ حر راغلې دې په شرح کښې لیکلې دی: حر کل شئ افضله وارفعه.

[٥١٦٧] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ سُوَيْدِ بْنِ مُقَرِّنٍ، قَالَ: "لَطَمْتُ مَوْلًى لَنَا، فَدَعَاهُ أَبِي وَدَعَانِي، فَقَالَ: اقْتَصَّ مِنْهُ، فَإِنَّا مَعْشَرَ بَنِي مُقَرِّنٍ كُنَّا سَبْعَةً عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ لَنَا إِلَّا خَادِمٌ، فَلَطَمَهَا رَجُلٌ مِنَّا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَعْتِقُوهَا، قَالُوا: إِنَّهُ لَيْسَ لَنَا خَادِمٌ غَيْرَهَا، قَالَ: فَلْتَخْدُمْهُمْ حَتَّى يَسْتَغْنُوا، فَإِذَا اسْتَغْنَوْا فَلْيُعْتِقُوهَا".

حضرت معاویه بن سوید بن مقرن فرمائی چه ما یو غلام لره په سپیړه باندې اووهلو نو زما پلار ما او هغې لره راوغښتو او غلام ته ئې اووې ددهٔ نه خپله بدله واخله او هغه اوفرمائیل چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په دور کښې مونږ د بنی مقرن نه اووهٔ کسان وو او زمونږه هم یوه خادمه وه زمونږه نه یو سړی هغې لره په سپیړه باندې اووهله، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل دې لره آزاده کړئ صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اوفرمائیل چه ددوی سره ددې نه علاوه بله کومه خادمه نشته دې، اوئې فرمائیل چه تر کومه دوی ته کومه بله خادمه نهٔ ملاویږی تر هغه پورې دې

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٧١٧) (صحيح)

داخدمت کوی کله چه دوی ددې نه مستغنی شي نو دې لره دې ازاده کړي.

[٥١٦٨]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو كَامِلٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ فِرَاسٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ ذَكْوَانَ، عَنْ زَاذَانَ، قَالَ: أَتَيْتُ ابْنَ عُمَرَ وَقَدْ أَعْتَقَ مَمْلُوكًا لَهُ فَأَخَذَ مِنَ الْأَرْضِ عُودًا أَوْ شَيْئًا، فَقَالَ: مَا لِي فِيهِ مِنَ الْأَجْرِ مَا يَسْوَى هَذَا سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: مَنْ لَطَمَ مَمْلُوكَهُ أَوْ ضَرَبَهُ، فَكَفَّارَتُهُ أَنْ يُعْتِقَهُ".

حضرت زاذان بیان کوی چه زهٔ حضرت ابن عمر رضي الله عنه ته ورغلم او هغه خپل یو غلام لره ازاد کړې وو هغه دَ زمکې نه یو ډکې یا څه بل څیز واخستو اووې فرمائیل: چه ددهٔ په آزادولو کښې ماته دومره هم ثواب نهٔ دې ملاؤ شوې، ما دَ رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی هغه فرمائیل چا چه خپل غلام له سپیړه ورکړه یا ئې اووهلو نو دَ هغه کفاره هم داده چه هغه لره آزاد کړی."

**قوله:** ﴿ عَنْ زَاذَانَ قَالَ أَتَيْتُ ابْنَ عُمَرَ وَقَدْ أَعْتَقَ مَمْلُوكًا لَهُ الخ ﴾

زاذان وائی چه زه ابن عمر رضي الله عنهما ته لاړم او هم په هغه وخت کښې هغوی خپل یو غلام آزاد کړې وو، د دې نه پس هغوی د زمکې نه یو ډکې راوچت کړو او وې فرمائیل ماته به په دې آزادولو کښې د دې ډکې برابر ثواب هم نه ملاویږی (ځکه چه هغوی دې غلام ته سپیړه ورکړې وه) ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلي دی هغوی به فرمائیل چه کوم سړې خپل غلام ته سپیړه ورکړی یا په څه طریقه هغه اووهی نو د دې جرم کفاره دا ده چه هغه دې آزاد کړی، او د مسلم په روایت کښې د حدیث مرفوع الفاظ دا دی: مَنْ ضَرَبَ غُلَامًا لَهُ حَدًّا لَمْ يَأْتِهِ أَوْ لَطَمَهُ فَإِنَّ كَفَّارَتَهُ أَنْ يُعْتِقَهُ ...یعنی کوم انسان چه خپل غلام ته په یو داسې کار او جرم باندې وهل ورکړی کوم چه په حقیقت کښې هغه نه وی کړی، او یا هغه په مخ باندې اوهی نو په دواړو صورتونو کښې د هغه د ګناه د معاف کیدو شکل دا دې چه هغه آزاد کړی، پس د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د کلام مطلب دا دې چه چونکه زما دې غلام لره آزادول په طور د کفارې دی، ابتداء په غلام باندې د احسان کولو په طور نه دی، لهذا په دې باندې به ماته هغه ثواب نه وی کوم چه د غلام په آزادولو باندې وی، خو فی نفسه کفاره ادا کول هم سبب د اجر دې نو په دې حیثیت سره به راته ثواب ملاویږی. کذافی المنهل، د ابن عمر رضي الله عنهما مقصد په داسې کولو او داسې وئیلو سره خلقو ته خبرداری ورکول دی چه هغوی هم د دې خیال اوساتی چه غلام لره په مخ باندې سپیړه ورکول یا ناحق د هغوی وهل دا لویه ګناه ده.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَمْلُوكِ إِذَا نَصَحَ

### باب: ١٢٤، ١٢٥ - کوم مملوک غلام چه آقا ته نصیحت کوی

[٥١٦٩]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا نَصَحَ لِسَيِّدِهِ وَأَحْسَنَ عِبَادَةَ اللَّهِ، فَلَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ".

[1]: صحيح مسلم/الأيمان ٨ (١٦٥٧)، (تحفة الأشراف: ٦٧١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٥، ٤٥، ٦١) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/العتق ١٦ (٢٥٤٦)، ١٧ (٢٥٥٠)، صحيح مسلم/الأيمان ١١ (١٦٦٤)، (تحفة الأشراف: ٨٣٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٠، ١٠٢، ١٤٢) (صحيح)

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : په تحقیق سره کوم غلام چه خپل آقا ته د خیر خواهئ خبره اوکړی او د الله تعالیٰ عبادت په ښهٔ طریقې سره اوکړی نو د هغه دپاره دوه چنده ثواب دي.

**قوله:** ﴿ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا نَصَحَ لِسَيِّدِهِ وَأَحْسَنَ عِبَادَةَ اللَّهِ فَلَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ ﴾ کوم غلام چه د خپل مالک خیرخواه وی د هغه خدمت کوی او د دې باوجود د الله پاک عبادت هم په ښه طریقه کوی نو د هغه دپاره دوه اجرونه دی، په کتاب النکاح کښې يو حديث تير شوي دې: ﴿ من اعتق جارية وتزوجها كان له اجران ﴾ د دې شرح دې هم اوکتلې شی، يو مشهور حديث دې ﴿ ثلاثة لهم اجران ﴾ په دې باندې کلام هلته تير شوي دې.

## باب فِيمَنْ خَبَّبَ مَمْلُوكًا عَلَى مَوْلَاهُ

### باب ۱۲۵، ۱۳۶، د چا غلام لره د هغه د مالک خلاف راتيزول

[۵۱۷۰] (¹) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ الْحُبَابِ، عَنْ عَمَّارِ بْنِ رُزَيْقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عِيسَى، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ خَبَّبَ زَوْجَةَ امْرِئٍ أَوْ مَمْلُوكَهُ فَلَيْسَ مِنَّا".

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل څوک چه د چا ښځې لره د هغې د خاوند خلاف يا غلام لره د هغه د آقا خلاف راتيز کړی نو هغه زمونږ نه نهٔ دې.

﴿ مَنْ خَبَّبَ زَوْجَةَ امْرِئٍ أَوْ مَمْلُوكَهُ فَلَيْسَ مِنَّا ﴾ دا حديث هم په دې سند او متن سره د کتاب الطلاق بالکل په شروع کښې تير شوي دې، باب فيمن خبب امراة على زوجها کښې.

## باب فِي الِاسْتِئْذَانِ

### باب ۱۳۶، ۱۲۷ - د چا کور يا څه خاص مجلس ته د تلو دپاره اجازت طلب کول

استئذان یعنی د بل کور ته د اجازت اخستلو نه پس داخليدل. د دې باب تعلق د حجاب او پردې سره دې او د پردې ابواب په کتاب اللباس کښې تير شو، باب ما جاء في قول الله تعالى يدنين عليهن من جلابيبهن او په باب في قول الله تعالى وليضربن بخمرهن على جيوبهن ...ونحو ذلك من الابواب، په حاشيه د بذل کښې دی ونزول آية الاستيذان في سنة ۱۰ هجرى كما في الخميس ۲/۱۴۳.

[۵۱۷۱] (²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، "أَنَّ رَجُلًا اطَّلَعَ مِنْ بَعْضِ حُجَرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَامَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِشْقَصٍ أَوْ مَشَاقِصَ، قَالَ: فَكَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْتِلُهُ لِيَطْعَنَهُ".

د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې چه يو سړې د نبی کريم ﷺ يو کورته ور اوختو

---

(¹): تفرد به أبو داود، وانظر حديث رقم (۲۱۷۵)، (تحفة الأشراف: ۱۴۸۱۷) (صحيح)

(²): صحيح البخاري/الاستئذان ۱۱ (۶۲۴۲)، الديات ۱۵ (۶۹۰۰)، ۲۳ (۶۹۲۵)، صحيح مسلم/الآداب ۹ (۲۱۵۷)، سنن النسائي/القسامة ۴۰ (۴۸۶۳)، (تحفة الأشراف: ۱۰۷۸)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الاستئذان ۱۷ (۲۷۰۸)، مسند احمد (۳/۱۰۸، ۱۴۰، ۲۳۹، ۲۴۲) (صحيح)

نو رسول الله ﷺ یوه اوږده نیزه واخسته او دهغه طرف ته پاسیدو، حضرت انس رضی الله عنه فرمائی گویا چه زهٔ وینمه چه رسول الله ﷺ دا نیزه دَ هغه سړی دَ وهلو دپاره خوزه وی-

﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَجُلاً اطَّلَعَ مِنْ بَعْضِ حُجَرِ (١) النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَامَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِمِشْقَصٍ ..........يَخْتِلُهُ لِيَطْعُنَهُ﴾

یو سړی حافظ فرمائی چه د هغه نوم ماته په هیڅ روایت کښې صراحة ملاؤ نه شو خو ابن بشکوال نقل کړې دي چه دا حکم بن ابی العاص وو د مروان پلار یعنی یو سړی د رسول الله ﷺ په حجرو کښې یوې حجرې ته د بهر نه اوکتل کوم چه رسول الله ﷺ اولیدو نو رسول الله ﷺ فورا اودریدلو او د هغه طرف ته روان شو د یو غشی څوکه اخستلو سره، راوی وائی چه ما د رسول الله ﷺ طرف ته اوکتل چه هغوی په څه طریقه موقع لټوله د هغه سړی د وهلو، او د هغې نه په روستو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل

[٥١٧٢](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنِ اطَّلَعَ فِي دَارِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ فَفَقَئُوا عَيْنَهُ، فَقَدْ هَدَرَتْ عَيْنُهُ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه هغه د رسول الله ﷺ نه واوریدل: څوک چه د چا کور ته بغیر دَ اجازت نه داخل شو او هغه ددهٔ سترګه اویستنه نو دا ضائع دې- (یعنی په دې کښې څه قصاص نشته دې-)

**قوله**: ﴿مَنِ اطَّلَعَ فِي دَارِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ فَفَقَأُوا عَيْنَهُ فَقَدْ هَدَرَتْ عَيْنُهُ﴾

چه کوم سړې د چا په کور کښې ګوری او هغه خلق د هغه سترګه ړنده کړی نو د هغه د سترګې ضمان نشته هغه معاف ده،

## (ایا په دې صورت کښې به ضمان وی؟)

د جمهور علماء هم په دې حدیث باندې عمل دې په دې کښې د مالکیانو اختلاف دې قال الحافظ: وذهب المالكية إلى القصاص وأنه لا يجوز فقأ العين ولا غيرها واعتلوا بأن المعصية لا تدفع بالمعصية وأجاب الجمهور بأن المأذون فيه إذا ثبت الإذن لا يسمى معصية، په حاشیه د بذل کښې د مرقاة نه د امام شافعی رحمه الله په دې کښې دوه اقوال نقل کړی دی یو دا چه د ضمان په صورت کښې ساقط دې کله چه ئې مالک مکان په کور کښې د کتلو نه منع کوی او بیا هم هغه نه منع کیږی، خو اصح قول دا دې چه په دې کښې مطلقا ضمان نشته د وجې د اطلاق الحدیث نه، او د حنابله مذهب هم دا دې لکه چه په الروض المربع کښې دی چه په دې کښې هیڅ ضمان نشته او هدر دې، او د مالکیانو مسلک څنګه چه په ((الشرح الکبیر)) کښې دی القود فی العمد والدية فی الخطابان اراد الزجر اهـ، یعنی که په قصد سره ئې سترګه ویستلې وی نو په دې صورت کښې دهغوی په نزد قصاص شته، اوکه سترګه ویستل ئې مقصود نه

(١) قوله من بعض حجر، وفي بعض النسخ في بعض حجر وهو الانسب وكتب الشيخ في البذل ولفظ البخاري من حجر في حجر النبي ﷺ الاول بضم الجيم وسكون المهملة (بمعني سوري) والثاني بضم المهملة وفتح الجيم جمع حجرة اهـ مختصرا)

(٢): صحيح مسلم/الآداب ٩ (٢٥٦٣)، سنن النسائي/القسامة ٤١ (٤٨٦٤)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٦٦/٢، ٤١٤، ٥٢٧) (صحيح)

وو بلکه بندول ئې مقصود وو خو سترګه ئې اووتله نوپه دې صورت کښې دیت دې مالکیانو دا حدیث په تغلیظ باندې حمل کړې دې، او د احنافو مسلک د درمختار وغیره نه دا نقل کړې دې چه که کتونکی لره د دې فعل نه منع کول بغیر د فقاء عین نه ممکن نه وی نو بیا ضمان نشته او که ممکن وی نو په دې صورت کښې ضمان دې، وړاندې په دې کښې دی ولو ادخل راسه فرماه بحجر ففقاها لا یضمن اجماعا، انما الخلاف فیمن نظر من خارجها، او علامه شامی د معراج الدرایة نه په دې کښې وجوب د ضمان نقل کړې دې د احنافو په نزد، حضرت فرمائی: فعلم بهذا ان روایات الحنفیة فیها مختلفة ولیس فیها نص عن ابی حنیفة ولا عن صاحبیه.

[٥١٧٣](1) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمُؤَذِّنُ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنْ كَثِيرٍ، عَنْ الْوَلِيدِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا دَخَلَ الْبَصَرُ فَلَا إِذْنَ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل کله چه نظر دننه لاړو نو بیا اجازت نشته ـ"

**قوله:** ﴿ إِذَا دَخَلَ الْبَصَرُ فَلاَ إِذْنَ ﴾ یعنی که څوک د دروازې نه بهر اودریدلو سره د اجازت اخستلو په وخت ګوری نو هغه ته د عتاب په طور فرمائی چه هر کله دې داسې اوکتل نو د استیذان څه ضرورت پاتې شو، مطلب دا شو چه دا خو هم داسې شوه لکه چه څوک بغیر د استیذان نه دننه داخل شی.

## بَابٌ كَيْفَ الِاسْتِئْذَانُ

### بابه ...... اجازت به څنګه اخستې شی

دا باب په بعض نسخو کښې شته دلته او په بعض کښې نشته.

[٥١٧٦](2) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ ح وحَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبٍ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَمْرُو بْنُ أَبِي سُفْيَانَ، أَنَّ عَمْرَو بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَفْوَانَ أَخْبَرَهُ، عَنْ كَلَدَةَ بْنِ حَنْبَلٍ، "أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ بَعَثَهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِلَبَنٍ وَجَدَايَةٍ وَضَغَابِيسَ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَعْلَى مَكَّةَ، فَدَخَلْتُ وَلَمْ أُسَلِّمْ، فَقَالَ: ارْجِعْ، فَقُلْ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ"، وَذَلِكَ بَعْدَ مَا أَسْلَمَ صَفْوَانُ بْنُ أُمَيَّةَ، قَالَ عَمْرٌو: وَأَخْبَرَنِي ابْنُ صَفْوَانَ بِهَذَا أَجْمَعَ، عَنْ كَلَدَةَ بْنِ حَنْبَلٍ وَلَمْ يَقُلْ سَمِعْتُهُ مِنْهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ يَحْيَى بْنُ حَبِيبٍ أُمَيَّةُ بْنُ صَفْوَانَ، وَلَمْ يَقُلْ سَمِعْتُهُ مِنْ كَلَدَةَ بْنِ حَنْبَلٍ، وَقَالَ يَحْيَى أَيْضًا: عَمْرُو بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَفْوَانَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ كَلَدَةَ بْنَ الْحَنْبَلِ أَخْبَرَهُ.

د حضرت کلده بن حنبل رضی الله عنه نه روایت دې چه حضرت صفوان بن امیه هغه ته پئ، د اوسئ بچې او ککړ [ بادرنګ، یا یو قسم بوټې دې چه په زیتونو کښې ګډولې او خوړلې شی ] ورکړل او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې ئې راولیږل او چونکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د مکې په اوچت جانب باندې وو ـ کلده وائی چه زهٔ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مجلس کښې داخل شوم او سلام مې اونهٔ کړو نو حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل روستو لاړ شه او اووایه [ السلام علیکم ] دا واقعه د صفوان بن امیه د مسلمانیدو نه د بعد ده ـ عمرو (بن ابو سفیان) وائی چه ما ته دا

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٨٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٦/٢) (ضعيف)
(2): سنن الترمذي /الاستئذان ١٨ (٢٧١٠)، (تحفة الأشراف: ١١١٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١٤/٣) (صحيح)

ته ول (امیه) بن صفوان د کلده بن حنبل په واسطې سره بیان کړې دي او په هغې کښې د سماع ذکر نشته دې - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه یحیی بن حبیب (د ابن امیه صراحت کړې دې او) امیه بن صفوان ئې وئیلې دی - او د کلده بن حنبل نه ئې د سماع صراحت نۀ دې کړې - او یحیی بن حبیب دا هم وئیلې دی چه عمرو بن عبد الله بن صفوان په صیغې د اخبار سره روایت کړې دې.

**قوله:** ﴿ عَنْ كَلَدَةَ بْنِ حَنْبَلٍ أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ بَعَثَهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِلَبَنٍ وَجِدَايَةٍ وَضَغَابِيسَ - وَالنَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- بِأَعْلَى مَكَّةَ - فَدَخَلْتُ وَلَمْ أُسَلِّمْ فَقَالَ « ارْجِعْ فَقُلِ السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ » ﴾

کلدة بن حنبل رضي الله عنه فرمائي چه صفوان بن امیه رضي الله عنه هغه رسول الله ﷺ ته اولیږلو دې هدایا ورکولو سره پئې او د هوسئ بچې او واړه واړه ختکې، ضغابیس جمع ده د ضغبوس او رسول الله ﷺ د مکې په اعلی طرف کښې وو حجون چرته چه د مکې مکرمې مشهور قبرستان معلاة دې هغوی وائي چه زه رسول الله ﷺ ته اورسیدم بغیر د سلام نه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل واپس شه او دروازې ته رسیدو باندې السلام علیکم اوایه.([1])

**قوله:** ﴿ قَالَ عَمْرٌو وَأَخْبَرَنِى ابْنُ صَفْوَانَ بِهَذَا أَجْمَعَ عَنْ كَلَدَةَ بْنِ الْحَنْبَلِ وَلَمْ يَقُلْ سَمِعْتُهُ مِنْهُ يَحْيَى بْنُ حَبِيبٍ أُمَيَّةُ بْنُ صَفْوَانَ وَلَمْ يَقُلْ سَمِعْتُهُ مِنْ كَلَدَةَ بْنِ حَنْبَلٍ ﴾ ([2]) د دې ځائې نه عمرو بن سفیان خپل دویم سند بیانوی، پورته په سند کښې راغلی وو عمرو بن ابی سفیان ان عمرو بن عبدالله بن صفوان، د دې نه معلومه شوه چه د عمرو بن ابی سفیان دوه استاذان دی یو عمرو بن عبدالله، او دویم صفوان یعنی امیه او دا دواړه روایت کوی د کلدة بن حنبل نه، او د مصنف رحمه الله په دې سند کښې دوه استاذان دی یو یحیی او دویم ابن بشار، د یحیی په روایت کښې په ځائې د ابن صفوان امیه بن صفوان دې د نوم په تصریح سره او د ابن بشار په روایت کښې ابن صفوان وو، او د یحیی په روایت کښې ﴿ان کلدة بن حنبل﴾ دې او د ابن بشار په روایت کښې ﴿ عن کلدة بن حنبل ﴾.

واضحه دې وی چه هدیه لیږونکې صفوان بن امیه بن خلف الجمحی دې او د کوم قاصد سره چه ئې لیږلې وو هغه کلدة بن حنبل دې، او د کلدة بن حنبل نه روایت کونکی دوه دی یو عمرو بن عبدالله بن صفوان کوم چه په شورع کښې تیر شوې دې، او دویم امیه بن صفوان، یعنی یو په هغوی کښې د صفوان ځوئې او دویم د صفوان نمسې.

[٥١٧٧](3) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيٍّ، قَالَ: حَدَّثَنَا رَجُلٌ مِنْ بَنِي عَامِرٍ، "أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي بَيْتٍ، فَقَالَ: أَلِجُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

---

[1]) که هغوی هلته په څۀ خیمه کښې وو ګینې بیا نکیر صرف په ترک د سلام باندې دې، والله تعالي اعلم لم یتعرض له الشراح)

[2]) فلعمرو بن ابي سفیان استاذان احدهما عمرو بن عبدالله (حفید صفوان) والثاني ابن صفوان (امیه) وکلاهما یرویان عن کلدة، لکن قال یحیي شیخ المصنف امیة بن صفوان وقال ابن بشار الشیخ الثاني للمصنف ابن صفوان، وایضا قال یحیي في روایته ان کلدة بن حنبل: وقال ابن بشار عن کلدة)

[3]): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٧٢، ١٨٦٣٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٩/٥) (صحیح)

لِخَادِمِهِ: اخْرُجْ إِلَى هَذَا فَعَلِّمْهُ الِاسْتِئْذَانَ، فَقُلْ لَهُ قُلْ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، أَأَدْخُلُ؟، فَسَمِعَهُ الرَّجُلُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، أَأَدْخُلُ؟، فَأَذِنَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَدَخَلَ".

د حضرت ربعی نه روایت دي چه د بنو عامر یو کس د نبی کریم ﷺ نه اجازت واخستو او حضور ﷺ په کور کښې دننه وو او هغه اووې آیا زۀ دننه درتلې شم؟ نو نبی کریم ﷺ خپل خادم ته اوفرمائیل دۀ ته ورشه او دَ اجازت طلب کولو ادب ورته اوښایه او ورته اووایه (چه داسې) وایه: "السلام علیکم! آیا دننه درتلې شم؟ هغه سړی دا خبره واوریده نووې فرمائیل السلام علیکم! آیا دننه درتلې شم؟ نو نبی کریم ﷺ هغه ته اجازت ورکړو او هغه دننه راغې."

**قوله**: ﴿ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ رِبْعِيٍّ قَالَ حَدَّثَنَا رَجُلٌ مِنْ بَنِي عَامِرٍالخ ﴾ یو سړې کوم چه د قبیله بنو عامر نه دې هغه د رسول الله ﷺ دروازې ته رارسیدو سره اجازت طلب کړو او داسې ئې اووې ﴿ أَ أَلِجُ ﴾ آیا زه دننه داخل شم؟ رسول الله ﷺ د دننه نه خادم راولیږلو چه لاړ شه او دې سړی ته د استیذان چل اوښایه هغه داسې چه داسې وائې ﴿ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَأَدْخُلُ ﴾ [1] دې عامری سړی د بهر نه د رسول الله ﷺ خبره واوریدله او فورا ئې دا طریقه اختیار کړه چه ﴿ السلام علیکم اادخل ﴾ نو رسول الله ﷺ هغه ته اجازت اوفرمائیلو.

د دې نه پس په روایت کښې دی چه سیدنا سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د رسول الله ﷺ د دروازې مخې ته ولاړ استیذان اوکړو، چه کله رسول الله ﷺ بهر تشریف راوړلو نو هغوی ئې د دروازې مخې ته ولاړ اولیدل او وې فرمائیل: ﴿ هکذا عنک او هکذا ﴾ یعنی دې طرف ته اودریږه یا دې طرف ته، یعنی د دروازې ښی طرف ته یا ګس طرف ته، بالکل مخامخ مه اودریږه، ځکه چه کله انسان د دننه نه بهر راوځی او دروازه پرانیزی یا پرده اوچته شي نو کور به مخامخ ښکاري.

---

[1] په حاشیه د بذل کښې دی: یشکل علیه ما في البدائع ١٢٤/٥ من تاخیر السلام عن الدخول، د بدائع عبارت دا دې: وَإِذَا اسْتَأْذَنَ فَأَذِنَ لَهُ حَلَّ لَهُ الدُّخُولُ يَدْخُلُ ثُمَّ يُسَلِّمُ وَلَا يُقَدِّمُ التَّسْلِيمَ عَلَى الدُّخُولِ كَمَا قَالَ بَعْضُ النَّاسِ لِقَوْلِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى ﴿ فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً ﴾ وَلِأَنَّهُ لَوْ سَلَّمَ قَبْلَ الدُّخُولِ فَإِذَا دَخَلَ يَحْتَاجُ إِلَى التَّسْلِيمِ ثَانِيًا اهـ خو د دې سلسلې یو بل آیت کریمه داسې دی: ﴿ لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا ﴾ په دې آیت کریمه کښې دا ذکر دی چه د بل کور ته تر هغه وخته پورې مه داخلیږه تر څو چه دې استیذان نه وی کړې او په هغوی باندې دې سلام نه وی کړې، په معارف القرآن کښې مفتی محمد شفیع رحمه الله د دې آیت کریمه د لاندې د استیذان په مسنون طریقه باندې په تفصیل سره کلام کړې دې او د دې سلسلې بعض روایات ئې هم ذکر فرمائیلې دی او مفتی صاحب مسنون طریقه هم دا ګڼړمه چه دلته په حدیث الباب کښې ده. دلته لیکلې ده، هم د دې حدیث نه او د بعض نورو روایاتو نه استدلال کولو سره او د کوم آیت کریمه حواله چه صاحب بدائع ورکړې ده چه د هغې نه د سلام تاخیر عن الدخول معلومیږی هغه سلام سلام د تحیه دی لکه چه خپله په آیت کریمه کښې تصریح ده تحیة من عند الله، او په حدیث الباب کښې چه کوم سلام ذکر دې هغه قبل الدخول دې او هغه سلام سلام د استیذان دې او هم دا مقتضی د آیت استیذان هم ده چه سلام د استیذان قبل الدخول دې، هغه چه په حدیث کښې راځی واذا سلم علیهم سلم علیهم ثلاثا د دې یو توجیه دا هم کړې شوې ده چه د درې سلامونو نه مراد سلام استیذان دویم سلام تحیه او دریم سلام رجوع مراد دې.

[٥١٧٤](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ ح وحَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْطَلْحَةَ، عَنْ هُزَيْلٍ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ، قَالَ عُثْمَانُ: سَعْدٌ، فَوَقَفَ عَلَى بَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَأْذِنُ، فَقَامَ عَلَى الْبَابِ، قَالَ عُثْمَانُ: مُسْتَقْبِلَ الْبَابِ، فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: هَكَذَا عَنْكَ أَوْ هَكَذَا فَإِنَّمَا الِاسْتِئْذَانُ مِنَ النَّظَرِ".

د حضرت هزيل رضی الله عنه نه روايت دې چه يو شخص ...... او په قول د عثمان بن ابی شيبه حضرت سعد راغې او د نبی کريم صلی الله علیه وسلم په دروازه کښې اودريدو او اجازت ئې طلب کړو ...... عثمان بن ابی شيبه وضاحت فرمائيلې دې چه هغه دروازې ته بالکل مخامخ اودريدو ...... نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم هغه ته اوفرمائيل : دې طرف ته اودريږه يا دې طرف ته - د اجازت اخستو حکم هم د نظر کولو په وجه سره دې (چه انسان دننه اونه ګوری -)

[٥١٧٥](٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو دَاوُدَ الْحَفَرِيُّ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ مُصَرِّفٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ سَعْدٍ نَحْوَهُ، عَنِ النَّبِيِّ.

طلحه بن مصرف د يو سړی په واسطې سره، د حضرت سعد رضی الله عنه نه دا مذکوره بالا حديث روايت کړې دې -"

[٥١٧٨](٣) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ، قَالَ: حُدِّثْتُ أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَنِي عَامِرٍ اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَكَذَلِكَ حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، وَلَمْ يَقُلْ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عَامِرٍ.

د حضرت ربعي بنخراش رضی الله عنه نه روايت دې هغه فرمائي چه ماته بيان کړې شوې دی چه د بنو عامر يو کس د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه اجازت طلب کړو او د مذکوره بالا روايت هم معنیٰ ئې بيان کړو-امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه مسدد د ابو عوانه نه هغه د منصور نه (او هغوی د ربعی نه) داسې روايت کړې دې ...... او په دې کښې د بنو عامر د سړی ذکر نشته دې -"

**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ الخ ﴾ د سعد د روايت نه مخکښې چه کوم روايت تير شوې دې دا د هم هغه روايت دويم طريق دې لهذا د سعد روايت په مينځ کښې جدا شو، داسې زمونږ د دې نسخې په اعتبار سره دې ګينې د سعد روايت په نورو نسخو کښې د کلدة بن حنبل د روايت نه مخکښې دې.

[٥١٧٩](٤) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ رِبْعِيٍّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي عَامِرٍ، أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: فَسَمِعْتُهُ، فَقُلْتُ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، أَأَدْخُلُ؟.

عبيد الله بن معاذ د خپل پلار نه روايت کوی او هغوی د شعبه نه، هغوی د منصور نه، هغوی د ربعی نه او هغوی د بنو عامر د يو کس نه روايت کوی چه هغه د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه اجازت طلب کړو - او د مذکوره بالا روايت په مثل ئې روايت اوکړو، فرمائی چه ما د حضور صلی الله علیه وسلم خبره واوريده نو ما اووې السلام عليکم آيا زه دننه درتلې شم؟

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٩٤٦) (صحيح)
(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٣٩٤٦) (صحيح)
(٣): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٥٧٢، ١٨٦٣٠) (صحيح)
(٤): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٥٥٧٢، ١٨٦٣٠) (صحيح)

## باب كَمْ مَرَّةٍ يُسَلِّمُ الرَّجُلُ فِي الاِسْتِئْذَانِ

### باب: ۱۲۷، ۱۲۸- څومره قدرې به سړې سلام کوی په اجازت طلب کولو کښې

[۵۱۸۰] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ خُصَيْفَةَ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا فِي مَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْأَنْصَارِ، فَجَاءَ أَبُو مُوسَى فَزِعًا، فَقُلْنَا لَهُ: مَا أَفْزَعَكَ؟ قَالَ: "أَمَرَنِي عُمَرُ أَنْ آتِيَهُ فَأَتَيْتُهُ، فَاسْتَأْذَنْتُ ثَلَاثًا فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي فَرَجَعْتُ، فَقَالَ: مَا مَنَعَكَ أَنْ تَأْتِيَنِي؟ قُلْتُ: قَدْ جِئْتُ فَاسْتَأْذَنْتُ ثَلَاثًا، فَلَمْ يُؤْذَنْ لِي، وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا اسْتَأْذَنَ أَحَدُكُمْ ثَلَاثًا، فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهُ، فَلْيَرْجِعْ، قَالَ: لَتَأْتِيَنَّ عَلَى هَذَا بِالْبَيِّنَةِ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ: لَا يَقُومُ مَعَكَ إِلَّا أَصْغَرُ الْقَوْمِ، قَالَ: فَقَامَ أَبُو سَعِيدٍ مَعَهُ، فَشَهِدَ لَهُ.

د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه زۀ د انصارو په یو مجلس کښې ناست وم چه حضرت ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه په حالت د یرې کښې راغي - مونږه د هغه نه تپوس اوکړو تاسو څه څيز اویرولئ؟ نو هغه اوفرمائيل چه ماله حضرت عمر رضی الله عنه بللي وو چه زۀ هغه ته ورشم زۀ هغه ته ورغلم او ما درې ځله اجازت طلب کړو مګر هغه ماته اجازت رانۀ کړو نو زۀ راواپس شوم - پس هغه ماته اووئيل چه څه وجه ده چه ته ماته رانغلې؟ ما هغه ته اووې چه زۀ درغلې وم او درې ځله مې اجازت طلب کړو مګر اجازت رانۀ کړې شو او نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دی چه کله څوک درې ځله اجازت طلب کړی او هغه ته اجازت ورنۀ کړې شی نو هغه لره پکار دی چه هغه واپس شی - نو هغه (حضرت عمر رضی الله عنه) اوفرمائيل چه ته به ماته په دې خبره باندې ګواه پيش کوې نو حضرت ابو سعيد رضی الله عنه اوفرمائيل چه له تا سره د خپل قوم نه يو وړوکي ماشوم هم تللې شی (او ددې حديث د صحيح والی شهادت کولې شی) چنانچه حضرت ابو سعيد رضی الله عنه د هغه سره لاړو او د حضرت ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه په حق کښې ئې ګواهی اوکړه -"

﴿ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا فِي مَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْأَنْصَارِ فَجَاءَ أَبُو مُوسَى فَزِعًا...الخ ﴾ مضمون حديث دا دې چه يوه ورځ سيدنا عمر رضی الله عنه په ابوموسی اشعری رضی الله عنه پسې سړې اوليږلو د راطلب کولو دپاره هغوی د عمر رضی الله عنه دروازې ته راورسيدلو سره درې کرته استيذان اوکړو، چه کله د دننه نه څه آواز رانغلو نو هغوی واپس روان شو، عمر رضی الله عنه په هغوی پسې سړې بيا ور اوليږلو او تپوس ئې ترې نه اوکړو چه ته ولې واپس شوې؟ هغوی جواب ورکړو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم هم دا دې چه د درې کرته استيذان کولو نه پس واپس کيدل پکار دی، هغوی اوفرمائيل چه په دې حديث باند ګواه پيش کړه، د ګواه لټولو دپاره په ويره ويره د انصارو يو مجلس ته لاړو چه په هغې کښې ابوسعيد خدری رضی الله عنه هم وو، اهل مجلس ترې نه تپوس اوکړو چه د ويرې دې څه وجه ده، په دې باندې هغوی خپله واقعه هغوی ته بيان کړه.په دې باندې ابوسعيد خدری رضی الله عنه اوفرمائيل: ﴿ لَا يَقُومُ مَعَكَ إِلَّا أَصْغَرُ الْقَوْمِ ﴾ چه په اهل

(١): صحيح البخاري/البيوع ٩ (٢٠٦٢)، الاستئذان ١٣ (٦٢٤٥)، صحيح مسلم/الآداب ٧ (٢١٥٣)، (تحفة الأشراف: ٣٩٧٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الاستئذان ٣ (٢٦٩٠)، سنن ابن ماجه/الأدب ١٧ (٣٧٠٦)، موطا امام مالك/الاستئذان ١ (٣)، مسند احمد (٣٩٨/٤)، دي/الاستئذان ١ (٢٦٧١) (صحيح)

مجلس کښې چه کوم کم عمر سړې وی هغه به تاسره د ګواه په طور ځی .(دا هغوی په دې وجه اوفرمائیل چه عمرؓ ته معلومه شی چه دا حدیث خو وړو وړو هلکانو ته هم معلوم دې) او بیا ابوسعیدؓ پخپله پاسیدو او هغوی دپاره ئې ګواهی ورکړه.

د باب په اول روایت کښې خو هم دغه شان دی، او په دویم روایت کښې د مجلس انصار ذکر نشته بلکه دا دی چه ابوموسیؓ ابی بن کعبؓ په ګواهئ کښې پیش کړو او بله دا چه ابیؓ عمرؓ ته دا هم اوفرمائیل ﴿ لا تکن عذابا علی اصحاب رسول الله ﷺ ﴾،د صحیح بخاری په روایت کښې خو ابوسعید خدریؓ ذکر دې او په صحیح مسلم کښې د ابوداؤد په شان درې واړه راویتونه دی حافظؒ د ابوسعید خدریؓ والا روایت ته ترجیح ورکړې ده او د دې دویم روایت په باره کښې فرمائی چه په دې کښې طلحه بن یحیی دې چه په هغه کښې ضعف دی، بیا حافظ فرمائی چه جمع بین الروایتین هم ممکن ده چه ابی بن کعب به هم د ابوسعیدؓ نه پس راغلی وی.

[٥١٨١] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ طَلْحَةَ بْنِ يَحْيَى، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، "أَنَّهُ أَتَى عُمَرَ فَاسْتَأْذَنَ ثَلَاثًا، فَقَالَ: يَسْتَأْذِنُ أَبُو مُوسَى، يَسْتَأْذِنُ الْأَشْعَرِيُّ، يَسْتَأْذِنُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ قَيْسٍ، فَلَمْ يُؤْذَنْ لَهُ فَرَجَعَ، فَبَعَثَ إِلَيْهِ عُمَرُ: مَا رَدَّكَ؟ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَسْتَأْذِنُ أَحَدُكُمْ ثَلَاثًا، فَإِنْ أُذِنَ لَهُ، وَإِلَّا فَلْيَرْجِعْ، قَالَ: ائْتِنِي بِبَيِّنَةٍ عَلَى هَذَا، فَذَهَبَ ثُمَّ رَجَعَ، فَقَالَ: هَذَا أُبَيٌّ، فَقَالَ أُبَيٌّ: يَا عُمَرُ، لَا تَكُنْ عَذَابًا عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ عُمَرُ: لَا أَكُونُ عَذَابًا عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د حضرت ابو بردهؓ نه روایت دې چه حضرت ابو موسیٰ اشعریؓ حضرت عمرؓ ته لاړو او اجازت ئې درې ځله طلب کړو اووې فرمائیل چه ابو موسیٰ اجازت غواړی - اشعری اجازت غواړی - عبد الله بن قیس (ابو موسیٰ اشعری) اجازت غواړی، مګر اجازت ملاؤ نۀ شو پس هغه واپس شو - چنانچه حضرت عمرؓ هغه لره دَ ورستو نه راوبللو چه واپس ولې ځې؟ نو هغه اوفرمائیل چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دی اجازت درې ځله طلب کوئ که اجازت ملاؤ شو نو بهتره ده ورنه واپس شئ - حضرت عمرؓ اوفرمائیل په خپل بیان باندې ماته ګواه پیش کړه (چه دا فی الواقع دَ رسول الله ﷺ فرمان دې) نو لاړو او بیا واپس شو اووې وئیل دا أبیؓ دې نو حضرت أبیؓ اوفرمائیل اې عمر ! دَ صحابۀ کرامو ؓ دپاره عذاب مۀ جوړیږه - نو حضرت عمرؓ اوفرمائیل زۀ دَ رسول الله ﷺ دَ صحابۀ کرامو ؓ دپاره عذاب نۀ یم.

او د باب په دریم روایت کښې دا زیادت دی چه ابوسعید خدریؓ تلو سره ګواهی ورکړه نو سیدنا عمرؓ پخپل ځان باندې تعجب اوکړو او وې فرمائیل ﴿ أَخَفِيَ عَلَيَّ هَذَا مِنْ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم ﴾ چه عجیبه خبره ده چه دا حدیث په ما باندې تر اوسه پورې پټ پاتې وو، او وې فرمائیل ﴿ أَلْهَانِي السَّفْقُ بِالأَسْوَاقِ ﴾ چه د بازارونو کاروبار زه د دې نه مشغول کړم، یعنی هم په دې وجه حدیث په ما باندې پټ پاتې شو.

(١): صحيح مسلم/الآداب ٧ (٢١٥٤)، (تحفة الأشراف: ٩١٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٩٨/٤) (حسن الإسناد)

[٥١٨٢]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبٍ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، أَنَّ أَبَا مُوسَى اسْتَأْذَنَ عَلَى عُمَرَ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ فِيهِ: فَانْطَلَقَ بِأَبِي سَعِيدٍ فَشَهِدَ لَهُ، فَقَالَ: أَخَفِيَ عَلَيَّ هَذَا مِنْ أَمْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَلْهَانِي السَّفْقُ بِالْأَسْوَاقِ وَلَكِنْ سَلِّمْ مَا شِئْتَ، وَلَا تَسْتَأْذِنْ.

د حضرت عبید بن عمیر نه روایت دي چه حضرت ابو موسیٰ د حضرت عمر رضي الله عنه نه اجازت طلب کړو او مذکوره قصه ئې بیان کړه - او په دې سند کښې دی چه حضرت ابو سعید رضي الله عنه لره ئې د ځان سره بوتلو او هغوی دده په حق کښې ګواهی اوکړه - نو حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائیل آیا د رسول الله ﷺ دا فرمان زما نه مخفی (پټ) پاتې شوې دې؟ ما لره د بازار تجارتی مشاغلو مشغول کړې دې، او تاسو چه کله اوغواړئ نو سلام کوئ او راځئ او اجازت مه غواړئ.'

د سیدنا عمر رضي الله عنه په باره کښې د هغوی دا خصلت مشهور دې چه هغوی په داسې موقعو کښې ځان ډیر زر ملامته کوی، او بیا هغوی ابوموسی اشعری رضي الله عنه ته اوفرمائیل چه د بیا دپاره تاته د استیذان ضرورت نشته بغیر د استیذان نه داخلیږه.

**(خبر واحد لره د حجت نه منونکو استدلال سره د جوابه)**

د دې واقعې نه هغه خلقو هم استدلال کړې دې کوم چه د خبر واحد حجت کیدل نه منی خو د دې نه استدلال صحیح نه دې ځکه چه عمر رضي الله عنه دلته د دې واحد سړی په خبر باندې د بینة مطالبه احتیاطا کړې وه چه خلق په روایت حدیث کښې تندی نه کوی پس عمر رضي الله عنه خپله اوفرمائیل لکه چه د دې نه په روستو روایت کښې دی:

[٥١٨٣]() حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ أَخْزَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْقَاهِرِ بْنُ شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ بْنِ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَبِيهِ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: فَقَالَ عُمَرُ لِأَبِي مُوسَى: إِنِّي لَمْ أَتَّهِمْكَ وَلَكِنَّ الْحَدِيثَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَدِيدٌ.

حضرت ابو برده د خپل پلار ابو موسیٰ رضي الله عنه نه مذکوره بالا قصه بیان کړې ده په دې کښې دی چه بیا حضرت عمر رضي الله عنه، حضرت ابو موسیٰ اشعری رضي الله عنه ته اوفرمائیل: ما په تا باندې څه قسمه تهمت نۀ دې لګولې (چه تۀ دروغ وائې) لیکن د رسول الله ﷺ نه د حدیث د نقل کولو معامله ډیره سخته ده.''

**قوله:** ﴿أَمَا إِنِّي لَمْ أَتَّهِمْكَ وَلَكِنْ خَشِيتُ أَنْ يَتَقَوَّلَ النَّاسُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم﴾

ګینې د عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه د خبر واحد قبلول په کثرت سره ثابت دی.(بذل) ا په حاشیه د بذل کښې دی: وبسطه القاری وقال انه رضی الله تعالی عنه طلب رجلا وبالاثنین لا یخرج الحدیث من حد خبر الواحد حتی یبلغ حد التواتر اهـ یعنی ملا علی قاری فرمائی چه د دوه سړو روایت هم خبر مشهور یا متواتر خو نه دې هغه هم په خبر واحد کښې اصطلاحا داخل دې.

(): انظر حدیث رقم: (٥١٨٠)، (تحفة الأشراف: ٤١٤٦) (صحیح)

(): تفرد به أبو داود، انظر حدیث رقم: (٥١٨١)، (تحفة الأشراف: ٩٠٨٤) (صحیح الإسناد)

[٥١٨٤] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ، وَعَنْ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ عُلَمَائِهِمْ فِي هٰذَا، فَقَالَ عُمَرُ لِأَبِي مُوسَى: أَمَا إِنِّي لَمْ أَتَّهِمْكَ، وَلٰكِنْ خَشِيتُ أَنْ يَتَقَوَّلَ النَّاسُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د حضرت ربیعه بن ابو عبد الرحمن او د څو محدثینو نه مروی دی چه حضرت عمر رضی الله عنه حضرت ابو موسیٰ رضی الله عنه ته اوفرمائیل: چه ما په تا باندې څه تهمت نۀ دې لګولې لیکن ما ته دا یره ده چه چرته کښې خلق دَنبی کریم صلی الله علیه وسلم طرف ته دَداسې احادیثو نسبت اونۀ کړی"

[٥١٨٥] (٢) حَدَّثَنَا هِشَامٌ أَبُو مَرْوَانَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى الْمَعْنَى، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، قَالَ: سَمِعْتُ يَحْيَى بْنَ أَبِي كَثِيرٍ، يَقُولُ: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَسْعَدَ بْنِ زُرَارَةَ، عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: "زَارَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَنْزِلِنَا، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ، فَرَدَّ سَعْدٌ رَدًّا خَفِيًّا، قَالَ قَيْسٌ: فَقُلْتُ: أَلَا تَأْذَنُ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ ذَرْهُ: يُكْثِرُ عَلَيْنَا مِنَ السَّلَامِ، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّلَامُ: عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ، فَرَدَّ سَعْدٌ رَدًّا خَفِيًّا، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ، ثُمَّ رَجَعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاتَّبَعَهُ سَعْدٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ، إِنِّي كُنْتُ أَسْمَعُ تَسْلِيمَكَ وَأَرُدُّ عَلَيْكَ رَدًّا خَفِيًّا لِتُكْثِرَ عَلَيْنَا مِنَ السَّلَامِ، قَالَ: فَانْصَرَفَ مَعَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَمَرَ لَهُ سَعْدٌ بِغُسْلٍ، فَاغْتَسَلَ، ثُمَّ نَاوَلَهُ مِلْحَفَةً مَصْبُوغَةً بِزَعْفَرَانٍ أَوْ وَرْسٍ، فَاشْتَمَلَ بِهَا، ثُمَّ رَفَعَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ، وَهُوَ يَقُولُ: اللّٰهُمَّ اجْعَلْ صَلَوَاتِكَ وَرَحْمَتَكَ عَلَى آلِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، قَالَ: ثُمَّ أَصَابَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الطَّعَامِ، فَلَمَّا أَرَادَ الِانْصِرَافَ قَرَّبَ لَهُ سَعْدٌ حِمَارًا قَدْ وَطَّأَ عَلَيْهِ بِقَطِيفَةٍ، فَرَكِبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ سَعْدٌ: يَا قَيْسُ اصْحَبْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ قَيْسٌ: فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ارْكَبْ فَأَبَيْتُ، ثُمَّ قَالَ: إِمَّا أَنْ تَرْكَبَ وَإِمَّا أَنْ تَنْصَرِفَ، قَالَ: فَانْصَرَفْتُ". قَالَ هِشَامٌ أَبُو مَرْوَانَ: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَسْعَدَ بْنِ زُرَارَةَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَوَاهُ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ، وَابْنُ سَمَاعَةَ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ مُرْسَلًا، وَلَمْ يَذْكُرَا قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ.

د حضرت قیس بن سعد (بن عباده رضی الله عنه) نه مروی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم زمونږ سره د ملاویدو دپاره زمونږ کور ته تشریف راوړو او (دَ جازت دَ طلب کولو دپاره ئې) اوفرمائیل: " السلام علیکم ورحمة الله -" (زما پلار) سعد جواب ورکړو مګر په خکته آواز سره قیس وائی چه ما اووې آیا ته رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اجازت نۀ ورکوې؟ نو هغه اووې پریږده چه هغه په مونږ باندې دَ تولو نه زیات سلام اووائی - رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: " السلام علیکم ورحمة الله " نو سعد رضی الله عنه په خکته (رو) آواز سره جواب ورکړو رسول الله صلی الله علیه وسلم بیا اوفرمائیل: السلام علیکم ورحمة الله " او واپس شو، حضرت سعد رضی الله عنه په هغۀ پسې وروستو روان شو او عرض ئې اوکړو اې دَ الله رسوله! ما ستا سلام اوریدو او جواب به مې هم کولو مګر په رو آواز سره ددې دپاره چه تاسو په مونږ باندې دَ تولو نه زیات سلام اووائۍ - (او مونږ ته ستاسو دُعا حاصله شی) چنانچه حضور صلی الله علیه وسلم دَ حضرت سعد رضی الله عنه سره تشریف راوړو حضرت سعد رضی الله عنه حضور صلی الله علیه وسلم ته دَ غسل کولو اووئیل لهذا حضور صلی الله علیه وسلم غسل اوفرمایۀ - بیا

(١): انظر حدیث رقم: (٥١٨٠)، (تحفة الأشراف: ٣٩٧٠) (صحيح الإسناد)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٠٩٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطهارة ٥٩ (٤٦٦)، اللباس ٢٢ (٣٦٠٤)، مسند احمد (٤٢١/٣، ٧/٦) (ضعيف الإسناد)

ئي هغه ته په زعفران يا په ورس سره رنګ شوې يو څادر ورکړو او حضور هغې لره راټول کړو - بيا حضور ﷺ دا اوفرمائيل او لاسونه ئي اوچت کړل " {(اللَّهُمَّ اجْعَلْ صَلَوَاتِكَ وَرَحْمَتَكَ عَلَى آلِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ)} اې الله په آل سعد بن عباده باندې خپل خاص برکتونه او رحمتونه نازل کړې -" بيا رسول الله ﷺ څه خوراک اوکړو کله چه حضور د واپسئ اراده اوکړه نو سعد رضي الله عنه خر لره نزدې کړو او د هغې په ملا باندې ئي کپړا اچولې وه، پس رسول الله ﷺ په هغې باندې سور شو نو حضرت سعد رضي الله عنه اوفرمائيل اې قيس ! رسول الله ﷺ سره لاړ شه - قيس فرمائي چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائيل سور شه -" مګر ما انکار اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائيل يا خو سور شه يا واپس لاړ شه -" چنانچه زهٔ واپس راغلم -" هشام، ابو مروان دې روايت لره د محمد بن عبد الرحمن بن اسعد زراره نه په صيغې دف عن سره روايت کړې دې -" امام ابوداود رحمه الله فرمائي : چه عمر بن عبد الواحد او ابن سماعه دې روايت لره د اوزاعی نه مرسلا نقل کړې دې او دې دواړو د قيس بن سعد ذکر نهٔ دې کړې -

**قوله:** ﴿ عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ زَارَنَا رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فِي مَنْزِلِنَا فَقَالَ « السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ ». فَرَدَّ سَعْدٌ رَدًّا خَفِيًّا الخ ﴾ د سعد بن عبادة رضي الله عنه ځوئې قيس د خپل پلار واقعه بيانوی چه يو ځل زمونږ د کور خلقو سره د ملاقات دپاره رسول الله ﷺ راغلو او دروازې ته رارسيدلو سره ئې استيذان اوفرمائيلو ﴿ السلام عليكم ورحمة الله ﴾ زما والد صاحب د رسول الله ﷺ د سلام جواب اوريدلو سره په رو آواز د هغوی د سلام جواب ورکړو چه رسول الله ﷺ نه اوريدلو او نه ئې ورته اورول مقصود وو، ما والد صاحب ته عرض اوکړو چه تاسو رسول الله ﷺ ته اجازت ولې نه ورکوئ، نو هغوی اوفرمائيل : پريږده چه رسول الله ﷺ راته هم په دې حال کښې په کثرت سره د (رحمت) او سلام دعاء اوکړی، دوباره رسول الله ﷺ ﴿ السلام عليكم ورحمة الله ﴾ اوفرمائيل بيا هم سيدنا سعد رضي الله عنه په مزه جواب ورکړو، بيا په دريم ځل رسول الله ﷺ ﴿ السلام عليكم ورحمة الله ﴾ اوفرمائيل او واپس روان شو نو سيدنا سعد رضي الله عنه ورپسې روستو په تيزئ راغلو او عرض ئې اوکړو يا رسول الله ﷺ ما خو ستاسو سلام اوريدلو، خو په مزه مې جواب درکولو چه ستاسو د طرف نه په مونږ باندې په کثرت سره سلام راشی، بيا رسول الله ﷺ هغوی سره کور ته راواپس شو. ﴿ وامرله سعد بِغِسْلٍ فَاغْتَسَلَ ﴾ او سعد رضي الله عنه د هغوی دپاره د غسل اوبو يا د غسل په وخت کښې په بدن باندې لګونکې څهٔ څيز اشنان وغيره راوغوښتلو، پس هغوی غسل اوفرمائيلو، د غسل نه په فراغت باندې سعد رضي الله عنه هغوی ته يو څادر پيش کړو کوم چه په زعفرانو او ورس باندې رنګ شوې وو هغه رسول الله ﷺ په خپل ځان باندې راواچولو او بيا رسول الله ﷺ خپل دواړه لاسونه اوچتولو سره دعاء اوفرمائيله : ﴿ اللَّهُمَّ اجْعَلْ صَلَوَاتِكَ وَرَحْمَتَكَ عَلَى آلِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ ﴾ د دې نه پس رسول الله ﷺ دوډئ اوخوړله، چه کله رسول الله ﷺ د واپسئ اراده اوفرمائيله نو سعد رضي الله عنه ورته درسورلئ دپاره يو خر پيش کړو او په هغې ئې د څادر يو ګدئ اوغوړوله، رسول الله ﷺ په هغې باندې سور شو، او سعد رضي الله عنه خپل ځوی قيس رضي الله عنه ته اووې چه ته هم د رسول الله ﷺ سره لاړ شه يعنی پيدل، هغوی هم د

رسول الله ﷺ سره روان شو، قیس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته اوفرمائیل چه ته هم سور شه ما د سوریدو نه انکار اوکړو (د ادب او حیاء د وجې نه) رسول الله ﷺ اوفرمائیل یا سور شه ګینې واپس شه، زه راواپس شوم.

په دې روایت کښې دی: ﴿ مِلْحَفَةً مَصْبُوغَةً بِزَعْفَرَانٍ أَوْ وَرْسٍ ﴾ د مالکیانو خو دا موافق دې خو د جمهورو د مسلک خلاف دې، د هغوی په نزد د سړی دپاره د ثوب مزعفر یا مورس استعمال جائز نه دې، لهذا یا خو دې دا اوئیلې شی چه د زعفران یا ورس اثر به ډیر معمولی وی، او یا دا چه دا قصه د قبل التحریم ده.

[٥١٨٦]([1]) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيُّ، فِي آخَرِينَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى بَابَ قَوْمٍ لَمْ يَسْتَقْبِلِ الْبَابَ مِنْ تِلْقَاءِ وَجْهِهِ، وَلَكِنْ مِنْ رُكْنِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ، وَيَقُولُ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، وَذَلِكَ أَنَّ الدُّورَ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا يَوْمَئِذٍ سُتُورٌ".

د حضرت عبد الله بن بسر نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله د چا دروازې ته تللو نو حضور ﷺ به هغې ته بالکل مخامخ نهٔ اودریدو بلکې ښی یا ګس طرف ته به اودریدو او فرمائیل به ئې: "السلام علیکم، السلام علیکم" او په دغه ورځو کښې به په دروازو باندې پردې نهٔ وې.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِذَا أَتَى بَابَ قَوْمٍ لَمْ يَسْتَقْبِلِ الْبَابَ مِنْ تِلْقَاءِ وَجْهِهِ وَلَكِنْ مِنْ رُكْنِهِ الأَيْمَنِ أَوِ الأَيْسَرِ وَيَقُولُ « السَّلاَمُ عَلَيْكُمُ السَّلاَمُ عَلَيْكُمْ ». وَذَلِكَ أَنَّ الدُّورَ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا يَوْمَئِذٍ سُتُورٌ ﴾

دا هم هغه ادب دې کوم چه مخکښې د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه په روایت کښې تیر شو، او د دې مصلحت دلته دا ذکر شوې دې چه په دغه زمانه کښې به په دروازو باندې پردې نه وې، په دې باندې په بذل کښې لیکلې دی چه انحراف مطلقاً اولی دې اګر چه پرده پرې پرته وی مراعاة لاصل السنة.

## بَابُ الرَّجُلِ يَسْتَأْذِنُ بِالدَّقِّ

### بابد ...... دروازه ټکول او اجازت طلب کول

[٥١٨٧]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرٌ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، "أَنَّهُ ذَهَبَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَيْنِ أَبِيهِ، فَدَقَقْتُ الْبَابَ، فَقَالَ: مَنْ هَذَا؟ قُلْتُ: أَنَا، قَالَ: أَنَا أَنَا كَأَنَّهُ كَرِهَهُ".

د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې هغه فرمائی چه زهٔ د خپل پلار د قرض په سلسله کښې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم. نو ما دروازه اوټکوله حضور ﷺ تپوس اوکړو څوک ئې؟ ما جواب ورکړو زهٔ یم. حضور ﷺ اوفرمائیل زهٔ یم، زهٔ یم. ګویا چه حضور ﷺ دې انداز لره ناخوښه اوګڼړو.

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٥٢٠١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٨٩/٤) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الاستئذان ١٧ (٦٢٥٠)، صحيح مسلم/الآداب ٨ (٢١٥٥)، سنن الترمذي/الاستئذان ١٨ (٢٧١١)، سنن ابن ماجه/الأدب ١٧ (٣٧٠٩)، (تحفة الأشراف: ٣٠٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٩٨/٣، ٣٢٠، ٣٦٣)، سنن الدارمي/الاستئذان ٢ (٢٦٧٢) (صحيح)

**قوله:** ﴿ عَنْ جَابِرٍ أَنَّهُ ذَهَبَ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي دَيْنِ أَبِيهِ فَدَقَقْتُ الْبَابَ فَقَالَ « مَنْ هَذَا ». قُلْتُ أَنَا. قَالَ « أَنَا أَنَا ». كَأَنَّهُ كَرِهَهُ ﴾

جابر ﷜ فرمائی چه زه د خپل پلار د قرض په سلسله کښې د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شوم دروازې ته چه اورسیدم نو هغه مې اوټکوله نو د دننه نه آواز راغلو: من هذا؟ ما اووې ﴿ انا ﴾ نو په دې باندې رسول اللهﷺ اوفرمائیل انا انا ....یعنی انا څه وی په دې سره خو تعین او نه شو چه څوک دې، په بذل کښې لیکلې دی: وانما کرر انا تاکیدا وهو الذی یفهم منه الانکار عرفا اهـ په دې وجه مونږ د دې ترجمه هم هغه اوکړه کومه چه پورته تیره شوه، خو په دې کښې یو بل احتمال هم دې هغه دا چه تکرار تاکیدا نه دې بلکه د دې مطلب دا دې چه رسول اللهﷺ د خپل ځان په باره کښې فرمائی چه انا خو زه هم یم یعنی په ما باندې هم صادق راځی بلکه په هر متکلم باندې صادق راځی لهذا د دې نه د تعین فائده حاصله نه شوه، نوم اخستل پکار دی.

په دې حدیث باندې په بعض نسخو کښې مستقل ترجمه ده ﴿ باب دق الباب عند الاستیذان ﴾ د دین جابر ﷜ او د هغې مفصل قصه د کتاب الوصایه په آخر کښې باب ما جاء فی الرجل یموت وعلیه دین له وفاء یستنظر غرماؤه کښې تیره شوې ده.

[٥١٨٨](١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ يَعْنِي الْمَقَابِرِيَّ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي ابْنَ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ نَافِعِ بْنِ عَبْدِ الْحَارِثِ، قَالَ: "خَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى دَخَلْتُ حَائِطًا، فَقَالَ لِي: أَمْسِكِ الْبَابَ، فَضُرِبَ الْبَابُ، فَقُلْتُ: مَنْ هَذَا؟" وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: يَعْنِي حَدِيثَ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ، قَالَ: فِيهِ فَدَقَّ الْبَابَ.

حضرت نافع بن عبد الحارث ﷜ بیان کوی چه زۀ د رسول الله ﷺ سره اووتم تردې پورې چه په یو باغ کښې داخل شو - نو حضور ﷺ ماته اوفرمائیل: دروازې لره د دننه نه بنده ساته - (دې لره مۀ کولاوه وه -) بیا دروازه اوټکولې شوه (دَ بهر نه چا اوټکوله) نو ما تپوس اوکړو څوک ئې؟ او حدیث ئې بیان کړو، دَ مذکوره بالا هم معنیٰ -امام ابوداود ﷫ فرمائی چه ددې نه مراد دَ حضرت موسیٰ اشعری ﷜ والا حدیث دې - راوی په دې کښې وئیلې دی : نو هغوی دروازه اوټکوله-

**قوله:** ﴿ عَنْ نَافِعِ بْنِ عَبْدِ الْحَارِثِ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- حَتَّى دَخَلْتُ حَائِطًا فَقَالَ لِي « أَمْسِكِ الْبَابَ ». فَضُرِبَ الْبَابُ فَقُلْتُ « مَنْ هَذَا ». وَسَاقَ الْحَدِيثَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ يَعْنِي حَدِيثَ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ فِيهِ فَدَقَّ الْبَابَ ﴾

مصنف﷫ خو دا حدیث دلته ډیر په اختصار سره ذکر کړې دې، په مسند احمد کښې دا حدیث مطولا دې کوم چه حضرت په بذل کښې نقل کړې دې او مضمون ئې دا دې چه نافع بن الحارث ﷜ فرمائی چه زه یو ځل د رسول اللهﷺ سره روان اوم تر دې چه هغوی په یو باغ کښې داخل شو او ماته ئې اوفرمائیل یعنی د دروازې د بندولو نه پس چه دروازه

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١١٥٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٠٨/٣) (حسن)

بنده ساته ځوک هم بغیر د اجازت نه دننه رانشي، او هغوی هم هلته د کوهي په غاړه باندې په کوهي کښې خپې زوړندولو سره کیناستل لږ ساعت پس دروازه اوټکیده ما تپوس اوکړو څوک؟ هغه اووې ابوبکر! ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو ابوبکر رضي الله عنه ولاړ دې، رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿ ائذن له وبشره بالجنة ﴾ چه د دننه راتلو اجازت ورکړه او د جنت زیرې هم، پس ما هم دغه شان اوکړل، ابوبکرصدیق رضي الله عنه دننه راغلو او هم هغه شان کیناستلو څنګه چه رسول الله ﷺ ناست وو، لږ ساعت پس بیا دروازه اوټکیده په تپوس باندې معلومه شوه چه عمر رضي الله عنه دې ما رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو نو رسول الله ﷺ د هغوی په باره کښې هم هغه شان اوفرمائیل هغوی هم راغلل او دغه شان کیناستل، په دریم ځل عثمان رضي الله عنه راغلو نو د هغوی په باره کښې ئې اوفرمائیل ﴿ ائذن له وبشره بالجنة معها بلاء ﴾ هغوی هم راغلل او دغه شان کیناستل، حضرت لیکلي دی چه د ابوموسی اشعري قصه کومه چه د نافع بن عبدالحارث د قصې په شان ده (کما قال المصنف) د دې تخریج امام مسلم رحمه الله کړې دې په فضائل عثمان کښ.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُدْعَى أَيَكُونُ ذَلِكَ إِذْنَهُ

**بابونه ۱۲۸، ۱۲۹- کله چه سړی لره راوبللې شي او هغه د بلونکی سړی سره لاړشي نو آیا دا د اجازت هم معنی دې؟**

یعني که یو سړې چا راطلب کړې او راغوښتلې وی نو آیا هغه ته هم د استیذان حاجت شته؟

[٥١٨٩] (١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حَبِيبٍ، وَهِشَامٍ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "رَسُولُ الرَّجُلِ إِلَى الرَّجُلِ إِذْنُهُ".

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: " د چا د رابللو دپاره د سړی لیږل ددغه راتلونکی سړی دپاره اجازت دې."

د حدیث الباب الفاظ دا دی: ﴿ رَسُولُ الرَّجُلِ إِلَى الرَّجُلِ إِذْنُهُ ﴾ چه دا د هغه راطلب کول اجازت د دخول دې او د باب په دویم روایت کښې دی چه کله په تاسو کښې څوک راطلب کړې شي او د قاصد سره سره راشي نو هم دا د هغه دپاره اجازت دې معلومه شوه چه یوځائې ورسره رانشي بلکه روستو راشي نو د هغه حکم دا نه دې په بذل کښې د فتح الودود نه نقل کړی دی چه په دې صورت کښې اګر چه د استیذان څه خاص ضرورت نشته خو احتیاطا استیذان کول غوره دی، خصوصاً کله چه هغه کور مخصوص بالرجال نه وی، پس یو ځل رسول الله ﷺ په اصحاب صفه پسې سړې اولیږلو نو هغه حضرات د راتلو نه پس د استیذان نه پس دننه داخل شو.

[٥١٩٠] (٢) حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ فَجَاءَ مَعَ الرَّسُولِ، فَإِنَّ ذَلِكَ لَهُ إِذْنٌ"، قَالَ أَبُو عَلِيٍّ اللُّؤْلُؤِيُّ: سَمِعْتُ أَبَا دَاوُدَ يَقُولُ: قَتَادَةُ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي رَافِعٍ شَيْئًا.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٤٦٢) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٦٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٣٣/٢) (صحيح لغيره)

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: کله چه څوک د خوراک دپاره راوبللې شي او هغه د رابلونکي سره راشي نو هم دغه د هغه دپاره اجازت دې. " امام ابوداود رحمه الله فرمائي وئيلې شي چه قتاده د ابورافع نه څه نۀ دي اوريدلي -

## بَابُ الِاسْتِئْذَانِ فِي الْعَوْرَاتِ الثَّلَاثِ

### باب: ۱۲۹، ۱۳۰ - د پردې په درې وختونو کښې د اجازت طلب کولو بيان:

په دې ترجمة الباب کښې مصنف رحمه الله په دې آيت کريمه ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِيَسْتَأْذِنكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ الاية ﴾ کښې چه کوم حکم ذکر دې هغه بيانول غواړي او د دې استيذان تعلق د هغه خلقو سره دې کوم چه کورته هر وخت ځي راځي يعنى مماليک يعنى خادمان که هغه غلامان وي او که وينځې وي مذکر وي او که مونث، يا نور نابالغ هلکان، د هغوى په باره کښې په دې آيت کريمه کښې حکم دې چه دا خلق دې په اوقات ثلاثه کښې بغير د استيذان نه نۀ داخليږي، او په نورو اوقاتو کښې بغير د استيذان نه داخليدې شي او هغه درې وختونه دا دى ﴿ قبل صلاة الفجر ﴾ او عند قيلولة او بعد صلاة العشاء، په دې وختونو کښې چونکه انسان په پوره جامه کښې نه وي او دا وختونه هسې هم د خلوت وي هم په دې وجه دې اوقاتو نه په عورات سره تعبير اوکړې شو ځکه چه په دې وختونو کښې بغير د استيذان نه داخليدو سره بې پردګي راځي، لهذا دا وختونه د پردې وختونه دى په دې کښې پورته ذکر شوې خادمانو او غلامانو ته هم بغير د استيذان نه د داخليدو اجازت نشته، او د هغوى نه علاوه د نورو خلقو دپاره په يو وخت کښې هم بغير د استيذان نه د دخول اجازت نشته.

[٥١٩١] (١) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، قَالَ: حَدَّثَنَا. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ، وَابْنُ عَبْدَةَ، وَهَذَا حَدِيثُهُ، قَالَا: أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي يَزِيدَ، سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: "لَمْ يُؤْمَرْ بِهَا أَكْثَرُ النَّاسِ آيَةَ الْإِذْنِ وَإِنِّي لَآمُرُ جَارِيَتِي هَذِهِ تَسْتَأْذِنُ عَلَيَّ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ عَطَاءٌ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ يَأْمُرُ بِهِ.

د حضرت عبيد الله بن ابو يزيد نه روايت دې هغه د حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه نه اوريدلي دى: هغه فرمائيل چه اکثر خلقو (په سورۀ نور کښې وارد آيت: ٥٨) د اجازت طلب کولو والا آيت باندې ايمان نۀ دې راوړې حالانکه زۀ خپلې وينځې ته وايم چه ما ته راځې نو هم به اجازت طلب کوې - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه عطاء هم د ابن عباس رضي الله عنه نه هم داسې روايت کړې دې - چه هغه به ددې حکم کولو -

د باب په اول حديث کښې دى سيدنا ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي: ﴿ لَمْ يُؤْمَنْ بِهَا أَكْثَرُ النَّاسِ آيَةُ الْإِذْنِ وَإِنِّي لَآمُرُ جَارِيَتِي هَذِهِ تَسْتَأْذِنُ عَلَيَّ ﴾ چه په آيت استيذان باندې د خلقو عمل پاتې نه شو او زه دې خپلې وينځې ته وايم چه بغير د استيذان نه په ما مۀ داخليږه، په ظاهر کښې هم هغه اوقات ثلاث مراد دى او د باب په دويم حديث کښې دى: ﴿ أَنَّ نَفَرًا مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ قَالُوا يَا ابْنَ عَبَّاسٍ كَيْفَ تَرَى فِي هَذِهِ الْآيَةِ الَّتِي أُمِرْنَا فِيهَا بِمَا أُمِرْنَا وَلَا يَعْمَلُ بِهَا أَحَدٌ قَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ (يَا أَيُّهَا

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٨٦٩) (صحيح الإسناد)

الَّذِينَ آمَنُوا لِيَسْتَأْذِنكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ الخ ﴾

[٥١٩٢](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي عَمْرٍو، عَنْ عِكْرِمَةَ، أَنَّ نَفَرًا مِنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ، قَالُوا: يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، "كَيْفَ تَرَى فِي هَذِهِ الْآيَةِ الَّتِي أُمِرْنَا فِيهَا بِمَا أُمِرْنَا وَلَا يَعْمَلُ بِهَا أَحَدٌ، قَوْلُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِيَسْتَأْذِنْكُمُ الَّذِينَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِينَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِنْ قَبْلِ صَلَاةِ الْفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُمْ مِنَ الظَّهِيرَةِ وَمِنْ بَعْدِ صَلَاةِ الْعِشَاءِ ثَلَاثُ عَوْرَاتٍ لَكُمْ لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ طَوَّافُونَ عَلَيْكُمْ سورة النور آية ٥٨، قَرَأَ الْقَعْنَبِيُّ إِلَى: عَلِيمٌ حَكِيمٌ سورة النور آية ٥٨، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: إِنَّ اللهَ حَلِيمٌ رَحِيمٌ بِالْمُؤْمِنِينَ يُحِبُّ السَّتْرَ، وَكَانَ النَّاسُ لَيْسَ لِبُيُوتِهِمْ سُتُورٌ وَلَا حِجَالٌ فَرُبَّمَا دَخَلَ الْخَادِمُ أَوِ الْوَلَدُ أَوْ يَتِيمَةُ الرَّجُلِ وَالرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ، فَأَمَرَهُمُ اللهُ بِالِاسْتِئْذَانِ فِي تِلْكَ الْعَوْرَاتِ، فَجَاءَهُمُ اللهُ بِالسُّتُورِ وَالْخَيْرِ، فَلَمْ أَرَ أَحَدًا يَعْمَلُ بِذَلِكَ بَعْدُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدِيثُ عُبَيْدِ اللهِ وَعَطَاءٍ يُفْسِدُ هَذَا الْحَدِيثَ.

د حضرت عکرمه نه روايت دي چه د عراق څو کسانو اووې اې ابن عباس ! تهٔ ددې ايت کريمه په باره کښې څه وائې؟ چه په دې کښې څه حکم مونږ ته راکړې شوې دې په هغې باندې څوک عمل نهٔ کوی؟ يعنی دَ الله تعالیٰ فرمان { يا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لِيَسْتَئْذِنْكُمُ ... عَلَيْكُمْ }اې ايمان والو ! پکار دی چه ستاسو وينځې او ستاسو نابالغ ماشومان په درې وختونو کښې ستاسو نه اجازت طلب کوی - دَ مونځ دَ سحر نه وړاندې، او دَ ماسپخين کله چه تاسو خپلې کپړې اوباسئ او دَ مونځ دَ ماسخوتن نه ورستو - دا درې وختونه ستاسو دَ پردې دی ددې نه علاوه په تاسو او په هغوی باندې څه حرج نشته دې - دا تاسو ته تلونکی راتلونکی دی - (عبد الله بن مسلمه) قعنبی دې آيت لره تر آخره پورې يعنی (عليم حکيم) پورې لوستې دې - حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائی چه بې شکه الله تعالیٰ حليم دې (برداشت کوی) او په مؤمنانو باندې رحم کوونکې دې او پردې لره خوښه وی - (کله چه دا آيت نازل شو) نو دَ خلقو په کورونو کښې نهٔ پردې وې نهٔ حجالې، په بعضې وختونو کښې به سړی دَ ښځې سره هم بسترې کووله نو څه خادم به راغې يا ماشوم بچې يا يتيم ماشوم (کوم چه به په کور کښې وو نو دا کيفيت ډير نامناسب وو) نو الله تعالیٰ هغوی ته ددې پردې په وختونو کښې دَ اجازت طلب کولو حکم اوفرمائيلو - نو اوس الله تعالیٰ هغوی ته پردې ورکړې دی او خير ئې ورته عنايت فرمائيلې دې (نو په دې وجه سره) زهٔ چا لره په دې باندې عمل کوونکې نهٔ وينم ."

چه يو ځل څهٔ خلق د عراق نه ابن عباس رضي الله عنهما ته راغلل او د هغوی نه ئې د دې آيت کريمه په باره کښې تپوس اوکړو چه په دې آيت کريمه باندې د اکثر خلقو عمل نشته بلکه د چا هم پرې نشته نو د دې آيت کريمه په باره کښې ستاسو رائې څه ده يعنی په دې باندې عمل ضروری دې يا نه؟ په دې اوريدلو باندې هغوی اوفرمائيل : إِنَّ اللهَ حَلِيمٌ رَحِيمٌ بِالْمُؤْمِنِينَ يُحِبُّ السَّتْرَ وَكَانَ النَّاسُ لَيْسَ لِبُيُوتِهِمْ سُتُورٌ وَلاَ حِجَالٌ فَرُبَّمَا دَخَلَ الْخَادِمُ أَوِ الْوَلَدُ أَوْ يَتِيمَةُ الرَّجُلِ وَالرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ فَأَمَرَهُمُ اللهُ بِالاِسْتِئْذَانِ فِي تِلْكَ الْعَوْرَاتِ فَجَاءَهُمُ اللهُ بِالسُّتُورِ وَالْخَيْرِ فَلَمْ أَرَ أَحَدًا يَعْمَلُ بِذَلِكَ بَعْدُ
ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چه د دې آيت کريمه نزول په هغه زمانه کښې شوې وو چه کله د

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٨٠) (حسن الإسناد)

کمرو په دروازو باندې پردې نه وې، او دا خادمان به د خپل عادت مطابق د نورو وختونو په شان په دې درې وختونو کښې هم بغیر د استیذان نه کور ته دننه داخلیدل حال دا چه په دې وختونو کښې به انسان د خپل اهل سره یو ځائې کیده، نو په دې باندې د دې آیت نزول شوې وو چه په دې درې وختونو کښې دا خدام بغیر د استیذان نه داخل نه شی. خو بیا خلقو ته وسعت حاصل شو او خلقو په خپلو کمرو باندې پردې رازوړندې کړې نو اوس د خلقو عمل په دې باندې د دې وجې نه پاتې نه شو، مطلب دا چه دا حکم معلل بالعلة دې او هغه علت دې بې پردګی، که هغه بیا نه موندلې شی نو بیا استیذان ضروری نه دې.

**(تطبیق بین الروایتین)**

دا د ابن عباس رضي الله عنهما روایت په ظاهر کښې د هغوی د اول روایت خلاف دې نو یا خو به دا وئیلې شی چه اول د هغوی رائې هم هغه وه او روستو بدله شوه، او یا دا چه اول روایت په استحباب باندې محمول دې او په دویم کښې د وجوب نفی ده.

# أَبْوَابُ السَّلَامِ

**دَ السلام علیکم وئیلو آداب**

## بَابٌ فِي إِفْشَاءِ السَّلَامِ

**بابه ۱۳۰، ۱۳۱- دَ سلام دَ عام کولو حکم.**

پورته لیکلې شوې سرخی په بعض نسخو کښې شته او په بعضو کښې نه.

[۵۱۹۳](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَا تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا، وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا، أَفَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى أَمْرٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ، أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ".

دَ حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل قسم دې په هغه ذات باندې چه دَ هغه په قبضه کښې زما روح دې: تاسو به تر هغه وخته پورې جنت ته نۀ شئ تللې ترڅو چه تاسو ایمان راونۀ وړئ او تاسو تر هغه وخته پورې مؤمن کیدې نۀ شئ ترڅو پورې چه په خپل مابین کښې محبت اونۀ کړئ- آیا زۀ تاسو ته یو داسې څیز اونۀ ښایم کله چه تاسو په هغې باندې عمل کوئ نو دَ یو بل سره به محبت کوئ؟ په خپل مابین کښې سلام لره خور کړئ (یعنی یو بل ته سلام ډیر کوئ)-

**قوله:** ﴿ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ حَتَّى تُؤْمِنُوا وَلَا تُؤْمِنُوا حَتَّى تَحَابُّوا أَفَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى أَمْرٍ إِذَا فَعَلْتُمُوهُ تَحَابَبْتُمْ أَفْشُوا السَّلَامَ بَيْنَكُمْ ﴾

رسول الله صلی الله علیه وسلم قسم خوړلو سره فرمائی چه تاسو جنت ته ترهغه وخته پورې نه شئ داخلیدې چه ترڅو پورې مومنان شوی نه یئ، او مومنان به نه شئ (یعنی څه ته چه مومن وائی او څنګه چه د مومن کیدل پکار دی) ترڅو پورې چه مو خپل مینځ کښې محبت نه

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۸۱)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الإيمان ۲۲ (۵۴)، سنن الترمذي/الاستئذان ۱ (۲۶۸۹)، سنن ابن ماجه/المقدمة ۹ (۶۸)، مسند احمد (۱/۱۶۵، ۲/۳۹۱) (صحيح)

وی، او بیا ئې اوفرمائیل چه آیا زه تاسو ته داسې څیز او نه ښایم چه د هغې په اختیارولو سره تاسو د یو بل سره محبت شروع کړئ هغه دا چه تاسو خپل مینځ کښې یو بل ته سلام کوئ، او د سلام خصلت او عادت عام کړئ او د عام کولو مفهوم د باب په دویم حدیث کښې رسول اللهﷺ دا اوفرمائیلو ﴿ وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ ﴾ یعنی که پیژندګلو وی او که نه وی په هر صورت کښې سلام اوکړې شی، امام نووی رحمه الله فرمائی چه په دې صورت کښې اخلاص عمل زیات دې او د تواضع استعمال، خو فقهاء کرامو د سلام بعض صورتونه د دې حکم نه مستثنی کړی دی، او هلته ئې سلام ته مکروه وئیلې دې (بذل)او په الدر المنضود کتاب الطهارة ابواب الاستنجاء باب الرجل یرد السلام وهو یبول کښې د دې مستثنیاتو ذکر تیر شوې دې.

[۵۱۹۴](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ أَبِي الْخَيْرِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، "أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَيُّ الْإِسْلَامِ خَيْرٌ؟ قَالَ: تُطْعِمُ الطَّعَامَ، وَتَقْرَأُ السَّلَامَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ".

د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې چه یو کس د رسول اللهﷺ نه سوال اوکړو کوم اسلام بهتر دې (یعنی د اسلام کوم یو خصلت غوره دې؟) حضورﷺ اوفرمائیل: داچه تاسو طعام ورکوئ او سلام کول هغه چاته چه تاسو ئې پیژنئ یا نهٔ پیژنئ."

او د بخاری ترجمه دا ده: باب افشاء السلام من الاسلام، چه په هغې کښې د عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما دا حدیث ذکر دې ﴿ أَنَّ رَجُلاً سَأَلَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم أَيُّ الإِسْلاَمِ خَيْرٌ قَالَ تُطْعِمُ الطَّعَامَ وَتَقْرَأُ السَّلاَمَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ،وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ ﴾ او په جامع ترمذی کښې د عبدالله بن سلام رضی الله عنه روایت کښې دی: سمعت رسول اللهﷺ یقول: أیها الناس أفشوا السلام وأطعموا الطعام وصلوا بالليل والناس نيام تدخلو الجنة بسلام، قال الترمذی حدیث صحیح.(اې خلقو! سلام خور کړئ او (اوږو) باندې ډوډئ خوروئ او د شپې چه کله خلق اوده وی تاسو مونځ کوئ (او د دې اعمالو په اختیارولو سره) جنت ته په سلامتئ باندې داخل شئ.

## باب كَيْفَ السَّلَامُ

### بابه ۱۳۱، ۱۳۲-سلام په څنګه وائی

[۵۱۹۵](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا جَعْفَرُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَوْفٍ، عَنْ أَبِي رَجَاءٍ، عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، قَالَ: "جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، فَرَدَّ عَلَيْهِ، ثُمَّ جَلَسَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: عَشْرٌ، ثُمَّ جَاءَ آخَرُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ، فَرَدَّ عَلَيْهِ، فَجَلَسَ، فَقَالَ: عِشْرُونَ، ثُمَّ جَاءَ آخَرُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، فَرَدَّ عَلَيْهِ، فَجَلَسَ، فَقَالَ: ثَلَاثُونَ".

[1]: صحيح البخاري/الإيمان ٦ (١٢)، ٢٠ (٢٨)، والاستئذان ٩ (٦٢٣٦)، صحيح مسلم/الإيمان ١٤ (٣٩)، سنن النسائي/الإيمان ١٢ (٥٠٠٣)، سنن ابن ماجه/الأطعمة ١ (٣٢٥٣)، (تحفة الأشراف: ٨٩٢٧)، وقد أخرجه: حم(١٦٩/٢) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الاستئذان ٣ (٢٦٨٩)، (تحفة الأشراف: ١٠٨٧٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤٣٩/٤، ٤٤٠)، سنن الدارمي/الاستئذان ١٢ (٢٦٨٢) (صحيح)

د حضرت عمران بن حصين رضی اللہ عنہ نه روايت دي چه يو كس د نبی كريم ﷺ په خدمت كښې راغې اووې وئيل السلام عليكم حضور ﷺ هغه ته د سلام جواب ورکړو او هغه کيناستو۔ نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل " لس " بيا دويم کس راغې اوهغه اووې السلام عليكم ورحمة الله " حضور ﷺ هغه ته جواب ورکړو او هغه کناستو نو حضور ﷺ اوفرمائيل " شل " بيا يو بل كس راغې او هغه اووې السلام عليكم ورحمة الله وبركاته " حضور ﷺ د هغه د سلام جواب ورکړو او هغه کس کيناستو نو حضور ﷺ اوفرمائيل " ديرش "۔

د باب په اول حديث کښې کوم چه د عمران بن حصين رضی اللہ عنہ نه روايت دي چه يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو هغه اووې السلام عليكم رسول الله ﷺ د هغې جواب ورکړو او وې فرمائيل ﴿ عشر ﴾ دويم سړې راغلو او هغه اووې السلام عليكم ورحمة الله، نو رسول الله ﷺ د هغه جواب ورکولو سره اوفرمائيل ﴿ عشرون ﴾ بيا يو دريم سړې راغلو هغه اووې ﴿ السلام عليكم ورحمة الله وبركاته ﴾ رسول الله ﷺ د هغې جواب هم ورکړو او وې فرمائيل ﴿ ثلاثون ﴾ يعنی چا چه صرف السلام عليكم اووې د هغه دپاره صرف د لسو نيکو ثواب، او چا په سلام کښې د ورحمة الله اضافه اوکړه د هغه دپاره د شلو نيکو ثواب او څوک چه وبركاته هم وائی نو د هغه دپاره ديرش نيکئ د هرې کلمې په بدل کښې لس نيکئ، او د دې باب دويم حديث چه د هغې راوی معاذ بن انس دې په هغې کښې دا زيادت دې چه د هغه نه پس بيا يو څلورم سړې راغلو او هغه اووې : السلام عليكم ورحمة الله وبركاته ومغفرته نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل : اربعون هكذا تكون الفضائل، او دې سړی چونکه څلور کلمات اووې نو د هغه دپاره څلويښت نيکئ دی، او وړاندې ئې هم اوفرمائيل چه هم دغه شان به فضائل زياتيږی څومره چه اضافه کوی،

[۵۱۹۶] (¹) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ سُوَيْدٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ، قَالَ: أَظُنُّ أَنِّي سَمِعْتُ نَافِعَ بْنَ يَزِيدَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو مَرْحُومٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَعْنَاهُ، زَادَ ثُمَّ أَتَى آخَرُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ وَمَغْفِرَتُهُ، فَقَالَ: أَرْبَعُونَ، قَالَ: هَكَذَا تَكُونُ الْفَضَائِلُ.

حضرت سهل د خپل پلار (معاذ بن انس) نه، او هغوی د رسول الله ﷺ نه مذکوره بالا روايت نقل کړې دې۔ په دې کښې دا اضافه ده چه بيا يو څلورم کس راغې او هغه اووې السلام عليكم ورحمة الله وبركاته ومغفرته نو حضور ﷺ اوفرمائيل څلويښت (يعنی دۀ ته څلويښت نيکئ ملاؤ شوې) او نيکئ هم داسې زياتيږی۔[¹]

خو دا حديث ضعيف دې ځکه چه د دې په سند کښې دوه راويان ضعيف دی يو ابو مرحوم او بل سهل بن معاذ، منذری فرمائی لا يحتج بهما، او په موطاء امام مالک کښې دی چه ابن عباس رضی اللہ عنہما ته يو يمنی سړې راغلو او سلام ئې اوکړو، ﴿ السلام عليكم ورحمة الله وبركاته ثم زاد شيئا مع ذلك ايضا ﴾ يعنی د برکاته نه پس ئې هم څۀ اووئيل نو ابن عباس رضی اللہ عنہما ترې نه تپوس اوکړو (راوی وائی چه دې وخت کښې د هغوی ظاهری نظر باقی نه وو پاتې شوې) چه دا

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٣٠٠) (ضعيف الإسناد)

څوک دې نو خلقو ورته اووې چه دا هم هغه يمنى دې كوم چه تاسو ته راځى، په دې باندې هغوى اوفرمائيل ﴿السلام انتهى الى البركة﴾ يعنى د سلام الفاظ په ﴿ وبركاته﴾ باندې ختميږى. (اوجز ٦/٢٧) ګڼبې حضرت شيخ ليکى چه امام محمد رحمه الله په موطاء کښې د دې اثر د ذکر کولو نه پس فرمائيلي دى ﴿ وبهذا ناخذ اذ قال وبركاته فليكفف فان اتباع السنة افضل، وهو قول مالك والشافعى الى اخر ما بسط الكلام عليه فى الاوجز ﴾ او په حاشيه د بذل کښې دى : وفى الدر المختار ٩٣/٥ لايستحب ان يزيد على "وبركاته" وقد ورد فى ذلک روايات مرفوعة فى مجمع الزوائد ٣٣/٨ وفى جمع الفرائد ١٤١/٢ عن ابن عباس ان السلام قد انتهى الى البركة، الى اخر ما فى هامش.

## بَابٌ فِي فَضْلِ مَنْ بَدَأَ بِالسَّلَامِ

### باب: ١٣٢، ١٣٣- په سلام کولو کښې د وړاندې کیدو فضیلت

[٥١٩٧] (¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ الذُّهْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي خَالِدٍ وَهْبٍ، عَنْ أَبِي سُفْيَانَ الْحِمْصِيِّ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللَّهِ مَنْ بَدَأَهُمْ بِالسَّلَامِ".

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل الله تعالىٰ ته په خلقو کښې د ټولو نه زيات قريب هغه کس دې چه هغه په دوى باندې په سلام کولو کښې ابتداء کوى - (يعنى په سلام کولو کښې سبقت او وړاندې والې کوى -)

**قوله**: ﴿ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللَّهِ مَنْ بَدَأَهُمْ بِالسَّلَامِ ﴾ اولى په معنى د اقرب، په خلقو کښې الله پاک ته زيات نزدې يعنى د هغه رحمت او مغفرت ته نزدې هغه سړې دې کوم چه مسلمانانو ته په سلام کولو کښې وړاندې کيږى.

## بَابُ مَنْ أَوْلَى بِالسَّلَامِ

### باب: ١٣٣، ١٣٤- اول سلام به څوک کوى

[٥١٩٨] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل وړوکې دې غټ، تيريدونکې دې په ناست کس، او کم خلق دې ډيرو ته سلام کوى -"

﴿ يُسَلِّمُ الصَّغِيرُ عَلَى الْكَبِيرِ وَالْمَارُّ عَلَى الْقَاعِدِ وَالْقَلِيلُ عَلَى الْكَثِيرِ ﴾ په دې حديث کښې د سلام قاعده بيان کړې شوې ده چه ماشوم له پکار دى چه په لوئى باندې سلام کوى او تلونکى له پکار دى چه په ناست باندې سلام کوى او وړوکى جماعت والا له پکار دى چه په لوئې جماعت والا باندې سلام کوى ابن العربى فرمائى چه حاصل د حديث دا دې چه مفضول ته پکار دى، چه په څه اعتبار سره مفضول وى، هغه له پکار دى چه هغه شروع اوکړى په سلام

(¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٩٢٦)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الاستئذان ٦ (٢٦٩٤)، مسند احمد (٢٥٤/٥، ٢٦١، ٢٦٤) (صحيح)

(²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٤٧٩٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الاستئذان ٤ (٦٢٣١)، صحيح مسلم/السلام ١ (٢١٦٠)، سنن الترمذي/الاستئذان ١٤ (٢٧٠٣)، مسند احمد (٣١٤/٢) (صحيح)

کولو کښې فاضل ته.

[٥١٩٩](١) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَبِيبِ بْنِ عَرَبِيٍّ، أَخْبَرَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي زِيَادٌ، أَنَّ ثَابِتًا مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يُسَلِّمُ الرَّاكِبُ عَلَى الْمَاشِي، ثُمَّ ذَكَرَ الْحَدِيثَ.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل سور سړې دې پيدل تلونکې باندې سلام اچوی -" بيا ئې مذکوره بالا حديث ذکر کړو.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُفَارِقُ الرَّجُلَ ثُمَّ يَلْقَاهُ أَيُسَلِّمُ عَلَيْهِ

**باب: ١٣٤، ١٣٥- دوه کسان چه جُدا وی او بيا ملاؤ شی نوهم دې سلام کوی**

[٥٢٠٠](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَبِي مَرْيَمَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "إِذَا لَقِيَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ، فَإِنْ حَالَتْ بَيْنَهُمَا شَجَرَةٌ أَوْ جِدَارٌ أَوْ حَجَرٌ ثُمَّ لَقِيَهُ، فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ أَيْضًا"، قَالَ مُعَاوِيَةُ: وحَدَّثَنِي عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ بُخْتٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ سَوَاءً.

حضرت ابوهريره رضی الله عنه اوفرمائيل کله چه په تاسو کښې څوک د خپل رور سره ملاؤ شی نو هغه ته دې سلام اوکړی پس کله چه ددوی په مابين کښې څه اونه، يا ديوال يا څه ګټ وغيره حائل شی او بيا دوباره ملاؤ شی نو هم دې سلام کوی - حضرت معاويه فرمائی چه ماته عبد الوهاب بن بخت د ابو زناد نه او هغه د اعرج نه او هغوی د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه او هغوی د رسول الله ﷺ نه ددې روايت په مثل باندې روايت کړې دې.

**قوله: ﴿إِذَا لَقِيَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُسَلِّمْ عَلَيْهِ فَإِنْ حَالَتْ بَيْنَهُمَا شَجَرَةٌ أَوْ جِدَارٌ أَوْ حَجَرٌ ثُمَّ لَقِيَهُ ..الخ﴾**
چه کله په تاسو کښې يو تن د خپل رور سره ملاقات کوی پس پکار ده چه هغه ته سلام اوکړی او بيا چه کله دوباره ورته مخامخ شی د يو اونې يا ديوال د معمولی حيلولت نه پس هغه ته دې سلام کوی، په بذل المجهود کښې دی : فيه حث على افشاء السلام واكثاره ...يعنى د رسول الله ﷺ مقصد دا دې چه په سلام کښې عموم او کثرت کيدل پکار دی او دا د تغير حال په وخت باندې کيدل پکار دی.

[٥٢٠١](٣) حَدَّثَنَا عَبَّاسٌ الْعَنْبَرِيُّ، حَدَّثَنَا أَسْوَدُ بْنُ عَامِرٍ، حَدَّثَنَا حَسَنُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عُمَرَ "أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي مَشْرُبَةٍ لَهُ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَيَدْخُلُ عُمَرُ؟".

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دې چه حضرت عمر رضی الله عنه نبی کريم ﷺ ته راغې او حضور ﷺ په حجره کښې وو هغوی اووې السلام عليكم يا رسول الله السلام عليكم آيا عمر راتلې شی

(١): صحيح البخاري/ الاستئذان ٥ (٦٢٣٢)، ٦ (٦٢٣٣)، صحيح مسلم/ السلام ١ (٢١٦٠)، (تحفة الأشراف: ١٢٢٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٣٢٥، ٥١٠) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٣٧٩٣، ١٥٤٦٠) (صحيح)
(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٤٩٤) (صحيح)

**قوله:** ﴿ عَنْ عُمَرَ أَنَّهُ أَتَى النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ فِي مَشْرُبَةٍ لَهُ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَيَدْخُلُ عُمَرُ ﴾

دا د يو اوږد حديث ټکړه ده کومه چه په بخاری کتاب النکاح وغيره کښې او په ترمذی کتاب التفسير کښې د سورة تحريم په تفسير کښې ذکر ده چه په هغې کښې دی چه رسول الله ﷺ د ازواج مطهرات نه په څه خبره باندې خفه کيدو سره د يو مياشت دپاره ايلاء کولو باندې په مشربه کښې قيام اختيار کړې وو.چه کله عمر رضی الله عنه د دې نه خبر شو نو هغوی ډيره په ويره باندې رامنډه کړه خپلې لور حفصه ته راغلو او چه وې کتل نو هغه ناسته وه ژړل ئې اوږد حديث دې چه د هغې په اخر کښې دی چه سيدنا عمر رضی الله عنه مشربې ته نزدې راغلو او د هلک په ذريعه ئې کوم چه هلته موجود وو استيذان اوکړو، هغه راتلو سره جواب ورکړو چه رسول الله ﷺ خاموش دې هيڅ جواب ئې رانکړو، عمر رضی الله عنه راغلو او په مسجد کښې کيناستلو لږ ساعت پس ئې زړه بيا اوغوښتل بيا مشربې ته نزدې لاړو څو کرته دا کار اوشو، قصه خو دا په بخاری او ترمذی وغيره کښې هر ځائې کښې ده خو د سلام ذکر صرف د نسائی په روايت کښې دې کوم چه په باب الايلاء کښې دې په هغې کښې بار بار سلام ذکر دې ولفظه فجاء عمر رضی الله عنه: فَصَعِدَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ،وَهُوَ فِي عُلِّيَّةٍ لَهُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ،ثُمَّ سَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ،فَرَجَعَ ...الحديث.

## بَابٌ فِي السَّلَامِ عَلَى الصِّبْيَانِ

### باب: ۱۳۵، ۱۳۶-ماشومانو ته سلام کول

[۵۲۰۲](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ، قَالَ: قَالَ أَنَسٌ "أَتَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى غِلْمَانٍ يَلْعَبُونَ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ په ماشومانو باندې تيريدو او هغوی لوبې کولې نو رسول الله ﷺ په هغوی باندې سلام واچولو."

[۵۲۰۳](2) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَعْنِي ابْنَ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، قَالَ: قَالَ أَنَسٌ "انْتَهَى إِلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا غُلَامٌ فِي الْغِلْمَانِ، فَسَلَّمَ عَلَيْنَا ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِي فَأَرْسَلَنِي بِرِسَالَةٍ وَقَعَدَ فِي ظِلِّ جِدَارٍ، أَوْ قَالَ: إِلَى جِدَارٍ حَتَّى رَجَعْتُ إِلَيْهِ".

د حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ مونږ ته تشريف راوړو او زه په هلکانو کښې يو هلک وم (يعنی کم عمره ماشوم وم) پس حضور ﷺ مونږ ته السلام عليکم اووئيل بيا حضور ﷺ زما لاس اونيولو او ما لره ئې د يو پيغام دپاره اوليږلو او خپله د يو ديوال سوری ته ...... يا ئې اوفرمائيل د ديوال سره ناست وو تردې پورې چه زه هغه ته واپس راغلم."

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤١١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الاستئذان ١٥ (٦٢٤٧)، صحيح مسلم/السلام ٥ (٢١٦٨)، سنن الترمذي/الاستئذان ٨ (٢٦٩٦)، سنن ابن ماجه/الأدب ١٤ (٣٧٠٠)، مسند احمد (١٦٩/٣)، سنن الدارمي/الاستئذان ٨ (٢٦٧٨) (صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٣٩) (صحيح)

په حديث الباب کښې د رسول الله ﷺ په هغه ماشومانو باندې کوم چه په لوبو کښې مشغول وو سلام کول ذکر دی.

## بَابٌ فِي السَّلَامِ عَلَى النِّسَاءِ

### باب: ۱۳۶، ۱۳۷ - ښځوته سلام کول

[۵۲۰۴](1) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ ابْنِ أَبِي حُسَيْنٍ، سَمِعَهُ مِنْ شَهْرِ بْنِ حَوْشَبٍ، يَقُولُ: أَخْبَرَتْهُ أَسْمَاءُ ابْنَةُ يَزِيدَ، "مَرَّ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي نِسْوَةٍ، فَسَلَّمَ عَلَيْنَا".

د حضرت اسماء بنت يزيد نه روايت دې چه حضور ﷺ په مونږه ښځو باندې تير شو او هغه مونږ ته سلام اوکړو۔

په حديث الباب کښې د رسول الله ﷺ د زنانو په يو جماعت باندې سلام کول ذکر دی، په بذل کښې د ابن الملک نه نقل دی چه دا د رسول الله ﷺ خصوصيت دې ځکه چه هغوی د فتنې د ويرې نه محفوظ وو او د بل سړی دپاره پردئ ښځې ته سلام کول مکروه دی مگر دا چه هغه بوډئ وی چه د هغې نه د فتنې خطره نه وی، او ډيرو علماء کرامو دې ته جائز وئيلې دی د هر يو بل ته سلام کول، ملا علی قاری فرمائی چه صحيح هم دا ده چه سلام کول په پردئ زنانه باندې مکروه دی نو چه هر کله مکروه دی نو مسلم به هم د جواب مستحق نه وی.

## بَابٌ فِي السَّلَامِ عَلَى أَهْلِ الذِّمَّةِ

### باب: ۱۳۷، ۱۳۸ - ذميانو (کافرانو) ته سلام کول

[۵۲۰۵](2) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ أَبِي إِلَى الشَّامِ، فَجَعَلُوا يَمُرُّونَ بِصَوَامِعَ فِيهَا نَصَارَى فَيُسَلِّمُونَ عَلَيْهِمْ، فَقَالَ أَبِي: لَا تَبْدَءُوهُمْ بِالسَّلَامِ، فَإِنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، حَدَّثَنَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَبْدَءُوهُمْ بِالسَّلَامِ، وَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ فِي الطَّرِيقِ، فَاضْطَرُّوهُمْ إِلَى أَضْيَقِ الطَّرِيقِ".

حضرت سهل بن ابو صالح فرمائی: چه زهٔ د خپل پلار سره د شام طرف ته لاړم نو خلق د عيسايانو په عبادت خانو باندې تير شول، او په هغوی باندې به ئې سلام اچولو - زما پلار اووې دوی ته په سلام کولو کښې ابتداء مهٔ کوئ، ځکه چه د رسول الله ﷺ نه مونږ ته حضرت ابو هريره رضی الله عنه دا فرمان بيان کړې دې چه دې خلقو ته (يعنی کافرانو ته) په سلام کولو کښې ابتداء مهٔ کوئ او دوی چه کله تاسو ته په لاره کښې ملاؤ شی نو هغوی لره تنگې لارې طرف ته مجبور کړئ۔"

په حديث الباب کښې دی ﴿ لا تبدؤهم بالسلام ﴾ چه اهل ذمه ته په شروع کښې سلام مه کوئ، د دې نه معلومه شوه چه که هغوی سلام اوکړی نو هغوی ته د سلام جواب ورکولې شی پس په شامی کښې ليکلې دی چه که نصرانی يا يهودی يا مجوسی سلام اوکړی نو د

(1): سنن الترمذي/الاستئذان ۹ (۲۶۹۷)، سنن ابن ماجه/ الآداب ۱۴ (۳۷۰۱)، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۶۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۴۵۲، ۴۵۷)، سنن الدارمي/الاستئذان ۹ (۲۶۷۹) (صحيح)

(2): صحيح مسلم/السلام ۴ (۲۱۶۷)، (تحفة الأشراف: ۱۲۶۸۲)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الاستئذان ۱۲ (۲۷۰۰)، مسند احمد (۲/۳۴۶، ۴۵۹) (صحيح)

هغه په جواب ورکولو کښې هيڅ باک نشته، خو صرف ﴿ عليک ﴾ سره دې جواب ورکوی په دې باندې دې زيادت نه کوی، او قاضي عياض د يو جماعت نه نقل کړی دی چه د ضرورت او حاجت د وجې نه هغوی سره ابتداء په سلام باندې کول جائز دی. (بذل)

[۵۲۰۶]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُسْلِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْيَهُودَ إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَحَدُهُمْ فَإِنَّمَا يَقُولُ: السَّامُ عَلَيْكُمْ، فَقُولُوا وَعَلَيْكُمْ"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، وَرَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، قَالَ فِيهِ، وَعَلَيْكُمْ.

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل يهودي چه کله تاسو ته سلام کوی نو لفظ دَ السام عليکم وائی (په تاسو باندې دې مرګ راشي -) نو تاسو هغوی ته په جواب کښې (وعليکم) وائئ -" (څه چه تاسو وئيلې دی هغه دې په تاسو باندې وی -) امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روايت لره امام مالک او ثوری دَ عبد الله بن دينار نه هم دغه شان روايت کړې دې -په دې کښې ئې وئيلې دی [ وعليکم ]

﴿إِنَّ الْيَهُودَ إِذَا سَلَّمَ عَلَيْكُمْ أَحَدُهُمْ فَإِنَّمَا يَقُولُ السَّامُ عَلَيْكُمْ فَقُولُوا وَعَلَيْكُم قَالَ أَبُو دَاوُدَ وَكَذَلِكَ رَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ وَرَوَاهُ الثَّوْرِيُّ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ قَالَ فِيهِ « وَعَلَيْكُمْ »﴾

په دې حديث کښې دا دی چه يهود کله تاسو ته سلام کوی نو هغوی د السلام په ځائې السام عليکم وائی نو رسول الله ﷺ فرمائی چه تاسو د هغوی په جواب کښې صرف وعليکم وايئ يعنی د دې نه پس نه السام وايئ او نه السلام.

د دې نه پس مصنف رحمه الله د عبدالله بن دينار د شاګردانو اختلاف بيان کړې دې چه په روايت کښې د يهودو د سلام په جواب کښې ﴿ عليکم ﴾ دې او که ﴿ وعليکم ﴾ نو د دې په باره کښې مصنف رحمه الله فرمائی چه امام مالک رحمه الله د عبدالله بن دينار نه هم دغه شان روايت کړې دې څنګه چه عبدالعزيز بن مسلم کړې دې يعنی ﴿ وعليکم ﴾ د واؤ سره په خلاف د سفيان ثوری چه هغوی د عبدالله بن دينار نه ﴿ عليکم ﴾ نقل کړې دې يعنی بغير د واؤ نه خو په دې بل ځائې کښې نسخې مختلف دی په بعضو کښې په واؤ سره دې او په بعضو کښې بغير د واؤ نه، خو د تقابل تقاضه دا ده چه په بل ځائې کښې ﴿ عليکم ﴾ کيدل پکار دی ځکه چه هر کله د مالک روايت په واؤ سره دې دلته په ابوداؤد کښې هم او په بخاری کښې هم نو د هغې مقابل يعنی د ثوری روايت بغير د واؤ نه کيدل پکار دی، امام خطابی رحمه الله فرمائی چه د أکثرمحدثينو روايت په ﴿ وعليکم ﴾ واؤ سره دې خو سفيان بن عيينه عليکم بغير د واؤ نه روايت کوی وهو الصواب، امام خطابی د واو حذف ته صحيح وئيلې دې د دې وجه هغوی دا بيان کړې ده چه د حذف واؤ په صورت کښې د هغوی قول او بد دعاء هم د هغوی

---

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۲۲۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الاستئذان ۲۳ (۲۶۵۷)، واستتابة المرتدين ٤ (۶۹۲۸)، صحيح مسلم/السلام ٤ (۲۱۶٤)، سنن الترمذي/السير ٤۱ (۱۶۰۳)، موطا امام مالك/السلام ۲ (۳)، مسند احمد (۱۹/۲)، سنن الدارمي/الاستئذان ۷ (۲۶۷۷) (صحيح)

طرف ته واپس کیږي او د واو په صورت کښې به اشتراک ثابت شي ځکه چه واؤ عطف د جمع بین الشیئین دپاره راځي، او د کتاب په حاشیه کښې ئې لیکلي دی چه په روایاتو کښې دواړو طریقو سره ذکر دی په واؤ سره هم او په حذف د واؤ سره هم. پس بعض خو دا وائی چه د واؤ حذف اولی دې چه شراکت لازم رانشی او بعض وائی چه په شرکت کښې هیڅ حرج نشته ځکه چه مرګ د ټولو ترمینځه مشترک دې او بعض وائی چه دا واؤ د تشریک دپاره نه دې بلکه د استیناف دپاره دې یعنی ﴿وعلیکم ما تستحقونه﴾ اهـ مختصرامن البذل.

[۵۲۰۷](¹) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ: "أَنَّ أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا لِلنَّبِيِّ: "إِنَّ أَهْلَ الْكِتَابِ يُسَلِّمُونَ عَلَيْنَا، فَكَيْفَ نَرُدُّ عَلَيْهِمْ؟ قَالَ: قُولُوا وَعَلَيْكُمْ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَكَذَلِكَ رِوَايَةُ عَائِشَةَ وَأَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجُهَنِيِّ وَأَبِي بَصْرَةَ يَعْنِي الْغِفَارِيَّ.

د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو چه اهل کتاب (یهود او نصاری) مونږ ته سلام کوی نو مونږ هغوی ته څه رنګه جواب ورکوو؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل تاسو هغوی ته وعلیکم وائئ ۔" [ دَ السلام لفظ به نهٔ وائئ ] امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ حضرت عائشې رضی الله عنها او دَ ابو عبد الرحمن جهنی او دَ ابو بصره غفاری روایت هم داسې دې ۔

## بَابٌ فِي السَّلَامِ إِذَا قَامَ مِنَ الْمَجْلِسِ

### بابونه ۱۳۸ ، ۱۳۹ - دَ مجلس نه دَ پاسیدو په وخت کښې سلام کول

[۵۲۰۸](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا بِشْرٌ يَعْنِيَانِ ابْنَ الْمُفَضَّلِ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنِ الْمَقْبُرِيِّ، قَالَ مُسَدَّدٌ سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيُّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا انْتَهَى أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَجْلِسِ، فَلْيُسَلِّمْ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَقُومَ، فَلْيُسَلِّمْ، فَلَيْسَتِ الْأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الْآخِرَةِ".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : کله چه په تاسو کښې څوک څه مجلس ته اورسی نو ده لره پکار دی چه سلام اوکړی او کله چه ددغه ځائې نه د پاسیدو اراده اوکړی نو هم دې سلام اوکړی ۔ په اول ځل باندې سلام کول ددیم ځل په مقابله کښې څه زیات اهم نهٔ دی ۔"

د حدیث الباب مضمون دا دې چه کله په تاسو کښې څوک مجلس ته راشی نو هغه له پکار دی چه سلام اوکړی او کله چه پاسی او ځی نو بیا دې هم سلام اوکړی، ﴿ فَلَيْسَتِ الْأُولَى بِأَحَقَّ مِنَ الْآخِرَةِ ﴾

.........

¹): صحیح مسلم/السلام ٤ (٢١٦٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٦٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الاستئذان ٢٢ (٦٢٥٧)، استتابة المرتدين ٤ (٦٩٢٦)، سنن الترمذي/تفسير القرآن ٥٨ (٣٣٠١)، سنن ابن ماجه/الأدب ١٣ (٣٦٩٧)، سنن النسائي/اليوم والليلة (٣٨٦، ٣٨٧)، مسند احمد (٩٩/٣، ٢١٢، ٢١٨، ٢٢٢، ٢٧٣، ٢٧٧، ٣٠٩) (صحيح)

²): سنن الترمذي/الاستئذان ١٥ (٢٧٠٦)، (تحفة الأشراف: ١٣٠٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٣٠، ٤٣٩) (حسن)

## بَابُ كَرَاهِيَةِ أَنْ يَقُولَ عَلَيْكَ السَّلَامُ

### باب ۱۳۹، ۱۴۰- علیک السلام وئیل مکروه دی

[٥٢٠٩]([1]) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنْ أَبِي غِفَارٍ، عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ الْهُجَيْمِيِّ، عَنْ أَبِي جُرَيٍّ الْهُجَيْمِيِّ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: عَلَيْكَ السَّلَامُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: لَا تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلَامُ، فَإِنَّ عَلَيْكَ السَّلَامُ تَحِيَّةُ الْمَوْتَى".

حضرت ابو جری هجیمی رضی الله عنه بیان کوی چه زهٔ د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم نو ما اووئیل علیک السلام یا رسول الله حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل دا لفظ [ علیک السلام ] مهٔ وایه دا دَ مړو سلام دې-"

**قوله**: ﴿ لاَ تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلاَمُ فَإِنَّ عَلَيْكَ السَّلاَمُ تَحِيَّةُ الْمَوْتَى ﴾ دا حديث دلته مختصر دې مطولا په کتاب اللباس باب ما جاء فی اسبال الازار کښې تیر شوې دې ظاهره هم دا ده چه په دې باندې کلام هم هلته تیر شوې دې خو دې وخت کښې مسوده مخې ته نشته، مطلب دا دې چه د جاهلیت په زمانه کښې مړو ته د سلام کولو طریقه هم دا وه یعنی علیک السلام.او یا مطلب دا دې چه دا طریقه د سلام صرف د مړو دپاره مشروع ده د ژوندو دپاره نه چه د هغې دوه وجې دی اول دا چه دا صیغه په ژوندو کښې مشروع ده د جواب دپاره چه داسې د سلام په جواب کښې وئیلې شی پس که دا صیغه په شروع کښې اختیار کړې شی نو بیا به د سلام دپاره څه باقی پاتې شی، او دویمه وجه ئې دا لیکلې ده چه چونکه دا مشهوره ده چه ﴿ علی ﴾ د ضرر دپاره راځی نو په شروع د علیک وئیلو په صورت کښې به مسلم علیه ته په اول ځل وحشت وی په خلاف د مړی کښ. الی اخرما بسطه القاری فی کتاب الزکاة ۴/۷۹ .

## بَابُ مَا جَاءَ فِي رَدِّ الْوَاحِدِ عَنِ الْجَمَاعَةِ

### باب ۱۴۰، ۱۴۱- دَ جماعت دَ یو سړی جواب هم کافی دې

[٥٢١٠]([2]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْجُدِّيُّ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ خَالِدٍ الْخُزَاعِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: رَفَعَهُ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، قَالَ: "يُجْزِءُ عَنِ الْجَمَاعَةِ إِذَا مَرُّوا أَنْ يُسَلِّمَ أَحَدُهُمْ، وَيُجْزِءُ عَنِ الْجُلُوسِ أَنْ يَرُدَّ أَحَدُهُمْ".

دَ امیر المؤمنین حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه روایت دې ...... امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ هغوی شیخ حسن بن علی دا روایت مرفوع ذکر کړې دې ... فرمائی چه یو جماعت تیریږی نو ددوی نه دَ یو سلام کول کافی دی - او دَ ناست خلقو نه چه یو کس جواب ورکړی نو کافی دی-"

یعنی که یو جماعت ته سلام اوکړې شی نو که د هغه جماعت نه یو هم د سلام جواب ورکړی

---

[1]: سنن الترمذي/الاستئذان ٢٨ (٢٧٢١)،سنن النسائي/اليوم الليلة (٣١٨)، (تحفة الأشراف: ٢١٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦٣/٥) (صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٢٣١) (صحيح) (الإرواء: ٧٧٨، الصحيحة: ١١٤٨، ١٤١٢)

نو کافي ده، په حديث الباب کښې دوه اجزاء دي يو خو هم دا کوم چه په ترجمة الباب کښې دي، دويم دا چه که يو جماعت روان دي او هغه په يو ناست باندې ورتير شي نو چونکه په حديث کښې قاعده دا بيان کړې شوې ده چه ماشي له پکار دی چه هغه سلام اوکړي په قاعد باندې نو که د تلونکو پوره جماعت يو دې نو په هغوی کښې صرف د يو کس سلام کول د سنت د ادا کولو دپاره کافي دی.

# باب في المصافحة

## باب: ۱۴۱، ۱۴۲- د مصافحې کولو بيان

مصافحه ماخوذ ده د صفحه نه چه د هغې معنی ده الافضاء بصفحة اليد الى صفحة اليد، يعنی د خپل لاس تلي د بل د لاس د تلی سره يو ځائې کول د دي نه معلومه شوه چه مصافحه په پوره لاس سره کيدل پکار دی صرف ګوتې په ګوتو ايخودلو سره به مصافحه نه کيږی لکه چه بعض متکلفين کله کله کوی پس په اوجز ۱۹۲/۲ کښې دی د ابن عابدين نه وهي الصاق صفحة الكف بالكف واقبال الوجه بالوجه، فاخذ الاصابع ليس بمصافحة خلافا للروافض والسنة تكون بكلتا يديه بغير حائل من ثوب وغيره وعند اللقاء بعد السلام وان ياخذ الابهام فان فيه عرقا ينبت المحبة، كذا في الحديث ذكره القهستاني وغيره، آه.

### (د مصافحه حکم)

په حاشيه د بذل کښې دی: چه مصافحه سنت ده د اکثرو علماء کرامو په نزد، په شروع کښې امام مالک رحمه الله دې ته مکروه وئيله روستو د استحباب قائل شوې وو امام نووی رحمه الله فرمائی چه د ملاقات په وخت مصافحه کول بالاجماع سنت ده، او ابن عبدالبر فرمائی چه امام مالک رحمه الله مصافحې او معانقې دواړو ته مکروه وئيلې دی، د سحنون مالکی او د يو جماعت رائې هم داسې ده، او د امام مالک رحمه الله نه د مصافحې جواز هم نقل دې وعليه صنيع الموطاء، يعنی د هغوی د تصنيف موطاء نه جواز معلوميږی، وقال الابهری کرهها مالک اذا كان علی وجه التكبر وبسط روايات المصافحة فی الفتح ۱۱/۴۵ او د ترمذی په روايت کښې دی: عن ابن مسعود رضي الله عنه عن النبی صلى الله عليه وسلم قال من تمام التحية الاخذ باليد، او په يو روايت کښې دی: وتمام تحيتكم بينكم المصافحة، خو امام ترمذی رحمه الله په دواړو روايتونو باندې کلام کړې دې، يعنی مصافحه د سلام تکمله ده، معلومه شوه چه صرف په مصافحه باندې اکتفاء نه دی کول پکار، سلام اصل دې ففی الاوجز واخرج الطبرانی فی الاوسط من حديث انس كانوا اذا تلاقوا تصافحوا واذا قدموا من سفر تعانقوا، وله في الكبير كان النبی صلى الله عليه وسلم اذا لقی اصحابه لم يصافحهم حتى يسلم عليهم اهـ

[۵۲۱۱] (۱) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ أَبِي بَلْجٍ، عَنْ زَيْدٍ أَبِي الْحَكَمِ الْعَنَزِيِّ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ فَتَصَافَحَا وَحَمِدَا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ وَاسْتَغْفَرَاهُ، غُفِرَ لَهُمَا".

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۷۶۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۳/۴) (حسن لغيره)

د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دی کله چه دوو مسلمانانو ملاقات اوشي اومصافحه کوی او د الله حمد بیانوي او د الله نه بخشش غواړی، نو الله جل شانه د دواړو مغفرت کوی۔

په حدیث الباب کښې دی : ﴿ إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ فَتَصَافَحَا وَحَمِدَا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ وَاسْتَغْفَرَاهُ غُفِرَ لَهُمَا ﴾ چه کله دوه مسلمانان د ملاقات په وخت مصافحه کوی او د الله پاک حمد او استغفار نو هغوی ته مغفرت کولې شی د دې حدیث نه معلومیږی چه د مصافحې په وخت د الله پاک حمد او استغفار سنت دې، او په یو روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ به د مصافحې په وخت کښې دا لوستل : اللهم اتنا فی الدنیا حسنة وفی الآخرة حسنة وقنا عذاب النار ...اخرجه ابن السنی من حدیث انس رضی الله عنه، قال الحافظ ویستثنی من عموم الامر بالمصافحة المرأة الاجنبية والامرد الحسن انتهی (عون)

[۵۲۱۲](۱) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ، وَابْنُ نُمَيْرٍ، عَنِ الْأَجْلَحِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يَلْتَقِيَانِ، فَيَتَصَافَحَانِ، إِلَّا غُفِرَ لَهُمَا قَبْلَ أَنْ يَفْتَرِقَا".

د حضرت براء رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : کله چه دوه مسلمانان ملاقات کوی او د یو بل سره مصافحه کوی نو د جدا کیدو نه وړاندې د دوی مغفرت کولې شی۔"

[۵۲۱۳](۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "لَمَّا جَاءَ أَهْلُ الْيَمَنِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَدْ جَاءَكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ، وَهُمْ أَوَّلُ مَنْ جَاءَ بِالْمُصَافَحَةِ".

ترجمه: انس بن مالک رضی الله عنه وائي کله چه د یمن خلق راغلل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: تاسو ته د یمن خلق راغلی دی دا هغه خلق دی چا چه دټولو نه مخکښې مصافحه کول شروع کړل.

او د باب په دویم حدیث کښې دی : ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمَّا جَاءَ أَهْلُ الْيَمَنِ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- « قَدْ جَاءَكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ وَهُمْ أَوَّلُ مَنْ جَاءَ بِالْمُصَافَحَةِ » ﴾ سیدنا انس رضی الله عنه فرمائی چه کله اهل یمن د رسول الله ﷺ په خدمت کښې مدینې طیبې ته حاضر شو (نو هغوی به رسول الله ﷺ سره مصافحه کړې وی) نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه د ټولو نه مخکښې د مصافحې سنت اهل یمن راوړې دې، او په بذل کښې د حضرت گنگوهی د تقریر نه په دې باندې لیکلې دی : ای بالکثرة والشیوع والا فکانت المصافحة فیهم قبل اتیان اهل الیمن اه یعنی دا مطلب نه دې چه د هغوی د راتلو نه مخکښې هلته مصافحه نه وه بلکه کثرت او عموم مراد دې پس د صحیح بخاری روایت دې ﴿ عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ : قُلْتُ لِأَنَسٍ أَكَانَتِ الْمُصَافَحَةُ فِي أَصْحَابِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم فَقَالَ : نَعَمْ ﴾ .

---

۱): * تخریج : سنن الترمذي/ الاستئذان ۳۱ (۲۷۲۷)، سنن ابن ماجه/الأدب ۱۵ (۳۷۰۳)، (تحفة الأشراف: ۱۷۹۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/ ۲۸۹، ۳۰۳) (حسن)

۲): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۶۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/ ۲۱۲، ۲۵۱) (صحیح)

دا د ابوداؤد والا روايت معلومه نه ده چه کوم يوې دې، حافظ منذری د دې د تخريج نه سکوت کړې دې په صحيحين کښې چه کوم روايت دې هغه خو داسې دې : أَتَاكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ- وفي رواية- جاء اهل اليمن هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً وَأَلْيَنُ قُلُوبًا الإِيمَانُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ الحديث.

دلته يو بحث د مصافحې په باره کښې دا دې چه باليد دې وی که باليدين، د دې په باره کښې څه تفصيل په اوجز ١٩٢/٦ کښې مذکور دې او په اخر کښې د حضرت گنگوهی رائې د الکوکب الدری نه دا نقل کړې ده : والحق فيه ان مصافحته ﷺ ثابتة باليد وباليدين الا ان المصافحة بيد واحدة لما كانت شعار اهل الافرنج وجب تركه لذلك اهـ يعنی اګر چه ثابت په دواړو طريقو باندې ده خو چونکه مصافحه باليد د انګريزانو شعار شوې دې په دې وجه د دې ترک واجب دې.

**فائده** : وفي هامش البذل والمشهور على الالسنة ان المصافحة عند الوداع لم تثبت وليس بصحيح لروايات ذكرتها على هامش جمع الفوائد ١٤١/٢ حضرت شيخ فرمائی چه اګر چه مولانا عبدالحئ رحمه الله خو د واپسئ د مصافحې انکار کړې دې چه هغه نه ده ثابت خو زه وايم چه ثابت ده.

## بَابٌ فِي الْمُعَانَقَةِ

### بابونه ١٤٢، ١٤٣ - دغاړې بيان

د معانقې په باره کښې مصنف رحمه الله يو حديث خو په دې باب کښې ذکر کړې دې د ابوذرغفاری رضی الله عنه چه يو سړې دهغوی نه تپوس اوکړو ﴿ هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- يُصَافِحُكُمْ إِذَا لَقِيتُمُوهُ ﴾ آيا رسول الله ﷺ به تاسو سره د ملاقات په وخت کښې مصافحه کوله؟ نو هغوی اوفرمائيل چه ما دهغوی سره کله هم ملاقات کړې دې نو هغوی ﷺ ما سره مصافحه کړې ده، او د يو ځل خبره ده چه رسول الله ﷺ يو قاصد زما د راليږلو دپاره راغوښتلو ما چه کله هغوی سره ملاقات اوکړو نو هغوی ما سره مصافحه اوکړه او د يو ځل خبره ده چه رسول الله ﷺ ما پسې يو قاصد راوليږلو زه هغه وخت خپل کور کښې نه اوم چه زه کله خپل کور ته راغلم نو ماته اوئيلې شو چه د رسول الله ﷺ قاصد زما د طلب کولو دپاره راغلې وو زه فورا د هغوی په خدمت کښې حاضر شوم هغه وخت هغوی په خپل تخت باندې وو نو هغوی ماله غاړه راکړه چه په هغې سره ماته ډير لطف ملاؤ شو.

[٥٢١٤][1] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا أَبُو الْحُسَيْنِ يَعْنِي خَالِدَ بْنَ ذَكْوَانَ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ بُشَيْرِ بْنِ كَعْبٍ الْعَدَوِيِّ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ عَنَزَةَ، أَنَّهُ قَالَ لأَبِي ذَرٍّ: حَيْثُ سُيِّرَ مِنَ الشَّامِ: إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أَسْأَلَكَ عَنْ حَدِيثٍ مِنْ حَدِيثِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: إِذًا أُخْبِرُكَ بِهِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ سِرًّا، قُلْتُ: إِنَّهُ لَيْسَ بِسِرٍّ، هَلْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَافِحُكُمْ إِذَا لَقِيتُمُوهُ؟ قَالَ: مَا لَقِيتُهُ قَطُّ إِلَّا صَافَحَنِي، وَبَعَثَ إِلَيَّ ذَاتَ يَوْمٍ وَلَمْ أَكُنْ فِي أَهْلِي، فَلَمَّا جِئْتُ، أُخْبِرْتُ أَنَّهُ أَرْسَلَ لِي، فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ عَلَى سَرِيرِهِ، فَالْتَزَمَنِي، فَكَانَتْ تِلْكَ أَجْوَدَ وَأَجْوَدَ".

حضرت ايوب بن بشير بن کعب عدوی د بنو عنزه د يو کس نه روايت کوی چه هغه حضرت ابو ذر غفاری رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه زه ستاسو نه د نبی کريم ﷺ يو حديث معلومول غواړم

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٢٠٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦٣/٥، ١٦٧) (ضعيف)

هغوی ورته اوفرمائیل که چرې دَ راز خبره نهٔ وی نو زهٔ به ئې تاته بیانوم - ما اووې څه دَ راز خبره نهٔ ده، تاسو خلقو چه به کله دَ رسول الله ﷺ سره ملاقات کولو نو آیا رسول الله ﷺ به تاسو سره مصافحه کوله؟ هغوی اووې زهٔ چه کله هم دَ نبی کریم ﷺ سره ملاؤ شوې یم نو حضور ﷺ زما سره مصافحه کړې ده - او یو ځل حضور ﷺ ماله راوبلو مګر زهٔ په کور کښې نهٔ وم کله چه زهٔ واپس راغلم نو ماته دَ هغه دَ رابللو خبر راکړې شو زهٔ دَ حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم هغوی په خپل سریر (دَ ناستې تحت یا کټ وغیره) باندې تشریف فرما وو نو حضور ﷺ ما ته غاړه راکړه او دا (زما دپاره) عمده، ډیره عمده خبره وه-"
او په بل روایت کښې چه دوه بابونه پس باب فی قبلة ما بین العینین کښې ذکر دې
**قوله**: ﴿عَنِ الشَّعْبِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- تَلَقَّى جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَالْتَزَمَهُ .....الخ﴾
یعنی کله چه جعفر بن ابی طالب ﷺ د حبشې د هجرة کولو نه پس په واپسئ باندې مدینې ته حاضر شو نو رسول الله ﷺ د هغه استقبال اوفرمائیلو او هغه وخت ئې ورسره معانقه اوفرمائیله او د هغوی تندې ئې هم ښکل کړو.او په ترمذی باب ما جاء فی المعانقة والقبلة کښې د عائشې ﷺ روایت دې : قالت : قدم زيد بن حارثة المدينة ورسول الله صلى الله عليه و سلم في بيتي فأتاه فقرع الباب فقام إليه رسول الله صلى الله عليه و سلم عريانا يجر ثوبه والله ما رأيته عريانا قبله ولا بعده فاعتنقة وقبله قال أبو عيسى هذا حديث حسن غريب لا نعرفه من حديث الزهري إلا من هذا الوجه، دا روایات ثلاثه خو د معانقې په ثبوت بلکه په استحباب باندې دلیل دې خو په ترمذی کښې دی: باب ما جاء فی المصافحة کښې د انس ﷺ په روایت کښې دی : ﴿ قال رجل : يا رسول الله الرجل منا يلقي أخاه أو صديقه أينحني له؟ قال لا قال أفيلتزمه ويقبله؟ قال لا قال أفيأخذ بيده ويصافحه؟ قال نعم، هذا حديث حسن ﴾ هم دغه شان په ابن ماجه کښې د انس ﷺ حدیث مرفوع داسې دې ﴿ ايعانق بعضنا بعضا قال لا، ولكن تصافحوا ﴾ یعنی د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه په مونږ کښې دې بعض بعضو سره معانقه کوی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل نه! خو مصافحه کوئ.د انس ﷺ دا حدیث د کوم تخریج چه امام ترمذی او امام ابن ماجه کړې دې د معانقې په کراهت باندې دال دې، د ابن ماجه په حاشیه کښې هم د دې کراهت د معانقې قائل دې امام ابوحنیفه رحمه الله، او هر چه په ترمذی کښې روایت دې چه رسول الله ﷺ زید بن حارثه سره معانقه کړې وه نو هغه دلالت کوی د معانقې په جواز باندې للقادم من السفر، صرف د سفر نه راتلونکی دپاره لهذا د بل دپاره به جائز نه وی اهـ په باب المصافحه کښې دا تیر شوې دی چه امام مالک مصافحې او معانقې نه مکروه وئیلې دی او دا چه د هغوی نه د مصافحې جواز هم نقل دې، او هم دا هغوی په موطاء کښې اختیار کړې دې.(امام مالک رحمه الله د موطاء په اواخر کښې ما جاء فی المهاجرة د لاندې دا روایت معضلا ذکر کړې دې، عن عطاء بن عبدالله الخراسانى قال قال رسول الله ﷺ : تصافحوا يذهب الغل .چه مصافحه کوئ حسد او کینه به مو ختمه شی، د دې په شرح کښې علامه باجی رحمه الله فرمائی چه مراد ترې نه مصافحه بالایدی ده او ابن وهب د امام مالک رحمه الله

نه د مصافحې او معانقې کراهت نقل کړې دې نو د دې روایت په وجه باندې کیدې شي چه مصنف رحمه الله د دې بله معنی مراد کړې وی ﴿ ان یصفح بعضهم عن بعض من الصفح وهو التجاوز والغفران، وهو اشبه لان ذلک یذهب الغل فی الاغلب واحتج مالک لمنع المصافحة بالید بقوله عزوجل اذا دخلوا علیه فقالوا سلاما قال سلام قوم منکرون، ولم یذکر مصافحة، الی اخر ما فی الاوجز ۱۹۲/۶، یعنی دویم احتمال په دې کښې دا دې چه دا تصافحوا د صفح او عفو نه اخستلې شوې دې، یعنی خپل مینځ کښې یو بل معاف کول او یو بل ته بخښنه کول او په یو لحاظ سره دا غوره ده ځکه چه په صفح او عفو سره حسد او کینه لرې کیږی.اهـ) او امام بخاری رحمه الله ترجمه قائم کړې ده : باب المعانقة وقول الرجل کیف اصبحت، خو هغوی د معانقې په باره کښې هیڅ حدیث نه دې ذکر کړې خو په کتاب البیوع کښې ئې باب ما ذکر فی الاسواق او په کتاب اللباس کښې باب السخاب للصبیان کښې ئې د دې متعلق حدیث ذکر کړې دی چه د هغې مضمون دا دې چه چه یو ځل رسول الله ﷺ د فاطمې رضی الله عنها د کور مخې ته کیناستلو او وې فرمائیل : أَثَمَّ لُكَعُ أَثَمَّ لُكَعُ فَحَبَسَتْهُ شَيْئًا فَظَنَنْتُ أَنَّهَا تُلْبِسُهُ سِخَابًا،أَوْ تُغَسِّلُهُ فَجَاءَ يَشْتَدُّ حَتَّى عَانَقَهُ وَقَبَّلَهُ ....او د حسن رضی الله عنه په باره کښې ئې تپوس اوفرمائیلو چه هغه چرته دې فاطمې رضی الله عنها د هغه مخ لاسونه وینځل چه په هغې کښې لږ وخت اولګیدو او بیا هغه په منډه منډه راغلو یعنی حسن رضی الله عنه او رسول الله ﷺ ته ورترغاړه وتلو رسول الله ﷺ هغوی د خپلې سینې مبارکې سره اولګول او تقبیل ئې اوکړو، د بخاری شریف د دې روایت نه د معانقې ثبوت ملاویږی خو داسې سرسری طور ځکه چه حسن رضی الله عنه خو ماشوم وو هغه ته رسول الله ﷺ غاړه ورکړه، هم په دې وجه امام بخاری رحمه الله دا حدیث په اصل محل یعنی باب المعانقه کښې نه دې ذکر کړې خو چونکه په دې کښې لفظ معانقه ذکر وو په دې وجه ئې د هغې طرف ته ترجمه قائمولو سره اشاره اوفرمائیله.

حضرت شیخ په الابواب والتراجم ۱۵۱/۶ کښې د امام نووی رحمه الله نه نقل کړی دی چه د معانقې په باره کښې د علماء کرامو اختلاف دې یعنی قادم من السفر دپاره چه دې ته امام مالک رحمه الله مکروه وئیلې دی او سفیان بن عیینة وغیره مستحب او هغوی فرمائی : وهو الصحیح الذی علیه الاکثرون والمحققون، صحیح هم دا ده چه د هغې اکثر علماء قائل دی چه د قادم من السفر دپاره مستحب ده هغوی فرمائی چه د امام مالک او سفیان په دې کښې مناظره هم اوشوه، سفیان بن عیینة استدلال اوکړو د رسول الله ﷺ د فعل نه د جعفر بن ابی طالب سره چه کله هغه د حبشې نه راغلې وو .....امام مالک رحمه الله اوفرمائیل چه هغه د رسول الله ﷺ سره خاص وه، په دې باندې سفیان اوفرمائیل چه خاص نه ده بلکه عام ده، په دې باندې هغوی خاموش شو، قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه د امام مالک رحمه الله سکوت دلیل دې د قول سفیان د تسلیمولو او په دې کښې ئې د هغوی موافقت اوکړو وهو الصواب، او د احنافو مذهب په تراجم کښې د علامه شامی نه کراهت معانقه نقل کړې دې او هم دغه شان تقبیل وجه او ید، او د امام طحاوی رحمه الله نه ئې نقل کړی دی چه دا قول د طرفین دې او امام

ابو یوسف رحمه الله فرمائی لا باس بالتقبیل والمعانقة الی اخر ما فیه ...او په بذل کښې د لمعات نه نقل کړې دی چه صحیح دا ده چه معانقه جائز ده په دې شرط چه خوف د فتنې نه وی، او په دلیل کښې ئې د زید بن حارثه او د جعفر بن ابی طالب قصه پیش کړې ده، او د بعض علماء کرامو نه ئې توفیق بین الروایات داسې کړې دې چه مکروه هغه معانقه ده کومه چه علی وجه الشهوة وی، او وئیلې شوې دی چه اختلاف په هغه صورت کښې دې چه کله انسان په پوره جامه کښې نه وی صرف په ازار کښې وی او که په قمیص او ازار دواړو کښې وی نو فلا باس بالاجماع وهو الصحیح، پس خلاصه دا چه د احنافو په دې کښې دواړه اقوال دی خو اصح د جواز دې په شرط د عدم الفتنة او امام مالک رحمه الله علی القول الاشهر د دې د کراهت قائل دې او د شوافعو په اصح قول کښې للقادم من السفر دپاره مستحب ده.

په حدیث الباب کښې ﴿ حَيْثُ سُيِّرَ مِنَ الشَّامِ ﴾ چه ابوذرغفاری رضی الله عنه چه کله د شام نه روان کړې شو، په بذل کښې د دې په تشریح کښې لیکلې دی چه ابوذرغفاری رضی الله عنه په ملک شام کښې وو او چونکه د هغوی اختلاف د مالدارانو سره مشهور دې چه د هغوی سره به ئې لانجې راتلې ځکه چه د هغوی مسلک وو چه څوک د ضرورت نه زیات مال خپل ځان سره ږدی نو د زکاة د ادا کولو باوجود هم جائز نه دې نو په دې وجه د شام عامل د عثمان رضی الله عنه په خدمت کښې د هغوی دا حال لیکلو سره اولیږلو نو په دې باندې عثمان رضی الله عنه هغه مدینې منورې ته راطلب کړو. خو هلته د راتلو نه پس هم د هغوی مالدارو سره اختلاف وو په دې وجه عثمان رضی الله عنه هغوی ته په مقام ربذه کښې د استوګنې اختیارولو حکم ورکړو.

## بَاب مَا جَاءَ فِي الْقِيَامِ

### باب: ۱۴۳، ۱۴۴- د تعظیم دپاره اودریدل

د قیام په باره کښې مصنف رحمه الله دوه ابواب قائم کړی دی یو دا اوبل یو څو ابواب روستو راروان دې، باب الرجل يقوم للرجل يعظمه بذلک ...د باب ثانی نه مراد خو هغه قیام دې کوم چه د تعظیم د وجې نه وی او د دې نه منځکښې باب نه مراد هغه قیام دې کوم چه تعظیما نهٔ وی بلکه په بل څه غرض سره وی، اظهار شوق ومحبت یا عذر او ضرورت، په دې باب کښې مصنف رحمه الله دوه احادیث ذکر کړې دی یو د ابوسعید خدری رضی الله عنه

[۵۲۱۵](١) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، "أَنَّ أَهْلَ قُرَيْظَةَ لَمَّا نَزَلُوا عَلَى حُكْمِ سَعْدٍ، أَرْسَلَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ أَقْمَرَ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ أَوْ إِلَى خَيْرِكُمْ، فَجَاءَ حَتَّى قَعَدَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه بنو قریظه کله د حضرت سعد (بن معاذ رضی الله عنه) د فیصلې په قبلولو باندې اتفاق اوکړو نو حضور صلی الله علیه وسلم حضرت سعد رضی الله عنه لره

(١): صحیح البخاري/الجهاد ١٦٨ (٣٠٤٣)، المناقب ١٢ (٣٨٠٤)، المغازي ٣١ (٤١٢١)، الاستئذان ٢٥ (٦٢٦٢)، صحیح مسلم/الجهاد ٢٢ (١٧٦٨)، (تحفة الأشراف: ٣٩٦٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٢/٦) (صحیح)

راوبللو، او هغه په يو سپين خر باندې سور وو راغي نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل خپل سردار ته يا خپل افضل ته اودريږئ." نو حضرت سعد رضی الله عنه راغي ترديې پورې چه د رسول الله ﷺ سره کيناستو.

د سعد بن معاذ رضی الله عنه په باره کښې چه کله رسول الله ﷺ هغوی د بنوقريظه د فيصلې دپاره راغوښتلو او هغه حاضر شو نو هغوی دغه وخت کښې په خر باندې سوارۀ وو نو په دغه وخت کښې رسول الله ﷺ انصارو ته اوفرمائيل: قوموا الی سيدکم، د دې قيام په باره کښې د بعضو رائې خو هم دا ده چه دا تعظيما وو او د اکثرو رائې دا ده چه دا د هغوی د اعانت دپاره وو هغه وخت هغه بيمار وو.

[۵۲۱۶](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ شُعْبَةَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: فَلَمَّا كَانَ قَرِيبًا مِنَ الْمَسْجِدِ، قَالَ لِلْأَنْصَارِ: قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ.

حضرت شعبه رضی الله عنه روايت بيان کړې دې - فرمائی کله چه هغه جمات ته قريب راغي نو حضور ﷺ انصارو ته اوفرمائيل خپل سردار ته اودريږئ.

او دباب دويم حديث د عائشې رضی الله عنها دې چه د هغې مضمون دا دې

[۵۲۱۷](۲) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَابْنُ بَشَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ مَيْسَرَةَ بْنِ حَبِيبٍ، عَنِ الْمِنْهَالِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ، عَنْ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: "مَا رَأَيْتُ أَحَدًا كَانَ أَشْبَهَ سَمْتًا وَهَدْيًا وَدَلًّا، وَقَالَ الْحَسَنُ: حَدِيثًا وَكَلَامًا، وَلَمْ يَذْكُرِ الْحَسَنُ السَّمْتَ وَالْهَدْيَ وَالدَّلَّ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِنْ فَاطِمَةَ كَرَّمَ اللَّهُ وَجْهَهَا كَانَتْ إِذَا دَخَلَتْ عَلَيْهِ، قَامَ إِلَيْهَا فَأَخَذَ بِيَدِهَا، وَقَبَّلَهَا، وَأَجْلَسَهَا فِي مَجْلِسِهِ، وَكَانَ إِذَا دَخَلَ عَلَيْهَا، قَامَتْ إِلَيْهِ، فَأَخَذَتْ بِيَدِهِ، فَقَبَّلَتْهُ وَأَجْلَسَتْهُ فِي مَجْلِسِهَا".

د ام المؤمنين حضرت عائشې رضی الله عنها نه روايت دې چه ما هيڅوک لره نۀ دی ليدلې چه هغه د حضرت فاطمې رضی الله عنها نه زيات په عادات، چال چلن، او په خبرو کولو کښې مشابه وی د رسول الله سره ... د حسن بن علی په روايت کښې د [ حديثا وکلاما ] الفاظ وارد دی - د [ السمت، والهدی، والدل] الفاظ په کښې نشته دې -" ... او کله چه به دا حضور ﷺ ته راتله نو حضور ﷺ به دې ته پاسيدلو د هغې لاس به ئې نيولو او ښکلوله به ئې او په خپل ځائې باندې به ئې کينوله او (دغه شان) چه کله به حضور ﷺ هغې ته ورتللو نو هغه به پاسيده د حضور ﷺ لاس مبارک به ئې نيولو او ښکلولو به ئې او حضور ﷺ لره به ئې په خپل ځائې باندې کينولو -"

سيده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه په رفتار، خبرو او اخلاقو کښې د رسول الله ﷺ سره مشابهت لرونکې ما د فاطمې رضی الله عنها نه زيات څوک هم نه دی ليدلې، چه کله به هغه رسول الله ﷺ ته راتله په کور کښې نو رسول الله ﷺ به د هغوی په ليدو باندې اودريدلو او په تعلق او مينه کښې به ئې د هغې لاس اونيولو او د هغوی تقبيل به ئې کولو او هغوی به ئې په خپل ځائې باندې کينول، هغه فرمائی چه او هم دغه حال خپله د فاطمې رضی الله عنها وو چه کله به رسول الله ﷺ

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۹٦۰) (صحيح)

(۲): سنن الترمذي/المناقب ٦۱ (۳۸۷۲)، (تحفة الأشراف: ۱۷۸۸۳، ۱۸۰٤۰) (صحيح)

هغوی کره تشریف اوړلو نو هغه به د لرې نه د رسول اللهﷺ په لیدو باندې اودریدله،اود رسول اللهﷺ لاس به ئې نیولو او هغوی به ئې په خپل ځائې باندې کینول.

امام نووی رحمه الله فرمائی چه د اهل علم و فضل دپاره قیام مستحب دې او د احادیثو نه ثابت دې او صراحة په دې کښې هیڅ حدیث صحیح نشته، او دغه شان علامه شامی هم د دې د استحباب تصریح کړې ده، علماء فرمائی چه تعظیما اودریدل د اهل فضل دپاره مکروه نه دی بلکه مکروه د قیام محبت دې یعنی چه د کوم سړی دپاره قیام کولې شی هغه خپله د خپل ځان دپاره قیام خوښ کړی.

## بَابٌ فِي قُبْلَةِ الرَّجُلِ وَلَدَهُ

### باب: د پلار خپل بچی لره ښکلول

[۵۲۱۸](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، "أَنَّ الأَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ، أَبْصَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُقَبِّلُ حُسَيْنًا، فَقَالَ: إِنَّ لِي عَشَرَةً مِنَ الْوَلَدِ، مَا فَعَلْتُ هَذَا بِوَاحِدٍ مِنْهُمْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ لَا يَرْحَمُ لَا يُرْحَمُ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه حضرت اقرع بن حابس رضی الله عنه رسول اللهﷺ لره اولیدو چه هغه حضرت حسین رضی الله عنه لره ښکلولو ،نو هغوی اووې په تحقیق سره زما لس بچی دی او ما دَ هیڅ یو سره داسې نهٔ دی کړې (یعنی ښکل کړې مې نهٔ دی) نو رسول اللهﷺ اوفرمائیل څوک چه رحم نهٔ کوی نو په هغه باندې رحم نهٔ شی کولې."

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ الأَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ أَبْصَرَ رسول الله -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ يُقَبِّلُ حُسَيْنًا الخ﴾ اقرع بن حابس رضی الله عنه یو ځل رسول اللهﷺ اولیدو چه د خپل نمسی حسین رضی الله عنه تقبیل ئې کولو نو هغه اووې چه زما لس ځامن دی ما خو چرته د یو تقبیل هم نه دې کړې، رسول اللهﷺ اوفرمائیل : ﴿مَنْ لاَ يَرْحَمُ لاَ يُرْحَمُ ﴾ چه څوک په بل چا باندې رحم نه کوی نو الله پاک هم په هغه باندې رحم نه کوی.

په حاشیه د بذل کښې دی چه ملا علی قاری رحمه الله د امام نووی نه نقل کړی دی چه د پلار د خپل ځوی مخ ښکلول علی وجه الشفقة والرحمة واللطف واجب دی او هم دغه شان د مخ نه علاوه د نورو اندامونو هم، او د خپل اولاد نه علاوه د خپلو احبابو د اولاد تقبیل سنت دې، واما التقبیل بالشهوة فحرام بالاتفاق، وسواء فی ذلک الوالد وغیره اهـ.

او د باب په دویم حدیث کښې د واقعه افک د حدیث آخری ټکړه ذکر ده

[۵۲۱۹](۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ: أَنَّ عَائِشَةَ، قَالَتْ: ثُمَّ قَالَ: تَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَبْشِرِي يَا عَائِشَةُ، فَإِنَّ اللَّهَ قَدْ أَنْزَلَ عُذْرَكِ، وَقَرَأَ عَلَيْهَا الْقُرْآنَ، فَقَالَ أَبَوَايَ: قُومِي، فَقَبِّلِي رَأْسَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: أَحْمَدُ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ لَا إِيَّاكُمَا".

---

(۱): صحيح مسلم/الفضائل ۱۵ (۲۳۱۸)، سنن الترمذي/البر والصلة ۱۲ (۱۹۱۱)، (تحفة الأشراف: ۱۵۱۴۶)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأدب ۱۷ (۵۹۹۳)، مسند احمد (۲/۲۲۸، ۲۴۱، ۲۶۹، ۵۱۳) (صحيح)

(۲): تفرد به ابو داود، (تحفة الأشراف: ۱۶۸۷۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تفسير سورة النور ۶ (۴۷۵۰)، صحيح مسلم/التوبة ۱۰ (۲۷۷۰)، مسند احمد (۶/۵۹) (صحيح)

د حضرت عروه رضی الله عنه نه روایت دي چه حضرت عائشي رضی الله عنها (د افک واقعه بیانوله نو هغي) اوفرمائیل: بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل عائشي رضی الله عنها! خوشخبری دي وی الله عز وجل ستا براء ت نازل کړې دې." او هغي ته ئي د قرآن مجید آیت تلاوت اوفرمايۀ، نو زما مور او پلار ماته اووې پاسه او د رسول الله ﷺ سر مبارک ښکل کړه نو ما اووې زۀ د الله جل شانه حمد کووم ستاسو دواړو نۀ.

عائشه رضی الله عنها فرمائی چه کله زما په باره کښې د قرآن کریم آیت نازل شو نو ماته زما مور پلار اووې چه پاسه او د رسول الله ﷺ سر مبارک خکل کړه، او د هغوی شکریه ادا کړه، هغه فرمائی چه ما اووې زه صرف د الله پاک حمدوثناء او د هغه شکریه ادا کوم، په تاسو کښې دچا هم نه، دحدیث الافک ذکرپه کتاب الحدود باب حد القذف کښې تیرشوې دې.

## باب في قُبْلَةِ مَا بَيْنَ الْعَيْنَيْنِ

### باب: ۱۴۵، ۱۴۶ - په تندی باندې ښکلول

[۵۲۲۰](1) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ أَجْلَحَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَلَقَّى جَعْفَرَ بْنَ أَبِي طَالِبٍ، فَالْتَزَمَهُ وَقَبَّلَ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ".

د حضرت شعبی نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ د حضرت جعفر بن ابی طالب رضی الله عنه سره ملاؤ شو (او هغه د سفر نه واپس راغلې وو) نو حضور ﷺ هغه ته غاړه ورکړه او د سترګو په مابین کښې (یعنی په تندی باندې) ئي ښکل کړو.

د دې باب د حدیث مضمون اوس نزدې تیر شو.

## باب في قُبْلَةِ الْخَدِّ

### باب: په مخ باندې ښکلول

[۵۲۲۱](2) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ، عَنْ إِيَاسِ بْنِ دَغْفَلٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ أَبَا نَضْرَةَ قَبَّلَ خَدَّ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ عَلَيْهِمَا السَّلَام".

حضرت دیاس بن دغفل رحمه الله بیان کوی چه ما حضرت ابو نضره (منذر بن مالک) لره اولیدو چه هغه سیدنا حسن بن علی رضی الله عنه په مخ باندې ښکل کړو.

**(دلته دحسن نه مراد حسن بصری دې)**

﴿ رَأَيْتُ أَبَا نَضْرَةَ قَبَّلَ خَدَّ الْحَسَنِ ﴾ منذری لیکلي دی چه د حسن نه مراد حسن بن ابی الحسن یعنی حسن بصری رحمه الله دې. حضرت په بذل کښې لیکلي دی چه زمونږ په نسخه کښې د حسن نوم سره رضی الله تعالی عنه لیکلې شوې دې چه د هغې نه شبه پیدا کیږی چه دا حسن بن علی رضی الله عنهما دې خو په یوه نسخه کښې هم نه د حسن بن ابی الحسن تصریح شته او نه د حسن بن علی رضی الله عنهما، خو زمانه د دواړو حسن یوه ده په دې حیثیت سره د دواړو احتمال شته، خو منذری دوی ته حسن بصری وائی او د منذری مرتبه په احادیثو کښې اوچته ده په دې

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۸۵۳) (ضعیف)
(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۴۹۳) (صحیح الإسناد)

وجه هم د هغوی قول به راجح وی او کیدې شی چه د رضی الله تعالی عنه کتابت د ناسخینو د طرف نه وی.اهـ من البذل .....قلت وهذا هو المتعين اذ ابن وغفل لم يدرک عصر الصحابة لانه من الطبقة السابعة من طبقات التقريب.

[٥٢٢٢](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَالِمٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ الْبَرَاءِ، قَالَ: "دَخَلْتُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ أَوَّلَ مَا قَدِمَ الْمَدِينَةَ، فَإِذَا عَائِشَةُ ابْنَتُهُ مُضْطَجِعَةٌ، قَدْ أَصَابَتْهَا حُمَّى، فَأَتَاهَا أَبُو بَكْرٍ، فَقَالَ لَهَا كَيْفَ أَنْتِ يَا بُنَيَّةُ؟ وَقَبَّلَ خَدَّهَا".

حضرت براء رضي الله عنه بیان کوی چه زهٔ د حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره راغلم او دا خلق نوې نوې مدینې ته راغلي وو، او د هغوی لور بی بی حضرت عائشه رضي الله عنها د تبې په وجه سره ملاسته وه، نو ابوبکر رضي الله عنه هغې ته نزدې شو او تپوس ئې ترینه اوکړو ستا څه حال دې؟ او هغې لره ئې په مخ باندې ښکل هم کړه.

**قوله**: ﴿ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ أَوَّلَ مَا قَدِمَ الْمَدِينَةَ فَإِذَا عَائِشَةُ ابْنَتُهُ مُضْطَجِعَةٌ قَدْ أَصَابَتْهَا حُمَّى الخ ﴾ سیدنا براء رضي الله عنه فرمائی چه په شروع شروع کښې چه کله ابوبکرصدیق رضي الله عنه هجرت فرمائیلو سره مدینې طیبې ته راغلو نو زه د هغوی سره د هغوی کور ته داخل شوم هلته د هغوی لور عائشه صدیقه رضي الله عنها ملاسته وه او د هغې تبه وه نو هغه ته ورغلو او د هغې تپوس ئې اوکړو او د هغې مخ ئې خکل کړو.

په حاشیه د بذل کښې دی : وفی الفتح ۳۲۸/۱۰ یجوز التقبیل الولد الصغیر فی کل عضو منه وکذا الکبیر عند الاکثر مالم یکن عورة وکان عليه السلام یقبل فاطمة رضي الله عنها وکذا ابوبکر ابنته عائشة اهـ وبسطت انواع القبلة فی الشامی ۲۴۲/۵.

## بَابٌ فِي قُبْلَةِ الْيَدِ

**باب: ١٤٧، ١٤٨- د لاس ښکلول**

[٥٢٢٣](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي لَيْلَى حَدَّثَهُ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ، وَذَكَرَ قِصَّةً، قَالَ: "فَدَنَوْنَا، يَعْنِي مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَبَّلْنَا يَدَهُ".

حضرت عبد الرحمن بن ابو لیلی بیان کوی چه حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه قصه بیان کړه چه مونږه نبی کریم صلى الله عليه وسلم ته قریب شو او مونږه د نبی کریم صلى الله عليه وسلم لاس مبارک لره ښکل کړو.

**قوله**: ﴿ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ وَذَكَرَ قِصَّةً قَالَ فَدَنَوْنَا - يَعْنِي - مِنَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَقَبَّلْنَا يَدَهُ ﴾

دا د یو اوږد حدیث ټکړه ده لکه چه مصنف رحمه الله هم دې ته اشاره کړې ده، ﴿ وذکر قصته ﴾ کومه چه په کتاب الجهاد باب التولی یوم الزحف کښې تیر شوې دې، الدر المنضود جلد رابع اوګورئ، په حاشیه د بذل کښې دی قال النووی : تقبیل ید الرجل الصالح لزهده وصلاحه وعلمه اوشرفه ونحو

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٥٨٨) (صحيح)
(٢): انظر حديث رقم (٢٦٤٧)، (تحفة الأشراف: ٧٢٩٨) (ضعيف)

ذك من الامور الدنيوية لا يكره بل يستحب فاذا كان لغناه او شوكته او جاهه عند أهل الدنيا فمكروه شديد الكراهة،وذكر الحافظ احاديث قبلة اليد والرجل فى التلخيص الحبير ٣٦٦ اهـ، وفي الدر المختار ٢٤٥/٥ (ولا بأس بتقبيل يد) الرجل (العالم) والمتورع على سبيل التبرك ونقل المصنف عن الجامع أنه لا بأس بتقبيل يد الحاكم والمتدين (السلطان العادل) وقيل سنة (وتقبيل رأسه) أي العالم (أجود) كما في البزازية (ولا رخصة فيه) أي في تقبيل اليد (لغيرهما) أي لغير عالم وعادل هو المختار.

## بَابٌ فِي قُبْلَةِ الْجَسَدِ

### بابـ ١٤٨ ، ١٤٩-په بدن باندې ښكلول

[٥٢٢٤](١) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: "يُحَدِّثُ الْقَوْمَ وَكَانَ فِيهِ مِزَاحٌ بَيْنَا يُضْحِكُهُمْ، فَطَعَنَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خَاصِرَتِهِ بِعُودٍ، فَقَالَ: أَصْبِرْنِي، فَقَالَ: اصْطَبِرْ، قَالَ: إِنَّ عَلَيْكَ قَمِيصًا وَلَيْسَ عَلَيَّ قَمِيصٌ، فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَمِيصِهِ، فَاحْتَضَنَهُ وَجَعَلَ يُقَبِّلُ كَشْحَهُ، قَالَ: إِنَّمَا أَرَدْتُ هَذَا يَا رَسُولَ اللَّهِ".

حضرت عبد الرحمن بن ابو ليلىٰ دَ حضرت اسيد بن حضير رضی اللہ عنہ نه روايت كوى او دې دَ انصارو نه وو - ده يو ځل دَ خپل قوم سره خبرې كولې - مزاحيه سړې وو - او هغوى لره ئې خنده ول نو حضور ﷺ ددهٔ تشو لره يو ډكې يوړو نو هغوى (اسيد بن حضير) اوفرمائيل ماته بدله راكړه حضور ﷺ اوفرمائيل واخله هغوى اووې په تاسو باندې خو قميص دې او په ما باندې قميص نهٔ وو - نو نبى كريم ﷺ خپل قميص لره بره كړو نو حضرت اسيد حضور ﷺ لره په خپلو متو كښې واخستو او دَ نبى كريم ﷺ اوږه ئې ښكلوله اووې فرمائيل اې دَ الله ﷺ رسوله! زما هم دا نيت وو.

**قوله:** ﴿ عَنْ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ – رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ – قَالَ بَيْنَمَا هُوَ يُحَدِّثُ الْقَوْمَ وَكَانَ فِيهِ مِزَاحٌ بَيْنَا يُضْحِكُهُمْ الخ ﴾

اسيد بن حضير رضی اللہ عنہ فرمائى چه يو انصارى سړى د خلقو سره خبرې كولې چه د هغه په طبيعت كښې مزاح وو او هغه خلق په خپلو خبرو باندې خندول چه په هغې باندې رسول الله ﷺ په يو چوكه سره د هغه ملا اوهله نو هغه اووې ما پريږدئ چه زه ستاسو نه بدل او قصاص واخلم نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل بدله واخله، هغه اووې چه ستاسو په بدن باندې خو قميص دې او زما په بدن باندې قميص نشته په دې باندې رسول الله ﷺ خپل قميص اوچت كړو، هغه سړى د رسول الله ﷺ پورې ځان اولګولو او دهغوى ﷺ شا ئې خكل كړه او وې وئيل يا رسول الله ﷺ زما مقصد خو دا وو.

.............

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥١) (صحيح الإسناد)

# بَابٌ قُبْلَةِ الرِّجْلِ

## بابه ...... خپې ښکلول

[۵۲۲۵]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى بْنُ الطَّبَّاعِ، حَدَّثَنَا مَطَرُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْأَعْنَقُ، حَدَّثَتْنِي أُمُّ أَبَانَ بِنْتُ الْوَازِعِ بْنِ زَارِعٍ، عَنْ جَدِّهَا زَارِعٍ، وَكَانَ فِي وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ، قَالَ: "لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ، فَجَعَلْنَا نَتَبَادَرُ مِنْ رَوَاحِلِنَا، فَنُقَبِّلُ يَدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِجْلَهُ، قَالَ: وَانْتَظَرَ الْمُنْذِرُ الْأَشَجُّ حَتَّى أَتَى عَيْبَتَهُ، فَلَبِسَ ثَوْبَيْهِ، ثُمَّ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: إِنَّ فِيكَ خَلَّتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللَّهُ: الْحِلْمُ وَالْأَنَاةُ، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنَا أَتَخَلَّقُ بِهِمَا أَمُ اللَّهُ جَبَلَنِي عَلَيْهِمَا؟ قَالَ: بَلِ اللَّهُ جَبَلَكَ عَلَيْهِمَا، قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَبَلَنِي عَلَى خَلَّتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ".

ام ابان بنت وازع بن زارع د خپل پلار نه روایت کوی او دې په وفد د عبد القیس کښې شامل وو فرمائی چه کله مونږ مدینې منورې ته اورسیدو نو مونږه په جلدئ جلدئ سره د خپلو سورلو نه کوز شو او د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او د هغوی لاس او پښې مو ښکلولې ـ لیکن منذر اشج انتظار اوکړو تردې پورې چه هغه خپل سامان ته ورغې او خپلې دوه کپړې ئې واچولې بیا د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې راغې نو حضور ﷺ اوفرمائیل بې شکه په تا کښې دوه خصلتونه داسې دی چه هغې لره الله تعالی خوښوی ـ حلم (بلنده حوصله او جلد بازی یعنی تیزی نۀ کول) او باوقار کیدل ـ" هغه تپوس اوکړو چه اې د الله رسوله ! آیا زۀ په دې باندې په تکلف سره اظهار کووم او کۀ زۀ الله په دې باندې پیدا کړې یم ـ حضور ﷺ اوفرمائیل بلکې تۀ الله تعالیٰ په دې باندې پیدا کړې ئې ـ" پس هغه اووې حمد دې هغې الله لره چه هغه مالره په داسې عادتونو باندې پیدا کړې دې چه هغه الله او د هغه رسول ته خوښ دی ـ

**قوله: ﴿ حَدَّثَتْنِي أُمُّ أَبَانَ بِنْتُ الْوَازِعِ بْنِ زَارِعٍ عَنْ جَدِّهَا زَارِعٍ وَكَانَ فِي وَفْدِ عَبْدِ الْقَيْسِ قَالَ لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ فَجَعَلْنَا نَتَبَادَرُ مِنْ رَوَاحِلِنَا فَنُقَبِّلُ يَدَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَرِجْلَهُ - قَالَ - وَانْتَظَرَ الْمُنْذِرُ الْأَشَجُّ الخ ﴾**

ام ابان د خپل نیکه زارع نه روایت کوی کوم چه په وفد د عبدالقیس کښې وو هغه فرمائی چه کله مونږ مدینې طیبې ته راورسیدو نو مونږ زر زر د خپلو سورلو نه کوزیدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضریدلو، د هغوی لاسونه او خپې مو خکلول خو منذر اشج تیزی اونکړه تر دې چه هغه اول د خپلو کپړو پنډوکی ته راغلو خپلې دواړه کپړې ئې بدلې کړې او بیا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو رسول الله ﷺ د هغوی دا ادا ليدلو سره اوفرمائیل : ﴿ إِنَّ فِيكَ خَلَّتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللَّهُ الْحِلْمُ وَالْأَنَاةُ ﴾.قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا أَتَخَلَّقُ بِهِمَا أَمِ اللَّهُ جَبَلَنِي عَلَيْهِمَا قَالَ ﴿ بَلِ اللَّهُ جَبَلَكَ عَلَيْهِمَا ﴾.قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَبَلَنِي عَلَى خَلَّتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ ﴾ چه په تا کښې دوه عادتونه داسې دی کوم چه الله پاک خوښوی يو حلم او دویم وقار، هغوی عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ دا دوه خصلتونه ما خپله اختیار کړې دی او که الله پاک زما په خلقت کښې ایخودلې دی؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل الله

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۳٦١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۰٦/٤) (صحيح)

پاک ته پيدا کړي هم په دې خصلتونو ئې، په دې باندې هغه اووې چه ټول تعريفونه د هغه الله پاک دپاره دی چا چه زه په داسې دوه خصلتونو باندې پيدا کړم کوم چه الله تعالی او د هغه رسول ﷺ خوښوی.

دا المنذر الاشج چا ته چه اشج عبدالقيس او الاشج العصری هم وائی، په تهذيب کښې د هغوی نسب داسې ليکلې دې المنذر بن عائد بن الحارث بن النعمان بن زياد بن عصر العصری کان سيد قومه.

په عون المعبود کښې د لمعات نه نقل کړی دی چه دا وفد د عبدالقيس کوم چه د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوې وو مدينې طيبې ته رسيدو سره د خپلو سورلو نه د زيارت نبوی په شوق کښې په تيزئ سره د خپلو سورلو نه کوز شو او ډير په تيزئ سره د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، رسول الله ﷺ د هغوی د دې جذباتو مشاهده فرمائيله او د دې وفد چه کوم مشر وو اشج هغه اول کوزيدو سره خپلې قيام ګاه ته لاړو او هلته تلو سره ئې غسل اوکړو او صفا جامې ئې واغوستلې د دې نه پس مسجد نبوی ﷺ ته داخل شو او هلته ئې دوه رکعته ادا کړل او دعاء ئې اوغوښتله او بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې ډير په خشوع وخضوع او سکون اووقار سره حاضر شو په دې باندې رسول الله ﷺ د هغه په باره کښې هغه ارشاد اوفرمائيلو کوم چه پورته په حديث کښې تير شو.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ جَعَلَنِي اللَّهُ فِدَاكَ

**باب: ۱۴۹، ۱۵۰- باب دې په بيان دَ هغه چا کښې چه هغه بل کس ته اووائی چه ما لره دې الله پاک په تا باندې قربان کړی**

[۵۲۲۶](1) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا وَمُسْلِمٌ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ، عَنْ حَمَّادٍ يَعْنِيَانِ ابْنَ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَبَا ذَرٍّ"، فَقُلْتُ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَأَنَا فِدَاؤُكَ".

د حضرت ابوذر رضي الله عنه نه روايت دې هغه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: اې ابوذر! ما اووې حاضر يم او ډير باسعادت يم اې دَ الله رسوله! او زهٔ په تا باندې قربان يم."

په حديث الباب کښې دی سيدنا ابوذرغفاری رضي الله عنه فرمائی چه ماته رسول الله ﷺ اوفرمائيل ابوذر نو ما عرض اوکړو ﴿ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ وَأَنَا فِدَاكَ ﴾

دا ترجمه امام بخاری رحمه الله هم قائم کړې ده په کتاب الادب کښې باب قول الرجل فداک ابی وامی، دواړه ترجمې يو بل ته نزدې نزدې دی، په يو کښې خپل نفس فدا کولې شی او په بل کښې خپل والدين،

**(زه په فداء (قربان) يم،، ددې قول حکم)**

اوس دا چه خپل ځان او خپل مور پلار په چا باندې فدا کول او داسې وئيل جائز دی که نه؟

د دې په باره کښې امام نووی رحمه الله په شرح د مسلم ۲/۲۸۰ کښې فرمائی: وَبِهِ قَالَ جَمَاهِير

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۱۷) (حسن صحيح)

الْعُلَمَاء،وَكَرِهَهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّاب وَالْحَسَن الْبَصْرِيّ رَضِيَ اللَّه عَنْهُمَا،وَكَرِهَهُ بَعْضهمْ فِي التَّفْدِيَة بِالْمُسْلِمِ مِنْ أَبَوَيْهِ .وَالصَّحِيح الْجَوَاز مُطْلَقًا ؛ لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ حَقِيقَةُ فِدَاء،وَإِنَّمَا هُوَ أَلْطَاف وَإِعْلَام بالمحبة الخ ...يعني د جمهور علماء كرامو په نزد داسې وئيل جائز دی او عمرفاروق رضی الله عنه او حسن بصری رحمه الله دا مکروه ګڼړلی دی یعنی مطلقا . او بعض علماء کرامو د خپلو مسلم ابوینو تفدیه مکروه کړې ده یعنی د کوم سړی مور پلار چه مسلمانان وی هغوی دپاره فداک ابی وامی وئیل مکروه دی، او د کوم سړی مور پلار چه غیر مسلم وی د هغوی دپاره داسې وئیل جائز دی (ځکه چه خپل ځان په غیر الله باندې فدا کول څنګه جائز کیدې شی) امام نووی رحمه الله فرمائې چه صحیح خبره دا ده چه داسې وئیل مطلقا جائز دی ځکه چه په دې سره مقصود حقیقتا فدا نه دې بلکه په دې سره مقصود خو صرف اظهار لطف او محبت دې، او خپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه داسې وئیل ثابت دی، پس رسول الله صلی الله علیه وسلم په جنګ احد کښې سعد رضی الله عنه ته او په غزوه خندق کښې زبیر رضی الله عنه ته داسې فرمائیلې وو، په فتح الباری کښې دلته د دې ټولو خلاف د طبرانی روایت هم نقل کړې دې هغه دا چه یو ځل زبیر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تپوس دپاره حاضر شو په داسې حال کښې چه د هغوی طبیعت ناساز وو او هغوی ته ئې داسې خطاب اوکړو یعنی په دې الفاظو ئې د هغوی تپوس اوکړو، ﴿ کیف تجدک جعلنی الله فداک﴾ (نو دا رسول الله صلی الله علیه وسلم بده اوګڼړله) او وې فرمائیل ﴿ما ترکت اعرابیتک ﴾ چه تا اوسه پورې هغه د بانډچیانو لهجه نه ده پریخودلې، د دې نه پس امام طبرانی رحمه الله فرمائی چه دا حدیث د هغه احادیث صحیحه مقابله نه شی کولې، او که د دې روایت ثبوت اومنلې شی نو بیا په دې کښې صراحة ممانعت نشته ځکه چه د هغوی په دې الفاظو باندې تپوس او عیادت کول خلاف اولی دی، د عیادت مسنون طریقه دا نه ده بلکه د ﴿ لا باس طهور ﴾ په شان الفاظو باندې عیادت کول پکار دی.

## بَاب فِي الرَّجُلِ يَقُولُ أَنْعَمَ اللَّهُ بِكَ عَيْنًا

**باب: ۱۵۰، ۱۵۱ - څوک چه بل کس ته اووائی الله تعالی دې ستا سترګې یخې کړی**

[۵۲۲۷]( ) حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ قَتَادَةَ أَوْ غَيْرِهِ، أَنَّ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ، قَالَ: "كُنَّا نَقُولُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ أَنْعَمَ اللَّهُ بِكَ عَيْنًا وَأَنْعِمْ صَبَاحًا، فَلَمَّا كَانَ الْإِسْلَامُ نُهِينَا عَنْ ذَلِكَ"، قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ، قَالَ مَعْمَرٌ: يُكْرَهُ أَنْ يَقُولَ الرَّجُلُ: أَنْعَمَ اللَّهُ بِكَ عَيْنًا، وَلَا بَأْسَ أَنْ يَقُولَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَيْنَكَ".

د حضرت قتاده یا د بل کوم شخص نه رایت دې چه حضرت عمران بن حصین اووئیل چه مونږه به په جاهلیت کښې یو بل ته داسې وئیلې [ انعم الله بک عینا ] الله تعالیٰ دې ستا سترګې یخې لرې - او[انعم صباحا] سبا دې په خیر وی- بیا چه کله اسلام راغې نو مونږ ددې نه منع کړې شو - عبد الرزاق بیان کړې دې چه معمر وئیلې دی چه د [ انعم الله بک عینا ] وئیل مکروهه دی مګر که [ انعم الله عینک ] اووائی نو په دې کښې څه حرج نشته دې-".

په حدیث الباب کښې دی سیدنا عمران بن حصین رضی الله عنه فرمائی چه مونږ به د جاهلیت په زمانه

( ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۸۳۶) (ضعيف الإسناد)

کښې داسې وئیل: ﴿ أَنْعَمَ اللّٰهُ بِكَ عَيْنًا ﴾ چه د هغې دوه مطلبه کیدې شي چه يو دوست د بل دوست سره د ملاقات په وخت وائی چه الله پاک دې ستا سترګې يخې کړی، يعني ستا د محبوب څيز په ذريعه، که باء زائده اومنلې شي په دې صورت دمنع کښې وجه صرف دا ده چه دا د زمانه جاهليت تحية ده او که باء سببيه اومنلې شي نو بيا خو به مطلب دا وی چه الله پاک دې ستا په ذريعه ستا د محبوب سترګې يخې کړی نو په دې کښې د منع دوه وجې شوې يو دا چه دا د زمانه جاهليت تحيه ده او دويم دا چه په دې کښې دمعنی د فساد ايهام دې چه الله پاک دې ستا په ذريعه داسې اوکړی، او دويمه جمله ﴿ أَنْعِمْ صَبَاحًا ﴾ چه ته دې په ښه طريقه او کاميابئ سره صبا کړې په دې کښې وجه د کراهت بس يوه ده كونه من تحية الجاهلية.

وړاندې په روايت کښې دی چه که په ځائې د ﴿ بک عينا ﴾ ﴿ انعم الله عينک ﴾ اوائی نو هيڅ باک نشته، اول خو په دې وجه چه په الفاظو کښې د تغير نه پس دا تحية الجاهلية پاتې نه شوه، بله دا چه د باء سببيه د وجې نه چه په دې کښې کوم ايهام وو هغه په دې کښې نشته.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ لِلرَّجُلِ حَفِظَكَ اللّٰهُ

**باب: ۱۵۲، ۱۵۳ - څوک چه چا ته داسې دُعا اوکړی "الله تعالی دې ستا حفاظت اوکړی"**

[۵۲۲۸](١) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ رَبَاحٍ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبُو قَتَادَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ فِي سَفَرٍ لَهُ، فَعَطِشُوا، فَانْطَلَقَ سَرَعَانُ النَّاسِ، فَلَزِمْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ اللَّيْلَةَ، فَقَالَ: حَفِظَكَ اللّٰهُ بِمَا حَفِظْتَ بِهِ نَبِيَّهُ".

د ابو قتاده رضي الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ په خپل يو سفر کښې وو چه صحابهٔ کرامو ته تنده اولګيده نو جلد باز خلق وړاندې لاړل او زهٔ په دغه شپه کښې د رسول الله ﷺ سره وم نو حضور ﷺ اوفرمائيل الله تعالیٰ دې ستا حفاظت اوکړی لکه څنګه چه تا د الله د نبی حفاظت اوکړو."

د حديث الباب مضمون دا دې چه سيدنا ابوقتاده رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ په يو سفر کښې وو د رسول الله ﷺ تول ملګری د تندې د وجې نه د اوبو څکلو دپاره لاړل زه د رسول الله ﷺ د يواځې کيدو د وجې نه هم هغوی سره ايسار شوم، نو په دې باندې هغوی په دې الفاظو سره دعاء اوکړه: ﴿ حَفِظَكَ اللّٰهُ بِمَا حَفِظْتَ بِهِ نَبِيَّهُ ﴾

## بَابٌ فِي قِيَامِ الرَّجُلِ لِلرَّجُلِ

**باب: ۱۵۱، ۱۵۲ - د يو کس د بل کس د تعظيم دپاره اودريدل:**

د دې باب ذکر مونږ سره مخکښې په باب القيام کښې تير شوې دې.

[۵۲۲۹](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنْ أَبِي مِجْلَزٍ، قَالَ: "خَرَجَ مُعَاوِيَةُ عَلَى ابْنِ الزُّبَيْرِ وَابْنِ عَامِرٍ، فَقَامَ ابْنُ عَامِرٍ وَجَلَسَ ابْنُ الزُّبَيْرِ، فَقَالَ مُعَاوِيَةُ لِابْنِ عَامِرٍ: اجْلِسْ، فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَمْثُلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ".

[1]: تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٤٣٧)، (تحفة الأشراف: ١٢٠٩١) (صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الأدب ١٣ (٢٧٥٥)، (تحفة الأشراف: ١١٤٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٩١، ٩٣، ١٠٠) (صحيح)

د ابو مجلز نه روايت دې چه حضرت امير معاويه رضي الله عنه، حضرت عبد الله بن زبير او عبد الله بن عامر رضي الله عنه ته راغې نو ابن عامر رضي الله عنه (دَ هغه دَ تعظيم دپاره) اودريدو - ليکن ابن زبير ناست وو - نو حضرت معاويه رضي الله عنه ابن عامر رضي الله عنه ته اووئيل : کينه، ځکه چه ما دَ رسول الله ﷺ نه اوريدلې دى هغه فرمائيل کوم کس چه دا خوښه وى چه خلق دې دهٔ ته ولاړ وى نو هغه لره پکار دى چه خپل دَ اوسيدو ځائې په جهنم کښې جوړ کړى-"

**قوله: ﴿ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَمْثُلَ لَهُ الرِّجَالُ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ ﴾** يعنى کوم سړې چه د خپل ځان دپاره دا خوښوى چه خلق د هغه مخکښې د تصوير په شکل باندې اودريږى نو هغه دې خپله استوګنه په جهنم کښې جوړه کړى يعنى هغه دې دا اوګڼړى چه د هغه استوګنه په جهنم کښې ده، او يا ئې مطلب دا دې چه هغه جهنم ته په خپله استوګنه کښې داخل شو، په يو حديث کښې دا دى چه الله پاک د هر چا دپاره دوه دوه استوګنې جوړې کړې دى يو په جنت کښې او يو په دوزخ کښې، که هغه سړې دنيا ته د راتلو نه پس مسلمان وى يا کافر جوړ شى، په کفارو باندې د حجت قائمولو دپاره چه هسې نه هغوى داسې اوائى چه يا الله تا زمونږ د شروع نه په جنت کښې څه حصه نه وه کيخودله.

د باب په دويم حديث کښې په روايت د ابو امامه رضي الله عنه دا دى

[٥٢٣٠](١) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ أَبِي الْعَنْبَسِ عَنْ أَبِي الْعَدَبَّسِ، عَنْ أَبِي مَرْزُوقٍ، عَنْ أَبِي غَالِبٍ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ، قَالَ: "خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَوَكِّئًا عَلَى عَصًا، فَقُمْنَا إِلَيْهِ، فَقَالَ: لَا تَقُومُوا كَمَا تَقُومُ الْأَعَاجِمُ، يُعَظِّمُ بَعْضُهَا بَعْضًا".

د حضرت ابو امامه باهلى رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ مونږ ته تشريف راوړو او حضور ﷺ دَ خپلې امسا په سهارې سره تللو مونږ دَ هغه طرف ته پاسيدو نو حضور ﷺ اوفرمائيل " دَ عجميانو (غير مسلمو) په شان مهٔ اودريږئ، چه هغوى يو بل ته تعظيم ورکوى-"

چه يوه ورځ رسول الله ﷺ د دننه نه بهر د همسا په تکيه تشريف راوړلو، مونږ د هغوى په ليدو باندې اودريدلو نو رسول الله ﷺ د دې نه منع اوفرمائيله چه تاسو د عجميانو په شان مه اودريږئ ځنګه چه هغوى د يو بل د تعظيم دپاره اودريږى.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ فُلَانٌ يُقْرِئُكَ السَّلَامَ

**باب ١٥٣ ، ١٥٤ -باب دې په بيان دَ هغه چا کښې چه چاته اووائى فلا□ په تا باندې سلام وائى**

[٥٢٣١](٢) حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ غَالِبٍ، قَالَ: إِنَّا لَجُلُوسٌ بِبَابِ الْحَسَنِ إِذْ جَاءَ رَجُلٌ، فَقَالَ حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، قَالَ: "بَعَثَنِي أَبِي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: ائْتِهِ، فَأَقْرِئْهُ السَّلَامَ، قَالَ: فَأَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ: إِنَّ أَبِي يُقْرِئُكَ السَّلَامَ، فَقَالَ: عَلَيْكَ السَّلَامُ وَعَلَى أَبِيكَ السَّلَامُ".

حضرت غالب (بن خطاف بصرى) بيان کوى چه مونږه د حضرت حسن بصرى رحمه الله په دروازه کښې ناست وو چه يو سړې راغې او هغه اووې چه ما ته زما پلار زما دَ نيکهٔ نه روايت کړې

١): سنن ابن ماجه /الدعاء ٢ (٣٨٣٦)، (تحفة الأشراف: ٤٩٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٥٣/٥، ٢٥٦) (ضعيف)

٢): تفرد به أبو داود، انظر حديث رقم: (٢٩٣٤)، (تحفة الأشراف: ١٥٧١١)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٦٦/٥) (ضعيف)

دي هغه فرمائی چه مالره زما پلار د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې اولیږلو اووې فرمائیل چه هغه ته لاړ شه او ورته زما سلام اووايه ـ چنانچه زهٔ د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې اوکړو چه زما پلار په تاسو باندې سلام وئیلې دې نو حضور ﷺ اوفرمائیل: "علیک وعلى ابیک السلام" په تا باندې او ستا په پلار باندې دې سلامتی وی."

د يو صحابي نامعلوم الاسم ﷺ نه روایت دې چه زه خپل پلار د رسول الله ﷺ په خدمت کښې اولیږلم او وې فرمائیل هلته لاړ شه او په رسول الله ﷺ باندې زما سلام وایه، هغه فرمائی چه زه د هغوی په خدمت کښې لاړم او د خپل پلار سلام مې ورته اورسولو نو رسول الله ﷺ په جواب کښې اوفرمائیل: ﴿علیک وعلى ابیک السلام﴾.

او د باب په دويم حديث کښې دی.

[٥٢٣٢](١)حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرِبْنُ أَبِي شَيْبَةَ،حَدَّثَنَا عَبْدُالرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ،عَنْ زَكَرِيَّا،عَنِ الشَّعْبِيِّ،عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا،حَدَّثَتْهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا: "إِنَّ جِبْرِيلَ يَقْرَأُ عَلَيْكِ السَّلَامَ، فَقَالَتْ: وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللَّهِ".

د ام المؤمنين حضرت عائشې ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: په تحقیق سره جبریل علیه السلام په تا باندې سلام وائی نو هغې اووې [ وَعَلَيْهِ السَّلَامُ وَ رَحْمَةُ اللهِ ]

سيده عائشه ﷺ فرمائی چه یو ځل ماته رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه جبرائیل علیه السلام تاته سلام وائی هغه فرمائی چه ما جواب ورکړو وعلیه السلام ورحمة الله.

د اول حديث نه معلومه شوه چه کله څوک دچا دطرف نه سلام راوړی نو جواب ورکونکی له پکار دی چه په جواب سلام کښې رارسونکې هم شریک کړی، او په دې دويم حديث کښې صرف په مسلم باندې سلام دې په مبلغ باندې نشته، معلومه شوه چه په دواړو طريقو جائز دي (بذل)او په حاشيه د بذل کښې دی چه د ابن عابدین د ظاهر کلام نه معلومیږی چه د امام محمد ﷺ په نزد تشریک واجب دې او د نورو په نزد مستحب.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يُنَادِي الرَّجُلَ فَيَقُولُ لَبَّيْكَ

### باب ۱٥٤، ۱٥٥- د چا د آواز جواب په لبيک وئيلو سره

[٥٢٣٣](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا يَعْلَى بْنُ عَطَاءٍ،عَنْ أَبِي هَمَّامٍ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْفِهْرِيَّ، قَالَ: شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا، فَسِرْنَا فِي يَوْمٍ قَائِظٍ شَدِيدِ الْحَرِّ، فَنَزَلْنَا تَحْتَ ظِلِّ الشَّجَرَةِ، فَلَمَّا زَالَتِ الشَّمْسُ، لَبِسْتُ لَأْمَتِي وَرَكِبْتُ فَرَسِي، فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي فُسْطَاطِهِ، فَقُلْتُ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ، قَدْ حَانَ الرَّوَاحُ، قَالَ: أَجَلْ، ثُمَّ قَالَ: يَا بِلَالُ، قُمْ فَثَارَ مِنْ تَحْتِ سَمُرَةٍ كَأَنَّ ظِلَّهُ ظِلُّ طَائِرٍ، فَقَالَ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَأَنَا فِدَاؤُكَ، فَقَالَ: أَسْرِجْ لِي

---

(١): صحيح البخاري/بدء الخلق ٦ (٣٢١٧)، وفضائل الصحابة ٣٠ (٣٧٦٨)، والأدب ١١١ (٦٢٠١)، الاستئذان ١٦ (٦٢٤٩)، ١٩ (٦٢٥٣)، صحيح مسلم/الآداب ٧ (٢٤٤٧)، سنن الترمذي/الاستئذان ٥ (٢٦٩٣)، سنن النسائي/عشرة النساء ٣ (٣٤٠٥)، سنن ابن ماجه/الآداب ١٢ (٣٦٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٧٢٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٤٦/٦، ١٥٠، ٢٠٨، ٢٢٤)، سنن الدارمي/الاستئذان ١٠ (٢٦٨٠) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٠٦٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢٨٦/٥)، سنن الدارمي/السير ١٦ (٢٤٩٦) (حسن)

الْفَرَسَ، فَأَخْرَجَ سَرْجًا دَفَّتَاهُ مِنْ لِيفٍ لَيْسَ فِيهِ أَشَرٌ وَلَا بَطَرٌ، فَرَكِبَ وَرَكِبْنَا"، وَسَاقَ الْحَدِيثَ، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْفِهْرِيُّ لَيْسَ لَهُ إِلَّا هَذَا الْحَدِيثُ، وَهُوَ حَدِيثٌ نَبِيلٌ جَاءَ بِهِ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ.

د حضرت ابو عبد الرحمن فهری رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه زۀ په غزوۀ حنین کښې د نبی کریم ﷺ سره وم - مونږه په سخته ګرمئ کښې مزل کولو بیا د یوې اونې سورې ته راغلو کله چه د نمر زوال اوشو نو ما خپله زغره واچوله او په اس باندې سور شوم او رسول الله ﷺ ته راغلم حضور ﷺ په خپله خیمه کښې وو ما عرض اوکړو [السَّلَامُ عَلَيْكَ يا رَسُوْلَ الله ! وَ رَحْمَةُ الله وَ بَرَكَاتُه ] د کوچ کولو وخت دې،حضور ﷺ اوفرمائیل هاں ! بیا ئې اوفرمائیل بلال ! پاسه " نو هغه د کیکر د یوې اونې د لاندې نه فورا پاسیدو او د هغې سورې داسې وو لکه د مارغۀ ! (هغه د ډیر زیات نحیف او نری جسم والا وو) هغه اووې زۀ حاضر یم،حاضر یم،او په تاسو باندې فدا یم - حضور ﷺ اوفرمائیل زما اس تیار کړئ (زین پرې واچوئ) چنانچه هغه داسې زین راویستو چه د هغې ګدئ د کجورو د پټ به ډکې کړې شوې وې - په هغوی کښې څه قسم لوئی او تکبر نۀ وو (انتهائی ساده وو) چنانچه هغه سور شو او مونږ هم سوارۀ شو - او پوره حدیث ئې بیان کړو -امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه د ابو عبد الرحمن فهری رضی الله عنه نه هم دا یو حدیث مروی دې او دا عمده حدیث دې چه دې لره حماد بن سلمه روایت کړې دې -

د حدیث مضمون دا دې ابوعبدالرحمن فهری رضی الله عنه فرمائی چه زه د رسول الله ﷺ سره په حینین کښې شریک اوم یو ځل مونږ روان وو د سختې ګرمئ په ورځ کښې نو مونږ د یوې اونې د لاندې کیناستلو چه کله د نمر زوال اوشو نو ما خپله وسله واخستله او زغره مې واغوستله او په خپل اس باندې سور شوم او رسول الله ﷺ ته راغلم په داسې حال کښې چه هغوی په خیمه کښې وو، پس ما اووې السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَرَحْمَةُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ قَدْ حَانَ الرَّوَاحُ ...چه د دې منزل نه د روانیدو وخت اوشو رسول الله ﷺ اوفرمائیل صحیح ده، بیا رسول الله ﷺ سیدنا بلال رضی الله عنه ته آواز اوکړو او هغوی ته ئې اوفرمائیل پاسیږه اې بلال نو هغوی د یو کیکر د اونې د لاندې نه فورا پاسیدلو چه د هغې سورې دومره لږ وو څومره چه د یوې مرغئ وی او د رسول الله ﷺ ته ئې عرض اوکړو ﴿ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَأَنَا فِدَاؤُكَ ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل په اس باندې کته واچوه، ﴿ فَأَخْرَجَ سَرْجًا دَفَّتَاهُ مِنْ لِيفٍ لَيْسَ فِيهِ أَشَرٌ وَلَا بَطَرٌ فَرَكِبَ وَرَكِبْنَا ﴾ نو هغوی یو داسې کته راوړه چه د هغې دواړو طرفونو ته د کهجورو پوستکې وو نه په هغې کښې څه کبر وو او نه لوئی، رسول الله ﷺ په هغې باندې سور شو او مونږ هم په خپلو خپلو سورلو باندې سوارۀ شو او روان شو.

د حدیث د ترجمة الباب سره مناسبت ښکاره دې ظاهره دا ده چه د آواز ورکونکی په جواب کښې ﴿ لبیک ﴾ وئیل ثابتیږی، په حاشیه د بذل کښې دی چه داسې د چا په جواب کښې لبیک وئیل د امام مالک رحمه الله په نزد مکروه دی (کما فی الشرح الکبیر ۳۲/۲) بیا هغوی د دې تاویل کړې دې چه د امام مالک مراد د مطلق لبیک کراهت نه دې بلکه د تلبیة الحج استعمالول مراد دی او دا ترجمه امام بخاری رحمه الله هم کړې ده خو حافظ د ترجمة الباب د غرض نه

سکوت کړې دې د دې نه پس شیخ فرمائی چه په تلبیه د حج کښې خو د علماء کرامو اختلاف مشهور دې چه د غیر محرم دپاره جائز دې یا که نه او بیا ئې د ابن قدامة نه نقل کړې دی ﴿لا باس ان یلبی الحلال وبه قال الشافعی واصحاب الرائی وکرهه مالک، ولنا انه ذکر یستحب المحرم فلا یکره بغیره کسائر الاذکار اهـ﴾ زمونږ استاد حضرت ناظم صاحب رحمه الله فرمائی چه لبیک خو هغه وخت وئیلې شی چه کله یو سړې آواز اوکړی او راوغواړی د خپل څه حاجت او ضرورت دپاره، دا هغوی په دې باندې اوفرمائیل چه بعض طالبانو به د استاد د حاضرئ اخستلو په وخت باندې د خپل نوم اوریدلو په وخت باندې ﴿لبیک﴾ وئیلو چه دا د دې محل نه دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَقُولُ لِلرَّجُلِ أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ

### باب: ۱۵۵، ۱۵۶- چا ته په دې الفاظو سره دُعا کول "الله تعالی دې تاله اوخنده وی"

[۵۲۳۴](۱) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْبِرَكِيُّ، وَسَمِعْتُهُ مِنْ أَبِي الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيِّ، وَأَنَا لِحَدِيثِ عِيسَى أَضْبَطُ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْقَاهِرِ بْنُ السَّرِيِّ يَعْنِي السُّلَمِيَّ، حَدَّثَنَا ابْنُ كِنَانَةَ بْنِ عَبَّاسِ بْنِ مِرْدَاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: "ضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ أَبُو بَكْرٍ أَوْ عُمَرُ: أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ"، وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

حضرت (عبد الله) ابن کنانه بن عباس بن مرد د خپل پلار نه روایت کوی او هغه د خپل نیکهٔ نه روایت کوی چه یو ځل نبی کریم ﷺ اوخندل نو حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل الله تعالیٰ دې تاله همیشه اوخنده وی۔" او حدیث لره ئې بیان کړو۔

په حدیث الباب کښې دی چه یو ځل رسول الله ﷺ په څه خبره باندې مسکې شو نو د هغوی په مسکا باندې په شیخینو کښې کوم چه هلته موجود وو یو داسې اووې: أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ.(۲)

د دې حدیث نه په دې وخت کښې چه کومه دعاء مشروع ده معلومه شوه چه کله یو مسلمان بل مسلمان په مسکا باندې وینی نو هغه ته دې داسې دعاء اوکړی ﴿اضحک الله سنک﴾ چه الله پاک دې تا هم داسې په خندا لری.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الْبِنَاءِ

### باب: ۱۵۶، ۱۵۷- د مکان جوړولو بیان

[۵۲۳۵](۳) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي السَّفَرِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: "مَرَّ بِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أُطَيِّنُ حَائِطًا لِي أَنَا وَأُمِّي، فَقَالَ: مَا هَذَا يَا عَبْدَ اللَّهِ؟، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، شَيْءٌ أُصْلِحُهُ، فَقَالَ: الْأَمْرُ أَسْرَعُ مِنْ ذَلِكَ".

د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه بیان دې چه ما او زما مور په دیوال باندې ختې کولې چه نبی کریم ﷺ په ما باندې تیر شو هغه تپوس اوکړو عبد الله! دا څه دی؟ ما عرض اوکړو اې د

(۱): سنن ابن ماجه/المناسك ٥٦ (٣٠١٣)، (تحفة الأشراف: ٥١٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٥/٤) (ضعيف)

(۲) في هامش البذل: أو ردهذا الحديث ابن الجوزي في الموضوعات ورد عليه الحافظ في القول المسدد ١٣٦

(۳): سنن الترمذي/الزهد ٢٥ (٢٣٣٥)، سنن ابن ماجه/الزهد ١٣ (٤١٦٠)، (تحفة الأشراف: ٨٦٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٦١/٢) (صحيح)

الله رسوله ! ددې څه مرمت کوو حضور ﷺ اوفرمائيل معامله ددې نه ډيره زياته تيزه ده .

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو (١) قَالَ مَرَّ بِي رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَأَنَا أُطَيِّنُ حَائِطًا لِي أَنَا وَأُمِّي الخ ﴾

عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما فرمائي چه يوه ورځ رسول الله ﷺ په ما باندې تير شو او ما او زما مور دواړو د خپل کور ديوال په خټو باندې برابرولو نو رسول الله ﷺ ما نه تپوس اوکړو اې عبدالله! دا څۀ دي؟ ما عرض اوکړو يا رسول الله ﷺ دا ديوال لږ برابروم، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل مرګ د دې نه زيات زر راروان دې، او هم د دې حديث په دويم طريق کښې دي : وَنَحْنُ نُعَالِجُ خُصًّا لَنَا وَهَى .....خص وائي د بانړس او لرګی وغيره نه چه کوم کور جوړولې شي چه سونړ برابرولو خپل کور کوم چه کمزورې شوې وو ، وهى ..بروزن رضى د ماضى صيغه ده. (بذل)او دا ﴿ وَهَى ﴾ هم لوستلې شي بروزن رَمَى.

[٥٢٣٦](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَهَنَّادٌ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا، قَالَ: مَرَّ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نُعَالِجُ خُصًّا لَنَا وَهَى، فَقَالَ: مَا هَذَا؟، فَقُلْنَا: خُصٌّ لَنَا وَهَى فَنَحْنُ نُصْلِحُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَرَى الْأَمْرَ إِلَّا أَعْجَلَ مِنْ ذَلِكَ.

حضرت اعمش په خپل سند سره دا مذکوره روايت نقل کړې دې،فرمائي چه رسول الله ﷺ په ما باندې تير شو او مونږه خپله کوټړئ کومه چه زړه شوې وه د هغې مرمت مو کولو - حضور ﷺ تپوس اوکړو دا څه دي؟ مونږ عرض اوکړو چه زمونږه دا کوټړئ زړه (ورسته شوې) شوې ده،نو ددې مرمت کوو ،نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل " زۀ خو معامله ددې نه هم تيزه ګنړم ."

رسول الله ﷺ چه دا کوم ارشاد اوفرمائيلو چه مرګ ډير نزدې دې په دې باندې د حضرت ګنګوهي رحمه الله په تقرير کښې دی چه د رسول الله ﷺ مقصود د دې مکان په اصلاح او مرمت منع کول نه دی بلکه مقصود ئې مرګ وريادول دی چه دا هم په ذهن کښې کيخودل پکار دی.

[٥٢٣٧](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ حَكِيمٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَاطِبٍ الْقُرَشِيُّ، عَنْ أَبِي طَلْحَةَ الْأَسَدِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ: "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ، فَرَأَى قُبَّةً مُشْرِفَةً، فَقَالَ: مَا هَذِهِ؟ قَالَ لَهُ أَصْحَابُهُ: هَذِهِ لِفُلَانٍ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، قَالَ: فَسَكَتَ وَحَمَلَهَا فِي نَفْسِهِ حَتَّى إِذَا جَاءَ صَاحِبُهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَلِّمُ عَلَيْهِ فِي النَّاسِ، أَعْرَضَ عَنْهُ، صَنَعَ ذَلِكَ مِرَارًا حَتَّى عَرَفَ الرَّجُلُ الْغَضَبَ فِيهِ، وَالْإِعْرَاضَ عَنْهُ، فَشَكَا ذَلِكَ إِلَى أَصْحَابِهِ، فَقَالَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأُنْكِرُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالُوا: خَرَجَ، فَرَأَى قُبَّتَكَ، قَالَ: فَرَجَعَ الرَّجُلُ إِلَى قُبَّتِهِ فَهَدَمَهَا، حَتَّى سَوَّاهَا بِالْأَرْضِ، فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

١) في هامش البذل : يفتش الحديث فانه في الترغيب ص ٥٩٩عن ابن عمر بدون الواو اهـ في جميع النسخ عندنا بالواو، وكذا في سنن الترمذي عن عبدالله بن عمرو، بالواو)

٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٨٦٥٠) (صحيح)

٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٢٠)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الزهد ١٣ (٤١٦١)، مسند احمد (٣/٢٢٠) (حسن) (الصحيحة ٢٨٣٠)

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَلَمْ يَرَهَا، قَالَ: مَا فَعَلَتِ الْقُبَّةُ؟، قَالُوا: شَكَا إِلَيْنَا صَاحِبُهَا إِعْرَاضَكَ عَنْهُ فَأَخْبَرْنَاهُ فَهَدَمَهَا، فَقَالَ: أَمَا إِنَّ كُلَّ بِنَاءٍ وَبَالٌ عَلَى صَاحِبِهِ، إِلَّا مَا لَا إِلَّا مَا لَا يَغْنِي مَا لَا بُدَّ مِنْهُ".

د حضرت انس رضی اللہ عنہ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ بهر اوتلو نو يوه اوچته قبه ئې اوليده۔ حضور ﷺ تپوس اوکړو :" دا څه دي؟ " صحابهٔ کرامو رضی اللہ عنہم عرض اوکړو، چه دا دَ فلاں انصاری ده۔ فرمائی چه هغه خاموش شو او خبره ئې په خپل زړهٔ کښې اوساتله۔ کله چه دَ هغې مالک دَ نورو خلقو سره دَ نبی کريم ﷺ سلام کولو له راغې، نو حضور ﷺ هغه ته توجه اونهٔ فرمائيله او بار بار داسې اوشو تردې پورې چه هغه پوهه شو چه حضور ﷺ ناراض دې او توجه نهٔ فرمائی، نو هغه ددې کيفيت خپلو ملګرو ته شکايت اوکړو اووې وئيل قسم په الله چه زهٔ پيغمبر ﷺ لره بدل بدل شان وينم۔ هغه ته خپلو ملګرو اوښودله چه حضور ﷺ بهر وتلې وو او ستا قبه ئې ليدلې وه، چنانچه هغه هغه خپل قبه نما مکان ته لاړو او هغې لره ورانه کړه۔ تردې پورې چه هغې لره ئې دَ زمکې سره برابره کړه۔ چنانچه حضور ﷺ يو ځل بهر اوتلو او مکان په نظر باندې رانغې نو تپوس ئې اوکړو " دَ قبې سره څه اوکړې شو؟ صحابه کرامو رضی اللہ عنہم ورته اووئيل چه دَ هغې مالک مونږ ته ستاسو دَ بې توجهئ شکايت کړې وو نو مونږ هغه ته ددې وجه بيان کړه نو هغه دې لره ورانه کړه حضور اوفرمائيل هر تعمير دَ خپل مالک دپاره دَ وبال سبب دې مګر هغه ... مګر هغه چه دَ هغې نه بغير چاره نهٔ وی۔

**قوله:** ﴿ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ –صلى الله عليه وسلم– خَرَجَ فَرَأَى قُبَّةً مُشْرِفَةً فَقَالَ « مَا هَٰذِهِ » ﴾ يو ځل رسول الله ﷺ روان وو نو په لاره کښې ئې يو لوړ کور اوليدو نو هغوی تپوس اوکړو چه دا د چا دې؟ صحابه کرامو رضی اللہ عنہم عرض اوکړو چه دا د فلانی انصاری دې، رسول الله ﷺ په دې اوريدلو باندې خاموش پاتې شو خو هغوی دا خبره په ذهن کښې اوساتله تردې چه کله هغه د کور مالک د رسول الله ﷺ مجلس ته د خپل عادت مطابق حاضر شو او سلام ئې عرض کړو نو رسول الله ﷺ د هغوی نه مخ واړولو هغه بار بار سلام اوکړو خو رسول الله ﷺ ترې نه اعراض فرمائيلو تر دې چه هغه صحابی د رسول الله ﷺ په خفګان باندې پوهه شو نو د دې ځيز ذکر هغه نورو صحابه کرامو رضی اللہ عنہم ته اوکړو چه والله زه وينم چه رسول الله ﷺ خفه دې د دې څهٔ وجه ده؟ هغوی ورته اووې چه رسول الله ﷺ په لاره کښې ستا کور ليدلې دې، هغه انصاری په دې اوريدلو باندې د مجلس نه بهر راغلو او خپل کور ئې راوغورځولو او بالکل ئې په زمکه باندې برابر کړو، د دې نه پس يو ځل بيا رسول الله ﷺ په هغه ځائې باندې تير شو نو چه کله هغوی هغه کور او نه ليدو نو د هغې په باره کښې ئې تپوس اوفرمائيلو چه هغه کور چرته لاړو صحابه کرامو رضی اللہ عنہم هغوی ته قصه واوروله، نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿ أَمَا إِنَّ كُلَّ بِنَاءٍ وَبَالٌ عَلَى صَاحِبِهِ إِلاَّ مَا لاَ إِلاَّ مَا لاَ يَغْنِى مَا لاَ بُدَّ مِنْهُ ﴾ خبردار يقينا هم دا خبره ده چه هره آبادی او کور د هغې په مالک باندې وبال دې خو صرف هغه کور چه د هغې نه بغير ګزاره نه کيږی، الله اکبر! د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم د اخلاص ژوروالې اوګورئ، د صحابه کرامو رضی اللہ عنہم د ټولو نه اوچت وصف اخلاص وو۔

# بَابٌ فِي اتِّخَاذِ الْغُرَفِ

## بابـ: بالاخانه جوړول

[٥٢٣٨](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ مُطَرِّفٍ الرُّؤَاسِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ دُكَيْنِ بْنِ سَعِيدٍ الْمُزَنِيِّ، قَالَ: "أَتَيْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَأَلْنَاهُ الطَّعَامَ، فَقَالَ: يَا عُمَرُ، اذْهَبْ فَأَعْطِهِمْ، فَارْتَقَى بِنَا إِلَى عِلِّيَّةٍ، فَأَخَذَ الْمِفْتَاحَ مِنْ حُجْرَتِهِ فَفَتَحَ".

حضرت دکین بن سعید مزني رضی الله عنه بیان کوی چه مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او مونږ د هغه نه د غلې مطالبه اوکړه نو حضور ﷺ اوفرمائیل: "عمر! لاړ شه او دوی ته ورکړه" چنانچه هغه مونږ لره بوتلو او په یوه بالاخانه باندې اوختلو او د خپلې حجرې نه ئې چابي واخسته او هغې لره ئې کولاؤ کړه."

**قوله:** ﴿ عَنْ دُكَيْنِ بْنِ سَعِيدٍ الْمُزَنِيِّ قَالَ أَتَيْنَا النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَسَأَلْنَاهُ الطَّعَامَ فَقَالَ « يَا عُمَرُ اذْهَبْ فَأَعْطِهِمْ ».فَارْتَقَى بِنَا إِلَى عِلِّيَّةٍ فَأَخَذَ الْمِفْتَاحَ مِنْ حُجْرَتِهِ فَفَتَحَ ﴾

غرف جمع د غرفة ده یعنی په کوټه کښې دننه چه چهت اچولو سره یو مختصر شان حجره جوړول کوم ته چه زمونږ په عرف کښې ستهور وائی چه په هغې کښې د خوراک څکاک ذخیره او سامان محفوظ کولې شی، نو مصنف رحمه الله په دې باب سره د غرف د جوړولو ثبوت پیش کوی، مضمون د حدیث دا دې: دکین بن سعید فرمائی چه مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلو، د مسند احمد د روایت نه معلومه شوه چه د دې راتلونکو ښه کافی جماعت وو چه د هغوی تعداد څلور سوه څلویښت وو. دا ټول خلق مدینې طیبې ته د رسول الله ﷺ نه د غلې اخستلو دپاره راغلی وو، په ظاهر د بیت المال نه، خو بیت المال هغه وخت خالی وو په دې وجه رسول الله ﷺ سیدنا عمر رضی الله عنه ته اوفرمائیل چه ته خپل کور ته لاړ شه او په موسم کښې چه دې خپل کور کښې څۀ جمع کړې دی هغه دوی ته ورکړه، هم د دې مسند احمد په روایت کښې دی چه یا رسول الله ﷺ زما سره خو د کهجورو ذخیره د خپل کورو والو دپاره صرف د څلورو میاشتو په اندازه ده، رسول الله ﷺ اوفرمائیل لاړ شه ورکړه، هغوی عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ سمعا وطاعة، چه ستاسو حکم په سر سترګو، هغه صحابی فرمائی چه سیدنا عمر رضی الله عنه مونږ یوې کوټې (بالاخانې) ته بوتلو او چابی ئې د خپلې تهیلۍ نه راویستله او دروازه ئې پرانستله. هغوی فرمائی چه کله مونږ غرفې (بالاخانې) ته اورسیدلو نو هلته مو د کهجورو یو مختصر شان ډهیرې اولیدو، سیدنا عمر رضی الله عنه اوفرمائیل چه تاسو د دې نه د خپل ضرورت په اندازه واخلئ، هغوی فرمائی چه مونږ د هغې نه هر یو د خپل حاجت او ضرورت په اندازه واخستل، دا صحابی راوی حدیث فرمائی چه په دوی کښې د ټولو نه آخری اخستونکې زه اوم نو ما چه د هغې نه حصه واخستله نو داسې معلومیده چه مونږ د دې نه یو کهجوره هم نه ده اخستلې، دا ټول د رسول الله ﷺ د حکم (د منلو) برکت وو، چه عمر رضی الله عنه عرض کړې وو چه مونږ سره خو زمونږ

---

١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٥٤٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١٧٤/٤) (صحيح الإسناد)

د ضرورت نه زیاتی نشته خو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه بهر خال دوی ته ورکړه، نو دا واقعه هم د رسول الله ﷺ په معجزاتو کښې شوه د تکثیر طعام متعلق، هم په دې وجه دې لره د رسول الله ﷺ معجزات جمع کونکو مصنفینو کښې امام بیهقی رحمه الله په دلائل النبوة کښې ذکر کړې ده.

## بَابٌ فِي قَطْعِ السِّدْرِ

### بابـ ۱۵۸ ، ۱۵۹- دَ بیرۍ دَ وُنې کټ کول (څنګه دی...؟)

[۵۲۳۹](۱) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً صَوَّبَ اللَّهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ"، سُئِلَ أَبُو دَاوُدَ عَنْ مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ، فَقَالَ: هَذَا الْحَدِيثُ مُخْتَصَرٌ يَعْنِي: مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً فِي فَلَاةٍ يَسْتَظِلُّ بِهَا ابْنُ السَّبِيلِ وَالْبَهَائِمُ عَبَثًا وَظُلْمًا بِغَيْرِ حَقٍّ يَكُونُ لَهُ فِيهَا، صَوَّبَ اللَّهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ.

د حضرت عبد الله بن حبشی نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چا چه د بیرۍ اونه کټ کړه الله تعالیٰ به دَ هغه سر په جهنم کښې اُلټه زوړنده وی.'' دَ امام ابوداود رحمه الله نه ددې روایت دَ توجیه په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغوی اوفرمائیل دا حدیث مختصر دې ددې نه مراد دادې چه په ځنګل کښې دَ راتوکیدلې دَ بیرۍ اونه کومه چه دَ تلو راتلونکو مسافرو او دَ ځناورو دپاره دَ سورۍ کار ورکوی او څوک دې لره بې مقصده په ظلم سره کټ کړی، نو الله تعالیٰ به دهٔ لره په جهنم کښې اُلټه زوړنده وی.

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً صَوَّبَ اللَّهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ » ﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې د بیرۍ اونه پرې کړی نو الله پاک به هغه په جهنم کښې اولټه زوړند کړی.

مصنف رحمه الله دا حدیث په دوه طرقو سره ذکر کړې دې، ابن جريج عن عثمان او معمر عن عثمان،

[۵۲۴۰](۲) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ وَسَلَمَةُ يَعْنِي ابْنَ شَبِيبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي سُلَيْمَانَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ ثَقِيفٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، يَرْفَعُ الْحَدِيثَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

حضرت عثمان بن ابو سلیمان د ثقیف د یو کس نه، هغه د عروه بن زبیر نه، هغه د نبی کریم ﷺ نه مرفوع روایت کړې دې. او دَ مذکوره بالا روایت په مثل ئې بیان کړې دې.

په دواړو طریق کښې اختلاف دې چه د دې دواړو طریق د سندونو نه ظاهریږی، په اول طریق کښې راوی حدیث عبدالله بن حبشی صحابی رضی الله عنه دې او په دویم طریق کښې د دې راوی عروه بن الزبیر تابعی کوم چه دا مرفوعا روایت کوی، اول روایت مسند او دویم مرسل شو، او امام بیهقی رحمه الله دا حدیث په دریم طریق سره نقل کړې دې چه په هغې عن عروة عن عائشة موصولا دې او بیا هغوی اوفرمائیل : المرسل هو المحفوظ، د دې حدیث په مفهوم باندې اشکال دې چه د دې مطلب څهٔ دې، په بعض نسخو کښې دی چه د امام ابوداؤد نه د دې

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۲۴۲) (صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۲۴۲، ۱۹۰۴۴) (ضعيف)

حديث مطلب معلوم کړې شو نو هغوی اوفرمائيل چه د دې نه مراد د هغه بيرې اونه ده چه کومه په يو ځنګل کښې ولاړه وی چه د هغې د سوری نه مسافر او ځناور فائدې اخلی، او يو سړې هغه بغير د څه وجې نه ناحق پرې کړی، او يو قول په دې کښې دا دې چه د دې نه د حرم مکه بيره مراد ده، او وئيلې شوې دی چه د حرم مدينه بيره، امام بيهقی رحمه الله فرمائی چه د امام شافعی رحمه الله نه تپوس اوکړې شو د قطع سدر په باره کښې نو هغوی اوفرمائيل لا باس به. (۱)

[ ۵۲۴۱ ](۲) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، وَحُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: سَأَلْتُ هِشَامَ بْنَ عُرْوَةَ، عَنْ قَطْعِ السِّدْرِ وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى قَصْرِ عُرْوَةَ، فَقَالَ: "أَتَرَى هَذِهِ الْأَبْوَابَ وَالْمَصَارِيعَ؟ إِنَّمَا هِيَ مِنْ سِدْرِ عُرْوَةَ، كَانَ عُرْوَةُ يَقْطَعُهُ مِنْ أَرْضِهِ وَقَالَ: لَا بَأْسَ بِهِ، زَادَ حُمَيْدٌ، فَقَالَ: هِيَ يَا عِرَاقِيُّ جِئْتَنِي بِبِدْعَةٍ؟ قَالَ: قُلْتُ: إِنَّمَا الْبِدْعَةُ مِنْ قِبَلِكُمْ، سَمِعْتُ مَنْ يَقُولُ بِمَكَّةَ لَعَنَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَطَعَ السِّدْرَ"، ثُمَّ سَاقَ مَعْنَاهُ.

حسان بن ابراهيم فرمائی چه ما د هشام بن عروه نه ددې مسئلې په باره کښې پوښتنه اوکړه چه د بيرې کټ کول څنګه دی او هغه د خپل پلار محل ته ډډه لګولې ناست وو؟ نو هغه اووې آيا ته دا دروازې او چوکاټونه وينې دا د عروه د بيرو نه ساز شوې دی او عروه به دې لره د خپلې زمکې نه کټ کولې اووئيل ئې چه په دې کښې څه حرج نشته دې - حميد بن مسعده مزيد فرمائی چه هشام اووې قصه داده ! عراقی (حسان بن ابراهيم) خو ماته يو بدعت راوړې دې - هغه وائی چه ما جواب ورکړو چې بدعت خو ستاسو د طرف نه دې - ما په مکه کښې د علماؤ نه اوريدلې دی چه هغوی دا بيان کولو چه رسول الله ﷺ په داسې سړی باندې لعنت کړې دې چه هغه بيره کټ کوی -" بيا ئې د مذکوره بالا هم معنیٰ روايت کړې دې-

**قوله:** ﴿ سَأَلْتُ هِشَامَ بْنَ عُرْوَةَ عَنْ قَطْعِ السِّدْرِ وَهُوَ مُسْتَنِدٌ إِلَى قَصْرِ عُرْوَةَ فَقَالَ أَتَرَى هَذِهِ الْأَبْوَابَ وَالْمَصَارِيعَ إِنَّمَا هِيَ مِنْ سِدْرِ عُرْوَةَ كَانَ عُرْوَةُ يَقْطَعُهُ مِنْ أَرْضِهِ ﴾

يو سړی د هشام بن عروه نه معلومه کړه د قطع سدر په باره کښې چه د بيرې اونه پرې کولې شو که نه، هغه وخت هشام د خپل خپل عروه جوړ کړی کور ته تکيه وهلې ناست وو، نو هغوی د سائل په جواب کښې اووې چه دا ته چه د دې کور په دروازو او چوکاټونو باندې وينې دا هم د بيرې اونه ده عروه د خپلې زمکې نه بيرې ريبلې وې او د هغې نه ئې دا جوړ کړې وو، او دا ئې هم اووې چه په دې کښې هيڅ باک نشته.

﴿ فَقَالَ هِيَ يَا عِرَاقِيُّ جِئْتَنِي بِبِدْعَةٍ قَالَ قُلْتُ إِنَّمَا الْبِدْعَةُ مِنْ قِبَلِكُمْ ﴾ او بيا د دې نه پس هشام دا هم ووې چه بل څه اوتپوسه اې عراقی، د عراقی نه مراد هم هغه حسان دې کوم چه تپوس کوی څه بدعت يعنی نوې نوې تپوسونه کوې، په دې باندې سائل يعنی حسان اووې چه دا بدعت او د سنت خلاف کار خو هم ستاسو د طرف نه شوې دې (چه د بيرې اونې مو پرې کړې اود هغې نه مو دروازې جوړې کړې) ما په مکه کښې د يو سړی نه اوريدلې دی هغه وئيل چه رسول الله ﷺ لعنت فرمائيلې دې د بيرې په پرې کونکی باندې.

---

(۱) په دې کښې هيڅ باک نشته يعنی کومه بيره چه په خپل ملک کښې وی.
(۲): تفرد به أبو داود (حسن) (الصحيحة ۶۱۵)

په هي يا عراقي کښې په لفظ هي کښې دوه احتماله دی کسره هم او فتحه هم، په دې صورت کښې به يا خو دا ضمير قصه وی، او يا په سکون د ياء سره، په دې صورت کښې به اسم فعل وی په معنی د امر دپاره د استزاده (په څه څيز کښې د زياتی د طلب کولو دپاره وئيلې شی) مونږ ترجمه هم په دې لحاظ کړې ده.

## باب في إماطة الأذى عن الطريق

### باب: ۱۵۹، ۱۶۰- د لارې نه د موذی څيز د لرې کولو بيان

[۵۲۴۲]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَرْوَزِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي بُرَيْدَةَ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "فِي الْإِنْسَانِ ثَلَاثُ مِائَةٍ وَسِتُّونَ مَفْصِلًا، فَعَلَيْهِ أَنْ يَتَصَدَّقَ عَنْ كُلِّ مَفْصِلٍ مِنْهُ بِصَدَقَةٍ، قَالُوا: وَمَنْ يُطِيقُ ذَلِكَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ؟ قَالَ: "النُّخَاعَةُ فِي الْمَسْجِدِ تَدْفِنُهَا، وَالشَّيْءُ تُنَحِّيهِ عَنِ الطَّرِيقِ، فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فَرَكْعَتَا الضُّحَى تُجْزِئُكَ".

حضرت بريده رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی هغه فرمائيل: په انسان کښې درې سوه شپيته جوړونه دی - نو په دهٔ باندې واجب دی چه د خپل هر جوړ په بدله کښې صدقه کوی -" صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اوفرمائيل اې د الله رسوله! په مونږ کښې څوک ددې طاقت لرلې شی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل: "په جمات کښې بلغم (د مرئ خراشکې) دفن کول، په لار کښې پروت (موذی) څيز لرې کول، او که چرې دا درنه اونهٔ شی نو د څاښت دوه رکعته مونځ به ستاسو ددې (تمامو صدقو) نه کافی کيږی."

**قوله:** ﴿حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بُرَيْدَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي بُرَيْدَةَ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ «فِي الإِنْسَانِ ثَلاثُمِائَةٍ وَسِتُّونَ مَفْصِلاً فَعَلَيْهِ أَنْ يَتَصَدَّقَ عَنْ كُلِّ مَفْصِلٍ مِنْهُ بِصَدَقَةٍ» الخ﴾

عبدالله بن بريده فرمائی چه ما اوريدلې دی د خپل پلار بريدة نه بريدة په ترکيب کښې بدل واقع شوې دې د ﴿ ابی ﴾ نه لهذا په ابی کښې ياء د متکلم ده هغوی به فرمائيل چه ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه د هر انسان په بدن کښې درې سوه شپيتهٔ جوړونه دی لهذا د هغه په ذمه ده دا خبره چه د هر جوړ د طرف نه يو صدقه ورکړی يعنی په طور د شکر د هغوی د جوړونو په سلامتئ او عافيت باندې، په دې باندې صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه روزانه په درې سوه شپيتو صدقو باندې څوک قادر دی اې د الله نبی ﷺ! هغوی اوفرمائيل په مسجد کښې تهوکلې لارې لرې کول، او د لارې نه تکليف ورکونکې څيز لرې کول، يعنی داسې نيک کارونه ټول په صدقه کښې شمار دی، او وراندې دا دی چه کله په دې امورو کښې د يو کار موقع رانشی نو د صلاة الضحی دوه رکعتونه ستا دپاره کافی دی، يعنی د درې سوه او شپيتو صدقاتو قائم مقام دې ځکه چه د دوه رکعتونو په ادا کولو کښې د بدن ټول مفاصل په حرکت کښې راځی کوم چه حرکت فی العبادة دې لهذا د ټولو اندامونو د طرف نه شکريه ادا شوه، الله اکبر د دوه رکعته مانځه څومره لوئې أجر عظيم دې چه هغه د درې سوه شپيتو نيکو قائم مقام شو. د باب په دويم حديث کښې دی

(): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۹۶۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۵۴/۵، ۳۵۹) (صحيح)

[۵۲۴۳]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ عَبَّادٍ وَهَذَا لَفْظُهُ وَهُوَ أَتَمُّ، عَنْ وَاصِلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُقَيْلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنَ ابْنِ آدَمَ صَدَقَةٌ تَسْلِيمُهُ عَلَى مَنْ لَقِيَ صَدَقَةٌ، وَأَمْرُهُ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ، وَنَهْيُهُ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ، وَإِمَاطَتُهُ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ صَدَقَةٌ، وَبُضْعَتُهُ أَهْلَهُ صَدَقَةٌ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، يَأْتِي شَهْوَةً وَتَكُونُ لَهُ صَدَقَةٌ، قَالَ: أَرَأَيْتَ لَوْ وَضَعَهَا فِي غَيْرِ حَقِّهَا أَكَانَ يَأْثَمُ؟، قَالَ: وَيُجْزِءُ مِنْ ذَلِكَ كُلِّهِ رَكْعَتَانِ مِنَ الضُّحَى"، قَالَ أَبُو دَاوُدَ: لَمْ يَذْكُرْ حَمَّادٌ الْأَمْرَ وَالنَّهْيَ.

د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: سبا کيدو سره د ابن ادم په هر هر جوړ باندې صدقه کول واجبيږي - ددهٔ سلام کول په هغه چا باندې چه ددهٔ سره ملاويږي صدقه ده، چاته دَ نيکئ خبره کول صدقه ده دَ بدئ نه منع کول صدقه ده دَ لارې نه موذی (تکليف ورکوونکې) څيز لرې کول صدقه ده، دَ خپلې ښځې سره صحبت کول صدقه ده - صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم اوفرمائيل اې دَ الله رسوله! دې خو خپل شهوت پورا کوی او دا ددهٔ دَ پاره صدقه ګرځی دا څنګه؟ حضور ﷺ اوفرمائيل آيا تاسو وينئ که چرې دې دا کار په حرامو کښې اوکړی نو آيا دې به ګنهګار نهٔ وی؟ (ددې بالمقابل دَ حلال سره دا کار کول او خپل شهوت پورا کول په حلال طريقې سره ثواب او صدقه ده -) حضور ﷺ اوفرمائيل چه په دې تمامو کارونو کښې ددهٔ پاره دَ څاښت دوه رکعته کفايت کوی" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه حماد دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر ذکر نهٔ دې کړې -

**قوله:** ﴿ يُصْبِحُ عَلَى كُلِّ سُلَامَى مِنِ ابْنِ آدَمَ صَدَقَةٌ الخ ﴾ دا حديث په کتاب الصلوة باب صلوة الضحی کښې تير شوې دې سره د تشريح.

[۵۲۴۴]() حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ وَاصِلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُقَيْلٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ، عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ الدِّيلِيِّ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، وَذَكَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي وَسَطِهِ.

حضرت ابو اسود ديلی د حضرت ابو ذر رضی الله عنه نه دا روايت نقل کړې دې، او فرمائی چه نبی کريم ﷺ دا حديث دَ خپلو خبرو کولو په دوران کښې بيان فرمائيلې دې -"

﴿ عَنْ يَحْيَى بْنِ يَعْمَرَ عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ الدِّيلِيِّ عَنْ أَبِي ذَرٍّ بِهَذَا الْحَدِيثِ ﴾ دا د اول حديث دويم طريق دې په اول سند کښې د واصل نه روايت کونکې عباد وو او دلته خالد دې، خو د بذل المجهود په نسخه کښې او د ابوداؤد په نسخه مجتبائيه کښې په دواړو کښې په ځائې د خالد عن واصل، خالد بن واصل دې، حال دا چه خالد بن واصل د تقريب په راويانو ځوک هم نشته لهذا د دې لفظ تصحيح دې اوکړې شی، د دويم طريق په آخر کښې دی: وذکر النبی ﷺ فی وسطه، په بذل المجهود کښې ليکلې دی چه د دې کلام په معنی کښې دوه احتماله دی يو دا چه ﴿ النبی ﴾ منصوب وی، د ﴿ ذکر ﴾ د مفعول کيدو په وجه باندې يعنی راوی رسول الله ﷺ لره په مينځ د حديث کښې ذکر کړو نه په اول د حديث کښې، دويم دا چه ﴿ النبی ﴾ مرفوع وی د ذکر د فاعل کيدو په وجه باندې، په دې

(): صحيح مسلم/المسافرين ۱۳ (۷۲۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۶۷/۵، ۱۷۸) (صحيح)
(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۲۸) (صحيح)

صورت کښې په مطلب دا وی چه رسول اللهﷺ دا پورته حدیث د خپل کلام په مینځ کښې ذکر اوفرمائیلو، یعنی د مخکښې نه بل څه خبره شروع وه د هغې په مینځ کښې هغوی دا حدیث بیان اوفرمائیلو.او دریم یو احتمال حضرت ناظم صاحب د خپل کتاب په حاشیه باندې لیکلې دی چه د حدیث په مینځ کښې چه کوم لفظ ﴿ یا رسول الله ﴾ راغلې دې، ﴿ ومن یطیق ذلک یا رسول الله ﴾ نو د دې دویم سند راوی یعنی خالد په ځائې د یا رسول الله یا نبی الله اوئیلو. او د باب د آخری حدیث مضمون دا دې چه د هغې راوی ابوهریره رضی الله عنه دې

[۵۲۴۵](¹) حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ حَمَّادٍ، أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "نَزَعَ رَجُلٌ لَمْ يَعْمَلْ خَيْرًا قَطُّ غُصْنَ شَوْكٍ عَنِ الطَّرِيقِ، إِمَّا كَانَ فِي شَجَرَةٍ فَقَطَعَهُ وَأَلْقَاهُ، وَإِمَّا كَانَ مَوْضُوعًا فَأَمَاطَهُ، فَشَكَرَ اللَّهُ لَهُ بِهَا، فَأَدْخَلَهُ الْجَنَّةَ".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی،چه یو سړی چه هغه کله هم د نیکئ کار نهٔ وو کړې هغه د لارې نه د ازغو یوه څانګه لرې کړه.-دا (څانګه) یا خو په اونه باندې وه او دهٔ هغې لره کټ کړه یا په لاره کښې پرته وه او دهٔ یو طرف ته کړه نو الله تعالیٰ ددهٔ دا عمل قبول کړو او ددې په وجه ئې هغه لره جنت ته داخل کړو.-"

چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه یو سړی کله هم د خیر کار نه وو کړې (الظاهر من الامم السابقة) هغه د لارې نه ازغنه اونه لرې کړه، یا خو هغه په هغه څانګه کښې وه چه د هغې نه ئې دغه څانګه پرې کړه او پرې کولو نه پس ئې اوغورځوله، یا په لاره کښې پرته وه هغه ئې د هغه ځائې نه هغه لرې کړه، نو د دې په بدل کښې الله پاک هغه په جنت کښې داخل کړو.

## بَابٌ فِي إِطْفَاءِ النَّارِ بِاللَّيْلِ

### باب ۱۶۰، ۱۶۱-دَ شپې اورمړ کول پکاردی (او بیا اودهٔ کیدل)

[۵۲۴۶](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ رِوَايَةً، وَقَالَ مَرَّةً: يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تَنَامُونَ".

حضرت سالم دَ خپل پلار (حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما) نه نقل کوی او یو ځل ئې دَ نبی کریم ﷺ نه مرفوع هم ذکر کړې دې چه دَ اودهٔ کیدو په وخت کښې په کورونو کښې اور مهٔ پریږدئ.-" [یعنی اور مړ کوئ او بیا اودهٔ کیږئ]

**قوله:** ﴿ لَا تَتْرُكُوا النَّارَ فِي بُيُوتِكُمْ حِينَ تَنَامُونَ ﴾ رسول اللهﷺ فرمائی چه د شپې د اودهٔ کیدو په وخت کښې اور بغیر د مړ کولو نه مه اودهٔ کیږئ.

---

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۲۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الأذان ۳۲ (۶۵۲)، المظالم ۲۸ (۲۴۷۲)، صحيح مسلم/البر والصلة ۳۶ (۱۹۱۴)، الإمارة ۵۱ (۱۹۱۴)، سنن الترمذي/البر والصلة ۳۸ (۱۹۵۸)، سنن ابن ماجه/الأدب ۷ (۳۶۸۲)، موطا امام مالك/صلاة الجماعة ۲ (۶)، مسند احمد (۳۴۱/۲) (حسن صحيح)

²): صحيح البخاري/الاستئذان ۴۹ (۶۲۹۳)، صحيح مسلم/الأشربة ۱۲ (۲۰۱۵)، سنن الترمذي/الأطعمة ۱۵ (۱۸۱۳)، سنن ابن ماجه/الأدب ۴۶ (۳۷۶۹)، (تحفة الأشراف: ۶۸۱۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۷/۲، ۴۴) (صحيح)

[٥٢٤٧]( ) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ التَّمَّارُ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ طَلْحَةَ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطٌ، عَنْ سِمَاكٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "جَاءَتْ فَأْرَةٌ فَأَخَذَتْ تَجُرُّ الْفَتِيلَةَ، فَجَاءَتْ بِهَا فَأَلْقَتْهَا بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْخُمْرَةِ الَّتِي كَانَ قَاعِدًا عَلَيْهَا، فَأَحْرَقَتْ مِنْهَا مِثْلَ مَوْضِعِ الدِّرْهَمِ، فَقَالَ: إِذَا نِمْتُمْ، فَأَطْفِئُوا سُرُجَكُمْ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَدُلُّ مِثْلَ هَذِهِ عَلَى هَذَا فَتُحْرِقَكُمْ".

د حضرت ابن عباس ﷺ نه رایت دي چه یو ځل یوي مږې د ډیوې یوه باتئ راوړه او د رسول الله ﷺ مخې ته ئې په هغه چټائئ باندې اوغرځوله په کومې باندې چه رسول الله ﷺ ناست وو او د یو درهم برابر ځائې اوسوزیدو، نو حضور ﷺ اوفرمائیل کله چه تاسو اوده کیږئ نو خپله ډیوه مړه کوئ - بې شکه شیطان داسې مخلوق ته داسې قسم کار ښائی او ستاسو په کورونو کښې اور لګوی-"

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَتْ فَأْرَةٌ فَأَخَذَتْ تَجُرُّ الْفَتِيلَةَ فَجَاءَتْ بِهَا فَأَلْقَتْهَا الخ ﴾

د سیدنا ابن عباس ﷺ نه روایت دي چه د یو ځل واقعه ده چه یوي مږې د بلې ډیوې باتئ یوړه او چرته چه رسول الله ﷺ تشریف فرما وو په هغه بوریه باندې ئې اوغورځوله په کومه بوریه باندې چه رسول الله ﷺ ناست وو چه د هغې نه د هغه بوریه څه حصه په اندازه د درهم اوسوزید، نو په دغه وخت کښې رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه کله تاسو اوده کیږئ نو خپلې ډیوې مړې کوئ ځکه شیطان شریر دې مږې ته دا خبره ښائی یعنی په دې باندې ئې تیاروی، بیا هغه ستاسو ځیزونه اوسیزی.

## بَابٌ فِي قَتْلِ الْحَيَّاتِ

### باب ١٦١، ١٦٢- د مارد وژلو بیان

[٥٢٤٨]( ) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا سَالَمْنَاهُنَّ مُنْذُ حَارَبْنَاهُنَّ، وَمَنْ تَرَكَ شَيْئًا مِنْهُنَّ خِيفَةً، فَلَيْسَ مِنَّا".

د حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل د کله نه چه زمونږ جنګ د (مارانو) سره شروع شوې دې مونږ ددې سره صلح نۀ ده کړې او چا چه د یرې د وجې نه ددې نه څه ځیز پریخودو هغه زمونږ نه، نۀ دې-"

﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « مَا سَالَمْنَاهُنَّ مُنْذُ حَارَبْنَاهُنَّ وَمَنْ تَرَكَ شَيْئًا مِنْهُنَّ خِيفَةً فَلَيْسَ مِنَّا » او د دې نه په روستو روایت کښې دی : ﴿ اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهُنَّ فَمَنْ خَافَ ثَأْرَهُنَّ فَلَيْسَ مِنِّى ﴾

[٥٢٤٩]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيدِ بْنُ بَيَانٍ السُّكَّرِيُّ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ يُوسُفَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهُنَّ فَمَنْ خَافَ ثَأْرَهُنَّ فَلَيْسَ مِنِّي".

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١١٤) (صحيح)
[2]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٤١٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٢٤٧، ٤٣٢، ٥٢٠) (حسن صحيح)
[3]: سنن النسائي/الجهاد ٤٨ (٣١٩٥)، (تحفة الأشراف: ٩٣٥٧) (صحيح)

د حضرت ابن مسعود رضی اللہ عنہ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل هر قسم مار لره وژنئ څوک چه ددي په بدله کښي اوبيريدو هغه زما نه، نهٔ دي.''

په دي احاديثو کښي دی چه رسول اللهﷺ د مار په ليدو باندي د هغي د وژلو حکم اوفرمائيلو، او رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه مونږ د دي مارانو سره کله صلح او دوستي کړي وه، زمونږ خو د دوی سره د هميشه نه دشمني او جنګ دي، يعني طبعي طور باندي څکه چه مار ضرري ځناور دي د انسان دشمن دي، او وړاندي رسول اللهﷺ اوفرمائيل چه کوم سړي د دي د ثار يعني د بدلي د ويري نه هغه پريږدی نو هغه زمونږ نه نهٔ دي، اهل جاهليت به مار نه وژلو او د هغوی عقيده وه چه څنګه د هر ځناور يو جوړه وی هم دغه شان د هغه هم جوړه وی نو که يو سړي مار اوويني او هغه مړ کړي که هغه نر وی او که ښځه، نو د دي مار چه کومه جوړه وی هغه په بل وخت کښي د دي قتل کونکي نه بدل اخلي يعني هغه چيچي او هلاکوی، نو که يو سړي د مار په ليدو باندي هغه نه وژني په څه وجه باندي مثلا د وسلي د نه کيدو د وجي نه يا د کمزورئ د وجي نه يا د همت د نه کيدو د وجي نه نو په دي کښي هيڅ باک نشته، او که د دي عقيدي او خيال په بنياد د هغي د وژلو نه ځان ساتي نو دا ناجائز او معصيت دي، خو د عام مارانو دحکم نه عوامر مستثني دی دا استثناء وړاندي په روايت کښي راځي.

[۵۲۵۰]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ مُسْلِمٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ يَرْفَعُ الْحَدِيثَ فِيمَا أُرَى إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَرَكَ الْحَيَّاتِ مَخَافَةَ طَلَبِهِنَّ فَلَيْسَ مِنَّا، مَا سَالَمْنَاهُنَّ مُنْذُ حَارَبْنَاهُنَّ".

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چا چه مار لره د هغه د بدلي د يرې نه پريخودو هغه زمونږ نه، نهٔ دي د کله نه چه ددې سره زمونږ جنګ شروع شوي دي مونږ د دوی سره صلح نهٔ ده کړي.''

[۵۲۵۱]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ مُعَاوِيَةَ، عَنْ مُوسَى الطَّحَّانِ، قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَابِطٍ، عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، أَنَّهُ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّا نُرِيدُ أَنْ نَكْنُسَ زَمْزَمَ وَإِنَّ فِيهَا مِنْ هَذِهِ الْجِنَّانِ، يَعْنِي الْحَيَّاتِ الصِّغَارَ، فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِهِنَّ".

سيدنا عباس بن عبد المطلب رضی اللہ عنہ رسول الله ﷺ ته اوفرمائيل چه مونږ د زم زم چيني لره پاکول غواړو ليکن په دي کښي واړهٔ واړهٔ ماران دی - نو نبی کريم ﷺ د هغي د وژلو حکم ورکړو.''

**قوله:**﴿ عَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ أَنَّهُ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- إِنَّا نُرِيدُ أَنْ نَكْنِسَ زَمْزَمَ وَإِنَّ فِيهَا مِنْ هَذِهِ الْجِنَّانِ يَعْنِى الْحَيَّاتِ الصِّغَارَ فَأَمَرَ النَّبِىُّ -صلى الله عليه وسلم- بِقَتْلِهِنَّ ﴾

د رسول اللهﷺ محترم ترهٔ سيدنا عباس رضی اللہ عنہ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه زمونږ اراده د دي زمزم د کوهي د صفا کولو ده، په کوهي کښي چه کوم ګند او خزله وغيره پريوځي نو د

[1]: تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ٦٢٢١)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٢٣٠) (صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥١٣٣) (صحيح)

هغې صفا کولو ته خبره اورسی، او هغوی دا هم اوفرمائیل چه په دې کوهی کښې واړهٔ واړهٔ ماران هم پیدا شوی دی یعنی د مارانو بچی، نو رسول اللهﷺ د هغې د وژلو اجازت اوفرمائیلو.

په اواخر د موطاء کښې یو باب دې باب ما جاء فی قتل الحیات ...په اوجز کښې د دې لاندې د دې متعلق بحثونه ذکر شوې دی، د قتل حیات په باره کښې په اوجز کښې په حواله د محلی د هدایه نه دا نقل کړی دی: یجوز قتل الحیاة مطلقا، قال ابن الهمام احْتِرَازٌ عَمَّا قِيلَ لَا تُقْتَلُ الْحَيَّةُ الْبَيْضَاءُ لِأَنَّهَا مِنْ الْجِنِّ وَقَالَ الطَّحَاوِيُّ : لَا بَأْسَ بِقَتْلِ الْكُلِّ لِأَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَاهَدَ الْجِنَّ أَنْ لَا يَدْخُلُوا بُيُوتَ أُمَّتِهِ وَلَا يُظْهِرُوا أَنْفُسَهُمْ،فَإِذَا خَالَفُوا فَقَدْ نَقَضُوا عَهْدَهُمْ فَلَا حُرْمَةَ لَهُمْ،وَقَدْ حَصَلَ فِي عَهْدِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيمَنْ بَعْدَهُ الضَّرَرُ بِقَتْلِ بَعْضِ الْحَيَّاتِ مِنْ الْجِنِّ،فَالْحَقُّ أَنَّ الْحِلَّ ثَابِتٌ،وَمَعَ ذَلِكَ فَالْأَوْلَى الْإِمْسَاكُ عَمَّا فِيهِ عَلَامَةُ الْجِنِّ لَا لِلْحُرْمَةِ بَلْ لِدَفْعِ الضَّرَرِ الْمُتَوَهَّمِ مِنْ جِهَتِهِمْ اهـ

یعنی د احنافو په نزد د ټولو مارانو وژل جائز دی، خو یو قول د حیة بیضاء په باره کښې دا دې چه هغه دې قتل نه کړې شی چه هغه د جناتو د قبیلې نه دې، امام طحاوی رحمه الله هم داسې فرمائی چه د ټولو قتل کول جائز خو دی یعنی اګر چه هغه حیات بیوت وی کوم ته چه عوامر وائی، د دې نه پس هغوی فرمائی چه د رسول اللهﷺ په زمانه کښې هم او د هغوی نه روستو هم بعض ماران کوم چه د جناتو د قبیلې نه وو د هغوی په قتل کولو باندې ضرر رسیدلې دې پس حق دا ده چه د ټولو قتل کول جائز دی خو د ضرر نه د بچ کیدو دپاره په کومو مارانو کښې چه د جن علامات موندلې شی د هغوی نه منع کیدل اولی دی، علامه عینی رحمه الله فرمائی چه د سلفو په دې خبره کښې اختلاف وو بعض مطلقا د ټولو د قتل د جواز قائل وو بغیر د څهٔ استثنی نه (ثم ذکر اسماء القائلین) او بعض علماء وائی چه عوامر البیوت یعنی په کورونو کښې اوسیدونکی ماران د قتل د حکم نه مستثنی دی، هغوی به بغیر د تخریج او اعلان نه نه شی قتل کولې، امام مالک رحمه الله هم دغه شان فرمائی چه عوامر که د مدینې طیبې وی او که د بل ښهر هغه بغیر د انذار او تخریج نه قتل کول جائز نه دی، او په صحراګانو کښې د انذار ضرورت نشته، او ابن نافع مالکی رحمه الله فرمائی چه صرف د مدینې طیبې د عوامرو انذار ضروری دې (اوجز٦/٣٢٩)قال الحافظ ظاهر الحدیث (نهی عن قتل الحیاة التی فی البیوت) التعمیم وعن مالک تخصیصه بیوت اهل المدینة اهـ قال الشیخ فی الاوجز : وتقدم البسط فی ذلک فی اول الباب،

او په اول باب کښې دا تیر شوې دی چه د ابن نافع په نزد دا بیوت د مدینې سره خاص دې، خو امام مالک رحمه الله دا په ټولو بیوتو باندې محمول کړې دې خو هغه فرمائی وفی بیوت المدینة اوجب، یعنی انذار د مطلق بیوت مدینه خو ضروری دې او د مدینې طیبې په بیوتو کښې زیات ضروری دې، خو په صحراګانو کښې د انذار حاجت نشته. قال الباجی قال مالک لا تنذر فی الصحاری ولا تنذر الا فی البیوت (من الاوجز٦/٣٣١)

[۵۲۵۲]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ، وَذَا الطُّفْيَتَيْنِ، وَالْأَبْتَرَ، فَإِنَّهُمَا يَلْتَمِسَانِ الْبَصَرَ، وَيُسْقِطَانِ الْحَبَلَ"، قَالَ: وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَقْتُلُ كُلَّ حَيَّةٍ وَجَدَهَا، فَأَبْصَرَهُ أَبُو لُبَابَةَ أَوْ زَيْدُ بْنُ الْخَطَّابِ وَهُوَ يُطَارِدُ حَيَّةً، فَقَالَ: إِنَّهُ قَدْ نُهِيَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوتِ.

حضرت سالم د خپل پلار (حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه) نه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: هر قسم ماران وژنئ - هغه هم د کوم په پُشت (ملا) باندې چه دوه تورې (یا سپینې) لکیرې وی، او د کوم چه لکئ نه وی - بې شکه دا نظر زائله کوی (د چا سره چه ددې نظر ملاؤ شی) او دا د حمل د غورځیدو باعث جوړیږی -" چنانچه حضرت عبد الله رضی الله عنه چه به کوم مار هم بیا موندو نو هغې لره به ئې وژلو - چنانچه حضرت ابو لبابه یا زید بن خطاب رضی الله عنه هغهٔ لره اولیدو چه مار لره ئې تلاش کولو، نو هغه بیان اوکړو چه دا کوم په کورونو کښې اوسیدونکی ماران دی نو ددې د قتل نه منع کړې شوې ده -"

**قوله:** ﴿عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ وَذَا الطُّفْيَتَيْنِ وَالأَبْتَرَ فَإِنَّهُمَا يَلْتَمِسَانِ الْبَصَرَ وَيُسْقِطَانِ الْحَبَلَ »﴾

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ټول ماران چه وینئ نو هغه وژنئ، او خاص طور ذو الطفیتین او ابتران دواړو لره، ځکه چه دا دواړه د انسان سترګې طلب کوی یعنی هغه اوباسی، یعنی الله پاک په دوی کښې داسې خاصیت کیخودلې دې چه که د دې دواړو نظر د انسان په سترګو باندې پریوځی نو د هغې نظر ختمیږی، او دویمه معنی ئې د دې دا لیکلې ده چه دا دواړه طلب کوی د انسان سترګو لره یعنی په هغه باندې حمله کوی او چیچی ئې، او په حاشیه د بذل کښې چه علامه دمیری دا دواړه معنې لیکلې دی او اول معنی ته ئې ترجیح ورکړې ده، او وړاندې دی، په حدیث کښې دی چه دا دواړه حمل هم ساقطوی، یعنی که دا ماران یو حامله زنانه اوینی نو د هغې حمل به ساقط شی یعنی د دې دواړو د زهرو د شدت د وجې نه، ذو الطفیتین د یو ډیر خبیث قسم مار نوم دې دې ته ذوالطفیتین په دې وجه وائی چه د هغه په ملا باندې دوه سپین قسم کرښې وی، طفیه خو په اصل کښې د کهجورې په شان د یوې اونې نوم دې (مقل) د هغې پاڼې ته وائی د هغه مار په شا باندې هم چونکه د مقل د پاڼو په شان نخښه وی په دې وجه هغې ته ذوالطفیتین وائی، او د ابتر معنی خو د بې لکئ ده خو دلته ترې نه یو خاص قسم مار مراد دې چه لکئ خو ئې نه وی پرې کړې شوی خو لکئ ئې ډیره وړه وی داسې لکه چه پرې کړې شوې وی، په دې حدیث کښې ﴿ اقتلوا الحیاة ﴾ مطلقا راغلې دې خو په وړاندې روایت کښې د ذوات البیوت استثناء راځی چه د هغې قتل بعد الانذار کیدل پکار دی، او د انذار طریقه هم ذکر ده پس په په روایت کښې دی: ﴿إِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهُنَّ شَيْئًا فِي مَسَاكِنِكُمْ فَقُولُوا أَنْشُدُكُنَّ الْعَهْدَ الَّذِي أَخَذَ عَلَيْكُنَّ نُوحٌ عليه السلام أَنْشُدُكُنَّ الْعَهْدَ الَّذِي أَخَذَ عَلَيْكُنَّ سُلَيْمَانُ عليه السلام أَنْ لاَ تُؤْذُونَا فَإِنْ عُدْنَ فَاقْتُلُوهُنَّ﴾ چه د هغې ترجمه دا ده چه مونږ تاسو ته هغه معاهده دریادوو او د هغې په

(): صحیح البخاري/بدء الخلق ١٤ (٣٢٩٧)، صحیح مسلم/السلام ٣٧ (٢٢٣٣)، (تحفة الأشراف: ١٢١٤٧)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطب ٤٢ (٣٥٣٥)، موطا امام مالك/الاستئذان ١٢ (٣١)، مسند احمد (٢/٤٣٠، ٤٥٢، ٤٥٣) (صحیح)

حواله درنه سوال کوو کومه چه تاسو نه سیدنا نوح علیه السلام اخستلې وه او هم دغه شان هغه عهد کوم چه تاسو نه سلیمان علیه السلام اخستلې وو، نوح علیه السلام د طوفان د راتلو نه مخکښې د الله پاک په حکم سره په خپله کشتئ کښې د هر یو ځناور یو جوړه هم اخستلې وه نو کیدې شی چه په هغه وخت کښې هغوی د دې زهریله ځناورو نه دا عهد اخستلې وی چه بنو آدم ته تکلیف مه رسوئ او د سلیمان علیه السلام هم چونکه په ځناورو حکومت وو نو هغوی به هم ترې نه عهد اخستلې وی لکه چه د دې حدیث تقاضه ده، د دې انذار نه پس په حدیث کښ دی ﴿فليؤذنوا ثلاثا﴾ اوس دا چه تر د درې ورځو پورې اعلان مراد دې یا که صرف درې کرته اعلان مراد دې اګر که په یوه ورځ کښې وی؟ په دې کښې د علماء کرامو دواړه اقوال دی، پس علامه دمیری فرمائی : امره علیه السلام بقتل الحياة امر ندب وحيات البيوت لا تقتل حتى تنذر ثلاثة ايام او ثلاث مرات والجمهور على الاول بان يقول انشدكن بالعهد الذى الخ.

او د دې نه پس د ابولبابه رضی الله عنه په روایت کښې دی ﴿فَإِنَّهُمَا يَخْطِفَانِ الْبَصَرَ وَيَطْرَحَانِ مَا فِي بُطُونِ النِّسَاءِ﴾ په ذوات البيوت کښې د انذار د قید د وجې نه وړاندې په یو روایت کښې راځی: إِنَّ نَفَرًا مِنَ الْجِنِّ أَسْلَمُوا بِالْمَدِينَةِ فَإِذَا رَأَيْتُمْ أَحَدًا مِنْهُمْ فَحَذِّرُوهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ الخ چه بعض جنات په مدینه منوره کښې داسې وو چا چه اسلام قبول کړې وو او چونکه جنات په مختلفو شکلونو کښې متشکل کیږی په دې وجه چه کوم ماران ذوات البيوت وی په هغوی کښې دا احتمال دې چه دا د هغه جناتو نه وی چا چه اسلام قبول کړې دې او رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائیل ﴿فَإِنْ بَدَا لَهُ بَعْدُ فَلْيَقْتُلْهُ فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ﴾ یعنی که د درې کرته انذار نه پس هم هغه لاړ نه شی بلکه ښکاره شی نو پوهه شه چه هغه مسلمان پیرې نه دې، یا خو پیرې نه دې بلکه مار دې، او که جن وی نو بیا غیر مسلم او کافر دې لهذا په قتل کښې ئې هیڅ ګناه نشته، او د ترمذی په یو حدیث مرفوع کښې په روایت د ابوسعید خدری رضی الله عنه داسې دی چه ﴿ان لبيوتكم عمارا فحرجوا عليهن ثلاثا الحديث﴾.

**قوله:** ﴿وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَقْتُلُ كُلَّ حَيَّةٍ وَجَدَهَا فَأَبْصَرَهُ أَبُو لُبَابَةَ و زَيْدُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ نُهِيَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوتِ﴾ یعنی عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به هر مار چه کوم به ئې لیدلو وژلو به ئې یو ځل هغوی په یو مار پسې وو د وژلو دپاره نو په دې دواړو کښې یو هغوی اولیدل او وې وئیل چه د ذوات البيوت د وژلو نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده، د دې نه پس په روایت کښې راځی چه ابن عمر رضی الله عنهما د دې حدیث اوریدلو نه پس د مار وژل پریخودلې وو او د ذوات البيوت قتل ئې ترک کړې وو بلکه هغه به ئې بهر ویستلو.

[٥٢٥٣]([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ أَبِي لُبَابَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنْ قَتْلِ الْجِنَّانِ الَّتِي تَكُونُ فِي الْبُيُوتِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ ذَا الطُّفْيَتَيْنِ وَالْأَبْتَرَ، فَإِنَّهُمَا يَخْطِفَانِ الْبَصَرَ وَيَطْرَحَانِ مَا فِي بُطُونِ النِّسَاءِ".

د حضرت ابولبابه رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د هغه مارانو کوم چه په کورونو

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٢١٤٧) (صحيح)

کښې اوسيږي د وژلو نه ئې منع فرمائيلې ده - سوا د هغې نه چه د هغه په پښت باندې (توري يا سپينې) دوه پټې وي او د کوم مار چه لکئ نه وي، بې شکه دا د نظر د زائله کولو او د ښځو د حمل د غورځولو باعث جوړيږي -

[٥٢٥٤](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ وَجَدَ بَعْدَ ذَلِكَ يَعْنِي بَعْدَ مَا حَدَّثَهُ أَبُو لُبَابَةَ، حَيَّةً فِي دَارِهِ، فَأَمَرَ بِهَا، فَأُخْرِجَتْ يَعْنِي إِلَى الْبَقِيعِ.

حضرت نافع روايت کوي چه د حضرت ابو لبابه رضی الله عنه د مذکوره حديث د معلوميدو نه پس حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما اوليدې شو چه هغه په خپل کور کښې مار اوليدو (نو هغې لره ئې اونۀ وژلو بلکې) د هغې متعلق ئې حکم اوکړو او هغۀ لره د بقيع طرف ته اويستلې شو -

[٥٢٥٥](٢) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَأَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ، عَنْ نَافِعٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ نَافِعٌ: ثُمَّ رَأَيْتُهَا بَعْدُ فِي بَيْتِهِ.

حضرت اسامه، د حضرت نافع نه د مذکوره حديث په سلسله کښې روايت کوي ... نافع اوفرمائيل چه ددې واقعې د اوريدو نه پس ما په کور کښې مار اوليدو ... (د وژلو په ځائې باندې ئې بقيع طرف ته اويستو -)

[٥٢٥٦](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي يَحْيَى، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي أَنَّهُ انْطَلَقَ هُوَ وَصَاحِبٌ لَهُ إِلَى أَبِي سَعِيدٍ يَعُودَانِهِ، فَخَرَجْنَا مِنْ عِنْدِهِ، فَلَقِيَنَا صَاحِبٌ لَنَا وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ يَدْخُلَ عَلَيْهِ، فَأَقْبَلْنَا نَحْنُ، فَجَلَسْنَا فِي الْمَسْجِدِ، فَجَاءَ، فَأَخْبَرَنَا أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْهَوَامَّ مِنَ الْجِنِّ، فَمَنْ رَأَى فِي بَيْتِهِ شَيْئًا، فَلْيُحَرِّجْ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَإِنْ عَادَ فَلْيَقْتُلْهُ، فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ".

حضرت محمد بن يحيی روايت کوي چه ددوی پلار بيان کړې دي چه هغه د يو ملګري ابو سعيد رضی الله عنه د عيادت دپاره تلې وو بيا مونږه د هغه د خوا نه راوتلو نو مونږ سره يو ملګرې ملاؤ شو چه هغه حضرت ابو سعيد رضی الله عنه ته ورتللو - چنانچه مونږ راغلو او په جمات کښې کيناستو او زمونږ هغه ملګرې هم راغې - هغه اووې چه ما د حضرت ابو سعيد رضی الله عنه نه اوريدلې دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائيلې دي : بې شکه بعضې ماران پيرې وي -" چنانچه په تاسو کښې چه څوک په کور کښې څه اووينی نو هغه لره پکار دي چه هغه ته درې ځله خبرداري ورکړي که چرې هغه بيا په نظر راغې نو مړ دې کړي، بې شکه هغه شيطان دې -"

﴿ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي يَحْيَى قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي الخ ﴾ محمد بن يحيی فرمائی چه ماته زما پلار ابويحيی بيان اوکړو چه يو ځل هغه او د هغه يو ملګرې د ابوسعيد خدری رضی الله عنه تپوس له لاړل چه کله هغوی د هغه ځائې نه راواپس کيدل نو د يو سړي سره ئې ملاقات اوشو (چه د هغه نوم ذکر نه دې) کوم چه ابوسعيد خدری رضی الله عنه ته ورتلو د عيادت دپاره، ابويحيی فرمائی چه مونږ خو راغلو او په مسجد کښې کيناستلو لږ ساعت پس هغه صاحب کوم چه د تپوس دپاره هلته روان وو د هغوی نه په واپس کيدو باندې مونږ ته راغلو او دا ئې اوفرمائيل چه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٤٧) (صحيح الإسناد)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢١٤٧) (صحيح الإسناد)
(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٤٤٤) (صحيح)

ماته ابوسعيد خدری رضي الله عنه دا حديث مرفوع اورولې دې چه : إِنَّ الْهَوَامَّ مِنَ الْجِنِّ فَمَنْ رَأَى فِي بَيْتِهِ شَيْئًا فَلْيُحَرِّجْ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَإِنْ عَادَ فَلْيَقْتُلْهُ فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ ...چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دی چه بعض ماران جنات وی پس کوم سرې چه هغه په خپل کور کښې وينی نو په هغه دې درې کرته تحريج اوکړی يعنی هغه دې د مخصوص اعلان په ذريعه تنګ کړی خو که بيا هم راشي نو بيا دې قتل کړی ځکه چه دا شيطان دې.

[۵۲۵۷] (١) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ صَيْفِيٍّ أَبِي سَعِيدٍ مَوْلَى الْأَنْصَارِ، عَنْ أَبِي السَّائِبِ، قَالَ: أَتَيْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، فَبَيْنَمَا أَنَا جَالِسٌ عِنْدَهُ، سَمِعْتُ تَحْتَ سَرِيرِهِ تَحْرِيكَ شَيْءٍ، فَنَظَرْتُ فَإِذَا حَيَّةٌ، فَقُمْتُ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ: مَا لَكَ؟ قُلْتُ: حَيَّةٌ هَاهُنَا، قَالَ: فَتُرِيدُ مَاذَا؟ قُلْتُ: أَقْتُلُهَا، فَأَشَارَ إِلَى بَيْتٍ فِي دَارِهِ تِلْقَاءَ بَيْتِهِ، فَقَالَ: "إِنَّ ابْنَ عَمٍّ لِي كَانَ فِي هَذَا الْبَيْتِ، فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ الْأَحْزَابِ اسْتَأْذَنَ إِلَى أَهْلِهِ، وَكَانَ حَدِيثَ عَهْدٍ بِعُرْسٍ، فَأَذِنَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَرَهُ أَنْ يَذْهَبَ بِسِلَاحِهِ، فَأَتَى دَارَهُ فَوَجَدَ امْرَأَتَهُ قَائِمَةً عَلَى بَابِ الْبَيْتِ، فَأَشَارَ إِلَيْهَا بِالرُّمْحِ، فَقَالَتْ: لَا تَعْجَلْ حَتَّى تَنْظُرَ مَا أَخْرَجَنِي، فَدَخَلَ الْبَيْتَ فَإِذَا حَيَّةٌ مُنْكَرَةٌ، فَطَعَنَهَا بِالرُّمْحِ، ثُمَّ خَرَجَ بِهَا فِي الرُّمْحِ تَرْتَكِضُ، قَالَ: فَلَا أَدْرِي أَيُّهُمَا كَانَ أَسْرَعَ مَوْتًا الرَّجُلُ أَوِ الْحَيَّةُ، فَأَتَى قَوْمُهُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَرُدَّ صَاحِبَنَا، فَقَالَ: اسْتَغْفِرُوا لِصَاحِبِكُمْ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ نَفَرًا مِنَ الْجِنِّ أَسْلَمُوا بِالْمَدِينَةِ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ أَحَدًا مِنْهُمْ فَحَذِّرُوهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ثُمَّ إِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدُ أَنْ تَقْتُلُوهُ فَاقْتُلُوهُ بَعْدَ الثَّلَاثِ".

حضرت ابو سائب بيان کوی چه زۀ د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شوم زۀ د هغه سره ناست وم چه ما د هغه د کټ لاندې د څه څيز حرکت محسوس کړو - چنانچه زۀ پاسيدم اودريدم،نو حضرت ابو سعيد رضي الله عنه اوفرمائيل څه دی؟ تۀ څه غواړې؟ ما اووې چه دا مړ کووم - نو هغوی د خپل مکان مخې ته يو مکان طرف ته اشاره اوکړه اووې فرمائيل: بې شکه زما د ترۀ ځوې په دې مکان کښې اوسيدو، د جنګ احزاب په ورځ باندې هغه خپل کور ته د راتللو اجازت اوغوستو او د هغه نوې نوې وادۀ شوې وو - رسول الله ﷺ هغه ته اجازت ورکړو او ورته ئې اوفرمائيل چه مسلح لاړ شه،هغه خپل کور ته راغې وې کتل چه د هغه بی بی د کور په دروازه کښې ولاړه وه،چنانچه هغه د هغې طرف ته په نيزې سره اشاره اوکړه - نو هغې اووې: تيزی مۀ کوه - اول اوګوره چه زۀ څه څيز بهر راوستې يم؟ (يعنی اوګوره چه بهر د څه څيز دپاره راوتلې يم) چنانچه هغه کور ته لاړو نو وې کتل چه هلته کښې يو بد صورت مار وو - چنانچه هغه په خپله نيزه هغه مار اووهلو او هم داسې په وهلو ئې د کور نه راويستو او مار د نيزې سره ټوپونه وهل،هغه اووې،ما ته معلومه نۀ ده چه په هغوی کښې اول څوک مړۀ شو،هغه سړې يا مار؟ چنانچه د هغه قوم رسول الله ﷺ ته راغې او هغوی اووې: دُعا اوکړئ چه الله پاک زمونږ دا سړې واپس (ژوندې) کړی حضور ﷺ اوفرمائيل د خپل ملګری دپاره د بخشش دُعا کوئ -" بيا ئې اوفرمائيل په مدينه کښې څو پيريان مسلمانان شوې دی،نو کله چه تاسو چا لره اوونئ نو هغه لره درې ځله خبردار کړئ،ددې نه پس که چرې د قتل کولو خيال وی نو د دريم ځل نه پس ئې قتل کړئ -"

---

١): صحيح مسلم/السلام ٣٧ (٢٢٣٦)، سنن الترمذي/الصيد ١٥ (١٤٨٤)، موطا امام مالك/الاستئذان ١٢ (٣٣)، (تحفة الأشراف: ٤٤١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤١/٣) (حسن صحيح)

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي السَّائِبِ قَالَ أَتَيْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ فَبَيْنَا أَنَا جَالِسٌ عِنْدَهُ سَمِعْتُ تَحْتَ سَرِيرِهِ تَحْرِيكَ شَيْءٍ فَنَظَرْتُ فَإِذَا حَيَّةٌ الخ ﴾

مضمون حديث دا دي ابوالسائب وائی چه يو ځل زه ابوسعيد خدری رضي الله عنه ته لاړو چه کله زه هغه سره ناست اوم نو هم په دغه وخت کښې ما د هغوی د تخت د لاندې د يو څيز د حرکت آواز واوريدلو زه ورښکته شوم او اومې کتل نو هغه مار وو زما په اودريدلو باندې هغوی اووې دا ولې څه خبره ده ولې اودريدې؟ ما ورته اووې دلته مار دې هغوی اوفرمائيل ته څه غواړې؟ ما اووې د دې قتل نو مخامخ يو حجره وه هغوی اوفرمائيل زما يو د ترهٔ ځوئي وو هغه په دې کښې اوسيدلو په کومه ورځو کښې چه غزوه احزاب جاری وو او د هغې تيارې کيدلو نو يوه ورځ زما هغه د ترهٔ ځوئي د رسول الله ﷺ نه اجازت اخستلو سره خپل کور ته راغلو او د نزدې نزدې د هغه وادهٔ هم شوې وو نو رسول الله ﷺ ورته د تلو اجازت ورکړو او رسول الله ﷺ ورته دا هم اوفرمائيل چه ځان سره وسله يوسه، چه کله هغه خپل کور ته راورسيدلو نو خپله ښځه ئې په دروازه باندې اوليده، په دروازه باندې ليدلو سره ئې د هغې طرف ته په نيزه باندې اشاره اوکړه يعنی د غصې نه چه تهٔ دلته ولې ولاړه ئې هغې اووې تندی مه کوئ کور کښې دننه اوګورئ چه څه د وجې نه زه بهر راغلې يم چه کله هغه کور ته داخل شو نو وې کتل چه يو غټ مار دې (نو هغه د ځوانئ په جوش کښې) هغه په نيزه اوهلو او په نيزې سره ئې د دننه نه راويستلو سره صحن ته راوړلو چه په نيزه باندې ئې ټوپونه وهل، ابوسعيد خدری رضي الله عنه فرمائی چه زه نه شم وئيلې ﴿ فَلاَ أَدْرِي أَيُّهُمَا كَانَ أَسْرَعَ مَوْتًا الرَّجُلُ أَوِ الْحَيَّةُ ﴾ چه ځوک مخکښې مړ شو يعنی مړهٔ خو دواړه شو خو دا معلومه نه شوه چه اول مرګ د چا واقع شو، بهر حال دواړه ختم شو ﴿ فَأَتَى قَوْمُهُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالُوا ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَرُدَّ صَاحِبَنَا ﴾ د دې قصې نه پس د هغه ځوان د کور خلق د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغلل او درخواست ئې اوکړو چه د الله پاک نه دعا اوکړئ چه زمونږ سړې هغوی واپس کړی، رسول الله ﷺ اوفرمائيل (د مرګ نه پس ځوک هم دنيا ته واپس نه راځی) د خپل سړی دپاره بخښنه اوغواړئ، او بيا وړاندې دا دی ﴿ إِنَّ نَفَرًا مِنَ الْجِنِّ أَسْلَمُوا بِالْمَدِينَةِ الخ ﴾ د دې ذکر مونږ سره پورته تير شو.

دلته دا سوال واردیږی چه دې خلقو د دې ځوان د مرګ نه پس د رسول الله ﷺ نه د هغه د ژوندی کيدو د دعاء درخواست څنګه اوکړو، د دې جواب دا کيدې شی چه ممکنه ده هغوی دا ګنړلې وی چه دې لا تراوسه پورې مړ نه وی بلکه د غشی او بيهوشئ کيفيت وی پرې کوم چه په يو مرض کښې وی مرض سکته چه په هغې کښې هم دا محسوسيږی چه انسان مړ شو، او يا کيدې شی چه په محبت او بې قرارئ کښې ئې بې اختياره دا درخواست کړې وی، او بهر حال رسول الله ﷺ د دې دعاء د درخواست کولو شايان شان خو دې هم.

[۵۲۵۸] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَجْلاَنَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ مُخْتَصَرًا، قَالَ: فَلْيُؤْذِنْهُ ثَلاَثًا، فَإِنْ بَدَا لَهُ بَعْدُ، فَلْيَقْتُلْهُ، فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ.

(١): انظر حديث رقم: (۵۲۵۷)، (تحفة الأشراف: ۴۴۱۳) (حسن صحيح)

حضرت ابن عجلان دې حدیث لره په اختصار سره روایت کړې دې - فرمائی دې لره درې ځله خبردار کړئ، ددې نه پس که چرې ظاهر شی نو قتل ئې کړئ، بې شکه دا شیطان دې''

[٥٢٥٩](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ الْهَمْدَانِيُّ أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، عَنْ صَيْفِيٍّ مَوْلَى ابْنِ أَفْلَحَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو السَّائِبِ مَوْلَى هِشَامِ بْنِ زُهْرَةَ، أَنَّهُ دَخَلَ عَلَى أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ وَأَتَمَّ مِنْهُ، قَالَ: فَآذِنُوهُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَإِنْ بَدَا لَكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ فَاقْتُلُوهُ، فَإِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ.

د حضرت ابو سائب مولی ابن هشام نه روایت دې چه هغه حضرت ابو سعید رضی الله عنه ته لاړو، او د مذکوره بالا حدیث په مثل باندې ئې روایت اوکړو - فرمائی: '' هغه لره درې ورځو پورې متنبه کړې (یعنی درې ورځې تنبیه او خبرداې ورکړئ چه ددې ځائې نه اوځه) که چرې ددې نه پس ستاسو مخې ته راغې نو هغه لره قتل کړئ دا شیطان دې -''

[٥٢٦٠](٢) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ هَاشِمٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْ حَيَّاتِ الْبُيُوتِ، فَقَالَ: إِذَا رَأَيْتُمْ مِنْهُنَّ شَيْئًا فِي مَسَاكِنِكُمْ، فَقُولُوا: أَنْشُدُكُنَّ الْعَهْدَ الَّذِي أَخَذَ عَلَيْكُنَّ نُوحٌ، أَنْشُدُكُنَّ الْعَهْدَ الَّذِي أَخَذَ عَلَيْكُنَّ سُلَيْمَانُ، أَنْ لَا تُؤْذُونَا فَإِنْ عُدْنَ فَاقْتُلُوهُنَّ".

حضرت عبد الرحمن بن ابو لیلیٰ د خپل پلار نه روایت کوی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په کورونو کښې د اوسیدونکو مارانو په باره کښې تپوس اوکړې شو نو حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل کله چه تاسو ددې نه څه څیز په خپلو کورونو کښې اووینئ نو ورته اووائئ زهٔ تاسو ته هغه قسم درکووم کوم چه حضرت نوح علیه السلام تاسو درکړې وو، زهٔ تاسو ته هغه قسم درکووم کوم چه حضرت سلیمان علیه السلام تاسو ته درکړې وو چه مونږ ته هیڅ قسم ایذا مهٔ راکوئ - که چرې بیا راووځی نو قتل ئې کړئ -''

د باب آخری حدیث دې ﴿ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّهُ قَالَ اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهَا إِلَّا الْجَانَّ الْأَبْيَضَ الَّذِي كَأَنَّهُ قَضِيبُ فِضَّةٍ ﴾

[٥٢٦١](٣) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ مُغِيرَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، أَنَّهُ قَالَ: "اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ كُلَّهَا إِلَّا الْجَانَّ الْأَبْيَضَ الَّذِي كَأَنَّهُ قَضِيبُ فِضَّةٍ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: فَقَالَ لِي: إِنْسَانٌ الْجَانُّ لَا يَنْعَرِجُ فِي مِشْيَتِهِ، فَإِذَا كَانَ هَذَا صَحِيحًا كَانَتْ عَلَامَةً فِيهِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ".

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه ټولو مارانو لره وژنئ، سوا د هغې نه کوم چه د سپینو زرو د څانګې په شان وی -''امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه ما ته یو شخص بیان کړې دې چه د مار په شکل کښې پیرې کوږ تلل نهٔ شی کولې - که چرې هغه بالکل نیغ روان وو نو هغه به انشاء الله د هغه د پیری کیدو علامت وی -''

سیدنا ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه ماران وژنئ سوا د هغه سپین مار نه کوم چه په کتلو کښې داسې ښکاری لکه چه د سپینو زرو چاړهٔ ده، او په ترمذی کښې د عبد الله بن مبارک

(١): انظر حديث رقم: (٥٢٥٧)، (تحفة الأشراف: ٤٤١٣) (صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الصيد ١٥ (١٤٨٥)، (تحفة الأشراف: ١٢١٥٢) (ضعيف)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩١٥٩) (صحيح)

ﷺ په کلام کښې دی : انما يكره من قتل الحياة الحية تكون دقيقة كانها فضة ولا تلتوى فى مشيتها ...يعنى دا قسم د مار چه دې داسې دې چه د تلو په وخت کښې کږېږی نه بلکه نيغ روان وی.

# باب في قتل الأوزاغ

## باب ١٦٣، ١٦٢- دَ چرمخکئ دَ وژلو بيان

[٥٢٦٢]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ، وَسَمَّاهُ فُوَيْسِقًا".

حضرت عامر بن سعد د خپل پلار سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ دَ چر مخکئ دَ وژلو حکم کړې دې او دې ته ئې وړوکې فاسق وئيلې دی." [يعنى دا نقصان ده څناور دې.]

**قوله**:﴿ أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِقَتْلِ الْوَزَغِ وَسَمَّاهُ فُوَيْسِقًا ﴾ چه رسول الله ﷺ د وزغ يعنى کربوړی (ګرګټ) د وژلو حکم اوفرمائيلو دا کربوړې مشهور دې په تلوَن کښې او خپل رنګ بدلوی د چرمخکئ مشابه وی خو لکئ ئې د هغې نه زياته اوږده وی، په څنګل کښې په ګياګانو کښې ګرځی رسول الله ﷺ د هغې د قتلِ حکم اوفرمائيلو او د هغې نوم ئې فويسق کيخودلو کوم چه تصغير دې د فاسق يعنى ضررى، لکه چه په کتاب الحج کښې تير شو خمس فواسق يقتلن فى الحل والحرم ...دا هم ګويا د هغې مثال دې.

[٥٢٦٣]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ قَتَلَ وَزَغَةً فِي أَوَّلِ ضَرْبَةٍ فَلَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً، وَمَنْ قَتَلَهَا فِي الضَّرْبَةِ الثَّانِيَةِ فَلَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً أَدْنَى مِنَ الْأُولَى، وَمَنْ قَتَلَهَا فِي الضَّرْبَةِ الثَّالِثَةِ فَلَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً أَدْنَى مِنَ الثَّانِيَةِ".

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دی : چا چه چر مخکئ په اول ګزار سره مړه کړه دَ هغه دپاره دومره دومره ثواب دې، او چا چه په دويم ګزار سره مړه کړه دَ هغه دپاره دومره دومره ثواب دې يعنى دَ اول نه کم - او چا چه په دريم ګزار سره مړه کړه د هغه دپاره دومره دومره ثواب دې - يعنى دَ دويم ځل والا نه کم."

**قوله**:﴿ مَنْ قَتَلَ وَزَغَةً فِى أَوَّلِ ضَرْبَةٍ فَلَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً وَمَنْ قَتَلَهَا فِى الضَّرْبَةِ الثَّانِيَةِ فَلَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً أَدْنَى مِنَ الأَوَّلِ وَمَنْ قَتَلَهَا فِى الضَّرْبَةِ الثَّالِثَةِ فَلَهُ كَذَا وَكَذَا حَسَنَةً أَدْنَى مِنَ الثَّانِيَةِ ﴾

رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه کوم سړی ګرګټ مړ کړو په اول ګزارکښې نو هغه ته به دومره نيکئ ملاويږی او کوم چه په دويم ګزار هغه مړ کړی نو هغه ته به دومره دومره نيکئ ملاويږی، راوی وائی چا چه عدد ذکر نه کړو چه د مخکښې ځل نه په وژلو کښې کمې، او

(١): صحيح مسلم/السلام ٣٨(٢٢٣٧)، (تحفة الأشراف: ٣٨٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٧٧، ١٧٩) (صحيح)

(٢): صحيح مسلم/السلام ٣٨(٢٢٤٠)، (تحفة الأشراف: ١٢٧٣١، ١٢٥٨٨، ١٥٤٨٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الأحكام ١ (١٤٨٢)، سنن ابن ماجه/الصيد ١٢ (٣٢٢٨)، مسند احمد (٢/٣٥٥) (صحيح)

چا چه په دريم ځل يعنى په اول دويم کښې مړ نه شو بلکه په دريم کښې نو د هغه دپاره به دومره نيکئ وى، په دويم ځل د ويشتلو نه کمې، په دې روايت کښې په ضربات ثلاث کښې د يو د پاره کښې هم عدد د ثواب ذکر نه دې، او د صحيح مسلم په روايت کښې د ضرب اول په باره کښې دى ﴿ فله مائة سنة ﴾ او دلته د ابوداؤد په دويم حديث کښې داسې دى ﴿ أَنَّهُ قَالَ « فِي أَوَّلِ ضَرْبَةٍ سَبْعِينَ حَسَنَةً ﴾ .

[٥٢٦٤]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ سُهَيْلٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَخِي أَوْ أُخْتِي، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "فِي أَوَّلِ ضَرْبَةٍ سَبْعِينَ حَسَنَةً".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: چا چه چرمخکئ هم په اول ګزار سره مړه کړه د هغه دپاره اويا (۷۰) نيکئ دى۔"

(اشکال): دلته دا سوال واردېږى چه د قياس تقاضا خو دا ده چه په ضربه ثانيه او ثالثه کښې د وژلو ثواب د ضربه اولى نه زيات وى ځکه چه قاعده دا ده ﴿ الاجر على قدر النصب ﴾ چه د مشقت په اندازه ثواب ملاويږى،

(جواب: ۱:): علماء کرامو ليکلې دى چه دا د دې قاعدې نه مستثنى دى چه د هغې يو وجه خو دا ده چه په يو ځل وژل ﴿ احسن قتلة ﴾ دى.په حديث شريف کښې دى ﴿ ان الله قد کتب الاحسان فى کل شئ ﴾ چه هر کار په حسن او خوبئ باندې کول پکار دى، او د کوم ځناور وژل چه مقصود وى هغه په يو ځل وژل د قتل حسن او خوبى ده، اول خو د وژونکى کمال، دويم دا چه مقتول ته تکليف کم وى،

(جواب: ۲:): او د دې استثناء وجه دا هم بيان کړې شوې ده چه په اول ځل وژلو کښې مبادرت الى الخير موندلې شى، بله دا چه الاهتمام بأمر الشارع په اول کښې زيات په فهم کښې راځى، بيا مشهور على السنة دا ده چه د دې د قتل کولو حکم او په دې کښې د ثواب عظيم حکم په دې وجه دې چه دا ځناور ډېر موذى دې د سيدنا ابراهيم عليه السلام دپاره چه کوم اور بل کړې شوې وو دۀ ورله پوکې ورکولو او اضافه ئې پکښې کوله.

(په دويم جواب باندې اشکال): خو په دې باندې دا اشکال دې چه کوى ئې يو خوک او سزا ئې بل ته ملاويږى دا خو په اسلام کښې نشته،

(جواب): د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا قتل د پهوکى د وهلو سزا نه ده بلکه د دۀ د پوکى وهلو نه معلومه شوه چه د دۀ په طبيعت کښې خباثت او شر دې او قاعده ده چه جنس موذى وژل پکار دى اګر که هغه ځيز تاته ضرر نه وى درکړې، او علماء کرامو د دې د خباثت په باره کښې ليکلې دى چه دې په اوبو کښې خپلې لاړې غورځوى چه په هغې سره انسان ته سخت ضرر رسيږى او که دۀ ته په يوځائې کښې مالګه ملاؤ شى نو په هغې کښې ځان لوغړوى چه د هغې په وجه باندې هغه مالګه خرابه شى چه د هغې نه برګې مرض پيدا کيږى، او تردې پورې ئې ليکلې دى چه که مالګې ته د رسيدو ورته څه صورت ملاؤ نه شى

---

۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۲۵۸۸) (صحيح)

نو چرته چه مالګه پرته وی هلته چت نه خیجی او د هغې مالګې په خوا کښې غل کوی کذا فی هامش البذل.

# باب فِي قَتْلِ الذَّرِّ

**باب: ۱٤۳، ۱٦٤- د میږو د وژلو مسئله:**

ذر میږی کوم چه واړهٔ قسم وی او ډیر سخت چک لګوی ففی مختار الصحاح الذر جمع ذرة وهی اصغر النمل. فقهاء کرامو لیکلي دی چه د هر موذی ځناور وژل جائز دی لهذا د دې وژل هم جائز دی.

[۵۲٦۵] (١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ الْمُغِيرَةِ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "نَزَلَ نَبِيٌّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ تَحْتَ شَجَرَةٍ فَلَدَغَتْهُ نَمْلَةٌ، فَأَمَرَ بِجِهَازِهِ فَأُخْرِجَ مِنْ تَحْتِهَا، ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَأُحْرِقَتْ فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ فَهَلَّا نَمْلَةً وَاحِدَةً".

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دی: یو نبی د انبیاؤ علیهم السلام نه د یوې اونې لاندې راغې نو یو میږی هغه ته ټک ورکړو نو هغه ټولو میږو له د هغې د ویخ نه راو ویستل او بیا ئې حکم اوکړو او هغه اوسوزولي شو- نو الله تعالیٰ هغه ته وحی اوکړه چه صرف یو میږی له ئې ولې نهٔ وژلو-" [کوم چه هغه ته ټک ورکړې وو]

**قوله:** ﴿ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– قَالَ « نَزَلَ نَبِيٌّ مِنَ الأَنْبِيَاءِ تَحْتَ شَجَرَةٍ فَلَدَغَتْهُ نَمْلَةٌ فَأَمَرَ بِجَهَازِهِ فَأُخْرِجَ مِنْ تَحْتِهَا ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَأُحْرِقَتْ فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ فَهَلاَّ نَمْلَةً وَاحِدَةً »﴾

سیدنا ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د تیرو انبیاء علیهم السلام نه د یو نبی واقعه بیان اوفرمائیله چه هغوی په سفر کښې تلو تلو سره د یوې اونې لاندې پاتې شو نو هلته هغه یو میږی اوخوړلو نو هغه خپلو ملګرو ته اووې چه زما دا بستره د دې ځائې نه اوچته کړئ، د هغې د اوچتولو نه پس د هغې نه لاندې د میږو سوړه وه د هغې په باره کښې ئې اوفرمائیل چه په دې ټولو دې اور راولیږلي شی.پس اور اولګولي شو، هم وخت د الله پاک د طرف نه وحی راغله چه کله یو میږی خوړلي وې نو تا یو ولې مړ نه کړو ټول دې ولې مرهٔ کړل او په دویم روایت کښې دی ﴿ فَأَمَرَ بِقَرْيَةِ النَّمْلِ فَأُحْرِقَتْ فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ فِي أَنْ قَرَصَتْكَ نَمْلَةٌ أَهْلَكْتَ أُمَّةً مِنَ الأُمَمِ تُسَبِّحُ ﴾

[۵۲٦٦] (٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ وَسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَنَّ نَمْلَةً قَرَصَتْ نَبِيًّا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ، فَأَمَرَ بِقَرْيَةِ النَّمْلِ فَأُحْرِقَتْ، فَأَوْحَى اللَّهُ إِلَيْهِ: أَفِي أَنْ قَرَصَتْكَ نَمْلَةٌ أَهْلَكْتَ أُمَّةً مِنَ الْأُمَمِ

[1]: صحيح مسلم/السلام ٣٩ (٢٢٤١)، (تحفة الأشراف: ١٣٣١٩، ١٥٣٠٧، ١٣٨٧٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ١٥٣ (٣٠١٩)، بدء الخلق ١٦ (٣٣١٩)، سنن النسائي/الصيد ٣٨ (٤٣٦٣)، سنن ابن ماجه/الصيد ١٠ (٣٢٢٥)، مسند احمد (٢/٤٠٣) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/ الجهاد ١٥٣ (٣٠١٩)، بدء الخلق ١٦ (٣٣١٩)، صحيح مسلم/ السلام ٣٩ (٢٢٤١)، سنن النسائي/ الصيد ٣٨ (٤٣٦٣)، سنن ابن ماجه/ الصيد ١٠ (٣٢٢٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٣١٩، ١٥٣٠٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢/٤٠٣) (صحيح)

تُسَبِّحُ؟".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه يو ميږی يو پيغمبر عليه السلام له ټک ورکړو نو هغه ددغه تمامو ميږو په باره کښې حکم اوکړو او هغه په اور اوسوزولې شو، نو الله تعالیٰ هغه ته وحی اوکړه : څه وجه ده چه تالره صرف يو ميږی ټک درکړې وو او تا ټول جماعت لره هلاک کړو چه هغې (دَ الله) تسبيح کوله.''

صرف د يو ميږی په بدل کښې دې زمونږ د مخلوق يو امت هلاک کړو چا چه زمونږ تسبيح کوله، د قريه معنی دلته د کلي نه ده بلکه د ميږو سوړې ته قرية النمل وائی په بذل کښې نقل کړې شوې دی د بعض کتابونو نه چه عرب خلق په اوطان کښې فرق کوی پس د انسان مسکن ته وطن او د اوښانو مسکن ته عطن او د زمری دپاره عرين او غابة او د اوسئ دپاره کناس او مرغو دپاره عش او د نمل دپاره قريه.

په دې حديث کښې چه د کوم نبی ذکر دې د هغوی په باره کښې په بذل کښې د فتح الباری نه نقل کړې دی چه مراد عزير عليه السلام دې، او دويم قول دا دې چه مراد ترې نه موسی عليه السلام دې، د کوم نبی قصه چه په دې حديث کښې ذکر شوې ده د هغوی په باره کښې ليکلې دی چه د دې قصې يو سبب هم دې هغه دا چه دا نبی په يو داسې کلی باندې تير شوې وو په کوم چه د الله پاک عذاب نازل شوې وو او د الله پاک په حضور کښې ئې عرض اوکړو: قد كان فيهم صبيانا ودوابا ومن لم يقترف ذنبا ....چه اې الله په دې هلاکيدونکو کښې به ماشومان هم وو او ځناور هم او څه بې ګناه او بې قصوره هم، د دې نه پس دا قصه پيښه شوه، شراح ليکلې دی چه الله پاک د دې قصې په ذريعه هغوی ته تنبيه ورکړه چه جنس موذی هلاکولې شی اګر چه هغه ايذاء نه وی رسولې او د هغوی اولاد هم قتل کولې شی اګر چه هغوی د ايذاء عمر ته نه وی رسيدلی.

[٥٢٦٧](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "نَهَى عَنْ قَتْلِ أَرْبَعٍ مِنَ الدَّوَابِّ: النَّمْلَةُ، وَالنَّحْلَةُ، وَالْهُدْهُدُ، وَالصُّرَدُ".

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د څلور قسم ځناورو د قتل نه منع فرمائيلې ده : ميږی، دَ شهتو مچئ، مُلا چرګک، او توريانکه.''

**قوله:** ﴿ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- نَهَى عَنْ قَتْلِ أَرْبَعٍ مِنَ الدَّوَابِّ النَّمْلَةُ وَالنَّحْلَةُ وَالْهُدْهُدُ وَالصُّرَدُ ﴾

يعنی رسول الله ﷺ د څلورو ځناورو د قتل نه منع اوفرمائيله، ميږی او د شهدو مچئ او په مارغانو کښې هدهد او صرد، هدهد خو معروف دې او د صرد ترجمه کوی په مموله (تورنقې) سره، او بعض په لټوری (لاټو) (٢) سره.

(١): سنن ابن ماجه/الصيد ١٠ (٣٢٢٤)، (تحفة الأشراف: ٥٨٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/٣٣٢)، سنن الدارمي/الأضاحي ٢٦ (٢١٤٢) (صحيح)

(٢) د چنچڼې برابر يوه مرغئ ده، خړ رنګ کښې په شا ئې تورې کرښې وی.

مصنف رحمه الله د باب قتل الذر د لاندې دوه احاديث ذکر کړي دي د يو تعلق د تيرو انبياء عليهم السلام د شريعت سره دې او د دويم حديث د امت محمديه ﷺ سره، کوم نبي چه د قرية النمل احراق کړې وو د هغې په باره کښې امام نووي رحمه الله فرمائي چه د دې قصې نه معلومه شوه چه د هغه صاحب قصه نبي په شريعت کښې قتل نمل جائز وو بلکه احراق بالنار هم جائز وو، او عتاب په دغه واقعه کښې نه خو په احراق باندې دې او نه په نفس قتل باندې بلکه د نمله واحد نه په زيات قتل کولو باندې دې، خو زمونږ په شريعت کښې احراق الحيوان بالنار جائز نه دې او نه قتل النمل جائز دې د حديث ابن عباس رضي الله عنهما د وجې نه يعني د دې باب د حديث ثاني د وجې نه، د امام نووي رحمه الله د دې کلام نه پس حافظ فرمائي چه د امام نووي رحمه الله نه علاوه نور حضرات لکه خطابي هغوی دمنع حديث محمول کړې دې په نمل سليماني باندې، پس امام بغوي فرمائي چه نمل صغير يعني هغه وړوکې ميږې کوم ته چه ذر وائي د هغې قتل جائز دې الى آخر ما فيه... امام نووي رحمه الله خو په نمل او ذر کښې هيڅ فرق نه دې کړې او مطلقا د ميږې قتل کولو ته ئې ناجائز وئيلي دی خو خطابي او بغوي په دواړو کښې فرق کړې دې قتل ذر ته ئې جائز او نمل سليماني ته ئې ناجائز وئيلي دې، يعني د شوافعو په نزد، او د ملا علي قاري رحمه الله رائې هم دا ده پس هغه حديث د ابن عباس په کوم چه د قتل نمله ممانعت ذکر دې هلته ليکي چه د منع تعلق دخاص قسم ميږې سره دې اوداهغه ميږې دې کوم چه د غټ قسم وي چه د هغه خپې اوږدې اوږدې وي لانها قليلة الاذى والضرر، د دې نه معلومه شوه چه د احنافو مذهب هم هغه دې کوم چه د بغوي او د خطابي دې يعني د قتل ذر جواز د موذي کيدو د وجې نه او د نمل سليماني د قتل عدم جواز د هغه د غير موذي کيدو د وجې نه، پس هغه چک نه لګوي په خلاف د وړوکي ميږې کوم ته چه ذر وائي هغه موذي دې او ډير سخت چک لګوي پس ظاهره دا ده چه د باب په اول حديث کښې چه د يو نبي قصه پکښې ذکر ده ظاهره ده چه هغه ميږې هم ذر وو چه د هغې قتل زمونږ په شريعت کښې هم جائز دې او د باب دويم حديث د ابن عباس رضي الله عنهما والا په کوم کښې چه د النملة لفظ ذکر شوې دې د منع تعلق هم ددې سره دې دهغې د غيرموذي کيدو دوجې نه يا دقليل الاذى کيدو د وجې نه.

دويم څيز کوم چه په حديث کښې ذکر دې چه د هغې د قتل نه منع کړې شوې ده هغه نحله يعني د شهدو مچۍ ده، د منع وجه په هغې کښې ښکاره ده چه هغه خو د انسان په حق کښې مفيد او نافع ده او په حديث کښې څلورم څيز هدهد او صرد د دې دواړو د قتل نه هم رسول الله ﷺ منع اوفرمائيله په بذل کښې دي لعدم اضرارهما وليس في قتلهما فائدة اما اذا اخذهما ليذبحهما للاكل فلا باس، يعني هسې په وژلو کښې هيڅ فائده نشته بلکه په دې کښې اضاعت دې خو که يو سړې دا ذبح کړي د خوراک په نيت باندې نو هغه امر آخر دې اهـ.

د دې دواړو مرغانو حلت مختلف فيه دې لکه چه په هامش بذل کښې دي، د احنافو په نزد دواړه حلال خو دي خو مکروه، نقله ابن عابين عن غرر الافكار، او ابن قدامة د امام احمد رحمه الله نه د هدهد او صرد دواړو په باره کښې د حلت نقل کولو نه پس فرمائيلې دي چه د امام

احمد رحمه الله نه بل روایت د دې دوارو ځيزونو د تحريم دې، او علامه دميرى په حيوة الحيوان کښې اصح قول د دې دوارو په باره کښې د حرمت ليکلې دې. (١)

[٥٢٦٨](٢) حَدَّثَنَا أَبُو صَالِحٍ مَحْبُوبُ بْنُ مُوسَى، أَخْبَرَنَا أَبُو إِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ ابْنِ سَعْدٍ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ الْحَسَنُ بن سعد، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، فَانْطَلَقَ لِحَاجَتِهِ، فَرَأَيْنَا حُمَّرَةً مَعَهَا فَرْخَانِ، فَأَخَذْنَا فَرْخَيْهَا، فَجَاءَتِ الْحُمَّرَةُ، فَجَعَلَتْ تُفَرِّشُ، فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "مَنْ فَجَعَ هَذِهِ بِوَلَدِهَا؟ رُدُّوا وَلَدَهَا إِلَيْهَا، وَرَأَى قَرْيَةَ نَمْلٍ قَدْ حَرَّقْنَاهَا، فَقَالَ: مَنْ حَرَّقَ هَذِهِ؟، قُلْنَا: نَحْنُ، قَالَ: إِنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ إِلَّا رَبُّ النَّارِ".

حضرت عبد الرحمن د خپل پلار عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه نه روایت کوی هغوی فرمائی چه مونږه په يو سفر کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو هغوی د قضائې حاجت دپاره تشريف يوړو، نو مونږه يوه چڼچڼرا اوليده چه د هغې سره دوه بچی هم وو مونږ د هغې بچی اونيول نو د هغې مور په هغه بچو باندې ورپريوته - نبی کريم صلی الله علیه وسلم تشريف راوړو او پوښتنه ئې اوکړه دې لره چا په خپلو بچو سره پريشانه کړې ده؟ دې ته خپل بچی واپس کړئ ..." او حضور صلی الله علیه وسلم اوليدل چه مونږ د میږو يو جماعت په اور باندې سوزولې وو - نو حضور صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو دې لره چا سوزولې دی؟ مونږ اووې چه دا مونږ کړی دی - حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل چه د اور د رب نه علاوه بل چا دپاره روا نۀ دی چه هغه چا ته په اور سره عذاب ورکړی-"

د دې باب آخرى حديث : ﴿ فَانطَلَقَ لِحَاجَتِهِ فَرَأَيْنَا حُمَّرَةً الخ ﴾

دا حديث دلته بسنده ومتنه مکرر دې د دې نه مخکښې په کتاب الجهاد باب کراهية حرق العدو بالنار کښې تير شوې دې، او يو روايت تقريبا هم د دې په معنى د مرغو د بچو په باره کښې د کتاب الجنائز په شروع کښې هم تير شوې دې د يو حديث په ضمن کښې چه څوک کتل غواړی هغه دې هم اوګوری.

## بَابٌ فِي قَتْلِ الضِّفْدَعِ

### بابد ١٦٤، ١٦٥-د چيندخ د وژلو بيان

[٥٢٦٩](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ، "أَنَّ طَبِيبًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ضِفْدَعٍ يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ، فَنَهَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِهَا".

---

١) ونصه هكذا : الأصح تحريم أكله لنهي النبي صلي الله عليه وسلم عن أكله، لأنه منتن الريح، ويقتات الدود وقيل: يحل أكله، لأنه يحكي عن الشافعي وجوب الفدية فيه، وعنده لا يفدي إلا المأكول يعنى د امام شافعی رحمه الله نه نقل دی چه که محرم د دې ښکار اوکړی نو په دې کښې فديه واجب ده او فديه د هغوی په نزد په ماکول څناور کښې وی، دليل د هغوی روايت ثانيه يعنى د حلت دې : وكتب في بيان الصرد : الاصح تحريم اكله لما رواه الامام احمد وابوداؤد وابن ماجه، وذكر حديث الباب، وقيل انه يوكل لان الشافعي اوجب فيه الجزاء علي المحرم اذا قتله وبه قال مالك الخ)

٢) انظر حديث رقم : (٢٦٧٥)، (تحفة الأشراف: ٩٣٦٢) (صحيح)

٣) انظر حديث رقم : (٣٨٧١)، (تحفة الأشراف: ٩٧٠٦) (صحيح)

د حضرت عبد الرحمن بن عثمان رضي الله عنه نه روايت دې چه يو معالج د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه د چيندخ متعلق پوښتنه اوكړه چه هغه دې لره په څه دوائئ كښې اچوى نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه لره د دې د وژلو نه منع كړو -"

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ أَنَّ طَبِيبًا سَأَلَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ ضِفْدَعٍ يَجْعَلُهَا فِي دَوَاءٍ فَنَهَاهُ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- عَنْ قَتْلِهَا ﴾

يعنى يو طبيب د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د چيندخ په باره كښې په يو دوايئ كښې د ګډولو متعلق تپوس اوكړو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه د هغې د قتل نه منع كړو، ﴿ هو الطهور ماؤه والحل ميتته ﴾ په كتاب الطهارة كښې د دې حديث په شرح كښې د ميتة البحر په باره كښې د امام شافعي رحمه الله يو قول تير شوې دې چه ټول حلال دى سوا د چيندخ نه هم د دې حديث په بناء، په بذل كښې د ضفدع په باره كښې ليكلي دى چه وئيلي شوې دى چه ضفدع به د ابراهيم عليه السلام د اور د مړ كولو دپاره اوبه راوړلې (په خلاف د وزغ لكه چه مخكښې تير شو) ويقال انها اكثر الدواب تسبيحا، چه په ټولو ځناورو كښې د ټولو نه زيات د الله پاک تسبيح كوى، په بذل كښې د حضرت ګنګوهى د تقرير نه ليكلي دى چه په دې حديث كښې چه د كومې دوايئ ذكر دې چه په هغې كښې د ضفدع د ګډولو نه منع كړې شوې ده د هغې نه د خوراک دوائى مراد ده اهـ ګويا انتفاع بغير الاكل جائز ده.

## باب فِي الْخَذْفِ

### باب: ١٦٥، ١٦٦- كُټ كانړى وغيره ويشتل

[٥٢٧٠] (¹) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عُقْبَةَ بْنِ صُهْبَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَذْفِ، قَالَ: إِنَّهُ لَا يَصِيدُ صَيْدًا وَلَا يَنْكَأُ عَدُوًّا، وَإِنَّمَا يَفْقَأُ الْعَيْنَ وَيَكْسِرُ السِّنَّ".

د حضرت عبد الله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د كنكرو (كټ كانړو) د ويشتلو نه منع فرمائيلې ده، ځكه چه په دې سره ښكار نۀ كيږى او نۀ پرې څه دشمن زخمى كيږى، البته سترګې لره اوباسى، يا غاښ ماتوى -"

**قوله:** ﴿ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ الْخَذْفِ قَالَ « إِنَّهُ لاَ يَصِيدُ صَيْدًا وَلاَ يَنْكَأُ عَدُوًّا وَإِنَّمَا يَفْقَأُ الْعَيْنَ وَيَكْسِرُ السِّنَّ » ﴾

خذف وئيلې شي وړوكى شان كانړى يا ګيټكى ته د دوه ګوتو ترمينځه (سبابتين) ترمينځۀ كيخودلو سره يا مسبحه او ابهام كښې كيخودلو سره ويشتل، سيدنا عبد الله بن مغفل رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد نقل فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم د حذف نه منع اوفرمائيله او وې فرمائيل چه نه خو په دې سره څۀ ښكار كيږى او نه دا دشمن لره زخمى كوى، او دا كيدې

¹): صحيح البخاري/تفسير سورة الفتح ٥ (٤٨٤١)، الذبائح ٥ (٥٤٧٩)، الأدب ١٢٢ (٦٢٢٠)، صحيح مسلم/الذبائح ١٠ (١٩٥٤)، سنن ابن ماجه/الصيد ١١ (٣٢٢٧)، (تحفة الأشراف: ٩٦٦٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/القسامة ٣٣ (٤٨١٩)، مسند احمد (٨٦٧٤، ٤٦٧٥، ٥٤، ٥٥، ٥٦، ٥٧) (صحيح)

شی چه د چا سترګه پرې اولګی او هغه ړنده کړی یا د چا غاښ مات کړی، یعنی په خذف کښې نفع هیڅ نشته، د ضرر ویره ده، هغه چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه نه خو په دې باندې څه ښکار کیږی یعنی د هغه مقصود په دې سره ښکار کول خو نه وی، او که هغه یو ځناور په دې باندې ویشتلو سره ښکار هم کړی نو د هغې ښکار حلال نه دې د موقوذ کیدو د وجې نه، په خلاف د ترامی یعنی د غشی د ویشتلو مشق کول چه هغه سراسر فائده مند دې لکه چه په حدیث کښې راځی ﴿الا ان القوة الرمی﴾ چه په دې کښې د دشمن دپاره تیارې دې.

د خذف ذکر په کتاب الحج کښې د رمی په بیان کښې تیر شوې دې مثل حصی الخذف، خذف عام طور سره هلکان کوی نو ګویا په دې کښې ماشومان منع کړې شوې دی د دې حرکت نه چه دا خلاف ادب دې او دا کتاب دې هم کتاب الادب.

والحديث اخرجه البخاري ومسلم وابن ماجه، قاله المنذري.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْخِتَانِ

## بابـ ۱۶۶، ۱۶۷- دَ سنت بیان

د ختان ذکر د دې نه مخکښې په کتاب الطهارة ابواب السواک کښې عشر من الفطرة الحديث کښې تیر شوې دې د دې حکم هم هلته تیر شوې دې، او په دویم ځل په ابواب الغسل ﴿اذا التقى الختانان وجب الغسل﴾ کښې هم تیر شوې دې، دلته د دې په باره کښې په حدیث الباب کښې یو بل څیز او یو خاص ادب ذکر کړې شوې دې.

[۵۲۷۱]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ، وَعَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ الْأَشْجَعِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَسَّانَ، قَالَ عَبْدُ الْوَهَّابِ الْكُوفِيُّ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ الْأَنْصَارِيَّةِ، أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تَخْتِنُ بِالْمَدِينَةِ، فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُنْهِكِي، فَإِنَّ ذَلِكَ أَحْظَى لِلْمَرْأَةِ وَأَحَبُّ إِلَى الْبَعْلِ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: رُوِيَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بِمَعْنَاهُ وَإِسْنَادِهِ، قَالَ أَبُو دَاوُد: لَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ، وَقَدْ رُوِيَ مُرْسَلًا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَمُحَمَّدُ بْنُ حَسَّانَ مَجْهُولٌ وَهَذَا الْحَدِيثُ ضَعِيفٌ.

د حضرت ام عطیه انصاریه رضی الله عنها نه روایت دې چه په مدینه کښې یوه ښځه وه چه هغې به سنتول کول، نو نبی کریم ﷺ هغې ته اوفرمائیل: " سنت جور مهٔ کوی، ځکه چه په دې کښې دَ ښځې دپاره زیات لذت او دَ خاوند دپاره هم دا کیفیت زیات خوښ وی." امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه په واسطه دَ عبد الملک دَ عبید الله بن عمرو رضی الله عنه نه هم ددې هم معنیٰ روایت دَ هغه په سند سره مروی دې." امام ابوداود رحمه الله فرمائی: او دا حدیث قوی نهٔ دې، دې لره مرسل هم روایت کړې شوې دې." امام ابوداود رحمه الله فرمائی: او محمد بن حسان مجهول دې او حدیث ضعیف دې."

**قوله:** ﴿ نَا مُحَمَّدُ بْنُ حَسَّانَ نَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الْكُوفِيُّ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ ﴾ په بعضو نسخو کښې هم دغه شان ده ﴿ نا عبدالوهاب ﴾ خو دا غلط دې ځکه چه په راویانو کښې څوک عبدالوهاب کوفی نشته او نه د دې نوم څوک راوی د عبدالملک بن عمیر په شاګردانو

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۰۹۳) (صحيح)

کښې شته، او صحيح هغه ده کومه چه په بعض نورو نسخو کښې دی يعنی قَالَ عَبْدُ الْوَهَّابِ الْكُوفِيُّ او مطلب د دې دا دې چه د مصنف رحمه الله په دې حديث کښې دوه استاذان دی سليمان او عبدالوهاب په دې دواړو کښې د محمد بن حسان صفت الكوفی صرف عبدالوهاب ذکر کړې دې سليمان نه.

**قوله:** ﴿عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ الأَنْصَارِيَّةِ أَنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تَخْتِنُ بِالْمَدِينَةِ فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ تُنْهِكِي فَإِنَّ ذَلِكَ أَحْظَى لِلْمَرْأَةِ وَأَحَبُّ إِلَى الْبَعْلِ »﴾

د ام عطيه انصاريه رضی الله عنها نوم نسيبه يا نسينه دې، چه د هغې په باره کښې په کتاب الجنائز کښې تير شوې دی چه دې ته د غسل ميت طريقه ښه معلومه وه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې به ئې زنانو ته غسل ورکولو تردې چه ابن سيرين رحمه الله د هغې خدمت ته تلې وو او د هغې نه ئې د غسل ميت طريقه زده کړه.دا فرمائی چه په مدينه طيبه کښې يو زنانه وه چا چه به د زنانو سنت کولو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغې ته اوفرمائيل چه ته د جينکو په سنت کولو کښې مبالغه مه کوه بلکه په معمولی قطع باندې اکتفاء کوه ځکه چه دا عدم مبالغه فی الختان د زنانه دپاره زياته د لذت باعث ده او سړی ته زياته محبوب، د زنانه په شرم گاه باندې د خرمنې يو ټکړه وی د عرف الديک يعنی د چرګ د چارخولک په شان، د جينئ په ختنه کښې دا قطع کولې شی، د دې په باره کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه زنانه ته چا چه به دا کار کولو داسې هدايت اوفرمائيلو چه د دې په پرې کولو کښې مبالغه مه کوه د دې لږه شان حصه پرې کوه او باقې پرېږده، د نهک معنی يو کار په مبالغې سره کول دی، په خلاف د هلک د ختنې چه هغه په ښه طريقه باندې کيدل پکار دی چه په هغې سره پوره حشفه ښکاره شی، د جينئ په ختنه کښې د خفض او خفاض لفظ استعماليږی، او په هلک کښې د ختن او ختان، هم په دې وجه د جينکو سنت کونکې زنانه ته خافضه وائی، د دې زنانه نوم هم چه خافضه وه ام عطيه وو پس د مستدرک حاکم په روايت کښې دی عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ قَيْسٍ،قَالَ : كَانَتْ بِالْمَدِينَةِ امْرَأَةٌ تَخْفِضُ النِّسَاءَ يُقَالُ لَهَا أُمُّ عَطِيَّةَتخفض الجوارى،فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اخْفِضِي وَلاَ تَنْهَكِي،فَإِنَّهُ أَنْضَرُ لِلْوَجْهِ وَأَحْظَى عِنْدَ الزَّوْجِ ...دلته د ابوداؤد په روايت کښې حديث لره روايت کونکې ام عطيه الانصاريه ده هغه داسې فرمائی چه په مدينه منوره کښې يو زنانه وه چه د زنانو سنت به ئې کولو او اوس د حاکم په روايت کښې تير شو چه ضحاک بن قيس وائی چه په مدينه منوره کښې يو زنانه وه چاته چه ام عطيه وئيلې شوه هغې به د زنانو سنت کولو ، مسکنه ده چه دلته په ابوداؤد کښې د امراءة کانت تختن بالمدينة مصداق خپله ام عطيه الانصاريه وی کومه چه د حديث روايت کونکې ده هغوی د خپل ځان نه په غائب سره تعبير کړې دې او خپل ځان خافضه کيدل ئې نه دی ښکاره کړې، په اسد الغابة کښې د ام عطيه الانصاريه الخافضه مستقل ترجمه ده او ام عطيه الانصاريه چه د هغې نوم نسيبه دې او هغه دا چه هغې به مړو ته غسل ورکولو د هغوی ترجمه ځانله ده خو د ام عطيه خافضه په ترجمه کښې ئې دا ليکلې دی : قال ابو موسی واظهنا المذكورة يعنی ام عطيه نسيبة التی ياتی ذكرها بعد هذه اهـ والله تعالى اعلم.

**قوله:**﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ رُوِيَ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بِمَعْنَاهُ وَإِسْنَادِهِ ﴾ په بذل کښې ليکلي دي چه په اکثر نسخو کښې داسې دي عن عبيدالله بن عمر، بدون الواؤ او په بعض نسخو کښې عبيدالله بن عمرو دي بفتح العين مع الواؤ وهو الصواب لانه عبيدالله بن عمرو بن ابى الوليد الاسدى مولاهم ابووهب الجزرى، روى عن عبدالملک بن عمير اهـ.

**قوله:**﴿ قال ابوداؤد:وليس هو بالقوى﴾ يعنى دا حديث قوى نه دي چه د هغې وجه خپله مصنف رحمه الله بيان کړې ده لکه چه په بعض نسخو کښې دى : ﴿ قَالَ أَبُو دَاوُدَ مُحَمَّدُ بْنُ حَسَّانَ مَجْهُولٌ ﴾

**فائده** : په حاشيه د بذل کښې دى : ثم فى ختانه صلى الله عليه وسلم ثلاثة اقوال بسطها صاحب الخميس ۱/۲۰۳ واجملها ابن القيم ۱/۱۹ وحکى عن کمال الدين ابن العديم انه ختن على عادة العرب وکان عموم هذه السنة للعرب قاطبة مغنيا عن نقل معين فيها، يعنى د ابن العديم رائې دا ده چه د رسول الله ﷺ ختنه د پيدائش نه پس د عربو د عادت مطابق کړې شوې وه، او چونکه د ختنې طريقه په عربو کښې عام وه په دې وجه د هغې د مستقل نقل کولو حاجت او نه ګڼړلې شو، هم دغه شان په شامى ۵/۵۵ کښې دي الاشبه بالصواب انه عليه السلام لم يولد مختونا ...يعنى صحيح هم دا ده چه رسول الله ﷺ قدرتى طور او پيدائشى مختون نه وو پيدا شوې.

## باب فِي مَشْيِ النِّسَاءِ مَعَ الرِّجَالِ فِي الطَّرِيقِ

**بابـ ۱۶۷، ۱۶۸- په لاره کښې د ښځو تلل د سړو سره-**

او په يو نسخه کښې دى : فى مشى النساء مع الرجال فى الطريق.

[۵۲۷۲](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي الْيَمَانِ، عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَبِي عَمْرِو بْنِ حِمَاسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَهُوَ خَارِجٌ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاخْتَلَطَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَاءِ فِي الطَّرِيقِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلنِّسَاءِ: اسْتَأْخِرْنَ، فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ، عَلَيْكُنَّ بِحَافَاتِ الطَّرِيقِ، فَكَانَتِ الْمَرْأَةُ تَلْتَصِقُ بِالْجِدَارِ حَتَّى إِنَّ ثَوْبَهَا لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ مِنْ لُصُوقِهَا بِهِ".

حضرت حمزه د خپل پلار ابو اسيد انصارى رضي الله عنه نه روايت کوى چه هغه د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دى، هغه اوفرمائيل په داسې حال کښې چه هغه د جمات نه وتلو، او سړى د ښځو سره خلط (ګډ وډ) شوې په لاره کښې روان وو - نو رسول الله ﷺ ښځو ته اوفرمائيل : ورستو ورستو ځئ، تاسو لره مناسب نۀ دى چه د لارې په عين درميان کښې روانې يئ - بلکې د لارې په اطرافو کښې ځئ -" چنانچه ښځې به ديوال سره لګيدې او تلې به، تردې پورې چه د هغوى جامې به په ديوال پورې اونختې، د وجې د لګيدو د دوى نه په ديوال پورې -

**قوله:**﴿ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ أَبِي أُسَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– يَقُولُ وَهُوَ خَارِجٌ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاخْتَلَطَ الرِّجَالُ مَعَ النِّسَاءِ فِي الطَّرِيقِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– لِلنِّسَاءِ « اسْتَأْخِرْنَ فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ عَلَيْكُنَّ بِحَافَاتِ الطَّرِيقِ ». فَكَانَتِ الْمَرْأَةُ

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۹۲) (حسن)

تَلْتَصِقُ بِالْجِدَارِ حَتَّى إِنَّ ثَوْبَهَا لَيَتَعَلَّقُ بِالْجِدَارِ مِنْ لُصُوقِهَا بِهِ ﴾
حمزه بن اسيد روايت کوی د خپل پلار ابواسيد انصاری نه، دا اسيد بضم الهمزة صحيح دي بعض په فتحې د همزه سره ضبط کړې دې هغه صحيح نه دې قاله المنذری، هم دغه شان په سند کښې عن شداد بن ابی عمرو بن حماس دې، په دې کښې حماس بکسر الحاء المهملة دې کما فی البذل، په بعض کتابونو کښې دا د کاتب په قلم سره حماس ليکلې شوې دې هغه صحيح نه دې.
ابواسيد انصاری رضي الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه چه کله هغوی د مسجد نه وتل او حال دا چه په لاره کښې سړی د ښځو سره مخلوط شو دا واوريدل زنانو ته خطاب کولو سره چه د سړو نه شاته اوسئ او دويم هدايت ئې ورته دا اوفرمائيلو چه ستاسو دپاره دا مناسب نه ده چه په طاق الطريق کښې ځئ يعنی د لارې په مينځ کښې، ستاسو دپاره ضروری ده چه د لارو په غاړه باندې ځئ، راوی وائی چه د رسول الله ﷺ د هدايت نه پس ما هره يوه زنانه اوليده چه هغه به ديوال سره جخته تلله تر دې چه جامې به ئې ديوال سره لګيدلې.

[٥٢٧٣](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ أَبِي صَالِحٍ الْمَدَنِيِّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى أَنْ يَمْشِيَ يَعْنِي، الرَّجُلَ بَيْنَ الْمَرْأَتَيْنِ".

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د دې نه منع فرمائيلې ده چه يو سړې د دوو ښځو په درميان کښې روان وی.''
**قوله:** ﴿ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ –صلى الله عليه وسلم– نَهَى أَنْ يَمْشِيَ – يَعْنِي الرَّجُلَ – بَيْنَ الْمَرْأَتَيْنِ ﴾ سيدنا ابن عمر رضي الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ منع فرمائيلې ده د دې خبرې نه چه سړې د دوو زنانو ترمينځه ځی، يعنی په لاره کښې تلو سره سړو لره د ښځو نه بيل تلل پکار دی.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَسُبُّ الدَّهْرَ

### باب: ١٦٩، ١٦٨: په بيان د هغه سړی کښې چه زمانې ته کنځل کوی

[٥٢٧٤](٢) حدثنا محمد بن الصباح بن سفيان، وابن السرح، قالا: أخبرنا سفيان، عن الزهري، عن سعيد عن أبي هريرة، عن النبي صلى الله عليه وسلم: يقول الله عزوجل: "يؤذيني ابن آدم، يسب الدهر، وأنا الدهر بيدي الأمر، أقلب الليل والنهار". قال ابن السرح، عن ابن المسيب مكان سعيد.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائيلې دی الله جل شانه فرمائی چه د آدم ځوی ماته اذيت راکوی، هغه زمانې ته کنځل کوی، حالانکه هم زۀ زمانه يم، معامله زما په لاس کښې ده ورځ او شپه هم زۀ اړه ووم.
**قوله:** ﴿ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ بْنِ سُفْيَانَ وَابْنُ السَّرْحِ قَالاَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٦٦٢) (موضوع)
(٢): صحيح البخاري/تفسير سورة الجاثية ١ (٤٨٢٦)، التوحيد ٣٥ (٧٤٩١)، الأدب ١٠١ (٦١٨١)، صحيح مسلم/الألفاظ من الأدب ١ (٢٢٤٦)، (تحفة الأشراف: ١٣١٣١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الكلام ١ (٣) (صحيح)

أَبِى هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِىِّ -صلى الله عليه وسلم- « يَقُولُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يُؤْذِينِى ابْنُ آدَمَ يَسُبُّ الدَّهْرَ وَأَنَا الدَّهْرُ بِيَدِىَ الأَمْرُ أُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ».قَالَ ابْنُ السَّرْحِ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ مَكَانَ سَعِيدٍ عن النبى صلى الله عليه وسلم ﴾ د دې نه پس په بعض نسخو کښې ﴿ يقول الله عزوجل ﴾

يعنى رسول اللهﷺ د الله پاک قول نقل فرمائى لهذا دا حديث حديث قدسى شو، د حديث مضمون دا دې چه رسول اللهﷺ فرمائى چه الله پاک داسې فرمائى چه ابن ادم ماته اذيت راکوى (هغه داسې) چه زمانې ته کنځلې کوى او بدې ردې وائى حال دا چه زمانه خو زه يم، يعنى زمانې ته چه د کومو کارونو او حالاتو د وجې نه بد وائى د هغې افعالو او حالاتو پيدا کونکې خو زه يم ټول امور زما په لاس کښې دى او د شپې ورځې گردش زما د طرف نه دې، يعنى د بعض خلقو عادت وى چه د مصيبتونو د پيښيدو په وخت زمانې ته بدې ردې وائى، يا خيبة الدهر، وائې د زمانې ناکامى، علامه عينى د امام خطابى نه نقل کړې دى چه اهل جاهليت به د مصائبو او حوادثو نسبت دهر ته کولو او د داسې خلقو دوه ډلې وې يو ډله خو هغه وه د چا چه په الله پاک باندې ايمان نه وو هغه ئې نه پيژندلو سوا د دهر او ليل و نهار نه نو هغوى به ټول بد او مکروه څيزونه د زمانې طرف ته منسوب کول، په دې عقيدې سره چه دا د زمانې فعل دې، دا فرقه خو هم هغه ده کومو ته چه دهريه وئيلې شى د چا مقوله چه الله پاک په قرآن کريم کښې نقل کړې ده.﴿ وَمَا يُهْلِكُنَا إِلَّا الدَّهْرُ ﴾ او يوه فرقه هغه وه چا چه د څيزونو خالق پيژندلو او د دې قائل وو خو هغوى به مصيبتونه او ناخوښه امور د الله پاک طرف ته منسوب کول بد گڼړل بلکه د هغې نسبت به ئې دهر او زمانې طرف ته کولو، او دا دواړه ډلې په دې خبره کښې مشترک وې چه د دهر مذمت به ئې کولو او کنځلې به ئې ورته کولې، نو رسول اللهﷺ د داسې وئيلو نه منع اوفرمائيله چه زمانې ته کنځلې کول خو گويا الله پاک ته کنځلې کول دى ځکه چه کوم ناخوښه امور چه د زمانې د طرف نه گڼړلو سره هغې ته بدې ردې وئيلې شى هغه ناخوښه امور او مصائب د زمانې د طرف نه نهٔ دى بلکه د الله پاک د طرف نه دى په دې وجه دا کنځلې د زمانې نه واپس کيدو سره الله پاک ته رسيږى.

**د﴿ وانا الدهر ﴾ اعراب:**

. ﴿ وانا الدهر ﴾ دوه طريقو سره لوستلې شوې دې مرفوع او منصوف، راجح په دې کښې رفع ده او دا مبتدا خبر دى چه هم زه زمانه يم يعنى په زمانه کښې انقلابات او تغيرات راوستونکې هم زه يم، اى انا خالق الدهر ومقلبه (بذل) او دهر منصوب لوستلې شوې دې دې لره ظرف منلو سره، يعنى ټول امور زما په لاس کښې دى د هميشه نه د طول الدهر او تقليب د ليل ونهار څه کوم، علماء کرام فرمائى چه کوم سړې افعال يعنى تغيراتو او انقلاباتو کښې د يو څيز نسبت د زمانې طرف ته حقيقة کوى نو په دې سره کفر لازميږى او د چا په خولهٔ چه دا لفظ بغير د قصد او عقيدې نه راشى نو هغه نه کافر کيږى بلکه دا قول به د هغه دپاره مکروه وى د اهل کفر سره د مشابهت د وجې نه په دې اطلاق کښې او هم دغه شان د ﴿ مطرنا بنوء كذا ﴾ حکم دې.

**(ايا دهر د الله د اسماؤ نه دي؟)**

قاضي عياض رحمه الله فرمائي چه بعض هغه علماء کوم چه غير محقق دی هغوی دا خبره اوکړه چه دهر د الله پاک په اسماء حسنی کښې دې او دا غلطه ده.دهر د الله پاک په اسماء حسنی کښې نه دې فان الدهرة زمان الدنيا ...ځکه چه دهر خو د دې دنيا د زمانې د مودې نوم دې.

دلته اوس دوه خبرې باقی دی: اول دا چه الله پاک ته د تکليف رسولو څه مطلب؟ ځکه چه ايذاء مستلزم دده تاذی ته، د ايذاء معنی ده تکليف رسول چه د هغې دپاره تاذی يعنی د تکليف رسيدل او د هغې نه متاثر کيدل لازم دی حال دا چه تاذی مقوله د انفعال نه ده او د الله پاک صفت دادې چه هغه ﴿ فعال لما يريد ﴾ دې.او هغه فاعل مختار دې نه منفعل (د بل د فعل اثر قبلونکې) الله پاک خو په هر څيز کښې موثر دې نه د هغې نه متاثر، د دې جواب دا دې لکه چه امام نووی رحمه الله فرمائيلې دی قوله يوذينی من الايذاء معناه يعالمنی معاملة توجب الاذی فی حقکم ...يعنی مطلب دا دې چه د الله پاک د فرمان چه ابن ادم ماسره داسې معامله کوی کومه چه خپله د هغوی په اعتبار سره ايذاء ده يعنی که يو انسان د بل انسان سره کوم چه د هغه محسن اعظم او مربی وی داسې ګستاخانه معامله اوکړی نو يقينا په دې سره به هغه ته تکليف وی.او بعض حضراتو داسې ليکلې دی چه الله پاک ته د تکليف رسولو مطلب د هغه افعالو ارتکاب دې کوم چه د هغه ناخوښه ده ګڼې الله پاک ته څوک تکليف رسولې شی.

**(دحديث قدسی تعريف)**

دويمه خبره دا ده چه مونږ پورته اووې چه دا حديث قدسی دې.

**سوال:** حديث قدسی څه ته وائی او په دې او قرآن کريم کښې څه فرق دې؟

**جواب** : حديث قدسی هغه حديث دې چه د هغې نسبت رسول الله ﷺ د الله پاک طرف ته اوکړی چه الله پاک داسې فرمائی، په حديث قدسی کښې مضمون د الله پاک د طرف نه وی او الفاظ د رسول الله ﷺ د طرف نه وی نو ګويا د حديث قدسی حقيقت وحی غير متلو دې.

**(په قران اوحديث قدسی کښې فرق)**

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه په قرآن او حديث کښې علماء کرامو ډير فرقونه ليکلې دی. ([1])

[1] ) الفرق بين الحديث القدسي والقرآن (لابن القيم الجوزي، باثني عشر وجها ١: جواز تلاوته وروايته للجنب دون القرآن.٢: يجوز للمحدث مس محله المكتوب وكتابة دون القرآن.٣: انه لا ينعقد الصلوة به ولا يسقط به فرض القراءة، ٤: انه لا يلحق بالمصحف ولا يدخل فيه.٥: انه لا يسمي قرانا ٦: انه لا ينسخ به القران عند من يقول السنة لا تنسخ القرآن ٧: انه لا يضمن لتاليه بكل حرف عشر حسنات.٨: من منع بيع المصحف وشرائه كاحمد والشافعي في المشهور عنه وجمهور السلف لا يمنع لبيع من الكتاب المتضمن لهذه الآثار وشراه بل هو عنده بمنزلة كتب الحديث.٩: انه يجوز روايته بالمعني عند من يجوز رواية الحديث بالمعني بخلاف القران.١٠ : انه لم يقع به التحدي والاعجاز ولا ببعضه كما وقع بالقرآن وبعشر سور منه وبسورة واحد منه ولهذا لا يسمي الجملة منه اية ولا سورة باتفاق المسلمين.١١: انه يعمل منه بما روي باخبار الاحاد ويثبت بها والقرآن يشترط نقله بالتواتر.١٢: انه يجوز نسخه بالسنة ويكون حكمه في ذلك حكم نسخ السنة بالسنة والله اعلم بالصواب.(لابن القيم الجوزي)

۱: قرآن قطعی دې او حدیث قدسی غیر قطعی،
۲: قرآن معجز دې او حدیث قدسی غیر معجز،
۳: قرآن کریم متلو دې یعنی د کوم چه په مانځه کښې تلاوت کولې شی او حدیث قدسی غیر متلو دې،
۴: قرآن کریم منزل من الله تعالی دې یعنی بلفظه ومعناه، او حدیث قدسی غیر منزل من الله دې ځکه چه په دې کښې الفاظ د رسول الله ﷺ د طرف نه دی، ډیرو محدثینو حضراتو صرف احادیث قدسیه یو ځائې کښې جمع کړی دی او دا مطبوعه کتابونه ملاویږی هم په دې حضراتو کښې د یو مجموعه د ابن عربی ده چه په هغې کښې هغوی سل احادیث قدسیه جمع کړی دی او هم دغه شان د شیخ عبدالغنی نابلسی هم ده یو مجموعه، او هم دغه شان یوه مجموعه د ملا علی قاری رحمه الله ده او هم په دوی کښې یو علامه عبدالرؤف المناوی هم دې.

د سند په آخر کښې دی ﴿قَالَ ابْنُ السَّرْحِ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ مَكَانَ سَعِيدٍ﴾ د مصنف رحمه الله په دې حدیث کښې دوه استاذان دی محمد بن الصباح او احمد بن عمرو بن السرح، امام ابوداؤد رحمه الله فرمائی پورته په سند کښې چه کوم عن سعید راغلې دې نو دا لفظ د محمد بن الصباح دې او زما دویم استاد ابن السرح په ځائې د عن سعید عن ابن المسیب وئیلې دې.

اوس دلته په کاب کښې آخری لفظ سعید دې هم په دې باندې کتاب ختم دې نو اوس دا اوګنړئ چه براعت اختتام هم په دې کښې دې، الله پاک دې مونږ او د کتاب ټولو لوستونکو ته د دارین سعادت رانصیب کړی، آمین ثم آمین.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری.

..............................

﴿وهذا اخر ما اردت ایراده فی هذا الشرح وقد تم به هذا الشرح بعون الله تعالی وتوفیقه فالحمد لله اولا واخرا والصلوة والسلام علی سیدنا محمد واله وصحبه سرمدا ودائما﴾

چونکه د دې شرح تکمیل د بذل المجهود په شان په مدینه طیبه کښې اوشو او په دې پوره شرح کښې بذل المجهود شریف د اول نه تر آخره پورې زمونږ مخې ته وو او په حقیقت کښې چه څه فیض او نفع ده هغه زمونږ د شیخ او مرشد شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب المهاجر المدنی رحمه الله او د هغه د شیخ او مرشد یعنی صاحب بذل المجهود المحدث الکبیر والفقیه النبیل رئیس المناظرین مولانا خلیل احمد انبهټوی سهارنپوری المهاجر المدنی رحمه الله طرف ته منسوب دې هم په دې وجه حضرت چه د بذل په آخر کښې کوم عبارت لیکلې وو هغه زه دلته استبراء لیکم.

﴿ قد تم وكمل بتوفيق الله سبحانه وتعالى وحسن تسديده في المدينة المنورة في روضة من رياض الجنة عند قبر سيد ولد ادم بل سيد الخلق والعالم بتاريخ احد وعشرين من شهر شعبان سنة خمس واربعين ثلاث مائة والف من هجرة النبي الامين اللهم تقبله منا كما تقبلت من عبادک المقربين الصالحين واجعله خالصا لوجهک الكريم واغفرلنا ما وقع منا من الخطاء والزلل وما لا ترضى به من العمل فانک عفو كريم رب غفور رحيم ﴾

د الدر المنضود على سنن ابى داؤد دا شپږم جلد کوم چه آخرى جلد دې نن په شلمه ذى الحجة ۱۴۲۴ هجرى په ورځ د چهارشنبې په وخت د لس منټه دپاسه په دولس بجې په مدينه منوره کښې پوره شو، آخرى درې واړه جلدونه د الله پاک په فضل باندې په مدينه منوره کښې اوليکلې شو د عزيز گرامى قدر مولانا و مولوى حبيب الله چمپارنى ثم المدنى خادم خاص حضرت شيخ رحمه الله په تعاون سره په جمع د مواد او املاء او ليکلو کښې، فجزاه الله تعالى وسائر من اعانني في هذا التاليف احسن الجزاء ورزقني واياهم لما يحبه ويرضاه.

محمد عاقل عفا الله عنه ۱٤۲٤/۱۲/۲۰ هجرى

الحمد لله د اتوار په ورځ سحر تقريبا ۶ بجې (۲۸ رمضان المبارک ۱۴۴۸) ددې آخرى جلد آخرى ستنهک پوره شو، اود نورو جلدونو ستنهک ددې رمضان په نورو ورځو کښې پوره شوې دې. د ترېسنګ مرحله ئې پاتې ده.

**درخواست**: ددې شرح لوستونکو او فائده اخستونکو ته درخواست دې چه خپل ځان او مصنف ته دعا کولو سره سره ددې کتاب په ترجمه او اشاعت کښې شريک ټول ملګرى، دهغوى اهل وعيال او استاذان هم په خپلو دعاګانو ياد لرئ.

ربنا تقبل منا انک انت السميع العليم وتب علينا انک انت التواب الرحيم.